# توضيحات

د مشکوٰة شريف پښتو شرح

تاليف

حضرت مولانا فضل محمد يوسف زئی دامت برکاتهم

استاذ حديث جامعة علوم اسلامية بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه

مولانا محمد فيض الهادي "حقاني"

سابق مدرس مدرسه تعليم القرآن والحديث

چارسده روډ پشاور

مكتبة الاصلاح
محله جنگی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

کفایت دینی کتب خانہ

کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔

کفایت اللہ ابن صدیق




+923052488551
+923247442395

مالکی حنبلی

# توضیحات مشکوٰة شریف
پښتو شرح

(جلد شپږم)

الشیخ حضرت مولانا فضل محمّد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذِ حدیث جامعۃ علوم اسلامیۃ بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه:
مولوي فیض الهادي حقاني

**د توضیحات پښتو شرح مشکوٰة خصوصیات:**

- په اول جلد کې د اصول حدیث یوه مفیده مقدمه
- په متن باندې اعراب
- په ټیبل کې تحت السطور بامفهومه ترجمه
- هر حدیث ته مناسب عنوان ورکول
- د مشکوٰة المصابیح د احادیثو تخریج د صحاح سته وغیره کتابونو نه کول
- د مشکوٰة المصابیح د مشکلو لغاتو حل کول
- په شرحه کې هر یو ځای ته مناسب عنوان ورکول
- د ائمه اربعو د مذاهبو بیان
- د مذاهبو دلائل بیانول
- د احنافو د مذهب د ترجیح وجوهات بیانول
- په شرح کې د مرقاة او د اشعة اللمعات د عباراتو حوالې ورکول
- د کتاب د هرې صفحې په سر د کتاب او باب خودنه
- د هر کتاب په اول کې د ضروري مباحثو بیان
- بین القوسین په اضافي قیوداتو سره مزید وضاحت کول
- د مشکلو ابحاثو د سوال او جواب په ذریعه حل کول
- د جدید او قدیم بعضې مسائلو استنباط
- په احادیثو کې د تعارض په صورت کې بهترین مطابقت راوستل
- په اتم جلد کې د مشکوٰة المصابیح د حدیثو د راویانو مفصل حالات

مکتبة الاصلاح
محله جنگی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

## درخواست

د الله تعالیٰ په فضل وکرم سره د کمپوزنګ نظرثانی او تصحیح نه علاوه د چهاپ کولو او جلد سازئی په ټولو مرحلو کښې د ډیر احتیاط نه کار اخستلې شوی دی خو بیا هم انسان کمزوری دی۔
که ددې احتیاط باوجود هم څه غلطی په نظر درشی نو اطلاع راکړئ ان شاء الله په راتلونکی چهاپ کښې به ئې تصحیح اوکړو۔


د کتاب نوم: توضیحات مشکوة شریف

مؤلف: الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

ترجمه: مولوي فیض الهادی حقاني

کمپوزنګ: مولوي فیض الهادی حقاني

ناشر: مکتبة الاصلاح محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797


### د ملاویدو پتی:

| | |
|---|---|
| پاکستان | افغانستان |
| شبقدر | جلال آباد |
| اکوړه خټک | کابل |
| صوابی | خوست |
| شیوه اډه | ګردیز |
| مردان | غزنی |
| مینګوره | قندهار |
| تیمرګره | کوندوز |
| باجوړ | کنړ |
| ټل هنګو | مزار شریف |
| دوآبه | لغمان |
| ډیره اسماعیل خان | |
| بلوچستان | |
| چمن | |

نَضَّرَ اللهُ اِمْرَأً سَمِعَ مَقَالَتِيْ فَحَفِظَهَا وَ وَعَاهَا وَ اَدَّاهَا (الحديث طبراني)

# انتساب

زه دا خپل محنت خپل مادرِ علمي او د عِلم عالَمي مرکز

جامعة العلوم الاسلامية بنوري ټاؤن طرف ته منسوبوم

چې ددې د شفقت په سیورې کې

بنده د محدث العصر حضرت اقدس حضرت مولانا محمد یوسف البنوري رَحِمَهُ اللّٰهُ

او صدر مدرس حضرت اقدس حضرت مولانا فضل محمد سواتي رَحِمَهُ اللّٰهُ نه

د احادیثو مقدسو سند حاصل کړو.

فضل محمد یوسف زئي

روزِ محشر هر کسے باخویش دارد توشهء

من نیز حاضر میشوم توضیح مشکوة در بغل



وَ مِنْ مَذْهَبِيْ حُبُّ النَّبِيِّ وَ كَلَامِهُ

وَ لِلنَّاسِ فِيْمَا يَعْشَقُوْنَ مَذَاهِبُ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ

اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ

اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ

# فهرست

# کتاب الجهاد
# د جهاد بیان

**قال الله تعالی ﴿کتب علیکم القتال وهو کره لکم وعسی ان تکرهوا شیئا و هو خیر لکم﴾(بقرة۲۱۶)**
**وقال الله تعالی ﴿و فضل الله المجاهدین علی القاعدین اجرا عظیما﴾(النساء)**

**د جهاد تعریف : ۱: عن عمرو بن عبسة رضی الله عنه قال قیل لرسول الله صلی الله علیه وسلم وما الجهاد؟ قال ان تقاتل الکفار اذا لقیتهم قیل: فایّ الجهاد افضل؟ قال من عقر جواده واهریق دمه. (کنزالعمال ۲۷/۱ وطبرانی ومسندأحمد)**

**ترجمه**: حضرت عمرو بن عبسه رضی الله عنه فرمایي چې یو پوښتنه کونکي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه وپوښتل چې جهاد څه شی دی؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې جهاد دا دی چې ته د مقابلې په وخت کې د کفارو سره وجنګېږې. وپوښتل شو چې د ټولو نه غوره جهاد کوم یو دی؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د هغه چا جهاد د ټولو نه غوره دی چې د چا آس ؤوژلی شي او بیا خپله د هغه وینه توییه شي.

**۲: قال وما الجهاد؟ قال ان تقاتل الکفار اذا لقیتهم ولا تغل ولا تجبن ( بیهقی فی شعب الایمان ورواه کنزالعمال ۲/۱)**

**ترجمه**: یو صحابي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه وپوښتل: یارسول الله (صلی الله علیه وسلم)! جهاد څه شی دی؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: جهاد دا دی چې ته د مقابلې په وخت کې د کفارو سره جنګ وکړې او په دې لاره کې خیانت ونکړې او نه ویرېږې.

**۳: الجهاد بکسر الجیم اصله لغة هوا المشقة و شرعا بذل الجهد فی قتال الکفار.** (فتح الباری ۴/۱)

**ترجمه**: جهاد کسرهٔ جیم سره په لغت کې د محنت او مشقت په معنی کې دی. او په اصطلاح شریعت کې د کفارو سره په جنګ کولو کې د خپل ټول طاقت استعمالولو نوم جهاد دی.

**فائده**: پاس ذکر شوي د جهاد شرعي تعریفونه دي. هر تعریف کې د کفارو سره جنګ کولو ذکر دی، خو ملاعلي قاري رحمه الله د مشکوة په شرح مرقاة کې تعریف داسې کړی دی. "خپل ټول طاقت کفارو سره په جنګ کې د مصرفولو نوم په شریعت کې جهاد دی". امام راغب اصفهاني رحمه الله په خپل کتاب مفردات القرآن کې د جهاد شرعي تعریف داسې کړی دی: "خپل ټول طاقت د کفارو په وهلو او شړلو کې د مصرفولو نوم جهاد دی" کتاب شرعة الاسلام په شرح کې یې د جهاد تعریف داسې کړی دی: "د دشمنانِ اسلام سره د جنګ کولو نوم جهاد دی". د دې ټولو تعریفونو د نظر په اړه په هر مسلمان باندې واجب دي چې د جهاد دغه شرعي مفهوم خپل کړي، ځکه په شریعت

کې د احکامو دارومدار په شرعي اصطلاحي مفهوم باندې اېښودلی شوی دی. صحابه کرام رضي الله عنهم به همدغه په جهاد کښلو سره د کفارو مقابلې لپاره د اسلحو سره وتل او بیا به په میدان کې لویې لویې مقابلې کیدلې. هغوی د جهاد لغوي معنی نه کتل چې جهاد فقط د محنت او مشقت نوم دی. چې په کوم کې د کفارو سره د جنګ کولو او د تورې اوچتولو هیڅ نوبت نه راځي. شرعي احکامو کې لغوي مفهوم اخستلو سره ډیر لوی نقصان کېږي. مثلاً څوک د صلاة یو لغوي مفهوم خپلوي او وايي چې د صلوة معنی دعاء ده. زه به فقط دعا کوم، لمونځ به نه کوم یا صوم یعنې د روژې مفهوم د لږ ساعت لپاره د خوراک څښاک نه ځان ساتل دي. نو که څوک د لږ ساعت لپاره د خوراک څښاک نه ځان وساتي او بیا وايي چې بس روژه مې وشوه یا څوک زکوٰة نه ورکوي او وايي چې زکوٰة د پاکوالي نوم دی او زه به دا پاکوالی په بله طریقه حاصلوم یا د حج لغوي معنی قصد کول دي. نو که څوک وايي چې ما کور ته د تللو قصد کړی دی، جومات یا داسې نورو ځایونو ته مې د تللو قصد کړی دی. بس اوس حج وشو، نو وګورئ په لغوي مفهوم اخستلو سره څومره لوی نقصان وشو چې د شریعت د اصل حکم نه دا کس محروم شو او په لغوي مفهوم سره هیڅ تر لاسه نه شو. دغه شان جهاد ته د محنت او مشقت نوم ورکول او د کفارو سره جنګ ته نه وتلو سره خپل نقصان کېږي. وګورئ ذکر شوې ډلې لمونځ د ذکر په مفهوم سره واخستلو او اصل تعریف یې پرېښود نو د ټول دین نه محرومه شوه.

**د جهاد قسمونه:** ﴿**و فضل الله المجاهدين على القاعدين اجرا عظيما**﴾(سورة النساء ۲۴)

**ترجمه:** او الله تعالی مجاهدینو ته په کور کې د ناستو (خلکو) مقابله کې لوی اجر ورکړی دی.

**اول قسم فرض کفایه:** مسلمانانو ته چې کله په ټول عالَم کې غلبه او شوکت حاصل وي نو هغه وخت د اسلام فریضه باقي او د جاري ساتلو لپاره او اسلام مزید په نوره دنیا کې د خپرولو لپاره په دنیا کې یوه داسې ډله وي چې د کفارو سره به په جهاد کې مشغوله وي نو په داسې حالت کې جهاد فرض کفایي شي، ځکه چې یوې ډلې چې کله دا کار سنبال کړو نو د نورو مسلمانانو ذمه واري ساقطه شوه، خو په دې شرط چې دا ډله د کفارو د مقابلې لپاره پوره وي او که چرې د دنیا ټولو مسلمانانو جهاد یو شان پرېښودلو نو ټول په ټوله به ګنهګار شي. صاحب د هدایه لیکلي دي: "**ان ترکوا جمیعا آثِم الکُلّ**" یعنې که ټولو د جهاد عمل پرېښودلو نو ټول به ګنهګار شي. دغه شان عبارتونه د فقهې په نورو کتابونو کې او فتاوی کې موجود دي. د جهاد دې قسم ته جهاد اقدامي هم وايي او دا فرض کفایه وي. د دې لپاره یو څو شرطونه هم دي: ۱: مور او پلار او سرپرستو اجازت ۲: امارت شرعیه ۳: د څینو په نزد د طاقت توازن ۴: دعوت الی الاسلام، یاد ساتئ چې د جهاد نه مخکې چې کفارو

ته کوم دعوت ورکول کېږي او په کوم باندې جهاد موقوف کېږي. د دې دعوت درې جملې دي: ۱: اسلام قبول ۲: ګنې جزیه ورکول ۳: که نه وي نو بیا په میدان جنګ کې جنګ لپاره تیار شئ. دا دعوت د هغه کفارو لپاره ضروري دی چاچې په هیڅ ډول د اسلام نه وي اوریدلي او نه د اسلام سره واقف وي خو کومو خلکو ته چې یو ځل د اسلام دعوت رسیدلی وي یا هغوی د کومو رسنیو په ذریعه د اسلام نوم اوریدلی وي نو هغوی ته بیا په میدان جنګ کې دعوت ورکول مستحب دی. لنډه دا چې جهاد د کفارو سره کېږي نو دا دعوت به هم د کفارو سره خاص وي. د دې نور تفصیل به ان شاء الله مخکې راشي. د قرآن د ذکر شوي آیت نه علماء او فقهاء کرامو رحمهم الله د جهاد دغه قِسم استنباط کړی دی، ځکه په آیت کې د دوه ډلو ذکر دی. او دواړه مقبولې دي. یوه هغه ډله چې په کور کې ناست وي او په عبادت او په نورو نیکو کارونو کې مشغوله وي. او بله ډله هغه ده چې د جهاد لپاره د کفارو سره مقابلې کولو لپاره وتلې وي. اوس چې کور کې هغوی ته د کیناستلو اجازت ورکړی شوی دی نو د دې نه معلومه شوه چې یو قِسم د جهاد داسې هم وي چې هغې کې څه خلک وروسته پاتې کیدی شي او هغه فرض کفایي ده. اوس وتونکی مجاهد شو چې لویه درجه یې ده. او کیناستونکی مجاهد نه شو او د هغوی درجه هم کمه شوه اګر که هغه په نورو عبادتونو کې مشغول و. د دې آیت نه دوه خبرې واضحه شوې. یوه دا چې د جهاد دوه قِسمه دي، هغې کې یو قِسم فرض کفایي دی او بل فرض عین دی. دویم په خبره باندې سړی پوهه شي چې هر عبادت کونکی او د جهاد نه بغیر نور نیک کارونه کونکې ته مجاهد نشي ویلی. شیخ الهند محمود الحسن رحمه الله د دې آیت په تفسیر کې داسې لیکلي دي: "د دینه معلومه شوه، جهاد فرض کفایي دی فرض عین نه دی یعنې که د مسلمانانو کافي شمیر او د ضرورت موافق ډله جهاد کوي نو جهاد نه کونکو باندې هیڅ ګناه نشته دی ګنې ټول به ګنهګار وي". دغه شان مضمون د دې آیت په تفسیر کې د حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله نه منقول دی: ﴿ولتكن منكم امة يدعون الى الخير﴾ (ال عمران ۱۰۴)

**ترجمه**: یعنې پکار ده چې یوه ډله په تاسو کې نیک کار ته بلنه وکړي. د دې آیت د لاندې شاه عبدالقادر رحمه الله لیکي: معلومه شوه چې په مسلمانانو باندې فرض ده چې یوه ډله قائمه وي په جهاد او د دین خوندي (تقید) ساتلو لپاره تردې چې د دین خلاف څوک ونکړي او څوک چې په دې کار باندې قائم وي نو هم هغه کامیاب دي. او دا چې څوک د چا سره تعرض ونکړي، موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپل دین او عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپل دین باندې، دا خپله لار د مسلمانۍ نده. (موضح القرآن: ۱۰۱)

**دويم قِسم فرض عين** : او كه چرې كفارو د مسلمانانو په يو: علاقه حمله كړې وي، خلک وهي او عزتونه او مال لوټي او مسلمانان په دفاعي حالت كې وي، نو داسې وخت كې د جهاد دا قِسم دفاعي او فرض عين شي. دا جهاد اول په نزدې خلكو فرض عين دى، كه چرې هغه پوره نه وي نو ورو ورو په ټول عالم اسلام مسلمانانو باندې فرض عين شي. د جهاد دغه قِسم لپاره شرط نشته دى. بس په نفير عام سره به ټول مسلمانانو له وتل وي. غلام له د مالک نه د اجازت اخستلو ضرورت نشته دى، نه ځوى له د پلار نه او نه ښځې له د خاوند نه د جازت اخستلو ضرورت شته دى. بس څه چې په لاس درځې او چتول او مقابلې له وتل دي. دغه وخت كې دعوت الى الاسلام هم ختم شي. علامه سرخسى او فتاوى تاتارخانيه او د فقهې په نورو كتابونو كې داسې ليكلى شوي دي. حضرت مولانا رشيد احمد گنگوهي رحمه الله په الكوكب الدرى شرح ترمذي كې د علماؤ دا قول نقل كړى دى چې: "**وان هجموا علينا سقطت الدعوة**" (يعنې كه چرې كفارو مونږ باندې حمله وكړه نو دعوت به ساقط شي) صاحب بحرالرائق په كتاب الجهاد كې ليكلي دي چې كه چرې كفارو په مشرق كې مسلمانانې ښځې قيد كړې نو تر مغرب پورې مسلمانانو باندې هغوى د كفارو د قيد نه ازادول فرض عين دى. باقي د فرض عين مطلب دا دى چې د دا حكم ټولو مسلمانانو لپاره ذاتې او په شخصي توگه متوجې كېږي، نو د چا نوبت به نن راشي او د چا به وروسته راشي چې تلونكې كله بيرته راشي نو دغه شان به بله ډله لاړه شي، كله چې هغوى بيرته راشي نو بله ډله به ځي، نو نظام به هم راوان وي او د جهاد كار به هم راوان وي، لكه څنگه چې حج فرض عين دى، خو د ټولې دنيا واله په يو كال حج ته نۀ ځي بلكې موقع په موقع ځي راځي. فتح القدير دا خبره داسې ليكلې ده: دا خبره دې هم ياده وي چې عبدالله بن مبارک رحمه الله، سعيد بن المسيب رحمه الله، ابن شبرمه رحمه الله او داسې نورو فقهاؤ په نزد د جهاد هم يو قِسم دى. هغوى فرمايي چې جهاد بس فرض عين دى. فرض كفايي نه دى، خو عامه فقهاؤ دا تقسيم كړى دى. مونږ د دې تقسيم قائل يو، خو دغه وخت تقريباً په هر ځاى كې مسلمانان دفاعي جهاد كوي كوم چې فرض عين دى. د نفير عام دوه صورتونه دي. يو دا چې د وخت بادشاه يا د جهاد عام امير عامه خلكو ته د جهاد لپاره د وتلو اعلام وكړي. دويم صورت دا چې د مظلومانو او د بې وسه مسلمانانو فرياد په يو ډول د چا غوږ ته ورسېږي. (تاتارخانيه)

**د جهاد يو څو نور قِسمونه** : ﴿ و عن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **قال جاهدوا المشركين بأموالكم و انفسكم و السنتكم**﴾ (مشكوة : ۳۳۲)

**ترجمه**: حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د مشريكنو خلاف په خپلو مالونو او ځانونو او په ژبو سره جهاد وکړئ.

**جهاد بالمال**: د دې مطلب دا دی چې د يو مسلمان مال په جهاد او مجاهدينو باندې مصرف شي او په هغې سره نيغ په نيغه د جهاد ميدان ته فائده ورسيږي. كه يو كس يو فقير غريب ته مال وركړي او د هغې مرسته كوي يا د خپلو خپلوانو سره مرسته كوي. دا يو نيک كار خو كيدلی شي او دې باندې ثواب هم حاصليدی شي خو په دې سره هغه ځان ته مجاهد نه شي ويلی، ځكه د دې مال بيشكه چې په يو نيک ځای كې مصرف شوی دی خو په جهاد كې نه دی مصرف شوی. كه چرې هغه د خپل ځان باره كې دا سوچ كوي چې ما مالي جهاد وكړو نو دا خبره او خيال به بې ځايه وي. حديث كې د مشركينو په خلاف "په خپلو مالونو سره جهاد وكړئ" الفاظ راغلي دي. دلته د كوم مشرک هغه خپل مال خرچ كړی دی چې د جهاد بالمال اميد لري؟ قرآن كې د جهاد بالمال ډير ترغيب راغلی دی، ځكه د مال نه بغير د جهاد عمل پاتې كيږي. او مالي جهاد هر يو كس كولی شي. همدغه وجه ده چې مال مقدم ايښودلی شوی دی.

**جهاد بالنفس**: د جهاد بالنفس مطلب دا دی چې سړی خپل نفس په جهاد كې استعمال كړي. د كفارو سره مقابلو لپاره دا خپل نفس ورديكه كړي او د حق او د باطل په مقابلو كې دا خپل نفس وجنګوي. "جهاد بالنفس عربي كلمه ده" او بالنفس كې د با لفظ په آله باندې داخل دی. يعنې "د نفس سره جهاد كول". دا لفظ داسې دی لكه څوک چې ؤوايي ټوپک سره جهاد، تورې سره جهاد، راكټ لانچر سره جهاد، توپ سره جهاد يا كلاشنكوف سره جهاد، دا چې څومره آلې د جنګ او وهلو دي. دې باندې د "با" د داخليدو نه وروسته دې مطلب پوهه كې راشي چې دا شيان د آلې په توګه استعمال كړی شوي دي. دا مطلب هرګز نه دی چې دې كس جهاد بالسيف وكړو يعنې د تورې په مقابله كې يې په توره باندې وهل شروع كړه بلكې د دې په عربي محاوره كې دا مطلب وي چې دې كس د جهاد كې په ميدان كې توره استعمال كړه او په توره يې د كفارو سره مقابله وكړه. بالكل همدغه د مطلب د جهاد بالنفس هم دی. چې دغه نفس د كفارو په مقابله كې استعمال كړی شي. دغه مطلب صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او سلف صالحينو د دې جملې اخستی دی. حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله په خپل كتاب كې يو حديث نقل كړی دی. چې د هغې الفاظ داسې دي:

**"والمجاهد من جاهد نفسه بنفسه"** يعنې مجاهده دا ده چې څوک خپل نفس سره په خپل نفس په ذريعه جهاد وكړي. يعنې نفس د جهاد په ميدان كې حاضر كړي او هغه د كفارو په مقابله كې استعمال كړي. دا د نفس په ذريعي باندې د كفارو سره مقابله هم شوه او د دې په ضمن كې د كفارو

سره مجاهده هم شوه، ځکه د نفس مجاهده په همدې عمل سره کېږي. چې د نفس د خواهش خلاف وي او دا ښکاره خبره ده چې جهاد کې جنګیدل نفس ته ځومره ګرانه معلومېږي. د جهاد بالنفس متعلق خلک د یو حدیث حواله هم ورکوي. چې د هغې په رڼا کې د جهاد دوه قسمونه شي. یو وړوکی جهاد او بل لوی جهاد. د دې حدیث متعلق د بحث کتنه هم وکړئ.

**دجهاد اکبر او جهاد اصغر بحث**: کله چې د قومونو زوال شروع شي، نو د هغوی همتونه وغورزېږي او کله چې همتونه وغورزېږي، نو بیا د ژبې نه کمزورې جملې راوځي. زړه او مغزو کې هر هغه قسمه فلسفه کیني چې هغه یو کَس د زوال طرف ته بوځي. بیا داسې وخت کې دشمن راشي او په ارام کیني او زوال کیدونکی قوم خپله د خپل زوال منصوبې جوړوي. کله چې د اسلام سپیڅلی دور لاړو او د اسلام تر ټولو اوچت بیرغ لاندې په راغورزیدو شو او د عزت او د عظمت او د شان و شوکت نه وروسته چې کله مسلمانان په مجموعي توګه د زوال سره مخ شول نو د هغوی په نزد داسې معذرت کونکې جملې خپلې کړی شوې چې د هغې په رڼا کې خو ورته د سهولت د خوښولو ښې موقعې خو ترلاسه شوې خو د دې په ضمن کې مسلمان د کارنامو، کردار یا د تاریخ جوړولو د حیثیت نه محروم شول. همدغه د محرومۍ په زمانه کې یوه جمله جوړه کړی شوه او هغه د حدیث په شکل کې د وړاندې کولو کوشش وکړی شو، د دې لپاره چې د مسلمانانو جذبات د اسلام د دشمنانو په ځای د خپلو ځاروؤ اړخ ته تاو شي او د "قهر درویش برجان درویش" پوره مصداق جوړ شي. د لارې نه د تېښتې لپاره چې کومې جملې ته د حدیث په نوم د هغې ښه خپرونه شوې شوه، هغه دا ده:

"**رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر قالوا وما الجهاد الاکبر؟ قال جهاد القلب**"

**ترجمه**: یعنې نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې مونږ د وړوکې جهاد نه واپس راغلو او د لوی جهاد اړخ ته راغلو. صحابؤ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وپوښتل چې یارسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ! جهاد اکبر کوم یو جهاد دی؟ نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د نفس سره جهاد (یعنې د کفارو سره جهاد کول وړوکی جهاد دی). ملاعلي قاري رحمه الله د خپل کتاب په موضوعات کبیر کې د حرف الراء په ضمن کې په (صفحه ۱۲۷) باندې دا روایت د نقل کولو نه وروسته د ابن حجر عسقلانی رحمه الله په حوالي سره فرمایلي دي چې د خلکو په نزد دا حدیث په ژبو باندې ختلی دی حال دا چې دا د ابراهیم بن عبله په نوم د یو کس مقوله ده.۱: تنظیم الاشتات شرح مشکوة جلد ۱ صفحه ۶۹ کې د دې حدیث متعلق د تعلیق الصبیح او د تفسیر بیضاوی په حواله لیکلی شوي دي چې ابن تیمیه رحمه الله فرمایلي دي:

"**هٰذَا حَدِيثٌ لَا اَصْلَ لَهُ**" یعنې د دې حدیث هیڅ اصل نشته دی.۲: دغه شان په فتاوی عزیزی صفحه ۱۰۲ کې شاه عبدالعزیز د پوښتنې په جواب کې فرمایلي دي چې دا کلام اکثر د صوفیاء کرامو په

کتابونو کې اکثر موندلی کېږي. او دا د هغوی په نزد حدیث نبوی دی. بلکې د ځې محدثین علماؤ هم دا عبارت ذکر کړی دی، په دې غرض بانبدې چې د دې حدیث نه ثابتېږي چې د نفس سره جهاد افضل جهاد دی، خو ماته یاد نه دي چې د حدیث په کوم کتاب کې ما دا عبارت کتلی وي. بهرحال د جهاد اکبر نه مراد دا نه دی چې د جهاد د فراغت نه وروسته راغلي بلکې د جهاد اکبر نه مراد دا دی چې چې د نفس او د شیطان سره جهاد وکړی شي. دا تفسیر د صوفیانو د خیال مطابق دی او د ډیرو علماؤ خلاف دی چې د جهاد اکبر نه مراد د جهاد د فراغت نه وروسته راتلل دي. او سلیقه کتاب داني او عبارت شناسي د دې خیال نه بالکل متنفر دی، ځکه چې مراجعت یعنې د بیرته راتلو لفظ د رجعنا نه مفهوم دی. او جهاد اصغر د ابتداء غایة (غرض) ده او جهاد اکبر د انتهاء غایة (غرض) ده. او د دواړو غایه چې د کوم شي غایه جوړېږي، د هغې نه مغائر کېږي. د دې نه معلومه شوه چې د دواړو جهاد اصغر او د جهاد اکبر مراجعت یعنې د واپسئ مغایر دی. د شاه عبدالعزیز رحمه الله دا کلام لږ شان مغلق دی، خو د دې نه دا خبره صفا واضحه کېږي چې د شاه عبد العزیز رحمه الله په نزد دا کلام د صوفیاؤ کلام کیدی شي خو حدیث نه دی. دغه شان علماؤ هم دا کلام د د جهاد اصغر نه بیرته د جهاد اکبر اړخ ته د بیرته راتللو په معنی نه دی اخستی. دغه شان په عبارتونو باندې د پوهیدو طریقه هم دا نه ده او د کتاب پوهیدو طریقه هم دا نه ده. مخکې بیا شاه عبدالعزیز په عبارت باندې اعتراض کړی دی، نو ظاهره دا چې دا حدیث نشي کیدی.

۳: د مشارع الاشواق الی مصارع العشاق په مقدمه کې (صفحه ۳۰) باندې لیکلی شوي دي چې کله د اسلام دشمنانو ولیدل چې د مسلمانانو سره د اسلام د دفاع لپاره او د اعلاء کلمة الله لپاره جهاد یو عظیم بنیادي طاقت دی او ترڅو پورې چې جهاد قائم وي نو د اسلام د دشمنانو پښې کلکې نشي پاتې کیدی، ځکه د جهاد په برکت او د الله په مرستې سره مسلمانانو په د نیمې صدئ نه کم وخت کې نیمه دنیا فتح کړه. د تاریخ په پاڼو باندې چې کله کفارو دا ولیدلو نو هغوی د جهاد ماتولو او د هغې د کمزوري کولو لپاره ډیر کلونه ګونډې ماتې کړې او غور او فکر یې وکړو تردې چې هغوی د دې مشکل حل وموندلو او هغه دا چې مسلمانان دې په زیب او زینت کې اچولو سره د جهاد نه لرې کړی شي، نو بیا د دې لپاره کفارو یوه مهذبه طریقه اختیار کړه او هغه دا چې هغوی د جهاد د اصغر او د اکبر تقسیم وکړو چې د نفس سره جهاد لوي جهاد دی. او د کفارو سره جهاد لوی جهاد دی. بیا د دې مقصد ترلاسه کولو لپاره د اسلام دشمنانو حدیثونه جوړ کړل او د هغې نسبت یې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وکړو، ځکه هغوی په پوهیدل چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اړخ ته په نسبت کولو سره به مسلمانان دا ژر قبول کړي، نو هغوی د "رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد

الاکبر" حديث جوړ کړو. چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې ښکاره دروغ دي. او د حديث په کتابونو کې مطلقاً دا حديث موجود نه دی. ابراهيم بن عبله رحمه الله اګر که ثقه سړی دی. مګر دار قطني ويلي دي چې د هغې اړخ ته هم د عبارت نسبت واضح نه دی. بيا د دې ځانه جوړ کړی شوي حديث اثر کمزورو مسلمانانو باندې داسې وشو چې کله هغوی وليدل چې د نفس او شيطان مقابله لوی جهاد نو هغوی د کفارو سره د جهاد کولو نه منع شول او په محدوديت کيدلو سره په تسبيح او ذکر و فکر کې مشغول شول او د نيا يې کفارو ته خالي پرېښودله، نو کفار غالب شول او مسلمان غلام پاتې شو. ۴: خطيب بغدادی وغيره د دې عبارت نه لږ شان مختلف يو بل حديث ذکر کړی دی. چې ترجمه يې دا ده چې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يوې غزوې نه بيرته راغلو، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته وفرمايل ښه راغلئ ښه راغلئ، تاسو د وړوکي جهاد نه لوی جهاد ته راغلئ. صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وپوښتل چې لوی جهاد کوم يو دی نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې: د بنده د خپل خواهشاتو خلاف مجاهده کول لوی جهاد دی. دې حديث باندې هم محدثينو جرح کړې ده. دې کې يو راوي "خلف بن محمد خيام" دی. حاکم□ فرمايي چې د دې حديثونه د اعتبارقابل نه دي. او ابو يعلی خليلي رحمه الله فرمايي چې دا ډير ضعيف ؤو. هغه به ډير اشتباه کيدلو او کله به يې داسې حديثونه نقل کول چې د هغې به هيچا ته پته نه وه. ابوزرعه رحمه الله هم د دې روايت کړی شوي حديثونو نه بېزاري اعلان کړی وه، دې روايت کې يو راوي يحيیٰ بن علاء دی. د هغې متعلق امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايلي دي چې دا لوی دروغژن سړی ؤ. چې د ځانه به يې حديثونه جوړول. ابن عدي رحمه الله به فرمايل چې د دې سړي ټول حديثونه د ځان جوړ کړی شوي دي. شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله فرمايي: ځينې خلک چې دا حديث نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غزوه تبوک نه بيرته راتلو وخت کې وفرمايل چې:

﴿رجعنا من الجهاد الاصغر الى الجهاد الاکبر فلا اصل له﴾

**ترجمه**: يعنې مونږ د وړکې جهاد نه لوی جهاد ته راغلو. د دې حديث هيڅ بنياد نشته دی. (مقدمه مشارع الاشواق ص ۳۱)

جهاد مع النفس او د جهاد الکفار متعلق د ترمذی شريف د يو حديث په شرح کې حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله د کوکب الدري ج۱ ص ۴۲۵ باندې داسې ليکلي دي:

﴿ولا يخفى ما بين الجهادين من الالتئام والاتصال فان مجاهدة الکفار لا تخلوا عن مجاهدة النفس ولا تتصور دونها ومجاهدة النفس اذا کملت لا تکاد تترک الرجل لا يجاهد الکفار بلسانه او بسنانه﴾

**ترجمه**: او دا خبره پته نه ده چې د جهاد مع النفس او د جهاد الکفار دواړو په خپل مینځ کې یو جوړ او اتصال دی، ځکه د کفارو سره په جنګ کولو کې د نفس مجاهده کېږي. د نفس د مجاهدې نه بغیر کفارو سره د جنګ کولو خیال امکان نه لري، او پاتې شوه د نفس مجاهده، نو دا د نفس مجاهده چې کله پوره شي نو دا سړی د کافرو سره د جنګولو نه بغیر نه پرېږدي، که هغه په ژبه وي او که په توره یا په غشي سره وي.

۵: د دې تفصیلاتو نه وروسته د دې بحث په ابتدائی آیت: ﴿وفضل الله المجاهدین علی القاعدین اجرا عظیما﴾(النساء :۲۶) اړخ ته ځو چې د دې آیت اولني مخاطبین صحابه کرام رضي الله عنهم دي. هغوی کې یوه ډله د دې آیت د نازلیدلو په وخت کې هغه وه چې هغه جهاد ته وتلې وه. او یوه دله هغه وه چې جهاد ته نه وه تلې، ځکه د فرض کفایه په صورت کې هغوی ته د تللو اجازت نه ؤ. البته کومه ډله چې جهاد ته تلې وه، نو هغویالله تعالی په دوه امتیازاتو سره ممتاز کړل. یوه دا چې د ناستو او د نه تلو واله مقابله کې د تلونکو درجه اوچته ده او هغوی ته به لوی اجر ورکړی کېږي. دویم دا چې تلونکې مجاهدین دي او هغه وخت جهاد ته نه تلونکې قاعدین (یعنې ناست خلک) مجاهدین نه دي. وس غور کول پکار دي چې کوم صحابه کرام رضي الله عنهم په مسجد نبوي صلی الله علیه وسلم کې باتې شوي ؤ. هغه ټول لمونځ کؤونکي، تجهد کونکیاو روژه نیونکې ؤ. نفلي عبادتونو، صدقاتو او د نفس په ریاضتونو کې ډیر زیات مشغول ؤ، خو د دې ټولو محنتونو او د نفس د مجاهدې باوجود هماللہ تعالی هغوی ته مجاهدین ونه فرمایل، بلکې مجاهدین همغه شول کوم چې د کفارو سره د جنګ کولو لپاره وتلي ؤ. که چرې د نفس سره مجاهده کونکی مجاهد شي نو بیا د ﴿وفضل الله المجاهدین علی القاعدین اجرا عظیما﴾(نساء ۲۶) څه مطلب اخستل کیدی شي؟ نو بیا په په ایت باندې پوهیدل ګران شي. دغه شان دا خبره هم یاده وساتئ چې سلف صالحینو چې د جهاد باره کوم څومره کتابونه لیکلي دي. ټول یې د جهاد مع الکفار په حواله لیکلي دي. د نفس د ریاضت باره کې چې کوم کتابونه لیکلي شوي دي. د هغې نوم هغوی کتاب الزهد ایښی دی. تر ننه پورې یو کتاب هم داسې نشته دی چې هغه چا د کتاب الجهاد یا د فضائل الجهاد په نوم سره نومولی وي. او په هغې کې یې د نفس سره د جهاد مباحثې لیکلې وي. البته د نفس د ریاضت لپاره چې کوم کتابونه لیکلی شوي دي. هغه د زهد او تقوی په نوم باندې نومولی شوي دي. پخپله د حضرت عبدالله ابن مبارک رحمه الله یو کتاب دی. کتاب الجهاد او بل کتاب الزهد دی. د دواړو مباحثې او مضمونونه جدا جدا دي، نومونه یې هم جدا جدا دي. لهذا جهاد الکفار جدا شی دی او ریاضة الجهاد جدا شی دی. بیا دا سوچ وکړه چې تقریباً پنځوس زره (۵۰۰۰۰) صحابه کرام رضي الله عنهم په میدان جنګ کې شهیدان شوي دي، نورو ټول صحابؤ په جهاد کې برخه اختسې وه، نو آیا د هغوی ژوند په داسې کار کې مصرف شوی ؤ چې په شریعت کې د اصغر او کمې درجې والا ؤ. حاشا و کلا.

**جهاد باللسان**: د جهاد د قسمونو په ابتداء کې چې کوم حديث ليکلى شوى دى. هغې کې دريم قسم جهاد باللسان دى. اسلام کې د جهاد باللسان هم ډير اهميت دى. او نبي کريم ﷺ حکم کړى دى چې د مشرکينو سره د ژبې په ذريعې سره جهاد وکړئ. د حديث شارحينو د جهاد باللسان وضاحت داسې کړى دى. چې د ژبې په تقريرونو او ليکنو سره خلکو کې د جهاد جذبه راپيدا کړى شي. د جهاد فضائل او مسائل بيان کړى شي. د جهاد نظمونه وويلى شي. وس که يو کس په عام فضيلت باندې يو ساعت تقرير وکړي او هغه بيا وايي چې ما جهاد باللسان وکړو نو دا به غلطه وي. جهاد باللسان هر هغه خبرې دي چې په هغې باندې ميدان جهاد او د مجاهدينو او جهاد ته فائده رسېږى. دا تقرير چې د عامه متعلق دى، بيشکه د ثواب کار دى خو جهاد باللسان نه دى، ځکه په دې باندې جهاد يا مجاهد ته فائده نه رسېږي، نو د دې حديث په شرح کې مفتي محمد شفيع رحمه الله په خپله رسالة جهاد (ص ۴۵) باندې فرمايي چې د مال جهاد دا دى چې مال د جهاد په کارونو کې خرچ کړى شي. او د ژبې جهاد دا دى چې خلک د جهاد په ترغيب باندې اماده کړى شي. او د جهاد احکامات ورته وويل شي او دا هم چې په خپلو خبرو او تقرير سره دشمن وډار کړي. داسې نظمونه چې په هغې سره د مسلمانانو د جهاد جذبه قوي وي يا چې په کومو سره د دشمن تذليل وشي، هغه هم په دې جهاد کې شامل دي. لکه څنګه چې حضرت حسان رضي الله عنه په صحابوٌ کې شاعر دى. د هغه نظمونه چې د مشرکانو په مقابله کې ويلى شوي دي هغې ته جهاد ويلى شوى دى. (رساله جهاد: ۴۵)

**د ظالم بادشاه مخې ته حق کلمه ويل**: يو حديث کې راغلي دي: ﴿افضل الجهاد من قال كلمة حق عند سلطان جائر﴾

**ترجمه**: يعنې د ظالم بادشاه مخې ته د حق کلمه ويل د ټولو نه افضل ترين جهاد دى. د دې حديث سره دا شک مه کوئ چې دلته خو جهاد نشته دى. بيا د ژبې کلمې ته افضل جهاد څنګه وويلى شو؟ نو د دې تشريح حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهی رحمه الله د کوکب الدری په شرح الترمذی صفحه ۴۷ جلد ۲ کې داسې کړې ده. "دا چې مجاهد د دوه خبرو په مينځ وي يا خو به جهاد کوي کفار به وژني او مالِ غنمت به حاصلوي او يا به شهيد شي او په وينو کې به رنګ شي، خو هغه کس چې د ظالم بادشاه مخې ته د حق کلمه اوچتوي، نو د هغې په حق کې خو دا يقين دى چې وژلى کېږي به (د بچ کيدو اميد نشته) ځکه هغه افضل شو. د دى کلام خلاصه دا شوه غازي کله په ميدان کې د کفارو سره جنګېږي نو د ژوند او د مرګ د دواړو احتمال دى، خو دا سړى چې د ظالم بادشاه مخې ته يې د حق اواز اوچت کړو، د دې مرګ يقيني دى. لهذا دا هم جهاد بلکې افضل جهاد شو"

**د اسلام دعوت**: د امت دوه قِسمونه دي. يو هغه قِسم دى چې هغوى اسلام قبول کړى دى او اسلامي احکامات مني او چې څومره کيدى شي نو عمل پرې کوي، د امت دې برخې ته په اصطلاح شرع کې.

"امت جابت" ویلی کیږي. دویم قِسم هغه دی چې هغوی اسلام نه دی قبول کړی بلکې په خپل کفر باندې کلک ولاړ دي. د امت دي برخې ته په اصطلاح شرع کې "امت دعوت" ته وایي. د جهاد نه مخکې چې اسلام کوم دعوت ضروري ټاکلی دی. هغه دعوت یوائې د امت دعوت لپاره دی، ځکه دا په امت اجابت کې بیخي چلیدلی نشي. د دې دعوت درې جملې دي. ۱: اسلام قبول کړه ۲: که اسلام نه قبلوي نو جزیه ادا کړه ۳: که دا هم منظور نه وي نو بیا د جنګ لپاره تیار شه. نبي کریم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله مجاهدین لیږل نو هغوی ته به یې د دې وصیت کولو. د مسلم شریف په یو اوږد حدیث کې دا درې شیان په ترتیب سره ذکر شوي دي. زه د هغه حدیث هغه درې واړه جملې د حدیث نه مختصر کومه او ناظریونو ته یې هدیه کوم. کتنه یې وکړی.

**۱: قال علیه السلام فی ضمن حدیث طویل: واذا القیت عدوك من المشرکین فادعهم الی الاسلام فان هم ابوا فسلهم الجزیة فان هم ابوا فاستعن بالله وقاتلهم (مشکوة صفحه ۳۴۱)**

ترجمه: نبي کریم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو اوږد حدیث په ضمن کې (د مجاهدینو امیر ته) داسې وصیت کړی دی: کله چې تاسو د خپلو مشرکانو دشمنانو سره ملاو شئ نو هغوی ته د اسلام دعوت ورکړئ. که هغوی قبول کړو نو بیا د هغوی سره د جنګ نه ځان وساتئ. که هغوی د اسلام د قبولو نه انکار وکړو، نو د هغوی نه د جزیې ورکولو مطالبه وکړئ. که هغوی جزیه قبوله کړه نو هغوی سره د جنګ کولو نه ځان وساتئ. پس که چرې هغوی د جزیې ورکولو نه هم انکار وکړو نو بیا د الله تعالی نه مرسته وغواړئ او د کفارو سره وجنګیږه.

**۲: وعن ابی وائل قال کتب خالد بن الولید الی اهل فارس بسم الله الرحمن الرحیم من خالد بن الولید الی رستم و مهران فی ملاءِ فارس سلام علی من اتبع الهدی اما بعد: فانا ندعو کم الی الاسلام فان ابیتم فأعطوا الجزیة عن ید و انتم صاغرون فان معی قوما یحبون القتل فی سبیل الله کما یحب فارس الخمر والسلام علی من اتبع الهدی. (مشکوة صفحه ۳۴۲)**

ترجمه: د ابؤوائل نه روایت دی چې حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د اهل فارس ته د بسم الله الرحمن الرحیم نه وروسته داسې ولیکل: مونږ تاسو ته د اسلام دعوت درکوؤ. چې اسلام قبول کړئ، که چرې تاسو انکار وکړو نو بیا تاسو د ذلت سره جزیه ادا کړئ (که دا هم نه وي) نو بیا جنګ ته تیار شئ. بیشکه ما سره داسې خلک دي چې د خدای په لاره کې مرګ داسې خوښوي لکه څنګه چې تاسو د فارس والا شراب خوښوئ. او څوک چې اسلام قبول کړي نو هغوی لره دې سلامتي وي.

**د اسلام دعوت د فقهاؤ په نظر کې:** د جهاد نه مخکې چې کوم دعوت واجب وي او په کوم باندې چې جهاد موقوف وي، نو د هغه دعوت متعلق فقهاء کرام رحمهم الله جدا جدا تفصیل وړاندې کړی دی.

چې د رحمة الامة فی اختلاف الائمة په نوم يو معتمد کتاب داسې بيان کړی دی. (د عربي عبارتونو د ترجمې کتنه وکړئ)

**دامام مالک رحمه الله قول**: د فقهاء کرامو رحمهم الله په نزد د دعوت مسئلې په تعبيراتو کې اختلاف دی. هغه داسې چې امام مالک رحمه الله فرمايي چې د کومو کفارو کورونو زمونږ سره نژدې وي نو هغوی ته د اسلام د دعوت ورکولو ضرورت نشته دی، ځکه د ګاونډي توپ په وجه هغوی دعوت الی الاسلام پيژني (مني يې نه) نو ځکه هغوی سره جنګ کېږي. او د هغوی د غفلت انتظار نه کېږي. او د کومو کورونه چې زمونږ نه لرې وي نو هغوی ته دعوت ورکول ضروري دی چې شک او شبهه لرې شي. (رحمة الامة صفحه ۲۹۳)

**د امام شافعي رحمه الله قول**: امام شافعي رحمه الله وفرمايل چې نن سبا زه هيڅ يو داسې مشرک نه وينم چې هغې ته په يو نه يو طريقه د اسلام دعوت نه وي رسيدلی، خو امکان لري چې د مملکت ترکيه شاته څه مشرک قومونه وي يا د خزر (چيچنيا) شاته داسې خلک وي چې هغوی ته دعوت نه وي رسيدلی، نو که د هغه خلکو سره جنګ کول کېږي نو د اسلام د دعوت نه مخکې جنګ کول پکار نه دی. (صفحه ۲۹۳)

**دامام ابوحنيفه رحمه الله قول**: امام ابوحنيفه رحمه الله وفرمايل چې که چرې هغه کفارو ته د اسلام دعوت نه وي رسيدلی، نو اميرالحرب لپاره د هغوی سره جنګ کول مناسب نه دی. او که چرې هغوی ته د اسلام دعوت رسيدلی وي نو بيا د امير الحرب لپاره مستحب ده چې د جنګ نه مخکې هغوی ته د اسلام دعوت ورکړي ګينې د جزيې د ادا کولو دي ورته ؤوايې، خو که د واجب دعوت نه مخکې مخکې چا يو کافر مړ کړو نو ديت او قصاص به نه وي. (صفحه ۲۹۳) په محيط کې ليکلی شوي دي چې دعوت رسيدل په دوه قِسمه باندې دي. حقيقةً يا حکماً او حکماً داسې وي چې په مشرق او مغرب کې عام شي چې دا مسلمانان د څه شي اړخ ته بلنه کوي او په کوم شي باندې جنګ کوي. دا ظاهري شهرت د حقيقت قائم مقام ګڼل کيدی شي. (فتح القدير جلد ۵ ص ۱۹۶)

**دمولانا رشيداحمد ګنګوهی رحمه الله قول**: که چرې کفارو ته دعوت نه وي رسيدلی نو د جنګ نه مخکې دعوت واجب دی. او که دعوت په څه ذريعي سره ور رسيدلی وي نو بيا دعوت د مسنون او مستحب په درجه کې دی، خو که چرې کفارو په مونږ باندې حمله کړي وي نو بيا به دعوت ساقط کېږي. (الکوکب الدری شرح ترمذی صفحه ۴۱۲)

**دصاحب ترمذی قول**: امام ترمذی رحمه الله د حضرت سلمان فارسی رضي الله عنه د دعوت الی اسلام والا روايت نقل کوي او وايي چې د ځينو صحابؤ رضي الله عنهم دا رائی وه چې د دعوت نه مخکې دي د کفارو سره جنګ ونه کړی شي. د جنګ نه مخکې دي دعوت ورکړی شي، ځکه دي سره به دشمن په رعب

کې شي، خو د ځېنو علماؤ خیال دی چې نن سبا کفارو ته د دعوت هیڅ ضرورت نشته دی. امام احمدبن حنبل وايي چې زه نه پوهېږم چې نن سبا چاته دعوت ضروري وي. (ترمذی کتاب الجهاد)

**دصاحب درمختار قول** : د فقه په نورو کتابونو او په خاصه توګه درمختار کې د دعوت مسئله داسې لکیلې ده. چې که چرې مونږ کفار محاصره کړه نو اول به هغوی مونږ اسلام ته رابلو که چرې هغوی اسلام قبول کړي نو ډیره ښه دا ګینې بیا به ترینه د جزې مطالبه کوؤ. که چرې هغوی جزیه قبوله کړه نو بیا به هغوی او مونږ د اسلام د قانون او د انصاف د قانون مخې ته یو شان یو او کومو کفارو ته چې د اسلام دعوت نه وي رسیدلی، نو هغوی سره د دعوت نه مخکې جنګ جائز نه دی، خو کومو کفارو ته چې دعوت رسیدلی وي نو بیا هغوی ته دعوت ورکول مستحب دی، خو که په دې دعوت کې د جنګې حکم د عمل د لاندې مونږ ته د نقصان د رسیدلو خطر وي نو بیا به دعوت نه ورکولی کېږي. که چرې کفارو ته جزې د ادا کولو نه هم انکار وکړو نو بیا دالله تعالی نوم په اخستلو سره د هغوی سره جنګ کوؤ. منجنیق (راکټ لانچر، درنه توپ خانه) باندې به هغوی باندې انداغ کېږي، او رباندې هغوی سوځؤو یا به یې په اوبو کې ډوبوؤ او د ضرورت په مناسبت سره د هغوی باغونه او پټې هم تباه کوؤ.

**دصاحبِ هدایه رحمه الله قول** : "ولا یجوز ان یقاتل من لم تبلغه الدعوة الی اسلام الا ان یدعوه لقوله علیه السلام فی وصیة امراءِ الاجناد: فادعهم الی شهادة ان لا اله الا الله ویستجب ان یدعوا من بلغته الدعوة مبالغة فی الانذار ولا یجب ذالك لانه صح ان النبي صلی الله علیه وسلم اغار علی بنی المصلطق و هم و عهد الی اسامة رضی الله عنه ان یغیر علی "ابنیٰ" صباحاثم یحرق والغارة لا یکون بدعوة". (هدایه ج۱ ص ۵۶۰)

**ترجمه**: صاحب هدایه فرمایي چې کوم کس ته د اسلام دعوت نه وي رسیدلی. د دعوت نه مخکې د هغوی جنګ کول جائز نه دي، ځکه نبي کریم ﷺ به خپل پوځې قومندانانو ته دا وصیت کولو چې "دي کفارو ته اول د کلمهٔ شهادت دعوت ورکوئ" او که چرې هغوی ته دعوت رسیدلی وي نو بیا دعوت ورکول مستحب دی. چې په دعوت کې ښه مبالغه وشي خو دا دعوت به واجب نه وي، ځکه د نبي کریم ﷺ صحیح حدیث دی چې نبي کریم ﷺ په مصطلق باندې داسې ناڅاپه یرغل کړی ؤو چې هغه خلک بیخي ناخبره ؤو. او دغه شان نبي کریم ﷺ حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه ته حکم کړی ؤ چې سحر وختي د "اُبنٰی" علاقې په خلکو باندې چاپه ماره کاروائی وکړه او بیا په علاقه کې اور ولګوه. (ښکاره خبره ده) چې یرغل کولو سره د قتل و قتال د کاروائي سره دعوت نشي کیدلی.

**فائده**: د صاحب هدایه پاس ذکر شوي عبارتونو پشان قدری کې هم او په کنزالدقائق کې هم داسې

مسئله بیان شوي ده او په شرح و قایه کښ هم داسې ذکر شوي ده. دغه شان د فقه په نورو وړو وړو کتابونو کښ هم دا مسئله موجود ده. لهذا مجاهدینو باندې لازمه ده چې هغوی د جهاد نه مخکښ دا دعوت ورکوي، خو که چرې مجاهدین دفاعي جنګ کوي نو بیا به دا دعوت ساقطیږي او چرته چې دعوت رسیدلی وي هلته هم دا دعوت فقط مستحب دی. که حالات موافق وي نو په دې مستحب باندې دې عمل وکړی شي ګنې مستحب پرېښودل هیڅ ګناه نه ده.

**ددعوت فائدې**: فقهاء کرامو رحمه الله د دعوت یو د یو څو فایدو ذکر هم کړی دی. اولنۍ فائده دا ده که چرې کفارو خبره ومنله او اسلام یې قبول کړو نو مقصد به حاصل شي او مسلمانان به د جنګ د مشکلاتو نه بچ شي. دویمه فائده دا ده چې دعوت ورکولو سره به کفارو ته معلومه شي چې مسلمانان فقط د وطن نیولو یا د مالونو جمع کولو او د ښځو او ماشومانو د قید کولو لپاره جنګ نه کوي بلکې دا خلک د اسلام او د دې د نظام لپاره جنګ کوي. دریمه فائده دا ده چې کله کفار د اسلام دعوت ونه مني نو بیا به حقیقت کښ د هغوی مقابله د الله تعالی سره شروع شي او کوم خلک چې د الله په مقابله کښ راځي، خامخا به ماتې خوري. او څلورمه فائده دا ده چې د اسلام یو حکم او د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طریقه به ژوندۍ شي. د مشکوٰة شریف د کتاب الجهاد په اولنو بحثونو کښ دا د یو څو صفحو بحث ما د خپل تالیف د "دعوتِ جهاد" نه نقل کړو او دلته مې لیکلي دي چې د جهاد په مقصد مفهوم باندې ښه رڼا راشي. اوس د حدیثونو په رڼا کښ د جهاد د موضوع متعلق حدیثونه ولولئ او مخکښ لاړ شئ.

**نوټ**: الحمدلله د توضیحات جلد شپږم د مسودې د تحریر آغاز په ۲۹ ربیع الاول ۱۴۲۶ھ. مطابق ۷ جون ۲۰۰۵ء کښ د افریقې زامبیا د سفر په دوران کښ د لوسا په ښار کښ د مفتي محمد ایوب بوبات صاحب په کور کښ د قیام په موقع باندې وشو. (فضل محمد)

# الفصل الاول

## جهاد افضل ترین عمل دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ آمَنَ بِاللهِ | | | | |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم کس چې په الله او د هغې د | | | | |
| وَرَسُولِهِ | وَأَقَامَ | الصَّلَاةَ | وَصَامَ | رَمَضَانَ كَانَ |
| رسول په ذریعه دنیا کښ د لیږلی (یعني شریع) باندې ایمان راوړو او لمونځ یې قائم کړو او د رمضان روژې یې ونیولې | | | | |

| |
|---|
| حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ |
| نو الله تعالی باندې نو د خپلې مهربانۍ او کرم او رحم په سبب) واجب دي چې هغه کس جنت ته داخل کړي اګر که د |
| جَاهَدَ فِي سبيل اللهِ أَوْ جَلَسَ فِي أَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ فِيهَا. |
| الله په لاره کې جهاد وکړي او اګر که په خپل کور کې چرته چې پيدا شوی دی ناست وي. دي او ريدلو سره صحابو رضي الله عنهم |
| قَالُوا: أَفَلا نُبَشِّرُ النَّاسَ؟ قَالَ: إِنَّ فِي الْجَنَّةِ |
| عرض وکړو چې "آيا مونږ خلکو ته خبر وانورؤو؟" نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په جنت کې |
| مِائَةَ دَرَجَةٍ أَعَدَّهَا اللهُ لِلْمُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| سل درجې دي چې الله د دغه خلکو لپاره تيار کړي دي کوم چې د خدای په لاره کې جهاد کوي او د |
| مَا بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ |
| هغوی د دوه درجو مينځنۍ فاصله دومره دومره ده لکه څومره چې د زمکې او د اسمان په مينځ کې ده. |
| فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللهَ فَاسْأَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ فَإِنَّهُ |
| لهذا کله چې تاسو د الله (جهاد باندې لويه درجه) غواړئ نو د فردوس غواړئ ځکه هغه (فردوس) |
| أَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَى الْجَنَّةِ |
| اوسط درجه ده (يعنې د جنت په ټولو درجو کې د ټولو نه بهتره او افضله ده) او د ټولو نه اوچت جنت دی او د |
| وَفَوْقَهُ عَرْشُ الرَّحْمَنِ وَمِنْهُ تُفَجَّرُ |
| هغې پاسه د خدای عرش دی. (ګويا کې هغه د عرض الهي په سيوري کې دی. او د هلته نه د جنت نهرونه |
| أنهارُ الجنَّةِ. رَوَاهُ البُخَارِيّ[1] |
| بهيږي. (کوم څيزونه چه د جنت د نهرونو اصل دی لکه او به) شراب او شهد. هغه د جنت الفردوس نه جاري کيږي. |

**توضيح: وصام رمضان:** دي حديث کې د صلوة ذکر شوی دی. زکوة او د حج وغيره ذکر نه دی شوی. دا د دې دواړو عبادتونو د اهميت اړخ ته اشاره ده. (مرقات: ۳۵۰/۷)

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۷۸ أخرجه البخاري في الصحيحه ۱۱/۶ رقم الحديث ۲۷۹۰ وأحمد في المسند ۳۳۵/۲

**اوجلس في بيته:** كور كې د كيناستلو او جهاد ته د نه تللو اختيار هغه وخت كې وي كله چې جهاد د فرض كفايه په درجه كې وي. كه جهاد د فرض په درجه كې شي يا د امير المؤمنين له اړخ نه د نفير عام يعنې د وتلو عمومي اعلان وشي نو هغه وخت به جهاد ته وتل پكار وي. بهرحال جنت ته د دخول نه دلته دخول اوّلي مراد دى. (مرقات ۳۵۱/۷)

**قالوا:** صحابؤ كې دا پوښتنه حضرت معاذ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ كړې وه. هغې چې واوريدل چې د جهاد نه بغير هم جنت ته تلل ممكن دي نو هغې د دې خوشخبرۍ د عام كولو خواست وكړو، نو نبي كريم صَلَّى اللّٰہُ عَلَيْہِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې خلك پرېږده چې د جهاد په عمل كې مصروف وي ځكه د جنت عاليشان درجې په جهاد باندې حاصليږي. (مرقات : ۳۵۱/۷)

په حديث د ترمذي كې داسې الفاظ دي: **"قال عليه السلام ذرالناس يعملونه فان فى الجنة مأة درجه" الخ.**

**اوسط:** دا لفظ د افضل او سع او د ډير ښه لپاره استعمال شوى كړى شوى دى.

**عرش الرحمن:** د جنت فردوش چت د عرش فرش دى. (مرقات ۳۵۱/۷)

## ايمان نه وروسته جهاد افضل عمل دى

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللهِ كَمَثَلِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ فرمايي "د الله تعالى په لاره كې جهاد كونكى داسې دى لكه د روژې |
| الصَّائِمِ الْقَائِمِ الْقَانِتِ بِآيَاتِ اللهِ لَا يَفْتُرُ مِنْ صِيَامٍ وَلَا صَلَاةٍ |
| نيونكي لمونځ او عبادت كونكي چې په روژه نيولو او لمونځ كولو (يعنې عبادتونو) كله هم نه ستړى كيږي. |
| حَتَّى يَرْجِعَ الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| تر دې چې د الله په لاره كې جهاد كونكى بيرته كور ته راشي". |

**توضيح: مثل المجاهد:** نبي كريم صَلَّى اللّٰہُ عَلَيْہِ وَسَلَّمَ دا حديث د يو صحابي په جواب كې فرمايلى دى. هغه د مجاهد في سبيل الله د درجاتو باره كې معلومولو خواست كړى ؤو. يو حديث كې راغلي دي چې يوې ښځې هم خواست كړى ؤو چې زما خاوند جهاد ته تلى دى. او زه داسې عمل وكړم چې د هغې د درجو سره برابره شم، نو نبي كريم صَلَّى اللّٰہُ عَلَيْہِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا امكان نه لري، خو يو كس داسې كولى

(۱) رقم الحديث ۳۷۸۸ اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶ رقم الحديث ۲۷۸۷ ومسلم في ۱۴۹۸ رقم الحديث (۱۱-۱۸۷۸)

شي چې ټوله لمونځونه وکړي او ټوله ورځ روژه ونیسي او د هغې لږ ساعت هم د عبادت نه بغیر تیر نشي. هغه د مجاهد مرتبه موندلی شي، ځکه د مجاهد ټول ساعت په عبادت کې شمارل کېږي او داسې هیڅ عمل نشي کیدی. لهذا د مجاهد هیڅ څوک نه شي موندلی. دا تعلیق بالمحال دی. د دې حدیث نه معلومه شوه چې جهاد د ټول عملونو نه افضل دی، لکه د مشکوة په حدیث کې دي چې یو صحابي د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل: ﴿**اى العمل افضل؟ قال ایمان بالله ورسوله قیل ثم ماذا؟ قال الجهاد فی سبیل الله قیل ثم ماذا؟ قال حج مبرور**﴾ (کتاب الحج ص ۲۲۳)

بخاري شریف کې یو حدیث دی.

"**جاء رجل الی النبي صلی الله علیه وسلم فقال دلنی علی عمل یعدل الجهاد قال لا اجد**"

ابن همام رحمه الله په فتح القدیر کې دي باندي اوږد کلام کړی دی. چې آیا جهاد افضل دی یا لمونځ افضل دی. د دواړو په افضلیت باندې حدیثونه موجود دي. ځینو علماؤ جهاد د ایمان نه وروسه غوره کړي دی، خو اکثرو علماؤ لمونځ د جهاد نه افضل ګڼلی دی. علامه ابن همام داسې تطبیق کړی دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مختلف پوښتنه کونکو په جواب کې د هغوی د احوالو مطابق جواب ورکړی دی. چا سره چې جهاد مناسب ؤو، هغې له یې جهاد افضل وګڼلو، د نورو لپاره یې لمونځ وګڼلو. ځینې علماؤ داسې بهتر تطبیق کړی دی چې کله جهاد فرض عین وي نو دا د ټولو عملونو مطلقاً افضل دی، خو کله چې جهاد فرض کفایي وي نو لمونځ مطقاً افضل دی.

د علامه ابن همام په عبارت کې یو نااشنا حدیث هم ذکر دی. فرمایي: **واما قوله علیه السلام "الجهاد ماض الی یوم القیامة" فدلیل علی وجوبه ونه لا ینسخ. (مرقات ص ۳۲۹، ج ۷)**

**لایفتر: ای لا یسئام ولا یمل من العبادة:** نه په عبادت سړی شي، نه تنګ شي. دا صیغه د باب نصر نه ده.

## مجاهد په هر حال کې کامیاب دی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | انْتَدَبَ اللهُ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې بنی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې (الله تعالی فرمایې چې) | | | | | | | | | |
| لِمَنْ | خَرَجَ | فِي | سَبِيلِهِ | لَا | يُخْرِجُهُ | | | | |
| کوم کس چې د الله په لاره کې ؤوتلو الله تعالی د هغې ضامن شو، د هغې (د جهاد لباره) ما باندې د | | | | | | | | | |
| إِلَّا | إِيمَانٌ | بِي | وَتَصْدِيقٌ | بِرُسُلِي | أَنْ | أُرْجِعَهُ | | | |
| هغې ایمان او د رسولانو د تصدیق نه بغیر بل چا نه دی راویستلی، نو زه هغې ته (یا خو به بغیر د غنیمت نه | | | | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِمَا | نَالَ | مِنْ | أَجْرٍ | وَغَنِيمَةٍ |

صرف)د آخرت د اجر و ثواب سره یا د مالِ غنیمت سره بیرته راولم او یا (که شهید شو نو) زه به هغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَوْ | أُدْخِلَهُ | الْجَنَّةَ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |

(بغیر د حساب و کتاب نه) د ټولو نه اول د جنت ته تلونکو سره جنت کې داخل کړم

**توضیح: انتدب:** د دې لفظ آسانه ترجمه تکفل او تضمن دی. چې د کفالت او د ضمانت په معنی کې ده.

**من اجر او غنیمة:** یعني یا خو به صرف ثواب وګټي مال غنیمت به نه وي یا به صرف غنمیت راوړي. د دې طرز بیان نه داسې معلومیږي چې که چرې غنیمت ورته حاصل شو نو بیا به ورته اجر نه ورکول کیږي، حال دا چې معامله داسې نه ده. د دې جواب دا دی چې دلته د "او" لفظ د مانعة الخلو په توګه دی چې د دوه شیانو نه به مجاهد خالي نه راځي یا به ثواب وي یا به غنیمت وي، خو که دواړه شیان جمع کړی شي نو هیڅ باک نشته. ملا علی قاري فرمایي: د "او" لفظ د تنویع لپاره دی یعنې دا قِسم به هم ورته ورکړی کیږي. یوه نسخه کې "او" نه بلکې واؤ دی. بیا خو هیڅ اشکال نشته.

**او ادخله الجنة:** دې عبارت کې هم د "او" لفظ دی. دلته "او" د مانعة الجمع لپاره دی چې مجاهد في سبیل الله کله الله بیرته راولي، نو هغه ثواب او غنیمت وګټي او که بیرته ژوندی رانغلو بلکې شهادت یې ورکړو نو بیا به هغه جنت ته داخل کړي. دلته غنیمت او شهادت نشي یو ځای کیدی، بېل دي. (مرقات : ۳۵۳/۷)

## نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر جنګ کې د شریک کیدو او شهید کیدو ارمان کړی دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: وَالَّذِي |

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل قسم دی په ذات چې د چا په

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نَفْسِي | بِيَدِهِ | لَوْ | لَا | أَنَّ | رِجَالًا | مِنَ الْمُسْلِمِينَ |

قبضه کې زما ژوند دی که چرې ما سره دا وېره او لحاظ نه وی چې ډیر (هغه) مسلمانان (چې بې وسه او کمزوري دي) د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تَطِيبُ | أَنْفُسُهُمْ | أَنْ | يَتَخَلَّفُوا | عَنِّي | وَلَا أَجِدُ |

خپل ځان باره کې به په دې خوشحاله نشي چې زما وروستو او جدا شي او ما سره هیڅ داسې سورلی نه وي

(۱) رقم الحديث ۳۷۸۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۲/۱ رقم الحديث ۳۶ ومسلم في ۱۴۹۵/۳ رقم الحديث (۱۰۳-۱۸۷۶)

| |
|---|
| مَا أَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِ مَا تَخَلَّفْتُ عَنْ سَرِيَّةٍ تَغْزُو فِي سَبِيلِ اللهِ وَالَّذِي |
| چې په هغې باندې هغوى سور كړمه نو زه د الله په لاره كې د هيچا نه وروسته نه وى پاتې شوى. قسم په هغه ذات |
| نَفْسِي بِيَدِهِ لَوَدِدْتُ أَنْ أُقْتَلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ أُحْيِي |
| چې د چا به لاس كې زما ژوند دى! زما ارمان همدغه دى چې زه خو د الله په لاره كې شهيد كړى شم، بيا ژوندى شم |
| ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيِي ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيِي ثُمَّ أُقتل (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او بيا شهيد شم بيا ژوندى شم او بيا شهيد شم (يعني بيا بيا ژوندى كړى شم او بيا بيا ؤوژلى شم چې هر ځل نوى ثواب وګټم) |

**توضيح : والذي نفسي بيده:** نبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پخپله په اويشت (۲۷) جنګونو كې حصه اخستې ده بعضې كې جنګ نه دې شوې بعضو كې جنګ شوې دې. رسول صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۵۶ چهاپه مار ټولى جهاد ته ليږلې دى دا ټول ۸۳ جنګونه جوړيږى لكه چې په لس كاله مدنى دور كې او سطًا په يو كال كې اته جنګونه زيات شوې دى په دې پوره موده كې د طرفين يو زر اتلس كسان وژلې شوې دى ۲۵۹ صحابه كرام شهيدان شوې دى ۷۵۹ كافران هلاک شوې دې. دې نه پس جزيره عرب د كفر د پنجې نه خلاصه شوې ده. د رسول صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شهادت جذبه دومره اوچته وه چه حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر جنګ ته د تللو په وخت د شهيد كيدلو تمنا كړې ده خو حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په معركې كې ځكه نه دې شريک شوې چه روستو په مدينه منوره كې څه نادار خلق وو چه دفقر اوفاقې د وجې نه او د وسائلو نه كيدو د وجې نه جهاد ته نه شو تلې. بل طرف ته نبى پاک صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دومره هم وسائل نه وو چه دغه ټولو ته ئې سورلئ وركړې وې كه چرې رسول صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوى په مدينه منوره كې پريخودلې وې او پخپله جهاد تلې وې نو دې غريبانانو ته به دوه غمونه وو يو جهاد له د نه تلو غم او دويم د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جدايئ غم. په دې وجه حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمائيل چه زه دوى سره شاته پاتې كيږى. حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شهادت نه پس د بيا ژوندى كيدو تمناځكه او فرمائيله چه په دې سره نور زيات د شهادت موقعې ملاويږى او شهادت په جهاد كولو باندې موقوف دې نو په حقيقت كې دلته دجهاد كولو تمناده چونكه جهاد د اشاعت اسلام او تبليغ دين ذريعه ده او د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بعثت مقصد ددين غلبه او د اسلام اشاعت وو. په دې وجه حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باربار د شهادت او جهاد خواهش كولو دې دپاره چه دا دنيا د فساد نه خالى شى او دين غالب شى. (مرقات ۳۵۵/۷)

---

(۱) رقم الحديث ۳۷۹۰ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۶/۶ رقم الحديث ۲۷۹۷ ومسلم في ۱۴۹۷ رقم الحديث (۱۰۶-۱۸۷۶)

علامه ابن همام رحمه الله په فتح القدير کې د جهاد تعريف داسې کوی چې : **اَلجَهاد اخلاء العالم عن الفساد وهو دعوتهم الى الدين وقتالهم ان لّم يقبلوا (مرقات ۳۴۸/۷)**
ترجمه : يعني دنيا دفساد نه خالي کولو او کافرانو ته د دين اسلام دعوت ورکول او د نه قبلولو په صورت کې هغوی سره دجنګيدلو نوم جهاد دې.

## په اسلامي سرحداتو باندې د پهرې کولو فضائل

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| او حضرت ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل " د الله په لاره کې د يوې |
| خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| ورځې څوکيداري د دنيا او د دنيا د شيانو نه بهتر دي". |

**توضيح**: **رباط يوم**: دا د ارتباط نه دی چې د تړلو په معنی کې دی، ځکه اسلامي سرحداتو باندې پهره ورکونکې هم خپل آس او خپل ځان په سرحد باندې وتړي او پهره کوي. د قرآن آيت ﴿**وعدوا لهم مااستطعتم ون قوة ومن رباط الخيل ترهبونه به عدوا الله وعدوّکم**﴾(سورت انفال : ۶۰) او د ايت ﴿**يا ايها الذين امنوا اصبروو صابروورابطوا**﴾ (ال عمران ۲۰۰)نه رباط ماخوذ دی. حديوثنو کې د رباط فضيلتونه ذکر دي.
اسلامي سرحدونو باندې د پهره کولو د د کفارو په سرحداتو باندې نظر ساتنې ته د رباط نوم ورکړی شوی دی. دلته حديث کې يو لفظ د "حراسة" هم راغلی دی چې د چوکيدارۍ په معنی کې دی. حراسة اور رباط کې دومره فرق دی چې حراسة هغه چوکيدارۍ ته وايي چې په ملک کې دننه وي او رباط هغه پهرې ته وايي چې د کفارو په سرحدونو باندې نظر ساتنه او د اسلامي سرحداتو حفاظت لپاره وي. لهذا د دوه مسلمان ملکونو په مينځ کې چې په سرحداتو باندې کومه پهره ورکول کيږي. د رباط فضيلت هغې ته حاصل نه دی. دغه شان په تبليغي جماعتونو باندې رباط چوکيداري کول جائز نه دي. د دې لپاره د حراسته د حديثونو فضيلت حاصليدی شي. په لغوي توګه د رباط اطلاق کله کله په نورو عملونو باندې هم شوی دی، خو هغه اصطلاحي رباط نهٔ دی. د رباط پوره تفصيل زما په کتاب "دعوت جهاد" کې موجود دی. هلته يې کتل پکار دي.

**من الدنيا**: د دې جملې دوه مفهومه دي: اول مفهوم دا دی چې د دنيا د ټولو نعمتونو او د هغې د ټول سازو سامان نه د په رباط کې يوه ورځ پهره کول بهتر دي، ځکه د آخر ثواب باقې دی. د دنيا

---

[1] رقم الحديث ۳۷۹۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۸۵/۶ رقم الحديث ۲۸۹۲

نعمتونه فاني دي. دويم مفهوم دا دی چې د که چرې د دنيا ټول نعمتونه د الله په لاره کې خرچ کړی شي او لوي ثواب ملاؤ شي، په رباط کې د وې ورځې ثواب د هغې ن بهتر او لوي دی. دغه شان جمله چې چرته هم استعمال شوې وي. او د هغې مفهوم همدغه بيان کېدلی شي، لکه څنګه چې په راتلونکې حديث کې دا جمله استعمال شوې ده. (مرقات: ۳۵۴/۷)

## د سبيل الله مطلب څه دی؟

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللهِ أَوْ رَوْحَةٌ |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل "د يو سحر لپاره يا د يوې مانبام |
| خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| لپاره د خدای په لاره کې (د شرکت جهاد په غرض) تلل د دنيا د شيانو نه بهتر دي". |

**توضيح: لغدو:** د سحر وخت کې سفر کولو ته غدوة وايي او د مانبام وخت کې سفر کولو ته "روحة" وايي. د دې دوه وختونو په خصوصي توګه ځکه ذکر شوی دی چې په عامه توګه به مخکنۍ زمانه کې په دې دوه وختونو کې به جنګ کېدلو، ځکه دې وختونو کې به د ګرمۍ شدت نه وُو او د غرمې نه وروسته د نصرت الهي هوا ګانې چلېږي، ځکه د جهادي معرکو لپاره دا دوه وختونه انتخاب کړی شوي دي. تبليغي حضرات دا حديث د خپلو ګشتونو لپاره بيانوي. هغوی له احتياط کول پکار دي. د ګشت عمل په ابتداء کې مولانا الياس رحمة الله عليه ته معلوم نه وُو. وروسته معلوم شو. صحابه کرامو رضي الله عنهم ته د ګشت څه علم؟ (مرقات: ۳۵۴/۷)

**في سبيل الله:** د الله د لارې نه د جهاد لاره او په جهاد کې شرکت کول مراد دی.

علامه ابن حجر په فتح الباري کې د سبيل الله په شرح کې ليکي. **"اى الجهاد"**
قرآن عظيم کې دا لفظ بار بار راغلی دی. قرآن د لوستلو نه معلومېږي چې د في سبيل الله لفظ په درې قسمه استعمال کړی شوی دی. د دې اولنی اطلاق او استعمال د جهاد لپاره شوی دی او د جهاد في سبيل الله سره دا لفظ خاص دی، لکه **"يقاتلون في سببيل الله — يجاهدون في سبيل الله"** او دغه قسمه نور حديثونه دي. دا د جهاد سره خاص دي. او په کې صراحةً د **"سبيل الله"** لفظ ۳۶ ديرش ځايونو کې ذکر دی.
د دې لفظ دويم اطلاق او استعمال په عموماً مطلق د دين لپاره شوی دی چې د دين د ټولو شعبو لپاره عام دی. د هيڅ شعبې سره خاص نه دی، لکه د **"يصدون عن سبيل الله"** ايت دی. او د دې نه بغير نور آيتونه دي. په صريحه توګه قرآن عظيم کې دا لفظ په ۲۵ مقاماتو کې ذکر دی. د دې دريم اطلاق په مشترکه توګه

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۹۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۳۲/۱۱ رقم الحديث ۶۴۱۵ ومسلم في ۱۵۰۰/۳ رقم الحديث (۱۱۳-۱۸۸۱)

شوی دی. کله په انفاق في سبيل الله کې استعمال شوی دی. کله جهاد کې استعمال شوی دی او کله مطلق د دین لپاره استعمال شوی لکه "**وانفقوا فی سبیل الله ولا تلقوا بایدیکم الی التهلکة**" والا آیت دی. صراحةً قرآن کې دا لفظ په اوۀ ځایونو کې استعمال شوی. علامه نوَوي رَحِمَهُ اللهُ په المجموع کې وضاحت سره لیکلي چې د سبیل الله اولنی مصداق جهاد في سبيل الله دی. ابن دقیق العید هم داغه شان لیکلي. او ابن حزم اندلسی په المحلی کې همدغه شان تحقیق کړی. امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللهُ د سبیل الله په مفهوم کې د یو حدیث په وجه حاجیان او د علمِ دین طلباء هم داخل منلي دي.

صاحب هدایه په کتاب الزکوة کې د في سبیل الله په تشریح کې لیکلي "**ای المنقطع الغزاة لانه المتناهم عن الاطلاق**" یعنې کله چې في سبیل الله مطلق استعمال شي نو د هغې اولنی مصداق مجاهدین دي. مشکوة شریف کې په کتاب الجهاد کې دا لفظ تقریبًا ۹۰ ځله راغلی چې د جهاد لپاره استعمال شوی لهذا هر مسلمان له پکار دي چې د لفظ في سبيل الله مفهوم ډېر تنګ نه کړی او نه یې ډېر فراخه کړی. سبیل الله اهل تبلیغ د خپل کار سره خاص کوي چې غلط دی. (مسلم ۱۴۰/۲)

## درباط في سبيل الله د فضائلو په باره کې یو څو حدیثونه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾وَعَن سلمانَ الفارسِيّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: رِبَاطُ يَوْمٍ | | | | | | |
| او حضرت سلمان فارسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د نبي کریم ﷺ نه دا اورېدلې دي چې جهاد کې یوه ورځ او یوه | | | | | | |
| وَلَيْلَةٍ | فِي | سَبِيلِ | اللهِ | خَيْرٌ | مِنْ | صِيَامِ شَهْرٍ وَقِيَامِهِ |
| شپه د چوکیدارۍ خدمت کول د یوې میاشتې د روژو او شوګېر نه بهتر دی او هغه چوکیدار د دې خدمت | | | | | | |
| وَإِنْ | مَاتَ | جَرَى | عَلَيْهِ | عَمَلُهُ | الَّذِي | |
| کولو دوران کې مړ شي نو هغه چې کوم عمل باندې مامورؤو د هغې ثواب به ورته د مرګ نه وروسته هم رسېږي | | | | | | |
| كَانَ | يَعْمَلُهُ | وَأُجْرِيَ | عَلَيْهِ | رِزْقُهُ | | |
| او د هغې لپاره به (د جنت د طعام او د شراب نه رزق ورکړی کېږي او هغه به د شیطان د مکرو فریب) او په | | | | | | |
| وَأَمِنَ | الْفَتَّانَ. | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ[1] | | | |
| قبر کې د عذاب د فرښتو د فتنې نه محفوظ وي". | | | | | | |

**توضیح: وامن الفتان**: دې حدیث کې یوې خبرې دا کېد بیان کړی شوی دی چې یوه ورځ او یوې

---

[1] رقم الحدیث ۳۷۹۳ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۲۰/۳ رقم الحدیث (۱۶۳-۱۹۱۳) والنسائي في السنن ۳۹/۶ رقم الحدیث ۳۱۶۷

شپې پهره د الله د جهاد په لاره کې د يوې مياشتې د ټولې ورځ روژې او د ټولې شپې د تهجد نه غوره دی. دويمه دا خبره بيان کړی شوې ده چې د مرابط نيک عمل چې په دنيا کې هغې کولو، د مرګ نه وروسته به د هغې ثواب نه قطع کېږي بلکې جاري به وې. دغه شان د مرګ نه ورسته په قبر کې به ورته د جنت نه د نعمتونو په صورت کې رزق ورکړی کېږي. دریمه دا خبره بيان شوې ده چې مرابط في سبيل الله به د عذاب قبر د فتنې نه محفوظ وي. د فتاّن په لفظ کې فا باندې فتحه او ضمه دواړه دي او تا باندې شد دی. د دې نه د عذاب قبر فتنه هم مراد اخستلی کېدی شي او د دجال فتنه هم مراد اخستل کېدی شي او د شيطان فتنه هم مراد اخستل کېدی شي. ځينو شارحينو دا لفظ د جمع صيغه ګڼلې ده. چې مفرد يې فاتن دی او دې نه يې د جهنم دروانچي مراد اخستې ده. بهرحال چې مرابط به د دومره لوي فتنونو نه محفوظ وي نو ورې فتنې به هيڅ نه وي. (مرقات: ۳۵۷،۳۵۸/۷)

## د جهاد د لارې ګرد

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي عَبْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا اغْبَرَّتْ قَدَمَا عَبْدٍ |
| او حضرت ابو عبس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "د کوم بنده پښې چې د الله په |
| فِي سَبِيلِ اللهِ فَتَمَسَّهُ النَّارُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| لاره (يعنې جهاد) کې کې په ګرد ککړي شې نو بيا هغې نه د جهنم او رنه شي لړېدلی". |

**توضيح: ما اغبرت:** د الله تعالى په لاره کې جهاد کې مجاهد د ټولو نه ډېره واسطه د خاورو او ګرد سره وي او همدغه شی د مجاهد د نجات ضامن دی. کله خو د سر نه تر پښو پورې مجاهد په ګرد کې لړل شوی وي. د دې نه د جهاد د لارې ټولو مشقتونو اړخ ته هم اشاره ده. چې په دومره مشقتونو باندې دومره ثواب حاصلېږي نو د ژوند د ورکولو، زخمي کېدلو يا بندي کېدلو به څومره ثواب وي. سبحان الله! تبليغي حضرات فضيلت د خپل ځان لپاره بيانوي. هغوی له پکار ده چې اول دا د جهاد لپاره بيان کړي، بيا دې خپل ځان په دې کې داخل کړي، هسې دې تحريف نه کوي. (مرقات: ۳۵۹/۷)

## جهاد کې د کافر دوژلو ثواب

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَجْتَمِعُ كَافِرٌ وَقَاتِلُهُ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل "کافر او د هغې وژونکی (مسلمان) کله |

(۱) رقم الحديث ۳۷۹۴ اخرجه البخاري في صحيحه ۲۹/۶ رقم الحديث ۲۸۱۱ والترمذي في السنن ۱۴۶/۴ رقم الحديث ۱۶۳۲

| |
|---|
| فِي النَّارِ أَبدا. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| هم په دوزخ کې یو ځای کېدی نشي". |

**توضیح**: لایجتمع: جهاد کول او د کافرانو سره جنګېدل او د هغې د وژلو ترغیب په دې حدیث کې ورکړې شوی دی، ځکه ثوک چې جهاد ته ځي نو د یو کافرد وژلو اجل هم راځي. که چا دا کافر مړ کړو نو کافر به دوزخ ته ځي او مجاهد به جنت ته ځي. داسې نه شي کېدی چې د دې قتل په وجه به مجاهد دوزخ ته ځي او دواړه به دوزخ کې یو ځای شي. قرآن عظیم کې ۷۹ صیغې داسې استعمال شوې دي چې د کافرانو سره جنګ کول په مختلف انداز کې بیان شوی دی. د قرآن حکم په کتلو سره صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د کافرانو د وژلو ثواب ګڼلی دی. ځینو په میدان کې یو یو لاکهـ کفار جهنم ته لیږلي دي. د قرآن د حکم سره سره د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم باندې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کافران وژلې دي. خپله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم په میدانِ اُحد کې یو کافر وژلی دی. چې نوم یې ابی بن خلف ؤو. لهذا دا فلسفه د قرآن و حدیث خلاف ده. چې ځېنې خلک وایي چې کافران مه وژنئ ځکه هغوی به دوزخ ته لاړ شي. دا ګویا کې وژونکې هغوی دوزخ ته ورسول. هغوی ته خواست کېږي چې دالله تعالی او د هغې نه رسول نه ډېر رحم کونکي مه جوړېږئ، خراب به شئ. بهرحال دې حدیث کې د کافر په میدانِ جنګ کې د وژونکي مسلمان لپاره د جنت بشارت دی. (۳۵۹،۳۶۰/۷)

## د مسلمانانو بهترین ژوند کوم یو دی؟

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِنْ خَيْرِ مَعَاشِ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "انساني ژوند کې بهترین ژوند |
| النَّاسِ لَهُمْ رَجُلٌ مُمْسِكٌ عِنَانَ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| د هغه کس دی چې د خدای په لاره کې یې د خپل آس واګې نیولې وي او چې د چاوېرونکي اواز یا د یو فریاد کونکي اواز واورې |
| يَطِيرُ عَلَى مَتْنِهِ كُلَّمَا سَمِعَ هَيْعَةً أَوْ فَزْعَةً طَارَ عَلَيْهِ |
| نو په توندئ سره خپل آس باندې سپور شي او د هغه وېرونکي یا فریاد کونکي اواز ارخ ته په منډه لاړ شي |

(۱) رقم الحدیث ۳۷۹۵ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۰۵/۳ رقم الحدیث (۱۳۰-۱۸۹۱) وأبوداؤد في السنن ۱۷/۳ رقم الحدیث ۲۴۹۵

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَبْتَغِي | الْقَتْلَ | وَالْمَوْتَ | مَظَانَّهُ | أَوْ | رَجُلٌ | فِي | غُنَيْمَةٍ |

او خپل مرګ هغه ځای کې لټوي چرته چې د مرګ ګمان وي يا بهترين ژوند د هغه کس دی چې د بزو سره

فِي رَأْسِ شَعَفَةٍ مِنْ هَذِهِ الشَّعَفِ أَوْ بَطْنِ وَادٍ مِنْ هَذِهِ الْأَوْدِيَةِ يُقِيمُ الصَّلَاةَ وَيُؤْتِي الزَّكَاةَ

د غرونو د يو غره په څوکه باندې يا درو (وادی) په يوه دره کې او سيږي او لمونځ کوي او زکوة ادا کوي او د خپل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَعْبُدُ | الله | حَتَّى | يَأْتِيَهُ | الْيَقِينُ | لَيْسَ | مِنَ | النَّاسِ |

رب په عبادت کې مشغول وي. تر دې چې مرګ ورله راشي او دا کس د انسانانو په لانجو کې شريک نه دی بلکې

إِلَّا فِي خير. رَوَاهُ مُسلم[1]

د خير په مينځ کې ژوند تېروي".

**توضيح**: معاش: دا د عيش نه دی چې د ژوند په معنی کې دی يعنې د انسان بهترين ژوند.

**لهم**: يعنې کوم ژوند چې د هغې د فايدې لپاره وې، د هغې لپاره وبال نه وي.

**رجل: ای معاش رجل**، مضاف مخذوف دی. **عنان**: واګې ته عنان وايي. **يطير**: الوتلو ته وايي. دلته مراد تيزه منډه کول دي ګويا کې الوځي. (مرقات ۳۶۰/۷) شاعر حماس وايي:

قوم اذا الشر ابدی ناجذيه لهم

طاروا زرافات ؤوحدانا

**هيعة**: وېره کې د فرياد کولو اواز ته **هيعة** وايي. او فزعة: د ډېرې وېرې په وخت کې د مرستې او نصرت لپاره رابللو ته فزعه وايي. او د تنويع لپاره دی. د دواړو معنی نژدې نژدې ده. وېرېدونکي او فرياد رَس سړي ته وايي. (مرقات ۳۶۰/۷)

**مظآنه**: دا لفظ د مرګ د لفظ سره هم بدليدلی شي، خو که د "**يبتغی**" لپاره ظرف کړی شي نو معنی به ډېره واضحه وي يعنې چرته چې د مرګ ګمان وي، په داسې ځايونو کې مرګ لټوي. **مظآنه**: د **مظنة** جمع ده او ضمير مفرد د دې لپاره راغلی دی چې د هر يو اړخ ته راجع دی. يا د اقرب اړخ ته ضمير ګرځي چې مرګ دی.

**او رجل**: اي او معاش رجل يعنې بل د دې کس ژوند بهترين ژوند دی.

**غنيمة**: دا د غنم تصغير دی. د تقليل لپاره دی. يعنې د بزو به تهوته کې دی. **شعفة**: شين او عين او فا

---

(۱) رقم الحديث ۳۷۹۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۰۳/۳ رقم الحديث (۱۲۵-۱۸۸۹) وابن ماجه في السنن ۱۳۱۶/۲

باندې فتحه ده. د غر څوکې ته وايي. (مرقات : ۳۶۱/۷)

**يؤتي الزكاة**: يعنې که مالدار او صاحب نصاب وي نو زكوة هم ادا كوي. **اليقين**: د دې نه مراد مرګ دی. (مرقات: ۳۶۱/۷)

**ليس من الناس**: يعنې نه خلکو ته خپله تکليف ورکوي او نه د خلکو په شر کې خپله اخته کوي. د دې حديث نه يو تعليم دا حاصلېږي چې د اسلام د دښمنانو مقابلې لپاره هر وخت مؤمن له تيار او سېدل پکار دي او د جهاد په لاره کې ژوند په تلې باندې ايښودل پکار دی. د حديث نه دويم تعليم دا ملاو شو چې د شر او فساد او فتن او محن وخت کې سړي له پکار دي چې د خپل دين د حفاظت لپاره د سهولت والا ژوند پرېږدي او د خلکو نه جدا شي او په نامعلومه ځای کې پاتې شي او د مشقت والا ژوند اختيار کړي. ځان ځانې او د خلکو نه جدا ژوند تېرول هغه وخت افضل دي کله چې د دين او د ايمان خطر وي. ګنې په عام حالاتو کې د خلکو سره او سېدل او د هغوی د اصلاح فکر کول او د هغې مشقتونه برداشت کول افضل دي. د ټولو انبياؤ او اولياؤ او د علماؤ هم دغه معمول را روان دی. (مرقات ۳۶۱/۷)

## يو مجاهد جهاد ته لېږل هم جهاد دی

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ | زَيْدِ | بْنِ | خَالِدٍ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ |
| او حضرت زيد ابن خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل څوک چې د الله په لاره کې جهاد کونکي | | | | | | | | | | |
| جَهَّزَ | غَازِيًا | فِي | سَبِيلِ | اللهِ | | | | | | |
| له سامان صحيح کړو، هغې ګويا کې جهاد وکړو (يعنې هغه د جهاد کونکو به حکم کې داخل دی او د جهاد په | | | | | | | | | | |
| فَقَدْ | غَزَا | وَمَنْ | خَلَفَ | | | | | | | |
| ثواب کې شريک دی) او کوم کس چې د غازي د اهل و عيال لپاره نائب او خليفه شو (يعنې کوم کس چې د يو | | | | | | | | | | |
| غَازِيًا | فِي | أَهْلِهِ | | | | | | | | |
| غازي او مجاهد ته د جهاد تللو نه وروسته د هغې د اهل و عيال خدمت کونکی او ساتونکی شو) نو هغې هم | | | | | | | | | | |
| فقد غزا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | | | | | | | |
| ګويا کې جهاد وکړو. | | | | | | | | | | |

**توضيح**: **جهز**: دا د **تجهيز** نه دی. څوک تيارول او جهاد ته د لېږلو په معنی کې دی. تيارول دا دي

[1] رقم الحديث ۳۷۹۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹/۶ رقم الحديث ۲۸۴۳ ومسلم في ۱۵۰۷/۳ رقم الحديث (۱۳۵-۱۸۹۵)

چې هغې ته یې د جهاد ترغیب ورکړو، بیا یې کرایه، وسله او د لارې خرچه ورکړه.

**خلف:** یعنې کله چې مجاهد جهاد ته لاړو او ورسته ورپسې د کوږ ساتنه یې چا وکړه او د هغې د اهل و عیال خیال یې وساتلو نو داسې کس ته به هم د جهاد ثواب ورکول کېږي. (مرقات: ۳۶۲/۷)

## په مجاهدینو د ښځو احترام لازم دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حُرْمَةُ نِسَاءِ الْمُجَاهِدِينَ | | | | | | | | |
| او حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل "مجاهدینو د ښځو عزت او حرمت | | | | | | | | |
| عَلَى | الْقَاعِدِينَ | كَحُرْمَةِ | أُمَّهَاتِهِمْ | | | | | |
| په ناستو (یعنې جهاد ته نه تلونکو) باندې داسې لازم دی لکه څنګه چې هغوی باندې د خپلو مېندو عزت او حرمت | | | | | | | | |
| وَمَا | مِنْ | رَجُلٍ | مِنَ | الْقَاعِدِينَ | يَخْلُفُ | رَجُلًا | مِنَ | الْمُجَاهِدِينَ |
| لازم دی. لهذا (یاد وساتئ) ناستو خلکو یعنې جهاد ته نه تلونکو والو نه چې کوم کس د یو مجاهد د | | | | | | | | |
| فِي | أَهْلِهِ | فَيَخُونُهُ | فِيهِمْ | | | | | |
| اهل و عیال لپاره نائب او خلیفه شو یعنې د هغوی ساتونکی شو او هغوی د دې (مجاهد) په اهل و عیال او مال | | | | | | | | |
| إِلَّا | وُقِفَ | لَهُ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | | | | |
| کې خیانت وکړو نو د قیامت په ورځ به هغه د دې مجاهد مخې ته ودرول کېږي. او مجاهد چې د دې د (نیک) | | | | | | | | |
| فَيَأْخُذُ | مِنْ | عَمَلِهِ | مَاشَاءَ | فَمَا | ظَنُّكُمْ؟. | رَوَاهُ مُسلم [1] | | |
| عملونو نه څومره خوښه وي ترېنه وا به یې خلي. په داسې حالت کې ستاسو څه خیال دی"؟ | | | | | | | | |

**توضیح:** **الاوقف له:** یعنې دا خیانت کونکی به د مجاهد مخې ته ودرولی شي او هغه چې د دې څومره نیکۍ خوښې وي ترېنه وا به یې خلي. **فما ظنکم:** یعنې ستاسو څه خیال دی چې د قیامت په ورځ د هغه ضرورت په موقع باندې به مجاهد د چا نیکۍ پرېږدي؟ نا، بلکې هر څه به ترېنه واخلي. د دې جملې مطلب دا دی چې د خائن به د قیامت په ورځ الله د هغې ټولې نیکۍ مجاهد ته رکوي. آیا د الله تعالی باره کې ستاسو څه شک شته دی؟ داسې خیال او شک مه کوئ.

---

(1) رقم الحدیث ۳۷۹۸ اخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۰۸/۳ رقم الحدیث (۱۳۹-۱۸۹۷) وابوداؤد في السنن ۱۷/۳ رقم الحدیث ۲۴۹۶

بهر حال دې حدیث کې د مجاهد ډېر لوي فضیلت بیان کړی شوی دی. چې د هغې دائره د هغې د خاندان او بچیانو پورې خورېږي چې د مجاهدینو د ښځو احترام په عام مسلمانانو باندې داسې لازم دی، لکه څنګه چې پرې د خپلو مېندو احترام لازم دی. د حدیث د دې تعلیم نه وروسته مسلمانان له سوچ کول پکار دي چې که چرې د هغوی د قول او فعل نه د یو مجاهد تحقیر او توهین وشو، نو جرم به یې څومره خطرې وي. چې د مجاهدینو د ښځو دا مقام دی نو خپله به د مجاهد څه مقام وي؟(مرقات : ۳۶۳/۷)

## په جهاد کې د مالي مرستې فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَن أَبِي مَسْعُود الْأَنْصَارِيّ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ بِنَاقَةٍ مَخْطُومَةٍ |
| او حضرت ابو مسعود انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (یو ورځ په دربار نبوت کې) یو کس د واګې والا اوښه حاضره |
| فَقَالَ: هَذِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| کړله او عرض یې وکړو چې دا د الله د لارې لپاره دی. یعنې د اوښه زه د الله د رضا لپاره جهاد ته ورانديې کوم. |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَكَ بِهَا |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "(زه ستا دا وړاندېز بنه په خوشحالئ قبلوم او تاته دا بشارت درکوم |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ سَبْعِمِائَة نَاقَة كلها مخطومة . رَوَاهُ مُسلم [1] |
| چې (د دې په بدل کې به د قیامت په ورځ تاته سل اوښې ملاوېږي او په ټولو کې به واګې وي) |

**توضیح**: مخطومة: د خطام نه دی چې ذ واګې په معنی کې دی. یعنې د واګې والا اوښه.(مرقات : ۳۶۳/۷)

سبع مأة: یعنې د دې اوښې په بدل کې بهالله تعالی تاته سل اوښې درکوي. دا حدیث د همغه حدیث پشان دی، کوم کې چې راغلي ؤو چې کوم کس کور کې ناست وي خو د جهاد میدان ته یې یو روپئ ولېږله نو الله هغې ته د اؤوه سوه (۷۰۰) روپو ثواب ورکړو.(مرقات : ۳۶۳/۷)

## د هر کور نه دې یو مجاهد جهاد ته لاړ شي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بَعْثًا إِلَى بَنِي لِحْيَانَ |
| او حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبیله هذیل یو ډلې بنو لحیان |

(۱) رقم الحدیث ۳۷۹۹ اخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۰۵/۳ رقم الحدیث (۱۳۲-۱۸۹۲) والنسائي في السنن ۴۹/۶ رقم الحدیث ۳۱۸۷

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | هُذَيْلٍ | فَقَالَ: | لِيَنبعثْ | مِنْ | كُلِّ رجلين |
| په مقابله کې د جهاد لپاره یو لښکر د روانولو اراده وکړه، نو حکم یې وکړو چې پکار ده چې هر دوه کسانو | | | | | |
| أحدُهما | والأجرُ | بَينهمَا. | رَوَاهُ | مُسلم [1] | |
| کې یو کس جهاد ته د تللو لپاره وځي او د جهاد ثواب به د دواړو برابر وي. | | | | | |

**توضیح: لینبعث**: دا جهاد ته د لېږلو د تشکیل یو صورت دی. یعنې د هر کور نه دې یو کس جهاد ته لاړ شي او بل چې د هغې د کور ساتنې لپاره پاتې شي او په ثواب کې به دواړه برابر وي. مجاهد ته خو به جهاد ته د تللو ثواب ملاوېږي خو د هغې د کور ساتونکي ته به په ساتنه کې د جهاد پوره ثواب حاصلېږي. (مرقات: ۷/۳۶۴)

## د دین د حفاظت لپاره به مجاهدین تر قیامته پورې جنګېږي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَنْ يَبْرَحَ هٰذَا الدِّينُ |
| او حضرت جابر ابن سمره رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "دا دین به همیشه قائم وي او |
| قَائِمًا يُقَاتِلُ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ حَتّٰى تَقُومَ السَّاعَةُ. رَوَاهُ مُسلم [2] |
| په مسلمانانو کې به یو نه یو جماعت د دې د حفاظت لپاره تر قیامته پورې جنګېږي". |

**توضیح: لن یبرح**: یعنې تر کومه چې په دې زمکه باندې یو داسې جماعت وي نو جهاد به کوي نو دا دین به قائم او دائم وي. د مجاهدینو دا جماعت به کله د دنیا په یو ګوټ کې وي نو کله به په بل ګوټ کې وي، خو زمکه به د دې نه خالي نه وي. د قیامت نزدې به دا جماعت ختم شي. دا حدیث نصب الرایة ج ۳ ص ۳۷۷ او په مجمع الزوائد ج۱ ص ۱۰۶ کې د دې الفاظو سره نقل کړی دی **"الجهاد ماض الی یوم القیامة"** (مرقات ج۷ ص ۳۴۹). معجم الاوسط ج ۵ ص ۳۹۰ باندې دا حدیث د دې الفاظو سره منقول دی **"والجهاد ماض الی یوم القیامة"** د طبراني په روایت کې یو ضعیف راوي دی. بهرحال د حدیث ترجمه دا ده یعنې تر قیامت پورې به جهاد جاري وي. علامه طیبي رحمه الله فرمایي چې د مجاهدینو دا جماعت په شام کې وي چې په بل حدیث کې د طائفة منصورة الفاظو سره یاد کړی شوی دی. ملاعلي قاري رحمه الله فرمایي چې دا جماعت نن سبا په روم کې د طائفه سره جهاد کوي. بیا فرمایي چې د تحقیق خبره دا ده چې د دې جماعت نه مراد د مجاهدینو هغه جماعت دی چې د هیڅ زمان او مکان سره خاص نه دی (یعنې د دنیا به مختلفو

---

(۱) رقم الحدیث ۳۸۰۰ أخرجه مسلم في صحیحه ۳/۵۰۷ رقم الحدیث (۱۳۷-۱۸۹۶) وأحمد في المسند ۳/۴۹

(۲) رقم الحدیث ۳۸۰۱ أخرجه مسلم في صحیحه ۳/۱۵۲۴ رقم الحدیث (۱۷۲-۱۹۲۲)

علاقو کې به وي) بهرحال قرآن کریم کې دالله تعالی د ﴿ولتكن منكم امة يدعون الى الخير﴾(ال عمران ۱۰۲) او په آیت ﴿كنتم خير امة اخرجت للناس﴾(ال عمران : ۱۱۰) کې همدغه جماعت اړخ ته اشاره کړې ده. د آیت ولتكن الخ د لاندې شاه عبدالقادر لیکي :معلومه شوه چې په مسلمانانو باندې فرض دي چې یوه ډله قائم په جهاد باندې او د دین په خودي ساتلو باندې تردې چې د دین خلاف څوک ونکړي او څوک چې په دې کار باندې قائم وي هم هغه کامیاب دی، او دا چې څوک د چا سره څه تعرض ونکړي، موسی علیه السلام په خپل دین و عیسی علیه السلام په خپل دین نو دا لاره د مسلمانۍ نه ده . (ال عمران ایت ۱۰۴)

شاه عبدالقادر رحمه الله د دې آیت كنتم خير امة الخ دلاندې لیکي یعنې دا امت د هر امت نه بهتر دی. په دې دوه صفتونو امر معروف یعني جهاد او ایمان یعني د توحید خوندیتوب دومره په بل دین کې نشته. (ال عمران ایت ۱۱)

## په جهاد کې د زخمي کیدو فضیلت

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يُكْلَمُ أَحَدٌ فِي سَبِيلِ اللهِ | | | | | | | | |
| او حضرت ابو هریرة رضی الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل "کوم کس چې د خدای په لاره کې | | | | | | | | |
| وَاللهُ | أَعْلَمُ | بِمَنْ | يُكْلَمُ | فِي | سَبِيلِهِ | | | |
| (یعني جهاد) کې زخمي کړی شي او خدای دا کس نه پیژني کوم چې د هغې په لاره کې زخمي کیږي، نو هغه | | | | | | | | |
| إِلَّا | جَاءَ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | وَجُرْحُهُ | يَثْعَبُ | دَمًا | اللَّوْنُ لَوْنُ | الدَّمِ |
| مجاهد به په قیامت کې په داسې حال راځي چې د هغې د زخم نه به وینه رارawانه وي. د هغه وینې | | | | | | | | |
| والريحُ | ريحُ | المسكِ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | | |
| رنګ به د وینې پشان وی او د هغې بوئي به د مشک د خوشبو پشان وي". | | | | | | | | |

**توضیح**: **لایکلم**: د باب نصر و ضرب نه د مجهول صیغه ده، د زخمي کیدلو په معنی کې ده. (مرقات : ۳۶۵/۷)

ای لایجرح. **یثعب**: دا فتح د یفتح نه ده. د زخم نه د فوارې پشان د وینې توېدلو ته وایې. یو روایت کې د یتفجر لفظ دی چې د دې معنی تائید کوي. بهرحال د قیامت په ورځ د مجاهد د زخم نه د وینې د توېدلو حکمت دا دی چې ګویا کې دا وینه به د مجاهد د قربانۍ په توګه ګواه موجو وي او د هغې په فضیلت باندې به علامت وي. ګویا که مجاهد په زبان حال سره وایي : (مرقات : ۳۶۵،۳۶۶/۷)

میرے رستے ہوئے زخموں کو دکھا کر کہنا ایسے تمغوں کے طلبگار یہاں اور بھی ہیں

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۰۲ اخرجه مسلم في صحيحه ۲۰/۶ رقم الحديث ۲۸۰۳ ومسلم في ۱۴۹۶/۳ رقم الحديث (۱۰۵-۱۸۷۶)

دې حديث د اخلاص اړخ ته اشاره ده چې په جهاد کې بې ریا مخلص مجاهد ثوک وي او ریا کار ثوک وي.

## د شهادت فضیلت او ارمان

| |
|---|
| ﴿١٧﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "جنت ته داخلېدونكي هيڅ يو |
| يُحِبُّ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا وَلَهُ مَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ |
| كس به دا خوښ نه كړي چې هغه بېرته دنيا ته لاړ شي او (د جنت د نعمتونو په بدل د دنيا ټول) شيان قبول كړي، |
| إِلَّا الشَّهِيدُ يَتَمَنَّى أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلَ عَشْرَ مَرَّاتٍ |
| خو شهيد به دا ارمان كوي چې هغه دنيا ته بېرته لاړ شي او لس ځله د خداى په لاره كې شهيد شي، ځكه |
| لِمَا يَرَى مِنَ الْكَرَامَةِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| د شهادت عظمت او د هغې ثواب پېژني". |

## د مرګ نه وروسته د شهيدانو ژوند

| |
|---|
| ﴿١٨﴾ وَعَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ: سَأَلْنَا عَبْدَ اللهِ بْنَ مسعودٍ عَنْ هَذِهِ الْآيَةِ |
| او حضرت مسروق رحمه الله (تابعي) فرمايي چې مونږ د حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د دې آيت تفسير |
| (وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتًا |
| وپوښتلو چې كوم كسان د خداى په لاره كې وژلى شوي دي نو تاسو هغه مړه مه ګڼئ بلكې هغوى د خپل رب |
| بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ ربهم يُرزقون) الْآيَةَ قَالَ: إِنَّا قَدْ سَأَلْنَا عَنْ ذَلِكَ |
| سره ژوندي دي او هغوى له رزق وركړى كېږي. الخ، نو هغې وفرمايل چې مونږ د نبي كريم ﷺ نه د دې آيت |
| فَقَالَ: "أَرْوَاحُهُمْ فِي أَجْوَافِ طَيْرٍ خُضْرٍ |
| تفسير وپوښتلو، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې "د دوى (شهيدانو) روحونه شنه رنګ مرغانو په |
| لَهَا قَنَادِيلُ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ تَسْرَحُ |
| قالب كې دي. د هغوى د (اوسېدلو) لپاره په عرش الهي كې قنديلونه (ډيوې) راځوړند كړى شوي دي. |

[1] رقم الحديث ٣٨٠٣ أخرجه البخاري في صحيحه ٢٢/٦ رقم الحديث ٢٨١٧ ومسلم في ١٤٩٨/٣ رقم الحديث (١٠٩-١٨٧٧)

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ | الْجَنَّةِ | حَيْثُ | شَاءَتْ | ثُمَّ | تَأْوِي | إِلَى | تِلْكَ | الْقَنَادِيلِ |
| هغه (روحونه) جنت كې چرته د هغوی زړونه غواړي مېوې خوري، بيا راشي او په خپلو قنديلونو كې اوسيږي. | | | | | | | | |
| فَاطَّلَعَ | إِلَيْهِمْ | رَبُّهُمْ | اطِّلَاعَةً | فَقَالَ: | هَلْ | تَشْتَهُونَ | شَيْئًا؟ | |
| بيا پروردګار د هغې (شهيدانو) اړخ ته رابنكاره شي او ورته فرمايي چې "آيا ستاسو څه ارمان شته دی؟" | | | | | | | | |
| قَالُوا: | أَيَّ | شَيْءٍ | نَشْتَهِي | وَنَحْنُ | نَسْرَحُ | مِنَ | الْجنَّة | حيثُ شِئْنَا |
| هغوی عرض كوي "مونږ د څه شي ارمان وكړو، حال دا چې مونږ په جنت كې يو او چرته مو چې زړه غواړي د | | | | | | | | |
| ففعلَ | ذلكَ | بِهِمْ | ثَلَاثَ | مَرَّاتٍ | فَلَمَّا | رَأَوْا | | |
| هملته نه مېوې خورو". الله تعالى د هغوی سره دريځل معامله كوي (دريځله د هغوی نه همدغه پوښتنه كوي) | | | | | | | | |
| أَنَّهُمْ | لَنْ | يُتْرَكُوا | مِنْ | أَنْ | يَسْأَلُوا | | | |
| او كله چې هغوی پوهه شي چې پوښتنه كونكي مونه پرېږدي (يعنې كله چې هغوی پوهه شي چې د پروردګار مراد دا دی | | | | | | | | |
| قَالُوا: | يَا | رَبِّ | نُرِيدُ | أَنْ | تُرَدَّ | أَرْوَاحُنَا | | |
| چې مونږ د خوشحالئ اظهار وكړو) نو عرض كوي چې "ای زمونږ پروردګاره! زمونږ بس همدغه خواهش دی | | | | | | | | |
| فِي | أَجْسَادِنَا | حَتَّى | نُقْتَلَ | فِي | | | | |
| چې ته زمونږ روحونه بېرته زمونږ بدنونو ته راولې او مونږ دنيا ته بېرته ولېږې چې مونږ يو ځل بيا | | | | | | | | |
| سبيلِكَ | مرَّةً | أُخرى | فَلَمَّا | رَأَى | أَنْ | لَيْسَ | | |
| ستا په لاره كې شهيدان شو" چې الله دا وګوري چې د هغوی هيڅ (متعين) خواهش او حاجت نشته دی، | | | | | | | | |
| لَهُمْ | حَاجَةٌ | تُرِكُوا". | رَوَاهُ | مُسلم[1] | | | | |
| نو هغوی پرېخودلی شي (يعنې الله تعالیٰ د هغوی نه پوښتنه كول پرېږدي). | | | | | | | | |

**توضيح**: اروحوا فی اجواف طير: اجواف د جوف جمع ده. د مرغانو ججورې ته وايې. چرته چې په ابتدائي توګه خوراك جمع كېږي. چې د مرغۍ د مښوكې د لاندې پړسيدلی برخه وي. چې په نورو رايتونو كې ورله د حواصل لفظ راغلی دی.

---

(1) رقم الحديث ۳۸۰۴ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۰۲/۳ رقم الحديث (۱۲۱-۱۸۸۷) واخرجه الترمذي ۲۱۵/۵ رقم الحديث ۳۰۱۱

علماؤ لیکلي دي چې د شهیدانو روحونه د شنه مرغانو په ججوره کې ایښودل د شیهدانو د اکرام او د احترام په توګه دی. د دې حدیث نه دلالة النص ثابتیږي. او شارة النص نه د انبیاؤ ژوند ثابتیږي، ځکه د شهیدانو نه د انبیاؤ مقام اوچت دی. لهذا د هغوی د ژوند ثبوت په اولی طریقه دی.

د مړو د اوریدلو مسئله تر یو حده پورې په توضیحات جلد اول کې لیکلی شوې ده او د انبیاؤ د ژوند مسئله په پوره طریقې سره په توضیحات جلد دویم کې لیکلی شوې ده. دلته د دې مسئلې تفصیل مقصود نه دی. البته د دې حدیث نه د پیدا شوې یوه پوښتنه او د هغې جواب لیکلی کیږي.

**سوال:** د دې حدیث نه هندوانو او د چین څه خلک د تناسخ عقیده (آوا ګون) ثابتوي. د تناسخ مطلب د هغوی په نزد دا دی چې دې دنیا کې چې کله سړی مړ شي نو د هغې روح یو حیوان ته منتقل شي. که مړ شوی کس نیک او ښه ؤو نو د هغې روح د یو بادشاه یا د یو حاکم بدن ته انتقال شي. چې د هغې په ذریعې سره دا روح ښې مزې کوي. او همدغه د هغې جنت دی. او که چرته مړ شوی کس بد ؤو نو د هغې روح په خر یا سپې یا یو ذلیل حیوان کې لاړ شي. خلک هغه وهي او تنګوي. چې پرې دا روح ذلیله شي. همدغه د دې جهنم دی. پوښتنه دا ده چې آیا د دې حدیث نه دا عقیده ثابتیږي یا نه؟

**جواب:** د دغه ټولو خلکو اولنی جواب خو دا دی چې د دې حدیث تعلق خو د آخرت سره دی چې په آخرت کې به دا روحونه د مرغانو په ججورو کې وي او کوم کسان چې د تناسخ قائل دي. هغوی په دنیا کې د مړشوې کس روح بل چاته د داخلیدلو قائل دي. آخرت خو هغوی منې نه. بیا د آخرت والا حدیث نه استدلال څنګه کوي.

دویم جواب دا دی چې دا شنه مرغان شهداؤ د روحونو لپاره د ظروف او صندوق په توګه دی، نه دا چې د هغوی روحونه د مرغانو په قالب او بدن کې حلول کړی دی. د دې مثال داسې دی چې یو کس ملغلرې په صندوق کې کېخودلې نو دا صندوق د ملغلرو لپاره ظروق دی، نه دا چې ملغلرې په صندوق کې حلول کړی دی. پوهې او د اسانتیا لپاره دریم جواب داسې وکنئ چې دلته چې د طیر خضر کوم تعبیر دی، دا د جنت په سورلو کې د یوې سورلې اړخ ته اشاره ده. مثلاً هیلې کاپټر (الوتکه) ده. دې کې دنیا کې مخلتف کسان کېنې او د دنیا مختلفو اړخو ته والوځي، بیا بېرته خپل ځای ته راشي. د هیلې کاپټر مخکنئ برخه بالکل د مرغۍ د ججورې پشان ده. شیشه کې د ټولو سیر او تفریح کېږي، نو دلته هم د طیر خضر نه مراد د شنه مارغانو نه د جنت شنه هیلی کاپټر مراد کېدی شي. (مرقات : ۳۷۰/۷)

**فاطلع:** نظر او د تجلی په معنی کې دی یعنې الله ورښکاره او هغوی ته یې وکتل، کوم چې د الله د شان سره ښایې. (۳۶۸/۷)

**روا:** یعنې شهیدانو چې کله ولیدل **لن یترکوا:** مجهول صیغه ده یعنې شهیدانو ولیدل چې هغوی

به پوښتنې نه بغیر نه پرېښودلی کېږي. ان یسألوا: یعني چې شهیدان د الله تعالی پوښتنه وکړي او څه ترېنه وغواړوې. دا د معلوم صیغه ده. (۳۶۸/۷)

ترکوا: د مجهول صیغه ده یعنې چې کله دا خبره واضحه شوه چې دا خلک هیڅ غوښتونکې نه دي، نو هغوی پرخوستلی شي. (۳۶۸/۷)

## په شهات سره ټول ګناهونه معاف کېږي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ عَن أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ فِيهِمْ فَذَكَرَ لَهُمْ |
| او حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (یو ورځ) نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته خطبه کې وفرمایل |
| أَنَّ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَالْإِيمَانَ بِاللهِ |
| او (هغه خطبه کې) یې هغوی خبر کړه چې "د الله په لاره کې جهاد کول او الله باندې ایمان راوړل د |
| أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| ټولو نه بهتر عملونه دي" (دې اورېدلو سره) یو کس وردېدلو او عرض یې وکړو چې "یارسول الله! |
| أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللهِ يُكَفَّرُ عَنِّي خَطَايَايَ؟ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| ماته دا اوایه چې زه د الله په لاره کې اوژلی شم نو آیا زما ګناهونه به بخښلی کېږي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل |
| نَعَمْ إِنْ قُتِلْتَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَأَنْتَ |
| چې آؤ" خو په دې شرط چې ته د الله په لاره کې په داسې حال کې وژلی شوې یې چې ته (په سختیو باندې) |
| صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ. |
| صبر کونکی یې، ثواب طلب کونکی یې او شا کولو تښتېدونکو نه نه یې بلکې د دښمن په مقابله کې کلک ولاړ یې". |
| ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَيْفَ قُلْتَ؟ فَقَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ |
| بیا نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې نه وپوښتل چې "تا څه ویلې وُو؟ چې "ماته دا اوایه چې زه د الله په لاره |
| فِي سَبِيلِ اللهِ أَيُكَفَّرُ عَنِّي خَطَايَايَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَعَمْ |
| کې اوژلی شم نو آیا زما ګناهونه به وبخښلی شي.؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل "آؤ! خو به دې شرط چې |
| وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ |
| ته صبر کونکی یې، د ثواب طلب کونکی یې، او شاته د راتښتېدونکو نه یې بلکې د دښمن په مقابله کې کلک ولاړ یې، |

إِلَّا الدَّيْنَ فَإِنَّ جِبْرِيلَ قَالَ لِي ذَلِكَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

خو قرض (يعنې هغه قرض به نه بخښلی کېږي چې کوم نه وي ادا کړی شوی) او ماته جبرائيل عليه السلام هم دغه شان ويلي دي.

**توضيح: افضل الاعمال:** د ايمان نه وروسته افضل عمل کوم يو دی. د دې توضيح د دې باب په حديث نمبر ۱ او حديث نمبر ۲ کې تېره شوې ده. (مرقات: ۳۶۸/۷)

**محتسب:** د صابر نه مراد په ميدانِ جنګ کې د کفارو مقابله کې صبر کول مراد دی چې ونه يرېږي، ژړا فرياد ونکړي او د محتسب نه مراد د ثواب اميد کول دی. جهاد خالص د الله د رضا لپاره وي، د آخرت ثواب مقصد وي، د دنيا غرض، ځان ښودنه او رياکارې مقصود نه وي، دغه شان هيڅ قومې تعصب او د حمايت جذبه نه وي. (مرقات: ۳۶۸/۷)

**کيف قلت:** نبي عليه السلام ته د هغه کس پوښتنه معلومه شوه خو په دويم خل يې ځکه وکړه چې هغه کس په غور سره جواب واورې او جواب کې څه اضافه دې هغې باندې پوهه شي. (مرقات ۳۷۰/۷)

**الاالدين:** د دې نه مراد څه قرض نه دی بلکې حقوق العباد مراد دی. هغه په جهاد او شهادت باندې نه بخښلی کېږي. د دې نه بغير ټول حقوق الله بخښلی کېږي. ملاعلي قاري په مرقات کې ليکلي دي چې سمندرې جنګ کې چې څوک شهيد شي نو هغې سره حقوق العباد هم بخښلی کېږي. ځېنو رايتونو کې دي چې په ابتداء کې حکم دغه شان وُو نو بيا الله تعالى اسانه کړه چې د شهيد نه به حقوق العباد نه بخښلی کېږي چې صاحب حق ته به د قيامت په ورځ د دې په بدل کې ثواب ورکړی کېږي. هغه به راضي شي او شهيد به معاف شي. بهرحال مجاهدينو له ميدان جهاد ته د تللو نه مخکې وصيت کول او د قرض انتظام کول پکار دي. مسلم شريف کې د دې روايت الفاظ داسې دي "**يغفر للشهيد کل ذنب الا الدين**" معلوه شوه چې جهاد او شهادت د ګناهونو د وينځلو د ټولو نه لوې واشنګ مشين (د وينځلو مشين) دی. د راتلونکي حديث تشريح او توضيح هم دغه شان ده.

﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الْقَتْلُ

او حضرت عبدالله ابن عمرو بن العاص نه روايت دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل "د الله په

[1] رقم الحديث ۳۸۰۵ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۰۱/۳ رقم الحديث (۱۱۷-۱۸۸۵) والترمذي في السنن ۱۸۴/۴ رقم الحديث ۱۷۱۲

| |
|---|
| فِي سَبِيلِ اللهِ يُكَفِّرُ كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا الدَّيْن. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| لاره کې (یعنې جهاد کې) وژل کېدل (د حقوق العباد) نه بغیر ټول ګناهونه ورانوي". |

## وژونکی او وژل شوی دواړه په جنت کې

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يَضْحَكُ اللهُ تَعَالَى |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "الله تعالی په هغه دواړه |
| إِلَى رَجُلَيْنِ يَقْتُلُ أَحَدُهُمَا |
| کسانو پسې خاندي (یعنې د هغوی نه راضي کېږي) هغوی کې خو یو هغه دی چې د الله په لاره کې جهاد کوي |
| الْآخَرَ يَدْخُلَانِ الْجَنَّةَ: يُقَاتِلُ هَذَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَيُقْتَلُ ثُمَّ يَتُوبُ اللهُ |
| او شهید شې (تردې چې جنت ته داخل شي) بیا د هغې قاتل له د توبې توفیق ورکړي (او هغه د کفر نه توبه |
| على الْقَاتِلِ فيستشهد" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| وباسې او ایمان راوړي) او بیا د خدای په لاره کې په جهاد کې شهید شي (لهذا هغه هم جنت ته داخل کړی شي) |

**توضیح**: **يضحك الله**: د الله تعالی د خندلو نه مراد د الله تعالی رضا او خوشحاله کېدل دي. دا د متشابه الفاظو نه دي. د دې بهترین تاویل دا دی چې **"ای مایلیق بشانه"** یعنې څنګه چې د الله د شان سره مناسب وي. میدان جنګ کې د قاتل او مقتول دواړو جنت ته د تللو صورت دا وي چې مثلاً یو کافر مسلمان شهید کړو. مسلمان جنت ته لاړو. بیا هغه قاتل اسلام قبول کړو او د دین لپاره په جنګ کې هغه هم شهید شو. دا هم جنت ته لاړو، نو د هغې مقتول هم په جنت کې دی او دا خپله هم په جنت کې دی. ده شان واقعه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې هم او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته هم ډېر ځل شوې ده.

## د شهادت رښتیني ارمان هم شهادت دی

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَن سهل بن حنيف قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَأَلَ اللهَ |
| او حضرت سهل ابن حنیف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "کوم کس چې په |

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۰۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹/۶ رقم الحديث ۲۸۲۶ ومسلم في ۱۵۰۴/۳ رقم الحديث (۱۲۸-۳۱۶۶)

([2]) رقم الحديث ۳۸۰۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۹/۶ رقم الحديث ۲۸۲۶ ومسلم في ۱۵۰۴/۳ رقم الحديث (۱۲۸-۳۱۶۶)

| | | |
|---|---|---|
| الشَّهَادَةَ | بِصِدْقٍ | بَلَّغَهُ اللهُ |
| ربښتني زړه (يعني د ربښتيا غوښتلو جذبې سره) د الله تعالی نه د شهادت طلب کونکی وې نو الله تعالی | | |
| مَنَازِلَ | الشُّهَدَاءِ | وَإِنْ مَاتَ |
| هغه د شهيدانو درجې ته رسوې اګر که هغه په خپله بستره باندې مړ شي (يعني په ربښتيا نيت سره او د ربښتيا | | |
| عَلَى فِرَاشِهِ. رَوَاهُ مُسلم [1] | | |
| طلب کولو به وجه د شهيدانو په شان مومې). | | |

**توضيح: الشهادة:** دا چې د عملو دارو مدار په نيتونو باندې دی نو ځکه ربښتنې او پوخ نيت سره چې کوم مسلمان چې جهاد في سبيل الله کې شهادت غواړي او بيا د الله تعالی نه د هغې غوښتنه هم کوي نو الله تعالی هغه د شهادت مقام ته رسوې اګر که هغه په خپل کور کې فرش باندې مړ شي. دې حديث کې مسلمانانو ته يوه لويه جذبه او حوصله ورکول مقصود ده چې د هر مسلمان به زړه او مازغو کې د جهاد جذبه او شهادت شوق هر وخت په جذبې سره وي. د شهادت د غوښتلو مطلب دا نه دی چې مرګ به د وخت نه مخکې راشي بلکې مطلب دا دی چې کوم مرګ په خپل وخت باندې راتلونکی دی هغه په شهادت کې بدل شي. (مرقات: ۳۷۲/۷)

## په ميدانِ جهاد کې په نامعلومه ګولۍ لېګدو سره شهادت ملاويږي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ | أَنَسٍ | أَنَّ | الرُّبَيِّعَ | بِنْتَ | الْبَرَاءِ | وَهِيَ | أُمُّ | حَارِثَةَ | بْنِ سُرَاقَةَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (زما ترور) حضرت ربيع بنت براء چې د حضرت حارثه ابن سراقه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مور | | | | | | | | | |
| أَتَتِ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَتْ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ أَلَا |
| ده (يو ورځ) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضره شوه او وې ويل چې "يا نبي الله! آيا ته به | | | | | | | | | |
| تُحَدِّثُنِي | عَنْ | حَارِثَةَ | وَكَانَ | قُتِلَ | يَوْمَ | بَدْرٍ | | | |
| زما ځوې حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حال به بيان نه کړې؟ او حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بدر په ورځ (يعني جنګ بدر کې) شهيد شوی ؤو | | | | | | | | | |
| أَصَابَهُ | سَهْمٌ | غَرْبٌ | فَإِنْ | كَانَ | فِي | الْجَنَّةِ | | | |
| او په هغې دا سې تير لږېدلی ؤو چې ويشتونکی يې معلوم نه شو چې څوک ؤو. که چرې هغه جنت کې وې | | | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۸۰۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۱۷/۳ رقم الحديث (۱۵۷-۱۹۰۹) وأبوداود في السنن ۱۷۹/۲ رقم الحديث ۱۵۲۰

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صَبَرْتُ | وَإِنْ | كَانَ | غَيْرُ | ذٰلِكَ | اجْتَهَدْتُ | عَلَيْهِ | فِي | الْبُكَاءِ |

نو زه به صبر وکړم او که بل ځای کې وي نو زه به ډېره کوشش وکړم (یعني ښه به وژاړم څنګه چې د ښځو عادت وي)"

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | يَا | أُمَّ | حَارِثَةَ | إِنَّهَا | جِنَانٌ | فِي | الْجَنَّةِ. |

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "د حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ موري! حقیقت دا دی چې جنت کې ډېر باغونه دي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنَّ | ابْنَكِ | أَصَابَ | الْفِرْدَوْسَ | الْأَعْلَى | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[1] |

او ستا ځوي فردوس اعلی ته رسيدلی دی (چې د جنت د ټولو نه اعلی درجه ده)".

**توضيح: ام حارثه:** جنګ بدر کې حضرت حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يو کوهي نه او به حاصلولو لپاره ناست ؤ چې ناڅاپا د يو اړخ نه تير راغلو او پرې ولېږېدلی چې هغه پرې شهيد شو. دا معلومه نه شوه چې تير د کوم اړخ نه راغلو. احتمال ؤ چې د يو مسلمان د اړخ نه تير راغلی ؤ او هغه پرې لږېدلی ؤ چې د هغې شهادت ته پرې نقصان رسيدلی وې. دغه شان هغه وخت کې هغه د ميدان جنګ نه هم بهر ؤ او موکر واقع شو. دغه دوه خبرو د حضرت حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مور پريشانه کړې وه. چې معلومه نه ده چې د حضرت حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به څه انجام وې. د دغه پريشانئ اخوا کولو لپاره يې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل چې که د حضرت حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انجام ښه وي نو زه به د هغې په مرګ باندې صبر وکړم ګنې بل صورت کې به ژړا فرياد وکړم او ښه ژړه با شروع کړم. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې له تسلي ورکړه او بشارت يې ورته واورولو چې جنت يو نه دی بلکې په مختلفو درجو مشتمل جنتونه دي او ستا ځوي خو په اعلیٰ او اوچت مقام جنت فردوس کې دی. د دې حديث نه معلومه شوه چې د جهاد به ميدان کې د هيڅ يو کس ګولۍ (کارتوس) لږېدلو سرهالله تعالی شهادت ورکوي. نن سبا په جهاد کې غلطئ سره داسې واقعات کېږي. **سهم غرب** هم دغه نامعلومه تير يا ګولۍ ته وايې. (مرقات: ۳۷۲/۷)

## کهجوري يې وغور ځولې او شهيد شو

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | انْطَلَقَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَأَصْحَابُهُ | |

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (د غزوه بدر په موقع کې) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د هغې صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | سَبَقُوا | الْمُشْرِكِينَ | إِلَى | بَدْرٍ |

د (مدينې نه) روان شول او د مشرکانو نه اول د بدر (ميدان جنګ) ته ورسيدل. بيا چې (کله اسلامي مجاهدين د رسيدلو نه

---

[1] ) رقم الحديث ۳۸۰۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵/۶ رقم الحديث ۲۸۰۹ والترمذي في السنن ۳۰۶/۵ رقم الحديث ۳۱۷۴

| |
|---|
| وَجَاءَ الْمُشْرِكُونَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| وروسته) د مشركانو لښكر راغلو او د (مقابلې تيارى شروع شو) نو نبي كريم ﷺ و فرمايل چې |
| «قُومُوا إِلَى جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ. |
| "د جنت په لاره ودرېږئ، هغه جنت چې پلنوالى او اوږدوالى يې د ځمكې او اسمان برابر دى. (يو صحابي) |
| قَالَ عُمَيْرُ بْنُ الْحُمَامِ: بَخٍ بَخٍ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابن حمام انصارى (دې ارشاد اوريدلو سره) وويل چې ښه، ښه! نبي عَلَيْهِ السَّلَام پوښتنه وكړه |
| "مَا يَحْمِلُكَ عَلَى قَوْلِكَ: بَخٍ بَخٍ؟ "قَالَ: لَا وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ |
| چې ته ښه ښه ولې ووېل؟ حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې "يا رسول الله ﷺ! ما د الفاظ د اظهار يا د بل |
| إِلَّا رَجَاءَ أَنْ أَكُونَ مِنْ أَهْلِهَا قَالَ: |
| مطلب لپاره نه دې ويلې بلكې ما په حقيقت كې د دې الفاظو په ذريعې د خپل هغه ارمان اظهار كړى دى چې زه هم جنتي شم. |
| «فَإِنَّكَ مِنْ أَهْلِهَا قَالَ: |
| نبي كريم ﷺ و فرمايل "دې كې هيڅ نشته دى ته جنتي يې". راوي وايي چې حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| فَأَخْرَجَ تَمَرَاتٍ مِنْ قَرْنِهِ فَجَعَلَ |
| د نبي كريم ﷺ د خلې مبارك نه دې بشارت اوريدلو سره د غشو د كخوړې نه څه كجورې راوويستلې |
| يَأْكُلُ مِنْهُنَّ ثُمَّ قَالَ: لَئِنْ أَنَا حَيِيتُ حَتَّى آكل تمراتي |
| او د هغې په خوړلو يې شروع وكړه او بيا يې وويل چې كه چرې زه د دې (ټولو) كجورو خوړلو پورې ژوندى وم |
| إِنَّهَا الْحَيَاةُ طَوِيلَةٌ قَالَ: فَرَمَى بِمَا كَانَ مَعَهُ مِنَ التَّمْرِ ثُمَّ قَاتَلَهُمْ |
| نو ژوند به مې اوږد وي، نو هغې هغه كجورې چې د هغې سره وې وغورځولې او كفارو سره په جنګ شو |
| حَتَّى قُتِلَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1] |
| تر دې چې شهيد شو. |

[1] رقم الحديث ٣٨١٠ أخرجه مسلم في صحيحه ١٥٠٩/٣ رقم الحديث (١٤٥-١٩٠١) وأحمد في المسند ١٣٧/٣

**توضیح**: **قوموا الی جنة**: یعنې د جنت دروازه کې د داخلېدلو لپاره ودرېږئ، داسې جنت چې پلنوالی یې د ځمکې او اسمان سره برابر دی. **فقال عمیر**: نو د لږ عمر والا ځوان په جنګ بدر کې د ټولو نه اول شهید شوی ؤو. (مرقات: ۳۷۴/۷)

**بخ بخ**: با مفتوح او خ ساکن دی. د مبالغې په توګه دا لفظ مکرر دی. یو نسخه کې خ باندې تنوین دی او خ باندې شد هم ویلی کېږي. عرب د خوشحالئ او تعجب، فخر او مدح په وخت کې دا کلمه استعمالوي. د ترجمه "ښه ښه" او "واه واه" کېږي.
نبي کریم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عمیر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ نه دا معلومول غوښتل چې آیا هغې دا کلمه په ارادې سره ولې په ژبه راوړله. یا که هسې په اتفاقي توګه راوتلې ده. حضرت عمیر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ جواب ورکړو چې بغیر د ارادې نه ؤو بلکې رښتنې اراده ده چې دا جنت ماته ملاؤ شې او زماژوند قربان شي. کله چې ورته د نبي کریم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخ نه دا بشارت ملاؤ شو نو د هیڅ تاخیر نه بغیر حضرت عمیر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ سر په تلې کې کېښودلو او د کجورو ژؤول او د خوړلو پورې وخت یې هم برداشت نه کړو او شهید شو.
علماؤ دا حدیث او د حضرت عمیر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ دا اقدام د "ځان وژنې" کاروائی لپاره د دلیل په توګه وړاندې کړې دی. یاده دې وي چې کفارو باندې بمبار کول ځان وژنه نه وي بلکې دا به حقیقت کې د بل د وژنې حمله وي. خلک دې ته د ځان وژنې حمله وایي، خو د ملک دننه دغه شان افراتفري خورول ښه نه دي. (مرقات: ۳۷۴/۷)
**نوټ**: (د کتاب الجهاد د ابتداء نه تر دې ځای پورې د افریقه زامبیا د سفر په دوران کې د مولانا ایوب بوبات سره په لوسا ښار کې ولیکلی شو. جون ۲۰۰۵)

## د شهید مطلب او د شهیدانو قسمونه

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا تَعُدُّونَ |
| او حضرت ابوهریره رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم ﷺ (د صحابؤ) نه وپوښتل چې تاسو خپلو کې |
| الشَّهِيدَ فِيكُمْ؟ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| کوم یو کس شهید شمېرئ؟ صحابؤ عرض وکړو چې یارسول الله صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! کوم کس چې د الله په لاره کې |
| فَهُوَ شَهِيدٌ قَالَ: "إِنَّ شُهَدَاءَ أُمَّتِي إِذًا لَقَلِيلٌ: |
| اوژلی شي هغه شهید دی. نبي کریم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل". دې صورت کې زما په امت کې به د شهیدانو شمېر کم شي. |
| مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ مَاتَ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| کوم کس چې د الله په لاره کې اوژلی شي هغه خو (حقیقي شهید دی) خو کوم کس چې د الله په لاره (یعنې جهاد) |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَهُوَ | شَهِيدٌ | وَمَنْ | مَاتَ | فِي | الطَّاعُونِ |
| کې (بغیر د قتل و قتال په خپل مرګ مړ شي هغه هم شهید دی. کوم کس چې په وبا کې مړ شي هغه | | | | | |
| فَهُوَ | شَهِيدٌ | وَمَنْ | مَاتَ | فِي | الْبَطْنِ |
| هم شهید دی او کوم کس چې د خېټې په مرض شي هغه هم شهید دی (یعنې دا ټول هم د حقیقي شهیدانو د | | | | | |
| فهوَ | شهيدٌ". | رَوَاهُ مُسلم [۱] | | | |
| درجو په ثواب کې دي. د هغوي په ټولو احکامو کې نیکي ده) | | | | | |

**توضیح: الشهید فیکم**: یعنې تاسو خپلو کې څوک شهید شمارئ؟ شهید د فعیل په وزن باندې دی او فعیل کله د اسم مفعول په معنی کې راځي. او کله د اسم فاعل په معنی کې راځي. که دلته شهید د اسم مفعول په معنی کې واخستلی شي نو مطلب به دا وي چې د اعزاز او اکرام لپاره هغې ته فرښتې حاضرېږي. او که شهیدان د اسم فاعل په معنی کې واخستلی شي نو مطلب به دا وي چې شهید خپله د الله د نعمتونو د کتنې لپاره او د الله تعالی د ملاقات لپاره حاضرېږي یا د مرګ په وخت کې د خپلو درجو مشاهده کوي. یا د شهید لفظ د شهادت په معنی کې راځي. یعنې شهید خپله په عمل د اخلاص ګواهي کوي. یا دې ته ځکه شهید وایې ټول مسلمانان او فرشتې د هغې لپاره د جنت ګواهي ورکوي. اسلام کې شهید حقیقت کې هغه کس وی چې د کافرانو سره د مقابلې په دوران کې اوژلی شي یا ظلماً په تیره آله باندې قتل کړی شي او هغه د نیوې شیانو نه د نفع اخستلو نه بغیر مړ شي، دا حقیقي شهید دی. د دې نه بغیر د یو څو شهیدانو ذکر د بحث لاندې حدیث کې راغلی دی. دا د ثواب په اعتبار سره شهیدان دي. د نورو احکاماتو په اعتبار سره شهیدان نه دي. یعنې کوم کسان چې په جهاد کې په طبعي مرګ باندې مړه شي یا چې کوم کس په طاعون سره مړ شي یا د اسهال نه مړ شي یا د غر نه راوغوځېږي او مړ شي یا په اور کې وسوځوي او مړ شي یا اوبو کې ډوب او مړ شي یا د ماشوم پیدا کېدو وخت کې ښځه مړه شي یا د علم په حصول کې طالب علم مړ شي. دا ټول داسې شهیدان دي چې صرف د ثواب په اعتبار سره شهیدان شمارل کېږي، ځکه د شهید اصل یو ثواب دی او یو فضل ثواب دی. دا خلک په اصل کې شریک دي. فضل ثواب کې شریک نه دي. علامه طیبي لیکي: "**ومن مات بالطاعون او بوجع في البطن ملحق بمن قتل في سبيل الله**

---

(۱) رقم الحدیث ۳۸۱۱ أخرجه مسلم في صحیحه ۳/۱۵۲۱ رقم الحدیث (۱۶۵-۱۹۱۵)

لمشارکته ایاه فی بعض ما ینال من الکرامة بسبب ما کابده من الشدة لا فی الاحکام والفضائل"

(طيبي ج ص ۲۸۲)

ترجمه: کوم کس چې د طاعون یا د اسهال نه مړ شي. هغه د مقتول في سبیل الله سره په ځينو فضائلوَ او کراماتو کې شریک او پيوسته دي ځکه هغې محنت کړی دی، خو په ټولو احکاماتو او د شهید په ټولو فضائلو کې شریک نه دی.شهید حقیقي او شهید حکمي په مينځ کې فرق کوي او ملا علی قاری لیکي: "والمعنی انهم یشارکون فی نوع من انواع المثوبات التی یستحقها الشهداء لا المساوات فی جمیع انواعها" (مرقات ج ص ۲۷۶)

ترجمه: مطلب دا چې شهید حکمي د حقیقي شهیدانو سره په ځينو فضیلتونو کې شریک دی ټول ثواب کې مساوات نشته.دلته هم دا خبره زده کول پکار ده چې د احکاماتو په اعتبار سره شهیدان په درې قِسمه دي: ۱: اولنی هغه شهید دی چې د نیا په اعتبار سره هم شهید دی او د آخرت په اعتبار سره هم شهید دی. دې باندې به د شهید دنیوي احکامات عملي کول کېږي چې د غسل نه بغیر به خپلو جامو کې خښول کېږي دا کامل مؤمن شهید دی چې په آخرت کې به ورته درجې ورکړی کېږي.۲: دویم هغه شهید دی چې د آخرت په اعتبار سره شهید نه دی. صرف د دنیا په اعتبار سره شهید دی. دا هغه بد عقیده مقتول دی چې یا خو منافق دی یا قادیانی دی یا آغاخانی دی یا رافضي دی یا ذکري، بهائی وغیره دی. داسې خلک شهیدان نه وي، خو په داسې خلکو باندې به دنیوي احکام نافذېږي.۳: دریم شهید هغه دی چې د آخرت شهید دی، خو د دنیا شهید نه دی. دا هغه کس دی چې د طاعون وغیره نه مړ شوی وي. دوی به په آخرت کې د شهید درجه ورکړی کېږي، خو د شهید دنیوي احکام به دې باندې نه نافذېږي. مزید تفصیلات زما کتاب په دعوت و جهاد کې وګورئ.

شهید کی جو موت ہے وہ قوم کی حیات ہے

شهید کا جو خون ہے وہ خون کی زکوٰۃ ہے

## د مجاهد د اجر تقسیم

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ غَازِيَةٍ |
| او حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل "جهاد کونکې کوم جماعت |
| أَوْ   سَرِيَّةٍ   تغزو   فتغنم   وَتَسْلَمُ |
| یا جهاد کونکې کوم لښکر چې جهاد وکړو او مالِ غنیمت یې حاصل کړو او صحیح سالم بېرته راغلل. |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | كَانُوا | قَدْ | تَعَجَّلُوا | ثُلُثَيْ | أُجُورِهِمْ | وَمَا | مِنْ |

هغې به د هغې دوه دريمې اجر ملاؤېږي او جهاد کونکې کوم جماعت يا جهاد کونکې کوم لښکر

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غَازِيَةٍ | أَوْ | سَرِيَّةٍ | تَخْفِقُ | وَتُصَابُ |

چې جهاد وکړو او نه صرف دا چې صرف به هغوی مال غنمت نه بلکې د دې جماعت او لښکر چې خلک زخمي شوې دې

إِلَّا تمّ أُجورهم. رَوَاهُ مُسلم [1]

يا شهيدان شوې دې نو د هغوی اجر به پوره پاتې وي".

**توضيح**: غَازِيَةٍ: د دې موصوف قطعة يا جماعة دی او دلته لفظ د "او" د شک لپاره نه دی. يا امکان لرې چې د کوم يو راوي شک شوی وي. (مرقات: ۳۷۵/۷)

**ثلثي اجورهم**: د دې حديث مطلب دا دی چې د مجاهد اجر و ثواب په درې اثلاثو باندې تقسيم کړی شوی دی. غنيمت حاصلول يو ثلث دی او صحيح سالم بل ثلث دی او د جهاد آخري ثواب دريم ثلث دی، نو کوم يو کس چې مالِ غنيمت حاصل کړو او صحيح سالم هم بېرته راغلو. د هغې دوه ثلث لاړل. صرف د آخري ثلث يو ثلث پاتې شو او چا چې دا دواړه ثلوثه حاصل نه کړه نو د هغې اجر کامل او پوره شو، کوم چې درې اثلاث دي. علامه ابن ملک رحمه الله دې حديث باندې د پوهه کېدلو لپاره د دې مطلب داسې بيان کړی دی. فرمايې چې غازي ته مال غنيمت هم حاصل شو او صحيح سالم هم بېرته راغلو نو هغې د جهاد په ثمراتو کې دوه ثمرې ترلاسه کړې او دريمه ثمره دخول جنت دی. چې اوس هم پاتې دی. او که چرې غازي مال غنيمت حاصل نه کړی شو او صحيح سالم بېرته راغلو نو د هغې ثواب پوره محفوظ شو. الغرض يو مجاهد هغه دی چې د صحيح سالم د مال غنمت سره بېرته راغلو. دويم هغه دی صحيح سالم خو بېرته راغلو خو مال غنيمت په لاس نه دی ورغلی او دريم هغه دی چې زخمي يا شهيد شو او مال هم ورته حاصل نه شو. (مرقات: ۳۷۷/۷)

**تخفق**: د اخفاق نه دی چې د ناکامئ او د محرومئ په معنی کې دی. يعنې جهاد يې وکړو خو مال غنيمت ورته حاصل نه شو. (مرقات: ۳۷۷/۷)

**تصاب**: دا د مصيبت رسيدلو په معنی کې دی. يعنې زخمي شو يا شهيد شو يا د يو بل کوم يو مصيبت سره مخ شو. (مرقات: ۳۷۷/۷)

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۱۲ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۱۵/۳ رقم الحديث (۱۵۴-۱۹۰۶) وأبوداؤد في السنن ۱۸/۳ رقم الحديث ۲۴۹۷

## د کوم مسلمان په زړه کې چې د جهاد جذبه نه وي هغه د نفاق په مرګ مړ کیږي

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ مَاتَ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل "کوم مسلمان کس چې مړ شي |
| وَلَمْ يَغْزُو وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ نفاق. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| او هغې نه جهاد وکړو او نه يې په زړه کې د جهاد کولو خيال تېر شوی وي نو د هغې مرګ به يو قسم له د نفاق مرګ وي". |

**توضيح**: من مات: يعنې کوم کس چې نه جهد وکړو او نه يې د جهاد دغه شان جذبه وساتهله چې ای کاش! زه هم په جهاد کې شريک شوی وی، نه يې د جهاد تيارې وکړه، نه يې اسلحه زده کړه او نه يې وساتله نو د داسې کس چې کله مرګ راشي نو نفاق به وي. د نزول قرآن په وخت کې چې کومو خلکو د جهاد نه انکار وکړو، په جهاد يې اعتراضونه وکړه، قرآن هغوی ته د منافقينو په نوم ياد کړي دي.
د دې حديث نه معلومه شوه چې هر مسلمان باندې واجب ده چې هغه د جهاد شوق ولرې او د هغې د ې لپاره تيارې وکړي. جهاد که فرض عين وي يا فرض کفايه وي. (مرقات: ۳۷۸/۷)
د دې حديث نه حضرت عبد الله ابن مبارک رحمه الله، حسن بصری رحمه الله او سعيد بن مسيب رحمه الله استدلال کړی دی چې جهاد صرف يو قِسم دی. چې فرض عين دی. د فرض کفايه هيڅ قِسم نشته دی، خو د امت جمهورو جهاد دوه قِسمه د قرآن د آيتونو په وجه قبول کړی دی. د الله تعالی ارشاد دی: ﴿وفضل الله المجاهدين على القاعدين اجرا عظيما﴾. (نساء: ۹۵)

**نفسه**: دا نصوب بنزع الخافض دی يعنې "في نفسه".

## حقيقي مجاهد څوک دی

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو موسی اشعری رضي الله عنه فرمايي چې يو کس د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاصر شو |
| فَقَالَ: الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ |
| او عرض يې وکړو چې "يو خو هغه کس دی چې د مال غنيمت لپاره جنګ کوي. يو هغه کس دی چې د ذکر |

[1] رقم الحديث ۳۸۱۳ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۱۷/۳ رقم الحديث (۱۵۸-۱۹۱۰) وأبوداود في السنن ۲۲/۲ رقم الحديث ۲۵۰۲

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُقَاتِلُ | لِلذِّكْرِ | وَالرَّجُلُ | يُقَاتِلُ |

(يعني د اوازي او د شهرت چې سمعه ورته وايي) لپاره جنګ کوي او يو هغه کس دى چې د دې لپاره جنګېږي

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِيُرَى | مَكَانُهُ | فَمَنْ | فِي |

چې د هغې مرتبه وليدلی شي (يعني د خپل نرتوب د ښودلو لپاره جنګ کوي چې ريا ورته ويل کېږي نو دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سَبِيلِ | اللهِ؟ | قَالَ: | مَنْ | قَاتَلَ | لِتَكُونَ |

(درې) وارو کې کوم يو د الله په لاره کې جهاد (کونکی) دی؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "کوم کس چې

كَلِمَةُ اللهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللهِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

د دې لپاره جنګ کوي چې د الله د دين د اوچت وي. حقيقت کې همغه د الله په لاره کې جهاد کونکی دی.

## د عذر په وجه شاته پاتې کيدونکو ته د جهاد ثواب ملاويږي

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَعَ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (کله) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غزوه تبوک نه بېرته راراوان ؤو

فَدَنَا مِنَ الْمَدِينَةِ فَقَالَ: إِنَّ بِالْمَدِينَةِ أَقْوَامًا

او مديني ته رانژدې شو چې "مدينه کې څه خلک داسې دي (چې د جهاد په سفر کې په ظاهره خو ستاسره نه ؤو خو)

مَا سِرْتُمْ مَسِيرًا وَلَا قَطَعْتُمْ وَادِيًا إِلَّا كَانُوا مَعَكُمْ.

نو هيڅ داسې لاره نه ده اختيار کړې ده او داسې هيڅ يوې درې باندې نه يې تل چې په هغې ستاسره نه ؤو

وَفِي رِوَايَةٍ: «إِلَّا شَرِكُوكُمْ فِي الْأَجْرِ.

"او يو بل روايت کې يعني کوم کې چې هغه ستا نه ؤو په ځاى دا دى چې کوم "اجر او ثواب کې هغوى ستاسره شريک نه ؤو"

قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ؟

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په اوريدلو سره عرض وکړو چې "او هغه خلک په مدينه کې دي؟ (يعني مونږ سره په جهاد کې

قَالَ: وهُم بالمدينةِ

شريک نه ؤو خو په اجرو ثواب کې شريک شو؟) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل آؤ او هغه په مدينه کې دي (خو په اجرو ثواب کې

---

[1] رقم الحديث اخرجه البخاري في صحيحه ۲۷/۶ رقم الحديث ۲۸۱۰ ومسلم في ۱۵۱۲/۳ رقم الحديث (۱۴۹-۱۹۰۴)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَبسهم | الْعذر. | رَوَاهُ | البُخَارِيّ[1] | وَرَوَاهُ | مُسلم | عَن | جَابر[2] |

شريک دي) ځکه د هغوی عذر هغوی منع کړې دي. بخاري او مسلم دا روايت د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړېدی

## د مور او پلار د خدمت مقام او اهتمام

«۳۰» وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو کس د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او

فَاسْتَأْذَنَهُ فِي الْجِهَادِ فَقَالَ: أَحَيٌّ والدك؟

جهاد کې د تللو اجازت يې وغوښتلو نو د نبي کريم ﷺ ترينه يې وپوښتل چې "آيا ستا مور او پلار ژوندي دي"؟

قَالَ: نَعَمْ قَالَ: فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ.

هغه عرض وکړو "آؤ" نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل! بيا ته د هغوی په مينځ کې پاتې شه) جهاد وکړه يعنې پوره محنت او

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ:

توندئ سره د هغوی خدمت کوه چې ستا په حق کې همدغه جهاد دی. (بخاري او مسلم) او د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ

«فَارْجِعْ إِلَى وَالِدَيْكَ

دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کس ته ووېل چې بيا ته خپل مور او پلار ته لاړ شه او د هغوی

فَأَحْسِنْ صُحْبَتَهُمَا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[3]

صحبت خپل کړه يعنې د هغوی خدمت او د هغوی حقوق په ښه طريقه ادا کړه".

**توضيح** احي والدك: يعنې ستا مور او پلار ژوندي دي؟ که ژوندي وي نو د هغوی خدمت کوه. تا ته به د دې جهاد ثواب ملاوېږي. دا سې معلومېږي چې د دې کس نه بغير د دې د مور او پلار د خدمت لپاره بل هيڅ څوک نه ؤو. لهذا د مور او پلار خدمت د هغې په ذمه کړه. چې د فرض عين په درجه کې ؤو، هلته جهاد هم د فرض عين په درجه کې ؤو، ځکه يې هغه کس د مور او پلار د خدمت لپاره مقرر کړو. دا يوه خاصه مجبوري وه. عامه ضابطه نه ده. او کله چې جهاد فرض عين شي نو بيا د مور او د پلار اجازت ضرورت نشته دی. ملا علي قاري په تفصيل سره بيان کړې ده.

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۱۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲۶/۸ رقم الحديث ۴۴۲۳ وابن ماجه في ۹۲۳/۲ رقم الحديث ۲۷۶۴

([2]) رقم الحديث ۳۸۱۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۵۱۸/۳ رقم الحديث (۱۹۱۱-۱۵۹) وابن ماجه في ۹۲۳/۲ رقم الحديث ۲۷۶۵

([3]) رقم الحديث ۳۸۱۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴۰/۶ رقم الحديث ۳۰۰۴ ومسلم في ۱۹۷۵/۴ رقم الحديث ۲۵۴۶/۵

ځيني خلک وايي چې کوره د مور او پلار خدمت يې په جهاد باندې مقدم کړی دی. لهذا د مور او پلار شتون کې جهاد کې جائز نه دی. د دې جواب دا دی چې آيا د صحابو رضي الله عنهم په هغه عظيم کې جماعت کې صرف دا يو کس ؤو. چې مور او پلار يې ژوندي ؤو؟ غزوه تبوک کې ديرش زره (۳۰۰۰۰) صحابه شريک شوي ؤو. آيا د هغه ټولو مور او پلار مړه شوي ؤو؟ حقيقت دا دی چې دلته هيڅ خاصه مجبوري وه. چې د هغې په وجه هغه کس ته اجازت ملاؤ شو. بهرحال که کوم مور او پلار چې غير مسلم ؤو يا د کفارو په مقابله کې جنګ جائز نه ګڼي يا هغه قادياني وي يا آغا خاني وي، نو د اسې مور او پلار نه د اجازت اخستلو ضرورت نشته دی. دغه شان د تربيت آخستلو لپاره هم د مور او پلار د اجازت نشته دی، ځکه تربيت په هغه مسلمان باندې لازم دی او دې د ژوند خطر هم نشته دی چې مور او پلار پرشانه وي. (مرقات: ۳۸۱/۷)

## د فتح مکې نه وروسته د هجرت فضيلت ختم شو

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْفَتْحِ: |
| او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د فتح مکې په ورځ وفرمايل |
| (اهجرة بَعْدَ الْفَتْحِ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ |
| "اوس به د فتح مکې نه وروسته هجرت نه وې خو جهاد او نيت به باقي وي. لهذا کله چې تاسو د (جهاد لپاره) |
| وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانفروا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| راوغوښتلی شي نو تاسو ټول لاړ شئ. (ځکه په نفير عام موقع کې د جهاد ته تلل فرض دي او د دې ادا کول په هر يو باندې ضروري ده). |

**توضيح: لاهجرة:** يعني د مکې نه مدينې ته چې کوم خاص هجرت شوی ؤو. د هغې فرضيت ختم شو، ځکه اوس مکه دار اسلام شو. اوس هلته د هجرت ضرورت نشته دی. البته د نورې دنيا نه د هجرت فريضه اوس هم باقي ده. ياده وساتئ چې هجرت د تښتېدلو نوم نه دی. بلکې ښځه او بچې محفوظ ځای کې پرېښودل او د ښېرته راتلو نوم هجرت دی ﴿واخرجوهم من حيث اخرجوكم﴾ (بقرة: ۹۱) د الله حکم دی. د هجرت تعريف داسې دی. الله تعالى او د هغې د رسول د رضا لپاره او د خپل ژوند او مال او د ايمان د حافظت لپاره د خپل خوږ وطن د پرېښودلو نوم هجرت دی: ۱: د هجرت يو قسم دا دی. چې د دارکفر نه دار امن ارخ ته د سړی هجرت وکړي بلکه څنګه چې د مکې نه حبشې ارخ ته وشو. ۲: دويم قسم د دارکفر نه دار اسلام ارخ ته هجرت کول دي، لکه څنګه چې د مکې نه مدينې ارخ ته وشو. ۳: دريم قسم هجرت دا دی چې سړی د دار الفتن نه دار التقوىٰ اړه ته هجرت وکړي لکه چې څنګه چې د پاکستان نه خلک د طالبانو اسلامي خلافت ارخ ته هجرت کولو. نن سبا هلته امريکه په

---

[1] رقم الحديث ۳۸۱۸ أخرجه في صحيحه ۳/۶ رقم الحديث ۲۷۸۳ ومسلم في ۹۸۶/۲ رقم الحديث (۴۴۵-۱۳۵۳)

جهاد ورته نه شي ویل کېدی. دغه د نفس په ذریعې جهاد هغه دی چې د چا نفس د جهاد په میدان کې په کار راشي او جهاد ته ترېنه فائده ورسېږي. صرف کور کې محنت او عبادت ته جهاد بالنفس نه شي ویل کېدی. دغه شان جهاد بالسان هغه وې چې د چا تقریر او ترغیب او ترهیب نه د جهاد میدان ته فائده ورسېږي. صرف د پټکې تړلو متلعق یو ساعت تقریر کولو ته جهاد نه شي ویلی کېدی. ژبه باندې جهاد دا هم دی چې د دې فضائل او مسائل بیان کړی شي او هر وخت د مجاهدینو لپاره دعا وکړي. ژبې سره جهاد دا هم دی چې په دښمن باندې ویره واچوې، هغې ته سختې جملې وویل شي او د جهاد متعلق اشعار وویل شي او د ترغیب لپاره نظمونه وویل شي. حضرت حسان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو شاعران صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ همدغه شان کړی دی. تلیغ والا چې کوم بیان کوي. دا جهاد نه دی. وعظ او بیان دی.

## د کفاور ککری والوځوئ او جنت وګټئ

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفْشُوا السَّلَامَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "سلام عام کړئ (یعنې هر اشنا او نااشنا ته سلام |
| وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَاضْرِبُوا الْهَامَ |
| کوئ) او (غریب او محتاجه خلکو ته) خوراک ورکوئ او د کفارو (فتنې او د شر) سر چت کړئ، د |
| تُوَرَّثُوا الْجِنَانَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حديثٌ غَرِيب[1] |
| جنت وارثان به جوړ کړی شئ". (روایت کړې دې ترمذی) |

## په جهاد کې د مدافعه کولو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَن فَضَالَةَ بنِ عُبيدٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كُلُّ مَيِّتٍ |
| او حضرت فضاله ابن عبید د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "هر مړی خپل عمل |
| يُخْتَمُ عَلَى عَمَلِهِ إِلَّا |
| باندې اختتام ته رسیږي (یعنې د هر کس عمل تر هغې د ژوند پورې وي. د مرګ نه وروسته د هغې عمل ختم |

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۲۲ أخرجه الترمذي في السنن ۲/۲۵۲ رقم الحديث ۱۸۵۴

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِي | مَاتَ | مُرَابِطًا | فِي | سَبِيلِ | اللهِ | فَإِنَّهُ | يُنَمَّى | لَهُ عَمَلُهُ |

شي چې پرې دې ته ثواب ملاؤ شي) خو کوم کس چې د الله په لاره کې (یعنې جهاد) کې ساتنه کولو کې

إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَيَأْمَنُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد [1] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيّ عَن عقبَة بن عَامر [2]

مړ نو هغې لپاره د هغې تر قیامت پورې زیاتیږي او هغه د قبر د عذاب او د فتنې نه په امن کې وي".

## په جهاد کې د لږ وخت لپاره د شرکت فضیلت

﴿۳۷﴾ وَعَن معاذِ بن جبلٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ

او حضرت معاذ ابن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې "کوم کس

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَاتَلَ | فِي | سَبِيلِ | اللهِ | فَوَاقَ | نَاقَةٍ | فَقَدْ | وَجَبَتْ لَهُ |

د الله په لاره کې د اوښې د لوشلو هومره (یعنې د لږ وخت لپاره) هم وجنګېدلو. د هغې لپاره په (ابتداء) کې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْجَنَّةُ | وَمَنْ | جُرِحَ | جُرْحًا | فِي | سَبِيلِ | اللهِ | أَوْ |

جنت واجب شو. کوم کس چې د الله په لاره (جهاد) کې (د دښمنانو د اسلحو باندې) زخمي شو یا هغه د زخم په وجه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نُكِبَ | نَكْبَةً | فَإِنَّهَا | تَجِيءُ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |

کوم یو تکلیف کې اخته شو، نو هغه زخم به د قیامت په ورځ په داسې حالت کې راځي لکه څنګه چې هغه په دنیا کې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَأَغْزَرِ | مَا | كَانَتْ | لَوْنُهَا | الزَّعْفَرَانُ |

ؤو. (یعنې هغه کس به د قیامت په ورځ په داسې حال کې راځي چې د هغې زخم به ډېر په تازه حالت کې وي) او

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَرِيحُهَا | الْمِسْكُ | وَمَنْ | خَرَجَ | بِهِ | خُرَاجٌ | فِي | سَبِيلِ | اللهِ |

او د کوم کس په (بدن کې) د الله په لاره کې (پولۍ) راوښتله نو (د قیامت په ورځ) به هغه پولۍ باندې یا هغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَإِنَّ | عَلَيْهِ | طَابَعُ | الشُّهَدَاءِ. |

پولۍ والا باندې د شهیدانو مهروي د دین دا وچت والي او د حفاظت لپاره کوشش کړی ؤو، نو هغې ته به انعام ورکړی شي

---

([1]) رقم الحديث ۸۳۲۳ أخرجه ابوداود في السنن ۲۰/۳ رقم الحديث ۲۵۰۰ والترمذي في السنن ۱۴۲/۴ رقم الحديث ۱۶۲۱

([2]) رقم الحديث ۸۳۲۴ أخرجه الدارمي في السنن ۲۷۸/۲ رقم الحديث ۲۴۲۵ .

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1]

کوم به چې مجاهدين اسلام ته ملاو يږي.

**توضيح**: **فواق ناقة**: او ښه چې کله لشلی کيږي نو د هغې بچی تي ته پريښودلی کيږي. او ښه هغه د خپل بچې لپاره پريږدي. سړی راشي او هغه بچې ورله اخوا کړي او هغه شوده خپله راولشي. او ښه په دې وجه نور شوده هم بند کړي. سړی چالاکه وي او د او ښی بچې بېرته د هغې د تي لاندې راولي. او ښه داسې ګڼي چې بچی راغلو هغه به بيا شوده غولانځې ته راپريږدي. سړی بيا راشي او بچې ورله اخوا کړي او شوده ترينه خپله راوباسي. دغه شان معامله دوه درې ځل کيږي. يو ځل شوده راويستل او بيا په دويم ځل راويستلو په مينځ کې کومه مينځنۍ وقفه ده هغې ته فواق ناقة وايي. چې مراد ترينه لږه وقفه ده. ځينو شارحينو د فواق مطلب دا بيان کړی دی چې شوده لوشونکی چې کله د او ښې په غولانځه باندې زور کوي او د شوده راښکلو لپاره خپل لاس لاندې اړخ ته راکاږي او بيا يې پاس بوځي، نو د هغې په مينځ کې چې کومه لږه وقفه ده هغې ته فواق ناقة وايي. يعنې که دومره معمولي وخت هم چا د جهاد په مقدس جنګ کې برخه واخستله نو د هغې لپاره به جنګ واجب وي.

**جرح جرحاً**: د ښمن او د کفارو له اړخ نه د زخم لږېدلو به معنی کې دی.

**نکبة**: د دې نه عام مصيبت مراد دی. چې لاره کې حادثاتې توګه باندې رامينځ ته شي.

**خراج**: بدن کې د داې يا د پولۍ راښتلو به معنی کې دی. "خ" باندې ضمه او "ر" باندې شد دی.

**طابع الشهداء**: طابع مهر ته وايي، خو دلته مطلق علامت دی. (مرقات ۳۸۹/۷)

## جهاد کې يوه روپۍ مصرف کړئ او د اووه سوؤ ثواب وګټئ

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾ وَعَن خُرَيمِ بن فَاتِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ |
| او حضرت خريم رَضِيَ اللهُ عَنهُ ابن فاتک فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "کوم کس چې د |
| أَنْفَقَ نَفَقَةً فِي سَبِيلِ اللهِ كُتِبَ لَهُ بِسَبعِ مِائَةِ |
| خدای په لاره کې (يعنې جهاد) کې د خپل مال نه څه هم خرچ کوي. د هغې لپاره اووه سوه (۷۰۰) |

---

(۱) رقم الحديث ۸۳۲۵ أخرجه ابوداود في السنن ۶۴/۳ رقم الحديث ۲۵۴۱ والترمذي في السنن ۱۵۸/۴ رقم الحديث ۱۶۵۷

| |
|---|
| ضعف. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ[1] |
| چنده ثوابو نه ليکلی کيږي. (ترمذی، نسائی) |

**توضيح**: د دې حديث توضيح د دې باب په حديث ۶۹ کې به تفصيل سره راځي. څه لږ انتظار وکړئ.

## بهترينه صدقه

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفْضَلُ الصَّدَقَاتِ |
| او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "بهترينه صدقه د هغه |
| ظِلُّ فُسْطَاطٍ فِي سَبِيلِ اللهِ وَمِنْحَةُ خَادِمٍ |
| خيمې سيوری دی چې د خدای په لاره کې جهاد کې ورکړی شي او بهترينه صدقه د الله په لاره د |
| فِي سَبِيلِ اللهِ أَوْ طَرُوقَةُ فَحْلٍ |
| خادم صدقه کول يا داسې اوښې ورکول دي چې د نر د جفتې کولو قابله وي (يعنې د خدای په لاره کې دا اوښې ورکول افضل دي. |
| فِي سَبِيلِ اللهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2] |
| چې نر ته د جفتې کولو عمر ته رسيدلي وي. چې د نورو په کار راشي. |

**توضيح**: **فسطاط**: لوی خيمې ته وايي يعنې يو مجاهد ته يې خيمه ورکړه چې هغې په کې د سر د پټولو مقوقع ملاؤ شوه. دا بهترينه صدقه ده. (مرقات: ۳۸۹/۷)

**منحة**: د صدقې يا د کمک په توګه يو مجاهد ته غلام ورکول، دا بهترينه صدقه ده. (مرقات: ۳۹۰/۷)

**طروقة فحل**: فحل اوښ ته وايي او طروقه اوښې ته وايي چې د نر اوښ د جفتي کولو قابله وي. يعنې ځوانه اوښه يو مجاهد ته ورکول بهترينه صدقه ده. معلومه شوه چې د جهاد په لاره کې مال خرچ کول د ټولو لارو نه افضله ده. (مرقات: ۳۹۰/۷)

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۲۶ اخرجه الترمذي في السنن ۱۴۳/۴ رقم الحديث ۱۶۲۵ والنسائي في ۴۹/۶ رقم الحديث ۳۱۸۶

([2]) رقم الحديث ۳۸۲۷ اخرجه الترمذي في السنن ۱۴۴/۴ رقم الحديث ۱۶۲۷ واحمدفي المسند ۲۷۰/۵

## د مجاهد فضيلت

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَلِجُ النَّارَ مَنْ بَكَى |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "هغه کس به دوزخ ته نه ځي |
| مِنْ خَشْيَةِ اللهِ حَتَّى يَعُودَ اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ وَلَا يَجْتَمِعُ عَلَى عَبْدٍ |
| چې د خدای د ويرې نه يې ژړلي وي تر دې چې شوده بېرته تئينو ته بېرته لاړ نه شي او هيڅ بنده باندې |
| غُبَارٌ فِي سَبِيلِ اللهِ وَدُخَانُ جَهَنَّمَ. |
| د الله د لارې ګرد او د دوزخ لوږى يو ځاې کېدى نشي. حاصل دا چې مجاهد به دوزخ ته نه ځي. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَزَادَ النَّسَائِيُّ فِي أُخْرَى: |
| (ترمذي او نسائي کې يو بل روايت کې دا الفاظ هم نقل کړى شوي دي چې "او د هيڅ مسلمان (د پوزې) |
| «فِي مَنْخِرَيْ مُسْلِمٍ أَبَدًا وَفِي أُخْرَى: |
| دواړو سورو کې د خدا د لارې ګرد او د دوزخ لوږى کله هم يو ځاى کېدى نه شي. او د نسائى په روايت کې |
| فِي جَوْفِ عَبْدٍ أَبَدًا وَلَا يَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْإِيمَانُ فِي قَلْبِ عَبْدٍ أَبَدًا[1] |
| دا الفاظ دي چې "د بنده په خېټه کې (د خداى د لارې ګرد او د دوزخ لوږى کله هم يو ځاى کېدى نه شي) |

**توضيح**: منخرى: منخر د پوزې سورې ته وايي يعنې د پوزې سورى.

**الشح**: يعنې هيڅ زړه کې کنجوسي او ايمان نه شي ځاى کېدى. شح او بخل کې دومره فرق دى چې بخل عامه کنجوسۍ ته وايي او شح يو خاص قِسمه کنجوسۍ ته وايي. چې کوم سړى حرامه خوري او د ادا کولو واجب زکوة ورنکړي او د نورو مال خوري. (مرقات : ۳۹۱/۷، ۳۹۰)

**پوښتنه**: دا ده چې د بخل او کنجوسۍ په وجه آيا سړى د ايمان نه خارج کېږي؟

**جواب**: علامه طيبي رحمه الله ورکړى دى. فرمايي. چې د انسان دننه درې شيان دي. چې انسان ترېنه مرکب دى. روح، نفس او زړه. لغوي اعتبار سره زړه ته ځکه زړه وايي چې دې کې د حرکت او د انقلاب معنى پرته ده. وى کېږي دا چې کله دا زړه حرکت کوي نو د روح په صفاتو باندې متصف شي چې زړه پرې روښانه او منور شي. او کله کله چې دا زړه حرکت کوي نو د نفس په صفاتو سره

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۲۸ أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۸/۴ رقم الحديث ۱۶۳۳ والنسائي في ۱۲/۶ رقم الحديث ۳۱۰۷

متصف شي نو ناپاکه شي. د نفس په صفاتو کې یو شح او بخل دی. کله چې زړه د شح او بخل په ناپاکۍ کې ناپاکه شي نو دا تور شي. کله چې زړه تور شي تو د ایمان رڼا ختمه شي، ځکه یې وفرمایل چې شح او ایمان یو ځای کېدی نه شي. (الکاشف: ۳۵۱/۷، ۳۵۰)

**یعود اللبن فی الضرع**: دا د تعلیق بالمحال یو مثال دی، ځکه د تئینو نه لوشلې شوده بېرته تئینو کې نه شي تلی.

| |
|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَيْنَانِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دوه سترګې داسې دي |
| لَا تَمَسُّهُمَا النَّارُ: عَيْنٌ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ |
| چې د (دوزخ) اور به ترېنه نه شي لګېدلی. یوه خو هغه سترګه چې د خدای د وېرې نه یې ژړلي وي. |
| وَعَيْنٌ بَاتَتْ تَحْرُسُ فِي سَبِيلِ اللهِ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| او بله هغه سترګه چې د خدای په لاره (یعنې جهاد) کې (د کفارو نه د مجاهدینو) نه ساتنه کولو کې شپه تېره کړې وي. |

## په جهاد کې لږ وخت تېرول په کور کې د اویا کاله لمونځ نه افضل دی

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَن أَبِي هريرةَ قَالَ: مَرَّ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (د یو سفر دوران کې) د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو صحابي د غره په |
| بِشِعْبٍ فِيهِ عُيَيْنَةٌ مِنْ مَاءٍ عَذْبَةٌ فَأَعْجَبَتْهُ |
| دره باندې تېر شو چې د خوږو اوبو یوه چینه په کې وه، نو هغه چینه په هغې باندې ډېره ښه اولګېدله. |
| فَقَالَ: لَوِ اعْتَزَلْتُ النَّاسَ فَأَقَمْتُ فِي هَذَا الشِّعْبِ |
| هغې وویل چې کاش! زه د خلکو نه جدا والی اختیار کړم او راشم او په دره کې اوسیږم؟ کله چې |
| فَذَكَرَ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته د دې خبرې ذکر وکړی شو نو نبي کريم ﷺ (هغه صحابي) ته وفرمایل چې |
| «لَا تَفْعَلْ فَإِنَّ مَقَامَ أَحَدِكُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| "ته داسې نه کوه ځکه تاسو کې چې تاسو کې د یو کس د الله په لاره (یعنې جهاد کې) قیام کول |

---

[1] رقم الحديث ۳۸۲۹ اخرجه الترمذي في السنن ۱۵۰/۴ رقم الحديث ۱۶۳۹.

أفضل من صلاته سَبْعِينَ عَامًا أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللهُ لَكُمْ

کور کې د اویا کالو لمونځ کولو نه بهتر دی. آیا تاسو دا نه خوښوئ چې الله تعالی او بخښي او

وَيُدْخِلَكُمُ الْجَنَّةَ؟ اغْزُوا فِي سَبِيلِ اللهِ مَنْ قَاتَلَ

تاسو (په ابتداء کې) جنت ته داخل کړي. د خدای په لاره کې جهاد کوئ (ځکه) کوم کس چې د خدای په لاره کې

فِي سَبِيلِ اللهِ فَوَاقَ نَاقَةٍ وَجَبت لَهُ الْجَنَّة. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

د اوښې د لوشلو په قدر (یعنې د لږ ساعت لپاره) هم جهاد وکړو د هغې لپاره جنت واجب کړی شو".

## د زرو ورځو د عبادت نه جهاد افضل عمل دی

﴿۴۳﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت عثمان رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ نه نقلک وي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "د الله

رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ

په لاره یعنې (جهاد) کې د کفر په سرحدونو باندې یو ورځ هم د چوکیدارئ په خدمت کې تېرول د

خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ يَوْمٍ فِيمَا سِوَاهُ مِنَ الْمَنَازِلِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ[2]

کورونو د عبادتونو د زرو ورځو پورې د مشغول کېدلو نه بهتر دی". (ترمذی، نسائی)

## جنت ته اول داخلیدونکې خلک

﴿۴۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "عُرِضَ عَلَيَّ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل زما مخې ته اول هغه درې

أَوَّلُ ثَلَاثَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ: شَهِيدٌ

کسان پیشنهاد کړی شول (په شروع کې به) جنت ته داخلیږي. هغې کې څو یو کس شهید دی.

وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ وَعَبْدٌ أَحْسَنَ

دویم هغه کس دی چې د حرامو نه ځان بچ کړي او سوال نه کوي او دریم کس هغه غلام دی چا چې د خپل الله (هم) ښه اطاعت

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۳۰ أخرجه الترمذي في السنن ۱۵۵/۴ رقم الحديث ۱۶۵۰ وأحمد في المسند ۵۲۴/۳

([2]) رقم الحديث ۳۸۳۱ أخرجه الترمذي في السنن ۱۶۲/۴ رقم الحديث ۱۶۶۷ والنسائي في ۴۰/۶ رقم الحديث ۳۱۶۹

| |
|---|
| عبادةَ اللهِ ونصح لمواليه". رَوَاهُ التِّرمِذِيّ[۱] |
| او عبادت وکړو او د خپل مالکانو یې خیر خواه ؤو". |

**توضیح**: دا خلک به د انبیاؤ نه وروسته د ټولو نه اول جنت ته داخلیږي او صرف دریږ کسان نا بلکې درې قسمه خلک به وي چې په اول نمبر کې به شهیدان وي، بیا به پاکدامن خلک وي چې د فسق او فجور او د سوال نه محفوظ ؤو. دریم نمبر باندې فرمانبرداره غلام دی چې اسلام یې قبول کړی ؤو او د مولی اطاعت کړی وي.

## افضل مجاهد او افضل شهید

| |
|---|
| ﴿۴۵﴾ وَعَن عبدِ الله بنِ حُبشِيّ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ |
| او د حضرت عبد الله ابن حبشی رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روایت دی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل شو چې |
| أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: |
| (د لمونځ د) عملونو (په ارکانو کې) کوم یو عمل (رکن) افضل دی؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| طُولُ الْقِيَامِ قِيلَ: فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: جُهْدُ الْمُقِلِّ |
| "اوږد قیام کول" وپوښتلی شو "کومه صدقه افضله ده". ویې فرمایل "د مفلس او محتاجه کوشش کول، یعنې هغه خیرات |
| قِيلَ: فَأَيُّ الْهِجْرَةِ أَفْضَلُ؟ |
| افضل دی چې یو مفلس او محتاجه د خپلې ولږې باوجود محنت او مشقت کوي" وپوښتلی شو "کوم هجرت بهتر دی"؟ |
| قَالَ: مَنْ هَجَرَ مَا حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِ |
| ویې فرمایل "د هغه کس هجرت چې هغه شي پریږدي چې الله حرام کړی دی یعنې که د هجرت معنی دارالکفر |
| قِيلَ: فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: مَنْ جَاهَدَ |
| پریښودل او دار السلام اړخ ته تلل دي وپوښتلی شو "کوم جهاد بهتر دی." ویې فرمایل "د هغه کس جهاد چې |
| الْمُشْرِكِينَ بِمَالِهِ وَنَفْسِهِ. قِيلَ: فَأَيُّ |
| په خپل مال او د خپل نفس په ذریعه د مشرکانو سره جهاد وکړي". وپوښتلی شو "جهاد کې کومه |

(۱) رقم الحديث ۳۸۳۲ أخرجه الترمذي في السنن ۱۵۱/۴ رقم الحديث ۱۶۴۲ وأحمد في المسند ۴۲۵/۲

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْقَتْلِ | أَشْرَفُ؟ | قَالَ: | مَنْ | أُهْرِيقَ دَمُهُ |
| وژنه بهتره ده یعنې کوم شهید افضل دی"؟ ویې فرمایل "د هغه کس وژنه چې د هغې وینه تویه کړی شي | | | | |
| وَعُقِرَ | جَوَادُهُ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[1] | |
| او د چا د اَس د څټ وینتهان چې غوځ کړی شي یعنې خپله هم ؤوژلی شي او د هغې اَس هم ؤوژلی شي". | | | | |
| وَفِي رِوَايَةٍ للنسائي: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ: أَيُّ الأعمالِ أفضلُ؟ | | | | |
| او د نسائی په روایت کې داسې دي چې د نبي کریم ﷺ وپوښتلی شو چې "اعمالو کې کوم عمل افضل دی"؟ | | | | |
| قَالَ: | إِيمَانٌ | لَا | شَكَّ | فِيهِ وَجِهَادٌ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "هغه ایمان چې هیڅ قسمه شک په کې نه وي. هغه جهاد چې هغې (د حاصل کړی شوي | | | | |
| لَا غُلُولَ | فِيهِ | وَحَجَّةٌ مَبْرُورَةٌ. | قِيلَ: | فَأَيُّ الصَّلَاةِ |
| مال غنیمت باره کې) هیڅ قسمه خیانت نه وي کړی شوی او حج مقبول". بیا وپوښتلی شو چې "لمونځ کې کوم شی | | | | |
| أَفْضَلُ؟ | قَالَ: | طُولُ الْقُنُوتِ. | ثُمَّ اتفقا | فِي الْبَاقِي |
| افضل دی"؟ ویې فرمایل "اوږد قیام کول". د دې نه وروسته د حدیث الفاظ (ابوداؤد او نسائی) یو شان نقل کړي دي. | | | | |

**توضیح:** افضل یو نوع دی چې صرف یو عمل په کې نه راځي بلکې د نوع د لاندې ډېر عملونه افضل کېدی شي.

**جهد المقل:** یعنې بې وسه او بې کسه غریب مفلس چې کومه صدقه کوي هغه ډېره ښه ده. دلته د دم نه مراد د وینې تویدل دي. یعنې خپله شهید شي.

**عقر جواده:** یعنې د هغې اَس هم ؤوژلی شي. دغه شان دې کس خپله ټوله سرمایه قربان کړه. (مرقات: ۳۹۵/۷) ګویا:

جو پاس تھا وہ سب لوٹا ہی دیا حق تو یہ ہے کہ حق ادا ہی کیا

## د شهید شپږ امتیازي نښانې

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " |
| او حضرت مقدام ابن معدی کرب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "د الله په نزد |

[1] رقم الحديث أخرجه ابوداود في السنن ۱۴۶/۲ رقم الحديث ۱۴۴۹ والنسائي في ۵۸/۵ رقم الحديث ۲۵۲۶

| |
|---|
| لِلشَّهِيدِ عِنْدَ اللهِ سِتُّ خِصَالٍ: يُغْفَرُ لَهُ فِي أَوَّلِ دفعةٍ |
| د شهيد لپاره شپږ (۶) خصلتونه (يعنې شپږ امتيازي) انعامونه دي ۱: په اولني ځل به د دې مغفرت کېږي |
| وَيَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَيُجَارُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ |
| ۲: دې ته به (د ساه ويستلو وخت کې) خپله ځای ښودلی کېږي ۳: هغه به د عذاب قبر نه محفوظ وي |
| وَيَأْمَنُ مِنَ الْفَزَعِ الْأَكْبَرِ وَيُوضَعُ عَلَى رَأْسِهِ تَاجُ الْوَقَارِ الْيَاقُوتَةُ مِنْهَا |
| ۴: هغه به د لوئې وېرې (يعنې د اور د عذاب) نه په امن کې وي ۵: د دې په سر باندې به د عظمت او وقار تاج کېښودلی شي |
| خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا ويزوّجُ ثنتينِ وَسَبْعِينَ زَوْجَةً مِنَ الْحُورِ الْعِينِ |
| چې ياقوت به يې د دنيا او د هغې د ټولو شيانو نه بهتر او ګران وي ۶: د هغې په زوجيت کې به د لوې سترګو والا حورې |
| وَيُشَفَّعُ فِي سَبْعِينَ مِنْ أَقْرِبَائِهِ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ[1] |
| ورکړی کيږي او د هغې د خپلو خپلوانو نه د اويا (۷۰) کسانو په حق کې د دې شفاعت قبول کړی کېږي. |

**توضيح**: **اول دفعة**: دال باندې زبر او پيش دواړه کېدی شي. د شهيد د بدن نه د وينې اولنۍ قطره چې په زمکه باندې غورځېږي هغه مراد ده. مطلب دا چې د وينې دغه اولنۍ قطره ليدلو سره شهيد بخښلی کېږي. (مرقات: ۳۹۷/۷)

**ويُرى**: يعنې د ساه وتلو وخت کې شهيد ته د هغې مقام ښودلی کېږي. دا دواړه خصلتونه په يو خصلت کې شمارل پکار دي چې د حديث شپږ تعداد برقرار پاتې شي. ګنې اؤوه خصلتونه به شي. (مرقات: ۳۹۷/۷)

**الفزع الاكبر**: د لويې وېرې نه د قرآن د دې آيت اړخ ته اشاره ده "لايحزنهم الفزع الاكبر" د دې نه يا د قيامت نفخه اخره مراد ده يا د جهنم عذاب مراد دی يا اور ته تلل مراد دي يا د قبر عذاب مراد دی. (مرقات: ۳۹۷/۷)

**سبعين**: يعنې د خپلو خپلوانو کې به د اويا (۷۰) داسې کسانو شفاعت کوي چې د هغوی لپاره به د دوزخ فيصله شوې وي.

د ځينې علماؤ نه ما اورېدلي دي چې د شهيد په دې اعزاز کې دا خصوصيت هم دی چې هغې ته اختيار وي چې د دې امت د کسانو شفاعت وکړي يا په مخکنې امتونو کې د چا شفاعت وکړي او د اويا ؤ شمېر پوره کړي، هېڅ پابندي به پرې نه وي. (مرقات: ۳۹۸/۷)

[1] ) رقم الحديث ۳۸۳۴ اخرجه الترمذي في ۱۶۱/۴ رقم الحديث ۱۶۶۳ وابن ماجه في ۹۳۶/۲ رقم الحديث ۲۷۹۹

## څوک چې جهاد ونه کړي ایمان به یې ناقص وي

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَقِيَ اللهَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "کوم کس چې د الله په در |
| بِغَيْرِ أَثَرٍ مِنْ جِهَادٍ |
| کې په داسې حال کې حاضر شي چې هغې باندې د جهاد هیڅ اثر نه وي ګویا کې د الله سره په داسې |
| لَقِيَ اللهَ وَفِيهِ ثُلْمَةٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| حال کې ملاویږي چې د هغې دین به ناقص وي". |

**توضيح**: **بغير اثر**: د اثر نه مراد جسماني زخم هم کېدی شي. چې ظاهري اثر به وي او ښکاري به. دغه شان د دې نه معنوي اثر هم مراد کېدی شي چې د جهاد په لاره کې به د ګرد او دوړو لړېدلو سره جوړېږي یا جهاد کې د مال خرچ کولو سره او د نورو مشقتونو برداشت کولو سره حاصلیږي. بهرحال یو مسلمان باندې لازم دي چې د جهاد په وجه هغې ته جهاد ظاهري یا جهاد معنوي علامت حاصل شي. چې د هغې د ایمان د پوره کېدلو سند به جوړ شي. (مرقات: ۳۹۷/۷)

**ثلمة**: ثا باندې ضمه ده او لام ساکن دی. نقصان او خلل ته وايي. یعني که د قیامت په ورځ د چا په بدن باندې د جهاد ظاهري یا معنوي علامت نه وي نو د هغې ایمان به ناقص وي.
ځېنې خلک وايي چې اول ایمان جوړ کړئ بیا جهاد ته لاړ شئ. حال دا چې حدیث وايي چې د جهاد نه بغیر ایمان نه جوړېږي. (مرقات: ۳۹۸/۷)

## شهيد د مرګ د تکلیف نه محفوظ وي

| |
|---|
| ﴿۴۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الشَّهِيدُ لَا يَجِدُ أَلَمَ الْقَتْلِ إِلَّا كَمَا يَجِدُ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "شهيد د خپل مرګ بس دومره تکليف |
| أَحَدُكُمْ أَلَمَ الْقَرْصَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[2] |
| محسوسوي لکه څومره تکليف چې تاسو کې يو کس ته د مېږي په چيچلو محسوسېږي. |

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۳۵ أخرجه الترمذي في السنن ۱۶۲/۴ رقم الحديث ۱۶۶۶ وابن ماجه في ۹۲۳/۲ رقم الحديث ۲۷۶۳

([2]) رقم الحديث ۳۸۳۶ أخرجه الترمذي في السنن ۱۶۳/۴ رقم الحديث ۱۶۶۸ والنسائي في السنن ۳۶/۶ رقم الحديث ۳۱۶۱ .

**توضیح**: **الم القرصة**: الم درد ته وايي او قرصه د مېږي چيچلو وايي يا په دوه ګوتو باندې تق کولو ته وايي. مطلب دا دی چې شهيد به د شهادت د خوند په وجه د مرګ تکليف نه محسوسوي. دا احتمال هم دی چې د آخرت د نعمتونو د کتلو په وجه به هغه تکليف د مېږي د چيچلو برابر ګڼلی کېږي. د مېږي چيچلو په وجه بدن کې خوږ خوږ درد محسوسېږي. (مرقات: ۳۹۹/۷)

## جهاد کې توېدونکی قطره دوينې محبوب ترين شی دی

| |
|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَيْسَ شَيْءٌ |
| او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم ﷺ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د |
| أَحَبَّ إِلَى اللهِ مِنْ قَطْرَتَيْنِ وَأَثَرَيْنِ: قَطْرَةِ دُمُوعٍ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ |
| خداى په نزد د دوه قطرو او د نښانو نه زيات محبوب هيڅ يو شی نه دی. يو خو د خداى د وېرې نه توېږي شوې |
| وَقَطْرَةِ دَمٍ يُهْرَاقُ فِي سَبِيلِ اللهِ وَأَمَّا الْأَثَرَانِ: |
| او ښکو قطره ده او دويمه قطره د وينې ده چې د خداى په لاره توېه شوې ده، نو دوه نښانو کې يوه |
| فَأَثَرٌ فِي سَبِيلِ اللهِ وَأَثَرٌ فِي فَرِيضَةٍ |
| نښانه خو هغه ده چې د الله په لاره جهاد کې قائم شوې وي چې د الله د اړخ نه په فرض کړې شوې |
| مِنْ فَرَائِضِ اللهِ تَعَالَى". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
| شيانو کې د يو فرض شي په سلسله کې پيدا شوې وي". (روايت کړې دی ترمذی) |

**توضیح**: **اثران**: يو اثر خو د جهاد د عمل نه دی چې تفصيل يې تېر شوی دی. دويم اثر د عبادت فريضه ده چې په ژمي کې په عبادت باندې لاس او پښې اوچوي. ياد سجده په اندامونو باندې نښان جوړ شي يا د روژه دار د خولې نه د خشبوې اثر ظاهرېږي يا د حاجي په بدن باندې د حج دوران کې د ګرد او دوړو لړېدلو نه اثر ظاهرېږي. دا د فرائضو اثر دی. (مرقات: ۳۹۹/۷)

## په سمندر کې سفر د سخت ضرورت نه بغير مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۵۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَرْكَبِ الْبَحْرَ |
| او حضرت عبد الله ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل " تاسو په ارادې |

(۱) رقم الحديث ۳۸۳۷ اخرجه الترمذي في السنن ۱۶۳/۴ رقم الحديث ۱۶۶۹

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | حَاجًّا | أَوْ | مُعْتَمِرًا | أَوْ | غَازِيًا | فِي | سَبِيلِ | اللهِ فَإِنَّ |
| سره د حج یا عمره یا د الله په لاره کې جهاد ته د تللو نه بغیر په دریاب کې سفر مه کوئ، ځکه د | | | | | | | | |
| تَحْتَ الْبَحْرِ نَارًا وَتَحْتَ النَّارِ بَحْرًا . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] | | | | | | | | |
| دریاب د لاندې اور دی او د اور د لاندې دریاب دی". | | | | | | | | |

**توضیح** لاتركب البحر: یعنې حج او عمره او جهاد لپاره په سمندر کې سفرکوئ. د دې نه بغیر سمندر کې د سفر کولو کوشش مه کوئ، ځکه د سمندر د لاندې اور دی. دا کلام یا حقیقت باندې محمول دی چې رښتیا هم د سمندر لاندې اور دی. چې د کوم اړخ ته د "والبحر المسجور" کې اشاره موجود ده. د دې اور د لاندې بیا اوبه دي. او بیا هوا ده. دا ټول د الله په قدرت باندې قائم دي. یا دا کلام مجاز باندې محمول دی یعنې د سمندر دننه سختې خطرې موجودې دي. غرق کېدلو قوې امکانات دي. لهذا د ضروري سفر نه بغیر د دې سفر کول پکار نه دی. (مرقات : ۴۰۰/۷)

بدریائے منافع بیشمار است — اگر خواہی سلامت بر کنار است

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۵۱﴾ وَعَنْ أُمِّ حَرَامٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الْمَائِدُ فِي الْبَحْرِ | | | |
| او د حضرت ام حرام رضی الله عنها نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل دریاب او سمندر کې چې په | | | |
| الَّذِي | يُصِيبُهُ | الْقَيْءُ | لَهُ |
| کوم کس باندې تاوېدل شروع شي او د هغې په وجه هغې ته وجه هغې ه کانګې ورځې نو هغې ته به | | | |
| أَجْرُ | شَهِيدٍ | وَالْغَرِيقُ | لَهُ |
| د یو شهید ثواب ملاوېږي او کوم کس چې د سفر دوران کې دریاب کې ډوب شي نو هغې ته به د | | | |
| أَجْرُ شَهِيدَيْنِ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2] | | | |
| دوه شهیدانو ثواب ملاوېږي. | | | |

**توضیح** المائد: ما دیمید نه د المائد اسم فاعل دی. د سر ګرځېدلو او تاوېدلو ته وایي. سمندر کې داسې کېږي. سمندرو څپې او د طوفان په وجه داسې کېږي. بیا کانګې سرې له ورځي. کانګو چې کوم مقید دی، دا

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۳۸ أخرجه ابوداود في السنن ۱۳/۳ رقم الحديث ۲۴۸۹.

([2]) رقم الحديث ۳۸۳۹ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵/۳ رقم الحديث ۲۴۹۳.

اتفاقي دی. کانګې که وي یا نه وي مجاهد ته په سمندر کې د دې سفر ثواب ملاوېږي. د حج او علم په سفر کې هم دغه شان ثواب ملاوېږي، خو د تجارت لپاره چې کوم سفر کېږي. هغې کې دا ثواب نشته دی. (مرقات: ۴۰۱/۷)

## په جهاد کې هر قسمه مرګ د شهادت دی

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾ وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الأشعريِّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ |
| او حضرت ابو مالک اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د نبي کریم ﷺ نه دا اوریدلي دي چې کوم کس |
| فَصَلَ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| د الله په لاره کې (یعني د جهاد پشان د مقصدونو لپاره د کور) نه ؤوتلو (او د زخمي کېدلو په وجه) |
| فَمَاتَ أَوْ قُتِلَ أَوْ وَقَصَهُ فَرَسُهُ أَوْ بَعِيرُهُ أَوْ لَدَغَتْهُ |
| مړ شو یا هغې ؤوژلی شو یا د هغې آس یا اوښ هغه د پښو لاندې چیت کړو یا یو زهریله ښاروی |
| هَامَّةٌ أَوْ مَاتَ فِي فِرَاشِهِ بِأَيِّ حَتْفٍ شَاءَ اللهُ |
| (لکه مار وغیره) هغه وخوړلو او یا (د یوې بیمارۍ په وجه یا ناڅاپه) د الله په خوښه باندې خپله بستره مړ شو نو هغه |
| فَإِنَّهُ شَهِيدٌ وَإِنَّ لَهُ الْجَنَّةَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| (هر صورت کې) شهید دی (یعني هغه به په ابتداء کې د شهیدانو او د صالحانو سره به) جنت ته داخلېږي. |

**توضیح: وقصه:** یعني آس غوزار کړو او څټ یې مات شو. (مرقات: ۴۰۲/۷)

**اولدغ:** ټک لږول او د خوړلو په معنی کې دی. **هامة:** زهریله ځناورته وایي لکه مار او لړم وغیره حشرات الارض دي. **حتف:** طبعي مرګ ته حتف وایي. (مرقات: ۴۰۲/۷)

## مجاهد کور ته ترېېرته راتللو پورې جهاد کې شمارل کېږي

| |
|---|
| ﴿۵۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او د حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "جهاد نه |
| قَفْلَةٌ كغزوة. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| بېرته راتلل هم د جهاد پشان دی". |

[1] رقم الحديث ۳۸۴۰ أخرجه ابوداود في السنن ۱۹/۳ رقم الحديث ۲۴۹۹

[2] رقم الحديث ۳۸۴۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۲/۳ رقم الحديث ۲۴۸۷ وأحمد في المسند ۱۷۴/۲

**توضيح**: **قفلة**: د جهاد نه چې سړی بېرته کور ته راروان وي، دغه بېرته راتللو ته قفلة ويلی شوي دي. ګوياکې د ميدان جهاد نه په وتلو سره چې تر څو پورې يو کس کور ته نه وي رارسيدلی، تر هغه وخت پورې هغه په جهاد کې شمارل کېږي. ثواب ورته ملاوېږي. (مرقات : ۴۰۲/۷)

## يو مجاهد جهاد ته د لېږلو ثواب

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۵۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لِلْغَازِي | | |
| او حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل "جهاد کونکي ته د | | |
| أَجْرُهُ | وَلِلْجَاعِلِ | أَجْرُهُ |
| هغې خپل اجر ملاوېږي (يعني د مجاهد لپاره چې د جهاد کوم مخصوص اجر دی هغه هغې ته پوره ملاوېږي) | | |
| وَأَجْرُ | الْغَازِي. رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] |
| او جاعل يعني مال ورکونکي ته د هغې خپل ثواب ملاوېږي او د جهاد کونکي هم". | | |

**توضيح**: **وللجاعل**: جاعل هغه کس ته وايي چې غازي ته مال ورکړي او جهاد ته يې روان کړي. هغه کس ته دوه چنده ثواب ملاوېږي. يو خو د مال د خرچ کولو او بل غازي جهاد ته د لېږلو. دا کس که صرف معاون دی نو دې کې د هيڅ يو کس اختلاف نشته دی چې دې ته به دوه چنده ثواب ملاوېږي، نو ابن مالک رحمه الله فرمايي چې د دې جاعل نه مراد هغه کس دی چې هغه په مزدوری باندې کس جهاد ته لېږي او اجرت ورکوي او خپله د جهاد نه پاتې شي. د احنافو په نزد د دې مزدور جهاد هم صحيح دی او لېږونکې ته به هم ثواب ملاوېږي، خو د شوافعو په نزد دا ناجائز دي. د دې مسئلې تفصيل هم راروان دی. څه لږ انتظار وکړئ. (مرقات : ۴۰۳/۷)

## اجرتي مجاهد کېدل ډير بد دي

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۵۵﴾ وَعَنْ أَبِي أَيُّوب سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: | | |
| او د حضرت ابو ايوب رضي الله عنه نه روايت دی چې هغې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم نه دا اورېدلي دي چې | | |
| سَتُفْتَحُ | عَلَيْكُمُ الْأَمْصَارُ | وَسَتَكُونُ |
| "نژدې ته چې ستاسو لپاره به (لوي لوي) ښارونه فتح شي او د لښکرو به جدا جدا ډېر بيرغونه وي | | |

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۴۲ أخرجه ابوداود في السنن ۳۶/۳ رقم الحديث ۲۵۲۶ واحمد في المسند ۱۷۴/۲

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جُنُودٌ | مُجَنَّدَةٌ | يُنْطَعُ | عَلَيْكُمْ | فِيهَا | بُعُوثٌ | فَيَكْرَهُ | الرَّجُلُ | الْبَعْثَ | |

چې ستاسو لپاره به په کې لښکرې مقررې کړی شي نو کوم کس چې بغير د اجرت نه جهاد نه خوښوې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيَتَخَلَّصُ | مِنْ | قَوْمِهِ | ثُمَّ | يَتَصَفَّحُ | الْقَبَائِلَ |

نو هغه به د خپل قوم نه وتښتي او بيا به نورې قبيلې ګورې او هغوی ته به خپل خدمتونه وړاندې کوي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَعْرِضُ | نَفْسَهُ | عَلَيْهِمْ | مَنْ | أَكْفِيهِ |

او وايي به چې کوم يو کس دی چې زه ورته ديو داسې لښکر اړخ نه کافي شم (يعنې هغه څوک دی چې زما خدمت په اجرت باندې واخلي

| | | |
|---|---|---|
| بَعْثَ | كَذَا | أَلَا |

او ما نوکر کړي چې زه د هغې له اړخه لښکر ته لاړ شم او د جنګ محنت او مشقت په خپله ذمه واخلم. حاصل دا چې هغه کس خبردار!

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَذَٰلِكَ | الْأَجِيرُ | إِلَى | آخِرِ | قَطْرَةٍ |

هغه کس به د خپلې وينې تر آخري قطرې پورې مزدور وي يعنې داسې کس مجاهد يا غازې ګڼل

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنْ | دَمِهِ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] |

بلکې هغه د کرايه ټټو دی. چې د نورپر ځای په ميدان کې جنګيږې تر دې چې ؤوژلی شي".

**توضيح**: **جنود مجندة**: يعنې ستاسو به جدا جدا بيرغونه وي او د لښکرونو به مولوي لوي ډلې وي.

**يقطع عليكم**: يعنې د لښکر امير چې کله تاسو کې يوه ډله جدا کړي او جنګ ته يې روانه کړي نو يو کس به دا تګ نه خوښوي بلکې د اجرت او مزدورۍ په غرض به جدا شي او بيا به خپل ځان قبائلو ته وړاندې کړي چې ما په اجرت او مزدورۍ باندې لېږلو ته څوک تيار دی چې زه د هغې اړخ نه د هغې لپاره کافي شم. هغه دې زما د کور اخراجات پوره کړي او زه د هغې له اړخه جهاد ته لاړ شم. ويې فرمايل چې د وينې تر آخرۍ قطره پورې به هغه مزدور وي. د جهاد ثواب به ورته نه ملاويږي. د مالکيؤ او د احنافو په نزد په اجرت باندې جهاد کول جائز دي، خو د شوافعو په نزد بالکل منع دی. د بحث لاندې حديث د شوافعو په حق کې دی. (مرقات : ۴۰۴/۷)

(۱) رقم الحديث ۳۸۴۳ أخرجه ابوداود في السنن ۳۵/۳ رقم الحديث ۲۵۲۵ واحمد في المسند ۴۱۳/۵

## په اجرت باندې جهاد ته د تللو حکم

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾ وَعَن يَعْلى بن أُمَيَّةَ قَالَ: أَذِنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالغزو |
| او حضرت يعلى ابن اميه رضي الله عنه فرمايي چې (يو موقع باندې) نبي کريم صلى الله عليه وسلم خلک جهاد ته د تللو لپاره خبر کړه |
| وَأَن شَيْخٌ كَبِيرٌ لَيْسَ لِي خَادِمٌ |
| نو دا چې زه ډېر بوډه وم او ما سره هيڅ يو خادم هم نه ؤو، نو ځکه ما يو داسې مزدور و کتلو (چې د جهاد دوران |
| فَالْتَمَسْتُ أَجِيرًا يَكْفِينِي فَوَجَدْتُ رَجُلًا سَمَّيْتُ لَهُ ثَلَاثَةَ دَنَانِيرَ |
| کې زما ساتنه وکړې شي) نو ما يو کس وموندلو چې د هغې اجرت ما درې ديناره مقرر کړه. بيا (د جهاد د نه |
| فَلَمَّا حَضَرَتْ غَنِيمَةٌ أَرَدْتُ أَنْ أُجْرِيَ لَهُ سَهْمَهُ |
| وروسته) چې کله مال غنيمت راغلو نو ما اراده وکړه چې (د دې مال غنيمت نه) د دې کس برخه هم وکړي، نو |
| فَجِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ لَهُ |
| (د دې مسئله باره کې د معلوماتو لپاره) د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شوم او صورت حال مې ورته بيان |
| فَقَالَ: مَا أَجِدُ لَهُ فِي غَزْوَتِهِ هَذِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ |
| کړو. نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل "ما ته د دغه کس لپاره د دې جهاد متعلق په دنيا او آخرت کې بغير د دې دينارو نه |
| إِلَّا دَنَانِيرَهُ الَّتِي تسمى. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| چې مقرر کړې شوې دي بل هيڅ شی نه ملاوېږي". |

**توضيح**: الادنانيره: يعنې هغه اجرتي مجاهد ته به د دينارو نه بغير بل هيڅ نه ملاوېږي. د علماء کرامو په دې اختلاف دی چې د اجرتي غازي ته به د مال غنيمت نه برخه ورکړې کېږي او که نه به ورکړې کېږي. امام اوزاعی او اسحاق بن راهويه او په يو قول کې امام شافعي فرمايي چې دا کس مزدور دی. دا که ميدان جهاد کې جنګ وکړي يا نه دې ته به په مال غنيمت کې برخه نه ملاوېږي.
امام مالک رحمه الله او مام احمد نب حنبل رحمه الله فرمايي چې دې کس ته به په هر حال کې برخه ورکړې کېږي. د احنافو د اصولو او د قواعدو تقاضا هم دغه ده. ځينې علماؤ دا لار اختيار کړې ده چې هغه کس ته اختيار دی چې د مزدورې روپۍ واخلي يا هغه پرېږدي او د مال غنيمت نه برخه

---

(1) رقم الحديث ۳۸۴۴ اخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۷ رقم الحديث ۲۵۲۷ واحمدفي المسند ۴/۲۲۳

واخلي. ظاهري حدیثونه د شوافعو په حق کې دي. (مرقات : ۴۰۵/۷)

## صرف د دنیا لپاره جهاد کولو باندې ثواب نه ملاویږي

﴿۵۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رسولَ الله رجلٌ يُرِيدُ الْجِهَادَ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو کس عرض وکړو "یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! یو کس

فِي سَبِيلِ اللهِ وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضاً من عرَضِ الدُّنْيَا

د الله په لاره کې د جهاد کولو اراده لري حال دا چې هغه (د دې جهاد په ذریعه) د دنیا د مال او د اسبابو خواهشمند دی"؟

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا أجر لَهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د دې په نصیب کې ثواب نشته دی.

**توضیح:** عرضاً: دنیاوي سازوسامان ته عرض ویلی شوی دی. یعنې کوم کس چې په اخلاص نیت او د اعلاء کلمة الله په غرض نه بلکې د دنیا د اسباب او د سامان لپاره جهاد کوي، نو هغه د آخرت د ثواب نه محرومه کېږي. ظاهره خبره ده چې یو کس دومره لویې جهاد د دومره سپکې دنیا لپاره برباد دې او خپله هم په زړه کې د ثواب نیت نه کوي، نو ولي خپله به هغې پسې ثواب ونبنلي څه؟ داسې هیڅ کله نه شي کېدی. د دې حدیث د نظر لاندې که چرته د اسلامي ملکونو فوجونه صرف د مزدورۍ په غرض فوج کې د خلېږي نو هغوی ته به هم ثواب نه ملاویږي. (مرقات : ۴۰۶/۷)

## د حقیقي مجاهد پېژندنه

﴿۵۸﴾ وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْغَزْوُ

او حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې جهاد په دوه قسمه وي، نو کوم کس چې د الله د رضا لپاره جهاد کې شرکت

غَزْوَانِ فَأَمَّا مَنِ ابْتَغَى وَجْهَ اللهِ وَأَطَاعَ الْإِمَامَ وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ

وکړو او د امام اطاعت یې وکړو، خپل پاک مال او خپل پاک نفس یې د خدای په لاره کې خرچ کړو او خپل

وَيَاسَرَ الشَّرِيكَ واجتنب الْفساد

شریکوال سره بنه معامله وکړه او د فتنې او فساد نه بچ شول (یعنې د لوټلو، ورانی کولو او د خیانت کولو

---

[1]) رقم الحدیث ۳۸۴۵ أخرجه ابوداود في السنن ۳۰/۳ رقم الحدیث ۲۵۱۶ واحمدفي المسند ۲۹۰/۲

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِن | نَومه | ونهبه | أَجْرٌ | كُلُّهُ. | |

په ذريعه يې د شريعت د حدودو نه تجاوز ونه کړو) نو د هغې اوده کېدل او پاڅېدل ټول اجر او ثواب دي. او

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَمَّا | مَنْ | غَزَا | فَخْرًا | وَرِيَاءً | وَسُمْعَةً | وَعَصَى | الْإِمَامَ |

کوم کس چې د فخر په طريقه (يعنې د شهرت) او ښودنې لپاره جهاد وکړو، د امام نافرمانۍ يې وکړه او په مځ د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَفْسَدَ | فِي | الْأَرْضِ | فَإِنَّهُ | لَمْ |

زمکه يې فتنه او فساد خور کړو نو هغه هيڅ بدله د ځان را نوړي يعنې د غه جهاد کولو سره خو به نه د هغې

يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ. رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1]

گناهونه وبخښلی شي او نه به هغې ته هيڅ ثواب ملاؤ شي.

**توضيح: انفق الكريمة:** يعنې په جهاد کې يې خپل غوره مال خرچ کړو.

**ياسر:** يعنې خپلو ملګرو سره په نرمۍ سره ملاؤ شو. (مرقات: ۴۰۶/۷)

**عصى الامام:** يعنې د وخت د امير نافرمانې هم کوي. او د خپل جهادې امير هم نافرمانې هم کوي. هر وخت فساد کوي. تبليغات کوي. (مرقات: ۴۰۶/۷)

**بالكفاف:** كفاف برابرۍ ته وايې. يعنې دا كس به برابر بېرته را نشي چې نه يې ګناه وي او نه يې ثواب وي بلکې دا به د ګناه سره بېرته راځي او که چرته د کفاف نه ثواب مراد واخستلی شي نو مطلب به دا وي چې دا کس د ثواب ګټلو سره بېرته را نشي. (مرقات: ۴۰۷/۷)

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۹﴾ وَعَن | عبد | الله | بن | عَمرو | أَنَّهُ | قَالَ: | يَا | رَسُولَ اللهِ |

او د حضرت عبدالله ابن عمرو ابن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغې عرض وکړو "يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَخْبِرْنِي | عَنِ | الْجِهَادِ | فَقَالَ: |

ماته د جهاد باره کې او وايه (څنګه جهاد ثواب حقدار دی؟) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل!

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَا | عَبْدَ | اللهِ | بْنَ | عَمْرٍو | إِنْ | قَاتَلْتَ | صَابِرًا | مُحْتَسِبًا |

اې عبدالله ابن عمرو! که ته په داسې حال کې جنګ وکړې چې صبر کونکې او ثواب غوښتونکی يې،

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۴۶ أخرجه ابوداو في السنن ۳۰/۳ رقم الحديث ۲۵۱۵ وأخرجه النسائي في السنن ۴۹/۶ رقم الحديث ۳۱۸۸

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَعَثَكَ | اللهُ | صَابِرًا | مُحْتَسِبًا |
| نو الله تعالى به تا (د قیامت په ورځ) د صبر کونکی او ثواب غوښتونکی راپاڅوي او که ته د ځان | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ | قَاتَلْتَ | مُرَائِيًا | مُكَاثِرًا | بَعَثَكَ | اللهُ | مُرَائِيًا |
| ښودنې او د زور ښودلو لپاره جنګیږې، نو الله تعالى به تا (د قیامت په ورځ) د ځان ښودونکی او | | | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مُكَاثِرًا | يَا | عَبْدَ | اللهِ | بْنَ | عَمْرٍو | عَلَى | أَيِّ | حَالٍ |
| زور ښودونکی راپاڅوي. ای عبد الله ابن عمرو (یاد وساته) چې په کوم حال کې جنګیږې یا په کوم | | | | | | | | |

| |
|---|
| قَاتَلْتَ أَوْ قُتِلْتَ بَعَثَكَ اللهُ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| حال کې مړ شې نو الله تعالى به دې په هم هغه حال کې راپاڅوي". |

**توضيح**: **محتسبا**: د ثواب په نیت کار کولو ته وايي. **بعثك الله**: قیامت کې د راپاڅولو په معنی کې دی.
**مرائيا**: د ریاکارۍ او ځان ښودنې په معنی کې دی. **مكاثراً**: د ځان ښودنې او د خپلې لوی ښکاره کولو لپاره يې چې کوم کار وکړی شي، د هغې لپاره د مکاثر لفظ ویلی کیږي. شارحینو د مکاثر مطلب د مال زیاتول هم اخستی دی چې صرف د مال جمع کولو لپاره جنګ کوي. دا مطلب ډېر واضح دی. (مرقات: ۴۰۹/۷)

## نافرمانه امیر معزول کیدلی شي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶۰﴾ وَعَن | عقبة | بن | مَالك | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: |
| او حضرت عقبه ابن مالک رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ ته نه نقل کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمایل " | | | | | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أعجزتم | إِذا | بعثت | رجلا | فَمَ |
| آیا تاسو د هغې نه عاجزیې چې زه یو کس (ستاو امیر او حاکم جوړ کړم او) دروې لیږم او هغه زماد | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَمْضِ | لِأَمْرِي | أَنْ | تَجْعَلُوا | مَكَانَهُ | مَنْ يَمْضِي |
| حکم فرمان بردارې ونکړي (یعنې هغه زماد یو حکم یا زماد یو ممانعت مخالفت وکړي) نو تاسو | | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۸۴۷ اخرجه ابوداود في السنن ۳۲/۳ رقم الحديث ۲۵۳۹

| |
|---|
| لِأَمْرِي؟. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَذَكَرَ حَدِيثَ فَضَالَةَ: وَالْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ. فِي كِتَابِ الْإِيمَانِ[1] |
| هغه معزوله كړئ او يو داسې كس وټاكئ چې سپارلې شوى كارو وكړئ". (ابوداؤد) |

**توضيح**: **فلم يمض لامري**: يعنې زماد حكم پابندي نه كوي نو تاسو هغه معزول كړئ او داسې امير مقرر كړئ چې زما حكم نافذ كړې. ګوياكې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې مثلاً ما يو امير مقرر كړو خو هغه خود سره شو او د شر جاله شوه. زماد ويلې شوې قانو پر ځاى يې خپله لار مقرره كړه. خپل قانو چلوې، نو تاسو هغه معزوله كړئ. علماؤ د دې حديث نه دا مسئله راويستلې ده چې كه چرې حاكم په خلكو باندې ظلم كوي. د عوامو د حقوقو خيال نه ساتې او اسلامي نظام نه نافذ كوي بلكې د غيرو خلكو قانو چلوې او هغې باندې مسلمانان وراچوي، نو عوامو ته دا حق حاصل دى چې هغه معزول كړي او بل كس وټاكې.

ملاعلي قاري رحمه الله ليكلي دي چې كه چرې حاكم د خلكو په مالونو باندې زياتى كوې خو د هغې په لرې كولو كې د وينې توې كېدلو او د فتنې خطر دى نو داسې حاكم به نه چېړئ. بلكې پرېږدئ، خو كه چرې حاكم خلك وژنې. عوام او خواص وژنې، نو كه د دې په معزولو كې او وژلو كې د زياتې وينې توې كېدلو خطر دى نو بيا يې پرېږدئ او كه په معزولو او په وژلو كې د لږې وينې خطر او په پرېښودلو كې د زيات هلاكتونو خطر دى، نو بيا د هغې او د هغې د ګوند (پارټۍ) خلك وژل جائز دي. (مرقات ج ۷ ص ۳۰۹)

١٦ صفر ١٤١٨هـ

## الفصل الثالث

### په اسلام كې د رهبانيت ګنجائش نشته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٦١﴾ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ | | | | | | |
| حضرت ابوامامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ خلك د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په يو لښكر وې ؤوتلو، | | | | | | |
| فَمَرَّ | رَجُلٌ | بِغَارٍ | فِيهِ | شَيْءٌ | | |
| نو د سفر په دوران كې چې كله (په مونږ كې) يو كس داسې غار (درې) په مينځ كې تېر شو چې | | | | | | |
| مِنْ | مَاءٍ | وَبَقْلٍ | فَحَدَّثَ | نَفْسَهُ | بِأَنْ | يُقِيمَ فِيهِ |
| هغې څه لږې اوبه او څه شنكې ؤو. هغې په خپل زړه كې سوچ وكړو چې هغه په هم دې غار كې پاتې | | | | | | |

---

[1] رقم الحديث ٣٨٤٨ اخرجه ابوداود في السنن ٩٤/٣ رقم الحديث ٢٥٣٧ واحمدفي المسند ١١٠/٤ .

| |
|---|
| وَيَتَخَلَّى مِنَ الدُّنْيَا فَاسْتَأْذَنَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ |
| شي او د نيا نه غاړې ته شي، نو هغې د دې باره کې د نبي کريم ﷺ نه اجازت وغوښتلو. |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ بِالْيَهُودِيَّةِ |
| نبي کريم ﷺ وفرمايل "ياد وساته"! نه خو ماله يهوديت راکړې شوی (او دې دنيا ته) رالېږلی شوی يم |
| وَلَا بِالنَّصْرَانِيَّةِ وَلَكِنِّي بُعِثْتُ بِالْحَنِيفِيَّةِ |
| او نه عيسائيت (چې زه تاسو له د رهبانيت تعليم درکړم،) بلکې زه د دين حنيفه سره رالېږلی شوی يم. چې يو اسان دين دی. |
| السَّمْحَةِ وَالَّذِي نَفْسُ |
| بې ځايه تکليف او تنگسيا شته دی او نه په کې د ضرورت نه زيات مشقت او محنت شته دی. قسم په هغه ذات چې د چا په قبضه کې |
| مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَغَدْوَةٌ أَوْ رَوْحَةٌ |
| د محمد ﷺ ژوند دی! د ورځې (صرف په اولنۍ برخه کې يعنې سحر او مابنام د خدای په لاره کې |
| فِي سَبِيلِ اللهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا |
| (جهاد) کې تلل د دنيا او د دنيا د ټولو شيانو نه بهتر دی او په تاسو کې د يو کس د ميدان جنګ په |
| وَلَمَقَامُ أَحَدِكُمْ فِي الصَّفِّ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِهِ سِتِّينَ سَنَةً. رَوَاهُ أَحْمد[1] |
| صف کې او درېدل د هغې د شپيته کالو (ځان کړې شوې) لمونځونو نه بهتر دی". |

**توضیح**: **اليهودية**: يعنې جهاد پرېښودل او غارونو کې کيناستل او رهبانيت اختيارول او عبادت کول او د عامه معاشرې نه جدا کېدل د درويش جوړېدلو په اسلام کې هيڅ گنجائش نشته دی. بلکې د دې دين لويې عبادت په ميدان جنګ کې دی. د دې تابعداران د شپې رهبان او د ورځې شهسواران وي. (مرقات : ۷/۴۱۱)

سکھایا ہے ہمیں اے دوست طیبہ کے والی ﷺ نے
کہ بو جہلوں سے ٹکرا کر ابھرنا عین ایمان ہے
جہاں باطل مقابل ہو وہاں نوک سنان سن بھی

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۴۹ اخرجه احمد في المسند ۲۶۶/۵

براے دین اسلام رقص کرنا عین ایمان ہے

الحنيفة: دا حنفاء اړخ ته منسوب دی. دين توحيد مراد دی. السمحة دا د اسان او واضح په معنی کې دی يعنې زمارب زه په توحيد باندې رالېږلی يم. چې د ټولو نه اسان دين دی. د يهود او نصاراؤ پشان بې ځايه تشدد په کې نشته دی. او نه په کې داسې مشقت شته دی چې د برداشت کولو قابل نه وي.

## په جهاد کې د نيت اخلاص ضروري دی

| |
|---|
| ﴿٦٢﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ غَزَا فِي |
| او حضرت عباده ابن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې "چا د يو پړي د حاصلولو لپاره هم د الله په لاره کې |
| سَبِيلِ اللهِ وَلَمْ يَنْوِ إِلَّا عِقَالًا فَلَهُ مَا نَوَى. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] |
| جهاد وکړو نو هغې ته به همغه شی ملاوېږي د کوم چې هغې نيت کړی دی". |

## د مجاهدينو اوچتې درجې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٦٣﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: مَن | | | | | | | |
| او د حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "کوم کس چې د | | | | | | | |
| رَضِيَ | بِاللهِ | رَبًّا | وَالْإِسْلَامِ | دِينًا | وَبِمُحَمَّدٍ | رَسُولًا | |
| الله په رب کېدلو باندې اسلام د حق دين کېدو او په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله رسول کېدو باندې خوښ وي | | | | | | | |
| وَجَبَتْ | لَهُ | الْجَنَّةُ. | فَعَجِبَ | لَهَا | أَبُو | سَعِيدٍ | |
| (يعنې د زړه نه دا ټول مني) نو د هغې لپاره جنت واجب شو". ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې دا ارشاد واورېدلو نو ډېر تعجب يې وکړو. | | | | | | | |
| فَقَالَ: | أَعِدْهَا | عَلَيَّ | يَا | رَسُولَ | اللهِ | فَأَعَادَهَا | عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ: |
| هغې عرض وکړو: يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! دا خبرې يو ځل بيا زما مخکې وکړه. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا دغه خبرې وکړې | | | | | | | |
| وَأُخْرَى | يَرْفَعُ | اللهُ | بِهَا | الْعَبْدَ | مِائَةَ | دَرَجَةٍ | فِي الْجَنَّةِ |
| او ويې فرمايل: يو شی بل دی چې د هغې په سبب الله تعالی جنت کې بنده ته سلو (۱۰۰) درجو پورې اوچتوي | | | | | | | |

(۱) رقم الحديث اخرجه النسائي في السنن ۶/۲۴ رقم الحديث ۳۱۳۸ والدارمي ۲/۲۷۴ رقم الحديث ۲۴۱۶ واحمد في المسند ۵/۳۱۵

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | بَيْنَ | كُلِّ | دَرَجَتَيْنِ | كَمَا | بَيْنَ | السَّمَاءِ | وَالْأَرْضِ |
| او په هغې کې د هر دوه درجو په مینځ کې دومره فاصله ده لکه څومره چې د زمکې او د اسمان په مینځ کې ده". | | | | | | | |
| قَالَ: وَمَا | هِيَ | يَا | رَسُولَ | اللهِ؟ | قَالَ: | الْجِهَادُ | فِي سَبِيلِ |
| ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! هغه څه شی دی؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل | | | | | | | |
| الْجِهَادُ فِي | سَبِيلِ | اللهِ | الْجِهَادُ | فِي - سَبِيلِ | اللهِ. | رَوَاهُ | مُسلم[1] |
| هغه د الله په لاره کې جهاد کول دي هغه د الله په لاره کې جهاد کول دي، هغه د الله په لاره کې جهاد کول دي. | | | | | | | |

**توضیح**: **عقالاً**: پړې ته عربئ کې عقال وایي. پړې ته عربئ کې عقال وایي یعنې که په جهاد کې چا د یو پړې نیت هم وکړو نو پړی به ورته ملاویږي، ثواب به ورته نهٔ ملاویږي. علماؤ لیکلي دي چې دا په جهاد کې د اخلاص آخري حد او د تقوی آخري مقام ورته ویلی شوی دی. چې د سبک نه سپک شي نیت هم د جهاد پاک عمل سره شامل نه وي، خو که یو کس جهاد د مال نیت هم کوي نو په دې سره د جهاد ثواب نه باطل کېږي او شرعاً داسې نیت کول جائز دی. بلکې علماؤ لیکلي دي چې که چرې یو کس ریاکارئ سره جهاد کوي، نو په هغې کې هم د جهاد ټول عمل نه ضایع کېږي. اګر که ریاکارې بې کاره ده. بهرحال یو د تقوی مقام دی. دویم د فتوی مقام دی. د فرق لحاظ ساتل پکار دی.

## جنت د تورو د سیورې د لاندې دی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶۴﴾ وَعَنْ | أَبِي | مُوسَى | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او د حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغې په (یو مجلس کې) دا بیان کړو چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي | | | | | | | | | |
| إِنَّ | أَبْوَابَ | الْجَنَّةِ | تَحْتَ | ظِلَالِ | السُّيُوفِ | فَقَامَ | رَجُلٌ | رَثُّ | الْهَيْئَةِ فَقَالَ: |
| دي "د جنت دروازې د تورو د سیورې د لاندې دي" (دې اورېدلو سره) یو کمزوری کس اودرېدلو او وې ویل | | | | | | | | | |
| يَا | أَبَا | مُوسَى | أَنْتَ | سَمِعْتُ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې "ابو موسی! آیا تا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلې دي. یعنې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ستا دا | | | | | | | | | |
| يَقُولُ | هَذَا؟ | قَالَ: | نَعَمْ | فَرَجَعَ | إِلَى | أَصْحَابِهِ | | | |
| اورېدل د کلک یقین په تو که دي؟ هغې وویل "آو" (دې اورېدلو سره) هغه کس د خپلو ملګرو اړخ ته وګرځېدلو | | | | | | | | | |

---

[1] رقم الحدیث ۳۸۵۱ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۰۱/۳ رقم الحدیث (۱۱۶-۱۸۸۴) والنسائي في ۱۹/۶ رقم الحدیث ۳۱۳۱

| |
|---|
| فَقَالَ: أَقْرَأُ عَلَيْكُمُ السَّلَامَ ثُمَّ كَسَرَ جَفْنَ سَيْفِهِ فَأَلْقَاهُ |
| او وې ويل چې "زه تاسو ته (آخرې) سلام کوم او بيا يې د خپلې تورې کاټې (قاش) ماته کړه او وې غورځولو |
| ثُمَّ مَشَى بِسَيْفِهِ إِلَى الْعَدُوِّ |
| (يعنې د دې په ذريعې هغې د خپلې هغه ارادې اظهار وکړو چې اوس به بېرته نه راځم) يعنې خپله توره يې واخستله او د دښمنانو اړخ |
| فَضَرَبَ بِهِ حَتَّى قُتِلَ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| ته روان شو او د هغوی سره وجنګېدلو تر دې چې شهيد شو". |

**توضيح**: **تحت ظلال السيوف**: د دې جملې دوه مفهومه دي. اولنئ مفهوم دا دی چې مجاهد کله د يو کافر په سر توره اوچته کړي او سيورې د کافر په سر باندې راشي نو د هغې لاندې جنت دی، ځکه د کافر په وژلو سره ثواب حاصلېږي چې جنت ته د تللو سبب جوړېږي.
دويم مفهوم دا دی چې کله کافر د يو مسلمان په سر باندې توره اوچته کړي او د تورې سيورې د مسلمان په سر باندې جوړ شي نو د هغه سيورې د لاندې جنت دی، ځکه مسلمان ته شهادت ملاوېږي چې د جنت سبب دی. دلته د ابواب د لفظ نه اشاره کېږي چې مجاهد چرته هم وې د جنت په لاره به وي.

**رث الهيئة**: يعنې شليدلې زړې جامې او ګډوډ ويختان او د سترې صورت مالک يو تابعې کس ؤو.

**جفن**: د تورې کاټئ (قاش / نيام). دا حديث مونږ له تعليم راکوي چې د دين حکم د اورېدلو نه وروسته هغې باندې عمل کول ضروري دی. دې کس ته وګورئ حديث يې واورېدلو او عمل يې پرې وکړو. د نن سبا عوامو او د خواصو مثال د ربړ پشان دی. چې رائې کاږې او بيا يې پرېږدې، نو د کوم ځای چې دې راښکلی دی هم هلته بېرته ځي. بيا د تبليغي جماعت ځېنې حضراتو هم په جهاد کې تشويش پيدا کړی دی. (مرقات: ۷/٤١٤)

## د اُحد د شهيدانو باره کې بشارت

| |
|---|
| ﴿٦٥﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ لِأَصْحَابِهِ: |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم خپلو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته وفرمايل |
| "إِنَّهُ لَمَّا أُصِيبَ إِخْوَانُكُمْ يَوْمَ أُحُدٍ جَعَلَ اللهُ أَرْوَاحَهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ خُضْرٍ |
| "کله چې ستاسو ورونه په غزوه اُحد کې شهيدان کړی شول نو الله د هغوی روحونه د شنه مرغانو په قالب کې انتقال کړه، |

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۵۲ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۱۱/۳ رقم الحديث (۱۴۶-۱۹۰۲) والترمذي في ۱۵۹/۴ رقم الحديث ۱۶۵۹

تَرِدُ أَنْهَارَ الْجَنَّةِ تَأْكُلُ مِنْ ثِمَارِهَا

نو هغه روحونه (د هغه مرغانو په قالب کې) د جنت نهرونو ته راځي. د هغه ځای مېوې خوري او

وَتَأْوِي إِلَى قَنَادِيلَ مِنْ ذَهَبٍ مُعَلَّقَةٍ فِي ظِلِّ الْعَرْشِ فلمَّا وجدوا

بيا د هغه سرو زرو قنديلونو کې اوسيږي چې د عرش د سيورې د لاندې راځوړند دي، نو کله چې

طِيبَ مأكلهم ومشرَبِهِمْ ومَقِيلِهِم قَالُوا: مَنْ

هغه روحونو د خپلو خوراک او څښاک خوندونه وليدل نو وې ويل چې "څوک دي هغه چې زمونږ

يُبلِّغُ إِخوانَنا عنَّا أَنَّا أَحْيَاءٌ فِي الْجَنَّةِ

لخوانه زمونږ ورونو ته دا پيغام ورسوي چې په جنت کې ژوندي يو او د الله تعالى د داسې داسې نعمتونو نه خوندونه اخلو.

لِئَلَّا يَزْهَدُوا فِي الْجَنَّةِ وَلَا يَنكُلُوا

د دې لپاره چې هغوی د جنت په حاصلولو کې غفلت او غلطي ونه کړي (بلکې د جنت د رجو حاصلولو ته يې توجو وي)

عندَ الحربِ فقَالَ اللهُ تَعَالَى:

او د جنګ په وخت کې ناراستي ونه کړي". الله تعالى د (هغوی ده خبره او رېدلو سره) وفرمايل (و پرېږئ مه)

أَنَا أبلغكم عَنْكُمْ فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى:

ستاسو له اړخ نه به زه هغوی ته دا پيغام ورسوم، نو الله تعالى ذکر شوی آيت رانازل کړو. او تاسو

(وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ) إِلَى أخر الْآيَات) رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

ګمان د هغه چا متعلق چه وژلې شوې دی په لاره د الله کې د مړو بلکې هغوی ژوندی دی الخ.

## درې قسمه مسلمانان

﴿٦٦﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْمُؤْمِنُونَ فِي الدُّنْيَا

او د حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل " چه مسلمانان په دنيا

عَلَى ثَلَاثَةِ أَجْزَاءٍ: الَّذِينَ آمَنُوا بِاللهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ

کې درې قسمه دي. يو خو هغه دی چې الله او د هغې رسول باندې ايمان راوړې او بيا په شک او شبه کې

---

[1]) رقم الحديث ٣٨٥٣ اخرجه ابوداود في السنن ٣٢/٣ رقم الحديث ٢٥٢٠ واحمد في المسند ٢٦٦/١

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَمْ | يَرْتَابُوا | وَجَاهَدُوا | بِأَمْوَالِهِمْ |

اختهنشي. دغشان هغوی د خپل مال او د ژوند په ذريعې د الله په لاره کې جهاد و کړو (يعني د مؤمنانو دا هغه جماعت دی چې خپل

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَأَنْفُسِهِمْ | فِي | سَبِيلِ | اللهِ |

ايمان کامل او خپل نفس مهذب يې (پاک کړ او د هغې سره يې د خدای د مخلوق د خير ښېگړې او د پاکئ لپاره هم کوشش وکړو او

| | | |
|---|---|---|
| وَالَّذِي | يأمنه | النَّاس |

همدا هغه جماعت دی چې د مرتبې په اعتبار سره د ټولو نه اعلی او اشرف دی) دويم مومن هغه کس دی چې د هغې نه د خلکو مال او

| | | | |
|---|---|---|---|
| على | النَّاسُ | عَلَى | أَمْوَالِهِمْ |

دهغوی ژوند محفوظ دی (يعني اګر که هغې د خدای د مخلوق د خير ښېګنې لپاره کوشش نه دی کړی خو د هغې په ذريعې

| | | |
|---|---|---|
| وَأَنْفُسِهِمْ | ثُمَّ | الَّذِي |

يې چاته نقصان او ضرر هم و نه رسولو دغه شان نه خو هغې اختلاط و کړو او نه په طمع او حرص کې اخته شو) او

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | أَشْرَفَ | عَلَى | طَمَعٍ | تَرَكَهُ | لِلهِ | عَزَّ وَجَلَّ". | رَوَاهُ | أَحْمد[1] |

يا دريم مومن هغه کس دی چې کله د هغې په زړه کې طمع پيدا شي نو د الله د وېرې په وجه هغه طمع پرېږدي.

## د شهيد ارمان

﴿٦٧﴾ وَعَن عبدِ الرَّحمنِ بن أَبِي عَمِيرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا مِنْ نَفْسٍ

او د حضرت ابو عبد الرحمن بن ابی عميره نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل. د شهيد نه بغير بل هيڅ

| | | | |
|---|---|---|---|
| مُسْلِمَةٍ | يَقْبِضُهَا | رَبُّهَا | تُحِبُّ |

داسې مسلمان نشته دی چې د خپل پروردګار له اړخ نه د روح د قبض کولو نه وروسته دا خبره خوښه کړي

أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْكُمْ وَأَنَّ لَهَا الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا غير الشَّهِيد قَالَ ابْن عَمِيرَةَ:

چې هغه بېرته تاسو ته راشي او د دنيا او هغه څه چې په دې کې دي هغه حاصل کړي. عبد الرحمن بن ابن عميره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَأَنْ أُقْتَلَ فِي سَبِيلِ اللهِ

فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا (هم) و فرمايل چې په خدای قسم! زما د خدای په لاره کې مړ کېدل زما په نزد د

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۵۴ أخرجه احمد في المسند ۸/۳ .

| |
|---|
| أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لِي أَهْلُ الْوَبَرِ وَالْمَدَرِ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[۱] |
| هغه شي نه ډېر خوښ دی چې د خيمو او بنګلو والا زما غلامان او محکوم وي. |

**توضيح**: **اهل الوبر**: وبر د اوښ ويختانو او پشم ته وايي. مراد خيمې دي. او د خيمو والا خلک خانه بدوش او د دشتو کې وسيدونکي خلک دي. مطلب د ابادئ نه لرې خانه بدوش خلک دي. او "**المدر**" د دې نه مراد خاوره او پا بنه کوړونه دي. مطلب دا دی چې ماته جهاد د دې نه ډېر خوښ دی چې زه د دې ټولو خلکو حاکم شم او حکومت پرې کوم. (مرقات : ۴۱۷/۷ الكاشف : ۳۷۱/۷)

## څلور قسمه خلک به په جنت کې وي

| |
|---|
| ﴿۶۸﴾ وَعَنْ حَسْنَاءَ بِنْتِ مُعَاوِيَةَ قَالَتْ: حَدَّثَنَا عَمِّي قَالَ: |
| او حضرت حسناء بنت معاويه (ابن سليم) فرمايي ماته زما تره حضرت اسلم ابن سليم رضي الله عنه بيان وکړو چې |
| قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ فِي الْجَنَّةِ؟ قَالَ: |
| (يو ورځ) ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه وپوښتل چې "جنت کې به کوم کوم خلک وي"؟ نو نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې |
| النَّبِيُّ فِي الْجَنَّةِ وَالشَّهِيدُ فِي الْجَنَّةِ وَالْمَوْلُودُ فِي الْجَنَّةِ وَالْوَئِيدُ |
| جنت کې به نبيان وي، شهيدان به وي، جنت کې به ماشومان وي او جنت کې به هغه هم وي چې ژوندي |
| فِي الْجَنَّةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۲] |
| هغوی خښ کړی شوي دي". |

**توضيح**: **المولود**: وړوکي ماشوم ته مولود وايي. **الوئيد**: ژوندي خښ کړی شوي ماشوم ته وئيد په معنی د موؤد وايي.

## په جهاد کې د مال د خرچ کولو فضيلت او د نهه څلويښت کروړو خبره

| |
|---|
| ﴿۶۹﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ وَأَبِي الدَّرْدَاءِ وَأَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي أُمَامَةَ |
| او حضرت علي رضي الله عنه، حضرت ابو درداء رضي الله عنه، حضرت ابو هريره رضي الله عنه، حضرت ابو امامه رضي الله عنه، |

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۵۵ أخرجه النسائي في السنن ۳۳/۶ رقم الحديث ۳۱۳۵ وأحمد في المسند ۲۱۶/۴

(۲) رقم الحديث ۳۸۵۶ أخرجه ابوداود في السنن ۳۳/۳ رقم الحديث ۵۸/۵ وأحمد في المسند ۵۸/۵ رقم الحديث ۳۸۵۷ .

| |
|---|
| وَعَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ وَعَبْدُ اللهِ بْنُ عَمْرٍو وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ |
| حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عبد الله ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت جابر ابن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او |
| وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ كُلُّهُمْ يُحَدِّثُ |
| حضرت عمران ابن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دا ټول حضرات د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه حديث نقل کوي چې |
| عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: مَنْ أَرْسَلَ نَفَقَةً فِي سبيلِ الله |
| نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "کوم کس چې د الله په لاره کې (يعنې جهاد کې) روپۍ او سامان او اسباب ولېږلو |
| وأقامَ فِي بيتِه فلَه بكلِّ دِرْهَمٍ سَبْعُ مِائَةِ |
| او خپله کورې کې کيناستلو (يعنې شريک نشو بلکې امدادئې اوکړو) نو د دې د هر درهم په بدل کې به د اوۀ سوه |
| دِرْهَمٍ وَمَنْ غَزَا بِنَفْسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ وَأَنْفَقَ فِي وَجْهِهِ |
| درهمو ثواب ملاوېږي او کوم کس چې خپله هم جهاد وکړو او جهاد کې يې روپۍ او مال هم خرچ کړو |
| ذَلِكَ فَلَهُ بِكُلِّ دِرْهَمٍ سَبْعُ مِائَةِ أَلْفِ دِرْهَمٍ. |
| نو هغې ته به د هر درهم په بدل کې د اوۀ لاکه درهمو ثواب ملاوېږي. (ځکه دې خپل نفس هم په تکليف او مشقت کې |
| ثُمَّ تَلَا هذهِ الآيَةَ: (والله يُضاعفُ لمنْ يشاءُ) رَوَاهُ ابنُ مَاجه[1] |
| واچولو او مال يې هم خرچ کړو) بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آيت تلاوت کړو يعنې الله چې چا ته غواړي د هغې ثواب زياتوي". |

**توضيح:** د دې نه مخکې حديث نمبر ۱۳ او حديث ۳۸ کې دا خبره ذکر ده چې جهاد في سبيل الله کې د يوې اوبنې په بدل کې اوۀ سوه اوبنې ملاوېږي او دنيا کې د يو درهم د خرچ کولو په بدل کې به اوۀ سوه درهمه ملاوېږي. د بحث لاندې کې هم د دې تذکره ده خو دلته دوه (۲) قسمه خلک دي او د دواړو ثواب جدا جدا دی. يو هغه کس دی چې مجاهدينو ته روپۍ لېږي خو خپله کور کې ناستی دی. جهاد کې نه دی شريک شوی. هغې ته به د يو درهم په بدل کې اوۀ سوه درهمه ملاوېږي. دويم هغه کس دی چې خپله هم جهاد کې شريک دی او په دې لاره کې روپۍ هم خرچ کوي، نو د بحث لاندې حديث کې دي چې دې ته به د يو درهم په بدل کې اوۀ لاکه درهمه ملاوېږي. اوس دلته دواړه کسان هم بدل دي. او د دواړو عملونو کې فرق هم دی. د دواړو په اجر و ثواب کې هم فرق دی. لهذا

(۱) رقم الحديث ۳۸۵۷ أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۹۲۲ رقم الحديث ۲۷۶۱.

دوا ړه بېل بېل ساتل پکار دي. تبليغي حضرات دلته د دي حديث نه د نه کروړو (۹۰۰۰۰۰۰) ثواب راوباسي. او طريقه دا اختياروي چې د اؤوه سوه درهمو والا حديث سره په اؤوه لاکه والا حديث کې ضرب ورکړه. مثلاً ۷۰۰ x ۷۰۰۰۰= ۴۹۰۰۰۰۰۰. دغه دېر رقم د حاصلولو نه ورسته دا حضرات دا فضيلت د خپل مخصوصو عملونو سره خاص کوي. دلته پوښتنه دا ده چې سبيل الله عام دی او که خاص دی. که عام وي نو دا ثواب طلباء، علماء، خطباء، فقهاء، حاجيان کرام، اهل تبليغ او مجاهدينو ټولو ته ملاوېدل پکار دي، ځکه دا ټول د الله په لاره کې دي. او که د سبيل الله سره خاص دی نو بيا د انصاف تقاضا ده چې دا ثواب صرف مجاهدينو ته حاصل وي ځکه کله چې سبيل الله مطلق ذکر شي نو د هغې نه د جهاد لاره مراد وي. دغه شان حديث کې په کتاب الجهاد کې ذکر دي چې مجاهدينو سره خاص دی نه دا چې د اهل تبليغو سره. دويمه خبره دا ده چې دلته د نه کرړو راويستلو آخر څه ضرورت دی او کومه مجبوري ده؟ آيا حديث باندې د پوهېدلو لپاره د داسې ضرب ورکولو ضرورت شته دی؟ نبي کريم ﷺ خو د دوه قسمه جدا جدا خلکو ذکر کړی دی، نو د دوؤ (۲) د يو کولو جواز د چرته نه راغلی؟. بيا زه که د دوه قسمه خلکو ثواب يو ته ورکول کېږي نو چې د اؤوه سوه والا ثواب دې اؤوه لاکه والا ته ورکړو نو د دې سره د اؤوه لاکه سوه شمېر ثواب شو. دا نه څلويښت کروړه د کوم ځای نه راغله؟.

که چرې د يو کس د "**يضعف**" د الفاظو نه استدلال کوي چې دې کې دوه چنده ذکر دی، نو عرض دا دی چې د دوه چنده کولو حد خپله نبي کريم ﷺ متعين کړی دی چې د يو ثواب تر اؤوه سوه پورې او د بل ثواب تر د اؤوه لاکه پورې زياتېږي. نبي کريم ﷺ د تضعيف او دوه چنده والې حد ويلی دی. تاسو د هغې نه ولې مخکې ځئ؟ که په قيامت کې خلک نه څلويښت کروړه غوښتل شروع کړي نو دا حضرات به يې د کوم ځای نه ورکوي، ځکه د الله په نزد خو دا تعين نشته دی، خو د دې حضراتو د خپله مفروضه ده. حال دا چې د نه کروړه عدد لپاره د عربۍ په الفاظو کې ويل هم دې حضراتو ته نه ورځي. تحفة الاحوذی کې ليکلي دي چې "**والفضائل لاتؤخذو بالقياس**" يعني فضائل په قياس کولو سره بيان کېدی نه شي. دلته خو تعين کېږي، قياس نه چلېږي.

بله يوه ضابطه باندې هم پوه کېدل پکار دي چې شريعت کې د ثواب زياتو او کمولو کې هيڅ پابندي نشته دی. "**والله يضاعف لمن يشاء**" د قرآن آيت دی. نه څلويښت کروړه خو لا څه چې د نه څلويښت اربه ثواب هم کېدی شي، خو شريعت چې چرته تعين کړی دی. مونږ به يې کوؤ او چرته چې شريعت مبهم پرېښی دی نو هلته هيچا ته حق حاصل نه دی چې هغه تعين وکړي. نن سبا بې شماره خلک د ابې ادبۍ او د گستاخۍ مرتکب کېږي او دا وايي او گرځي راگرځي چې بيت الله کې يوه نيکې د يو لاکه ده او په دعوت تبليغ کې نه څلويښت کروړو ده. ماهنامه البلاغ کې يو ځل د بحث لاندې د ابن ماجه حديث متعلق يو فتویٰ راغلې وه.

چې په کې ویلی شوي ؤو چې د ابن ماجه دا حدیث ضعیف دی. لهذا کوم کس چې دا حدیث بیانوي. هغې باندې لازم دي چې هغه عوام ته دا هم ؤوایې چې دا حدیث ضعیف دی.

## د مجاهدینو اوچتو مرتبو کتلو سره د سَر نه خولئ وغورزیده

﴿۷۰﴾ وَعَن فَضَالَةَ بنِ عُبيد قَالَ: سمِعْتُ عمَرَ بن الْخطاب يَقُولُ:

او حضرت فضاله ابن عبید فرمایي چې ما د حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه او واورېدل. هغه وایې چې ما د

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "الشُّهَدَاءُ أَرْبَعَةٌ: رَجُلٌ مُؤْمِنٌ

نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اورېدلي دي چې "شهیدان په څلور قسمه دي. یو خو هغه کس دی چې کامل ایمان والا

جَيِّدُ الْإِيمَانِ لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللهَ حَتَّى قُتِلَ

مسلمان ؤو. او چې کله یې د دښمن سره جنګ شو نو هغې الله تعالی ته رښتیا وښودله تر دې چې په جنګ جنګ

فَذَلِكَ الَّذِي يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ أَعْيُنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

کې هغه شهید شو، نو دا هغه کس دی چې د هغې اړخ ته به د قیامت په ورځ خلک سرونه اوچتوي

هَكَذَا" وَرَفَعَ رَأْسَهُ حَتَّى

او ورته ګوري به (دې کتلو سره) هغې خپل سر راوچت کړو چې ما ته معلومه نه ده چې د هغې د سره

سَقَطَتْ قَلَنْسُوَتُهُ فَمَا أَدْرِي

خولئ وغورزېدله د حدیث راوي چې دا روایت یې د حضرت فضاله رضي الله عنه نه نقل کړی دی چې ما ته معلومه نه ده

أَقَلَنْسُوَةَ عُمَرَ أَرَادَ أَمْ

چې د فضاله رضي الله عنه خولئ وه چې حضرت عمر رضي الله عنه (د حدیث بیانولو وخت کې د نبي صلی الله علیه وسلم په شان سر اوچت وښودلو

قَلَنْسُوَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟

نو د هغې) د سره نه خولئ ولیدله یا که د نبي علیه السلام د سر نه خولئ لیدلې وه. (بهر حال حاصل دا چې د قیامت په ورځ به دې کس دومره

قَالَ: وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ جَيِّدُ الْإِيمَانِ

لوي مرتبوي چې خلک خلک به دې ته په ولاړه ولاړه ګوري) یا نبي علیه السلام وفرمایل چې دویم هغه کس چې جید الایمان مومن ؤو.

لَقِيَ الْعَدُوَّ كَأَنَّمَا ضُرِبَ جِلْدُهُ بِشَوْكِ

او کله یې چې د دښمن سره جنګ شو نو هغه د خپلې بزدلۍ په وجه داسې ښکاره کېدلو چې په بدن کې یې د ازغن بوټي ازغې وي

| |
|---|
| طَلْحٍ مِنَ الْجُبْنِ أَتَاهُ |
| (يعنې دا کس د وېرې په وجه ړيړ ېدلو او د دهشت په وجه د غوني راځيږ شو او کيفيت يې کنايةً بيان کړی دی) او يا په |
| سَهْمٌ غَرْبٌ فَقَتَلَهُ فَهُوَ |
| تيرو لېږ ېدلو، چې يو نامعلومه کس ويشتلو ؤ او هغه د تير هغه د مرګ غيږې ته ورسولو، نو دا کس (د |
| فِي الدَّرَجَةِ الثَّانِيَةِ وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا |
| اولني کس په نسبت) په دويمه درجه کې دی. او دريم کس هغه مومن ؤ. څه يې ښه او څه يې بد عملونه کړې |
| لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللهَ حَتَّى |
| ؤو. او کله چې د ښمن سره په جنګ شو نو الله تعالی يې رښتيا و ښو دل تر دې چې (په جنګېدلو او ؤوژلی شو، نو |
| قُتِلَ فَذَلِكَ فِي الدَّرَجَةِ الثَّالِثَةِ وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ أَسْرَفَ عَلَى نَفْسِهِ |
| دا د دريم کس درجه ده او څلورم کس هغه مسلمان دی چې په خپل نفس باندې ډېر اسراف کړې ؤ (يعنې |
| لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللهَ حَتَّى |
| ډېر زيات ګناهونه يې کړي ؤو) او کله يې چې د ښمن سره جنګ شو نو هغې الله ته رښتيا و ښو دل، تر دې چې |
| قُتِلَ فَذَاكَ فِي الدَّرَجَةِ الرَّابِعَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[1] |
| په جنګ شو او ؤوژلی شو. دا خو د څلورم کس درجه ده. (روايت کړې دې ترمذی) |

**توضیح: الشهداء اربعة:** يعنې د شهيدانو څلور قِسمونه دي. صرف څلور کسان مراد نه دي.

**العدو:** يعنې د کافرانو سره جنګ وشو.

**فصدق الله:** دا صيغه د تخفيف سره ويلی شوې ده. چې مشهوره ده. دې صورت کې به مطلب دا وې چې دې مجاهد په جرأت او نرتوب سره هغه وعده پوره کړه کومه يې چې د الله سره کړې وه. تر دې چې هغه شهيد کړی شو. **قال الله تعالیٰ: ﴿رجال صدقوا ما عاهدوا الله عليه﴾**(سورت احزاب ٢٣)

علامه طيبي رحمه الله د دې جملې مطلب داسې بيان کړی دی چې الله تعالی د مجاهدينو صفت داسې بيان کړی دی چې هغوی صبر کونکې ؤو او په اخلاص سره د ثواب په نيت جهاد کونکې دي.

---

(١) رقم الحديث ٣٨٥٨ اخرجه الترمذي في السنن ١٥٢/٤ رقم الحديث ١٦٤٤

چې کس کله خپل کار په ثابت قدمۍ او اخلاص سره جنګ کول ثابت کړو نو ګویا کې هغې په خپل کردار باندې د الله وړنا رښتیا وښودله. د "صدق الله حق قتل" همدغه مطلب دی.(مرقات: ۴۱۱/۷، الكاشف: ۳۷۳/۷)

**قلنسوته:** یعنې حضرت عمر رضي الله عنه یا نبي کریم صلی الله علیه وسلم د شهید او چتې درجې د ښودلو لپاره سر دومره اوچت کړو چې خولۍ یې لاندې پرېوتله. د دې حدیث نه د شهید د درجاتو ثبوت ملاوېږي. همدغه ځای کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د خولۍ سمولو ثابت کېږي. (مرقات ۴۱۹/۷)

**فما ادری:** دا د راوي قول دی چې د حضرت فضاله نه روایت دی.

**اراد:** یعنې د حضرت فضاله د حضرت عمر رضي الله عنه د خولۍ د لوېدلو وویل یا یې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د خولۍ د لوېدلو خبره وکړه. په ښکاره خو د کلام نه معلومېږي چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم خولۍ مراد ده، ځکه متباد همدغه دی.

**بشوك طلح:** شوک ازغي ته وایې او طلح د کیکر وغیره ازغن بوټې ته وایې. چې غټ غټ ازغي په کې دي یعنې د وېرېدلو به وجه د هغې غوڅې ځېږ شو. ګویا کې ازغي په ننوځې. څلور قسمه خلکو کې اول جید الایمان زړه ور دی. دویم جید الایمان وېرې دونکی دی. دریم څه ګناه ګار دی. څلورم پوره ګناه ګار دی. ټول شهیدان دي. معلومه شوه چې ګناه ګار کس هم په جهاد کې برخه اخستلی شي. تبلیغي حضرات وایې چې اول فرښته شه او بیا به جهاد وي. یاد وساتئ نه به د هغوی یو کس فرښته شي او نه به جهاد وي.(مرقات: ۴۱۹/۷)

## منافق شهید نه وي

| |
|---|
| ﴿۷۱﴾ وَعَنْ عُتْبَةَ بن عبدِ السَّلَمِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: "الْقَتْلَى |
| او حضرت عتبه ابن عبد السلمی رضي الله عنه فرمایې چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل "کوم کسان چې په جهاد کې وژلی |
| ثَلَاثَةٌ: مُؤمن جَاهد نَفسه وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| کېږي هغه درې قسمه دي. یو خو کامل مومن چا چې د الله په لاره کې په خپل نفس او د خپل مال په ذریعه |
| فَإِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتَّى |
| جهاد وکړو، نو کله یې چې د دښمن سره جنګ شو (نو پوره په بهادرۍ او زړه ورتیا) سره وجنګېدلو تر دې چې |

يُقْتَلَ" قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِ:

شهيد شو. "نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې كس باره كې وفرمايل چې "دا هغه شهيد دی چې د جهاد په مشقتونو او ازمائش

فَذٰلِكَ الشَّهِيدُ الْمُمْتَحَنُ فِي خَيْمَةِ اللهِ تَحْتَ عَرْشِهِ

كې اخته كړی شو. دا شهيد به (آخرت كې) د عرش د سيورې د لاندې د الله په خيمه كې وي او انبياء به صرف

لَا يَفْضُلُهُ النَّبِيُّونَ إِلَّا بِدَرَجَةِ النُّبُوَّةِ وَمُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلًا صَالِحًا

د دې نه په درجه كې اوچت وي. او دويم كس هغه مومن دی چې اعمال يې برابر وي. چې څه به يې نيک عملونه

وَآخَرَ سَيِّئًا جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ

وي او څه به يې بد عملونه وي، نو هغې د خپل نفس او د مال په ذريعه د خدای په لاره كې جهاد وكړو. او كله

إِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتَّى يُقْتَلَ

يې چې د دښمن سره جنګ شو نو پوره بهادرئ او زړه ورتيا سره وجنګېدلو تر دې چې ؤوژلی شو".

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِ: مُمَصْمِصَةٌ مَحَتْ ذُنُوبَهُ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې كس باره كې وفرمايل "دا شهادت يا خصلت، پاكونكی دی. د دې ګناهونه

وَخَطَايَاهُ إِنَّ السَّيْفَ مَحَّاءٌ لِلْخَطَايَا

او خطاګانې ختموي او په دې كې هيڅ شک نشته دی چې د توره خطاګانې ختمونكې دی. دا هغه

وَأُدْخِلَ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ شَاءَ وَمُنَافِقٌ

شهيد دی چې په كومه دروازه تلل غواړي جنت ته به داخل كړی شي. او دريم كس منافق دی چې

جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَإِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ

(اګر كه) هغې (هم) د خپل نفس او د مال په ذريعه جهاد وكړو او كله چې يې د دښمن سره جنګ شو

قَاتَلَ حَتَّى يُقْتَلَ فَذَاكَ فِي النَّارِ إِنَّ السيفَ لَا يمحُو النِّفَاقَ. رَوَاهُ الدارميُّ[1]

نو (بنه) وجنګېدلو. تر دې چې ؤوژلی شو (خو) دا كس به دوزخ ته ځي ځكه توره نفاق نه ختموي".

**توضيح: المتحن:** د اسم مفعول صيغه ده. امتحان او ازمائش كې د اچولو به معنی كې دی، خو

[1]) رقم الحديث ۳۸۵۹ اخرجه الدارمي في السنن ۲/۲۷۲ رقم الحديث ۲۴۱۱

دلته دا معنی هم کېدی شي چې الله تعالی د دغه عظیم شهید زړه د ایمان او تقوی لپاره کولاو کړو او په ایمان او تقوی باندې د هغې سینه کولاوه شوه، لکه په آیت کې دي ﴿**اولئك الذين امتحن الله قلوبهم للتقوى**﴾(سورت الحجرات: ۲) دا کسان به د الله تعالی د لګولی شوی خیمه کې وي.

**ممصمصة**: د مدحرجة په وزن باندې ده. دا صفت دی. د موصوف یا لفظ "**شهادة**" دی. او یا خصلة دی. ای **شهادة ممصمصة** او **خصلة ممصمصة**، مصمصه د مضمضه په وزن باندې د صفائی او د پاکوالي په معنی کې دی. یعنې دا شهادت سړی د ګناهونو نه پاکونکی دی.

**ذاك في النار**: یعنې منافق اګر که جهاد وکړي، ښه وجنګېږي او د نیوي شهید هم شو، خپلو جامو کې بغیر د غسل نه د شهید په شان خښ هم کړی شو. بیا به هم د جنت په ځای دوزخ ته ځي، ځکه توره ګناهو ختموي خو غلطه عقیده نه شي بدلولی، لکه څنګه چې قادیانی، آغاخانی، رافضې او محلد ذکرې وغیره دي. چې په پاکستانې فوج کې د سروس (وظیفې) لپاره جنګېږي. او مړه کېږي، خو دا شهیدان نه دي ځکه منافق شهید نه شي کېدلی. (مرقات: ۴۰۲/۷)

## فقط یوه نیکی باندې جنت، عجیبه قصه

| |
|---|
| ﴿۷۲﴾ وَعَنْ ابْن عائِذٍ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جِنَازَةِ رَجُلٍ |
| او حضرت ابن عائذ فرمایي چې (یو ورځ) نبي کریم ﷺ د یو کس جنازې سره لاړو (چې د هغې لمونځ وکړي) |
| فَلَمَّا وُضِعَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: لَا تُصَلِّ عَلَيْهِ يَا رَسُولَ اللهِ |
| کله چې جنازه کېښودلی شوه نو حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ! ته د دې جنازې |
| فَإِنَّهُ رَجُلٌ فَاجِرٌ فَالْتَفَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى النَّاسِ |
| لمونځ مه کوه، دا یو منافق او فاسق کس ؤو". (دې او رېدلو سره) نبي کریم ﷺ د خلکو اړخ ته متوجې شو او |
| فَقَالَ: هَلْ رَآهُ أَحَدٌ مِنْكُمْ عَلَى عَمَلِ الْإِسْلَامِ؟ |
| ویې فرمایل چې "آیا تاسو کې یو کس په خپل ژوند کې په داسې عمل کولو باندې لیدلی دی چې حقیقي اسلام |
| فَقَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ يَا رَسُولَ اللهِ حَرَسَ لَيْلَةً |
| باندې دلالت کوي، نو هغه مونږ ته وایئ. یو کس عرض وکړو "آو یا رسول الله ﷺ! دې کس یوه شپه د |
| فِي سَبِيلِ اللهِ فَصَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| الله په لاره کې چوکیداري کړې وه. نبي کریم ﷺ د هغې د جنازې لمونځ وکړو او (د ښخولو په وخت کې یې د هغې قبر |

وَحَثَا عَلَيْهِ التُّرَابَ وَقَالَ: أَصْحَابُكَ يَظُنُّونَ

باندې)خاوره واچوله او (ګویا کې مړي يې مخاطب کړو او) ويې فرمايل چې "ستا د ملګرو خو دا ګمان دی چې

أَنَّكَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ وَأَنَا أَشْهَدُ أَنَّكَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَقَالَ: يَا عُمَرُ

ته دوزخي يې او زه د دې خبرې ګواهي ورکوم چې ته جنتي يې". او بيا يې (حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل) "عمر!

إِنَّكَ لَا تُسْأَلُ عَنْ أَعْمَالِ النَّاسِ وَلَكِنْ تُسْأَلُ عَنِ الْفِطْرَةِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[1]

تا نه به د خلکو د بدو اعمالو باره نه پوښتلی کېږي بلکې ستا نه به د اسلام باره کې پوښتنه کېږي.

**توضيح: على عمل الاسلام:** يعنې چا دا کس په يو داسې عمل باندې ليدلی دی چې په حقيقي اسلام باندې دلالت کوي. يو کس وويل چې ما دا د الله په لاره کې په چوکېدارۍ باندې ليدلی ؤو. دې او رېدلو سره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د جنازې لمونځ وکړو، ځکه ايمان او جهاد باندې د جهاد يو عمل دلالت کوي. د غيبو معامله په الله باندې حواله ده. مړې ته د مرګ نه وروسته په بنه القاباتو باندې يادول پکار دي. حکم لګول د بنده ګانو کار نه دی. دې وجې نه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته تنبيه ورکړه او د غيب په معامله باندې يې پرې د حکم لګولو نه منع کړو چې نفس اسلام ته ګوره، قيامت کې به صرف د اسلام باره کې پوښتنه کېږي. د پټو عملونو باره کې تشويش مه کوه. بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کس مخاطب کړو او ورته ويې فرمايل چې خلک تا ته دوزخي وايي خو زه ګواهي کوم چې ته جنتي يې. يو خو د اسلام وجه ده چې ته مسلمان يې. دويم د جهاد عمل دی چې يو عظيم عمل دی. سبحان الله جهاد څومره لوي عمل دی چې بې عمله هم دلته باعمله دی. (مرقات: ۴۲۲/۷)

دلته هغه کسانو له سترګې کولاؤول پکار دي چې شپه ورځ همدغه نغاره وايي چې اول ايمان جوړ کړه بيا جهاد وکړه. ګويا کې چې تر څو پورې فرښته جوړه شوې نه يې نو جهاد ته نږدې تلل حرام دي. **"لا حول ولا قوة الا بالله"**.



[1] رقم الحديث ۳۸۶۰ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴۳۰/۴ رقم الحديث ۴۲۹۷

# باب اعداد آلة الجهاد

## د جهاد د سامان تیارولو بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿واعدوا لهم ما استطعتم من قوة ومن رباط الخیل ترهبون به عدو الله وعدوکم﴾

## الفصل الاول

## د استطاعت مناسب د جهاد لپاره د طاقت تیارولو حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ |
| حضرت عقبه ابن عامر رضی الله عنه فرمایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا په منبر باندې اورېدلې |
| يَقُولُ: "﴿وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ﴾ أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ |
| دي چې او تاسو د کافرانو سره د جنګ کولو لپاره (خپل) طاقت او قوت چې څه (هم) څیز تیارولی شئ وکړئ. |
| أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ" رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| یاد وساتئ! تیر اندازي قوت دی. یاد وساتئ! تیر اندازي قوت دی. یاد وساتئ! تیر اندازئ قوت دی. |

**توضیح**: **واعدوا لهم ما استطعتم من قوة**: اعداد د سامان وغیره د تیارولو په معنی کې دی. صاحب مشکوة دا عنوان د همدغه آیت د نظره اینبی دی. شاه اسماعیل رحمه الله د دې آیت په تفسیر کې لیکلې دې چې واعدوا کې چې د امر کومه صیغه ده، ټول مسلمانان د دې مخاطب دي او هر مسلمان باندې فرض او لازمه ده چې هغوی په ذاتې توګه د جهاد لپاره تیار شي او خپل قوت پیدا کړي. دا قوت اګر که د ټولې دنیا برابر نه وي خو بیا هم د خپل طاقت مطابق قوت پیدا کول ضروري دي.

**ما استطعتم**: دا لفاظ بیانوې چې تاسو نه څومره کېدی شي هغه هومره وکړئ. شیخ التفسیر حضرت مولانا احمد علی لاهوری رحمه الله په اعداد الات جهاد باندې یو کتاب لیکلی دی. چې نوم یې ورله "اسلام اور ہتھیار" اینبی دی. دې کې هغې د قرآن او حدیث نه دا ثابته کړې ده چې هر مسلمان باندې فرض ده چې هغه اسلحه زده کړي او کور یې هم وساتې او په کفارو باندې یې هم استعمال کړي. د دې کتاب د لیکلو ضرورت هغه وخت پیښ شو چې کله په هندوستان کې د انګریزانو له خوا دا تبلیغات شروع شول چې اسلام کې د اسلحو او د تورو هیڅ مقام نشته دی. تردې چې اخبارونو کې مضمونونه شایع کېدل شروع شو. دې باندې څه مسلمانانو د دارالعلوم نه فتوی وغوښتله چې آیا په اسلام کې د

---

[1] رقم الحدیث ۳۸۶۱ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۲۲/۳ رقم الحديث (۱۶۷-۱۹۱۷) وابوداود في السنن ۱۹/۳ رقم الحدیث ۲۵۱۴

توري څه مقام شته دی یا نه. د دیوبند علماؤ حضرت مولانا احمد علی لاهوی رحمه الله د جواب ورکولو لپاره انتخاب کړو. هغه دا کتاب ولیکلو چې د سید حسین احمد مدنی رحمه الله او حضرت مولانا مفتي کفایت الله رحمه الله او د حضرت مولانا قاری محمد طیب رحمه الله دستخطي ورباندې موجود دي. روزنامه انقلاب تاریخ ۳ ستمبر ۱۹۳۵ کې دا فتوی جاري کړی شوه. ما دا کتاب په دعوت جهاد کې ص ۲۵۰ باندې پوره نقل کړی دی. د اعداد اله حهاد او د اسلحي د جوړولو اهتمام او انتظام خپله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم په ترجیحي بنیادونو باندې کړی ؤو. کله چې د طائف د قلعه محاصره اوږده شوه نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قلعه د ماتولو اسلحي د ضرورت اړخ ته اشاره وکړه. نو حضرت سلمان فارسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ منجنیق تیار کړو. بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د همدغه طائف نه دوه صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د دمشق علاقې جرش ته ولیږل، ځکه جرش کې هغه وخت دوه قسمه نوي اسلحي تیارېدلي. د یو نوم دبابه یعني ټینک ؤو او د بل نوم ضبور ؤو. دا یو قسم موټر ؤو. لکه نن سبا چې زرې پوش موټري دي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غوښتل چې مسلمانان صرف ټینک رانولې بلکې د اسلحې د جوړولو ټیکنالوجي هم زده کړي، نو حضرت عروه بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او غیلان بن مسلمه لاړل او دا یې زده کړه او بېرته راغلل. د جنګ خندق نه وروسته چې کله بنو قریظه شکست وخوړلو او د هغوی ښځې وینځې شوې نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روم په بازارونو کې هغه ښځې د اسلحې په بدل کې خرڅې کړي او اسلحه یې حاصله کړه. قرآن کریم کې الله تعالی د اسلحې جوړولو اړخ ته ډېره اشاره کړې ده. حدیثونو کې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسلحه د زدوه کولو او ښودلو، ساتلو او استعمالولو ډېر زیات ترغیب کړی دی، ځکه کفار د مادي قوت نه وېرېږي. د روحاني قوت هغوی هیڅ پرواه نه کوي. په عرفات کې ۶۰ لاکه حاجیان کرام په چغو چغو د کفارو لپاره ښېرې کوي خو هیڅ یو ځای کې کافر په شا نه شو، خو که د طمانچې یوه ګولۍ هغوی باندې کشمیر وغیره کې وچلوی شي نو د هغوی لښکرې منډې وهي. لهذا د اسلحې دا مادي قوت پرېښودل او د روحاني قوت خبره کول د شریعت د تعطیل او د احکام الهي د باطلولو مترادف دي. مسلمانانو له د دې خبرو نه ځان ساتنه پکار ده. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې د آسونو سورلۍ، د توري چلول، نیزه ویشتل او تیراندازي وغیره د جهاد سامان او مروجه اسلحه وه. نن ټوپک، توپ، راکټ لانچر، الوتکه، جیټ طیاري، ټینک، ټوپونه، زرې پوش موټرې، بحري جهازونه، بم، ایټم بم، زرې دار واسکټې او د کرو میزائلو وغیره زمانه ده. لهذا مسلمانانو باندې لازم دي چې دا ټولې مروجې اسلحې ښې تیارې کړي. فتح او کامیابي د الله په لاس کې ده، خو الله خپله مسلمانانو ته د اسلحو د استعمالول حکم کړی دی. اسبابو باندې توکل ناجائز دي. د اسبابو استعمال خو د اسلام حکم دی. ورنه اسباب یو شان مسترد کولو سره انسان په فرقه ضاله جبریه کې داخلیږي. سورت حدید کې آیت دی ﴿**وأنزلنا الحديد فيه بأس شديد و منافع للناس وليعلم الله من ينصره ورسله بالغيب**﴾. (سورة الحدید: ۲۵) دې کې په واضحه توګه حکم دی چې د خپل دین مرسته او د الله تعالی او د هغې د رسول د حفاظت لپاره د وسپنې نه د جهاد کار واخلئ. وګورئ الله تعالی

په هر شي کې يو نه يو خصوصيت ايښى دى. دا خصوصيت له نظره نه شي غورځول کېدى. مثلاً يو کس تږى شوى دى. د تندې ماتولو لپاره الله تعالىٰ اوبه پيدا کړي دي او د تندې ماتولو خاصيت په کې دى. اوس يو کس متوکل جوړېږې او د اوبو څښلو په ځاى جومات ته روانېږې او لمونځ شروع کړي نو دا به د ځان وژني برابر وي. يا خو دغه کس باندې د خرق عادات او د کرامونو پېره سپور دى يا يې په مازغو کې فرق دى. بالکل دغه شان الله د کفارو د مقابلې لپاره وسپنه پيدا کړې ده. او د دې نه جوړ کړى شوې اسلحو کې يې د دفاع خاصيت ايښى دى. د دې په استعمالولو سره به کافران مغلوبه شي او تښتې به. که يو کس دا ويل شروع کړي چې د کفارو د تښتولو لپاره روحانيت پيدا کړئ، نيکان شئ، اعمالو باندې راشئ او اسلحې له لاس مه وروړئ، د کفارو حکومتونه به خپله وغورځېږې، نو دا فلسفه او ذهنيت هم د قرآن او حديث خلاف ده. د همدغه ذهنتى لرې کولو لپاره نبي کريم ﷺ د اعداد اٰله جهاد د آيت په تفسير کې دوه ځله وفرمايل **"الا ان القوة الرمى الا ان القوة الرمى"** يعنې ويشتل قوت دى، تير ويشتل قوت دى. داسې نه چې د روحانې قوت په طمع شي او خپل نقصان وکړئ. مسلمانان شئ، نيکان شئ خو د اسلحې په استعمال باندې تکل مه کوئ. دا استعمالولئ او د بازان په شان د خپل دين مرسته کوئ. سوال او زارئ او معذرت کولو انداز سره به مو کافران په سر وخېژي او هر څه به تباه کړې. شاعر مشرق ويلې دي.

افسوس صد افسوس کہ شاہین نہ بنا تو
دیکھے نہ تیری آنکھ نے قدرت کے اشارات
تقدیر کے قاضی کا یہ فتویٰ ازل سے
ہے جرم ضعیفی کی سزا مرگ مفاجات

هر مسلمان له پکار ده چې هغه اسلحه باندې د کافرانو اعتراضونو له جواب ورکړي.

ہم پوچھتے ہیں شیخ کلیسا نواز سے
مشرق میں جنگ شر ہے تو مغرب میں بھی ہے شر
حق سے اگر غرض ہے کیا یہ بات
اسلام کا محاسبہ مغرب سے در گزر

**الرمى:** د دې ډېر عجيب جامع لفظ دى. دې کې تورې وار هم داخل دى. کانى ويشتل هم، تير ويشتل، د توپ ګولۍ ويشتل، بم غوځرارول، راکټ ويشتل ټول د رمې په مفهوم کې داخل دى. (الکاشف ۳۷۶/۷، مرقات : ۴۲۴/۷)

## خطر که نه هم وي بیا هم د اسلحې شغل جاري وساتئ

﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: سَتُفْتَحُ عَلَيْكُمُ الرُّومُ وَيَكْفِيكُمُ اللهُ فَلَا يَعْجِزْ أَحَدُكُمْ أَنْ يَلْهُوَ بِأَسْهُمِهِ. رَوَاهُ مُسلم[1]

او حضرت عقبه رضي الله عنه فرمایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اورېدلي دي چې "نژدې ته چې ستاسو لپاره به روم فتح کړې شي او الله تعالی به تاسو له (د اهل روم د شر کولو نه کافي شي. لهذا خبردار! تاسو کې هیڅ یو کس هم د تیر په لوبولو کې ناراستې و نه کړئ".

**توضیح:** یعنې د شام او د روم خلک په تیر ویشتلو کې ډېر ماهره دي. تاسو به د هغوی مقابله په تیر اندازئ باندې کوئ. لهذا تیر اندازئ ښه زده کړئ او کله چې الله تعالی په هغوی باندې فتح درکړي نو داسې مه کوئ چې اسلحې شغل په دې وجه پرېږدئ چې اوس خو شام فتح شوی. اوس د اسلحې څه ضرورت دی بلکې د اسلحې شغل همیشه لپاره ساتئ لکه دا چې ستاسو د لوبو برخه وي، ځکه کله هم ددې ضرورت راتلی شي مسلمانانو ته پکار ده چې هغوی د نن سبا د جهاد په حوالې سره ثو مره په غفلت کې پراته دي. توره ورکه کړې شوې ده او لاس کې یې د ذلت لوړ (بیټ) اخستی دی.

توڑ دی تلوار ہاتھ میں لیا بلا ہم نے ‌ ‌ ‌ بیٹیاں لٹتی رہیں اور ہم دعا کرتے رہے

## د اسلحې د زده کولو نه وروسته هېرول لویه ګناه ده

﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يقولُ: مَنْ عَلِمَ الرَّمْيَ ثُمَّ تَرَكَهُ فَلَيْسَ مِنَّا أَوْ قَدْ عَصَى. رَوَاهُ مُسلم[2]

او حضرت عقبه رضي الله عنه فرمایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اورېدلي دي چې "کوم کس تیراندازي زده کړه او بیا یې هغه پرېښودله نو هغه زمونږ نه نه دی. یعنې زمونږ په طریقه د تلونکو کې شامل نه دی. یا بیا ده چې هغې نافرمانې وکړه".

---

(۱) رقم الحدیث ۳۸۶۲ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۲۲/۳ رقم الحدیث (۱۶۸-۱۹۱۸) والترمذي في السنن ۲۵۲/۵ رقم الحدیث ۳۰۳۸

(۲) رقم الحدیث ۳۸۶۳ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۲۳/۳ رقم الحدیث (۱۶۹-۱۹۱۹) وابن ماجه في ۹۴۰/۲ رقم الحدیث ۲۸۱۴

# تیراندازي کوئ زه تاسو سره یم

﴿۴﴾ وَعَن سلمة بن الأكوع قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَوْمٍ

او حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې (يو ورځ) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بني اسلم يوې قبيلې

مِنْ أَسْلَمَ يَتَنَاضَلُونَ بِالسُّوقِ

ته راغلو او هغه خلکو هغه وخت په بازار کې خپلو کې د تيراندازئ (مشق) کولو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَقَالَ: ارْمُوا بَنِي إِسْمَاعِيلَ

چې هغوی په دې حالت کې وليدل نو ډېر خوشحاله شو او وېې فرمايل چې ای اولاد اسماعيل (يعنې ای عربو) تيراندازې کوئ ځکه

فَإِنَّ أَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا وَأَنَا مَعَ بَنِي

ستاسو پلار (حضرت اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَام تيراندازو او زه (هم) د فلانئ قبيلې سره يم (يعنې هغه وخت چې د بني اسلم کومو

فُلَانٍ لِأَحَدِ الْفَرِيقَيْنِ

دوه ډلو خپل مينځ کې د تيراندازئ مشق کولو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی کې د يو نوم واخستلو او وېې فرمايل چې زه

فَأَمْسَكُوا بِأَيْدِيهِمْ فَقَالَ:

د دې ډلې له اړخه يم) خو بلې ډلې لاس ودرول (يعنې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د يوې ډلې اړخ ته شو نو مقابلې ډلې د تير ويشتلو

مَا لَكُمْ؟ قَالُوا:

نه لاس رابنکلو) نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې "په تاسو څه وشو؟ يعنې تاسو تيراندازې ولې بنده کړه؟ هغوی وويل

وَكَيْفَ نَرْمِي وَأَنْتَ مَعَ بَنِي فُلَانٍ؟

چې مونږ په داسې صورت کې څنګه تيراندازي کولی شو چې ته د فلانئ (ډلې) سره يې (يعنې مونږ

قَالَ: ارْمُوا وَأَنَا

دا نه خوښوؤ چې ته مونږ پرېږدې او د بلې ډلې سره شې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "(ښه) تاسو

مَعَكُمْ كُلِّكُمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

تيراندازي کوئ زه د ټولو سره يم".

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۶۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۷/۶ رقم الحديث ۳۵۰۷

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ أَبُو طَلْحَةَ يَتَتَرَّسُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتُرْسٍ |
| او حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ابو طلحه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ (په ميدان جنګ کې) د يو ډال په ذريعه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| وَاحِدٍ وَكَانَ أَبُو طَلْحَةَ حَسَنَ الرَّمْيِ |
| بچ کولو ابو طلحه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ يو بهترين تيرانداز ؤو، نو (په دښمنانو باندې يې ډېر په ښه انداز سره تيراندازي هم کوله او |
| فَكَانَ إِذَا رَمَى تَشَرَّفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حفاظت هم) کله به چې هغې تير ويشتلو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به را اوچت شو |
| فَيَنْظُرُ إِلَى مَوْضِعِ نبله. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| او کتل به يې چې تير کوم ځای کې ولږېدلو او په چا ولږېدلو". |

**توضيح**: بترس: يعني د ډال په ذريعه يې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حفاظت کولو. دوه ډالونه نه ؤو: دا د ډېر نژوالې اړخ ته اشاره ده چې ډېر نزدې ؤو. **تشرف**: د سر پورته کولو باندې کتلو ته وايي.

## د جهادي اَسونو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (الْبَرَكَةُ فِي نَوَاصِي الْخَيْلِ) (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| او حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "د اَسونو په تندو کې برکت دی". |

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْوِي نَاصِيَةَ فَرَسٍ |
| او حضرت جرير ابن عبد الله بجلي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د اَسونو د تندو ويختان |
| بِأُصبعِه ويقولُ: "الْخَيْلُ |
| په خپلو ګوتو باندې اړول او فرمايل به يې چې اَسونه چې په تندو کې يې د قيامت لپاره په کې خير او نيکئ دي. |
| مَعْقُودٌ بِنَوَاصِيهَا الْخَيْرُ |
| (ځکه د اَسونو په ذريعه د جهاد د کولو سعادت حاصلېږي چې د دنيا او آخرت خير په کې دی، لکه يو موقع |

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۶۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۹۳/۶ رقم الحديث ۲۹۰۹ وأحمد في المسند ۳۶۸/۳

(۲) رقم الحديث ۳۸۶۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۴/۶ رقم الحديث ۲۸۵۱ ومسلم في ۱۴۹۴/۳ رقم الحديث (۱۰۰-۱۸۷۴)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | يَوْمِ | الْقِيَامَةِ: | الأَجْرُ | والغَنيمةُ". | رَوَاهُ | مُسلم[1] |

بانديږ وفرمايلى شو چې جهاد کې باندې د آخرت ثواب ملاوېږي او د دينا مالِ غنيمت حاصليږي).

**توضيح** **يلوى**: د اړولو په معنى کې دى. **معقود**: د عقد نه د تړلو په معنى کې دى.

نواصي: دا د ناصية جمع ده. د تندې ويختانو ته وايي، خو مراد ترېنه د اَسونو ذات دى. د اَسونو په تندو کې خير او برکت تر قيامت پورې ځکه تړلى شوى دى چې جهاد به تر قيامت پورې جاري وي. او د جهاد لويه ذريعه اَس دى، نو اَسونو کې جهاد دى او جهاد کې تر قيامت پورې د دين او دنيا خير دى. لهذا اَسونو کې دا خير دى.

## د جهادي اَسونو ونډه، اوبه، متيازې او څوټي به هم په نيک اعمالو کې وي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٨﴾ وَعَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ |

او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "کوم کس چې به الله تعالى باندې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| احْتَبَسَ | فَرَسًا | فِي | سَبِيلِ | اللهِ | إِيمَانًا | وتصْديقاً بوَعْدِهِ |

د ايمان راوړلو او د هغې وعده رښتيا ګڼلو په وجه د خداى په لاره کې (د کار اخستلو لپاره خپل کور) کې

| | | | |
|---|---|---|---|
| فإنَّ | شِبَعَه | وريَّه | ورَوْثَه |

اَس وتړلو نو د هغې اَسپې سيرى او سيرابى (يعنې څه چې هغې دنيا کې خوړلي او څښلي دي هغه) او د هغې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وبَوْلَه | فِي | مِيزَانه | يَوْم | الْقِيَامَة. | رَوَاهُ | البُخَارِيّ[2] |

خاشنه او د هغې متيازې به د قيامت په ورځ د هغه کس د اعمالو په تله کې تللى کېږي".

**توضيح**: شبعه: د خوړول شيان.

ريّه: د څښلو شيان. څنګه چې د جهادي اَسونو په ساتلو کې دومره ثواب دى. دغه شان نن سبا د جهاد لپاره هم اسلحه ساتلو باندې به ثواب ملاوېږي او چې د اَس دا شان دى نو دې باندې د سپورېدونکې مجاهد به څه شان وي؟

---

[1] رقم الحديث ٣٨٤٧ أخرجه مسلم في صحيحه ١٤٩٣/٣ رقم الحديث (٩٧-١٨٧٢) والنسائي في السنن ٢٢١/٦ رقم ٣٥٧٢

[2] رقم الحديث ٣٨٤٨ أخرجه البخاري في صحيحه ٥٧/٦ رقم الحديث ٢٨٥٣ والنسائي فئي ٢٢٥/٦ رقم الحديث ٣٥٨٢

## شکال اس ناخوښه اس دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يكرَهُ الشَّكَالَ فِي الْخَيْلِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په اَسونو کې شکال نه خوښولو. |
| وَالشِّكَالُ: أَنْ يَكُونَ الْفَرَسُ فِي رِجْلِهِ الْيُمْنَى بَيَاضٌ وَفِي يَدِهِ الْيُسْرَى أَوْ فِي يدِهِ الْيُمنى |
| او شکال دا دی چې د اَس په ښي پښه او چپه پښه باندې سپين والی يا ښي لاس او چپ پښه باندې |
| وَرِجلِه الْيُسرى. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| سپين والی وي". (روايت کړي دي مسلم) |

**توضيح: الشكال:** راوي په حديث کې د شکال اَس پوره تعارف کړی دی، خو عام اهل لغت د دې سره اتفاق نه کوي. صاحب قاموس وغيره په قاموس وغيره کې ليکلي دي چې شکال اَس هغه وي چې درې پښې يې سپينې وي او يوه پښه يې د نور بدن پشان وي يا د هغې عکس وګڼلی شي چې يوه پښه يې سپينه وي او نورې درې پښې يې د بدن د رنګ پشان وي.

## په اَسونو کې مسابقه د جهادي روزنې برخه ده

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سابَقَ بينَ الخيلِ |
| او حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې (يو ورځ) د هغه دوه اَسونو مينځ کې مسابقت (اس زغلولو |
| الَّتِي أُضمِرَتْ مِنَ الحَفياءِ وَأَمَدُهَا ثَنِيَّةُ الْوَدَاعِ |
| باندې چې کوم اضمار کړی شوی ؤو او دا د مسابقت حفياء نه شروع شوه او په ثنية الوداع باندې ختمه شوه |
| وَبَيْنَهُمَا سِتَّةُ أَمْيَالٍ وَسَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تَضْمُرْ |
| او د دې مقاماتو مينځ کې دوه ميله فاصله وه او د کومو اَسونو کې اضمار نه ؤ شوی د هغوی په |
| مِنَ الثَّنِيَّةِ إِلَى مَسْجِد |
| مينځ کې د ثنية الوداع نه تر د مسجد بني زريق پورې مقابله وکړی شوه او د دې دواړو مقاماتو په |

[1]) رقم الحديث ۳۸۶۹ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۹۳/۳ رقم الحديث (۱۰۲-۱۸۷۵) وابوداود في السنن ۴۸/۳ رقم الحديث ۲۵۴۷

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بني | زُرَيْق | وَبَينهمَا | ميل | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| مینځ کې (یعنې د ثینیة الوداع او د مسجد زریق) په مینځ کې یو میل فاصله وه". | | | | |

**توضیح: سابق:** د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې د وه قسمه آسونو په مقابله کې برخه اخستې ده. یو قسم تربیت کړی شوي اسونه ؤو. د هغوی مقابله شپږ میله فاصله پورې د منډې وهلو پورې وه. دویم هغه قسمه آسونه ؤو چې روزلی شوې نه ؤو. د هغوی د مسابقت فاصله درې میله پورې وه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله هم تربیت (ټریننګ) کړی دی او نورو له یې هم ورکړی دی. د آسونو منډه کې یې هم برخه اخستې ده او نور خلک یې هم اماده کړي دي، لکه په حدیث نمبر ۱۱ کې راروان دي.

**اضمرت:** آسونو له د سدهانې په غرض باندې منډه ورکول کېږي. دې عمل ته تضمیر وايي. د دې طریقه دا وې چې اول آس ته ښه خوراک څښناک ورکړي او موړ کړی شي. بیا تر څلویښتو (۴۰) ورځو پورې هغې ته په نهره باندې سحر وختې وختې منډه ورکول کېږي. او ډېر کم خوراک ورکول کېږي. تر دې چې په مزه مزه په څلویښتو ورځو کې د هغې خېټه د ملا سره ولږېږي. دا تضمیر شوی آس وي. چې د هوا په شان منډه وهي. (مرقات : ۴۲۹/۷)

## یو بانډه چې مقابله کې مخکې ؤوتلو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ: | كَانَتْ | نَاقَةٌ | لِرَسُولِ اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | تُسَمَّى | الْعَضْبَاءَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره یوه اوښه وه. چې نوم یې عضباء ؤو. او | | | | | | | | |
| وَكَانَتْ | لَا | تُسْبَقُ | فَجَاءَ | أَعْرَابِيٌّ | | | | |
| کله به هم شاته نه پاتې کېدله (یعنې د مقابل اوښ نه به دا به مخې وتله) خو (یو ورځ) یو بانډه چې خپل اوښ باندې راغلو | | | | | | | | |
| عَلَى | قَعُودٍ | لَهُ | فَسَبَقَهَا | فَاشْتَدَّ | ذَلِكَ | عَلَى | الْمُسْلِمِينَ | |
| او هغې چې د عضباء سره خپل اوښ په منډه کړو نو د هغې اوښ مخکې شو دا خبره په مسلمانانو باندې ډېره سخته | | | | | | | | |
| فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | إِنَّ | حَقًّا | عَلَى اللهِ |
| تېره شوه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې "د الله تعالی دا یوه ثابته شوې فیصله ده چې دنیا کې هر یو | | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۸۷۰ أخرجه البخاري في الصحيح ۷۱/۶ رقم الحديث ۲۸۶۸ ومسلم في ۱۴۹۱/۳ رقم الحديث (۹۵-۱۸۷۰)

| |
|---|
| أَنْ لَا يَرْتَفِعَ شَيْءٌ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وضعه . رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| شی او چت شي، نو الله تعالی هغه راغوزار کړي". (بخاری) |

**توضيح: العضباء:** د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يوې اوښې نوم عضباء ؤو. اصل كې چې د كومې اوښې چې غوږ پيدائشي توګه باندې نه وي يا غوڅ وي نو هغې ته عضباء وايي. دلته د اوښې غوږونه ؤو خو واړه ؤو، ځکه ورله د عضباء نوم ورکړی شوی ؤو.

**لاتسبق:** يعنې هيڅ يو اوښ د دې نه مخکې نه شې تلی او دا شته نه شې پريښودلی. د مجهول صيغه ده. عضباء به په عامه توګه د مقابلې لپاره تيارېدلو. هغې د ټولو اوښانو د مخکې کېدلو ريکاډ جوړ کړی ؤو. (مرقات: ۳۴۰/۷)

**اعرابي:** بانډه چې ته وايي. **قعود:** د دوه کالو نه تر د شپږو کالو پورې اوښې ته قعود وايي. د شپږ کالو نه وروسته اوښې ته جمل وايي. ګويا کې قعود هغه ځوان اوښ وي اوس اوس د سورلی لپاره تيار کړی شوې وي. (مرقات ۴۳۰/۷)

**فاشتد ذلك:** يعنې صحابه کرامو باندې د بانډه چې د اوښ مخکې کېدل او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اوښې ريکاډ ماتلو بد ولږېدل، ځکه د عربو معاشره کې شاته کېدنه د شرم سبب ؤو.
دې باندې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو ته اطمينان ورکړو چې د نيا په معاملاتو کې چې هر يو کس مخکې شي او هغه مشهور شي نو يو وخت الله هغه شاته کړي. چې د دنيا فخر ختم شي. لهذا دې اوښې سره هم الله تعالی همدغه معامله وکړه. د پريشانه کېدلو هيڅ ضرورت نشته دی. (مرقات ۴۳۰/۷)

# الفصل الثاني

## د يو تير په ذريعه درې کسه جنت ته ځي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ اللهَ تَعَالَى |
| او حضرت عقبه ابن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې "الله تعالی |
| يُدْخِلُ بِالسَّهْمِ الْوَاحِدِ ثَلَاثَةَ نَفَرٍ الْجَنَّةَ: صَانِعَهُ |
| (کافرانو باندې د ويشتل شوې) يو تير په بدل کې درې کسان جنت ته داخلوې. وی خو د دې تير جوړونکی |

[1] رقم الحديث ۳۸۷۱ اخرجه البخاري في الصحيح ۷۳/۶ رقم الحديث ۲۸۷۲ وأبوداود في السنن ۱۵۱/۵ رقم الحديث ۴۸۰۲

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَحْتَسِبُ | فِي | صَنْعَتِهِ | الْخَيْرَ |

کله چې هغه د خپل روزګار نه د ثواب امید هم وساتي (يعني کله چې هغه تیر جوړوي نو د خپل روزګار سره دا نیت هم وکړي

| | | |
|---|---|---|
| وَالرَّامِيَ | بِهِ | وَمُنْبِلَهُ |

چې زه دا تير جهاد د پکار را تللو لپاره جوړوم) دويم جهاد کې تير ويشتونکې ته او دريم تير ورکونکې ته (يعني هغه کس

| | | |
|---|---|---|
| فَارْمُوا | وَارْكَبُوا | وَأَنْ |

چې د تير ويشتونکې په لاس کې تير ورکړو هغه که اول ورکړي او د د نشانې د پاسه يې ورکړې) لهذا تاسو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَرْمُوا | أَحَبُّ | إِلَيَّ | مِنْ | أَنْ | تَرْكَبُوا | كُلُّ شَيْءٍ |

تیراندازي کوئ او آسونو باندې سورلې کوئ او ستاسو تیراندازي ما ته د سورلۍ کولو نه ډېره خوښه ده. او یاد

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَلْهُو | بِهِ | الرَّجُلُ | بَاطِلٌ |

وساتئ! انسان چې کوم شي په لهو و لعب کې (يعني صرف په لوبو او تفريح) کې اختيار کړي هغه باطل او ناروا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | رَمْيَهُ | بِقَوْسِهِ | وَتَأْدِيبَهُ | فَرَسَهُ | وَمُلَاعَبَتَهُ | امْرَأَتَهُ |

دی، خو د خپل کمان نه تیراندازي کول، خپل آس ساتل او د خپلې ښځې سره سير او تفريح کول دا

فَإِنَّهُنَّ مِنَ الْحَقِّ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَزَادَ أَبُو دَاوُد والدارمي:

ټول شيان حق دي. ترمذی ابن ماجه) ابو داؤد او دارمي دا (خپل روايت کې) دا الفاظ هم نقل کړي دي "

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | تركَ | الرَّمْيَ | بعدَ | مَا | عَلِمَهُ | رَغْبَةً | عَنْهُ |

او کوم کس چې د تیراندازۍ د زده کولو نه وروسته دا د بې نیازۍ او بېزارۍ سره پرېږدي، نو هغه تیراندازي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّهُ | نِعْمَةٌ | تَرَكَهَا. | أَوْ | قَالَ: | كفرها[1] |

يو نعمت دی چې کوم هغې پرېښودلی دی. يا يې دا وفرمايل چې د هغې د دې نعمت ناشکري وکړه.

**توضيح**: **ثلاثة نفر**: يعني په جهاد کې د استعمالېدونکې يو تير په ذريعه د ښه نيت په وجه درې کسان جنت ته داخل شي. يو هغه جوړونکی چې د جهاد په نيت تير يا توپک وغيره خپلې کارخانه

(1) رقم الحديث ۳۸۷۲ أخرجه ابوداود في السنن ۲۸/۳ رقم الحديث ۲۵۱۳ والترمذي في ۱۴۹/۴ رقم الحديث ۱۶۳۷

کې جوړوې. دويم ويشتونکی مجاهد او دريم "منبل" مجاهد سره مورچه کې ولاړ کس چې تيرويشتونکې مجاهد ته په لاس کې تير ورکوي هغې ته منبل وايي. (مرقات : ۴۳۱/۷)

**نبآل:** تيراندازئ ته وايي او نبل تير ته وايي.

**وارموا وار کبوا:** د دې جملې يو اسان مفهوم داې دی چې تيراندازئ هم زده کړئ او اَس سوارې هم زده کړئ. دواړه کارونه د جهادې روزنې برخه ده. دويم مفهوم دا دی چې تيراندازې هم کوئ او اَسونو باندې د سپوربدلو حالت کې نيزه بازې هم کوئ. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې زماد نيزه بازئ نه تير اندازې ډېره خوښه ده، ځکه تيراندازئ کې په ځان اعتماد زيات دی او خالص د ځمکې په جنګ باندې مبنې دی. چې د جنګ نتيجه ترينه تر لاسه کېږي. خلاصه دا چې د هر قسمه مشق ښه دی خو د تير اندازئ مشق د نورو مشقونو نه زماډېر خوښ دی، نو په حديثونو کې د تيرونو چلول مقدم کړی شوی دی. بهرحال مشق زده کول او بيا يې هېرول ګناه ده. (مرقات ۴۳۱/۷)

**کفرها:** يعنې د يو نعمت ناقدرې او ناشکرې ده. (مرقات ۴۳۲/۷)

## په ميدان جهاد کې د تير ويشتلو ثواب

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي نَجِيحٍ السُّلَمِيِّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت ابو نجيح سلمی فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلې دې چې "کوم |
| مَنْ بَلَغَ بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ فَهُوَ لَهُ دَرَجَةٌ فِي الْجَنَّةِ |
| کس د الله په لاره کې (يعنې جهاد) کې يو تير (نښانه باندې) ؤولې (يعنې تيريې ويشتلو او کافريې پرې مړ کړ) |
| وَمَنْ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| نو د هغې لپاره جنت کې يوه لويه درجه ده او کوم کس چې د الله په لاره کې (يعنې جهاد) کې تير ويشتلو (هغې باندې |
| فَهُوَ لَهُ عِدْلُ مُحَرَّرٍ وَمَنْ شَابَ شَيْبَةً |
| کافر که ولږېدلو يا نا) نو د هغې لپاره د يو برده (غلام يا د وينځې د ازادولو برابر دی او کوم کس چې د اسلام (په حالت |
| فِي الْإِسْلَامِ كَانَتْ لَهُ |
| کې) بوډا شو (يعنې الله د اسلام په حالت باندې وساتلو تر دې چې هغه بوډه شو او مړ شو) نو هغه بوډه والی |
| نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ. وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ |
| به د قيامت په ورځ رڼا وي". (دا روايت بهيقی رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړی دی) ابو داؤد د (روايت صرف) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْفَصْلَ | الْأَوَّلَ | وَالنَّسَائِيُّ | الْأَوَّلَ وَالثَّانِيَ |
| اولنی جزیعنې نسائی اولنی او دویم جز (چې په کوم کې د تیراندازئ فضیلت بیان کړی شوی دی) نقل کړی دی. | | | |
| وَالتِّرْمِذِيُّ | الثَّانِيَ | وَالثَّالِثَ | وَفِي رِوَايَتِهِمَا: |
| او ترمذی دویم او دریم جز نقل کړی دی. دغه شان د بیهقی او د ترمذی په روایت کې "فی الاسلام" یعنې "د اسلام په حالت | | | |
| مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي سَبِيلِ اللهِ بدَلَ فِي الْإِسْلَامِ[۱] | | | |
| کې" "په ځای د في سبيل الله" یعنې د الله په لاره کې" دی. | | | |

**توضیح** **بلغ**: یعنې یو تیر نښانې ته ورسیدلو چې په کافر باندې ولږېدلو.

**ومن رمی**: یعنې د کافران اړخ ته یې تیر ویشتلو. هغه که پرې ولږېدلو یا نا.

**عدل**: برابر او د مساوي په معنی کې دی. **محرر**: یعنې غلام یا د وینځې د ازادولو برابر دی.

**الفصل الاول**: د دې حدیث درې برخې دي. دغه برخو ته فصل اول او ثانی او ثالث ویل شوی دی.

**من بلغ** نه د **ومن رمی** پورې یوه برخه ده. دې ته فصل اول ویلی شوی دی. ابوداؤد دغه هومره نقل کړی دی. د **ومن رمی** نه و من شاب پورې دویمه برخه ده. امام نسائی اولنۍ او دویمه برخه نقل کړې ده. او ترمذی دویمه او دریمه برخه نقل کړې ده. دریمه برخه د **ومن شاب** نه تر آخر پورې ده. د فصل اول نه مراد برخه او جزء دی.

**وفی روایتهما**: په ظاهر د تثنیه دا ضمیر نسائی او د ترمذی اړخ ته تلل پکار دی، ځکه دواړه نزدې نژدې دي، خو داسې نه ده، ځکه نسائی دریم جزء نه دی نقل کړی. لهذا د تثنیه دا ضمیر د بیهقی او ترمذی اړخ ته ځي، ځکه بیهقی پوره حدیث نقل کړی دی.

اوس پوښتنه دا ده چې بیهقی د **شیبة فی الاسلام** لفظ استعمال کړی دی، لکه څنګه چې پاس حدیث کې دی، نو د بیهقی باره ویلی کېدی شي چې هغې د **فی سبیل الله** لفظ نه دی استعمال کړی. بیا دلته صاحب مشکوٰة څنګه ویلي دي چې **"وفی روایتهما فی سبیل الله الخ"**

د دې جواب دا دی چې د بیهقی نه دوه روایتونه نقل دي. یو کې د **فی الاسلام** لفظ نقل دی چې په ترمذی کې نشته دی. او دویم روایت کې د **فی سبیل الله** لفظ دی چې په ترمذی کې هم دی. او بیهقی کې هم دی. لهذا د و **فی روایتهما** جمله صحیح شوه. (مرقات : ۴۳۳/۷)

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۷۳ أخرجه ابوداود في السنن ۲۷۴/۴ رقم الحديث ۳۹۶۵ والترمذي في ۱۴۹/۴ رقم الحديث ۱۶۳۸ .

## جهادي روزنه کې شرط لګول جائز دی

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا سَبَقَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "د مسابقې د شرط مال اخستل |
| إِلَّا فِي نَصْلٍ أَوْ خُفٍّ أَوْ حَافِرٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيّ[1] |
| صرف درې شيانو (يعنې) تير ويشتلو، اوښ په منډه کولو او د آسونو په منډه کې جائز دی". |

**توضيح:** لاسبق: مخکې کېدلو کې شرط لګولو ته سبق او سباق ويلی شوی دی. يعنې مقابله کې د انعام شرط لګول د جهادې روزنې برخه کې جائز دی. د دې نه بغير ناجائز دی. ځکه دا جوارې ده. کوم شيان چې د جهاد په وسائلو او ذرايعو کې شامل دي. د هغې په مسابقت کې شرط لګول او مقابله کول او د شرط روپۍ اخستل اصل کې جهاد ته د ترغيب ورکولو د نظر په خاطر دی. او اعداد اله جهاد او د هغې په تشويق او ترغيب په حکم کې راځې، ځکه دا جائز ګڼلی شوي دي. جهاد عجيبه عبادت دی او د دې عجيبه نازکه احکامات دي. ډېر شيان نورو ځايونو کې ناجائز دي خو په جهاد کې جائز دي. (مرقات ۴۳۳/۷)

چا څه ښه ويلې دي:

تفرد بالاحکام في اهله الهوى ❁ فانت جميل الخلف مستحسن الکذب

**نصل:** "**اى ذو نصل**" نصل بهالې ته وايي چې په نيزه او تير کې وي.

او خف: اى ذو خف، اوښ ته وايي. (مرقات ۴۳۴/۷)

حافر: اى ذو حافر آس ته وايي. حديث کې دا درې شيان خاص کړی شوې دي. چې تربنه معلومېږي چې د دې نه بغير بل هيڅ يو څيز کې شرط لګول او روپۍ اخستل جائز نه دی.

خو فقهاؤ د دې درې شيانو په حکم کې هغه شيانو هم شامل کړي دي. جو اعداد آله جهاد کې استعمالېږي. مثلاً خچر، خر او هاتې (فيل) دی يا پياده مقابله کول دي يا د ټوپک وغيره نښانه صحيح کول دي. چې دا ټول شيان د جهادې روزنې په غرض وي نو هغې کې هم د شرط لګولو روپۍ وصول کېدلی شي، ځکه علت مشترک دی. ما د فقهاؤ دا خبره نقل کړې ده. (کذا فى المرقات)

---

[1] رقم الحديث ۳۸۷۴ أخرجه ابوداود في السنن ۶۳/۳ رقم الحديث ۲۵۶۴ والترمذي في ۱۷۸/۴ رقم الحديث ۱۷۰۰

## په مسابقه کې د محلل د شریکیدو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل "چې کوم کس د دوه آسونو په |
| بَيْنَ فَرَسَيْنِ فَإِنْ كَانَ يُؤْمَنُ |
| مينځ خپل آس شامل کړي نو هغه آس داسې دی چې (د تيزېدلو په وجه) د هغې باره کې دا يقين دی چې هغه به (د دې دواړو |
| أَنْ يَسْبِقَ فَلَا خَيْرَ فِيهِ وَإِنْ كَانَ لَا يُؤْمَنُ أَنْ يَسْبِقَ |
| آسونو نه) مخکې ځي، نو دې کې خير نشته دی. او که دا يقين نه وي چې هغه به مخکې لاړ شي، |
| فَلَا بَأْسَ بِهِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: قَالَ: |
| نو بيا څه باک نه کوي". او د ابوداؤد روايت کې دا الفاظ دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل |
| مَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ يَعْنِي وَهُوَ لَا يَأْمَنُ |
| چې که يو کس د دوه آسونو مينځ کې خپل آس شامل کړو چې د هغې باره کې دا يقين نه دی چې |
| أَنْ يَسْبِقَ فَلَيْسَ بِقِمَارٍ وَمَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ |
| هغه به مخکې شي نو دا جواري نه ده او که چرې يو کس د دوه آسونو مينځ خپل (داسې) آس شامل کړي |
| وَقَدْ أَمِنَ أَنْ يَسْبِقَ فَهُوَ قِمَارٌ[1] |
| چې د هغې باره کې دا يقين دی چې دا به مخکې لاړ شي نو دا جواري ده. |

**توضيح: ادخل فرسا بين فرسي:** دا سې معلومېږي چې دا په جهادي روزنه کې نه دی بلکې د عامه آسونو د منډې مقابله ده، ځکه د دې د جواز لپاره يو خاص صورت ويلې شوی دی. حال دا چې جهادي معامله کې هيڅ صورت ناجائز نه دی، لکه ځنګه چې مخکې تېر شوې دي. ما د دې حديث نه همدغه ګڼلې ده. والله اعلم. بهرحال د حديث پس منظر او د جائز او ناجائز صورتونو نقشه داسې ده چې مثلاً د دوه کسانو د آسونو مقابله ده. که يوې کمپنۍ يا حاکم په دې کې د مخکې کېدونکې لپاره د انعام په توګه شرط ايښی دی، نو دا جائز دي. دغه شان د دواړو آسونو مالکانو کې يو خپل ملګري ته وويل چې که چرې ته مخکې ؤوتلې نو دومره روپۍ به درکوم او که زه مخکې ؤوتلم نو څه

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۷۵ أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۰/۳۹۶ رقم الحديث ۲۶۵۴ وابوداود في السنن ۳/۶۶ رقم الحديث ۲۵۷۹

به هم نه اخلم. دا صورت هم جائز دی. او که دواړو شرط کیښودلو نو دا معامله د جوارئ ده. چې ناجائزه ده، خو که په شرط کې محلل راغلو نو د بیا به د طرفینو معامله جائزه وي. محلل هغه دریم کس ته وایي چې خپل اَس د شرط لګونکو سره شامل کړي او وایي چې که زه د دواړو نه مخکې شوم نو ستاسو دواړو نه به دومره روپئ اخلم. او که زه شا ته پاتې شوم نو زه تاسو ته هیڅ نه درکوم. مانه به هیڅ نه اخلئ. اوس د دې محلل په داخلیدلو سره د اَسو د منډو اولنی شرط تړونکې دواړه کسانو لپاره شرط حلال شو. په دې وجه دې ته محلل وایي. اوس که محلل ونه وتلو او په دې دواړو کې یو کس مخکې ؤوتلو نو هغه به د خپل ملګري نه مقرر شوی شرط اخلي او که دواړه یو ځای ورسېدل نو هي یو ته به روپئ نه ملاویږي، خو د محلل لپاره په دې حدیث کې یو شرط لګولی شوی دی. هغه دا دی چې که چرې د هغې د اَس د دې دواړو د اَسونو نه د مخکې کېدل یقنینط نه وي بلکې احتمال وي چې مخکې شي یا وروسته پاتې شي. که تولو ته په یقینې توګه معلومه وي چې د محلل اَس به مخکې کېږي نو بیا دا کس محلل نه شي کېدلی. بلکې ټوله معامله به ناجائز شي. (مرقات ۴۳۵/۷)

## په اَسونو کې جلب او جنب منع دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ. |
| او حضرت عمران ابن حصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې "نه جلب (جائز) دی او نه جَنب او (یو راوي |
| زَادَ يَحْيَى فِي حَدِيثِهِ: فِي الرِّهَانِ. |
| یحیی په خپل روایت کې د لفظ "فی الرهان" هم نقل کړی دی یعنې د هغې په روایت کې دا دي چې رهان یعنې د اسونو په شرط |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| او مسابقت کې نه جلب جائز دی او نه جنب. دا روایت ابو داؤد نقل کړی دی. د غه شان ترمذی هم دا روایت |
| مَعَ زِيَادَة فِي بَابِ الْغَضَبِ[1] |
| څه زیات الفاظو او معانې سره په باب الغصب کې نقل کړی دی". |

**توضیح**: **جلب او جنب**: د دې دا اصطلاح په کتاب الزکوة کې هم استعمال شوې ده. او کتاب الجهاد کې هم استعمال شوې ده. او په کتاب البیوع کې صرف د یو لفظ جلب استعمال شوی دی. کتاب الزکوة

---

[1] رقم الحديث ۳۸۷۶ أخرجه ابوداود في السنن ۶۷/۳ رقم الحديث ۲۵۸۱ والترمذي في ۴۳۰/۳ رقم الحديث ۱۱۲۳

او بیوع کې د دې تفصیل تېر شوی دی. هلته یې کتل پکار دي. دلته اصطلاحي مفهوم دا دی چې د اَس د منډې مقابله کې یو کس خپل اَس شاته یو بل سپور شوی پرېږدې. خپله په اَس باندې سپور دی، خو د مقابل کونکې کس اَس د شاته نه تنګوي. او ازونه ورکوي او په تیزه کوي. دا ناجائز دي، لکه د خر په منډه کولو لپاره په هغې باندې سپور شوی کس لوټا وغیره شرنګئ. یا د اوښانو په مقابله کې ظالمان عربان معصومه ماشومان سپور کړي. ماشوم د وېرې له وجې ژاړي، نو اوښ وېرېږي او په تیزه منډه وهي. الله تعالیٰ به داسې ظالمانو ته سزه ورکړي. (مرقات ۴۴۵/۷)

**ولا جنب**: جنت دا دی چې د مقابله کونکې سره سره یې یو فارغ اَس ایښی دی. د دې لپاره چې کله یې سورلۍ ستړې شي نو د هغې لګئ تازه کړي او بېرته پې سپور شي. کوم یې چې غاړي ته دی. دا هم ناجائز دی. (مرقات ۴۴۵/۷)

**في الرهان**: اَسونو د منډو مقابله او شرط لګولو ته رهان وایي.

## د ښائسته اَسپې علامت

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَن أَبِي قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: خَيْرُ الْخَيْلِ |
| او حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل. بهترین اَس |
| الْأَدْهَمُ الْأَقْرَحُ الْأَرْثَمُ ثُمَّ الْأَقْرَحُ |
| تور اَس دی. چې په تندي باندې یې لږ سپین وي او د پوزې اړخ ته یې سپین والی وي. بیا هغه اَس بهتر دی |
| الْمُحَجَّلُ طَلْقُ الْيَمِينِ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ |
| چې په تندي باندې یې لږ سپین والی وي او پښې یې سپینې وي خو ښي پښه یې سپینه نه وي. او |
| أَدْهَمَ فَكُمَيْتٌ عَلَى هَذِهِ الشِّيَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ[1] |
| که اَس تور نه وي نو بیا د غه قسمه کمیت (هم بهتره اَس دی) |

**توضیح**: **الادهم**: ډېر زیات تور اَس ته ادهم وایي. د دې تور اَس شپږ صفات هم په دې حدیث کې ذکر دي. اول صفت د اقرح دی. یعنې چې په تندي یې سپین داغ وي چې د غرّه نه کم وي. (مرقات ۴۳۴/۷)

**الارثم**: دا دویم صفت دی یعنې د پاسنۍ شونډې برخه یې د پوزې اړخ ته سپین وي. (مرقات ۴۳۶/۷)

**ثم الاقرح المحجل**: یعنې که د ادهم پاسنې صفات په ادهم کې نه وي نو په ادهم کې دویم نمبر باندې

---

[1] رقم الحديث ۳۸۷۷ أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۶/۲ رقم الحديث ۱۶۹۶ وابن ماجه في ۹۳۳/۲ رقم الحديث ۲۷۸۹

هغه آس دی چې د ټولو نه ښه دی. په تندي باندې یې د سپین داغ سره د هغې پښې هم تر یوه حد پورې سپینې وي. اګر که ټول سپین وي یا که دوه سپین وي یا درې سپینې وي. (مرقات ۴۳۶/۷)

**طلق الیمین:** یعنې که په پښو کې څه سپین والی وي، نو په دې کې شرط دا دی چې صرف یې ښي پښه سپینه نه وي بلکې دا پښه ازاده وي. (مرقات ۴۳۶/۷)

**فکمیت:** یعنې که تور آس نه وي نو د هغې نه وروسته د کمیت آس ښه دی. کمیت هغه آس دی چې د غړئ او لکئ مینځ کې ویختان یې تور وي او باقي آس سور وي. (مرقات ۴۳۷/۷، ۴۳۶)

**علی هذه الشیة:** **شیة د شیات جمع ده.** دا هغه داغ ته وایي چې د بدن د عام رنګ خلاف وي. شاعر ساحر ادهم او شیة په یو شعر کې داسې راجمع کړي دي.

**افاعیل الوریٰ من قبل دهم ۞ و فعلک في فعالهم شیات**

د دې جملې مطلب دا دی چې که تور آس نه وي نو بیا کمیت هم ښه آس دی، خو د ادهم په صفت باندې وي. چې **اقرح وأرثم و محجل هو.** (مرقات ۴۳۷/۷)

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلَيْكُمْ بِكُلِّ |
| او حضرت ابؤوهب جشمي وايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل ستاسو لپاره سپين تندي والا |
| كُمَيْتٍ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ أَشْقَرَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ |
| او د سپين لاس پښو والا کميت آس ضروري دی. بيا اشقر آس پکار دی. چې تندی يې هم سپين وي |
| أَوْ أَدْهَمَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| او لاس او پښې يې هم سپينې وي يا تور آس وي چې د سپين تندي والا وي او د سپين لاس او پښو والا وي. |

## په سرو اسونو کې برکت وي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُمْنُ الْخَيْلِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل آسونو کې برکت په سرو |
| فِي الشُّقْرِ. رَوَاهُ التِرمذيُّ وَأَبُو دَاوُد[2] |
| آسونو کې وي. (ترمذی، ابوداؤد) |

---

([1]) رقم الحديث ۳۸۷۸ أخرجه أبوداود في السنن ۴۷/۳ رقم الحديث ۲۵۴۳ والنسائي في ۲۱۸/۶ رقم الحديث ۳۵۶۵.

([2]) رقم الحديث ۳۸۷۹ أخرجه أبوداود في السنن ۴۸/۳ رقم الحديث ۲۵۴۵ والترمذي في ۱۷۶/۴ رقم الحديث ۱۶۹۵.

**توضیح:** اغر: د غرة نه دی. د تندې سپین داغ ته وایي. (مرقات ۴۳۷/۷)

**اشقر:** سور رنګې آس ته وایي. چې ټول سور وي خو د هغې لکۍ یا د غړۍ ویختان سپین وي. هم دومره فرق دی او شقر سور رنګ ته وایي.

## د آسونو په تندې، په څټ ولاړ ویختان او د لکۍ ویختان مه غوڅوئ

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَن عُتبَةَ بن عبدٍ السُّلمِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت عتبه ابن سلمی رضي الله عنه فرمایي چې هغې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې |
| لَا تَقُصُّوا نَوَاصِيَ الْخَيْلِ وَلَا مَعَارِفَهَا وَلَا أَذْنَابَهَا |
| "د آسونو د تندې ویختان د هغې د غړۍ او د لکۍ ویختان مه غوڅوئ ځکه د هغې لکۍ د هغې مورچهل دی |
| فَإِنَّ أَذْنَابَهَا مَذَابُّهَا وَمَعَارِفَهَا دِفاءُها |
| (چې هغه دا خوځئ نو مچانو او ماشي الوځوي) او د هغې غړۍ هغوی ته د ګرمۍ د رسولو شیان دي. |
| وَنَوَاصِيهَا مَعقُودٌ فِيهَا الْخَيْرُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| شوی دی. او د دوی د تندې په ویختانو کې خیر تړلی |

**توضیح:** لاتقضوا: قص د غوڅولو په معنی کې دی. (مرقات ۴۳۷/۷)

**نواصي:** د ناصیة جمع ده. د تندې ویښتو ته وایي. (مرقات ۴۳۷/۷)

**معارف:** د دې مفرد عرف دی یا معرفة دی. د آس په څټ چې کوم ویختان او چت ولاړ وي هغه مراد دي. چې ایال ورته وایي. (مرقات ۴۳۷/۷)

**اذنابها:** د دې مفرد ذنب دی. لکۍ ته وایي. مراد ترېنه د لکۍ ویختان دي. د حدیث نوره برخه کې د دې د ممانعت اړخ ته اشاره شوې ده. (مرقات ۴۳۸/۸)

**مذابها:** دا د ذب نه دی. د اخوا کولو په معنی کې دی. یعنې د لکۍ ویختانو باندې آس مچان وغیره پاسوي. دا د دې پکی دی. (مرقات ۴۳۸/۷)

**معقود:** یعنی د تندی ویښتو کې الله تعالی برکت ایخودلې دې. (مرقات ۴۳۸/۷)

---

(۱) رقم الحدیث ۳۸۸۰ اخرجه ابوداود في السنن ۴۸/۳ رقم الحدیث ۲۵۴۲ واحمد في المسند ۱۸۴/۴

## د جهادي اسونو ساتنه وکړئ

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْتَبِطُوا الْخَيْلَ |
| او حضرت وهب جشمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل اسونه وتړئ. د هغې |
| وامسحُوا بنواصيها وأعجازِها أَو قَالَ: كفالِها |
| په تندو او شا ګانو باندې لاسونه راكاږئ. يا د (اعجازها په ځاى) اكفالها وفرمايل او د دې دواړو الفاظو به ه معنى |
| وَقَلِّدُوهَا وَلَا تُقَلِّدُوهَا الْأَوْتَارَ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| ده، شا ترېنه مراد ده. او د دې په څټ كې رسۍ وتړئ خو د دې په څټ كې د كمان په مزي باندې يې مه تړئ. |

**توضيح**: ارتبطوا: وې تړئ يعني ښه ساتنه يې وكړئ. او ښه خوراك پرې وكړئ چې ښې تازه او چاغې وي. او د جهاد په وخت كې ښې كانامې وكړي. (مرقات ۴۳۸/۷)

**اعجاز**: د عجز جمع ده. (مرقات ۴۳۸/۷)

**اكفال**: د كفل جمع ده. د دواړو ترجمه وروستنۍ برخه ده. يعني انس او محبت او صفائې او د خدمت په غرض د اس په شا باندې او په وروستنۍ برخه باندې لاس راكاږئ. (مرقات ۴۳۸/۷)

**وقلدوها**: يعني د اس په غاړه كې قلاده اچوئ. چې د اسلام د دښمنانو سره د جنګ لپاره د دين د اوچت والي لپاره هر وخت تيار وي. (مرقات ۴۳۸/۷)

**الاوتار**: دا د وتر جمع ده. د كمان مزي او پړي (تسمه) ته وايي. مطلب دا دى چې دا تسمه د اس په غاړه كې مه اچوئ. دې سره اس ځوړند شي. يا د وتر نه مراد شركيه مزى او تسمه ده. چې د عربو د ضرر د لرې كولو لپاره د ځناورو په غاړه كې تړلو او شرک عقيده به يې ترېنه ساتله. اسلام دا منع كړې ده. (مرقات ۴۳۸/۷)

## د اهل بيتو درې خصوصيات

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدًا مَأْمُورًا |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو مامور بنده وُو. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته |
| مَا اخْتَصَّنَا دُونَ النَّاسِ بِشَيْءٍ إِلَّا بِثَلَاثٍ: |
| (يعنې خپل اهل بيت د نورو خلكو نه جدا كړه او د درې خبرو نه بغير بل د هيڅ يوې خبرې په خصوصي |

(۱) رقم الحديث ۳۸۸۱ اخرجه أبوداود في السنن ۵۳/۳ رقم الحديث ۲۵۵۳ والنسائي في ۲۱۸/۶ رقم الحديث ۳۵۶۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَمَرَنَا | أَنْ | نُسْبِغَ | الْوُضُوءَ |
| مونږ ۱: او دس | دا دي چې (دا) پوره او دس وکړو | | |

توګه حکم نه دی کړی. او هغه (دري خبرې چې په خاصه توګه يې اهل بيتو ته حکم کړی ؤو) دا دي چې ۱: مونږ او دس

وَأَنْ لَا نَأْكُلَ الصَّدَقَةَ وَأَنْ لَا نُنْزِيَ حمارا على فرس. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ[1]

پوره وکړو ۲: مونږ د صدقې مال ونه خورو ۳: مونږ آسپو باندې خرې ونه خېژؤو.

**توضيح: عبداً مأموراً:** يعنې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله تعالى د حكم پابند بنده ؤو. كوم حكم چې د الله د اړخ نه به ملاوېدلو هغه به يې عوامو ته رسولو. داسې نه وه چې خپلوانو ته به يې خصوصي حكم كولو او نورو ته به يې نظر نه كولو. دغه شان په احكاماتو كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به امتياز او خصوصيت روا نه ساتلو. همدغه وجه ده چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا وضاحت كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مونږ اهل بيتو ته هم د يو شي خاص حكم نه كولو، خو د درې شيانو يې مونږ ته په خاصه توګه حكم وكړو. اګر كه امت هم په دې كې مونږ سره دوه شيانو كې شريک دی، خو په خاصه توګه مونږ ته حكم شوی دی. هغه درې وصيتونه پوره اودس كول، صدقه نه خوړل او خر په آسپې نه خېجول دي. خر په آس باندې د خېجولو په وجه د آسپې نسل خرابېږي. او د دښې شي په ځای بيكاره شی ترلاسه كېږي، ځكه خچر د آس نه ادنی دی. دې وصيت كې او د كامل او پوره اودس كولو وصيت كې نور امت هم شريک دی. البته صدقه نه خوړل صرف د اهل بيتو خصوصياتو كې دی. دې حديث باندې په اهل روافضو باندې ښكاره رد دی چې وايې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خصوصي وصيتونه كړي ؤو. روافض په اذان كې د دې اظهار د **"وصى رسول الله"** په الفاظ سره كوي. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او اهل بيت بار بار د دې ترديد كړی دی، خو روافض ډېر پليد خلک دي. (مرقات ۴۳۸/۷)

## آسپې ته خر پرېښودل منع دي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: أُهْدِيَتْ رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم |
| او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې (يو موقع باندې) د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې |

[1] رقم الحديث ۳۸۸۲ اخرجه ابوداود في السنن ۵۰۷/۱ رقم الحديث ۸۰۸ والترمذي في السنن ۱۷۸/۴ رقم الحديث ۱۷۰۱

| | | | |
|---|---|---|---|
| بغلةٌ | فركبها | فقال | عليٌّ: |

يو قچر د هديه په توګه پيش کړی شو، نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم هغې باندې سپور شو. حضرت علي رضي الله عنه عرض وکړو

لَوْ حَمَلْنَا الْحَمِيرَ عَلَى الْخَيْلِ فَكَانَتْ لَنَا مِثْلُ هٰذِهٖ؟

چې که چرې مونږ آسپو ته خر ورپرېږدو نو مونږ ته به (هم) داسې قچر ملاؤ شي؟ (دې او رېدلو سره)

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ الَّذِيْنَ لَا يعلمُوْنَ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1]

نبي عليه السلام وفرمايل چې دا کار هغه خلک کوي چې ناواقفه دي. (روايت کړې دي ابوداؤد او نسائی)

**توضيح** لايعلمون: يعنې خر په آسپې ته پرېښودل د نامعقوله خلکو کار دی. که دا عقل مند خلک وی آسپې باندې به يې آس پرېښودلی وی چې د ښه نسل والا آسونه پيدا شي. د خر د نسل نه بيکاره خچر پيدا کېږي. دا خلک د صحيح فيصلې نه لرې شوي دي او د صحيح لارې نه بې لارې شوې دي. او په دې مکروه کار کې مشغوله شوې دي.

## د نبي کريم صلى الله عليه وسلم توره

﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم تورې قبضه (موټي) خولۍ د

مِنْ فِضَّةٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْ دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ والدارمي[2]

سپينو زرو وه. (روايت کړې دي ترمذی او ابوداؤد، نسائی او دارمی)

**توضيح** قبيعة سيف: د تورې خولۍ ته وايي. چه دلاسکی نه شاته وی. د تورې د ښائست لپاره لږ شان سره زر استعمالول جائز دي. سپين زر هم جائز دي خو چې ډېر نه وي. (مرقات ۷/۴۴۰)

﴿۲۵﴾ وَعَنْ هُوْدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ جَدِّهٖ مِزِيْدَةَ قَالَ: دَخَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت هود بن عبدالله ابن سعد د خپل نيکه چې نوم يې مزيدؤ نقل کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَوْمَ | الْفَتْحِ | وَعَلَى | سَيْفِهٖ |

د فتح په ورځ (مکې) ته داخل شو، نو هغه وخت د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره توره وه. هغې باندې

(۱) رقم الحديث ۳۸۸۳ أخرجه ابوداود في السنن ۵۸/۳ رقم الحديث ۲۵۶۵ والنسائي ۲۲۴/۶ رقم الحديث ۳۵۸۰.

(۲) رقم الحديث ۳۸۸۴ أخرجه ابوداود في السنن ۶۸/۳ رقم الحديث ۲۵۸۳ والترمذي في ۱۷۳/۴ رقم الحديث ۱۶۹۱

| |
|---|
| ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيث غَرِيب[1] |
| د سرو او سپينو زرو کار شوی ؤو. (روايت کړې دې ترمذی) |

## نبي کريم ﷺ د أحد په ورځ دوه زغرې واغوستلې

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾وَعَنِ السَّائِب بْنِ يَزِيدَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سائب ابن يزيد رضي الله عنه نه روايت دی چې د غزوه أحد په ورځ د نبي کريم ﷺ |
| كَانَ عَلَيْهِ يَوْمَ أُحُدٍ دِرْعَانِ قَدْ ظَاهَرَ بَيْنَهُمَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[2] |
| (بدن مبارک) باندې دوه زغرې وې. نبي کريم ﷺ يوه په بلې باندې اغوستې وه. (ابو داود، ابن ماجه) |

**توضيح**: قدظاهر: يعنې يوه يې په بلې باندې د لاندې اغوستې وه. معلومه شوه چې د زيات نه زيات اسلحه استعمالول د توکل منافي نه ده. او دا هم معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ خپله جنگ کړی دی او په ښه انداز سره يې جنگ کړی دی. کوم خلک چې دا نقصان او شرم گڼې يا تربنه انکار کوي. هغه دې د خپل ايمان خير ولمانځې. (مرقات ۴۴۱/۷)

## د نبي کريم ﷺ جنگي جنډه

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَتْ رَايَةُ نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوْدَاءَ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم ﷺ غټه تور رنګې جنډه وه او وړه جنډه |
| وَلِوَاؤُهُ أَبيضَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه[3] |
| يې د سپين رنګ وه. (ترمذی و ابن ماجه) |

**توضيح**: راية: ملکي غټې جنډې ته رايه وايي. دا جنډه توره وه. د تور مطلب دا نه چې بېخې توره وه بلکې د لرې نه توره ښکارېدله. او که د نزدې نه چا کتلی نو سپينې پټې پکې ښکارېدلې او همدغې ته پړانګينه (د پړانګ په رنګ) ويلی کېږي. (مرقات ۴۴۱/۷)

**والوائه ابيض**: يعنې د نبي کريم ﷺ جنګې جنډه وړه او سپينه وه. چې امن ته اشاره ده. (مرقات ۴۴۲/۷)

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۸۵ أخرجه الترمذي في السنن ۱۷۳/۴ رقم الحديث ۱۶۹۰

(۲) رقم الحديث ۳۸۸۶ أخرجه ابوداود في السنن ۷۱/۳ رقم الحديث ۲۵۹۰ وابن ماجه في ۹۳۸/۲ رقم الحديث ۲۸۰۶

(۳) رقم الحديث ۳۸۸۷ أخرجه الترمذي في السنن ۱۶۹/۴ رقم الحديث ۱۶۸۱ وابن ماجه في ۹۴۱/۲ رقم الحديث ۲۸۱۸

﴿۲۸﴾ وَعَنْ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ مَوْلَى مُحَمَّدِ بْنِ الْقَاسِمِ قَالَ: بَعَثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ

او حضرت موسی ابن عبیدة چې د محمد ابن قاسم (تابعي) ازاد کړی شوی غلام ؤ وايي چې محمد ابن قاسم

إِلَى الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ يَسْأَلُهُ عَنْ رَايَةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زه حضرت براء بن عازب خوا ته ولېږلم چې دا معلومه شي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیرغ څنګه ؤ.

فَقَالَ: كَانَتْ سَوْدَاءَ مُرَبَّعَةً مِنْ نَمِرَةٍ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[1]

نو براء بن عازب وفرمايل چې جنډه د تور رنګ وه. د هغې تو ته څلور ګوټه او د پړانګ د څرمنې په شان وه.

**توضیح مربعة**: يعنې اوږد والی او پلنوالی یې څلور ګوټه ؤ. **نمرة**: د پړانګ په رنګ وه.

﴿۲۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کریم ﷺ (د فتح مکه په ورځ) مکې ته داخل شو، نو هغه

وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ[2]

وخت د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره سپینه جنډه وه.

## الفصل الثالث

﴿۳۰﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: لَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ النِّسَاءِ

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نظر کې د ښځو نه وروسته (د جهاد د مقصدونو لپاره)

مِن الْخَيل. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[3]

د آسونو نه زيات محبوب او خوښ بل هيڅ يو شی نه ؤ.

## خپله قومي اسلحه جوړه کړئ او هغه خپله کړئ

﴿۳۱﴾ وَعَن عَلِيٍّ قَالَ: كَانَتْ بِيَدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي (په هيڅ يو ميدان کې يا هيڅ په يو داسې موقع باندې) د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

[1] رقم الحديث ۳۸۸۸ أخرجه ابوداود في السنن ۷۱/۳ رقم الحديث ۲۵۹۱ والترمذي ۱۸۹/۴ رقم الحديث ۱۶۸۰

[2] رقم الحديث ۳۸۸۹ أخرجه ابوداود في السنن ۷۲/۳ رقم الحديث ۲۵۹۲ والترمذي في ۱۶۸/۴ رقم الحديث ۱۶۷۹.

[3] رقم الحديث ۳۸۹۰ المرقاة المفاتيح ۴۰۶/۷

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَوْسٌ | عَرَبِيَّةٌ | فَرَأَى | رَجُلًا | بِيَدِهِ | قَوْسٌ | فَارِسِيَّةٌ |

په لاس كې عربې لينده ؤو. كله چې هغې يو كس (صحابي) په لاس كې فارسي (ايراني) لينده وليدلو نو ويې فرمايل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | مَا | هَذِهِ؟ | أَلْقِهَا | وَعَلَيْكُمْ | بِهَذِهِ | وَأَشْبَاهِهَا |

چې دا څه دي؟ دا غورزاره كړه. تا له (يعني عربې) لينده ساتل پكار دي. او دغه شان (يعني دا قسم) ساتل پكار

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَرِمَاحِ | الْقَنَا | فَإِنَّهَا | يُؤَيِّدُ | اللهُ | لَكُمْ | بِهَا | فِي | الدِّينِ |

دي. دغه شان روغې نيزې ساتل پكار دي. يقيناً د دې په ذريعه الله تعالى به د دين په (او چتولو كې) ستاسو

وَيُمَكِّنُ لَكُمْ فِي البلادِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1]

سره مرسته وكړي. او (د دښمنانو) ښارونو كې به تاسو كلک كړي. (١)

(١) د ښځو نه وروسته آسونو سره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ محبت د جهاد د محبت اړخ ته اشاره ده. هغه وخت به آس د جيټ طيارې په شان كار كولو. حديث كې د اعدادو ډاډګېرنه ده. (د كتاب په صفحه ۱۱۸ آخر كې باندې دی)

**توضيح**: **قوس فارسية**: يو عربې لينده وي او يو فارسي لينده وي. د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس كې عربې لينده وه. او د يو صحابي په لاس كې فارسي لينده وه. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه خوښ نه كړو. او ويې فرمايل چې دا غوزار كړه او عربي لينده په لاس كې واخله او استعمال يې كړه. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عربي ليندي ته په فارسي ليندي باندې ولې ترجيح وركړه؟ ما د ځينو علماؤ نه اورېدلې دي چې عربي لينده د ماتېدلو نه وروسته هم كار كوي، خو په فارسي كمان كې دا صفت نشته دی، نو ځكه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عربې كمان د ښه والي له نظره دا د اختيارولو حكم وركړو. ډېره ښه توجيه ده. كاش كه چا چرته په كتاب كې ليكلې وی. (مرقات ۴۴۴/۷)

بله توجيه چې زما په ذهن كې راځي هغه دا ده چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله وطنۍ او د قومي اسلحه ډاډګېرنه كړې ده چې عربې كمان زمونږ د مصنوعاتو نه دی. مونږ له په دې باندې پوره اعتماد ساتل پكار دي او د نورو جوړه شوې اسلحه خپل قومي بنياد اينښودل پكار نه دي. حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هم په عام جنګونو كې خپلې قومي اسلحې ته ترجيح وركوله. اګر كه د غيرو خلكو اسلحه به څو مره هم ښه وه. د حديث سياق او سباق د دې توجيهاتو سره بالكل موافق ده، ځكه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلې دي چې د هم دې اسلحې په وجه او د جهاد په بركت سره به الله تعالى دين كې ستاسو سره مرسته كوي او په ملكونو كې به تاسو ثابت قدم كړي.

---

[1] رقم الحديث ۳۸۹۱ اخرجه ابن ماجه في السنن ۹۳۹/۲ رقم الحديث ۲۸۱۰

درېمه توجيه دا هم ده چې کومه ټولو شارحينو اخستې ده. ملاعلي قاري او علامه طيبي او نورو شارحينو همدغه اختيار کړې ده. هغوی فرمايي چې د هغه صحابي خيال ؤو چې فارسې کمان مضبوط وي. په دې به مونږ ته ډېر فتوحات تر لاسه شي، ځکه ورته نبي کريم ﷺ وفرمايل چې ستا خيال صحيح نه دی. د جنګ آلاتو باندې فتوحات نه کېږي. بلکې دا د الله تعالیٰ په نصرت او مرستې سره حاصلېږي. دا نصيحت په خپل ځای بالکل صحيح دی، خو د بحث لاندې د حديث سياق و سباق د دې توجيه نه ډېر لرې ده، ځکه نبي کريم ﷺ د "انها" نه تر آخره پورې د اسلحې د استعمالول او د جنګ د آلاتو د اختيارول د دين د ترقئ ذريعه ويلې ده.

**فانها**: کې ضمير قصه دا ده چې دې کمانونو او نيزو سره الله تعالیٰ ستاسو د دين تائيد کوي او ستاسو قدمونه په دنيا کې مضبوطوي. (مرقات ۷/۴۴۴)

هرمسلمان له پکار ده چې هغه جهاد او اسلحه مضبوطه کړي. څومره چې اسلحه او ايمان مضبوط وي د مسلمانانو جهاد به مضبوط وي. د خلکو ذهن به جهادي وي، نو دين به هم ترقي کوي. مسلمان حکومتونه به هم مضبوط وي. دنيا به هم اباده وي. امن به قائم وي. عزتونه او عظمتونه به محفوظ وي. معاشره به هم پاکه وي. او ملک به هم خوشحاله وي. ګنې هيڅ به لاس را نشي. او ذلت به مسلط شي. الله تعالیٰ چې د اسمان د کافرانو د مغلوبولو لپاره کومه نسخه راکړې ده هغه جهاد او جهادي اسلحه ده. پرېښودل د اسلحې نه دي. کوم خلک چې اسلحې ته د کرکې په نظر ګورې هغوی د قرآن او حديث توهين کوي. او په غير شعورې توګه د جهاد نه منکر شي. زما دعویٰ ده چې اسلحه د فساد ذريعه نه ده بلکې د امن او امان ذريعه ده. دې دعویٰ باندې د قبائلو د خلکو امن او امان واضحه دليل دی. چې د اسلحې انبار ورسره وي، خو په ناحق دومره نه مړه کېږي. څومره مړګونه چې په دې ښارې علاقو کې کېږي. چرته چې ډاکوان مسلح وي او د شريفانو لاسونه يې تړلې وي. چا د جهاد د اسلحې باره کې څه ښه ويلې دي.

سکھایا ہے ہمیں ای دوست طیبہ کے والی ﷺ نے
کہ بوجہلــــــــــــوں سے ٹکرا کر ابھرنا عین ایمان ہے
برائے دین اسلام رقص کرنا عین ایمان ہے



# باب آداب السفر
# د سفر د آدابو بيان

قال الله تعالىٰ: ﴿ولا يطئون موطئا يغيظ الكفار ولا ينالون من عدو نيلا إلا كتب لهم به عمل صالح﴾(سورة توبه : ۲۰)

آداب جمع ده. د دې مفرد ادب دی. خصائل حميده د خپلو او د خصائلو رذيله نه د بچ کيدلو نوم ادب دی يعنې هر شي ته د جائز مقام او د مناسب حق ورکولو نوم ادب دی.

د سفر نه مراد عام او مطلق سفر دی، خو دلته زياتره د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د جهادي سفرونو او د هغې د آدابو بيان شوی دی. نبي کريم صلى الله عليه وسلم د نبوت نه مخکې د ديارلس (۱۳) کالو عمر کې شام ته يَو سفر کړی ؤ. او مکې ته بيرته راغلو. بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم د پنځويش (۲۵) کاله عمر کې د تجارت په غرض باندې شام ته سفر کړی ؤو. د نبوت نه وروسته د نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو سفر د مکې نه طائف ته شوی ؤو. د هغې مقصد طائف والو ته د اسلام دعوت ورکول هم ؤو. او د خپل ملګرو لپاره د پناه ځای لټنه هم مقصود ؤ... بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مکې نه مدينې ته د ۵۳ کاله عمر کې د هجرت عظيم الشان سفر وکړو. د مدينې منورې نه په شپږمه هجرئ کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو سفر د عمرې لپاره ؤو چې په صلح حديبيه باندې ختم شو او نبي کريم صلى الله عليه وسلم بغير د عمرې نه بيرته مدينې ته راغلو. بيا بَل کال ته د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د عمرة القضاء سفر وشو. بيا په لسمه هجرئ کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د حج په ارادې سوالاک□ يا د کم و زيات صحابؤ رضي الله عنهم سره د حجة الوداع سفر وکړو. د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دې اؤوه (۷) سفرونو نه بغير نور ټول سفرونه د جهاد لپاره شوي دي. چې د جزيره عرب د ننه ؤو. د جزيره عرب نه بيرون د نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو جهادي سفر شوی ؤو. چې د غزوه تبوک لپاره د شام زمکې اړخ ته شوی ؤو. علماء، طلباء او صلحاء عوامو له لازم دي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سفر د کوم مقصد لپاره شوی ؤو. همغه مقصد د خپل ځان لپاره بيان کړي. جهادي سفر له د تشکيل نوم ورکول کوم انصاف دی؟ حال دا چې نن سبا د عوام الناس په ذهن کې د تشکيل يو خاص تصور دی. چې د جهاد تصور کول په حرام ګڼلی کيږي. بهرحال د جهاد د سفر يو څو آداب هم ليکلی کيږي. کتنه يې وکړئ.

۱: د اعلاء کلمة خالص نيت وي ۲: بغير د څه تکبر نه دې په ډيره عاجزئ ته لاړ شي او راشي ۳: خپل مينځ جنګ او ټکري دي نه وي بلکې د يو بَل سره دي مرسته کونکې وي ۴: سفر د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د طريقې مطابق وي ۵: دشمن سره دې د جنګ ارمان نه کوي خو چې کله جنګ وي نو بيا دې ثابت قدم وسي

او ښه صبر دي وکړي ۶: عدد او عدد باندې دي نظر و نه کړي شي. بلکې فقط په الله تعالى باندې دي يقين وي او تعلق مع الله دي ښه مضبوط وي ۷: او چت ځای ته يا لاندې د تلو راتلو وخت کې دي په ژبه باندې د الله او د الله اکبر چغې وي ۸: د فتحې نه وروسته دي نه تکبر کوي، نه دي ظلم کوي بلکې عاجزي دي کوي.

## الفصل الاول

## د جهاد لپاره د يوم الخميس انتخاب

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَن كَعْب بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ |
| حضرت کعب ابن مالک رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د غزوه تبوک لپاره د پنج شنبې د ورځې |
| وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يَخْرُجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| نه روان شو او نبي کريم صلى الله عليه وسلم به دا خوښول چې د جهاد د سفر ابتداء د پنج شنبې د ورځې نه وکړي. |

**توضيح**: **يوم الخميس**: د پنج شنبې ورځې ته خميس وايي. د نبي کريم صلى الله عليه وسلم عمومي سفرونه د پنج شنبې په ورځ شوي ؤو. کله کله د دې نه خلاف هم شوی دی. د پنجشنبې د ورځې د انتخاب وجه دا ده چې د ټولې هفتې عملونه د پنج شنبې په ورځ الله تعالى ته وړاندې کېږي. چې د جهاد لوی عمل هم په دې کې وي، نو ډېره ښه ده. دويمه وجه دا ده چې خميس او خمس کې مناسبت لفظي دی. خمس د مال غنيمت برخې ته وايي. دريمه وجه دا ده چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د لښکر نوم الخميس ؤو چې پنځه برخې يې وي. يعنې **مقدمة الجيش، ساقة الجيش، ميمنة الجيش، ميسرة الجيش او قلب الجيش.** په دې مناسبت سره به نبي کريم صلى الله عليه وسلم د پنج شنبې په ورځ سفر کولو. يهودو چې خيبر کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم لښکر وليدلو نو په هغه موقع يې وويل "**محمد والخميس والله**" د دې لپاره د فال په توګه نبي کريم صلى الله عليه وسلم د پنج شنبې ورځ عموماً د سفر لپاره انتخاب کړه. (مرقات ۴۴۵/۷، ۴۴۴)

## د ځان ته د سفر کولو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ |
| او حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل! که خلک د هغه |

[1] رقم الحديث ٣٨٩٢ أخرجه البخاري في صحيحه ١١٣/۶ رقم الحديث ٢٩٥٠ وأبوداود في السنن ٧٩/٣ رقم الحديث ٢۶٠٥

يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي الْوَحْدَةِ مَا أَعْلَمُ مَا سَارَ

شي نه چې په سفر کې يېښېږي دومره خبر شي لکه څومره چې زه خبريم نو هيڅ سو سپور کس به د

رَاكِبٌ بِلَيْلٍ وَحْدَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

شپې سفر (د کولو همت) ونه کړي

**توضيح**: يعني يوائې د سفر کولو چې کوم دنيوي او اخروي نقصانونه ماته معلوم دي که چرې هغه چاته معلوم شول نو هيڅ يو سپور کس به ځان له سفر ونه کړي. ديني نقصان خو دا دی چې د جمعې سره لمونځ د ځان کس په نصيب کې نه وي او دنيوي نقصان دا دی چې د حادثې په وخت کې يا د سامان د حفاظت په وخت کې به د هغې د مرستې لپاره هيڅ څوک نه وي او خاص کر کله چې د جهاد زمانه وي، نو د ځان کس لپاره به د سفر څومره خطر وي. بهرحال نن سبا د سفر کولو لپاره اجتماعي ترتيب وي. هيڅ يو کس چرته هم ځان نه وي. کېدی شي دې سفر او پخواني سفر کې فرق وي. (مرقات ۴۴۵/۷)

## په قافله کې که سپی يا ټلئ وي نو د رحمت فرښتې به نه وي

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَصْحَبُ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د هغه قافلې سره

الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا كَلْبٌ وَلَا جَرَسٌ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[2]

فرښتې نه وي چې کوم کې سپی ټلئ (ګينګرې) وي.

**توضيح**: الملائكة: د رحمت فرښتې مراد دي. هغه ورسره يو ځای نه وي. د رحمت فرښتې او کراماً کاتبين نو وي. د جرس نه مراد ګينګرې او ټلئ دي چې اواز کوي. د دې نه د ريکاډنګ حرمت په اسانې سره معلومېږي. د سپې نه شوقيه سپی مراد دی. ښکاري سپی يا د څوکۍ سپی مراد نه دی. (مرقات ۴۴۵/۷)

﴿۴﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الْجَرَسُ

او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل جرس (يعنې ګينګرې او ټلئ)

---

[1]) رقم الحديث ۳۸۹۳ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۷/۶ رقم الحديث ۲۹۹۸ وابن ماجه في السنن ۱۲۳۹/۲ رقم الحديث ۳۷۶۸

[2]) رقم الحديث ۳۸۹۴ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۷۲/۳ رقم الحديث (۱۰۳-۲۱۱۳) وأبوداود في السنن ۵۳/۳ رقم الحديث ۲۵۵۵

مَزَامِيرُ الشَّيْطَانِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[۱]

مزامير شيطان (شيطاني باجه) ده.

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي بشِيرِ الأنصاريِّ: أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ

او د حضرت ابوبشير انصاري رضی الله عنه نه روايت دی چې هغه په يو سفر کې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سره ؤو،

فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو (هغه بيان کوي چې د هغه سفر په موقع کې) نبي کريم صلی الله علیه وسلم يو کس ته د قافلې دننه د دې حکم

رَسُولًا: لَا تبقين فِي رَقَبَةِ بِغَيْرٍ قِلَادَةٌ مِنْ وَتَرٍ

د اعلان لپاره ولېږلو چې د هيڅ اوښ په غاړه کې د ليندې د مزي پټې پاتې نه شي. يا يې و فرمايل چې

أَوْ قِلَادَةٌ إِلَّا قُطِعَتْ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[۲]

پټې مه پرېږدئ ټولې يې غوڅې کړئ.

**توضيح**: قلادة: د پټې ممانعت ځکه وشو چې دې کې اواز کونکې ګينګرې وي. که ګينګرې نه وي او د شرک پټئ نه وي نو هسې د پټئ ممانعت نشته دی. (مرقات ۷/۴۴۶)

## په خاړۀ باندې د سورلئ کولو متعلق هدايت

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا سَافَرْتُمْ

او حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل. کله چې ته د ارزانئ په زمانه

فِي الْخِصْبِ فَأَعْطُوا الْإِبِلَ حَقَّهَا مِنَ الْأَرْضِ

کې (اوښانو باندې) سفر کوي نو هغه اوښانو ته د هغه ځمکې (نه د خوراک) حق ورکړه (يعني هغې د واښو

وَإِذَا سَافَرْتُمْ فِي السَّنَةِ فَأَسْرِعُوا

د خوړلو موقع ورکړه. د غه وخت کې د سفر په دوران کې د لږ وخت نه وروسته يې د ښرېدلو لپاره پرېږده، چې

(۱) رقم الحديث ۳۸۹۵ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۷۲ رقم الحديث (۱۰۴-۲۱۱۴) وأبوداود في السنن ۳/۵۴ رقم الحديث ۲۵۵۶

(۲) رقم الحديث ۳۸۹۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۴۱ رقم الحديث ۳۰۰۵ ومسلم في ۳/۱۶۷۲ رقم الحديث (۱۰۵-۲۱۱۵)

عَلَيْهَا السَّيْرَ وَإِذَا عَرَّسْتُمْ

هغه خپلې ښتې ډکې کړې او تيزې مزل وکړي) او کله چې ته قحط په زمانه کې سفر کوي نو دې باندې ژر سفر کوه (يعنې د

بِاللَّيْلِ فَاجْتَنِبُوا الطَّرِيقَ

سفر دوران کې تاخير مه کوه چې اوښ د خوراک نه کولو په وجه کمزورئ کې داخته کېدلو نه مخکې خپل منزل ته ورسوي)

فَإِنَّهَا طُرُقُ الدَّوَابِّ

دغه شان چې کله د شپې چرته پړاؤ کوي نو په لاره کې پړاؤ مه کوه ځکه ځناور مزل کوي او هغه مضر (زهريله)

وَمَأْوَى الْهَوَامِّ بِاللَّيْلِ. وَفِي رِوَايَةٍ: إِذَا

ځناور (لکه مار او لړم وغيره) د اوسيدلو او د تېرېدلو ځايونه دي. او يو روايت کې داسې دي چې کله ته قحط

سَافَرْتُمْ فِي السَّنَةِ فَبَادِرُوا بِهَا نِقْيَهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

په زمانه کې (اوښانو باندې) سفر کوي نو په تندئ سره سفر کوه. چې په اوښانو کې د بدن طاقت موجود وي.

**توضيح: الخصب**: د شينکې او د ارزانئ او په اسانه زمانه کې سفر ته الخصب وايي. (مرقات ۴۴۷/۷)

**حقها**: يعنې د واښو د خوړلو حق ورکوه. (مرقات ۴۴۷/۷)

**السنة**: وچکالې او قحط ته وايي. يعنې داسې موقعو کې تيز مزل کوه چې د وچکالئ په وجه د هلاک کېدلو نه مخکې مخکې بچ شې او ؤوځې. (مرقات ۴۴۷/۷)

**عرستم**: تعريس د شپې آخري وخت کې پړاؤ کولو ته وايي.

**الطريق**: يعنې لاره کې قيام مه کوه. بلکې د لارې نه غاړې ته شپه تېروه. چې درنده ګان او د ځمکې د حشراتو او د پېريانو نه بچ شي، ځکه د شپې دا شيان لارو ته راؤځي.

**ماوئ**: د ځاى جوړولو په معنى کې دى. (مرقات ۴۴۸/۷)

**الهوام**: حشرات الارض او مضر شيانو ته وايي. (مرقات ۴۴۸/۷)

**نقيها**: يعنې طاقت د ختمېدلو او د کمزورې کېدلو نه مخکې مخکې ښاروى بچ وباسه.

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۹۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۲۵ رقم الحديث (۱۷۸-۱۹۲۶) وأخرجه ابو داود في الس... ۳/... رقم الحديث ۲۵۶۹

## د سفر ضرورت مند ملګرې سره مرسته وکړه

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي سعيد الْخُدْرِيِّ قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ فِي سَفَرٍ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې په يو موقع کې کله چې مونږ د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ؤو. |
| إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ عَلَى رَاحِلَةٍ فَجَعَلَ يَضْرِبُ يَمِينًا وَشِمَالًا |
| ناڅاپه يو کس په اوښ باندې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له راغلو او اوښ يې ښي او چپ اړخ ته تاوهلو. |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ كَانَ مَعَهُ فَضْلُ ظَهْرٍ |
| نو دا (ليدلو سره) نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کوم کس سره چې (د خپل ضرورت نه) زياتې سورلۍ وي، |
| فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ لَا ظَهْرَ لَهُ |
| هغې له پکار ده چې هغه سورلۍ هغه کس له ورکړي چې سورلۍ ورسره نه وي او د کوم کس سره |
| وَمَنْ كَانَ لَهُ فَضْلُ زَادٍ فَلْيَعُدْ بِهِ |
| چې د ضرورت نه زيات خوراک او د څښاک سامان وي نو هغه دې هغه کس له ورکړي چې د هغې سره خوراک |
| عَلَى مَنْ لَا زَادَ لَهُ قَالَ: فَذَكَرَ |
| او د څښاک سامان نه وي. روايي وايي چې د هغې نه وروسته نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مال او د شيانو د قسمونو ذکر وکړو |
| مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ حَتَّى |
| (يعنې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شيانو نومونه اخستلو سره و فرمايل چې د کوم کس سره فلانې او فلانې شی لکه تو ته وغيره د خپل |
| رَأَيْنَا أَنَّهُ لَا حَقَّ |
| حاجت نه زيات ټموي نو هغه په هغه کس باندې خرچ کول پکار دي چې د هغې سره هغه شی نه وي) تر دې چې (د هغې د ترغيب او نصيحت |
| لِأَحَدٍ منا فِي فضل. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| نه) احساس وکړی شو چې مونږ کې د هيچا هم په خپل هغه شي باندې هيڅ حق نشته دی چې کوم هغې سره د ضرورت نه زيات وي. |

**توضيح**: **يضرب يميناً و شمالاً**: يضرب د تاوهلو په معنی کې دی. د مسلم په يو روايت کې د يصرف لفظ موجود دی. چې د تاوهلو په معنی کې دی. مسلم کې په دې روايت کې د يصرف نه وروسته د

(۱) رقم الحديث ۳۸۹۸ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۵۴ رقم الحديث (۱۸-۱۷۲۷) وابوداود في السنن ۳۰۵/۲ رقم الحديث ۱۶۶۳

بصره لفظ هم موجود دی. دې سره مطلب ډېر واضحه شو چې د هغه کس سورلۍ دا چې ډېره ستړې شوې وه او هغې سره د سفر سامان هم نه ؤو، ځکه هغې نبي او چپ اړخ ته نظر تاوهلو چې يو مسلمان د هغې سره مرسته وکړي. دې توجيه سره به ټول حديث باندې پوهېدل اسانه شي، ځکه د هغه کس نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وروسته د مرستې کولو ترغيب ورکړو. شارحينو د دې حديث مطلب دا هم بيان کړې دی چې د هغه کس سورلۍ دومره کمزورې شوې وه چې اودرېدلی نه شوه، ځکه هغې ښي او چپ اړخ ته جوتې خوړلې او پريشانه وه او هغه کس به هغه ښي او چپ اړخ ته تاوهله. دا توجيه بعيده ده.

**فضل زاد:** يعنې که د چا سره زياتې سورلۍ وي يا زياتې سامان او خوراک وي نو په هغې دې د خپل ورور سره مرسته وکړي. (مرقات ۴۴۸/۷)

**فليعد به:** دا صيغه د عاد يعود نصر ينصر نه ده. اساس البلاغه کې علامه مخشری رحمه الله د دې معنی رفق او نرمي کړې ده. "**اى فليرفق به يقال هذا الامرا عود عليك**" **اى ارفق بك**، خو په منجد کې ليکلی شوې دې چې د عاد يعود د راتاوهلو او د حساس کېدلو په معنی کې دی. "**يقال عاد السائل اى ردّهٔ و صرفه عاد فلاناً بالمعروف صنعه معه**" يعنې د هغې سره يې احسان وکړو. د بحث لاندې حديث مناسبه معنې همدغه ده. اګر که علامه طيبي اولنۍ معنی کړې ده. مطلب دا شو چې د چا څه سورلۍ يا سامان وي يا خوراک وي نو هغه دې خپل محتاج ورور سره احسان وکړي او ورد دې کړي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دومره ترغيب ورکړو چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ خيال وکړو چې په زياتې مال باندې د هغوی هيڅ حق نشته دی. (الکاشف ۴۰۰/۷ مرقات ۴۴۸/۷)

## په سفر کې د مقصد د پوره کېدو نه وروسته کور ته ژر راشئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ | | | | |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې سفر د عذاب يوه ټوټه ده. | | | | |
| يَمْنَعُ | أَحَدَكُمْ | نَوْمَهُ | وَطَعَامَهُ | وَشَرَابه |
| چې تاسو نه خو (په اراما و راحت سره) خوب ته پرېږدي او نه (مو په طريقه باندې) خوراک څښاک ته پرېږدي. | | | | |
| فَإِذا | قضى | نهمه | من | وَجهه |
| لهذا کله چې تاسو کې يو کس (چرته سفر ته لاړ شي او) د سفر غرض پوره شي (يعنې د کوم مقصد لپاره مو چې سفر کړی دی | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فليعجل | إِلَى | أَهله | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۱] |
| هغه مقصد پوره شي) نو هغې له پکار ده چې د خپل کور والو ته راتللو کې تونده وکړي. | | | |

**توضيح نهمته:** مقصد. حاجت او د ضرورت په معنی کې دی. (مرقات ۷/۴۵۰)

**من وجهه:** يعنې کوم اړخ ته چې مسافر متوجې شي او د کوم مقصد لپاره يې سفر کړی دی. هلته نه چې کله مقصد پوره شي نو ژر دې کور ته بېرته راشي. دا حکم د غير واجبه سفرونو لپاره دی. که سفر واجب وي لکه حج او جهاد وغيره نو د هغې لپاره دا حکم نه دی. اګر که حديث دې لپاره هم شامليدلی شي.
سفر ته د عذاب ټوټه ځکه ويلی شوې ده چې انسان په کې د ټولو سهولتونو نه محروم شي. که سهولتيات وي هم خو بيا هم د کور نه جدا، وطن او د خاندان نه جدا کېدل ولې څه لږه پريشانې ده؟ بې مقصده سفرونو کې اکثر ليدلی شوې دي چې د بسونو حادثې وشې، لکه د مزارونو سفرونو لپاره د سفر مېلو کې او ټورسټ (تفريح کونکې) اکثر په مصيبتونو کې راګېر شي. (مرقات ۷/۴۵۰)

## د معزز ميلمه يا د مسافر په راتلو باندې استقبال جائز دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾ وَعَن | عبدِاللهِ | بنِ | جعفرٍ | قَالَ: | كَانَ | رَسُولُ اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| او حضرت عبدالله ابن جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله به نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سفر نه بېرته راتللو نو د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| إِذَا | قَدِمَ | مِنْ | سَفَرٍ | تُلُقِّيَ | بِصِبْيَانِ | أَهْلِ | بَيْتِهِ | |
| اهل بيتو به د ماشومانو په ذريعه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ استقبال کولو (يعنې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| وَإِنَّهُ | قَدِمَ | مِنْ | سَفَرٍ | | | | | |
| اهل بيتو به ماشومان نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته حاضر کړه) نو (يو ورځ) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د سفر نه بېرته راغلو | | | | | | | | |
| فَسُبِقَ | بِي | إِلَيْهِ | فَحَمَلَنِي | بَيْنَ | يَدَيْهِ | | | |
| (او مدينې ته راننوتې شو) نو زه يې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وړاندې کړم. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه او چت کړم او خپلې | | | | | | | | |
| ثُمَّ | جِيءَ | بِأَحَدِ | ابْنَيْ | فَاطِمَةَ | فَأَرْدَفَهُ | خَلْفَهُ | | |
| مخې ته يې سپور کړم. بيا يې د حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په دواړو زامنو کې يو ځوې حسن يا حسين راوستلو نو | | | | | | | | |

---

(۱) رقم الحديث ۳۸۹۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۳۹ رقم الحديث ۳۰۰۱ ومسلم في ۳/۱۵۲۶ رقم الحديث (۱۷۹-۱۹۲۷)

| |
|---|
| قَالَ: فَأُدْخِلْنَا المدينةَ ثلاثةً على دَابَّة. رَوَاهُ مُسلم[۱] |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه خپل شاته کېنول او بيايې (دغه شان مونږ دري واړه په يو څاروي باندې (سپور) مدينې ته داخل کړو. |

**توضيح**: **تلقي بالصبيان**: مطلب دا دی چې د ماشومانو په ذريعه به د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ استقبال کېدلو يعنې اهل بيتو به ماشومان د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استقبال لپاره بوتلل. د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لويې استقبال د مدينې والو د اسلحو په تاوهلو سره هغه وخت کړی ؤو. کله چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مکې نه هجرت کولو او مدينې ته يې تشريف راوړلو. بيا د غزواتو په سفرونو کې صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ موقع په موقع د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ استقبال کړی دی، نو ځکه د عزت مند مېلمنو په راتللو او دغه شان علمي شخصيت په راتللو باندې که عوام خلک استقبال کوي نو دا به ناجائزه نه وي، خو چې د شرعي منکراتو نه پاک وي. څه وچ مزاجه خلک استقبال ناجائزه ګڼي. (مرقات ۴۵۱/۷)

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَن أنسٍ: أَنَّهُ أَقْبَلَ هُوَ وَأَبُو طَلْحَةَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغه (انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) او حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره |
| وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا |
| (د خيبر د سفر نه) بېرته راغلل، نو په هغه موقع کې حضرت صفيه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وه او نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عَلَى رَاحِلَته. رَوَاهُ البُخَارِيّ[۲] |
| هغه په خپله سورلۍ باندې شاته کېنوله. |

## سفر نه کور ته د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د راتللو وخت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَطْرُقُ أَهْلَهُ لَيْلًا |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپل کور والو ته د (سفر نه) د شپې وخت |
| وَكَانَ لَا يَدْخُلُ إِلَّا غُدْوَةً |
| کې بېرته نه راتللو بلکې د ورځې په اولنۍ برخه کې يعنې د سحر وخت کې يا د په آخري برخه يعنې |

(۱) رقم الحديث ۳۹۰۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۸۸۵/۴ رقم الحديث (۶۶-۲۴۲۸) واخرجه ابوداود في السنن ۵۹/۳ رقم الحديث ۲۵۶۶

(۲) رقم الحديث ۳۹۰۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۶۹/۱۰ رقم الحديث ۶۱۸۵ ومسلم في صحيحه ۹۸۰/۲ رقم الحديث (۴۲۹-۱۳۴۵)

| |
|---|
| أَوْ عَشِيَّةً (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| د ماښام وخت کې (کور ته) داخليدلو. |

**توضيح**: د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دې حديث تعليم دا دی چې د سفر نه سړی کله بېرته کور ته راځي، نو هغې له پکار ده چې د ورځې راشي. د دې سره د حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ والا روايت نمبر ۱۲ کې په واضحه توګه منع شوې ده چې د اوږد سفر نه وروسته د شپې وخت کې کور ته داخليدل پکار نه دي. د دې دواړو حديثونو سره راتلونکې د حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث نمبر ۳۰ تعارض دی. چې هغې کې د شپې وخت کې کور ته راتلل بهتر او ښه ګڼلی شوی دی. د دې جواب دا دی چې کله سفر اوږد وي او خاوند ډېر وخت د کور نه په سفر ؤو، نو په داسې وخت کې ناڅاپه کور ته راتلل پکار نه دي. بلکې د ورځې په جومات کې دوه رکعته کول پکار دي او د خلکو سره د ملاقات نه وروسته کور ته تلل پکار دي چې کور کې ښځه خپل زيت او سنګار وکړي شي. او که سفر د لرې ځای نه ؤو بلکې نزدې ؤو نو د شپې په اول وخت کې راتلل بهتر دي، لکه څنګه چې په حديث نمبر ۳۰ کې راروان دي. د دې وجه دا ده چې د شپې په اولنۍ برخه کې راتللو سره دې مسافر ته خپله هم اطمينان حاصليږي. او ناوخته تللو سره د کور خلک هم پريشانه نه وي. دغه شان د شپې په اول وخت کې به خاوند د ښځې سره کورکوالی وکړي او ټوله شپه به ارام وکړي. علامه نؤوی فرمايي چې کومو حديثونو کې چې د شپې د راتللو ممانعت دی. د هغه حديثونو تعلق د داسې صورت سره دی کله چې سفر اوږد وي او ښځې ته د خاوند د راتللو هيڅ خبر نه وي. که خاوند ناڅاپه کور ته داخل شي او ښځه د چوهاړې پشان ناسته وي نو کورنۍ تعلقات به خراب شي. لنډ سفر کې به دا صورت نه وي. دغه شان که سفر اوږد وي خو د خاوند د راتللو نه مخکې خبر ورکړی شوی دی، نو دغه صورت کې هم خاوند هر وخت کور ته راتلی شي. اسلام غواړي چې کورنی نظام د مضبوط نه مضبوط وي، خو يهود او نصاری او د هغوی اينجنټ اين جي اوز کورنی نظام تباه کول غواړي. د لاندې ذکر شوي حديث هم دغه تشريح ده. (مرقات ۴۵۲/۷)

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: إِذا طَالَ أَحَدُكُمُ الْغَيْبَةَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې تاسو ديو کس غير حاضرې اوږده شي |
| فَلَا يَطْرُقْ أَهْلَهُ لَيْلًا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| (يعنې سفر کې ډېرې ورځې تېرې کړي) نو هغه (د سفر نه بېرته راتللو وخت) کې خپل کور ته شپې وخت کې مه داخلېږئ. |

---

[1] رقم الحديث ۳۹۰۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۱۹/۳ رقم الحديث ۱۸۰۰ ومسلم في ۱۵۲۷/۳ رقم الحديث (۱۸۰-۱۹۲۸)

[2] رقم الحديث ۳۹۰۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۹/۹ رقم الحديث ۵۲۴۴ ومسلم في ۵۲۸/۳ رقم الحديث (۱۸۳-۷۱۵)

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْهُ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: | إِذَا |

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل که چرې تاسو د (سفر نه بېرته راتللو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| دَخَلْتَ | لَيْلًا | فَلَا | تَدْخُلْ | عَلَى | أهلك |

کې د ښار به ابادۍ کې) د شپې وخت کې راو راسيږئ نو خپل کور ته مه داخليږئ. تر څو چې خاوند د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | تستحد | المغيبة | وتمتشط | الشعثة (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |

غائب ښځې د نامه لاندې ويښتهٔ پاک نه کړي. او هغه ښځه چې ويښتهٔ يې ګډوډ وي هغه ګومنز نه کړي.

**توضيح: تستحد**: حديد استعمالولو ته وايي. مراوز د نامه لاندې ويښتو ته وايي. د نارينئو لپاره د وسپنې آله استعمالول طبي لحاظ سره فائده منده ده او د ښځې لپاره د وسپنې په ځای په بله طريقه اختيارول بهتر دي. مثلاً ويستل يا نوره استعمالول يا د ويښتو ختمول مناسب ده. (مرقات۴۵۱/۷)

## د سفر نه راستنيدو سره دعوت کول مسنون دي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۴﴾ | وَعَنْهُ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | لَمَّا | قَدِمَ الْمَدِينَةَ |

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله مدينې ته راغلو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نَحَرَ جَزُورًا أَوْ بَقَرَةً. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2]

اوبن يا غوا ذبح کړه. (روايت کړې دې بخاری)

## د سفر نه راستنيدو سره جومات کې ناسته او نفل کول مسنون دي

﴿۱۵﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا

او حضرت کعب ابن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د څاښت د وخت نه بغير

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَهَارًا | فِي | الضُّحَى | فَإِذَا | قَدِمَ |

بل په هيڅ وخت کې د سفر نه بېرته نه راتللو، نو کله چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د سفر نه) بېرته راتلو

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۰۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۴۱/۹ رقم الحديث ۵۲۴۶ ومسلم في ۱۵۲۷/۳ رقم الحديث (۱۸۲-۷۱۵)

([2]) رقم الحديث ۳۹۰۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۴/۶ رقم الحديث ۳۰۸۹ وأحمد في المسند ۳۰۱/۳

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَدَأَ | بِالْمَسْجِدِ | فَصَلَّى | فِيهِ | رَكْعَتَيْنِ |

نو اول به جومات ته لاړو بيا به يې د كيناستلو نه مخكې تحية المسجد كولو يا به يې د ښانست دوه ركعته لمونځ كولو

ثُمَّ جلس فِيهِ للنَّاس (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

او بيا به د خلكو سره د ملاقات لپاره هلته كيناستلو.

﴿۱٦﴾ وَعَن جَابِر قَالَ: كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَلَمَّا

او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې زه (يو) سفر كې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره ؤوم، نو مونږ

قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ قَالَ لِي: ادْخُلِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2]

مدينې ته بېرته راغلو، نو نبي كريم ﷺ ماته وفرمايل: جومات ته لاړ شه او دوه ركعته لمونځ وكړه.

# الفصل الثاني

## سحر وختي كار ته تلونكو ته د بركت دعاء

﴿۱۷﴾ عَن صخْرٍ بن وَداعةَ الغامِديِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

حضرت صخر رضي الله عنه بن وداعه غامدى فرمايي چې (يو ورځ) نبي كريم صلى الله عليه وسلم دا وفرمايل (يعني دا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اللَّهُمَّ | بَارِكْ | لِأُمَّتِي | فِي | بُكُورِهَا | وَكَانَ | إِذا بعثَ |

دعا يې وكړه يا الله! زما د امت لپاره د ورځ په ابتدائى برخه كې بركت واچوې، نو نبي عليه السلام به چې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سرِيَّةً | أَوْ | جَيْشًا | بَعَثَهُمْ | مِنْ | أَوَّلِ | النَّهَارِ | وَكَانَ | صَخْرٌ | تَاجِرًا |

كله وړوكى يا لوې لښكر لېږلو نو د ورځ په ابتدائى برخه كې به يې لېږلو. او صخره چې يو تاجر (سوداګر) ؤو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَكَانَ | يَبْعَثُ | تِجَارَتَهُ | أَوَّلَ | النَّهَارِ | فَأَثْرَى |

(د دې بركت حاصلولو له نظره) به يې خپل تجارتي مال د ورځې په اولنۍ برخه كې لېږلو، نو هغه

---

[1] رقم الحديث ۳۹۰۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۴/۶ رقم الحديث ۳۰۸۸ ومسلم في ۴۹۶/۱ رقم الحديث (۷۴-۷۱۶)

[2] رقم الحديث ۳۹۰۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۳/۶ رقم الحديث ۳۰۸۷ ومسلم في ۴۹۶/۱ رقم الحديث (۷۲-۷۱۵)

| |
|---|
| وَكَثُرَ مالُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد والدارمي[1] |
| مالداره شو او مال يې ډېر زيات شو. (ترمذی، ابوداؤد، دارمی) |

**توضيح**: **بكورها**: يعني سحر وختي د جهاد د سفر يا د تجارت د سفر لپاره نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بركت دعا وكړه.

**صخر**: د يو تاجر صحابي نوم دى. چې په دې حديث باندې به يې عمل كولو. او سحر وختي به يې د تجارت لپاره مال لېږلو. (مرقات ۴۵۴/۷)

**فاثرى**: يعني ښه ډېر مالداره شو. **كثر ماله**: دا د اثرى تشريح ده. (مرقات ۴۵۴/۷)
نن سبا مسلمانان هم د كافرانو پشان د دې حديث خلاف روان دي. د ورځې يؤولس (۱۱) يا دولس (۱۲) بجې دكان ته راځي. دې كې به خاورې بركت راشي.

## ورځې د سفر سره څه د ماښام هم يو ځاى كوئ

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلَيْكُمْ بِالدُّلْجَةِ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: ته د شپې په وخت كې مزل كول |
| فَإِنَّ الْأَرْضَ تُطْوَى بِاللَّيْلِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| د ځان لپاره ضروري وګڼه ځكه د شپې وخت كې زمكه راغونډېږي. |

**توضيح**: **عليكم**: د دې حديث مطلب دا نه دى چې د ورځې سفر مه كوه. د ورځې د سفر خو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حكم كړى دى چې سحر وختي سفر كوه. دلته مطلب دا دى چې د ورځې د سفر سره څه برخه د شپې هم شامله وه، ځكه د شپې په سفر كې خو يو ګرمي او لمر نه وي. دويم دا چې څه بنكاري نه نو ځكه په سفر كې يو شان والى او بركت وي. همدې حديث كې ويلى شوى دى چې ګويا كې زمكه رانغښتلى كېږي. (مرقات ۴۵۵/۷)

## سفر كې چې كم نه كم درې كسان وي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۰۸ أخرجه ابوداود في لاسنن ۵۱۷/۳ رقم الحديث ۲۶۰۶ والترمذي في ۵۱۷/۳ رقم الحديث ۲۱۲.
(۲) رقم الحديث ۳۹۰۹ أخرجه ابوداود في السنن ۶۱/۳ رقم الحديث ۲۵۷۱ وأحمد في المسند ۳۰۵/۳

| |
|---|
| الرَّاكِبُ شَيْطَانٌ وَالرَّاكِبَانِ شَيْطَانَانِ وَالثَّلَاثَةُ رَكْبٌ. رَوَاهُ مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيّ[1] |
| چې یو سپور یو شیطان دی او دوه سپاره دوه شیطانان دي او دري سپاره، سپاره دي. (مالک، ترمذی، ابوداود، نسائی) |

**توضیح:** **الثلاثة رکب:** یعنې دري سپاره جماعت دی. یو یا دوه سپاره شیطانان دي، ځکه که یو یا دوه ملګري د مشکل سره مخ شي نو شیطان به ډېر خوشحالیږي او دا هم امکان لري چې یو یا دوه ملګرې شیطان په اسانۍ سره ګمراه کولی شي. خکه دې ته سفرې شیطان ویلی شوی دی. خلاصه ده چې په سفر کې کم نه کم درې کسان پکار دي. د لمونځ وخت کې دا په صحیح طریقه په جمعې سره لمونځ وکړي. دویمه فائده دا ده چې که څوک د څه کار لپاره لاړو نو نور به په اطمینان سره وې. او که په راتللو کې تاخیر شو نو بل به د خبر لپاره لاړ شي او دریم به د سامان حفاظت کوي.

د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دور مبارک کې به سفرونو ډېر خطرې وُو. عرد صحراګانو مشکلات یو جدا وې او د دښمن خطرات جدا وُو، نو ځکه د دریو کسان جماعت کېدنه د کمې درجې انتظام وُو. نن سبا خو هغه صورت نشته دی، خو بیا هم په ظاهري حدیث باندې عمل کولو کې بې شماره فایدې دې. (مرقات ۴۵۵/۷)

## د دریو کسانو ډله دې یو امیر مقرر کړئ

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا كَانَ ثَلَاثَةٌ فِي |
| او د حضرت ابو سعید رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: که (مثلاً سفر |
| سَفَرٍ فَلْيُؤَمِّرُوا أحدهم. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| کې) دري کسان وې نو په هغې کې یو کس امیر کړئ. |

**توضیح:** درې یا د دریو نه زیات کسانو له پکار دې چې هغوی په سفر کې یو بنه کس امیر کړې. د دې لپاره چې د سفر انتظام وکړي او د اختلاف او د جنجال په صورت کې فیصله وکړي، نو پوهه او غموخوار کس له پکار دې چې هغه خپل ځان د ملګرو خادم وګڼي چې مخدوم خپل ځان ورو کې و نه ګڼي. ملګرو له پکار ده چې په جائز کارونو کې د امیر اطاعت وکړي.

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۱۰ أخرجه ابوداود في السنن ۸۰/۳ رقم الحديث ۲۶۰۷ والترمذي في ۱۶۶/۴ رقم الحديث ۱۶۷۴.

([2]) رقم الحديث ۳۹۱۱ أخرجه ابوداود في السنن ۸۱/۳ رقم الحديث ۲۶۰۸

## غوره فوځ او غوره سریه

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: |
| خَيْرُ الصَّحَابَةِ أَرْبَعَةٌ وَخَيْرُ السَّرَايَا |
| بهترين ملګرې او دوستان هغه دي چې (کم نه کم) څلور وي. ورو لښکرو کې بهترين لښکر هغه دی |
| أَرْبَعُ مِائَةٍ وَخَيْرُ الْجُيُوشِ أَرْبَعَةُ آلَافٍ وَلَنْ يُغْلَبَ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا |
| چې په هغې څلور سوه (مجاهدين وي) او په غټو لښکرو کې بهترين لښکر هغه دی چې دولس زره |
| مِنْ قِلَّةٍ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| (۱۲۰۰۰) (مجاهدين) په کې وي. د کموالي په وجه کله هم نه شي مغلوبه کېدلی. |

**توضيح** اربعة: يعنې بهترين ملګرې څلور دي، ځکه درې وړه درجه ده او د دې نه کم منع دې. د څلورو په جماعت کې که يو امام شي نو درې پوره جماعت دی او که يو مريض شي او بل وصي کړي نو پاتې دوه به د ګواه په توګه پاتې شي.

سرايا جمع ده. د دې مفرد سريه ده. دا چابه مار لښکر ته وايې. سريه هغه وې چې د څلور سوه نه زيات نه وي. که زيات شول نو بيا په فوج کې داخل دي. دويم شرط دا دی چې هغې کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وي. اسلام کې ټولو سرايې شپږ پنځوس دي. کوم کې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شرکت نه دی کړی. د غزوه موته چې کومه سريه وه هغې کې درې زره صحابه ؤو، نو ځکه هغه د سريه د تعريف نه بهر شول او د لښکر په حکم کې شول. اګر که په هغې کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شرکت نه ؤو کړی. د اسامه د لښکر هم دغه معامله وه. د هغې سره درې زره (۳۰۰۰) لښکر ؤو. څلور زره (۴۰۰۰) لويې لښکر دی. ځکه ورته بهترين لښکر ويلی شوی دی، لکه څنګه چې د سريه لپاره څلور سوه لويې تعداد دی. چې بهترين ګڼلی شوی دی. (مرقات ۷/۴۵۶)

**اثنا عشر**: يعنې دولس زره (۱۲۰۰۰) لښکر د دې وجې نه شکست نه شي خوړلی چې هغوی لږ دي. هغوی چې کوم شکست خوړلی دی، د هغې څه بل څه وجه کېدی شي، ځکه دولس زره (۱۲۰۰۰) لښکر

---

[1] رقم الحديث ۳۹۱۲ اخرجه ابوداود في السنن ۸۲/۳ رقم الحديث ۲۶۱۱ والترمذي في ۱۰۵/۴ رقم الحديث ۱۵۵۵

يو پټن (ډويژن) لښكر دى، نو د تعداد په وجه شكست و نه شو. كېدى د نا فرمانۍ يا د غرور او تكبر په وجه شكست شوى وي. د دې حديث مطلب دا نه دى چې تر څلور زرو لږ لښكر نه وي نه جهاد نه كېږي. تبليغي حضرات وايي چې تر اوسه پورې دولس زره چرته دي. كه دولس زره وي نو مونږ به نه مغلوبه كېږو. تر كومې پورې چې دولس زره نه وي نو جهاد نه كېږي. (مرقات ۴۵۶/۷)

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ | جَابِرٍ | قَالَ: | كَانَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام (د سفر دوران كې) د تللو وخت كې (د عاجزۍ په وجه او د نورو د خبر ساتنې په | | | | | | | | |
| يَتَخَلَّفُ | فِي | الْمَسِيرِ | فَيُزْجِي | | | | | |
| خاطر بعد قافلې نه) شاته ؤو. ليكن نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د كمزوري (سپرلۍ) زغلوله، دې لپاره چې د نورو ملګرو سره يو ځاى شي او | | | | | | | | |
| الضَّعِيفَ | وَيُرْدِفُ | ويدْعو | لَهُمْ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] | | | |
| كوم كمزوري او ضعيف كس چې د سورلۍ نه پاتې كېدلو په وجه پيدل مزل كوي هغه ځان سره سپور كړي او د هغه لپاره به يې دعا كوه. | | | | | | | | |
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ | أَبِي | ثَعلبَةَ | الْخُشَنِيِّ | قَالَ: | كَانَ | النَّاسُ | | |
| او حضرت ابو ثعلبه خشنى فرمايي چې (اول به په عامه توګه داسې ؤو چې خلك (صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ) به چې كله | | | | | | | | |
| إِذَا | نَزَلُوا | مَنْزِلًا | تَفَرَّقُوا | فِي | الشِّعَابِ | وَالْأَوْدِيَةِ | | |
| يو منزل ته كوزېدل نو د غر په جدا جدا درو ته به خوئيدل (يعنې څوك به چرته كوزېدل او څوك به چرته) | | | | | | | | |
| فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | إِنَّ تَفَرُّقَكُمْ | فِي هَذِهِ الشِّعَابِ |
| نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د دې طريقې ختمولو لپاره هغه وخت كې و فرمايل) چې ستاسو پو هه شئ ستاسو په | | | | | | | | |
| وَالْأَوْدِيَةِ | إِنَّمَا | ذَلِكُمْ | مِنَ | الشَّيْطَانِ | | | | |
| دې درو كې جدا جدا كوزېدل صرف د شيطان له اړخ دي (يعني د دهوكې له وجې دى چې تاسو جدا كول غواړي د دې لپاره | | | | | | | | |
| فَلَمْ | يَنْزِلُوا | بَعْدَ | ذَلِكَ | | | | | |
| چې دښمن په تاسو باندې زور ور شي او تاسو ته نقصان ورسوي) د دې ارشاد نه وروسته به چې كله هم په يو | | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۹۱۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۰۰/۳ رقم الحديث ۲۶۲۹

| |
|---|
| مَنْزِلًا إِلَّا انْضَمَّ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ حَتَّى يُقَالَ: |
| منزل کوزېدل نو د یو بل سره به دومره نزدې نزدې ؤو چې اودرېدل به. ویل کېدل به چې په دې ټولو باندې یوه |
| لَوْ بُسِطَ عَلَيْهِمْ ثَوْبٌ لَعَمَّهُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| ټوټه واچولی شي نو ټول په کې راګېر شي. |

**توضیح:** دا چې په هغه زمانه کې به صف په صف جنګ کېدو نو د ملګرو یو ځای به ډېر ضروري ؤو، ځکه کوم ملګری به چې ځان له وموندلی شو او په اسانۍ به یې مړ کولو، خو دا چې نن سبا هوائي بمباري کېږي، دغه شان راکټ او ګولۍ راغورځېږي، نو دې لپاره د حکمت عمل هغه وي کوم چې د بچ کېدلو لپاره ګټور وي. اسلام مسلمانانو ته د جهاد حکم کړی دی، خو د دې د هئیت او حالت پابند کړي یې نه دي، لکه څنګه یې چې د تبلیغ حکم کړی دی، خو د یو خاص شکل او جوړولو او د خپلولو پابند کړي یې نه دي. لهذا د جهاد او د دعوت چې کوم صورت اسان او ګټور وي هغه دې خپل کړی شي. د یو خاص صورت التزام به بدعت وي.

## په سفر د جهاد کې د نبي کریم ﷺ عظیمه نمونه

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كُنَّا يَوْمَ بَدْرٍ |
| او حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې د بدر په ورځ (یعنې د جنګ بدر په موقع) مونږ حالت دا ؤو |
| كُلَّ ثَلَاثَةٍ عَلَى بَعِيرٍ |
| چې مونږ به هر درې کسان په یو اوښ سپارېدلو (یعنې درې کسانو له به یو اوښ ؤو او هغوی به نمبر په نمبر |
| فَكَانَ أَبُو لُبَابَةَ وَعَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ زَمِيلَيْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| په اوښ باندې سورېدل او. حضرت ابولبابه او حضرت علي رضي الله عنه او نبي ﷺ په یو اوښ باندې سفر |
| قَالَ: فَكَانَتْ إِذَا جَاءَتْ |
| کولو. حضرت عبدالله رضي الله عنه بیان وکړو چې صورت حال دا ؤو چې کله (هغه اوښ باندې) د نبي علیه السلام د |
| عُقْبَةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَا: |
| کوزېدلو نمبر راتلو نو حضرت ابولبابه او حضرت علي رضي الله عنه به عرض کولو چې د ستاسو (یعنی د نبی علیه السلام) په بدل کې |

[1] رقم الحديث ۳۹۱۴ أخرجه ابوداؤد في السنن ۹۴/۳ رقم الحديث ۲۶۲۸ ...

| | | | |
|---|---|---|---|
| نَحْنُ | نَمْشِي | عَنْكَ | قَالَ: |
| به مونږ پیدل لاړ شو، ته (محمد ﷺ) په اوښ باندې سور شه) خو نبي علیه السلام به فرمایل چې نه خو تاسو (دې | | | |
| مَا | أَنْتُمَا | بِأَقْوَى | مِنِّي |
| دنیا کې زمانه ډېر طاقت لرئ (چې بس تاسو د پیدل تللو طاقت لرئ او زه پیدل نه شم تلی) او نه زه د (آخرت) | | | |
| وَمَا أَنَا بِأَغْنَى عَنِ الْأَجْرِ مِنْكُمَا. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[1] | | | |
| زیات ثواب حاصلولو کې ستاسو په شان بې پرواه یم. | | | |

**توضیح: ما انا باغنی:** جنګ بدر ته د درې سوه دیارلس (۳۱۳) صحابه کرامو رضي الله عنهم سره صرف ۷۰ اوښان ؤو، نو ځکه به په یو اوښ باندې شو شو صحابه کرامو رضي الله عنهم سفر کولو. مثلاً درې کسانو ته به یو اوښ ملاوېدلو او یو به واکې نېولو او روان به ؤړ. د نبي کریم ﷺ سره هم دغه معامله وشوه.د نبي کریم ﷺ سره حضرت علي رضي الله عنه او حضرت ابولبابه رضي الله عنه به یو اوښ کې شریک ؤو. کله چې د نبي کریم ﷺ د پیدل تللو او د واکې د نېولو نمبر راتلو نو داوړو ملګرو ته ورته ویل چې یا رسول الله ﷺ! ستا په ځای به مونږ پیدل مزل کوؤ. نبي کریم ﷺ به ورته وفرمایل چې تاسو زمانه ډېر طاقتور هم نه وئ او نه زه د پیدل مزل د ثواب نه بېزاره یم. لهذا په مقرر شوې ترتیب به مزل کوؤ. د دې حدیث نه د جهادې سفر فضیلت او عظیم ثواب پته لږې او دا هم معلومه شوه چې نبي کریم ﷺ کې څومره ډېره عاجزې وه. او دا هم معلومه شوه چې نبي کریم ﷺ د خپلو ملګرو لپاره څومره مهربانه ؤو. چا رښتیا ویلې دي:

لم یخلق الرحمن مثل محمد — ابدا و علمی انه لا یخلق

جہاں تک آپ کی تقلید ہے — اسی حد تک سلیقہ بشریت بشر کو ملتا ہے

## د سورلۍ څاروۍ باندې رحم وکړئ

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابوهریره رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي چې نبي ﷺ وفرمایل د |

[1] رقم الحدیث ۳۹۱۵ أخرجه البغوي في شرح السنة ۳۵/۱۱ رقم الحدیث ۲۶۸۶، وأحمد في المسند ۴۲۲/۱

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تَتَّخِذُوا | ظُهُورَ | دَوَابِّكُمْ | مَنَابِرَ | فَإِنَّ | اللهَ | تَعَالَى | إِنَّمَا | سَخَّرَهَا | لَكُمْ |
| ځاروۇ شاه ګانې ممبرونه مه جوړوئ، ځکه الله تعالى څاروي صرف د دې لپاره تابع کړي دي چې تاسو علاقو او | | | | | | | | | | |
| لِتُبَلِّغَكُمْ | إِلَى | بَلَدٍ | لَمْ | تَكُونُوا | بَالِغِيهِ | إِلَّا | بِشِقِّ | الْأَنْفُسِ | | |
| ښارونو ته ورسوي. چرته چې تاسو (پيدل مزل باندې) د بدن مشقت او محنت سره رسيدلئ. د څاروؤ نه مقصود هغې باندې سورلي کول | | | | | | | | | | |
| وَجَعَلَ | لَكُمْ | الْأَرْضَ | | | | | | | | |
| او هغې په ذريعې خپل مقصد حاصلول دي. لهذا دې ته ضرر رسول روا نه دي. او الله تعالى زمکه ستاسو لپاره | | | | | | | | | | |
| فَعَلَيْهَا | فَاقْضُوا | حَاجَاتِكُمْ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[1] | | | | | | |
| (د همدې غرض لپاره) پيدا کړې ده. لهذا تاسو خپل کارونه او خپل حاجتونه پوره کړئ. | | | | | | | | | | |

**توضيح**: **منابر**: يعني د سورلۍ د ځناورو شاګانې د ناستې او د خطبې ورکولو لپاره ممبر مه جوړوئ چې بې ضرورته او بې سفره د هغې شاګانې د خپل ګپ شپ لپاره د ناستې ځايونه جوړ کړئ. آخر دا هم زنده سرې دي. دوی ته هم د ارام او د استراحت موقع ورکوئ. د دوی د شاګانو نه کوز شئ او زمکه باندې خپل د ناستې ځايونه جوړ کړئ. د دې نه هغه صورت مستثنیٰ دی چې د يو خاص په صورت په وخت کې د سورلۍ په شا باندې کينئ او خطبه ورکړئ د دې لپاره چې اواز تر لرې پورې ورسيږي، لکه څنګه چې نبي کريم ﷺ د عرفې په ورځ کړې وه.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ: | كُنَّا | إِذَا | نَزَلْنَا | مَنْزِلًا |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې کله مونږ (د سفر دوران کې يا د سفر نه وروسته) يو ځاى ته کوز پدل نو تر | | | | | | |
| لَا | نُسَبِّحُ | حَتَّى | نَحُلَّ | الرِّحَالَ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[2] |
| هغه وخت پورې به لمونځ نه کولو تر څو پورې به يې چې ترې نه سامان کوز کړی نه وُو. | | | | | | |

## د موټر مالک د مخکنې سيټ حقدار دی

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ | بُرَيْدَةَ | قَالَ: | بَيْنَمَا | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَمْشِي |
| او حضرت بريده رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ (يو سفر کې) پيدل په لاره باندې تللو چې په دې دوران کې يو | | | | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۹۱۶ أخرجه ابوداود في السنن ۵۹/۳ رقم الحديث ۲۵۶۷

[2] رقم الحديث ۳۹۱۷ أخرجه ابوداود في السنن ۵۱/۳ رقم الحديث ۲۵۵۱

إِذا جَاءَهُ رَجُلٌ مَعَهُ حِمَارٌ فَقَالَ:
کس په خپل ناځاپه د خپل خر سره یعنې هغې باندې سپور) نبي کریم ﷺ له راغلو او عرض یې وکړو
يَا رَسُولَ اللهِ ارْكَبْ وَتَأَخَّرَ الرَّجُلُ
یارسول الله ﷺ! (زما په خر باندې سپور شه او (دې ویل سره) هغه کس (د خر په شا باندې) شاته کیناستلو
فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا
د دې لپاره چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام مخکې کینې، خو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې زه مخکې نه کینم ځکه د سورلۍ په شاروې
أَنْتَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِكَ
باندې د مخکې کیناستلو ستا حق دی، خو دا که ما حقدار کړې (اګر که د هغه کس ځکه شاته کیناستلو چې ګویا کې هغه
إِلَّا أَنْ تَجْعَلَهُ
نبي عَلَيْهِ السَّلَام د مخکې کیناستلو حقدار کړې ؤو، خو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د احتیاط د کمال له نظره هغې ته دا واضحه کړه چې ستا په
لِي. قَالَ: جَعَلْتُهُ
سورلۍ باندې هغه وخت کیناستلی شم چې په صریح الفاظ کې ما ته د کیناستلو لپاره ؤوې. هغه کس وویل چې زه په صراحت سره
لَكَ فَرَكِبَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ[1]
دا وایم چې ما ته (نبي عَلَيْهِ السَّلَام) د دې حقدار کړې. د هغې نه وروسته نبي کریم عَلَيْهِ السَّلَام مخکې کیناستلو.

## شیطاني اوښ او شیطاني کور

﴿۲۸﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ:
او حضرت سعید ابن ابو هند رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (تابعي) د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې هغې دا بیان وکړو چې
قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَكُونُ إِبِلٌ لِلشَّيَاطِينِ وَبُيُوتٌ لِلشَّيَاطِينِ.
نبي کریم ﷺ وفرمایل چې (څه) اوښان د شیطانانو لپاره وي. او (څه) کورونه د شیطانانو لپاره وي،

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۱۸ أخرجه ابوداود في السنن ۶۲/۳ رقم الحديث ۲۵۷۲ والترمذي في ۹۲/۵ رقم الحديث ۲۷۷۳ وأحمد في المسند ۳۵۲/۵

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَمَّا | إِبِلُ | الشَّيَاطِينِ | فَقَدْ | رَأَيْتُهَا: | يَخْرُجُ | أَحَدُكُمْ |

نو كوم اوښان چې د شيطانانو لپاره وي هغه ما ليدلي دي، لكه تاسو كې چې يو كس ښې اوښې بهر اوباسي او هغه يې ښه

بِنَجِيبَاتٍ مَعَهُ قَدْ أَسْمَنَهَا فَلَا يَعْلُو بَعِيرًا مِنْهَا وَيَمُرُّ بِأَخِيهِ

وڅروي، خو هغې كې په يو اوښ سپور نه شي. او كله چې (په يو سفر كې) د خپل هغه مسلمان ورور سره لاره كې

قَدِ انْقَطَعَ بِهِ فَلَا

روان وي چې (د خپلې كمزورئ او د سورلۍ نه د محرومئ په وجه) په مزل كولو باندې ستړې شوې دي، نو هغه

يَحْمِلُهُ وَأَمَّا بُيُوتُ الشَّيَاطِينِ فَلَمْ أَرَهَا

هم په هغه اوښ باندې سپور نه كړي. او كوم كور چې د شيطانانو لپاره وي، هغه ما ليدلي نه دي. د حديث راوي

كَانَ سَعِيدٌ يَقُولُ: لَا أُرَاهَا إِلَّا هَذِهِ الْأَقْفَاصَ الَّتِي

حضرت سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زما گمان دا دى چې هغه كور (چې د شيطانانو لپاره وي) هغه پنجرې دي چې

يَسْتُرُ النَّاسُ بِالدِّيبَاجِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

خلك يې د ريښمو په ټوټو (پردو) كې پټوي.

**توضيح**: **بنجيبات**: نجيبات ښې اوښو ته وايي. (مرقات ۴۶۱/۷)

**فلا يعلموا**: يعنې اوښ ځان له پرېږدي. نه بل پرې بل څوك سپوروې او نه پرې خپله سپورېږي، ځكه هغې ته يې ضرورت نشته دى بلكې كله په يو مجبور ورور باندې تېرېږي خو هغه پرې نه سپوروې. دا شيطاني اوښ دى چې د دې په شا باندې د هيڅ غريب او د مجبور حق نشته دى.

**الاقفاص**: دا د قفص جمع ده. قفص پنجرې ته وايي. دلته مُراد كجاوه ده، خو هغه كيجاوه چې د ريښمو ټوټو والا وي. د ريښمو په وجه دا كجاوې د شيطان پنجرې او جالئ جوړه شي. (مرقات ۴۶۱/۷)

## لاره تنگولو باندې د جهاد ثواب مه خرابوئ

﴿۲۹﴾ وَعَن سهلِ بن مُعاذٍ عَن أبيهِ قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت سهل ابن معاذ د خپل پلار نه نقل كوي چې هغې وويل چې يو ځل چې كله مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره جهاد ته لاړو

[1] رقم الحديث ۳۹۱۹ أخرجه ابوداود في السنن ۶۰/۳ رقم الحديث ۲۵۶۸

فَضَيَّقَ النَّاسُ الْمُنَازِلَ
(او په منزل کې مو قیام وکړو) نو خلکو د منزل هغه ټول ځایونه تنګ کړه او لاره یې غوټه کړه. (یعني ځینو خلکو بې ضرورته یا د

وَقَطَعُوا الطَّرِيقَ فَبَعَثَ
ضرورت نه زیات ځې باندې قبضه واچوله چې د هغې په وجه د نورو خلکو لپاره ځای تنګ شو. د غه شان لاره هم تنګه شوه. چې

نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنَادِيًا يُنادي فِي النَّاسِ:
له وجې ئې تلو راتلو والو ته پریشانې شوه، نو (دې لیدلو سره) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ یو اواز کونکی خلکو ته ولېږلو

أَنَّ مَنْ ضَيَّقَ مَنْزِلًا أَوْ قَطَعَ
چې دا اعلان وکړي چې کوم خلکو د منزل ځایونه تنګ کړي دي یا یې لارې غوټې کړي دي نو خلکو

طَرِيقًا فَلَا جِهَادَ لَهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]
بې ضرورته د تکلیف ورکولو په وجه به هغوی ته د جهاد ثواب نه ملاوېږي.

﴿۳۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:
او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د

إِنَّ أَحْسَنَ مَا دَخَلَ الرَّجُلُ أَهْلَهُ إِذَا قَدِمَ مِنْ سفرٍ أَوَّلُ الليلِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]
سفر نه بېرته راتو تلو نکو نارینؤ لپاره د خپل کور والو ته بهترین وخت د شپې ابتدائي برخه ده.

## الفصل الثالث

﴿۳۱﴾ عَن أَبِي قتادةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ
او حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې کله به نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سفر کې وُو نو (یو پړاؤ

فَعَرَّسَ بِلَيْلٍ اضْطَجَعَ عَلَى يَمِينِهِ وَإِذَا عَرَّسَ
باندې) آخري برخه کې (یعني د سحر د لمر نه مخکې) کوزېدلو او ښي اړخ ته پرېوتلو او کله به چې د

---

(1) رقم الحديث ۳۹۲۰ أخرجه ابوداود في السنن ۹۵/۳ رقم الحديث ۲۶۲۹ وأحمد في المسند ۴۴۱/۳

(2) رقم الحديث ۳۹۲۱ أخرجه ابوداود في السنن ۲۱۸/۳ رقم الحديث ۲۷۷۷

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُبَيْلَ | الصُّبْحِ | نَصَبَ | ذِرَاعَهُ | وَوَضَعَ | رَأْسَهُ |
| سحر نه لږ مخکې را کوز به لو نو خپل نبي لاس به يې ودرولو او د هغې په تلي به يې خپل سر کېښودلو (يعني د څه | | | | | |
| عَلَى | كَفِّهِ. | رَوَاهُ | مُسلم[1] | | |
| وخت لپاره به يې په دې انداز ارام کولو چې خوب غالبه نه شي. | | | | | |

**توضیح**: بليل: يعني د شپې په آخري برخه کې به چې کله نبي کريم ﷺ پړاؤ کولو نو که په صبح صادق کې به لږ وخت ؤو نو نبي کريم ﷺ به سيدها پرېوتلو او ارام به يې کولو ځکه وخت به زيات ؤو، خو که وخت به کم ؤو نو نبي کريم ﷺ به ښي لاس ودرؤول او د هغې په تلي به يې ارام کولو چې د سحر لمونځ قضا نه شي.

## جهادي سفر کې تاخير کول د نقصان سبب دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَن ابْنِ عَبَّاس قَالَ: بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللهِ بْنَ رَوَاحَةَ | | | | | | | | |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ حضرت عبد الله بن رواحه رضي الله عنه ته | | | | | | | | |
| فِي | سَرِيَّةٍ | فَوَافَقَ | ذٰلِكَ | يَوْمَ | الْجُمُعَةِ | | | |
| د (جهاد) لپاره يو وړوکی لښکر ولېږلو. اتفاقاً هغه د جمعې ورځ وه. چې نبي عليه السلام ته په کې جهاد ته تللو | | | | | | | | |
| فَغَدَا | أَصْحَابُهُ | وَقَالَ: | | | | | | |
| حکم شوی ؤو، نو د هغې ملګري يعني د لښکر سحر وختې روان شول، خو عبد الله بن رواحه رضي الله عنه خپل زړه کې سوچ وکړو | | | | | | | | |
| أَتَخَلَّفُ | وأُصَلِّي | مَعَ | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| او يو ملګري ته يې وويل چې زه به وروسته در روانېږم. زه اول د لته مدينه کې د نبي ﷺ سره د جمعې | | | | | | | | |
| ثُمَّ | أَلْحَقُهُمْ | فَلَمَّا | صَلَّى | مَعَ | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| لمونځ وکړم بيا به لښکر سره ملاؤ شم. کله چې حضرت عبد الله بن رواحه رضي الله عنه د نبي ﷺ سره د جمعې لمونځ | | | | | | | | |
| رَآهُ | فَقَالَ: | مَا | مَنَعَكَ | أَنْ | تَغْدُوَ | مَعَ | أَصْحَابِكَ؟ | |
| وکړو او نبي عليه السلام هغه وليدلو (چې هغه اوس هم د لته موجود دی) نو ويې فرمايل چې ته سحر وختې کې د خپلو ملګرو | | | | | | | | |

(1) رقم الحديث ۳۹۲۲ أخرجه مسلم في صحيحه ۴۷۶/۱ رقم الحديث (۳۱۳-۶۸۳) واحمد في المسند ۳۰۹/۵.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | أَرَدْتُ | أَنْ | أُصَلِّيَ | مَعَكَ |

سره د تګ نه څه څيز منع کړې؟ هغې عرض وکړو چې ما دا سوچ وکړو چې زه تا سره د جمعې لمونځ وکړم او

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | أَلْحَقُهُمْ | فَقَالَ: | لَوْ | أَنْفَقْتَ | مَا | فِي | الْأَرْضِ | جَمِيعًا |

بيا به د خپلو ملګرو سره ملاو شم. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ته په مخ د زمکه باندې ټول شيان خرڅ هم کړې

مَا أدركْتَ فضلَ غدْوَتهِمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

نو د سحر وخت کې د تلونکو ملګرو برابر ثواب به حاصل نه کړې.

**توضيح**: **في سرية**: ۸ هجرئ کې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تقريباً درې زره (۳۰۰۰) صحابه کرام رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ د روم د سلطنت لپاره جهاد ته روان کړي وُو. حضرت زيد او د هغې نه وروسته حضرت جعفر او بيا حضرت عبدالله بن رواحه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ درې واړه د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرله پسې په ترتيب سره اميران کړي وُو. کله چې د مدينې نه دا حضرات وُوتل نو حضرت عبدالله بن رواحه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د جمعې لمونځ کولو په غرض په مدينه کې پاتې شو. او دواړه ملګرې يې د اسلام د لښکر سره روان شول. د جمعې ورځ وه. حضرت عبدالله بن رواحه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سوچ وکړو چې کېدې شي چې د ژوند آخري جمعه وې او د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخري ديدار وې. د مسجد نبوي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخري لمونځ وې، نو په دې غرض د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې لمونځ کولو لپاره پاتې شو. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې وليدلو نو ورته ويې فرمايل چې په څه وجه دې تاخير وکړو، نو عذر يې وويله چې د ملګرو سره ملاقات څه ګران کار نه دی. اوس به لاړ شم. او ستا سره د جمعې د لمونځ کولو فضيلت راته حاصل شو، نو په دې ورته نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په زمکه کې چې څه دي. که دا ټول هم خرچ کړې نو بيا هم د جهاد په سفر کې سحر کې د وتونکو والو فضيلت به ونه مومې. معلومه شوه چې د جهاد عمل ډېر لوی دی او دا د ټولو نه افضل عمل دی. دا حديث د تبليغي جماعت ملګرې د خپلو سه روزو، چلو او ګشت کې د وتلو لپاره بيانوې. او واقعه داسې بيانوې چې په دې کې د جهاد نوم نه راځي. دا د هغه حضراتو له اړخ په دې حديث کې واضحه تحريف دی. د خدای نه وېره کول پکار ده. (مرقات ۴۶۱/۷، الکاشف ۴۱۲/۷)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ: | قَالَ رَسُولُ | اللّٰهِ | صَلَّى اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | لَا |

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: د هغه قافلې سره د رحمت

(۱) رقم الحديث ۳۹۲۳ أخرجه الترمذي في السنن ۴۰۵/۲ رقم الحديث ۵۲۷ واحمد في المسند ۲۲۴/۱

| | | | |
|---|---|---|---|
| تَصۡحَبُ | الۡمَلَائِکَةُ | رُفۡقَةً | فِيهَا |
| فرښتې نه وي چې د زمرې څرمن په کې وي. يعنې د زمرې په څرمن باندې سپوريدونکې له کيناستل | | | |
| جِلۡدُ | نَمِرٍ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[1] |
| يا د هغې استعمالول منع دي، ځکه دې سره د تکبر شان پيدا کيږي. | | | |

**توضيح:** **جلد نمرة:** يعنې زمرې څرمن به يې په سورلۍ باندې خوره کړه او سفر به يې کولو يا به يې په زمکه خوروله او پرې کيناستل به. دا چې په دې سره مازغو او زړه کې تکبر پيدا کيږي چې زه په زمرې باندې ناست يم نو د دې تکبر په وجه د رحمت فرښتې په خوا کې نه وي. (مرقات ۴۶۵/۷)

## څوک چې خادم وي همغه سردار وي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۴﴾ وَعَنۡ سَهۡلِ بۡنِ سَعۡدٍ رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ: | | | | | | | |
| او حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ و فرمايل سفر کې د جماعت | | | | | | | |
| سَيِّدُ | الۡقَوۡمِ | فِي | السَّفَرِ | خَادِمُهُمۡ | فَمَنۡ | سَبَقَهُمۡ | بِخِدۡمَةٍ |
| اميراو سردار، د هغوی خادم دی. لهذا کوم کس چې د دوی (د سفرو کونکو) په خدمت کې مخکې شول، | | | | | | | |
| لَمۡ | يَسۡبِقُوهُ | بِعَمَلٍ | إِلَّا الشَّهَادَةَ. | رَوَاهُ | الۡبَيۡهَقِيُّ | فِيشعب | الۡإِيمَانِ[2] |
| نو د دې په مقابله کې د يو کس د ګواهۍ نه بغير د بل هيڅ يو عمل په ذريعه باندې نه شي مخکې کيدلی. | | | | | | | |

**توضيح:** **سيد القوم:** د حديث يو مطلب دا دی چې کوم کس د خپلو ملګرو خدمت کوي هغه اصل کې د ټولو سردار دی، ځکه هغه د خدمت په وجه د ټولو زړونو وګټي. د غه شان په هر کار کې خلک د هغې محتاجه وي. دغه شان هغه د ټولو سردار شي. اګر که غريب کس وي. د حديث دويم مطلب دا دی چې کوم کس چې د خپلو ملګرو امير شو نو د ملګرو خادم همغه وي. بيا هغې له پکار ده چې د خپلو ملګرو خدمت کوي. داسې نه چې خپله ځان مشر کړي او ناست وي او په نورو باندې حکم چلوې، نو ځکه د حديث په آخري الفاظ کې دا ارشاد دی چې خادم کله د خدمت په ذريعه مخکې شي نو د هغې مقام ته هيڅ نه شي رسيدلی. (مرقات ۴۶۵/۷)

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۲۴ أخرجه ابوداود في السنن ۳۷۲/۴ رقم الحديث ۴۱۳۰

(۲) رقم الحديث ۳۹۲۵ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۳۳۴/۶ رقم الحديث ۸۴۰۷

# باب الكتاب الى الكفار و دعائهم الى الاسلام

## كفارو ته د مكتوبونو په ذريعه د دعوت وركولو بيان

**قال الله تعالى: ﴿و من احسن قولا ممن دعا الى الله وعمل صالحا و قال انني من المسلمين﴾ (سورة حم سجده : ۳۳)**

كفارو ته د جنګ نه مخکې دعوت وركول واجب دى، خو په دې شرط چې هغوى ته دعوت نه وي رسيدلى. كه چرې دعوت ورته رسيدلى وي نو بيا دعوت وركول مستحب دى. دې باندې د كتاب الجهاد په ابتداء كې تفصيل تير شوى دى. د دعوت ډيري طريقي دي. خپله ورتللو سره دعوت وركول يا د يَو نشره ونكې اداري سره اعلان كول يا د يوې مشهوري واقعي نه كفاور ته معلومېدل چې مسلمانان هم يو قوم دى. چې خپل اسماني كتاب او مذهب لري. دغه طريقو كې د دعوت يوه طريقه كفارو ته خط ليكنه هم ده. اسلام كې دعوت خو يوه شعبه ده، خو د دې هيڅ متعين شكل نشته دى. د زماني د احوالو مطابق چې كوم يو صورت ځوك اختياروي نو د دعوت كار كېږي. بهرحال نبي كريم ﷺ چې كله د مكې كفارو سره د لسو (۱۰) كالو لپاره په حديبيه كې جنګ بندئ باندې صلح وكړه، نو هغه صلحې سره ډير فايدي ترلاسه شوي. يوه فائده دا وشوه چې كفاور مسلمانان د نژدي نه وليدل او په خپل مينځ كې د راكړې وركړې په ذريعي سره كفارو په بهتره توګه په اسلام پوهه شول او بيا ګڼ شمير خلكو اسلام قبول كړو.

دويمه فائده دا وشوه چې نبي كريم ﷺ كله د جزيره عرب د ننه د دشمنانو نه په اطمينان سره فارغ شو نو نبي كريم ﷺ د جزيره عرب نه د بيرون دنيا نورو كفارو ته د مكتوبونو په ذريعي د اسلام دعوت وركړو. اګر كه نبي كريم ﷺ د جزيره عرب نه بيرون لا نړو خو د مكتوبونو په ذريعي نبي كريم ﷺ دعوت ورسولو او دومره دعوت ضروري او د جهاد لپاره كافي ؤو.

دنيا كې هغه وخت دوه لوى قوتونو حكمراني كوله (لكه څنګه چې زمونږ په دور كې روس او امريكه وه. روس خو مات شو وس انشاء الله د امريكې نوبت دى) د يو قوت نوم فارس ؤو او د دويم قوت نوم روم ؤو. خلكو به د فارس مشر (بادشاه) ته كسرى او د روم مشر (بادشاه) ته به يې د قيصر نوم اخستلو. نبي كريم ﷺ قيصر او كسرى دواړو ته مكتوبونه ولېږل، خو هغه خلكو به د مهر نه بغير هيڅ يو مكتوب نه قبلولو، نو ځكه نبي كريم ﷺ يوه ګوتمه جوړه كړه او هغې كې يې دا عبارت وتراشو "**محمد رسول الله**". د هغې د ليكلو طريقه داسې وه. چې لفظ "**الله**" د ټولو نه پاس ؤو، د هغې نه وروسته "**رسول**" او د هغې نه د ټولو لاندې د "**محمد**" لفظ ؤو.

الله

رسول

محمد

# الفصل الاول

## د قیصر روم په نوم د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خط

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى قَيْصَرَ |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قيصرِ يعنې د روم بادشاه ته يو خط وليکلو. |
| يَدْعُوهُ إِلَى الْإِسْلَامِ وَبَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَيْهِ دِحْيَةَ الْكَلْبِيَّ |
| چې هغې کې ورته د اسلام دعوت ورکړی شوی ؤو او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل خط د دحيه کلبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (صحابي) |
| وَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ بُصْرَى لِيَدْفَعَهُ إِلَى قَيْصَرَ فَإِذَا فِيهِ: |
| په لاس ولېږلو او هغې ته يې دا حکم وکړو چې هغ حاکم بصرى دا قيصر ته ورسوي. هغه خط کې دا ليکلي شوي ؤو. |
| "بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللهِ وَرَسُولِهِ |
| بسم الله الرحمن الرحيم: د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخه چې د خدای خاص بنده او رسول دی. |
| إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ سَلَامٌ عَلَى مَنِ |
| هرقل چې د روم اعلی حاکمران دی په هغې دې سلامتي وي چې (د اسلام د قبلولو او د خپل نيک کردار او د اعمالو په ذريعه) |
| اتَّبَعَ الْهُدَى أَمَّا بَعْدُ فَإِنِّي أَدْعُوكَ بِدَاعِيَةِ الْإِسْلَامِ أَسْلِمْ تَسْلَمْ |
| د هدايت تابع دی. پس له دې څخه زه تا ته د اسلام دعوت درکوم. ته اسلام قبول کړه. دنيا او د آخرت د عذاب نه به محفوظ شي |
| وَأَسْلِمْ يُؤْتِكَ اللهُ أَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ |
| ته مسلمان شه. الله به تا ته دوه چنده اجر درکړي. او که مخ دې واړولو يعني اسلام دې قبول نه کړو نو دا درته واضحه وي چې د دې د |
| وَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَعَلَيْكَ |
| انکار او د مخ اړولو په وجه به صرف تا باندې خپله ګناه او وبال نه وي بلکې ستا ملک والو او ستا د عوامو ګناه به هم په تا باندې وي، |
| إِثْمُ الْأَرِيسِيِّينَ وَ(يَا أَهْلَ الْكِتَابِ |
| ځکه ستا د اسلام نه راوړلو په وجه به هغه په کفر کې اختهوي، نو د هغوی ګمراهۍ ذمهواري به هم په تا باندې وي. ای اهل کتاب! |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَعَالَوْا | إِلَى | كَلِمَةٍ | سَوَاءٍ | بَيْنَنَا | وَبَيْنَكُمْ |
| داسې کلمې او دين ارخ ته راشئ چې زمونږ او ستاسو په مينځ کې يوشان او مشترک دی يعنې دې دين کې زمونږ او ستاسو | | | | | |
| أَن | لَا | نَعْبُدَ | إِلَّا | اللهَ | |
| د رسولانو او د کتابونو په مينځ کې هيڅ اختلاف نشته دی. او هغه کلمه او دين دا دی چې مونږ د خدای نه بغير بل د هيچا عبادت ونه | | | | | |
| وَلَا نُشْرِكَ | بِهِ | شَيْئًا | وَلَا يَتَّخِذَ | بَعْضُنَا بَعْضًا | أَرْبَابًا |
| کړو هغې سره بل څوک شريک نه کړو او مونږ هيڅ څوک بل د خدای نه بغير رب جوړ نه کړو لکه | | | | | |
| مِنْ | دُونِ | اللهِ | فَإِنْ | | |
| څنګه چې عيسايانو حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ رب جوړ کړی دی. پس که اهل کتاب د دې خبرې د | | | | | |
| تَوَلَّوْا | فَقُولُوا: | اشْهَدُوا | بِأَنَّا | مُسْلِمُونَ) | مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| قبلولو نه انکار وکړي او مخ واړوې نو ای مؤمنانو! تاسو دا اعلان وکړئ چې ای کافرو ګواه ؤوسئ چې مونږ مسلمانان يو. | | | | | |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ | قَالَ: | مِنْ مُحَمَّدٍ | رسولِ اللهِ" | وَقَالَ: | إِثْمُ |
| او په روايت د مسلم کې مِنْ مُحَمَّدٍ عبدالله وَرَسُوْلِهِ په ځای مِنْ مُحَمَّدٍ رسولِ اللهِ دی او (اثم الْاَرِيْسِيِّيْنَ | | | | | |
| الیریسیّینَ | وَقَالَ: | بِدِعَايَةِ | الْإِسْلَامِ | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | |
| په ځای إِثْمُ الیریسیّینَ دی او دِبِدَاعِيَةِ الْإِسْلَامِ په ځای بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ دی. | | | | | |

**توضيح**: **دحية**: دا صحابي ډېر زيات ښايښته او مخوريز او ښائسته شکل والا ؤو. **يوسف هذه الامة** په لقب سره مشهور ؤو، نو د سفير په توګه به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ليږلو. او جبرائيل امين به هم د هغې په شکل کې وحې راوړله.

**هرقل**: ها باندې کسره ده. را باندې فتحه ده او قاف باندې سکون دی. دغه شان را باندې سکون او قاف باندې فتحه هم ويلی کېدی شي. د روم د حاکم نوم دی. هغه زمانه کې په لويې لويې طاقتونو کې يو طاقت د روم ؤو. چې پايه تخت يې قسطنطينة ؤو. د يورپ د مختلفو ملکونو نه بغير د مصر، شام

---

[1] رقم الحديث أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱/۱ رقم الحديث ۷ ومسلم في ۱۳۹۳/۳ رقم الحديث (۷۴-۱۷۷۳) واحمدفي المسند ۲۶۳/۱

او د فلسطين علاقې هم د دوی د اثر لاندې وي. د روم د بادشاه لقب به قيصر ؤو. لکه څنګه به چې د فارس د بادشاه لقب خسرو ؤو. چې عربې کې ورته کسری وايي. د مصر د بادشاه لقب به فرعون ؤو. د ترکانو د بادشاه لقب به خاقان ؤو. د حبشه د بادشاه لقب به نجاشي ؤو. نجاشي او د يمن د بادشاه لقب به تُبّع ؤو. هندوستان د بادشاه لقب به راجه ؤو او د چين د بادشاه لقب به فغفور ؤو. بهرحال د هرقل په نوم نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو خط ولېږلو. د حضرت دحيه کلبی په واسطه يې د بصری شام والي ته دا خط ورسولو او هغې هرقل ته ورسولو. هرقل ولوستلو او ډېر په احترام سره يې کېښنودلو.

**عظيم الروم:** د دې لفظ نه معلومه شوه چې په دنيوي لحاظ سره د لويې منصب والا کس د مقام خيال ساتنه جائز ده. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هرقل بادشاه د عظيم الروم په نوم سره ياد کړی دی. د غير مسلمو لپاره د سلام طريقه **والسلام على من اتبع الهدى** ده، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السلام عليکم ونه فرمايل. (مرقات۷/۴۶۷، ۴۶۶)

**داعية الاسلام: داعيه د عافية او عاقبة په شان مصدر دی. چې د الدعوة په معنی کې دی. يو** روايت کې دعاية هم دی. هغه هم دعوت په معنی کې دی. (مرقات۷/۴۶۸)

**اسلِم:** يعنې اسلام قبول کړه.

**تَسلَمْ:** يعنې د فاسدو او د شرکيه عقيدو او بد اخلاقو او هلاکتونو نه به بچ شې. دا لفظ د "ت" په فتحه او سين په سکون او د لام په فتحه او ميم د سکون سره دی. چې که په دنيا کې چا د تولو نه زورو او مختصر خط ليکلی دی، نو هغه د حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ خط دی. چې قرآن کې ذکر دی، خو د هغې خط نه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خط ډېر مختصر او زوره ور دی.

**اجرك مرتين:** يهود او نصاری کې چې کوم کس په خپل نبي باندې ايمان راوړی دی او بيا يې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبول کړی دی نو هغې ته دوه اجرونه ملاوېږي. (مرقات۷/۴۶۸)

**الاريسيين:** دا لفظ د "**أَرِيْسِيِّيْنُ**" دی. همزه مفتوح دی. د دې نه وروسته را باندې کسره ده او بيا يا ساکن دی. بيا سين باندې کسره بيا يا باندې شد دی. او بيا يا ساکن او آخر کې نون دی. دا لفظ يريسيين هم راغلی دی. د همزه په ځای "ی" مفتوح دی. باقي کلمه همدغه انداز باندې ده. دا لفظ اريسين هم راغلی دی. همزه باندې کسره ده. بيا يا ساکن دی. د صحيح قول مطابق د ملک چوهدری او په لويې دهقانانو باندې به د دې لفظ اطلاق کېدلو، نو په ځينو روايتونو کې د "**اَكَّارِيْنَ**" لفظ هم راغلی دی. چې د کرونده کونکي او د دهقان په معنی کې دی. حديث کې د دې

لفظ نه عام خلک مراد اخستلي شوی دی. (مرقات ۴۶۸/۷)

**اربابا من دون الله:** هيڅ يو كس ته حلال د حرام كولو او حرام د حلال كولو اختيار وركول هغه خپل رب جوړل دي. عيسايانو به دا اختيار خپلو مشرانو ته وركولو. حضرت عدي بن حاتم چې كله مسلمان شو نو هغې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! مونږ كله هم خپل پادريان رب نه دي جوړ كړې. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې آيا هغوی ته به مو حلال په حرام كې د بدلولو اختيار وركولو او كه نه؟ هغې وويل چې دا اختيار به مو وركولو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې همدغه رب جوړول دي.هرقل د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خط ډېر احترام وكړو او د خپل ملک غټو ته يې د اسلام د راوړلو خواست هم وكړو. خلک په دې وران شول. لهذا اسلام يې قبول نه كړو. اګر كه د اسلام د بار بار قبولو خواهش يې وكړو. امام بخاري په بخاری كې اشاره كړې ده چې هرقل په كفر كې مړ شوی دی. د مذهب په اعتبار سره عامه توګه باندې د روم خلک عيسايان ؤو. كله چې صحابه په انطاكيه باندې قابض شول نو هرقل د خپلې ښځې او بچو سره په كشتۍ كې كيناستلو او شام ځمكې باندې يې نظر واچولو او وې ويل **"السلام عليك يا ارض الشام لا ارك الى يوم القيامة"** دا يې وويله او قسطنطين ته لاړو او هلته مړ شو. (مرقات ۴۵۰/۷)

## د شاه فارس پرويز په نوم د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خط

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَى كِسْرَى مَعَ عَبْدِ اللهِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ | | | | | |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل خط مبارک د عبد الله ابن حذافه سهمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | |
| فَأَمَرَهُ | أَنْ | يَدْفَعَهُ | إِلَى | عَظِيمِ | الْبَحْرَيْنِ |
| په لاس روان كړو. چې تقريباً په همغه مضمون باندې مشتمل ؤو چې قيصر وغيره ته يې لېږلی ؤو. او هغې ته يې دا | | | | | |
| فَدَفَعَهُ | عَظِيمُ | الْبَحْرَيْنِ | إِلَى | كِسْرَى | |
| حكم وكړو چې هغه دا خط د بحرين حاكم ته ورسوې (چې كسری ته يې ورسوې) نو عبد الله ابن حذافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | |
| فَلَمَّا | قَرَأَ | مَزَّقَهُ | | | |
| هغه د بحرين حاكم ته وروسولو او د بحرين حاكم هغه كسری ته ورسولو. چې كسری هغه خط ولوستلو نو (په ځای د دې | | | | | |
| قَالَ | ابْنُ الْمُسَيَّبِ: | فَدَعَا | عَلَيْهِمْ | رَسُولُ اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې عمل پرې وكړې) وېشلولو (د حديث يو راوي) ابن مسيب فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |

أَنْ يُمَزَّقُوا كُلَّ مُمَزَّقٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

کسری او د هغې خلکو ته ښېرې وکړې چې هغوی دې ذره ذره شي باکل ذره ذره.

**توضيح**: الی کسریٰ: د روم پشان د فارس هم د ساسانيو ايرانيو عظيم طاقتور سلطنت ؤو. يو اړخ ته خو د هغوی حدود تر سنده پورې خور شوی ؤو. او د بل اړخ نه عراق او د عرب څه علاقې مثلاً يم او بحرين او عمان هم د دوی د لاندې ؤو. دا ايشياء عظيم مملکت او د دنيا دويم سپر پاور ؤو. د بادشاه لقب به يې خسرو ؤو. چې عربې کې به يې ورته کسری ويله. هغه وخت د دې بدبخته نوم پرويز ؤو، لکه څنګه چې نن سبا د پاکستان د بد بخت صدر نوم پرويز دی. خدای دې وکړي چې د دواړو انجام يو وې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عبد الله بن حذافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس د کسری په نوم خط ولېږلو. پرويز مغرور ؤو. هغه غوسه شو چې زمانوم يې وروسته ليکلی دی او اول يې خپل ليکلی دی. په دې وجه هغې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خط وشلولو او وې غورځولو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته ښېرې وکړې. تاريخ کې ليکلې دي چې دې بدبخته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نيولو لپاره دوه کسان مدينې ته راروان کړه. دا استاځې مدينې ته راغلل. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تر سبا پورې انتظار وکړئ. په دويمه ورځ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې زما رب ستاسو رب مردار کړی دی. او د پرويز ځوي هغه مردار کړی دی. بيا شيرو د پلار د خزانې نه د زهرو ډکه يوه شيشه وليدله چې پرې ليکلی شوې ؤو. "دواء نافع للباه" هغې د قوت باه دوا وګڼله او وې څښله. او مړ شو. شيرو مياشتو کې دننه دننه د دواړو خاتمه وشوه. بيا خلکو د کسری لور (آرميد خت) خپله مشره کړه. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې هغه قوم به کله هم کامياب نه شي چې مشرې يې ښځه کوي. بيا د حضرت سعد بن ابی وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مشرئ کې صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هغې اړخ ته متوجې شول او فارس آخري حاکم روايزدجرد يې د هميشه لپاره په خاورو کې اوده کړو د تر قيامت پورې د قيصر او د کسری نوم او نښان وران شو. (مرقات۴۷۲/۷، ۴۷۱)

﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى كِسْرٰى وَإِلَى قَيْصَرَ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فارس يعنې د ايران بادشاه، د کسری روم بادشاه قيصر

---

(1) رقم الحديث ۳۹۲۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲۶/۸ رقم الحديث ۴۴۲۴، ۲۲ واحمد في المسند ۲۴۳/۱

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِلَى | النَّجَاشِيِّ | وَإِلَى | كُلِّ | جَبَّارٍ |
| او د حبشه بادشاه نجاشي او هر متکبر و مقتدر بادشاه ته يې خط وليکلو. چې په هغې کې هغوی الله (يعني دين اسلام) ارخ | | | | |
| يَدْعُوهُمْ | إِلَى | اللهِ | وَلَيْسَ | بِالنَّجَاشِيِّ الَّذِي |
| ته راوبلل شوي ؤو. او دا نجاشي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ور ته خط لېږلي ؤو هغه نجاشي نه دی چې د کوم لپاره | | | | |
| صَلَّى عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] | | | | |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدينه کې غائبانه جنازه کړې وه. | | | | |

**توضيح**: **نجاشي**: دا لفظ اصل کې نجوس ؤو. د حبشي بادشاه ته به هغه خلکو نجوس ويلې. عربو دا لفظ نجاشي کړو. نن سبا د نجاشي نوم کافرانو ايتهوپيا ايبنی دی، د دې لپاره چې د مسلمانانو نه تاريخ ورک شي. د بحث لاندې حديث کې دا تنبيه ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حبشي کوم نجاشي ته خط ليکلی ؤو دا هغه نجاشي دی چې اسلام يې قبول کړی ؤو. او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د جنازې لمونځ کړی ؤو. (مرقات ۴۷۳/۷)

## د دعوت اسلام طريقه او د جهاد آداب

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ | سليمانَ | بنِ | بُريدةَ | عَنْ | أَبِيهِ قَالَ: |
| او حضرت سليمان بن بريده د خپل پلار (حضرت بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه نقل کوي چې هغې و فرمايل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |
| كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَّرَ أَمِيرًا عَلَى جَيْشٍ أَوْ سَرِيَّةٍ | | | | | |
| به څوک د وړوکې يا لويې لښکر امير کولو نو په خاصه توګه به يې د هغې د ذات متعلق نو هغه به يې د الله نه | | | | | |
| أَوْصَاهُ | فِي | خَاصَّتِهِ | بِتَقْوَى | اللهِ | |
| د وېرولو او د هغې سره (جهاد کې) د تلونکو مسلمانانو متعلق هغې د نيکۍ او د خير کولو نصحيت کولو (چې | | | | | |
| وَمَنْ | مَعَهُ | مِنَ | الْمُسْلِمِينَ | | |
| د مجاهدينو لښکر د ستا په امارت کې روان دي هميشه د هغوی سره د خير او نيکۍ معامله کوه او د هغوی په | | | | | |
| خَيْرًا | ثُمَّ | قَالَ: | | | |
| حق کې د ښه اخلاق او د احسان او نرمۍ او ملاطفت اخلاق اختيار کړه) او د هغې نه وروسته به يې دا فرمايل | | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۹۲۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۹۷/۳ رقم الحديث (۷۵-۱۷۷۴) والترمذي في السنن ۶۴/۵ رقم الحديث ۲۷۱۶

"اغْزُوَا بِسمِ اللهِ قَاتِلُوا مَنْ كَفَرَ بِاللهِ
لاړه او خدای نوم واخله او د خدای په لاره کې جهاد وکړه د هغه کس خلاف جهاد وکړه چې د الله سره یې کفر

اغْزُوَا فَلَا تَغُلُّوا وَلَا تَغْدِرُوا وَلَا تُمَثِّلُوا
کړی دی. جهاد وکړه، د غنیمت په مال کې خیانت مه کوه. وعده مه ماتوه، مثله مه کوه (یعنې د بدن اندامونه لکه

وَلَا تَقْتُلُوا وَلِيدًا
پوزه، غوږ وغیره مه غوڅوه) او ماشومان مه وژنه. او (ای د لښکر امیره) چې کله ته د خپل مشرک دښمنانانو ته

وَإِذَا لَقِيتَ عَدُوَّكَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَادْعُهُمْ
ورسیږې نو اول هغوی ته د هغه درې شیانو د اختیارولو دعوت ورکړه (د حدیث راوي د خپل شک اظهار کوي

إِلَى ثَلَاثِ خِصَالٍ أَوْ خِلَالٍ
چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ثلاث خصال په ځای ثلاث خلال وفرمایل (خصاص او خلال د دواړو یوه معنی ده)

فَأَيَّتُهُنَّ مَا أَجَابُوكَ
په دې درې شیانو کې مشترک چې ته کوم اختیارو . او د خپل ځان لپاره یې خوښوې ته هغه منظور کړه او د

فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ
هغې نه زیات ځوک په مجبوره کولو نه ځان وساته. بیا یعنې په دې درې شیانو کې اولنی شی دا دی

ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ فَإِنْ أَجَابُوكَ
چې هغوی د اسلام دعوت ورکړه. که هغوی یې قبول کړي نو ته یې منظور کړه او هغوی سره د جنګ نه

فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ ثُمَّ
ځان وساته. بیا هغوی اسلام قبول کړي نو د هغوی په خپل ملک کې یعنې د دارالحرب نه د مهاجرینو ملک

ادْعُهُمْ إِلَى التَّحَوُّلِ مِنْ دَارِهِمْ إِلَى دَارِ الْمُهَاجِرِينَ
یعنې دار الاسلام ته د انتقالیدلو یعنې د هجرت کولو دعوت ورکړه او هغوی ته دا ؤوایه چې کچرې

وَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ إِنْ فَعَلُوا ذَلِكَ
تاسو دا کوئ (یعنې هجرت وکړئ او دارالاسلام ته راشي نو هغوی به همغه حقوق وي، کوم چې

فَلَهُمْ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُهَاجِرِينَ فَإِنْ

مهاجرین ته حاصل دي. او په هغوی به همغه ذمه واري وي کومې چې په مهاجرېنو باندې دي او په

أَبَوْا أَنْ يَتَحَوَّلُوا مِنْهَا فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ يَكُونُونَ كَأَعْرَابِ الْمُسْلِمِينَ يُجْرَى عَلَيْهِمْ حُكْمُ اللهِ

هغوی به د خدای همغه حکم نافذ کېږي کوم چې په ټولو مسلمانانو باندې نافذ دي یعنې د لمونځ، زکوة

الَّذِي يُجْرَى عَلَيْهِمْ حُكْمُ اللهِ الَّذِي يُجْرَى عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَلَا يَكُونُ لَهُمْ فِي الْغَنِيمَةِ وَالْفَيْءِ

وغیره واجب کېدل او قصاص او د دیت احکامات نافذ کېدل او د غنیمت او فئ په مال کې به د هغوی هیڅ برخه

شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يُجَاهِدُوا مَعَ الْمُسْلِمِينَ

نه وي. البته هغه وخت به ورته ملاوېږي چې کله مسلمانانو سره په جهاد کې شریک شي. او که هغوی

فَإِنْ هم أَبَوا فعلهم الْجِزْيَةَ فَإِنْ هُمْ أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ

د اسلام قبولو نه انکار وکړي نو بیا ترېنه د جزیې د ادا کولو مطالبه وکړه. او که جزیه ورکول قبول کړي نو ته یې هم منظور

وَكُفَّ عَنْهُمْ فَإِنْ هُمْ أَبَوْا

کړه او د جنګ کولو نه ځان وساته. او که هغوی جزیه هم قبوله نه کړي نو د ربهم شی دا دی چې تاسو د الله

فَاسْتَعِنْ بِاللهِ وَقَاتِلْهُمْ وَإِذَا حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ

نه مرسته وغواړئ او د هغوی سره جنګ شروع کړئ او کله چې تاسو د یوې قلعه خلک یعنې د ښمنان محاصره

فَأَرَادُوكَ أَنْ تَجْعَلَ لَهُمْ ذِمَّةَ اللهِ وَذِمَّةَ نَبِيِّهِ

کړئ او د قلعه یا د کلې والا تاسو نه د الله او د هغې د نبي عهد او امان وغواړي نو تاسو هغوی ته د الله د

فَلَا تَجْعَلْ لَهُمْ ذِمَّةَ اللهِ وَلَا ذِمَّةَ نَبِيِّهِ وَلَكِنِ اجْعَلْ لَهُمْ ذِمَّتَكَ وَذِمَّةَ أَصْحَابِكَ

نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخه د امان ورکولو عهد مه کوئ. د خپل د جهاد د ملګرو له اړخه ورته عهد او امان ورکړه

فَإِنَّكُمْ أَنْ تُخْفِرُوا ذِمَمَكُمْ وَذِمَمَ أَصْحَابِكُمْ

ځکه که ته د خپل او د خپلو ملګرو له اړخه د ورکړی شوی عهد و امان ماتوئ نو دا به د الله او د هغې د

أَهْوَنُ مِنْ أَنْ تُخْفِرُوا ذِمَّةَ اللهِ وَذِمَّةَ رَسُولِهِ وَإِنْ حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ

رسول عهد و امان د ماتولو نه ډېر اسان وي او کله چې ته د یوې قلعه خلک محاصره کړې او هغوی (د قلعه والا) ستا

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَرَادُوكَ | أَنْ | تُنْزِلَهُمْ | عَلَى | حُكْمِ | اللهِ | فَلَا | تُنْزِلْهُمْ | عَلَى | حُكْمِ اللهِ |

نه د الله په حکم باندې د محاصرې د ختمولو خواست وکړي نو ته د الله په حکم د هغوی نه محاصره مه او چتوه بلکې په خپل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَكِنْ | أَنْزِلْهُمْ | عَلَى | حُكْمِكَ | فَإِنَّكَ | لَا تَدْرِي: |

حکم باندې د هغوی نه محاصره ختمه کړه، ځکه تا ته نه ده معلومه چې تا د خپل ځان باره کې د فیصله کولو وخت کې د الله حکم ته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَتُصِيبُ | حُكْمَ | اللهِ | فِيهِمْ | أَمْ | لَا؟". | رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |

رسیدلی یې یا نه (تا ته په ځنګه پته لږې چې تا د محاصرې او چتولو وخت کې کومه فیصله کړې ده هغه د خدای په نزد صحیح ده یا نه

**توضیح: ثم ادعهم الی الاسلام:** د دعوت اسلام په درې خصلتونو کې دا اولنی خصلت دی چې د ایمان دعوت ورکړه. دلته په ځینو نسخو کې د "ثم" لفظ نشته دی. او همدغه ډېره مناسبه ده لکه ځنګه چې د ابو داؤد په روایت کې دي. د حدیث مطلب دا دی چې د دعوت نه وروسته که خلکو اسلام قبول کړو نو بیا هغه خلکو ته ؤوایه چې هغه ښارونو ته راشئ چرته چې مسلمانان اباد دي. او که هغه خلکو هجرت وکړو او د کلو نه ښارونو ته راغلل نو د مهاجرینو ټول حقوق به هغوی ته ملاوېږي. او که هغه خلک ښارونو ته نه راځي نو بیا د هغوی معامله د کلیوالو پشان وي چې که په جهاد کې شریک شو نو مالِ غنیمت به ورته ملاوېږي کنې نه. البته د اسلام قوانین به په هغوی نافذ کېږي.

**فسلهم الجزیة:** یعنې که کفارو اسلام قبول نه کړو نو د دعوت اسلام دویم خصلت دا دی چې د هغوی ته بله خبره د جزیې وکړه. **فاستعن بالله:** یعنې که د جزیه ورکولو نه هغه خلکو انکار وکړو نو بیا د دعوت اسلام درېم خصلت دا دی چې د الله نوم واخله او د هغوی سره جنګ وکړه. جهاد د مقدس جنګ د آدابو نه یو آداب دا دی چې کله ته کومه قلعه محاصره کړې او د قلعه والا ستا نه د الله د نوم په ذمه واریٔ باندې عهد او امان وغواړي، نو د الله تعالی په ذمه واریٔ معاهده مه کوه. بلکې په مضبوطه رایه باندې معاهده وکړه، ځکه که معاهده د یوې مجبورۍ له وجې ماتول غواړې نو بهتره به دا وي چې ستا په عهدو او امان ورکړی شوی ؤو هغه مات شي او الله او د هغې د رسول نافرماني ونه شي. دغه شان د جنګ په آدابو کې دویم ادب دا دی چې که د کومې قلعه خلک په دې شرط راکوزېدل غواړي چې د هغوی باره کې د الله کوم حکم وي نو په هغوی به نافذ کېږي. داسې معاهده هم مه کوئ بلکې هغوی ته وایې چې زمونږ مطابق په فیصله باندې راکوشئ. کومه فیصله چې مونږه کوؤ همغه به نافذ کېږي. دا ځکه چې تاسو ته څه پته ده چې د دې باره کې د الله څه حکم دی او چرته دی. هغه خلک به نور څه وایې او تاسو به نور څه وایې. دغه شان به تاسو په تشویش کې شئ، نو ځکه پاکه ورته ؤوایئ چې زمونږ امیر چې کومه

[1]) رقم الحدیث ۳۹۲۹ اخرجه مسلم في صحیحه ۱۳۹۷/۳ رقم الحدیث (۷۵-۱۷۷۴) والترمذي في السنن ۶۴/۵ رقم الحدیث ۲۷۱۶

فيصله کوي نو د همغې به اعتبار وي. ظاهره ده چې مسلمان امير د شريعت خلاف فيصله نه کوي. کومه فيصله به چې کوي هغه به د انصاف او حکمت وي. (مرقات ۷/ ۴۷۶،۴۷۵)

## د جنګ ارمان مه کوئ خو چې په سَر مو راشي نو بيا يې په کلکه کوئ

﴿۵﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوفى: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَيَّامِهِ الَّتِي

او حضرت عبدالله بن ابو اوفی رضي الله عنه فرمايي چې نبي صلی الله عليه وسلم په خپلو ورځو کې يو ورځ چې د ښمن په مقابله

لَقِيَ فِيهَا الْعَدُوَّ انْتَظَرَ

کې وُو (يعنې د جهاد په موقع کې په ميدان جنګ کې وُو) د لمر د پرېوتلو پورې د جنګ شروع کېدلو انتظام

حَتَّى مَالَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَامَ فِي النَّاسِ فَقَالَ:

کولو. بيا لمر پرېوتلو، نو نبي صلی الله عليه وسلم خلکو ته د خطبې لپاره او درېدلو او ويې فرمايل خلکو! تاسو د خپل د ښمن

يَا أَيُّهَا النَّاسُ لَا تَتَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ

سره د مقابلې ارمان مه کوئ يعنې دا مه غواړئ چې د کفارو سره د قتل و قتال بازار ګرم وي، ځکه دا غوښتل

وَاسْأَلُوا اللهَ الْعَافِيَةَ

د امتحانونو او د مصيبت ارمان کول دي. چې منع ده. بلکې د الله نه د امن او عافيت طلب کوئ. کله چې ستاسو

فَإِذَا لَقِيتُمْ فَاصْبِرُوا

د د ښمن سره مقابله شي نو بيا ښه په پوره زړه ورتيا سره مقابل کوئ او د صبر او استقامت نه کار اخلئ. او په

وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ

دې خبره پوهه شئ چې جنت د تورو د سيورې دلاندې دی. يعنې تاسو جنت ته بالکل نژدې وئ. د دې نه وروسته

ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ وَمُجْرِيَ السَّحَابِ وهازم الْأَحْزَاب

نبي کريم صلی الله عليه وسلم دا دعا وغوښتله اې الله! کتاب نازلونکی، وريځې چلونکی او د کفارو جماعت ته شکست

واهزمهم وَانْصُرْنَا عَلَيْهِم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

ورکونکی دې د ښمنانو ته شکست ورکړې او مونږ له په هغوی فتح راکړې.

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۳۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/ ۱۲۰ رقم الحديث ۲۹۶۵ ومسلم في صحيحه ۳/ ۱۳۶۲ رقم الحديث (۲۰-۱۷۴۲)

## په جنګ خیبر کې نعرهٔ الله اکبر

﴿۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا غَزَا بِنَا

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ سره د يو دښمن قوم سره جهاد کولو

قَوْمًا لَمْ يَكُنْ

يعنې کله به چې د جهاد په موقع باندې يو داسې دښمن باندې حمله کولو اراده لره چې د هغې د حالاتو علم به نه ؤو او مونږ

يَغْزُو بِنَا حَتَّى يُصْبِحَ

به د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په جهاد کې شريک ؤو، نو د سحر کېدلو نه مخکې به مونږ سره په هغې باندې حمله نه

وَيَنْظُرَ إِلَيْهِمْ فَإِنْ

کوله. بيا به چې کله سحر شو نو د دې دښمنانو ابادۍ او د هغوی په ځايونو به يې نظر اچولو چې د مشاهدې يا د قرائينو نه

سَمِعَ أَذَانًا كَفَّ عَنْهُمْ

دا معلومه شوه چې دا کوم خلک دي که د هغوی له اړخ به مو د اذان اواز واورېدلو نو جنګ به مو ورسره نه کولو.

وَإِنْ لَمْ يَسْمَعْ أَذَانًا

او که د اذان اواز به مو نه اورېدلو او د هغې قرينه نه دا ثابت شو چې دې کې مسلمانان نشته دی، نو په

أَغَارَ عَلَيْهِمْ قَالَ: فَخَرَجْنَا إِلَى خَيْبَرَ

هغوی به مو حمله کوله. حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ کله د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خيبر ته د جهاد

فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ لَيْلًا فَلَمَّا أَصْبَحَ وَلَمْ يسمَعْ أذاناً

ته روان شو، نو د هغوی سرحد ونو ته د شپې ورسيدلو. چې سحر شو او هغوی د اړخ نه به اذان وانهٔ ورېدلی شو نو

رِكبَ وركبتُ خلف أبي طلحةَ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به سورلۍ باندې سپور شو او زهٔ د ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې په سورلۍ باندې د هغې شا ته کيناستلم.

وَإِنَّ قَدَمِي لَتَمَسُّ قَدَمَ نَبِيِّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او زمونږ سورلۍ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د سورلۍ سره دومره نزدې وه چې زما پښې به د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د پښو سره لږېدلې

قَالَ: فَخَرَجُوا إِلَيْنَا بِمَكَاتِلِهِمْ

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله سحر کې د خيبر والا زمونږ د راتللو نه بې خبره خپلو پټو ته د تللو لپاره

| | | |
|---|---|---|
| ومساحيهم | فَلَمَّا | رأى |

خپلې كدالې په بوجئ (يعني د زمندارئ سامان) واخستل او د كور نه ؤوتل او زمونږ ارخ ته راغلل او هغوى

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالُوا: | مُحَمَّدٌ | واللهِ |

نبي كريم ﷺ وليدلو او په چغو چغو يې وويل محمد ﷺ راغلو په خداى قسم

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| محمّدٌ | والخميسُ | فلجؤوا | إِلَى | الْحِصْنِ |

محمد (ﷺ) او د هغې خميس لښكر راغلو. دې ويلو سره هغوى وتښتېدل او قلعه كې پټ شول.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | رَآهُمْ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

كله چې نبي كريم ﷺ هغوى په منډو وليدل نو ګويا كې هغوى د شكست سره په تعبير كولو سره

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | اللهُ | أَكْبَرُ | اللهُ | أَكْبَرُ | خَرِبَتْ خَيْبَرُ |

ازراه تفاول فرمايل چې الله ډېر لوېې دى، الله ډېر لوېې دى. خيبر برباد شو. دې كې هيڅ شك نشته دى.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّا | إِذَا | نَزَلْنَا | بِسَاحَةِ | قومٍ |

مونږ د مسلمانانو جماعت يا د انبياؤ چې كله د يو قوم په ميدان كې د جنګ لپاره كوزېږو نو د هغه

فساءَ صباحُ الْمُنْذَرِينَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

وېرېدونكې قوم سحر ډېر خراب وي.

**توضيح: مكاتل**: د كمتل جمع ده غټې بوجئ ته مكتل وايي **مساحي**: د دې مفرد مسحات دى كدالې ته وايي. **الخميس**: د پنځو برخو لښكر ته الخميس وايي. د يو كافر په علاقې باندې د حمله كولو نه مخكې كه اذان وشي نو بيا په احتياط سره د جنګ كاروائى كول پكار ده چې مسلمانانو ته نقصان ونه رسيږې، خو كه اذان ونه شي نو بيا بنه په درغ كې حمله كېږي، نو په دې وجه نبي كريم ﷺ احتياط كړې دى. (مرقات ٤٨٠-٤٨١/٧)

**﴿٧﴾ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ قَالَ: شَهِدْتُ الْقِتَالَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

او حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه فرمايي چې زه د نبي ﷺ سره په جنګ كې شريک شوى يم،

---

[1] رقم الحديث ٣٩٣١ أخرجه البخاري في صحيحه ٨٩/٢ رقم الحديث ٦١٠ ومسلم في صحيحه ١٤٢٦/٣ رقم الحديث (١٢٠-١٣٦٥)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَكَانَ | إِذَا | لَمْ | يُقَاتِلْ | أَوَّلَ | النَّهَارِ | انْتَظَرَ |
| نو كله به چې نبي كريم ﷺ سحر كې جنګ نه شروع كولو نو د هغه وخت انتظار به يې كولو | | | | | | |
| حَتَّى تهب الْأَرْوَاح وتحضر الصَّلَاة. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] | | | | | | |
| چې هوا به وچليدله او د غرمې د لمونځ وخت را نژدې شي. | | | | | | |

**توضيح**: جهاد مقدس به د نبي كريم ﷺ په زمانه كې دوه وختو كې كېدلو. سحر ته تر لمر د تيزېدلو پورې به اودرېدلو. د هغې نه وروسته به مازيګر ؤو. كله به چې دهوپ كم شو. د بحث لاندې حديث همدغه خبره كړې شوې ده چې كه د سحر وخت كې به نبي كريم ﷺ د جنګ نه راوتلو نو نبي كريم ﷺ به انتظار كولو چې د غرمې نه وروسته د فتحې او د مرستې هواګانې ولږېږي. د هواګانو د چليدلو مطلب دا دى چې د الله تعالى له اړخه مرسته رانازله شي. د هغې به يو ظاهري صورت هم ؤو. هغه دا چې د غرمې د لمونځ نه وروسته عام مسلمانان لمونځونو كې او د لمونځونو نه وروسته د مجاهدينو لپاره دعاګانې غوښتلې چې الله د مجاهدينو سره مرسته وكړې. معلومه شوه چې په جوماتونو كې د مجاهدينو لپاره دعاګانې غوښتل پكار دي.

## الفصل الثاني

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ عَنِ النُّعْمَانِ بن مقرن قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | |
| حضرت نعمان ابن مقرن رضي الله عنه فرمايي چې زه د نبي كريم ﷺ سره (جنګونو كې) شريك شوم، | | | | |
| فَكَانَ | إِذَا | لَمْ | يُقَاتِلْ | أَوَّلَ النَّهَارِ |
| نو نبي كريم ﷺ به چې كله د ورځ په ابتدائي برخه يعني د سحر وخت كې جنګ نه كولو نو هغه | | | | |
| انْتَظَرَ | حَتَّى | تَزُولَ | | |
| وخت به يې د جنګ كولو انتظار كولو تر څو به چې لمر نه ؤو پرېوتلى او هوا به و نه لېږدله. او نصرت | | | | |
| الشَّمْسُ | وَتَهُبَّ | الرِّيَاحُ | | |
| يعنې د فتحې هوا به رانازله نه شوه يا د نصرت رانازليدلو مطلب دا دى چې تر څو پورې به د غرمې د لمونځ نه وروسته د اسلام | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۹۳۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۸/۶ رقم الحديث ۳۱۶۰

| | | | |
|---|---|---|---|
| وينزل | النَّصرُ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد(۱) |

د مجاهدينو لپاره د مسلمانانو د دعاګانو په برکت سره د فتح آثار ظاهره نه شول.

﴿۹﴾ وَعَن قَتَادَةَ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ قَالَ:

او حضرت قتاده رضي الله عنه د حضرت نعمان ابن مقرن رضي الله عنه نه روايت کوي چې هغې وفرمايل چې ما

غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ

د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره جهاد کړې دی. نبي صلى الله عليه وسلم به د سحر نه وروسته تر هغه وخت پورې

أَمْسَكَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَإِذَا

جنګ نه کولو چې تر کومې پورې به د سحر د لمونځ فارغ شوی نه ؤو او لمر به راښتلی نه ؤو. چې

طَلَعَتْ قَاتَلَ فَإِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ أَمْسَكَ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ

لمر به راوښتلو نو جنګ به يې شروع کړو او چې غرمه به شوه نو د غرمې د ختمېدلو لپاره به يې جنګ بند کړو.

فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ قَاتَلَ حَتَّى الْعَصْرِ

بيا به چې غرمه ختمه شوه او د غرمې لمونځ به يې وکړو نو تر د مازيګر پورې به يې جنګ کولو او

ثُمَّ أَمْسَكَ حَتَّى يُصَلَّى الْعَصْرُ ثُمَّ يُقَاتِلُ قَالَ

بيا به يې بس کړې تر دې چې د مازيګر لمونځ نه وروسته به بيا جنګ کې مشغول شو. قتاده رضي الله عنه

قَتَادَةُ: كَانَ يُقَالُ: عِنْدَ ذٰلِكَ

فرمايي چې ويل کېدل به (يعني صحابه کرام رضي الله عنهم به د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د جنګې نظام د وختونو

تَهِيجُ رِيَاحُ النَّصْرِ

د حکمت باره کې ويله چې دا د دې وجې نه ؤو چې په دې وختونو کې د نصرت هواګانې چلېږې او

وَيَدْعُو الْمُؤْمِنُونَ لِجُيُوشِهِمْ

مسلمانان به خپلو لمونځونو کې د خپلو لښکرونو لپاره د فتح او د کاميابۍ دعاګانې کوي يعنې د لمونځ نه وروسته دعاګانې غواړي

(۱) رقم الحديث ۳۹۳۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۱۳/۳ رقم الحديث ۲۶۵۵ والترمذي في ۱۳۷/۴ رقم الحديث ۱۶۱۳

| |
|---|
| فِي صلاتهم. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| یا د لمونځ په دوران کې دعاګانې کوي، لکه څنګه چې د قنوت لوستلو په سلسله کې په حدیثونو کې منقول دي). |
| ﴿۱۰﴾ وَعَن عصامٍ المزنِيّ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عصام مزني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ د جهاد لپاره په یو وړوکي |
| فِي سَرِيَّةٍ فَقَالَ: إِذَا رَأَيْتُمْ مَسْجِدًا أَوْ سَمِعْتُمْ مُؤَذِّنًا |
| لښکر کې ولیږلو او وې فرمایل چې کوم ځای کې جومات اوینئ یا د مؤذن نه اذان واورئ نو هلته |
| فَلَا تَقْتُلُوا أَحَدًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[2] |
| هیڅ څوک مه وژنئ. (ترمذی او ابود اؤد) |

**توضیح: مسجدا:** یعني که یو اسلامي شعار مثلاً اذان او جومات تاسو اوینئ نو بیا په جنګ کې احتیاط کوئ. فقط کافران اوژنئ او که په دار حرب کې مسلمانان او سیږي نو هغوی د اعلان او خبر باوجود هم د کفارو نه جدا نه شول نو بیا به د هغوی خیال نه ساتلی کیږي. اګر که کفار مسلمانان د ډال په توګه استعمال کړي. هغه وخت یې د کافرانو په نیت باندې اوژنئ. د داسې مسلمانو وینه هدر ده. (مرقات ۴۸۳/۷)

## الفصل الثالث

## د حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کفارو په نوم یو عظیم مکتوب

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَن أَبِي وائلٍ قَالَ: كَتَبَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ إِلَى أَهْلِ فَارِسَ: |
| حضرت ابو وائل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فارس یعني د ایرن خلکو یعني د هغوی مشران او د |
| بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مِنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ إِلَى رُسْتَمَ |
| سردارانو دا خط ولیږلو. بسم الله الرحمن الرحیم: د حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اړخه رستم او د |
| وَمِهْرَانَ فِي مَلَأِ فَارِسَ. سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى. |
| مهران په نوم چې د ایران په مشرانو کې دي. هغه کس باندې دې سلامتي وي چې د حق او هدایت پیروي وکړي. |
| أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّا نَدْعُوكُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ فَإِنْ أَبَيْتُمْ |
| وروسته د دې نه دې دا واضحه وي چې مونږ تاسو ته د اسلام د قبلولو دعوت درکوو. که اسلام نه قبلوئ |

---

[1] رقم الحدیث ۳۹۳۴ أخرجه الترمذي في السنن ۱۳۶/۴ رقم الحدیث ۱۶۱۲

[2] رقم الحدیث ۳۹۳۵ أخرجه ابوداود في السنن ۹۸/۳ رقم الحدیث ۲۶۳۵ والترمذي في ۱۰۲/۴ رقم الحدیث ۱۵۴۹

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَعْطُوا | الْجِزْيَةَ | عَنْ | يَدٍ | وَأَنْتُمْ | صَاغِرُونَ | فَإِنْ | أَبَيْتُمْ |
| نو په ذلت او خوارئ سره په خپلو لاسونو جزيه ادا کړئ او که د جزيه د ادا کولو نه هم انکار کوئ نو تاسو ته دې خبر | | | | | | | |
| فَإِنَّ | | | مَعِيَ | | | | قَوْمًا |
| وې چې هلاکت او پښيمانتيا ستاسو مقدر شوی دی، ځکه يشکه ما سره د يو داسې خلکو جماعت دی چې د وينې توېول | | | | | | | |
| يُحِبُّونَ | الْقَتْلَ | | فِي | | سَبِيلِ | | اللهِ |
| يا د خدای په لاره کې خپل ژوند قربانول داسې خوښوي لکه څنګه چې د ايران خلک شراب خوښوي | | | | | | | |
| كَمَا | | | يُحِبُّ | | | | فَارِسُ |
| يعنې څنګه چې تاسو ايرانيان د شرابو په نشه کې خوند او خوشحالي حاصلوې. د غه شان زما د جماعت خلک د | | | | | | | |
| الْخَمْرَ | | | وَالسَّلَامُ | | | | عَلَى |
| قتل و قتال په مستې او سرفروشې حاصلوي. يا خو هغوی ته په ژوند اخستلو يا ورکولو کې همغه خوشحالي | | | | | | | |
| مَنِ | اتَّبَعَ | الْهُدَى. | رَوَاهُ | فِي | شَرْحِ | السُّنَّةِ[1] | |
| او خوند حاصليږي چې کوم تاس په شرابو کې محسوسوئ او سلامتې وې په هغو باندې چې د حق او هدايت پيروي کوي. | | | | | | | |

**توضیح**: القتل: يعنې دا خيال د مازغو نه او باسئ چې مونږ د مرګ نه وريږدونکې يو. مونږ له په ميدان جنګ کې د جنګ کولو او د مرګ په شهادت کې همغه مزه او مستئ حاصلوې لکه څنګه چې تاسو ته په شرابو کې خوند حاصلوې. د داسې قوم مقابله تاسو نه شئ کولی. لهذا خامخا زمونږ لاره مه نيسئ. سبحان الله دا هم يو درد ؤو. چې په کوم باندې ترننه پورې اسلام فخر کوي.
يو شاعر ويلي دي:

*مصلحت در دين ما جنگ و شکوه      مصلحہ در دين عيسیٰ غار و کوه*

يعنې زمونږ د دين مصلحت خو په جهاد او په رعب و داب کې دی. او د عيسائي مذهب مصلحت په پادرې جوړيدلو کې او غارونو کې او سيدل دي. د حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خط د فارس والو په نوم په هغه وخت کې ليکلی شوی ؤو. کله چې حضرت خالد د جهاد په ابتدائي دور کې په عراق کې ؤو. بيا حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه د عراق نه شام اړخ ته راولېږلو او د لښکر امير يې کړو. شام يې فتح کړو په بيا په دې لاره د مصر صعيد مصر ته ورسيدلو او هلته يې عظيم جهاد وکړو.

---

(1) رقم الحديث ۳۹۳۶ المرقاة المفاتيح ۴۴۴/۷

# باب القتال في الجهاد
# جهاد کې جنګ د ترتيب بيان

**قال الله تعالى: ﴿فاذا لقيتم الذين كفروا فضرب الرقاب﴾ (سورة محمد: ۴)**
د فقهې په ټولو کتابونو کې د دې باب سره د كيفية القتال لفظ لګولی شوی دی. حديثونو کې هم د کيفيت قتال بيان مقصود دی، ځکه دې باب کې چې څومره حديثونه ذکر دې. تقريباً ټولو کې د قتال څه نه څه کيفيت ذکر دی. ملاعلي قاري فرمايي "اى فى حث القتال و ترغيبه و ثوابه" يعنې دې باب کې د کفارو سره د جنګ کولو د ترغيب بيان دی. د دې د ثواب بيان دی او کفارو سره جنګ کولو باندې د اماده کولو او د راپارولو بيان دی. (مرقات ۴۸۵/۷)
ځينې خلک داسې دي چې په طبعي توګه جهاد مکروه ګڼي. هغوی دلته خوشحالېږي چې وګوره دلته جهاد يو شی دی او جنګ کول بل شی دی. مونږ اګر که جنګ نه کوؤ خو په جهاد کې برابر مشغول يو. او جهاد کې جنګېدل يوه جزوي معامله ده. چې د مجبورۍ په درجه کې دی. زه وايم د دې نه مخکې د جهاد په باب کې د جنګ حديثونه ولې راغلي دي. که چرې بيل شی دی نو د جهاد په باب کې د جنګېدلو د حديثونو ذکر به هم نه وی. حال دا چې ټول باب د جنګ د حديثونو او د فضائلو نه ډک پروت دی. چې دا کړلی شوی امر دی او جنګ د جهاد برخه ده نو د هغې د کيفيت او د ترتيب او د طريقې بيان کول ضروري ؤو، نو ځکه د جهاد د عمومي باب نه يې د دې کيفيت په جدا کولو سره يو مستقل باب کې ايخی دی.
**د جهاد د مشروعيت حکمت**: اسلام کې د مشروعيت جهاد ډير لوی حکمتونه دي. ۱: جهاد سره د دين لپاره پرانستلې کېږي ۲: فساد ختم شي او امن راشي ۳: د الله تعالى کلمه اوچته شي ۴: يو لوی حکمت دا دی چې کله ټول انسانان د الله بنديګان او غلامان دي، نو هغوی له د الله په غلامۍ کې وسيدل پکار دي، خو ځينې بنديګان د الله د احکاماتو نه عامه نافرماني کوي او بغاوت شروع کړي. او د نورو امن خوښونکو انسانانو لپاره د مصيبت سبب شي، نو الله تعالى د اړخ نه خپلو منونکو بنديکانو ته حکم دی چې وَس دوی مړه کړئ، وَس دا ځناور شوي دي، نو ځکه دا ځناور په ميدان جهاد کې وژل هم جائز دي او نيول او ذبح کول يې هم جائز دي. او اخستل او خرڅول يې هم جائز دي. او غلام کول او وينځې کول يې هم جائز دي. د مثال په توګه يو حکومت دی. د هغې لښکر دی. هغه لښکر کې بغاوت وشو. او لښکر په دوه برخو کې ويشل شو. يو منونکی دی او بل باغي دی. د بين المللی قانو مطابق د دنيا ټول حکومتونه په دې خبره خامخا يو هېږي چې منونکی

لښکر به هغه باغي لښکر سره جنګ کوي او هغوی به ختموي. بالکل همدغه شان الله خپل منونکو بندیګانو ته حکم کوي چې مانه بغاوت کونکې لښکر ښه وجنګېږئ او هغوی ؤوژنئ ۵: د جهاد په حکمت باندې تاسو داسې هم پوهه کېدی شئ چې کله بدن کې د سرطان ناروغي ولږي نو د هغه برخې عملیات هر عقلمند او طبیب ضروري ګڼي. د دې لپاره چې د سرطان دا ناروغي نور بدن کې خوره نشي. دغه شان د کافرانو بدن چې د انسانانو د صالح بدن دننه د سرطان د ناروغۍ په شان دی. د هغې غوڅول ضروري دی. د دې لپاره چې د ټول انسانیت بدن د دې وژونکې مرض نه محفوظ شي. علامه شبیر احمد عثماني رحمه الله د سورت توبه آیت نمبر ۴ په تفسیر کې د جهاد شپږ حکمتونه همدغه شان بیان کړي دي.

## الفصل الاول

## د شهادت شوق

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَن جَابِر قَالَ: قَالَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ: | | | | |
| حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې د جنګ أحد په ورځ (په میدان جنګ کې) یو کس نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته وویل | | | | |
| أَرَأَيْتَ | إِنْ | قُتِلْتُ | فَأَيْنَ | أَنَا؟ |
| چې ته (محمد صلی الله علیه وسلم) او ایه! که چرې زه او ژلی شم (یعني د اسلام د دښمنانو سره په جنګ کې شهید شم) نو زه به چرته ځم. | | | | |
| قَالَ: | فِي | الْجَنَّة | | |
| یعني جنت به ځم که دوزخ ته؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل "جنت ته" (دې اوریدلو سره) هغه کس (جنت ته | | | | |
| فَأَلْقَى | ثَمَرَات | فِي | يَدِه | |
| د رسیدلو په ارمان کې د شهادت مرتبه ژر د حاصولو لپاره) هغه کجورې ګوزار کړې چې (د خوراک لپاره) | | | | |
| ثُمَّ قَاتَل حَتَّى قتل (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | | | |
| د هغې په لاس کې وې او په جنګ شو تر دې چې شهید شو. | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۹۳۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۴/۷ رقم الحديث ۴۰۴۶ ومسلم في ۱۵۰۹/۳ رقم الحديث (۴۳-۱۸۹۹)

## جهاد ته د وتلو وخت کې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکمت عملي

﴿۲﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت کعب ابن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله کومې غزوې (يعنې د

يُرِيدُ غَزْوَةً إِلَّا وَرَّى بِغَيْرِهَا حَتَّى كَانَتْ تِلْكَ الْغَزْوَةُ يَعْنِي غَزْوَةَ تَبُوكَ

جهاد کولو) اراده کوله نو د هغې په ځای به يې توريه کوله تر دې چې دا غزوه يعنې غزوه تبوک واقع شو.

غَزَاهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَرٍّ شَدِيدٍ وَاسْتَقْبَلَ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غزوه تبوک په سخت ترېنه زمانه کې وکړو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې لپاره

سَفَرًا بَعِيدًا وَمَفَازًا وَعَدُوًّا كَثِيرًا

د ېر لرې سفر وکړو او بې اوبو او بې وابنو ځنګلونو کې وکړو. د غه شان په هغې د دښمنانو شمېر ډېر زيات ؤو،

فَجَلَّى لِلْمُسْلِمِينَ أَمْرَهُمْ

نو کله چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې غزوې اراده وکړه نو د هغې باره کې يې د مسلمانانو په مينځ کې صفا صفا اعلان وکړو

لِيَتَأَهَّبُوا أُهْبَةَ غَزْوِهِمْ

(او د دې غزوې په دوران کې يې د راتلونکې مشکلات او پريشانۍ په وضاحت سره بيان کړې) چې هغه خلک (د جنګ لپاره)

فَأَخْبَرَهُمْ بِوَجْهِهِ الَّذِي

بنه تيار شي. او خپل د جهاد سامان صحيح کړي. د غه شان نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته د هغه لارو

يُرِيدُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

او مقاماتو باره کې هم وويله کومه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (تبوک ته د رسيدلو لپاره) اختيارول غوښتله.

**توضيح**: وَرَّى: دا د لفظ توريه نه دی. چې د باب تفعيل نه دی. توريه تعريض او کنايه ته وايي. چې د دښمنانو نه اصل حقيقت پټ کړي او بله خبره ظاهره کړي مثلاً تګ يو اړخ ته دی تو تفتيش او تذکرې به يې بل اړخ ته شروع کړې. د مثال په توګه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اراده به د فتح مکې په موقع باندې مکې ته تلل ؤو، خو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خيبر په احوال بيان کړه، لټون او تذکره يې شروع کړه. د حکمت په دې عمل کې فائده وه چې دښمن به بې خبر ؤو. او هغوی به د جنګ د تياري نه بې

(۱) رقم الحديث ۳۹۳۸ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱۳/۸ رقم الحديث ۴۲۱۸ ومسلم في ۲۱۲۰/۴ رقم الحديث (۵۳-۷۶۹)

خبره پاتې شول او حمله به پرې کېدله. همدې ته "الحرب خدعة" ویلی شوې ده. دې کې تصریح نه وي. که د صراحت سره دا وویلی شي چې زه د لکهنؤ ښار ته ځم او زړې کې دا پټه کړې ده چې زه فیروز اباد ته ځم، نو دا توریه نه دا. بلکې دا صریح دروغ دي. چې په شریعت کې یې اجازت نشته دی.

غزوۀ تبوک: نبي کریم ﷺ په غزوه تبوک کې د تعریض او کنایې نه کار نه دی اخستی بلکې په واضحه الفاظ کې یې اعلان وکړو چې د جهاد لپاره به تبوک ته ځو. د دې تصریح وجه دا وه چې د د سختیونو نه ډک سفر ؤو. لاره ډېره لرې وه، ځکه د مدینې نه تبوک تقریباً زر (۱۰۰۰) کلو میټره دی، خوراکې شیان ډېر کم ؤو او سخته ګرمې وه، نو د پوره تیارۍ ضرورت ؤو، نو ځکه نبي کریم ﷺ واضحه اعلان وکړو. دا غزوه په ۹ه کې پېښه شوې وه. نبي کریم ﷺ د دېرش زره (۳۰۰۰۰) کسانو لښکر ؤو. په مقابله کې د رومې عیسایان په لاکهونو تعداد کې ؤو. د مدینې نه د خیبر په لاره د العلا علاقه راځې. د هغې نه وروسته مدائن صالح او ثمود دره راځې. د هغې نه وروسته تبوک دی. (مرقات ۷/۴۸۶)

## جنګ د چل او تدبیر نوم دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: اَلْحَرْبُ خدعة (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل جنګ د چل او دهوکې (نوم) دی. |

**توضیح: الخدعة**: دا لفظ د خا په ضمه سره دی. دال ساکن دی، خو د اهل لغتو په نزد خا باندې فتحه او دال باندې سکون زیات فصیح او بهتر دی. چل، تدبیرو مکر او حیله او د دهوکې نوم خدعه ده. چې په جهاد کې جائز دی. مطلب دا دی چې په جنګ کې د تعداد زیاتېدل دومره فائده مند نه دی لکه څومره چې چال او تدبیر او دهوکه فائده منده وي. نن سبا دې تدبیر ته د حکمت عمل وایي، نو کمانډر همغه وې چې د حکم عمل او داؤ پیچ نه ډېر زیات کار اخلې او د دښمن فوج په تښتېدلو باندې مجبور کړې. د حکمت دې جنګ کې هر تدبیر او مکر او حیله جائزه ده، خو دا ضروري ده چې په دې د حکمت عمل سره کړی شوې معاهدې خلاف ورزې دې ونه کړی شي او نه دې هغه کړی شوې معاهده ماته کړی شي چې کومه معاهده د دښمن سره شوې وي. علامه طیبي فرمایي چې د جهاد په معامله کې او د هغې په فائده کې صریح دروغ ویل هم جائز دي، خو تعریض زیات بهتر دی، نو ځکه د صریح دروغو نه بچ کېدل پکار دي. (مرقات ۷/۴۸۷، ۴۸۶)

[1] رقم الحديث ۳۹۳۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۵۸ رقم الحديث ۳۰۳۰ ومسلم في ۳/۱۳۶۱ رقم الحديث (۱۷-۱۷۳۹)

## په جهاد کې د ښځو د شريک کېدو حکم

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُو بِأُمِّ سُلَيْمٍ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره جهاد ته تللو نو د ځان سره |
| وَنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ مَعَهُ إِذَا غَزَا يَسْقِينَ الْمَاءَ |
| به يې ام سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او د انصار نورې ښځې هم بوتللې. هغه ښځو به د اسلام غازيانو ته اوبه ورکولې |
| وَيُدَاوِينَ الْجَرْحَى. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| او د زخميانو ته به يې د مرهمو پټۍ کولې او د هغوی خيال به يې ساتلو. |

**توضيح**: **يغزو بأم سليم**: ښځو باندې عام حالاتو کې جهاد فرض نه دی، خو که جهاد فرض عين شي او تر د کورونو دروازو پورې راورسيږي نو بيا د هرې ښځې لپاره د خپل عزت او ناموس لپاره جنګ کول فرض دی، خو که په عامو حالاتو کې ښځې جنګ کې شريک کېدل غواړي چې پېغلو ښځو له تلل جائز نه دي. د زيات عمر والا ښځې د زخميانو د خيال ساتنې او د مرهم پټۍ لپاره او د خوراک او څښاک د پېښولو په غرض تلی شي. ځينې فقهاؤ ليکلې دي چې د ميدان په بالکل آخري مورچو کې د ضرورت په وخت کې د پردې سره ښځې په جنګ کې شرکت کولی شي. که خاوند د خپل خدمت يا د ضرورت مباشرت لپاره ښځې بوتلل غواړي نو د ازاد ښځو په ځای خپلې وينځې بوتلل زيات بهتر دي.

د زخميانو په خدمت کې د ښځه د زخمي د بدن په هغه برخه دوائی لګولی شي. او هغه برخې نه لاس هم لګولی شي. د دې نه بغير عام بدن نه يې لړېدلی. هغه زمانه کې به د جنګ ته د ښځو بوتللو کې دا فائده وه چې د ښځو په وجه به نارينؤ په زړه ورتيا سره جنګ کولو او د منډې نوم به يې نا اخستلو. دويمه فائده به دا وه چې ښځو به نارينؤ ته د منډو په وخت کې د شرم احساس کولو، نو په دې وجه به يې ښه په کله جنګ کولو. ام سليم، ام ماره، ام عطيه، ام ابان، خوله وغيره هغه زړه ورې ښځې دي چې په ډېرو جنګونو کې يې باقاعده برخه اخستې ده او کفارو ته منډې ورکړې دي. (مرقات ۴۸۸/۷)

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أُمِّ عطيَّةَ قَالَتْ: غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ |
| او حضرت ام عطيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې زه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په اوؤ غزواتو کې شريکه شوې يم. |
| أَخْلُفُهُمْ فِي رِحَالِهِمْ فَأَصْنَعُ لَهُمُ الطَّعَامَ |
| زه (په ميدان جنګ کې) د هغه (مجاهدينو) نه شا ته په هغه سېراؤونو کې ؤومه. چې کوم ځای کې به ما هغوی خواړه پخول. د |

---

[1] رقم الحديث ۳۹۴۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۴۳/۴ رقم الحديث (۱۳۵-۱۸۱۰) وابوداود في السنن ۱۳۹/۳ رقم الحديث ۲۵۳۱

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأُدَاوِي | الْجَرْحَى | وَأَقُومُ | عَلَى | المرضى. | رَوَاهُ مُسلم[۱] | |
| زخميانو مرهم پټئ به مو كولې او دوا كانې به مو ورله راوړلې او د مريضان ساتنه به مې كوله. | | | | | | |

## په جهاد كې د ښځو او ماشومانو وژنه منع ده

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ |
| او حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښځې او هلكان د وژلو نه |
| وَالصِّبْيَانِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۲] |
| منع كړي دي. (بخاري و مسلم) |

**توضيح**: ښځې او ماشومان او پادريانو د وژلو نه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع كړې ده، خو كه پادريان او ښځې كافرانو ته جنګې مشورې وركوي يا په جنګ كې شركت كوي يا ورسته مالې مرسته كوي يا پادريانو ودونه وكړل او بچې پيدا كول يې شروع كړه نو بيا به يې وژل جائز وي. ماشوم هم كه ميدان ته جنګ لپاره راځي او په جنګ كې څه نه څه برخه اخلې نو هغه به هم وژلی كېږي. دغه شان هغه ماشوم چې د سردار يا د بادشاه بچی وي چې ټول خلك پرې متفق كېږي او راجمع كېږي نو د هغه ماشوم وژل هم جائز دي. دغه شان كه مسلمانان د په شپه كې حمله وكړي نو په كورونو كې ښځې او ماشومان ؤوژلی شي نو دا هم د مجبورۍ په وجه جائز دي، ځكه د دې نه بچ كېدل مشكل دي. *شیخ فانی سے بوڑھا کھوسٹ مراد ہے*. هغوی مه وژنه خو كه جنګې تدبير يا مشوره وركوي نو وژل يې جائز دي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دريد بن صمه د وژلو حكم وركړی ؤو حال دا چې عمر يې ۱۲۰ كاله ؤو. جنګ حنين كې داسې شوې ؤو ځكه دريد ډېر پوه او مشوره وركونكی سړی ؤو. (مرقات ۷/۴۸۹)

## په شب خون كې ښځې او ماشومان وژل كيدې شي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَهْلِ |
| او حضرت صعب ابن جثامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه هغه مشركانو باره كې وپوښتلی شول |
| الدَّارِ يُبَيَّتُونَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَيُصَابُ مِنْ نِسَائِهِمْ وَذَرَارِيِّهِمْ |
| چې د كور والا وي (يعنې چې په آباديانو كې اوسيږي) چې كه د شپې حمله وكړی شي نو څه حكم دی؟ |

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۴۱ اخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۴۴۷ رقم الحديث (۱۴۲-۱۸۱۲) وابن ماجه في ۲/۹۵۲ رقم الحديث ۲۸۵۶

(۲) رقم الحديث ۳۹۴۲ اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۴۸ رقم الحديث ۳۰۱۵ ومسلم في ۳/۱۳۶۴ رقم الحديث (۲۵-۱۷۴۴)

قَالَ: هُمْ مِنْهُمْ. وَفِي رِوَايَةٍ:

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې په جواب کې وفرمايل چې دوی هم د هغوی نه دي. او يو بل روايت کې دا دي

هُمْ مِنْ آبائهم (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل هغوی د خپل پلارانو تابع دي.

## د دشمن د باغونو د غوڅولو او د سوځولو مسئله

﴿۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ نَخْلَ بني النَّضِيرِ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بنو نضير د کجورو بوټو د ماتولو

وحرَّقَ وَلها يقولُ حسَّانُ:

او د سوزولو حکم وکړو. د همدې باره کې (د نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شاعر صحابي) حضرت حسان بن ثابت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا شعر

وَهَانَ عَلَى سَرَاةِ بَنِي لُؤَيٍّ حَرِيقٌ بِالْبُوَيْرَةِ مُستَطِيرُ وَفِي ذَٰلِكَ نَزَلَتْ

وويله. يعني د بني لوی د سردارانو لپاره بويره سوځول اسان شول. د غه شان د دې متعلق دا آيت نازل شو.

(مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا

(تاسو چې د کجورو د بوټو نه څه مات کړه يا مو چې څه د هغې په جرړلو باندې پرېښودل (يعني څه مو چې نه دي

فَبِإِذْنِ اللهِ) (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

مات کړې) دا ټول د خدای په حکم سره دي).

**توضيح**: وهان: نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د مکې نه مدينې ته هجرت وکړو نو په مدينه کې هغې واسطه د يهودو سره شوه. د هغوی درې لويې قبيلې وې. بنو قينقاع، بنو نضير او بنو قريظه. اولنې ذکر شوې خو هيڅ معاهده ونه کړه، نو مسلمانانو هغوی په ابتداء کې د مدينې نه ويست. دويم ذکر شوې بنو نضير معاهده وکړه خو بيا يې غدارې وکړه تر دې چې هغوی د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وژلو سازش وکړو، نو په دې وجه هغوی مسلمانانو په قلعه کې محاصره کړه. او قلعه بند شول. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوی د باغونو د سوځولو حکم وکړو، نو په دې باندې يهودو وويله چې دا خو صرف فساد دی، نو د قرآن آيتونه رانازل شول چې دا ټول د

---

[1] رقم الحديث ۳۹۴۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴۶/۶ رقم الحديث ۳۰۱۲ ومسلم في ۱۳۶۴ رقم الحديث (۲۶-۱۷۴۵)

[2] رقم الحديث ۳۹۴۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۷ رقم الحديث ۴۰۳۱ ومسلم في ۱۳۶۵/۳ رقم الحديث (۳۰/۱۷۴۶)

الله په حکم شوې دي. او س مسئله دا راؤتله چې که باغونه او ونې د سوځولو ضرورت پيښ شي نو سوځول يې جائز دي، خو بغير د مجبورۍ نه يې سوځول جائز پکار نه دي. (مرقات ۷/۴۹۰)

**بويره:** د بنو نضير د علاقې نوم دی. چرته چې د هغوی باغونه ؤو. هغه باغونو ته چې کله اور ولږول شو نو حضرت حسان رضي الله عنه دې موقعه کې د ټوقو يو څو اشعار وويل. چې هغې يو شعر په حديث کې دی. يعني د قريشو ته ډېره اسان شو هغه اور چې مونږ د بويره په مقام کې لګولی ؤو. چې او چتې لمبې يې وهلې. (مرقات ۷/۴۹۱)

**بني لوئ:** د دې نه مراد صحابه هم کېدلی شي چې د اور په لګولو کې ورته هيڅ مشکل نه ؤو يعنې هيڅ يو کس مزاحمت ونه کړی شو او د بنو لوئی نه مراد مکه هم کېدلی شي. او دا ډېره واضحه ده. مطلب دا دی چې د بويره په مقام کې د لمبې وهونکی اور د کفارو لپاره اسان شو هغوی مزاحمت ونه کړی شو او په اسانۍ سره يې دا ذلت قبول کړو. ابو سفيان بن حارث د نبي کريم صلی الله عليه وسلم خپلوان ؤو. هغې د دې شعرونو جواب دا ورکړو. (مرقات ۷/۴۹۰)

أَدَامَ اللهُ ذٰلِكَ مِنْ صَنِيْعٍ    وَحَرَّقَ فِيْ نَوَاحِيْهَا السَّعِيْرُ
سَتَعْلَمُ اَيُّنَا مِنْهَا بِنُزْهٍ    وَتَعْلَمُ اَيَّ اَرْضَيْنَا نَضِيْرُ

يعنې الله د هغه اور لمبې د مدينې پورې بنورې کړې. نزدې ده چې تاسو به پوهه شئ چې مونږ به د دې اور نه څومره لري يو. او تاس به په دې هم پوهه شئ چې په مونږ د چا د ځمکې نقصان دی.

## د غفلت په حالت کې په دشمن باندې حمله کول جائز ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ | عَبْدِ | اللهِ | بْنِ | عَوْنٍ: | أَنَّ نَافِعًا |

او د حضرت عبد الله بن عون رضي الله عنه نه روايت دی چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه ازاد شوی غلام نافع رضي الله عنه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَتَبَ | إِلَيْهِ | يُخْبِرُهُ | أَنَّ | ابْنَ | عمر | أخبرهُ | أَن | ابْن | عمر |

عبد الله بن عون ته يو خط ولېږلو چې هغې کې حضرت نافع رضي الله عنه هغې ته خبر ورکړی ؤو چې ابن عمر رضي الله عنه

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَخْبَرَهُ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | أَغَارَ | عَلَى | بَنِي | الْمُصْطَلِقِ | غَارِّينَ |

(نافع رضي الله عنه) ته بيان کړ چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم په بني مصطلق باندې هغه وخت حمله وکړه کله

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي | نَعَمِهِمْ | بِالْمُرَيْسِيعِ | فقتل | |

چې هغوی په مريسيع کې د خپلو څاروبه مينځ کې غافل پراته ؤو، نو نبي کريم صلی الله عليه وسلم د هغوی جنګ کونکې مړه کړل

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْمُقَاتِلَة | وسبى | الذُّرِّيَّة | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او د هغوی ښځې او ماشومان یې قیدیان کړه او رایې وستل. | | | |

**توضيح**: بنو المصطلق: د بنو خزاعه يو شاخ دی او يرسيع د يو ځای نوم دی چې د مدينې نه تقريباً ۸۰ کلوميټره فاصله باندې دی. په پنځمه هجرئ په دې مقام باندې جنګ شوی ؤو او کفار وژلی شوې ؤو. همدې سفر کې په حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا باندې تهمت لګولی شوی ؤو.

**غارين**: يعنې هغه خلک بالکل بې خبره ؤو. د دې نه معلومه شوه چې کله يو ځل دعوت ورسول شي نو بيا بغير د دعوت نه په کفارو باندې حمله کېدی شي. که دعوت نه هم وې رسيدلی او په کاروائې کې مصلحت وې نو بيا هم جمله کېدی شي اګر که منع ده.

**المقاتله**: يعنې د جنګ جوګه خلک يې مړه کړل او واړه ماشومان يې ونيول او غلامان يې کړل. (مرقات ۴۹۲/۷)

## د جنګ متعلق يو حکمت

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَنَا يَوْمَ بَدْرٍ حِينَ | | | |
| او حضرت ابو اسيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غزوه بدر په ورځ (ميدان جنګ) کې کله | | | |
| صَفَفْنَا | لِقُرَيْشٍ | وَصَفُّوا | لَنَا: |
| چې مونږ د قريشو خلاف او د مکې قريشو زمونږ خلاف صفونه جوړ کړه، نو مونږ ته حکم وکړی شو چې کله هغه | | | |
| إِذَا | أَكْثَبُوكُمْ | فَعَلَيْكُمْ | بِالنَّبْلِ. |
| دښمن يعنې کله چې د مکې قريش تاسو ته دومره نژدې راشي چې ستاسو تيران هغوی ورسيدلی شي نو هغوی په تيرؤولئ او | | | |
| وَفِي | رِوَايَةٍ: | إِذَا | أَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ |
| يو روايت کې دي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په دې دښمنانو باندې هغه وخت تيرؤولئ چې کله هغوی تاسو ته | | | |
| وَاسْتَبْقُوا نَبْلَكُمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَحَدِيثُ سعد: هُوَ تُنْصَرُونَ سَنَذْكُرُهُ فِي بَابِ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ. وَحَدِيثُ | | | |
| نژدې شي او خپل تيران وساتئ يعنې خپل ټول تيران په هغوی مه ختموئ بلکې په احتياط سره يې استعمال کړئ | | | |

---

(1) رقم الحديث ۳۹۴۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۵/۵ رقم الحديث ۲۵۴۱ ومسلم في ۱۳۵۶/۳ رقم الحديث (۱۷۳۰/۱)

الْبَرَاءِ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا فِي بَابِ الْمُعْجِزَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى[1]

څه وساتئ چې د نشوالي نه مو دښمن فائده واخلي او په تاسو غالب نه شي.

**توضيح**: اکثبوهم: یعنې کله چې کفار تاسو ته نزدې شي نو بیا یې په تیرانو ووَلئ چې یو تیر هم ضایع نه شي. (مرقات ۷/۴۹۲)

**استبقوا**: یعنې تیران فضول مه خرابوئ بلکه د ضرورت موقعې لپاره یې وساتئ. (مرقات ۷/۴۹۲)

## الفصل الثاني

﴿۱۱﴾ عَن عبدِ الرَّحمنِ بن عَوفٍ قَالَ: عَبَّأَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ببدرٍ لَيْلًا. رَوَاهُ التِّرمِذِيّ[2]

حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بدر کې مونږ د شپې تيار کړو.

**توضيح**: عبأنا: دا د تعبيه نه دی چې د تیارولو او د ډکولو په معنی کې دی. یعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بدر په موقع کې د شپې وخت کې زمونږ صفونه برابر کړي ؤو او دا هدايات یې راکړي ؤو چې تر څو پورې دښمن رانژدې شوی نه وي نو د هغې نه مخکې تیران مه خرابوئ بلکې کله چې دښمن رانژدې شي نو بيا يې په ؤولئ. (مرقات ۷/۴۹۳)

## جنګي شعار او د شفر الفاظ

﴿۱۲﴾ وَعَن الْمُهلب أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت مهلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غزوه يې خندق کې مونږ ته وفرمايل چې

"إِنْ بَيَّتَكُمُ الْعَدُوُّ فَلْيَكُنْ شِعَارُكُمْ: حم لَا يُنصَرُونَ". رَوَاهُ التِّرمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[3]

که تاسو به دښمن بانديې د شپې حمله وکړئ (يعنې د مسلمانانو) علامت حم لا دينصرونه الفاظ پکار دي.

**توضيح**: حٰم لاینصرون: یعنې ای حم نازلونکی الله د کافرانو مدد د نه کړې. فوجې او جنګې

---

[1] رقم الحديث ۳۹۲۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۹۱ رقم الحديث ۲۹۰۰

[2] رقم الحديث ۳۹۲۷ أخرجه الترمذي في السنن ۳/۱۲۷ رقم الحديث ۱۶۷۷

[3] رقم الحديث ۳۹۲۸ أخرجه ابوداود في السنن ۳/۷۴ رقم الحديث ۲۵۹۷ والترمذي في ۴/۱۷۰ رقم الحديث ۱۶۸۲.

اصطلاح کې داسې مختصر الفاظو ته شفر (کوډ ورډ) وايي. چې د دښمن د پېژندلو لپاره په ميدان جنګ کې يو علامت وي. (مرقات ۷/۴۹۴)

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَن سَمُرَةَ بن جُندبٍ قَالَ: كَانَ شِعَارُ الْمُهَاجِرِينَ: عَبْدَ اللهِ |
| او حضرت سمره ابن جندب رضي الله عنه فرمايي چې په غزواتو کې عموماً د لفظ د عبد الله د مهاجرينو علامت ؤو |
| وَشِعَارُ الْأَنْصَار: عبدُ الرَّحمنِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| لفظ د عبد الرحمن د انصارو علامت ؤو. |
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ أَبِي بكر زمن النَّبِي صلى الله عَلَيْهِ وَسلم |
| او حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې مونږ يو ځل د حضرت ابو بکر رضي الله عنه سره |
| فبيَّتْناهُم نَقْتُلُهُمْ وَكَانَ |
| (يعنې د هغې په مشرولۍ کې) جهاد وکړو، نو کله چې مونږ په دښمنانو باندې د شپې حمله وکړه او هغوی مو وړه کړل |
| شِعَارُنَا تِلْكَ اللَّيْلَةَ: أَمِتْ أَمِتْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| او په هغه شپه کې زمونږ د شپې د پېژندنې علامت امت امت الفاظ ؤو (د دې الفاظو معنی ده ای! د الله دښمنان مړه کړې. |

## د جنګ په وخت کې شور او شغب منع دی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَن قيسِ بنِ عُبادٍ قَالَ: كَانَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت قيس ابن عباد رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم صحابو رضي الله عنهم به په ميدان جنګ کې د جنګ په |
| يَكْرَهُونَ الصَّوْتَ عِنْدَ الْقِتَالِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[3] |
| وخت کې د الله نوم اخستلو په ځای د اوازونو شور او شرغب نه خوښول. |
| ﴿۱۶﴾ وَعَن سَمُرَة بن جُنْدُبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اقْتُلُوا شُيُوخَ الْمُشْرِكِينَ |
| او حضرت سمره ابن جندب رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل د مشرکينو (يعنې دښمنان) د ډېر عمر |

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۴۹ أخرجه أبوداود في السنن ۷۳/۳ رقم الحديث ۲۹۹۵

(۲) رقم الحديث ۳۹۵۰ أخرجه أبوداود في السنن ۳/۱۰۰ رقم الحديث ۲۶۳۸ وأحمد في المسند ۴۶/۴

(۳) رقم الحديث ۳۹۵۱ أخرجه ابوداود في ۱۱۳/۳ رقم الحديث ۲۶۵۶

| |
|---|
| وَاسْتَحْيُوا شَرْخَهُمْ أَيْ صِبْيَانَهُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[1] |
| والا مړه کړئ او د لږ عمر والا يعني د هغې د ښمنانو بچې ژوندې پرېږدئ. |

**توضیح** شیوخ المشرکین: د شیوخ مفرد شیخ دی. دلته د شیخ نه مراد بوډه نه دی بلکې د ماشومان په مقابله کې نارینه او سړې مراد دي. (مرقات ۷/۴۹۶)

**شرخ:** وړو ماشومانو ته وايي. "ای صبیانهم" دا د یو راوي له اړخه تفسیر دی. (مرقات ۷/۴۹۶)

## د دشمن ښار او پټي د ضرورت په وخت کې وسوځوئ

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عُرْوَةَ قَالَ: حَدَّثَنِي أُسامةُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماته بيان کړه چې کله نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسامه د يو لښکر |
| كَانَ عَهِدَ إِلَيْهِ قَالَ: أَغِرْ عَلَى أُبْنَى صباحا |
| امير کړو او جهاد ته يې ولېږلو نو دا هدايت او تاکيد يې ورته وکړو چې ته په ابنا کې د سحر وخت کې حمله وکړه |
| وَحرق. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| او (د د ښمن کورونه، پټې او بوټې او باغونه) وسوځوه. |

**توضیح** اُبنا: دا شام کې د يو ځای نوم دی. دلته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ورانولو حکم ورکړو.

**اغر:** يعني مړه او تباه کړه. (مرقات ۷/۴۹۷)

## کله چې کافر په ګوته درشي نو مړه يې کړئ

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ: |
| او حضرت اسيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ بدر په ورځ (د اسلام مجاهدينو ته) وويل چې په |
| إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ |
| ميدان جنګ کې کله کفار يعني د ښمن تاسو ته بالکل رانژدې شي نو هغوی په غشو وُولئ او تورې تر هغه وخت |

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۵۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۲۲/۳ رقم الحديث ۲۶۷۰ والترمذي في ۱۲۳/۴ رقم الحديث ۱۵۸۳

([2]) رقم الحديث ۳۹۵۳ أخرجه أبوداود في السنن ۸۸/۳ رقم الحديث ۲۶۱۶ وابن ماجه في ۹۴۸/۲ رقم الحديث ۲۸۴۳

وَلَا تَسُلُّوا السُّيُوفَ حَتَّى يَغْشَوْكُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

پورې د نيام (كاټئ) مه راوباسئ چې ترڅو پورې هغوى تاسو ته رانژدې نه شي.

## ښځه او غلام مه وژنئ

﴿۱۹﴾ وَعَن رَبَاحِ بن الرَّبِيعِ قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزوةٍ

او حضرت رباح ابن ربيع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې په يوه غزوه كې مونږ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په ميدان جنګ كې وو.

فَرَأَى النَّاسَ مجتمعِينَ عَلَى شَيْءٍ فَبَعَثَ رَجُلًا

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدل چې څه خلك يو ځاى كې يو څيز ته راجمع كيږي، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام يو كس وليږلو او وې

فَقَالَ: انْظُرُوا عَلَى من اجْتمع هَؤُلَاءِ؟ فَقَالَ:

فرمايل چې لاړ شه هلته وګوره چې خلك څه څيز ته راجمع كيږي. هغه كس بيرته راغلو او عرض يې وكړو چې

عَلَى امْرَأَةٍ قَتِيلٍ فَقَالَ: مَا كَانَتْ هَذِهِ لِتُقَاتِلَ

يوه ښځه وژلې شوې ده. خلك د هغې جسد ته راجمع دي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې هغه ښځې خو جنګ نه

وَعَلَى الْمُقَدِّمَةِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ

كولو نو بيا ولې وژلې شوه؟ د لښكر د اولنۍ صف واك حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حواله شوى ؤو.

فَبَعَثَ رَجُلًا فَقَالَ: "قُلْ لِخَالِدٍ: لَا تَقْتُلِ امْرَأَةً وَلَا عسيفاً". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2]

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه كس بيرته وليږلو چې لاړ شه او خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته او ايه چې هيڅ يوه ښځه او مزدور مه وژنه.

**توضيح**: عسيفاً: عسيف خادم او غلام ته وايي. يعنې غلام او ښځه په جهاد كې مه وژنئ. (مرقات ۵۰۰/۷)

## مجاهدينو ته د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نصيحتونه

﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مجاهدين جهاد ته د ليږلو په وخت كې دا هدايات وكړه

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۵۴ أخرجه ابوداود في السنن ۱۱۱/۳ رقم الحديث ۲۶۶۴

(۲) رقم الحديث ۳۹۵۵ أخرجه ابوداود في السنن ۱۲۱/۳ رقم الحديث ۲۶۶۹ واحمد في المسند ۴۸۸/۳

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| انْطَلِقُوا | بِاسْمِ | اللهِ | وَبِاللهِ | وعَلى | مِلّة | رسولِ | الله |

چې لاړ شئ او د الله نوم واخلئ او د هغې په تائيد او توفيق سره او د هغې د رسول په دين باندې د دې ځای نه روان شئ!

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تَقْتُلوا | شَيْخًا | فَانِيًا | وَلَا | طِفْلًا | صَغِيرًا | وَلَا | امْرَأَةً |

(يا وساتئ) شيخ فاني (يعني بوډه) مه وژنئ، مه واړه ماشومان او ښځې وژنئ، مالِ غنيمت کې

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَا | تَغُلُّوا | وَضُمُّوا | غَنَائِمَكُمْ |

خيانت مه کوئ، مال غنيمت جمع کړئ. خپل مينځ کې صلح او صفائي وساتئ (د اصلحوا يوه معنى همدغه ده

| | | |
|---|---|---|
| وَأَصْلِحُوا | وَأَحْسِنُوا | فَإِنَّ |

معنى ده چې که تاسو ته مصلحت ښکاري نو د دښمن سره صلح وکړئ او دا معنى هم کېدی شي چې تاسو خپل ديني او

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اللّٰهَ | يحبُّ | المحسنينَ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[۱] |

دنيوي معاملات صحيح وساتئ) او خپل مينځ کې ديو بل سره نيکي او خير کوئ ځکه الله د نيکئ او د خير والا دوست ساتي.

## ميدان بدر کې درې په درې مقابله

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ | عَلِيٍّ | رَضِيَ | اللهُ | عَنْهُ | قَالَ: | لَمَّا | كَانَ | يَوْمُ | بَدْرٍ |

او حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې کله د بدر د جنګ ورځ راغله او ميدان جنګ کې د اسلام مجاهدين او د مکې

| | | |
|---|---|---|
| تَقَدَّمَ | عُتْبَةُ | بْنُ | رَبِيعَةَ |

کفار يو بل ته مخامخ صف کې اودرېدل، نو د مکې د کافرانو نه عتبه ابن ربيعه د جنګ کولو لپاره د صف نه

| | | |
|---|---|---|
| وَتَبِعَهُ | ابْنُهُ | وَأَخُوهُ |

رامخکې شو. د هغې نه وروسته د هغې ځوي يعني وليد ابن عتبه او د هغې ورور يعني شيبه ابن عتبه هم راغلو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَنَادَى: | مَنْ | يُبَارِزُ؟ | فَانْتُدِبَ | لَهُ |

عتبه په چغه وويل چې څوک دې چې زمونږ مقابلې له ميدان ته راشي؟ اسلام د مجاهديون د صف نه درو

| | | |
|---|---|---|
| شبابٌ | مِنَ | الْأَنْصَارِ |

انصار ځوانانو جواب ورکړو يعني هغوی عتبه او د هغې ملګرو سره د جنګ کولو لپاره د صف نه ميدان ته

[۱] رقم الحديث ۳۹۵۶ أخرجه ابوداود في السنن ۳/۸۶ رقم الحديث ۲۶۱۴

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | مَنْ | أَنْتُمْ؟ | فَأَخْبَرُوهُ |

راغلل. عتبه هغوی ولیدل نو وې پوښتل چې تاسو څوک وئ؟ هغه ځوانانو جواب ورکړو چې مونږ د مدینې انصار

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | لَا | حَاجَةَ | لَنَا | فِيكُمْ |

یو. عتبه ووېل مونږ ته ستاسو هیڅ ضرورت نشته دی. یعنې مونږ تاسو سره د جنګ اراده نه لرو. بلکې مونږ د

| | | |
|---|---|---|
| إِنَّمَا أَرَدْنَا | بَنِي | عَمِّنَا |

خپل تره زامنو یعنې د مکې نه هجرت کونکې قریشې مسلمانانو سره جنګ کول غواړو. دې او ربدلو سره

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قُمْ يَا حَمْزَةُ قُمْ يَا عَلِيُّ قُمْ

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صف اړخ ته مخاطب او وې فرمایل حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ودرېږه، علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ودرېږه،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَا | عُبَيْدَةُ | بْنَ | الْحَارِثِ. | فَأَقْبَلَ |

عبیده ابن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ودرېږه او مخکې شئ او د نه شي په طاقت کې د سرمستو سرونه سر او غرور او تکبر مات کړئ،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَمْزَةُ | إِلَى | عتبة | وَأَقْبَلْتُ | إِلَى | شَيْبَةَ |

نو حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عتبه مقابلې ته لاړو او هغه یې ووژلو. زه یعنې علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شیبه مقابلې ته لاړم او مړ مې کړو.

وَاخْتَلَفَ بَيْنَ عُبَيْدَةَ وَالْوَلِيدِ ضَرْبَتَانِ فَأَثْخَنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ

د عبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ولید په مقابله کې دوه سخت ګوزارونه وشول او هغې کې یو خپل مقابل زخمي او بد حاله کړو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | مِلْنَا | عَلَى | الْوَلِيدِ | فَقَتَلْنَاهُ |

بیا مونږ په ولید حمله وکړه او هغه مو مړه کړو او عبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د ولید په ګوزار زخمي شوی

وَاحْتَمَلْنَا عُبَيْدَةَ. رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد[1]

ؤو. د میدان جنګ نه مو اوچت کړو. (ابو داؤد)

**توضیح** بدر کې اولنئ حمله کافرانو وکړه. عتبه او شیبه دوه ورونه او د عتبه ځوي ولید درې واړه مقابلې ته راغلل او په مقابل کې د ګلشنِ نبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه درې ځوانان مقابلې ته راغلل چې تعلق یې د انصارو سره ؤو. کافرانو هغوی په مقابله کې قبول نه کړل. بلکې د قریش د ځوانان غوښتنه یې

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۵۷ أخرجه ابوداود في السنن ۱۱۹/۳ رقم الحديث ۲۶۶۵ واحمد في المسند ۱۱۱/۱

وکړه چې د خپلې زړه ورتیا کارنامې ورته وښایې. نبي کریم ﷺ حضرت حمزه، حضرت علي او حضرت عبیده بن حارث رضي الله عنه مقابلې ته روان کړه. دو په دوه جنګ ؤو. د حمزه رضي الله عنه مقابله د عبته سره وشوه نو هغه یې جهنم ته وړ ارسل کړو. حضرت علي رضي الله عنه هم خپل مقابل شبیه ته وخت ور نه کړو، خو حضرت عبیده بن حارث رضي الله عنه او د ولید مقابله تر ډېره وخت پورې وشوه او هر یو بل زخمي کړو. بیا پرې حضرت حمزه رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه راتاؤ شول او د ولید کار هم ور خلاص کړو. حضرت عبید رضي الله عنه زخمونه برداشت نه کړی شو او په لاره کې شهید شو.

## د جنګ موته واقعه

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَن ابنِ عُمر قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایي چې یو ځل نبي کریم ﷺ په یو جهاد کې مونږ سره یو لښکر ولېږلو. هلته |
| فَحَاصَ النَّاسُ حَيْصَةً فَأَتَيْنَا الْمَدِينَةَ فَاخْتَفَيْنَا بِهَا |
| رسیدلو سره زمونږ خلک په تیښته شول، نو مونږ مدینې ته بېرته راغلو، نو د شرم په وجه کورونو کې پټ کیناستل |
| وَقُلْنَا: هَلَكْنَا ثُمَّ أَتَيْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا: يَا رَسُول الله |
| بیا مونږ د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض مو وکړو چې یارسول الله ﷺ! |
| نَحن الفارون. قَالَ: بَلْ أَنْتُمُ |
| مونږ خو د میدان نه راتښتېدونکي خلک یو؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل چې نا، بلکې تاسو |
| الْعَكَّارُونَ وَأَنَا فِئَتُكُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ نَحْوَهُ وَقَالَ: |
| دوباره حمله کونکې خلک یئ. او زه ستاسو جماعت یم. او ابو داؤد داسې روایت نقل کړی دی او |
| لَا بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ قَالَ: |
| هغې کې دا الفاظ دي چې "نا" بلکې تاسو دوباره حمله کونکې خلک یاست. حضرت عمر رضي الله عنه فرمایي |
| فَدَنَوْنَا فَقَبَّلْنَا يَدَه |
| (کله چې مونږ ولیدل چې نبي کریم ﷺ مونږ نه د جواب غوښتلو یا دیوې غلطې کونکو په ځای په داسې |
| فَقَالَ: أَنَا فِئَةٌ من الْمُسْلِمِينَ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أُمَيَّةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ: |
| نرم انداز زمونږ همت لوړ کړو نو د ډیرې مینې او محبت نه) مونږ د نبي کریم ﷺ خوا ته نزدې شو او |

| |
|---|
| كَانَ يَسْتَفْتِحُ وَحَدِيثُ أَبِي الدَّرْدَاءِ ابْغُونِي فِي ضُعَفَائِكُمْ فِي بَابِ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى[1] |
| د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاسونه مو ښكل كړل. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل زه د مسلمانانو جماعت يم. |

**توضيح**: دې حديث كې د جنګ موته اړخ ته اشاره ده. د دې نه مخكې دې واقعې اړخ ته لنډه اشاره كړې شوې ده.

**فحاص الناس حيصة**: د ښمن نه د تښتېدلو لپاره دا لفظ استعمال كړې شوى دى. اګر كه معنى حمله كول هم راځي. (مرقات ۵۰۲/۷)

**فاختفينا**: يعنې مدينه كې خپلو كورونو كې پټ كيناستل. د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته ور نغلى شول.

**الفرارون**: فرار د مبالغې صيغه ده يعنې مونږ خو ډېر تښتېدونكې يو.

**الكرارون**: كرار هم د مبالغې صيغه ده. د ښمن باندې د بار بار حمله كولو په معنى كې دى. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې تاسو تښتېدونكې نه ياست بلكې بار بار د جنګ اړخ ته تلونكې او حمله كونكې يئ. (مرقات ۵۰۳/۷)

**وانا فئتكم**: د ښمن د تښتېدلو يو صورت جائز دى. هغه داسې چې كسان خپل مركزي لښكر اړخ مندې كړې چې مضبوط شې او بيا حمله وكړې. كوم كيمپ او مركزي لښكر اړخ ته سړى ځي هغه كيمپ د هغې لپاره فئة دى. د انا فئتكم هم دغه مطلب دى چې تاسو د ښمن نه تښتېدلې نه ياست بلكې خپل مركز ته راغلې ياست. صحابؤ خيال وكړو چې مونږ تښتېدونكې يو. حقيقت داسې نه ؤو بلكې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډېر په ځيركتيا سره د صحابؤ لښكر د تنګ مقام نه شاته راوستلو او بيا په فراخه ميدان كې وجنګېدل نو د ښمن وتښتېدلو او صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بېرته راغلل. حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د كوم حكمت عمل په مناسبت سره لښكر شاته كړى ؤو. همغه صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ تښتېد نه ګڼلې وه. (مرقات ۵۰۳/۷)

# الفصل الثالث

## غزوۀ طائف كې د منجنيق استعمال

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ عَنْ ثَوْبَانَ بْنِ يَزِيدَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او د حضرت ثوبان ابن يزيد نه روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اهل طائفو په مقابله كې |
| نَصَبَ الْمَنْجَنِيقَ عَلَى أَهْلِ الطَّائِفِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ مُرْسلاً[2] |
| منجنيق نصب كړل. دا روايت ترمذى د ارسال په طريقه نقل كړى دى. |

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۵۸ أخرجه ابوداود في السنن ۱۰۶/۳ رقم الحديث ۲۶۴۷ والترمذي في ۱۸۶/۴ رقم الحديث ۱۷۱۶

([2]) رقم الحديث ۳۹۵۹ المرقاة المفاتيح ۴۶۲/۷

**توضيح: منجنيق**: دا اصل کې د فارسئ لفظ دی. يعني **"من چه نيك"** زه څوزه ښه يم. دا به د جنګ يوه آله وه چې په لاس به استعماليدله. او نن سبا د راکټونو کار کوي. د دې صورت به دا ؤو چې يو غټ کاڼی به په دې آله کې ایښودلی کېدو او بیا به يې راښکلو او پرې به يې ښوستلو. هغه کاڼی به تيزئ سره په قلعه باندې وليدلو چې ديوال پرې مات شو. بيا به صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُم د ننه ننوتل. دا چې د طائف ډېره مضبوطه وه. مالک بن عوف په دې د کافرانو قومنده کوله. تر ۲۵ ورځو پورې قلعه فتح نه شوه، ځکه دې باندې د منجنيق په اسلام کې د استعمالول اولنئ موقعه وه چې صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُم استعمال کړو. حضرت طفيل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې جنګ دوران کې منجنيق او ټينک ملاؤ شوې ؤو. د "يا جرش" مقام نه دوه صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم ټينک راوړی ؤو. او دلته يې استعمال کړي هم ؤو. دغه شان د قلعه نه ګېر چاپېره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِ حسک ازغې نه خپاره کړي ؤو. چې د دننه نۀ څوک ونه تښتي. د دې نه د مائن تعليم مسلمانانو ته حاصل شو، خو مسلمانان د اسلحې نه غافل شو. کفارو اسلحه واخستله نو مسلمانان غلامان شول. په جنګ حنين باندې زمايو کتاب دی. هغه کتل پکار دی.

طائف نن هم د حجاز يو غټ ښار دی. ۳۵ يا ۴۵ ميله فاصله باندې واقع دی. چې ۹۰ کلوميټره دی. نن سبا چې کوم ځای ته مشناة وايي همغه ځای کې اصل طائف اباد ؤو. اوس وخت کې هلته دوه باغونه دې چرته چې هغه دوه واړه جوماتونه دي. يو نوم مسجد علي دی او د بل نوم مسجد الجعثی دی. د دې جوماتو په مينځ کې يوه دره ده. چې نوم يې "وج" دی. د محققينو خيال دی چې په د همد غه ځای نه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طائف محاصره کړی ؤو. او غالباً دغه ځای کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منجنيق نصب کړی ؤو. نن سبا چې کوم ځای کې د طائف جومات جوړ شوی دی، همدغه ځای کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طائف کې قيام کړی ؤو. (مرقات ۵۰۴/۷)



# باب حكم الاسراء
# د قيديانو د احكاماتو بيان

قال الله ﴿ما كان لنبي ان يكون له اسرىٰ حتى يثخن في الارض﴾ (سورة الانفال ۶۷)

اسراء د اسير جمع ده. اسير قيدي او نيول شوي کَس ته وايي. ميدان جهاد کې چې ټنګه مقابله کېږي او خلک مړه کېږي. هملته خلک نيول کېږي هم. نيول کيدل د دواړو اړخونه نه کېږي. د مسلمانانو هم کېږي او د کفارو هم کې. بيا د هغه قيديانو د ازادولو مختلف طريقې وي. کله د قيديانو تبادلې کېږي او کله کله تاوان ورکړي او ازادول کېږي. او کله يې د احسان په توګه باندې پرېږدي. او کله يې وژني هم. اسلام کې د قيديانو پوره قانون موجود دی. لهذا زمونږ مقدس اسلام د اقوام متحده يا د جنيوا کنونشن د قاعدو محتاج نه دی. په کومو قوانينو باندې چې خپله د هغوی جوړونکې هم عمل نه کوي. پاس ذکر شوي صورتونو باندې مسلمانانم عمل کولی شي. اګر که کفار سوځوي. ذکر شوي باب کې د هغه قيديانو بيان دی. کوم چې غير مسلم وي. او د مسلمانانو سره ؤ. مسلمانانو د ډير ښه اخلاقو مظاهر وکړه او په خپلو خيمو باندې يې کانې وتړل او د هغوی عزت يې وکړو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته د ښه اخلاق کولو حکم کړی ؤو. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې د کافرونو نه بغير هيڅ يو مسلمان قيدي د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره نه ؤو. او نه هغه وخت د هغې لپاره کوم يو جيل ؤو.

## الفصل الاول
## د کفاور په ځنځيرونو کې ځنځير واچوئ او اسلام ته يې راولئ

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ: |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل | | | | | | | | | |
| عَجِبَ اللهُ مِنْ قَوْمٍ يُدْخَلُونَ الْجَنَّةَ فِي | | | | | | | | | |
| الله تعالى په هغه قوم باندې تعجب کوي يعنې د هغه خلکو نه خوشحاله کېږي | | | | | | | | | |
| السَّلَاسِلِ. وَفِي رِوَايَةٍ: | | | | | | | | | |
| چې په زنځيرونو کې تړلی شوې وي او جنت ته داخلېږي. يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې د الله تعالى | | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يُقَادُونَ | إِلَى | الجَنَّةِ | بِالسلاسل. | | رَوَاهُ | البُخَارِيّ[1] |

د هغه خلکو نه خوشحاله کېږي چې په زنځيرونو کې تړلی شوي وي او د جنت اړخ ته بوتللی کېږي.

**توضیح**: عجب الله: الله تعالی تعجب کوي مطلب دا دی چې الله تعالی خوشحالېږي. (مرقات ۷/۵۰۵)

في السلاسل: سلسلة د زنځير په معنی کې دی. یعنې په زنځيرونو کې تړلی شوی راوستلی شي. هغې اسلام قبول کړو او د جنت مستحق شو. (مرقات ۷/۵۰۵) دا حدیث دلته مفصل نه دی بلکې مجمل دی. د دې حدیث تفصیل په هغه حدیثونو کې دی چې مفسرینو د آیت ﴿**كنتم خير امة اخرجت للناس**﴾ د لاندې ذکر کړی دی:

۱: **قال ابن كثير قال البخاري بسنده عن ابي هريرة رضي الله عنه كنتم خير امة اخرجت للناس قال خير الناس للناس تأتون بهم في السلاسل في اعناقهم حتى يدخلوا في الاسلام.** (ابن کثیر ج ۱ ص ۱۹۱)

۲: **قال القرطبي قال ابو هريرة نحن خير الناس للناس نسوقهم بالسلاسل الى الاسلام.** (رواه الترمذي)

دې حدیثونو نه د دې آیت تفسیر معلوم شو. تبلیغي حضرات د دې آیت په تفسیر کې اشاره هم نه کوي بلکې د ځان نه جوړ شوی تفسیر بیانوي. داسې کول پکار نه دي. د دې حدیثونو نه دا هم معلومه شوه چې جهاد لويه ذريعه ده چې خلک پرې اسلام کې داخلېږي. ابتداء کې به کفار د اسلام په قبولو باندې نه خوشحاله وې، آخر کې بیا خوشحاله وي. ﴿**ورأيت الناس يدخلون في دين الله افواجا**﴾ (سورة النصر: ۶) جهاد سره د دين لارې پرانستل کېږي. بندېږې پرې نهٔ. کوم خلک چې جهاد د دین په لاره ستونزه ګڼي. هغوی بخیې په دین پوهه شوې نه دي یا یې د دخپل مزاج دین جوړ کړی دی.

## جاسوس مړ کړئ

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ | سَلَمَةَ | بْنِ الأَكْوَعِ | قَالَ | أَتَى النَّبِيَّ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | عَيْنٌ | مِنَ الْمُشْرِكِينَ | | |

او حضرت سلمه بن اکوع فرمايي چې يو ځل د مشرکينو يو جاسوس نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته راغلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ | فِي | سَفَرٍ | فَجَلَسَ | عِنْدَ | أَصْحَابِهِ |

او نبي کريم صلی الله علیه وسلم په سفر کې وُو، نو هغه جاسوس (د خبر اخستلو لپاره) نبي کريم صلی الله علیه وسلم د صحابو رضی الله عنهم سره

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۹۰ اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۴۵ رقم الحديث ۳۰۱۰ وأبوداود في السنن ۳/۱۲۷ رقم الحديث ۲۶۷۷

| |
|---|
| يَتَحَدَّثُ ثُمَّ انفَتَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| كېناستلو او خبرې يې وكړې او بيا لاړو. نبي كريم ﷺ چې كله د هغې باره كې معلومه شو دنو ويې فرمايل |
| اطْلُبُوهُ وَاقْتُلُوهُ. فَقَتَلْتُهُ |
| چې هغه ولټوئ او مړه يې كړئ. او هغه يې ولټولو او رائې وستلو او مړيې كړو. نبي كريم ﷺ د |
| فنفلني سلبه (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)(۱) |
| هغې سامان او اسباب ماته راكړو. |

**توضيح**. **فقتلته**: دا كس دا چې جاسوس ؤو نو ځكه وژل يې ضروري ؤو. د غه شان هغه كافر به هم وژلى كېږي چې حربي وي او د امان لپاره د مسلمانانو علاقه كې داخل شوى وي. (مرقات ۷/۵۰۵)

**فنفلني**: يعني د انعام په توګه د هغې د بدن سامان ماته راكړى شو. (مرقات ۷/۵۰۵)

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه فرمايي چې مونږ د نبي كريم ﷺ سره د قبيله قيس د يوې |
| هَوَازِنَ فَبَيْنَا نَحْنُ نَتَضَحَّى مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قبيلې هوازن خلاف جهاد كې شريك شوي ؤو. يو ورځ چې مونږ د نبي كريم ﷺ سره د غرمې ډوډۍ خوړله، |
| إِذْ جَاءَ رَجُلٌ عَلَى جَمَلٍ أَحْمَرَ فَأَنَاخَهُ |
| نو ناڅاپه يو كس چې د دښمن جاسوس ؤو او په سور او اوخ سپور ؤو. هغې اوښ كېنولو او بيا يې |
| وَجَعَلَ يَنْظُرُ وَفِينَا ضَعْفَةٌ |
| اخوا ديخوا كتل يعني زمونږ د حالت خبرې اخستل يې شروع كړه. او هغه وخت مونږ د كمزوري حالت او د پياده روۍ په وجه |
| وَرِقَّةٌ مِنَ الظَّهْرِ |
| ډېر بد حاله ؤو. مونږ سره د سورلو كمي ؤو او د خپل كمزوري حالت په وجه ډېر پريشانه ؤو، نو دښمن ته د دې خبر |
| وَبَعْضُنَا مُشَاةٌ إِذْ خَرَجَ يَشْتَدُّ فَأَتَى جَمَلَهُ فَأَثَارَهُ |
| وركولو لپاره هغه ناڅاپه زمونږ د مينځ نه په منډه اوتلو، خپل اوښ ته ورسيدلو او سپور پرې او پائې څولو. |

(۱) رقم الحديث ۳۹۶۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۶۷ رقم الحديث ۳۰۵۱ ومسلم في ۱۳۷۴ رقم الحديث (۴۵-۱۷۵۴)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاشْتَدَّ | بِهِ | الْجَمَلُ | فَخَرَجْتُ | أَشْتَدُّ | حَتَّى | أَخَذْتُ |

او هغه اوښ هغه په تیزئ سره په منډو کړو. ما چې دا صورتحال ولیدلو نو زه هم د خلکو د مینځ نه او تلم

| | | |
|---|---|---|
| بِخِطَامِ | الْجَمَلِ | فَأَنَخْتُهُ |

او هغه کس پسې مې شاته منډه کړې تر دې چې هغه مې راګیر کړو او د اوښ واګې مې ونېولو او هغه مې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | اخْتَرَطْتُ | سَيْفِي | فَضَرَبْتُ | رَأْسَ | الرَّجُلِ |

کینولو او بیا مې توره راویستله او د هغه کس په سر مې بنه دروند غوزار وکړو چې هغه پرې مړ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | جِئْتُ | بِالْجَمَلِ | أَقُودُهُ | وَعَلَيْهِ | رَحْلُهُ | وَسِلَاحُهُ |

شو. د هغې نه وروسته هغه اوښ چې د هغه کس سامان او اسلحه پرې پرته وه رامې ښکله. کله چې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاسْتَقْبَلَنِي | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَالنَّاسُ | فَقَالَ: |

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د نورو صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ زما مخې ته راغلل نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | قَتَلَ | الرَّجُلَ؟ | قَالُوا: | ابْنُ | الْأَكْوَعِ | فَقَالَ: |

چې دا چا مړ کړی دی؟ صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وفرمایل چې دا سلمه بن اکوع. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَهُ | سَلَبُهُ | أَجْمَعُ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |

چې د دې ټول سامان حقدار ته یې (سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) دی.

**توضیح هوازن**: دا د یو مشهورې قبیلې نوم دی. چې په تیراندازئ کې ډېر مشهور وو. حنین او اوطاس کې د هوازن سره ډېره لویه جنګ وشو. د عرفات او طائف په مینځ کې د یوې درې نوم حنین دی. (مرقات ۷/۵۰۶)

**نتضحی**: دا لفظ د تضحیه نه دی. اصل کې د وابنو والا ځای ته د کوزېدلو او د اوښانو د څرولو او د ارام ورکولو لپاره استعمالیدلو. بیا د نرمي د لپاره استعمال شو. بیا د ځاښت د لمونځ لپاره استعمال شو. بیا د ځاښت وخت کې د خوراک کولو لپاره استعمال شو. هم دغه معنی مراد ده. (مرقات ۷/۵۰۶)

**رقة من الظهر**: یعنې د سورولو د کمې په وجه مونږ کې کمزوري وه. په پیدل تلو تلو باندې ستړې شوې وو.

**و بعضنا مشاة**: دا جمله د رقة من الظهر لپاره عطف بیان او تفسیر دی. (مرقات ۷/۵۰۷)

---

[1] رقم الحديث ۳۹۶۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۶۸ رقم الحديث ۳۰۵۱ ومسلم في صحيحه ۳/۱۳۷۴ رقم الحديث (۴۵-۱۷۵۴)

**اخترطت سيفي:** توره را ويستلو ته وايي. (مرقات۷/۵۰۷)

**اشتد:** د منډه كولو په معنى كې دى. (مرقات۷/۵۰۷)

**خطام:** واګې ته وايي. (مرقات۷/۵۰۷)

## بنو قريظه كې د حضرت سعد فيصله

﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ

او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې كله زه مدينې ته راغلم. د بنو قريظه يهود د سعد ابن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حكم

بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

باندې تسليم شول او راكوز شول او په دې خبره راضي شول چې سعد ابن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې كوم فيصله كوي مونږ به

إِلَيْهِ فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ

يې منو، نو نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سعد ابن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پسې يو كس ولېږلو. سعد ابن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په يو خر سپور ؤو

فَلَمَّا دَنَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او راغلو چې كله را نژدې شو نو نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حاضرينو ته وويل چې تاسو د خپل سردار د تعظيم يا

قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ فَجَاءَ فَجَلَسَ

د هغې د مرستې لپاره ودرېږئ. سعد ابن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره نزدې كيناستلو، نو

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ هَؤُلَاءِ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِكَ.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه مخاطب كړو او ورته وې فرمايل چې دا خلك يعنې د بنو قريظه يهود ستا د حكم په منلو باندې راضي دي.

قَالَ: فَإِنِّي أَحْكُمُ أَنْ تُقْتَلَ الْمُقَاتِلَةُ

سعد ابن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې زه فيصله كوم چې د دې يهودو كې چې كوم د جنګ كولو صلاحيت لري هغه مړه

وَأَنْ تُسْبَى الذُّرِّيَّةُ. قَالَ:

كړئ او د دوى ښځې او ماشومان قيديان كړئ. نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې او رېدلو سره وفرمايل چې تا د دوى باره كې د

لَقَدْ حَكَمْتَ فِيهِمْ بِحُكْمِ الْمَلِكِ.

بادشاه مطابق فيصله وكړه. يعنې تا داسې فيصله وكړه چې الله تعالى پرې هم راضي دى. او يو

| |
|---|
| وَفِي رِوَايَةٍ: بِحكم الله (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| روايت كې دا الفاظ دي چې تا د الله د حكم مطابق فيصله وكړه. |

**توضيح**: **قوموا الى سيدكم**: حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د انصارو سردار ؤو. د خندق په جنګ كې هغه سخت زخمي شوی ؤو. هغې د بنو قريظه په غدارئ باندې د الله نه دعا غوښتلې وه چې ای الله! ماته تر هغې پورې مرګ رانكړې چې تر څو پورې په يهودو باندې خپل زړه يخ نه كړم. هلته د جنګ خندق نه وروسته مسلمانانو ژر بنو قريظه محاصره كړه. د ۲۵ ورځو نه زياته محاصره وه، نو هله يهود د خپلو قلعه ګانو نه په راكوزېدلو باندې راضي شول خو هغه بدبختو وويل چې زمونږ فيصله دې يهود نه كوي بلكې سعد ابن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې وكړي. د حضرت سعد ابن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه خلكو سره پخوانې رسمونه هم ؤو. او دا دواړه د يو بل ملګرې هم ؤو. د يهودو خيال ؤو چې سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به زمونږ په حق كې فيصله وكړي. حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا چې زخمي ؤو نو ځكه يې د مسجد نبوي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خر باندې سپور راوستلو. چې د بنو قريظه محلې ته ورسيدلو نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل "**قوموا الى سيدكم**" دا چې د هغې مرستې ته ضرورت ؤو، ځكه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د خپل سردار د مرستې لپاره ودرېږئ. هغه د خر نه راكوز كړئ. لهذا د دې حديث د هغه حديث سره تعارض نشته دی چې كوم كې راغلې دي چې "**من سره ان يتمثل له الرجال قياما فليتبوء مقعده من النار**" ځكه هلته مجبوري وه. شوقيه د چا لپاره پاڅيدل منع دي. دويم جواب دا دی چې دلته صرف د استقبال په توګه د احترام او اكرام لپاره اودرېدلو ؤو. د دې نه صرف استقبال ثابت دی. د عجمو د ممنوع قيام د دې سره هيڅ تعلق نشته دی. چې ذكر يې د "**من سره**" والا حديث كې دی.
بهرحال حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فيصل وكړه چې د جنګ قابل يهود مړه كړئ او ښځې او ماشومان يې غلامان كړئ. همدغه فيصله د تورات هم وه، نو نبي كريم ﷺ وفرمايل چې د سعد فيصله د عرش والا د بادشاه فيصله ده. (مرقات۷/۵۰۷،۵۰۸)

## د سردار يمامه ثمامه عجيبه قصه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو لښكر د جهاد كولو لپاره نجد ته روان كړو. د لښكر |
| فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِي حَنِيفَةَ يُقَالُ لَهُ: ثُمَامَةُ بْنُ أُثَالٍ سَيِّدُ أَهْلِ الْيَمَامَةِ |
| خلكو د قبيله بنو حنيفه يو كس ونيولو او مدينې ته يې راوستلو چې نوم يې ثمامه ابن اثال ؤو. او د يمامه د ښار |

---
[1] رقم الحديث ۳۹۶۳ اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۶۵ رقم الحديث ۳۰۴۳ ومسلم في ۳/۱۳۸۸ رقم الحديث (۶۴-۱۷۶۹)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَرَبَطُوهُ | بِسَارِيَةٍ | مِنْ | سَوَارِي | الْمَسْجِدِ |

سردارؤو. دا كس يې د مسجد نبوي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ې ستنې پورې وتړلو چې و نه تښتي. نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه

فَخَرَجَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: مَاذَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟

حوا ته راغلو او د هغې نه يې وپوښتل چې او يه ثمامه! ستا سره د او ربه لو لپاره څه دي؟ يعنې او يه چې ستا څه خيال دى يا زما

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | عِنْدِي | يَا | مُحَمَّدُ |

باره كې ستا څه خيال دى چې زه به تا سره څنګه سلوك كوم؟ ثمامه وويل چې ما سره خير ښېګړه ده يا ما سره

| | | |
|---|---|---|
| خير | إن | نقتل |

ډېر مال دى. كه ته ما مړ كړې نو د وينې والا يو كس به مړ كړې چې د مرګ مستحق دى. د دې الفاظ په ذريعه

| | | |
|---|---|---|
| تَقْتُلْ | ذَا | دَمٍ |

ګوياكې ثمامه د خپلې ګناه اعتراف او اقرار وكړو. د هغې د دې الفاظو مطلب دا ؤو چې كه چرې ته ما مړ كړې

| | | |
|---|---|---|
| وَإِنْ | تُنْعِمْ | تُنْعِمْ |

نو يو داسې كس به مړ كړې چې وينه به يې بې ځايه نه ځي. ځكه زما قوم به زما وينه و نه بخښي. بلكې ستا نه به

| | | |
|---|---|---|
| عَلَى | وَإِنْ | شَاكِرٍ |

بدله اخلي. دې صورت كې ګوياكې هغې د خپل امارت او د خپل رياست او د وجاهت دعوى وكړه او كه ته ما په عزت سره خلاص

| | | |
|---|---|---|
| كُنْتُ | تُرِيدُ | الْمَالَ |

كړې او ما سره ښه سلوك وكړې نو د داسې كس سره به ښه سلوك كوؤ چې شكر ويستونكى او قدردان وي يعنې زه به هم د ښه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَسَلْ | تُعْطَ | مِنْهُ | مَا | شِئْتَ |

سلوك بدله تا ته دركړم او كه ته مال غواړې نو وغواړه. څومره مال چې غواړې در به كړى شي. دې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَتَرَكَهُ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

خبرو اوريدلو سره نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه (د هغې په حال) پريښنودلو. چې بله ورځ راغله نو

حَتَّى كَانَ الْغَدُ فَقَالَ لَهُ: مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟ فَقَالَ:

نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې نه بيا ويوښتل چې او يه ثمامه تا سره د ويلو لپاره څه دي؟ هغه وويل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عِنْدِي | مَا | قُلْتُ | لَكَ: | إِنْ | تُنْعِمْ | تُنْعِمْ |

ما سره همغه څه دي چې ما ويلې دي چې كه ښه سلوك كوې نو داسې كس سره به ښه سلوك كوؤ. چې

عَلَى شَاكِرٍ وَإِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ وَإِنْ كنتَ تريدُ المالَ فسَلْ تعط مِنْهُ

شكر ويستونكى او قدردان وي. كه مې مړ كړې نو د وينې والا كس به وژنو. او كه ته مال غواړې نو وغواړه،

مَا شِئْتَ. فَتَرَكَهُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

څومره چې غواړې دربه كړې شي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې باندې هم دې اوږدلو سره هغه د هغې په حال پرېښودلو

حَتَّى كَانَ بَعْدَ الْغَدِ فَقَالَ لَهُ: مَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ؟

او كله چې دريمه ورځ شوه نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا د هغې نه وپوښتل چې ثمامه تا سره د ويلو لپاره څه دي؟

فَقَالَ: عِنْدِي مَا قُلْتُ لَكَ: إِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ

هغې وويل چې ما سره همغه څه دي چې كوم ويلي دي چې كه ته ښه سلوك كوې نو د داسې كس سره به ښه سلوك كېږي

عَلَى شَاكِرٍ وَإِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ

چې شكر ويستونكى او قدردان به وي. كه يې وژنې نو د وينې والا كس به وژنو او كه ته مال غواړې نو

فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَطْلِقُوا ثُمَامَةَ

چې څومره غواړې هغه هومره وغواړه، دربه كړې شي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې اوږدلو سره ثمامه ازاد كړو،

فَانْطَلَقَ إِلَى نَخْلٍ قَرِيبٍ مِنَ الْمَسْجِدِ

نو د ازادولو نه وروسته د څه ويل نه بغير هغه د كجورو د بوټو په يو ځنګل كې لاړو چې مسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته نزدې ؤو

فَاغْتَسَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَقَالَ:

او هلته يې ولامبل او بېرته مسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته يې وويل

أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

يعنې زه په رښتنې زړه اعتراف او اقرار سره ګواهي وركوم چې د الله نه بغير بل هيڅ څوک د عبادت

وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ

لائق نشته دى او ګواهي وركوم چې محمد د الله بنده او د هغې رسول دى. او بيا يې وويل چې

يَا مُحَمَّدُ وَاللهِ مَا كَانَ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ وَجْهٌ

اى محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! قسم په خدای چې په مخ د ځمکه باندې زما په نزد ستا د مخ نه بل هیڅ شی

أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ وَجْهِكَ فَقَدْ أَصْبَحَ

زیات د نفرت والا نه ؤو (یعني زما چې ستا د ذات نه څومره نفرؤو، دومره نفرت مې د بل ذات نه نه ؤو)

وَجْهُكَ أَحَبَّ الْوُجُوهِ كُلِّهَا إِلَيَّ وَاللهِ مَا كَانَ مِنْ دِينٍ

خو اوس ستا مخ زما په نزد د دنیا د ټولو مخونو ګران دی او قسم په خدای چې زما په نزد ستا د ښار

أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ دِينِكَ فَأَصْبَحَ دِينُكَ أَحَبَّ الدِّينِ كُلِّهِ إِلَيَّ وَوَاللهِ مَا كَانَ مِنْ بَلَدٌ

نه زیات بل هیڅ ښار د نفرت والا نه ؤو خو اوس زما په نزد ستا ښار زما په نزد د دنیا د ټولو ښارونو نه زیات ګران دی.

أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ بَلَدِكَ فَأَصْبَحَ بَلَدُكَ أَحَبَّ الْبِلَادِ كُلِّهَا إِلَيَّ وَإِنَّ خَيْلَكَ أَخَذَتْنِي وَأَنَا

بیا هغې عرض وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ستا لښکر زه هغه وخت ګیر کړی ؤم چې ما د

أُرِيدُ الْعُمْرَةَ فَمَاذَا تَرَى؟

عمرې لپاره د مکې نه د تللو اراده کوله، نو ته (نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ) ما ته څه حکم کوې چې آیا زه مکې ته د عمرې لپاره لاړ شم که نه؟

فَبَشَّرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خو اول هغې ته زیری ورکړو چې د اسلام د قبلولو په وجه تا ته د انسانیت شرف او عظمت حاصل شوی دی

وَأَمَرَهُ أَنْ يَعْتَمِرَ فَلَمَّا

او ستا ټول ګناهونه بخښلی شوې دي او بیا یې هغې ته عمرې د کولو حکم وکړو. د هغې نه وروسته ثمامه چې کله

قَدِمَ مَكَّةَ قَالَ لَهُ قَائِلٌ: أَصَبَوْتَ؟ فَقَالَ:

(د عمرې کولو لپاره) مکې ته ورسیدلو نو ویونکو هغې ته وویل چې ته بې دینه شوی یې. ثمامه جواب ورکړو

لَا وَلَكِنِّي أَسْلَمْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چې نه، د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس اسلام قبول کړی دی. زه بې دینه شوی نه یم او (یاد وساتئ)

وَاللهِ لَا يَأْتِيكُمْ مِنَ الْيَمَامَةِ حَبَّةُ حِنْطَةٍ حَتَّى

په خدای قسم چې اوس به ثمامه تاسو ته د غنمو یوه دانه هم در ونه لیږي تر څو پورې چې

| |
|---|
| يَأْذَنَ فِيهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ مُسلم وَاخْتَصَرَهُ الْبُخَارِي[1] |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې اجازت رانکړې. دا روایت بخاری هم لنډ نقل کړی دی. |

**توضیح**: خیلاً: د شهسوارانو یوه ډله د جهاد لپاره نجد اړخ ته روانه کړی شوې وه. هغوی ثمامه گیر کړو چې د قوم سردار ؤو. هغه یې د مسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ستنو کې یوه ستنه پسې وتړلو. (مرقات ۵۰۸/۷)

**ماعندك**: یعنې ستا څه خیال دی چې زه به تا سره څه کوم؟ (مرقات ۵۰۸/۷)

**عندی خیر**: یعنې ستا باره کې ښه گمان دی څکه ته به ظلم نه کوې. (مرقات ۵۰۹/۷)

**ان تقتل ذا دم**: یعنې ته مړ کړې نو زما بدله به اخستلی کېږي. زماوینه به نه ضایع کېږي. دویم مطلب دا دی چې ما مړی کړی دی ته به یو مجرم مړ کړې. (مرقات ۵۰۹/۷)

**وان تنعم**: یعنې که احسان دې وکړو او زه دې اوبخښلم نو یو شریف، قدردان، شکرویستونکې کس باندې به احسان وي. درې ورځې همدغه شان پوښتنه او جواب روان ؤو. بیا په دریمه ورځ د احسان په توگه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ازاد کړو، څکه د خلیفه او امیر په رایه باندې داسې کول جائز دي. (مرقات ۵۰۹/۷)

**اصبوت**: آیا ته صابې او بې دینه شوی یې؟ هغې وفرمایل چې نا بلکې زه خو مسلمان شوی یم. اوس به د محمد عربې صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اجازت نه بغیر ثمامه د غلې یوه دانه هم مکې والو ته نه لیږي.

## د احسان بدله احسان

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَن جُبَير بن مطعم أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ: |
| او حضرت جبیر ابن مطعم فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنگ د قیدیانو باره کې وفرمایل چې که چرې |
| لَوْ كَانَ الْمُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا ثُمَّ كَلَّمَنِي فِي هَؤُلَاءِ النَّتْنَى |
| مطعم ابن عدي ژوندی وی او ماته یې د دې ناپاکه قیدیانو باره کې سفارش کړی وی نو ما به د مطعم په |
| لتركتهم لَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2] |
| سفارش دوی ازاد کړي وی. |

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۶۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۸۷/۸ رقم الحديث ۴۳۷۲ ومسلم في ۱۳۸۶ رقم الحديث (۵۹-۱۷۶۴)

([2]) رقم الحديث ۳۹۶۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۳۷/۶ رقم الحديث ۳۱۳۹ وأبوداود في السنن ۱۳۸/۳ رقم الحديث ۲۶۸۹

**توضیح**: حضرت جبیر د دې حدیث راوي دی، خو وخت چې دې دا حدیث اورېدلی دی هغه وخت دا مسلمان شوی نه ؤو. بلکې په جنګ بدر کې د نورو کافرانو سره نېولی شوی ؤو. حدیث خو یې د کفر په حالت اورېدلی دی خو بیان یې د اسلام په حالت کې کوي. د هغې د پلار نوم مطعم بن عدي ؤو. هغه د کفر په حالت مړ شوی ؤو. مطعم بن عدي هغه کس ؤو چې نبي کريم ﷺ ته یې طائف نه د بېرته راتللو وخت کې پناه ورکړې وه او نبي کریم ﷺ یې مکې مکرمې ته د خپل ځان سره داخل کړی ؤو. دا چې هغې لوی احسان کړی ؤو نو ځکه نبي کریم ﷺ د "**هل جزاء الاحسان الا الاحسان**" په توګه وفرمایل چې که چرې نن مطعم ژوندی وی او د بدر د بویه مشرکانو قیدیانو باره کې یې ماته سفارش کړی وی نو د هغې په خاطر به ټول ازاد کړي وی.

## د حدیبیه په موقع اتیا (۸۰) مشرکان ونیول شول

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ ثَمَانِينَ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايي دی چې د صلح حدیبیه په کال د نبي کریم ﷺ خلاف د مکې اتیا (۸۰) کسان د |
| هَبَطُوا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جَبَلِ التَّنْعِيمِ |
| اسلحو په لاس د تنعیم په غر راکوز شول چې د هغوی اراده دا وه چې نبي کریم ﷺ او د هغې په ملګرو به ناځاپه |
| مُتَسَلِّحِينَ يُرِيدُونَ غِرَّةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حمله وکړي او هغوی ته نقصان ورسوي خو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د جنګ نه بغیر هغوی بې وسه او ذلیله ګیر کړه او |
| وَأَصْحَابِهِ فَأَخَذَهُمْ سِلْمًا فَاسْتَحْيَاهُمْ. وَفِي رِوَايَةٍ: فَأَعْتَقَهُمْ |
| بیا یې هغوی ژوندي پرېښودل. او یو روایت کې داسې دي چې بیا یې هغوی ازاد کړل، نو په دې |
| فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى (وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ |
| الله تعالی دا آیت نازل کړو. او هغه الله داسې دی چې د مکې په چاپېریال کې د هغه کفارو لاس ستاسو |
| وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ) رَوَاهُ مُسْلِم [1] |
| خلاف او ستاسو لاس د هغې خلاف بند وساتل. |

---

([1]) رقم الحديث ٣٩٦٦ أخرجه مسلم في صحيحه ١٤٤٢/٣ رقم (١٣٣-١٨٠٨) وأبوداود في السنن ١٣٧/٣ رقم الحديث ٢٦٨٨.

**توضیح** غرة النبي : یعني نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې یې ناخبرئ کې حمله کوله او شهید کول یې غوښتل. الله هغوی د مسلمانانو په لاس کې ګیر کړه. (مرقات ۵۱۴/۷)

## په قلیب بدر کې د قریشو د سردارانو سره د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ: ذَكَرَ لَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ |
| او حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حواله مونږ ته دا |
| أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ يَوْمَ بَدْرٍ بِأَرْبَعَةٍ وَعِشْرِينَ رَجُلًا |
| بیان وکړو چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ بدر په ورځ د قریش د کفارو د څلور ویشت (۲۴) وژل شوؤ |
| مِنْ صَنَادِيدِ قُرَيْشٍ فَقُذِفُوا فِي طَوِيٍّ مِنْ أَطْوَاءِ بَدْرٍ |
| سردارانو باره کې حکم وکړو چې دوی ځای ته ورسوئ، نو مونږ د بدر په کوهي کې هغوی یو یو ورغوزار |
| خَبِيثٍ مُخْبِثٍ وَكَانَ إِذَا ظَهَرَ |
| کړل چې ناپاکه ؤو او ناپاکه کونکي ؤو. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عادت دا ؤو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به کله |
| عَلَى قَوْمٍ أَقَامَ بِالْعَرْصَةِ |
| په یو قوم باندې غلبه یا فتح وموندله نو هغه میدان جنګ کې به یې درې ورځې قیام کولو، نو د هغه عادت مطابق |
| ثَلَاثَ لَيَالٍ فَلَمَّا كَانَ بِبَدْرٍ الْيَوْمَ الثَّالِثَ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ ګټلو نه وروسته په هغه میدان جنګ کې درې ورځې قیام کولو. کله چې درې ورځې ختمې شوې |
| أَمَرَ بِرَاحِلَتِهِ فَشُدَّ عَلَيْهَا رَحْلُهَا |
| نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل اوښ باندې د کجاوه تړول حکم وکړو، نو کجاوه وتړلی شوه او |
| ثُمَّ مَشَى وَاتَّبَعَهُ أَصْحَابُهُ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روان شو او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه هم ورپسې شا ته روان شول. چې دې |
| حَتَّى قَامَ عَلَى شَفَةِ الرَّكِيِّ فَجَعَلَ |
| کوهي ته راورسیدلو کوم کې چې د قریشو سرداران غوزار کړی شوي ؤو. نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يُنَادِيهِمْ بِأَسْمَائِهِمْ وأسماءِ آبائِهِم: |
| د هغه کوهي په غاړه اودریدلو او د هغه سردارانو او د هغوی د پلارانو نومونه اخستل یې شروع کړل |

يَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ وَيَا فُلَانُ بْنَ فُلَانٍ

چې اى فلانى د فلانې ځويه، اى فلانى د فلانې ځويه او بيا يې ګويا کې هغوى مخاطب کړل چې

أَيَسُرُّكُمْ أَنَّكُمْ أَطَعْتُمُ اللهَ وَرَسُولَهُ؟

آيا تاسو ته اوس دېر ښه معلومېږي چې تاسو د الله او د هغې د رسول اطاعت کولى؟ بيشکه مونږ

فَإِنَّا قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ وَجَدتُمْ

ته هغه څيزونه حاصل شول چې د کوم زمونږ رب قطعي وعده کړې وه. او آيا تاسو هغه څيز هم موندلى دى

مَا وعدكم رَبُّكُمْ حَقًّا؟

چې د کوم تاسو سره ستاسو پروردګار قطعي وعده کړې وه. يعنې ستاسو د عذاب. مطلب دا چې مونږ ته د خداى د وعدې مطابق

فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللهِ

فتح او کاميابي حاصله شوه، آيا تاسو ته هم عذاب ملاو شو چې د کوم نه ستاسو رب تاسو يره ولې وئ؟ حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړو

مَا تُكَلِّمُ مِنْ أَجْسَادٍ لَا أَرْوَاحَ لَهَا؟

چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! آيا ته داسې بدنونه مخاطب کوې چې روحونه په کې نشته دى؟

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ

نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل قسم په هغه ذات چې د کوم په لاس کې د محمد صلى الله عليه وسلم ژوند دى،

مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ. وَفِي رِوَايَةٍ: مَا أَنْتُمْ

دې بدنونو ته چې څه وايم تاسو هغه زيات اورېدونکې نه وئ او يو روايت کې داسې دي چې تاسو

بِأَسْمَعَ مِنْهُمْ وَلَكِنْ

د دوى نه زيات اورېدونکې نه يئ خو فرض صرف دومره دى چې تاسو جواب ورکولو باندې قادر يئ

لَا يُجِيبُونَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَزَادَ الْبُخَارِيُّ: قَالَ قَتَادَةُ:

او دوى جواب نه شي ورکولى (بخاري او مسلم) بخاري هم نقل کړې دى چې حضرت قتاده رضي الله عنه وفرمايل

أَحْيَاهُمُ اللهُ حَتَّى أَسْمَعَهُمْ قوله

چې الله تعالى د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د خطاب په وخت کې ژوندي کړي وو چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم خبره واورې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَوْبِيخاً | وتصغيرا | ونقمة | وحسرة | وندماً | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |

چې هغوی ته پرې سزا وي او هغوی ذلیل او خوار او افسوس او پښیمانتیا پرې محسوسه کړي.

**توضیح**: صنادید: د صندید جمع ده. اشراف او سردارانو په معنی کې دی. (مرقات۷/۵۱۴)

**طوی**: چې د کوم کوهي ګیر چاپېره د ښه مضبوطو کاڼو ډیری وې هغې ته طوی وایي. شاعر ویلې دي (مرقات۷/۵۱۴)۔

فان الماء ماء ابي وجدّي    وبيري ذو حفرت وذو طويت

**طوی**: اباد کوهي ته وایي او قلیب هغه کوهيّ ته وایي چې وران او خراب وي. راویانو زیات خیال نه دی کړی چې د طوی لفظ هم ځینو راویانو ذکر کړی دی او ځینو د قلیب لفظ استعمال کړی دی. لږ شان فرق دی. چا خیال نه دی کړی، د بدر کوهی وران او خراب ؤو.

**خبیث مخبث**: یعنې خپله کوهی هم ګنده ؤو او د قرشو کوم سرداران چې په دې اچولی شوې ؤو هغه هم خبیثان ؤو. یعنې خپله هم فاسدان او نور فاسده کونکې ؤو. (مرقات۷/۵۱۶)

**فجعل ینادیهم**: تبکیت او تذلیل او توهین او تحقیر او د تخسیر په غرض نبي کریم ﷺ د قریشو سردارانو ته دا خبرې وکړې. حضرت حسان رضی الله عنه په خپلو شعرونو کې د دې پس منظر داسې بیان کړی دی۔

فغادرنا ابا جهل صريعا ❁ وعتبة قد تركنا بالجبوب
وشيبة قد تركنا في رجال ❁ ذوي حسب اذا نسبوا النسيب
ينادیهم رسول الله ما ❁ قذفناهم كباكب في القليب
الم تجدوا كلامي كان حقا ❁ وامر الله يأخذ بالقلوب
فما نطقوا ولو نطقوا القالوا ❁ اصبت وكنت ذارأي مصيب

**ترجمه**: مونږ ابو جهل پړمخې راګوزار کړو او پرې مو ښودلو. او عتبه مو هم مړ پرېښودو.
او شیبه مونږ د داسې خلکو سره مړ پرېښودلو چې د لوی نسب او حسب والا ؤو.
نبي کریم ﷺ هغوی ته اواز کولو کله چې مونږ هغوی ګنده کوهي ته د پاس نه لاندې

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۶۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۰/۷ رقم الحديث ۳۹۷۶ ومسلم في ۲۲۰۴/۴ رقم الحديث (۷۸-۲۸۷۵)

راګوزار کړو او پرې مو ښودو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې آيا تاسو زما خبره رښتيا ونه منله؟ حال دا چې د الله حکم زړونو ته کوزيږي. د قريش کافرانو خبره ونه کړه که هغوی جواب ورکولی نو دا به يې ويلی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رښتيا ويلې ؤ او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رأي صحيح وه.

د دې حديث د لاندې د سماع موتی مسئله اخيستل کيږي خو ما په توضيحات جلد اول ص ۳۵۴ باندې دا مسئله ليکلې ده. ښه تفصيل دی.

## په جنګ حنين کې شپږ زره قيديان

﴿۹﴾ وَعَنْ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت مروان او حضرت مسور ابن مخرمه راويان دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وخت د خطبې

قَامَ حِينَ جَاءَهُ وَفد من هَوَازِنَ مُسْلِمِينَ

ورکولو لپاره ودرېدلو کله چې د قبيله هوازن خلک د اسلام نه وروسته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شول

فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ

او هغوی دا خواست وکړو چې د هغوی مال او د هغوی قيديان بېرته ورکړی شي.

فَقَالَ: " فَاخْتَارُوا إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ:

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته وفرمايل چې دواړو شيانو کې يو شی اختيار کړئ يعني يا قيديان ازاد

إِمَّا السَّبْيَ وَإِمَّا الْمَالَ ". قَالُوا: فَإِنَّا نَخْتَارُ سَبْيَنَا.

کړئ او بو يې ځئ يا مال بېرته واخلئ؟ هغوی عرض وکړو چې مونږ خپل قيديان ازادول خوښوؤ،

فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَثْنَى عَلَى اللهِ

نو بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته خطبه ورکړه. اول نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله تعالی حمد او ثناء

بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ: أَمَّا بعدُ

بيان کړه چې د کوم هغه مستحق دی او بيا يې وفرمايل چې د دې نه وروسته! د قبيله هوازن خلک چې

فَإِنَّ إِخْوانكم قَدْ جاؤوا تَائِبِينَ

ستاسو ديني يا نسبي ورونه دي د خپل کفر او شرک نه توبه کوي او مسلمانانو تاسو ته راغلي دي. ما

وَإِنِّي قَدْ رَأَيْتُ أَنْ أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ فَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ

دا کار مناسب ګڼلی دی چې د دوی قيديان دوی ته بېرته ورکړم. لهذا کوم کس چې په خوشحالئ باندې

أَنْ يُطَيِّبَ ذَٰلِكَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ

قيديان بېرته ورکول غواړي نو اوس وخت کې به هغې ته د دې بدله د دې نه مخکې راغلي مال نه ورکړی

أَنْ يَكُونَ عَلَى حَظِّهِ حَتَّى نُعْطِيَهُ إِيَّاهُ مِنْ أَوَّلِ مَا يَفِيءُ اللهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ

کېږي چې الله د غنيمت په توګه راکړي دی، نو هغه دې همدغه شان وکړي. خلکو (يعني صحابه کرامو رضي الله عنهم

فَقَالَ النَّاسُ: قَدْ طَيَّبْنَا ذَٰلِكَ يَا رَسُولَ اللهِ

يا بغير د څه امتياز نه ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم) عرض وکړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! مونږ دې

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

باندې يعني قيديان په خوشحالئ باندې ورکولو ته اماده يو. نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې مونږ ته

إِنَّا لَا نَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ

په دې غونډه کې نه شي معلومېدلی چې تاسو کې کوم يو کس راضي دی او کوم کس راضي نه دی. د هغې فرق نه شي کېدی.

فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعَ إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ

لهذا تاسو ټول خپلو خپلو کورونو ته لاړ شئ او د خپل خاندان او قبيلي والو سره دې باره کې مشوره وکړئ

أَمْرَكُمْ. فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ

چې ستاسو هغه سردار تفصيل سره مونږ ستاسو فيصله راکړي، نو ټول خلک لاړل او چې د هغوی سردارانو سره هغوی خبرې وکړي

ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرُوهُ

نو هغه خلک بېرته د نبي کريم صلى الله عليه وسلم خدمت کې حاضر شول او نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته يې وويل

أَنَّهُمْ قد طيّبوا وأذنوا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

چې هغوی قيديانو باندې بېرته ورکولو باندې راضي دي او هغوی د دې امر اجازت ورکړو.

**توضيح**: **اموالهم وسبيهم**: جنګ حنين کې شپږ زره (۶۰۰۰) کسان ګير شوي ؤو. چې ماشومان هم په کې ؤو. ښځې هم وې او بوډه ګان هم ؤو. ځوانان هم ؤو. نبي کريم صلى الله عليه وسلم د غنيمتونو په تقسيم کې ډېر تاخير وکړو چې د هوازن خلک د مذاکراتو لپاره راشي هغوی ډېر ناوخته راغلل نو داسې قصيدې

---

(۱) رقم الحديث۳۹۶۸ اخرجه البخاري في صحيحه ۴۸۳/۴ رقم الحديث ۲۳۰۷ وأبوداود في السنن ۱۴۱/۳ رقم الحديث ۶۲۹۳

یې ولوستلې چې خلک یې وژړول. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې اوس د غنیمت مالونه تقسم شوي دي. اوس تاسو په دوه خبرو کې یوه خبره خوښه کړئ. یا مال بېرته واخلئ یا مال پرېږدئ او خپل قیدیان بېرته واخلئ. هغه خلکو وویل چې مونږ خپل انسانان بېرته غواړو. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ مخې ته یوه خطبه وویله او ویې فرمایل چې د هوازن خلک مسلمانان شوي دي. اوس که د هغوی قیدیان څوک په خوشحالئ بېرته ورکول غواړي نو بېرته دې ورکړي او څوک یې چې بېرته ورکول نه غواړي نو هغه دې هم بېرته ورکړي خو د هغه دې د خپل قیدي په بدل کې آینده زمونږ نه غلام واخلي. صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وفرمایل چې مونږ بېرته ورکولو باندې راضي یو. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې مونږ ته معلومه نه ده چې څوک خوشحاله دي او څوک خوشحاله نه دي. تاسو د خپلو قبیلو سره خبره وکړئ. سردارانو هم د خوشحالئ اظهار وکړو، نو هله یې ورته ټول قیدیان بېرته ورکړل او مالو تقسیم شول چې ځلوېښت زره (۴۰۰۰۰) بزې وې، څلیرېش زره (۲۴۰۰۰) اوښان ؤو او ځلوېښت زره (۴۰۰۰۰) اوقیه په لاس ورغلې وې. (مرقات ۵۲۰/۷)

## تبادله د قیدیانو جائز ده

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: كَانَتْ ثَقِيفٌ حَلِيفًا لِبَنِي عُقَيْلٍ

او حضرت عمران بن حصین رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې د بنو قبیله ثقیف د بنو عقیل شریکان ؤو. کله چې قبیله

فَأَسَرَتْ ثَقِيفٌ رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بنو ثقیف د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه صحابه ګیر کړل نو د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابؤ د بنو عقیل

وَأَسَرَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مِنْ بَنِي عُقَيْلٍ فَأَوْثَقُوهُ فَطَرَحُوهُ فِي الْحَرَّةِ

یو کس ګیر کړو او مضبوط یې وتړلو او په حرا کې یې واچولو. د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَمَرَّ بِهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَادَاهُ: يَا مُحَمَّدُ يَا مُحَمَّدُ فِيمَ أُخِذْتُ؟

د هلته تېر شو نو هغه قیدي ورته اواز وکړو چې ای محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زه په کوم جرم کې قیدي کړی شوی یم؟

قَالَ: بِجَرِيرَةِ حُلَفَائِكُمْ ثَقِيفٍ

نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د خپل حلیف ثقیف د خلکو په جرم کې یعنې ثقیف قبیلې خلکو زمونږ دوه مسلمانان

فَتَرَكَهُ وَمَضَى فَنَادَاهُ:

ګیر کړي دي. د هغې په بدل کې تاسو ګیر کړی شوي وئ. دې ویلو سره نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی هم د غشان پرېښودل

يَا مُحَمَّدُ يَا مُحَمَّدُ

او مخکې تر بنه لاړو. هغې بیا نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اواز وکړو چې ای محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ای محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرَحِمَهُ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسلم | فرجعَ | فَقَالَ: |
| د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې باندې رحم راغلو او هغوى له بېرته ورغلو او ورته ويې فرمايل چې | | | | | | | | |
| مَا | شَأْنُكَ؟ | قَالَ: | إِنِّي | مُسْلِمٌ. | فَقَالَ: | | | |
| تاسو په كوم حال كې يئ؟ هغه وويل چې زه مسلمان يم. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې | | | | | | | | |
| لَوْ | قُلْتَهَا | وَأَنْتَ | تَمْلِكُ | أَمْرَكَ | | | | |
| كاش! تا دا خبره هغه وخت كړې وى چې كله ته د خپل اختيار مالك وې نو تا به خلاصون موندلى وى | | | | | | | | |
| أَفْلَحْتَ | كُلَّ | الْفَلاحِ | | | | | | |
| كامل خلاصون يعنې په دنيا كې به خلاصون درته ملاؤ شوى وى چې قيدي شوى به نه وى او په | | | | | | | | |
| قَالَ: | فَفَدَاهُ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | |
| آخرت كې د دوزخ د عذاب نه خلاص شوى وې. راوي وايي چې د هغې نه وروسته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه | | | | | | | | |
| بِالرجلينِ اللَّذينِ أَسرَتْهُما ثقيفٌ. رَوَاهُ مُسلم[1] | | | | | | | | |
| د هغه دوه كسانو په بدل كې بنو ثقيف گير كړي ؤو پريښودلو. | | | | | | | | |

**توضيح**: **بجريرة حلفائكم**: معاهده، معاقده او په محالفه كې به دا كېدل چې د يو بل په خير كې به دواړه برابر شريكان ؤو. بنو ثقيف او بنو عقيل د يو بل سره معاهده وه. بنو ثقيف د صحابه كرامو نه دوه كسان قيديان كړي ؤو. صحابه كرامو د بنو عقيل يو كس ونيولو او وې تړلو او په گرمه شړه يې واچولو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې په خوا تېرېدلو نو هغې اواز وكړو چې زه په كوم جرم كې نيولى شوى يم. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جواب كې وفرمايل چې ستاسو سره معاهده كونكې بنو ثقيف په جرم كې ته نيولى شوى يې ځكه هغوى زمونږ دوه كسان نيولي دي. بله ورځ هغه كس بيا اواز وكړو چې زه مسلمان شوى يم، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې كه اول دې اسلام راوړى وى نو جدا خبره به وه. اوس خو يې ته د نفاق په توگه هم ويلى شي چې زه مسلمان يم د دې لپاره چې ازادي درته ملاوه شي. د هغې نه وروسته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل دوه صحابه كرامو په بدل كې هغه كس خلاص كړو. د دې حديث نه د قيديانو د تبادلې تعليم ملاؤ شو. (مرقات ۷/۵۲۰)

# الفصل الثاني

## د بدر په قيديانو کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زوم هم ؤ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾عَنْ | عَائِشَةَ | رَضِيَ | اللهُ | عَنْهَا | قَالَتْ: | لَمَّا | |

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې کله په جنګ بدر کې الله تعالى نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د

بَعَثَ أَهْلُ مَكَّةَ

مکې په کافرانو باندې غلبه او فتح ورکړه او په هغوى کې څه اوژلى شو او څه قيديان کړى شول او مدينې ته يې راوستل.

فِي فِدَاءِ أُسَرَائِهِمْ

او بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوى د ازادولو په بدل کې مال وغوښتلو نو د مکې والو د خپل قيديانو د ازادولو په بدل کې

بَعَثَتْ زَيْنَبُ فِي فِدَاءِ أَبِي الْعَاصِ

تاوان راولېږلو. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لور حضرت زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم د خپل خاوند ابو العاص د ازادولو په بدل کې

بِمَالٍ وَبَعَثَتْ فِيهِ بِقِلَادَةٍ لَهَا كَانَتْ عِنْدَ خَدِيجَةَ

څه مال ولېږلو. چې په کوم کې د هغې هغه امبيل هم ؤ چې کوم مخکې د خديجه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره ؤ او هغه

أَدْخَلَتْهَا بِهَا عَلَى أَبِي الْعَاصِ فَلَمَّا رَآهَا

هغې د ابو العاص زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د نکاح په وخت کې په مهر کې ورکړې ؤ. کله چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَقَّ

هغه امبيل وليدلو نو د زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لپاره په نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې هغه ډېر سخت ګران شو. يعنې هغه وخت کې

لَهَا رِقَّةً شَدِيدَةً

د خپلې لور زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د غريبې او د تنهائى احساس يې وکړو او د حضرت خديجه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رفاقت ياد و نه د تازه کېدلو په وجه

وَ قَالَ : إِنْ رَأَيْتُمْ

چې د هغې په غاړه ؤ، نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زړه راپورته شو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته وفرمايل چې که تاسو مناسبه ګنئ

أَنْ تُطْلِقُوا لَهَا أَسِيرَهَا

نو د زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خاطر د دې قيدي ابو العاص بغير د تاوان نه ازاد کړئ او زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د

| | | |
|---|---|---|
| وَتَرُدُّوا | عَلَيْهَا | الَّذِي |
| هغې تول شيان چې کوم هغې د ابو العاص د ازادولو لپاره رالېږلي دي بېرته ورولېږئ. صحابه کرامو رضي الله عنهم | | |
| لَهَا | فَقَالُوا: | نَعَمْ |
| عرض وکړو چې ډېره بهتره ده. مونږ زينب رضي الله عنها ته د هغې مال بېرته ورکوؤ او ابو العاص بغير د تاوان نه خلاصوْ. | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكَانَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | أَخَذَ | عَلَيْهِ |
| نو ابو العاص خلاص کړی شو. او د خلاصېدلو وخت کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ابو العاص سره دا عهد او وعده وکړه | | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| أَنْ | يُخَلِّيَ | سَبِيلَ |
| چې هغې ته د زينب رضي الله عنها په راتللو وخت کې مزاحمت نه کوي. يعنې نبي عليه السلام ابو العاص د خلاصولو وخت | | |
| زَيْنَبَ | إِلَيْهِ | وَبَعَثَ |
| کې هغه ته وويل چې دا پخه وعده وکړه چې مکې ته رسيدلو سره زينب رضي الله عنها ماته مدينې ته راولېږه او د هغې لاره به نه بندوې. | | |

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | زَيْدَ | بْنَ | حَارِثَةَ | وَرَجُلًا | مِنَ | الْأَنْصَارِ |
| او بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم زيد ابن حارثه رضي الله عنه او د انصارو نه يو کس مکې ته روان کړو او | | | | | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: كونا | ببطنِ | يأجج | حَتَّى | تَمُرَّ | بِكُمَا | زَيْنَبُ | |
| هغوی ته يې وويل چې تاسو په بطن ياجج کې هيسار شئ، کله چې زينب رضي الله عنها د مکې نه را روانه شي | | | | | | | |

فَتَصْحَبَاهَا حَتَّى تَأْتِيَا بِهَا. رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد[1]

او تاسو ته راورسېږي نو د هغې سره شئ او مدينې ته يې راولئ.

**توضيح:** **فداء ابي العاص:** ابو العاص د نبي کريم صلى الله عليه وسلم زوم ؤو. حضرت زينب رضي الله عنها د هغې په نکاح کې وه. حضرت ابو العاص يو ځل په جنګ بدر کې قيدي شوی ؤو. چې د فديې په ذريعه د قيديانو د خلاصېدلو عمل شروع شو نو حضرت زينب رضي الله عنها د خپل خاوند د راخلاصولو لپاره هغه امبيل راولېږلو چې د رخصتئ په وخت کې حضرت خديجه رضي الله عنها هغې ته ورکړی ؤو. نبي کريم صلى الله عليه وسلم چې هغه امبيل وليدلو نو پخوانئ دور ورته رایاد شو. نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندې ډېر زيات تکليف شو

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۷۰ أخرجه أبوداود في السنن ۱۴۰/۳ رقم الحديث ۲۶۹۲ وأحمد في المسند ۲۶۹/۶

او صحابه کرامو رَضِیَ اللهُ عَنهُم ته یې وویل چې که زماد لور امبیل هم بېرته ولېږئ او قیدي یې هم خلاص کړئ نو ښه به وي. صحابه کرامو رَضِیَ اللهُ عَنهُم دا خوښه کړه. نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ د ابوالعاص سره شرط کېښودلو چې زما لور مدینې ته راولېږه، نو ابوالعاص وفادارې وکړه او د بطن یا جج مقام باندې یې حضرت زینب رَضِیَ اللهُ عَنهَا دوه صحابوُ رَضِیَ اللهُ عَنهُم ته حواله کړه او صحابوُ هغه مدینې ته ولېږله. هغې کې یو د نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ د خولې ویلې شوی ځوي زید بن حارثه رَضِیَ اللهُ عَنهُ ؤو. د دې حدیث نه معلومه شوه چې دین یو مضبوط نظام دی او د دې خړوبولو لپاره لویې قربانۍ ورکړې شوې دي. (مرقات ۵۲۴/۷)

## قیدي وژل هم جائز دي

| | |
|---|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنهَا: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَمَّا | او حضرت عائشه رَضِیَ اللهُ عَنهَا روایت دی چې نبي عَلَیهِ السَّلَامُ د بد په جنګ کې د اسلام د مجاهدینو خلاف جنګ کونکو |
| أَسَرَ أَهلَ بَدرٍ قَتَلَ عُقبَةَ بنَ أَبِي مُعَيطٍ وَالنَّضرَ بنَ الحَارِثِ وَمَنَّ عَلَى أَبِي عَزَّةَ الجُمَحِيِّ. | کې چې کوم کافران نېولې ؤو، هغې کې یې عقبه ابن ابو معیط او نضر ابن حارث مړه کړه ابو عزة |
| رَوَاهُ فِي شَرحِ السنة وَالشَّافِعِيِّ وَابنُ إِسحَاق فِيالسِيرَة[1] | یې بغیر له تاوانه خلاص کړو او احسان مند یې کړو. |

**توضیح: قتل عقبة بن ابي معیط**: عقبه بن ابی معیط او نضر بن حارث دوه بد بخته ؤو چې نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ ته یې په مکه مکرمه کې سخت تکلیف رسولی ؤو. عقبه د اولنۍ درجې بیوقوفه او د ابو جهل یوه خاص د کار کاشوغه وه. ډېر ځله یې په نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ باندې لاس اوچت کړی ؤو او په بدن یې ورله ګند غورځولی ؤو. نن دا د بدر په قیدیانو کې ؤو او دا یې ویله چې د محمد صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ په سترګو کې ماته مرګ ښکاري. نضیر بن حارث د قرآن دښمن ؤو او قرآن پسې به یې توقې کولې، دواړه د ګیرولو نه وروسته ؤوژلې شول او دریم کس ابو عزه جمحي شاعر ؤو. نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ هغه په دې شرط ازاد کړو چې آینده به نه د مسلمانانو خلاف لاس استعمالوي او نه به ژبه استعمالوې. دا بد بخته بیا د اُحد په میدان کې راغلو او وروسته بیا ګیر شو او د ګیرېدلو نه وروسته بیا نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ د هغې د وژلو حکم ورکړو او ویې فرمایل چې مسلمان د یو سوري نه په دویم ځل نه شي چیچلی. (مرقات ۵۲۴/۷)

---

(۱) رقم الحدیث ۳۹۷۱ أخرجه البغوي في شرح السنة ۷۸/۱۱ رقم الحدیث ۲۷۱۱

﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَرَادَ قَتْلَ عُقْبَةَ بْنَ أَبِي مُعَيْطٍ

او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم کله د عقبه ابن معيط د وژلو

قَالَ: مَنْ لِلصِّبْيَةِ؟ قَالَ: النَّار. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

حکم ورکړو نو هغې وويل چې زما بچې به څوک ساتي؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل "اور"

## د بدر په قيديانو د الله تعالى ناراضتيا

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَنَّ جِبْرِيلَ

او حضرت علي کرم الله وجهه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوي چې حضرت جبرائيل علیه السلام

هَبَطَ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ: خَيِّرْهُمْ يَعْنِي أَصْحَابَكَ فِيْ أُسَارى بدر:

نبي کريم صلی الله علیه وسلم له راغلو او وې ويل چې د خپلو صحابؤ رضي الله عنهم ته د بدر د قيديانو باره کې اختيار ورکړه

القتلَ والفداءَ عَلَى أَنْ يُقْتَلَ مِنْهُمْ قَابِلًا

چې هغوی که دوی وژني يا يې فديه اخلي يعني مال ترېنه واخلي او پرې يې ږدي، خو د فديه اخستلو په صورت کې به بل کال به

مِثْلُهُمْ " قَالُوا الْفِدَاءَ

د دې صحابؤ همدومره کسان وژلی کېږي. صحابؤ اختيار اوربدلو سره عرض وکړو چې مونږ فديه اخستل

وَيُقْتَلَ مِنَّا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[2]

او د خپل اوياؤ (۷۰) کسانو د وژلو اختيار ورکوؤ.

**توضيح** القتل أوالفداء: بدر کې کوم خلک گير شوې ؤو هغه د مکې اويا (۷۰) سړې ؤو. چې هغه مشهوره کسان هم ؤو. نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته الله تعالى اختيار ورکړو چې که دا خلک وژني يا ترېنه فديه اخلې خو د فديې په صورت کې به بل کال له ستاسو اويا کسان وژلی کېږي. دې فيصله باندې نبي کريم صلی الله علیه وسلم صورت حال د صحابه کرامو مخې ته کېښودلو او خپله رائی يې دا ورکړه چې فديه اخستل بنه دي. صديق اکبر رضي الله عنه هم فديه اخستل غوره وګڼله چې اوس مهال په فديې سره د جهاد ميدان مستحکم شي، باقې خو مونږ د شهادت لټونکې يو. که زمونږ کسان بل کال

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۷۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۳۵/۳ رقم الحديث ۲۶۸۶

([2]) رقم الحديث ۳۹۷۳ أخرجه الترمذي في السنن ۱۱۴/۴ رقم الحديث ۱۵۶۷

له شهيدان شي نو هيڅه باک نه کوي. د عام صحابه کرامو رضي الله عنهم هم دغه رائې وه. صرف د حضرت عمر رضي الله عنه او د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه رائې دا وه چې دا د قريشو سرداران دي. فديه اخستل پکار نه ده بلکې وژل يې پکار دي. بهرحال فيصله د نبي کريم صلى الله عليه وسلم او د عام صحابه کرامو رضي الله عنهم د رائې مطابق وشوه، نو دې باندې د الله له اړخه ډېر سخت وعيد راغلو. نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې تر دې بوټي پورې عذاب راورسيدلو. که عذاب الهي راغلى وى نو د عمرا و د سعد نه بغير به هيڅ نه وى بچ شوى. اوس پوښتنه دا ده چې مسلمانانو ته په دواړو شيانو کې يو شې د اختيارولو اختيار ؤو، نو بيا دا وعيد او رټنه ولې راغله؟ د دې جواب دا دى چې دا اختيار هم د امتحان په توګه ؤو. الله په نزد فديه اخستل نه ؤو. چې کافر ؤوژلى شي، په دې وجه رټنه راغله.

## د قيدانو په عمر کې تحقيق او څېړنه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾ | عَنْ | عَطِيَّةَ | الْقُرَظِيِّ | قَالَ: | كُنْتُ | فِي | سَبْيِ قُرَيْظَةَ |
| او حضرت عطيه قرظى فرمايي چې د بنو قريظه کوم خلک قيديان شوي ؤو هغې کې زه هم ؤم. مونږ د | | | | | | | |
| عُرِضْنَا | عَلَى | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | |
| نبي کريم صلى الله عليه وسلم مخې ته وړاندې کړى شول. هغه[...] صحابه کرامو رضي الله عنهم دا طريقه اختيار کړه چې قيديانو | | | | | | | |
| فَكَانُوا | يَنْظُرُونَ | فَمَنْ | أَنْبَتَ | | | | |
| کې چې کوم د کم عمر والا ؤو، د هغوى نامه لاندې ويختان به يې پرانستل او کتل به يې. د کومو چې د نامه لاندې ويختان | | | | | | | |
| الشَّعَرَ | قُتِلَ | وَمَنْ | | | | | |
| راغټ شوي ؤو هغوى يې وژل، ځکه د نامه لاندې ويختان راښتل د بلوغت علامه ده. لهذا داسې کس به د | | | | | | | |
| لَمْ | يُنْبِتْ | لَمْ | يُقْتَلْ | | | | |
| مسلمانانو سره جنګ کونکى شمارل کېدو. او د کومو به چې د نامه لاندې ويختان نه ؤو راغټ شوي هغوى به يې نه وژل، | | | | | | | |
| فَكَشَفُوا | عَانَتِي | فَوَجَدُوهَا | | | | | |
| ځکه هغوى به يې په ذريت يعنې ماشومانو کې شمارل، نو زما د نامه لاندې ويختان هم پرانستلى | | | | | | | |
| لَمْ | تُنْبِتْ | فَجَعَلُونِي | فِي | السَّبْيِ. | رَوَاهُ أَبُو دَاوُد | وَابْنُ مَاجَه. | والدارمي[1] |
| شول او چې راغټ شوې ويختان په کې ونه موندلى شول نو زه يې په قيديانو کې ژوندى پرېښودم. | | | | | | | |

(1) رقم الحديث ۳۹۷۴ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۵۶۱ رقم الحديث ۴۴۰۴ والترمذي في ۴/۱۲۳ رقم الحديث ۱۵۸۴

**توضیح** : **القرظي**: دا د نبو قریظه اړخ ته نسبت دی. حضرت عطیه ته الله د اسلام توفیق ورکړو او اوس هغه په آخرت کې مزې کوي او په دنیا کې د مسلمانانو لپاره شیخ الحدیث جوړ شو. صحابه د نامه لاندې ویختان د بلوغت علامه ګڼلې ده. فقهاؤ هم دا د بلوغت علامه ګڼلې ده. (مرقات ۵۳۰/۷)

## یو مسلمان کافر ته په لاس ورکول حرام دي

﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: خَرَجَ عِبْدَانٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د صلح حديبيه په ورځ د مسلمانانو او د کفارو په مينځ کې

يَعْنِي الْحُدَيْبِيَةَ قَبْلَ الصُّلْحِ

معاهده د ليکلو نه مخکې څه غلامان د مکې نه راغلل او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شول.

فَكَتَبَ إِلَيْهِ مَوَالِيهِمْ قَالُوا: يَا مُحَمَّدُ وَاللهِ

د هغې مالکانو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خط وليکلو چې اى محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! قسم په خداى چې

مَا خَرَجُوا إِلَيْكَ رَغْبَةً فِي دِينِكَ وَإِنَّمَا

دا غلامان د دې لپاره تا ته نه دي راغلې دوى ستا د دين اړخ ته رغبت لري بلکې دا د غلامۍ نه

خَرَجُوا هَرَبًا مِنَ الرِّقِّ.

خلاصون په غرض تښتېدلې دي. کله چې په صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ چې څه خلکو دا خط وليدلو نو

فَقَالَ نَاسٌ: صَدَقُوا يَا رَسُولَ اللهِ

عرض يې وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! د هغوى مالکانو بالکل صحيح ويلې دي. ته دا

رُدَّهُمْ إِلَيْهِمْ فَغَضِبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ:

غلامان د هغوى مالکانو ته بېرته ولېږه. دې او رېدلو سره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غُصه شو او ويې فرمايل

مَا أُرَاكُمْ تنتهون يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ حَتَّى

چې اى د قريش والو! زه وينم چې تاسو به د خپلې سرکشۍ او نافرمانۍ نه لرې نه شئ تر هغه وخته

يَبْعَثَ اللهُ عَلَيْكُمْ مَنْ يَضْرِبُ رِقَابَكُمْ عَلَى هٰذَا

چې الله په تاسو داسې کس مسلط نه کړي چې د ستاسو د خوښې فيصلې باندې ستاسو څټو والوځي.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَبَى | أَنْ | يَرُدَّهُمْ | وَقَالَ: | هُمْ | عُتَقَاءَ | اللهِ. | رَوَاهُ | أَبُودَاوُد[1] |
| یا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غلامانو د بېرته لېږلو مطالبه رد کړه او ویې فرمایل چې د الله تعالی له اړخه ازاد شوي دي. | | | | | | | | |

**توضیح**: فغضب: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه غُصه شو چې دا غلام خالص مسلمانان ؤ او خلکو مطالبه کوله چې دا هغه خپلو زړو مالکانو ته حواله کړه او د ازادېدلو نه وروسته دې هغه بیا غلامان شي. (مرقات ۷/۵۳۰)

# الفصل الثالث

## په یوې بې غورئ سره د ټولو لپاره مصیبت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۷﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى | | | | |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بنی | | | | |
| بَنِي | جَذِيمَةَ | فَدَعَاهُمْ | إِلَى | الْإِسْلَامِ |
| جذیمه قبیلې ته ولېږلو. خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی ته د اسلام دعوت ورکړو. هغه خلکو د اضطراب او وارخطایي په حالت | | | | |
| فَلَمْ | يُحْسِنُوا | أَنْ | يَقُولُوا: | أَسْلَمْنَا |
| کې په ښه ډول دا ونه ویلی شو چې مونږ اسلام راوړی دی یعني په خپلو ژبو سره یې د اسلام کلمه پوره ادا نه کړی شوه. | | | | |
| فَجَعَلُوا | يَقُولُونَ: | صَبَأْنَا | صَبَأْنَا | |
| بلکې هغوی دا وویل چې صبأنا صبأنا یعنې مونږ دین پرېښودلو یا خپل دین مو پرېښودلو. | | | | |
| فجعلَ | خالدٌ | يقتلُ | ويأسِرُ | |
| خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د هغوی د ژبو نه دا واورېدلو نو د هغوی د ځینو وژل او د ځینو قیدیان یې شروع کړه او بیا | | | | |
| وَدَفَعَ | إِلَى | كُلِّ | رَجُلٍ | مِنَّا | أَسِيرَهُ |
| مونږ چې کوم خلک د هغې سره ؤو. مونږ ته یې د هغوی نه هر یو ته قیدي راکړو یعني کوم خلک چې قیدیان شوي ؤو. | | | | |
| حَتَّى | إِذَا | كَانَ | يَوْمٌ | أَمَرَ |
| په مونږ ته یې تقسیم کړل او یو یو قیدي یې هر یو ته ورکړو او دا حکم یې وکړو چې مونږ تر هغه وخت پورې د هغه قیدیانو حفاظت | | | | |

[1]) رقم الحديث ۳۹۷۵ أخرجه أبوداود في السنن ۳/۱۴۸ رقم الحديث ۲۷۰۰

| | | |
|---|---|---|
| خَالِدٌ | أَنْ | يَقْتُلَ |
| وكړو چې تر څو پورې د هغې وژلو حكم ونه كړي شي، نو كله چې هغه ورځ راغله چې كومه كې خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قيديانو | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| كُلُّ | رَجُلٍ | مِنَّا | أَسِيرَهُ |
| د وژلو فيصله كړې وه، نو هغې مونږ ته حكم وكړو چې مونږ هريو كس خپل قيدي مړ كړو. دې حكم اوريدلو | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقُلْتُ: وَاللهِ | لَا | أَقْتُلُ | أَسِيرِي | وَلَا | يَقْتُلُ | رَجُلٌ | مِنْ | أَصْحَابِي |
| سره ما وويل چې په خداى قسم زه خو خپل قيدي نه وژنم او زما ملګرو كې به هم هيڅ يو كس خپل | | | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| أسيره | حَتَّى | قدمنا |
| قيدي نه وژني. بلكې مونږ خپل قيديان تر هغه وخت پورې په حفاظت كې ساتو چې تر څو پورې مونږ ته | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | النَّبِي | صلى | الله | عَلَيْهِ | وَسلم |
| دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ له اړخه نه حكم نه وې شوى او د دې باره كې يو آخري حكم حاصل نه كړو. مونږ خپل خپل قيديان خپل حفاظت | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| فذكرناهُ | فَرَفَعَ | يَدَيْهِ |
| كې وساتل تر دې چې مونږ دنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت كې حاضر شو او ټوله واقعه مو بيان كړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې اوريدلو سره دواړه | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | اللَّهُمَّ | أَنِّي | أَبْرَأُ | إِلَيْكَ |
| لاسونه اوچت كړل چې اى الله! زه ستا په دركې د خالد د عمل نه د خپلې بيزارئ او د بې رضايئ اظهار كوم. | | | | |

| |
|---|
| مِمَّا صنعَ خالدٌ مرَّتين. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا الفاظ دوه ځل وويل. |

**توضيح**: صبأنا صبأنا: دا د اسلام قبولو يو تعبير ؤو. دې باره كې صحابه كرامو او خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خيال ونه كړو چې دا خلك په اسلام كې د دخليدلو په غرض دا الفاظ وايي. دې وجه ځينې صحابه كرامو د خپل قيديان د ازادولو په ځاى مره كړل. دې بانديې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاسونه اوچت كړل او د خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې كار نه يې برأت اعلان كړو. علماؤ ليكلې دي چې د وينې غورځولو په سلسله كې په مبهم الفاظو باندې كله هم عمل كول پكار نه دى. (مرقات ۵۳۱/۷)

(۱) رقم الحديث ۳۹۷۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳. ۱۸۱ رقم الحديث ۷۱۷۹ وأحمد في المسند ۱۵۱/۲

# باب الامان

## دامان ورکولو بيان

قَالَ اللهُ تعالى: وَاِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ فَاَجِرْهُ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ (سورة التوبة:٦)

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَن أم هَانِئٍ بنت أَبِي طالب قالتْ: ذهبتُ إلى رسولِ الله عَامَ الْفَتْحِ |
| ام هاني رضي الله عنها بنت ابی طالب وائی دمکې د فتح په موقع زه د نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضره شوم |
| فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَفَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ بِثَوْبٍ |
| نبی صلی الله علیه وسلم هغه وخت غسل کولو او د نبی علیه السلام لور فاطمه رضی الله عنها په کپړې سره د نبی علیه السلام پرده کړې وه |
| فَسَلَّمْتُ فَقَالَ: «مَنْ هَذِهِ؟» فَقُلْتُ: أَنَا أُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ أَبِي طَالِبٍ فَقَالَ: |
| ما سلام اوکړو نبی علیه السلام تپوس اوکړو څوک ده ما عرض اوکړو زه ام هاني بنت ابو طالب یم نبی علیه السلام او فرمائیل |
| «مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ» فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهِ قَامَ فَصَلَّى |
| ام هاني خوش آمدید کله چه نبی علیه السلام د غسل نه فارغ شو نو د بدن مبارک نه ئې کپړه تاؤ کړه او درد او د څاښت د مونځ |
| ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِي ثَوْبٍ ثُمَّ انْصَرَفَ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ زَعَمَ |
| اته رکعته ئې اوکړل کله چه د مونځ نه فارغ شو نو ما عرض اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم زما د مور |
| ابْنُ أُمِّي عَلِيٌّ أَنَّهُ قَاتِلٌ رَجُلًا أَجَرْتُهُ |
| ځوې یعنی د حضرت علی رضی الله عنه ګمان دې چه هغه د هغه سړی قتلونکې دې کوم ته چې ما په خپل کور کې پناه |
| فُلَانَ بْنَ هُبَيْرَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «قَدْ أَجَرْنَا |
| کورکې پناه ورکړې ده یعنی فلانې سړې چه د هبیره ځوې دې نو نبی علیه السلام او فرمائیل اې ام هاني! |
| مَنْ أَجَرْتِ يَا أم هَانِئٍ» قَالَت أُمُّ هَانِئٍ وَذَلِكَ ضُحًى. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| چاته چه تا پناه ورکړې ده ګویا هغه ته مونږ پناه ورکړې ده ام هاني رضی الله عنها وائی چه دا واقعه د څاښت د وخت ده |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ: قَالَتْ: أَجَرْتُ رَجُلَيْنِ مِنْ أَحْمَائِي |
| او د ترمذی په روایت کې داسې دی چې ام هاني رضی الله عنها نبی علیه السلام ته عرض اوکړو ما دوؤ سړو ته پناه ورکړې ده |

| |
|---|
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «قد أمنا من أمنت»[1] |
| چه زما د خاوند رشته دار دى نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ او فرمائيل زمونږ د طرف نه هغه سړي په امان دې چا ته چه تا امان ورکړې دې. |

**توضيح** : **يغتسل** :نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ د فتح مكې په موقع باندې د وادى محصب سره يو ځاې باندې دخپل اوسيدو دپاره يوه خيمه لګولې وه او هم هلته ئې خپله جهنډا خخه کړې وه په دغه ځاې باندې نن سبا يو جمات موجود دې چه نوم ئې مسجد رايه دې کوم چه د چهپره بازار په آخره کې دې نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ په دې ځاې کې غسل فرمائيلې وو چرته چه ام هانى رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راغلې وه. د ام هانى اصل نوم فاخته يا عاتکه وو. د نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ د تره ابو طالب لور وه. دهغې د خاوند هبيره وو. د فتح مكې په ورځ نبى عَلَيْهِ السَّلَامُ د عامې معافئ اعلان کړې وو مګر دا شرط ئې کيخودې وو چه څوک وسله او غورزوى يا دکور دروازه بنده کړى يا په حرم کې يا مسجد حرام کې داخل شى يا د ابو سفيان په کور کې داخل شى هغه په امن کې دې. حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چه کله د خپلې خور ام هانى رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کور کې داخل شو نو هلته يو سړې ملاؤ شو. حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خيال اوکړو چه لکه دې سړى ته امن حاصل نه دې. لهذا هغه ئې قتلول غوښتل حضرت ام هانى رَضِيَ اللهُ عَنْهَا رامخې ته شوه مګر حضرت على په سخت غصه کې وو. ام هانى رامنډه کړه او نبى عليه السلام له راغله او امن ئې حاصل کړو. نبى عليه السلام امن ورکړو. ام هانى حضرت على ته ابن امى د شفقت په وجه او وئيلو ځکه چه د مور مينه زياتوى. د فلان بن هبيره نه هم دغه سړې مراد دې چه د هبيره ځوې وو په تفصيلى روايت کې دى چه دا دوه سړى وو چه دهبيره رشته دار وو کيدې شى يو ئې ځوې وى دويم بل څوک وى. (مرقات ۵۳۲،۵۳۳/۸)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د ښځې د عهد و امان لحاظ ساتل په مسلمانانو باندې لازم دى

| |
|---|
| ﴿۲﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ الْمَرْأَةَ لَتَأْخُذُ لِلْقَوْمِ» |
| حضرت ابو هريره نه روايت دې چه نبى عليه السلام او فرمائيل ښځه د يو قوم دپاره عهد اخستې |
| يَعْنِي تُجِيرُ على الْمُسلمين. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2] |
| شى. يعنى هغه د مسلمانانو د طرف نه پناه ورکولې شى. (ترمذى) |

**توضيح** : يعنى کم نه کم د بې نامې سړى تردې چه که ښځه هم په جنګ کې يو کافر ته پناه ورکړى نو

---

(1) رقم الحديث ۳۹۷۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۷۳/۶ رقم الحديث ۳۱۷۱ ومسلم في ۴۹۸/۱ رقم الحديث ۳۳۶/۸۲.

(2) رقم الحديث ۳۹۷۸ أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۰/۴ رقم الحدث ۱۵۷۹.

په ټولو مسلمانانو باندې لازم دی چه هغوی د دغه ښځې د عهد او امان حفاظت او خیال اوساتی او غداری اونه کړی مسلمانانو له سوچ کول پکار دی دا د اسلام حکم دې په دې باندې مسلمانان ولې عمل نه کوی په وزیرستان کې نن صبا په زرګونو مسلمانان یو ځو مهاجرینو ته امن ورکړې دې کوم چه خالص مسلمانان دی مګر د پاکستان ملحد حکومت په هغوی باندې بمباری کوی او دغه امن ماتوی او دغدارئ مرتکب کیږی. (مرقات ۵۳۲/۸)

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَمِقِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: «من أَمَّنَ رَجُلًا |
| او عمرو بن حمق وائي چه د نبی علیه السلام نه وا وریدل کوم سړې چه چاته د سر امان ورکړی |
| عَلَى نَفْسِهِ فَقَتَلَهُ أُعْطِيَ لِوَاءَ الْغَدْرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» . رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ[1] |
| اوبیا هغه قتل کړی نو د قیامت په ورځ به هغه ته د بدعهدئ ښنبه ورکولې شی (شرح السنة) |

**توضیح**: یعنی په عرصاتو د قیامت کې به مشهورولې شی چه فلانکی سړی غداری کړې وه په دې شهرت سره به د دغه سړی تذلیل او سپکاوې کیږی. خلقو ته به وئیلې شی چه او ګورئ دا سړې څومره ذلیل دې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ سُلَيْمِ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: كَانَ بَيْنَ مُعَاوِيَةَ وَبَيْنَ الرُّومِ عَهْدٌ | | | | | | |
| او سلیم ابن عامر تابعی رحمه الله وائی چه د امیر معاویه او رومیانو په مینځ کې دا معاهده شوې وه چې | | | | | | |
| وَكَانَ | يَسِيرُ | نَحْوَ | بِلَادِهِمْ | حَتَّى | إِذَا | |
| دومرې ورځې به یو بل سره جنګ نه کوی. او حضرت معاویه رضی الله عنه به د دې وعدې به زمانه کې د رومیانو په ښارونو کې | | | | | | |
| انْقَضَى | الْعَهْدُ | أَغَارَ | عَلَيْهِمْ | | | |
| ګشت کولو او د حالاتو اندازه به اخستله چې کله د وعدې موده تیره شی نو په هغه ورځ به په رومیانو باندې یو ځل حمله او کړی | | | | | | |
| فَجَاءَ | رَجُلٌ | عَلَى | فَرَسٍ | أَوْ | بِرْذَوْنٍ | |
| امیر معاویه رضی الله عنه خپل لښکر والو سره د رومیانو په ښار کې ګرځیدې یو سړې عربی یا ترکی اس باندې سور یدو سره راغلو | | | | | | |
| وَهُوَ | يَقُولُ: | اللهُ | أَكْبَرُ | اللهُ | أَكْبَرُ | . وَفَاءٌ |
| چې الله اکبر الله اکبر د وفا حاساتی نه چې د بدعهدې یعنی تاسو باندې معاهده پوره کول لازم دی نه چې تاسو د معاهدې خلاف | | | | | | |
| لَا | غدر | فنظر | فإذا | هُوَ | | |
| ورزی کوی ګویا هغه داواضحه کړه چې تاسو خلق د وعدې د پاسدارې لحاظ سا تلو علامه منده بلکه دا وعده شکنی او د وعدې د | | | | | | |

(۱) رقم الحديث ۳۹۷۹ أخرجه ابن ماجه في السنن ۸۹۶/۲ رقم الحديث ۲۶۸۸ وأحمد في المسند ۲۲۳/۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَمْرو | ابْن | عَبَسَةَ | فَسَأَلَهُ |

خلاف ورزي حکم کې داخل دی هر کله چه خلقو ولیدل نو معلومه شوه چې دا سړی یو صحابی حضرت عمرو بن عبسه رضي الله عنه دي،

| | | | |
|---|---|---|---|
| مُعَاوِيَةُ | عَنْ | ذَلِكَ | فَقَالَ: |

حضرت معاویه رضي الله عنه د هغه نه دا تپوس اوکړو چه د رومیانو په ښارونو کې ګرځیدل د عهد شکنۍ برابر څنګه دی هغه او ویل

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَوْمٍ

ما د نبي عليه السلام نه اوريدلي دي د کوم سړي او کوم قوم په مينځ کې چه وعده وي نو هغه ته پکار دي چې هغه خپل وعده ماته کړي او

عَهْدٌ فَلَا يَحُلَّنَّ

نه ئې بدله کړي تر دې چې د هغه موده تیره شي یا هغوی خبر ولو سره د برابرۍ په بنیاد خپله وعده ماته کړي یعني د هغه وعدې خلاف

| | | |
|---|---|---|
| عَهْدًا | وَلَا | يَشُدَّنَّهُ |

کول یا خو په هغه صورت کې جائز دی هر کله چې د وعدې وخت ختم شوې وي یا په هغه صورت کې جائز دې هر کله چې د څه مجبورۍ

| | | |
|---|---|---|
| حَتَّى | يَنْقَضِيَ | أَمَدُهُ |

یا مصلحت په بناء د مودې په دوران کې وعده اتول ضرور شوې وي او مخالف فریق د مخکې نه خبردار شوې وي چې زمونږ

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَوْ | يَنْبِذَ | إِلَيْهِمْ | عَلَى |

او ستاسو په مینځ کې کومه وعده شوې وه مونږ هغه ماتوو او س مونږ او تاسو دواړه برابر یو چې د چا څه مرضي وي هغه دې او کړي

| | | |
|---|---|---|
| سَوَاءٍ» . | قَالَ: | فَرَجَعَ |

د حدیث راوی مسلم ابن عامر وائي امیر معاویه رضي الله عنه د حضرت ابن عبسه رضي الله عنه دا خبره او د

مُعَاوِيَةُ بِالنَّاسِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[1]

حضور صلى الله عليه وسلم د حدیث په اوریدو سره خپلو خلقو سره د رومیانو د ښار نه خپل کمپ ته واپس راغلو،

**توضیح**: **یسیر** حضرت معاویه رضي الله عنه د معاهدې په دوران کې حمله نه کول غوښتل بلکه هغوی دا سوچ اوکړو چې کله د معاهدې موده ختمه شي نو د حملې کلوو دپاره به فوج تیار شي په دې غرض هغه اسلامي فوجونه د روم سرحد ته رسول غوښتل حضرت معاویه رضي الله عنه دا تیاری کوله

---

(1) رقم الحديث ۳۹۸۰ أخرجه أبوداود في السنن ۱۹۰/۳ رقم الحديث ۲۷۵۹ والترمذي في ۱۲۱/۴ رقم الحديث ۱۵۸۰

چې یو صحابي په عربي اس یا ترکي اس باندې راغلو او وې فرمائیل چه وفاداري کوئ غداري مه کوئ یعنی یا دموده پوره کیدو نه پس فوج روان کړئ او یا په وجه د مصلحت د معاهدې د ختمولو واضح علان او کړې دې د پاره چه دښمن ناخبره پاتې نه شي.

**ینبذ الیهم علی سواء** : هم دغه مطلب دې حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حدیث اوریدو سره فوجونه واپس کړل سبحان الله ددین یوې خبرې څومره خیال ساتل وو، ددې حدیث ترجمه او مطلب صاحب مظاهرحق جدید صحیح نه دې لیکلې خیال کول پکار دی. (مرقات ۸/۵۳۶،۵۳۵)

**فلا یحلن** یعنی معاهده دې نه ماتوي او غداري دې نه کوي. (مرقات ۸/۵۳۵)

**ولا یشدنه** : مطلب دا دې چې په معاهده کې دې څه تغیر نه کوي که دنوې معاهده سره ولې نه وي دا ئې د مبالغې په توګه او فرمائیل چه په معاهده کښې دې څه تغیر نه کوي ګني د تجدید د معاهدې ممانعت نشته دې . **فرس** : عربي اس برذون ترکي اس (مرقات ۸/۵۳۶).

## دوعدې پوره کولو اهمیت

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَن أَبِي رافِعٍ قَالَ: بعثَنِي قُرَيْشٌ إِلَى رَسُولِ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي د صلح حدیبیه په مقام د قریشو کفارو زه خپل قاصد جوړ ولو سره د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې |
| فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُولَ الله صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُلْقِيَ فِي قَلْبِيَ الْإِسْلَامُ |
| ولیږلم هر کله چې زما نظر په نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولګید لو نو بې اختیاره زما په زړه کې د اسلام صداقت او حقانیت ځای اوکړلو |
| فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ الله إِنِّي وَالله لَا أَرْجِعُ إِلَيْهِمْ أَبَدًا قَالَ: |
| ما عرض او کړو یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه به او س هیڅ کله دې د قریشو کفارو ته واپس نشم نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل |
| «إِنِّي لَا أَخِيسُ بِالْعَهْدِ وَلَا أَحْبِسُ الْبُرُدَ وَلَكِنِ ارْجِعْ فَإِنْ كَانَ فِي نَفْسِكَ |
| زه نه خو وعده ماتوم او نه قاصدان بندوم البته او س ته واپس لاړ شه که ستا په زړه کې هغه څیز یعنی اسلام قائم وي |
| الَّذِي فِي نَفْسِكَ الْآنَ فَارْجِعْ». |
| کوم چه دا وخت دې نو بیا ماته راشه حضرت ابو رفع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حکم مطابق زه مکې ته واپس لاړم |

| |
|---|
| قَالَ: فَذَهَبْتُ ثُمَّ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم فَأَسْلمت. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| او بیا د نبی صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو اسلام مې قبول کړو یعنی دخپل اسلام مې اعلان او کړو. (ابو داود) |

**توضیح**: لاأخیس: خاس یخیس د معاهدې ماتولو په معنې کې دې ای لاأنقض العهد (مرقات ۵۳۷/۸).

**البرد**: دا د برید جمع ده ډاک او پیغام اوړونکې او راوړونکې قاصد ته وائی. (مرقات ۵۳۷/۸) علامه طیبی رحمه الله لیکی چه برید په اصل کې قچرته وئیلې شو دا لفظ په اصل کې بریده دم وو کوم چه د فارسئ لفظ دې یعنی هغه قچر د کوم د لکئ ویښته چې پرې کړې شوې وی. د داسې قچر د لکئ نه به اوږده ویښته پرې کولې شو بیا عربو دا مخفف کړو نو برید شو بیا ددې اطلاق د قچر په سوریدونکی باندې اوشو. بیا برید په هغه مسافت باندې وئیلې شو کوم چه د اس د منډې په مقدار وو چه دولس میله پورې به وو. پخوانئ رمانه کې د ډاک او پیغام اوړلو راوړلو یو عجیبه تیز نظام وو هغه به داسې وو چه په هر برید باندې ښه تازه اس ولاړ وو. مثلاً د لاهور نه دهلی پورې د مغل بادشاهانو په زمانه کې په هر برید باندې اسونه وو. دولس میله پورې اس د ښه تیز ګاډی په شان منډې وهی بیا ستړې کیږی. د یو برید پورې چه به دغه اس منډه وهله نو دیو برید نه پس دا اس پاتې کیدو او دهغه ځای نه به تازه دم اس سامان اخستلو او روانیدلو به دویم برید ته رسیدو سره به اودریدو دهغه ځای نه به بل اس روانیدو. نو د سحر د وخت تماتر به د لاهور نه د ماښام کیدو نه وړاندې دهلی ته رسیدل او هغه ځای نه به لاهور ته سامان راتلو. د ډاک نظام به هم دغه شان چلیدلو (الکاشف ۲۶/۷، ۲۵)

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ نُعَيْمِ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلَيْنِ |
| او نُعیم ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دې رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ هغه دوو سړو ته وفرمائیل کوم چې |
| جَاءَ مِنْ عِنْدِ مُسَيْلِمَةَ: «أَمَا وَاللهِ لَوْلَا أَنَّ الرُّسُلَ لَا تُقْتَلُ |
| د مسیلمه سره راغلې وو چې یاد لرئ قسم په خدای که د قاصد قتلول شرعی طور سره ممنوع نه وې |
| لَضَرَبْتُ أَعْنَاقَكُمَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُد[2] |
| نو ما به ستاسو څټونه الوزولې وې. |

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۸۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۹/۳ رقم الحديث ۲۷۵۸ وأحمد في المسند ۸/۶.

([2]) رقم الحديث ۳۹۸۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۹۱/۴ رقم الحديث ۲۷۶۱ وأحمد في المسند ۴۸۷/۳.

**توضیح**: **لرجلین**: دا دوه قاصدان وو دیو نوم عبدالله بن نواحه وو او دبل نوم ابن اثال وو لکه چه په حدیث نمبر ۸ کې راځی. (مرقات: ۵۳۸/۸)

**مسیلمه**: داسړي مسیلمه کذاب وو چه د نبی ﷺ د وصال نه پس ئې دنبوت دعوی کړې وه. بلکه د نبی پاک صلی الله علیه وسلم په اخری عمر کې ئې دعوی کړې وه، نبی پاک ﷺ له په یو وفدکې دې هم راغلې وو مګر ملاقات ئې نه دې کړې. ده نبی پاک ﷺ ته یو خط لیکلې وو، نبی پاک ﷺ په جواب کې الی **مسیلة الکذاب** لیکلې وو، هم په دې سره کذاب مشهور شو حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه چه د مرتدینو خلاف کوم جنګونه کړې وو په هغې کې زیات جنګونه هم دې مسیلمه کذاب سره شوې وو. حضرت خالدرضی الله عنه په ده باندې حمله اوکړه مسیلمه کذاب سره ځلویښت زره طاقتور فوج وو. د یمامه به جنګ کې په یو قلعه کې لاس په لاس جنګ اوشو په ګنړ شمیر صحابه کرام رضی الله عنهم شهیدان شول. وحشی بن حرب رضی الله عنه په مسیلمه کذاب باندې حمله اوکړه او قتل ئې کړو. دغه وخت د مسیلمه کذاب عمر ۱۲۰ کاله وو چرته چه دا جنګ اوشو د اکثرو مړو د وجې نه د دغه ځای نوم **حدیقة الموت** مشهور شوې وو.

**الرسل**: قاصد چه څنګه پیغام راوړی هم هغه شان واپس پیغام اوړی هم په دې وجه دا په خپل مینځ کې د رابطې او د مذاکراتو واحد ذریعه وی. کوم چه د طرفینو په مفاد کې وی. په دې وجه په بین الاقوامی طور باندې د قاصدانو احترام کولې شی او د دوی قتل نه شی کولې. د اسلام قانون هم دغه دې لیکن صبا چه کوم سفیران وی دا صرف جاسوسان وی مګر نوم ئې د قاصد او سفیر دې.

**اعناقکما**: یعنی د نبی پاک ﷺ په وړاندې دې د واړو قاصدانو د مسیلمه کذاب د نبوت ګواهی ورکړه په دې وجه واجب القتل وو خو که قاصدان نه وې. (مرقات ۵۳۸/۸)

## د اسلام ضابطه مکمل او کافی ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |
| او عمروبن شعیب خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوی چه نبی کریم ﷺ یوه ورځ د | | | | | |
| قَالَ | فِي | خُطْبَةٍ: | «أَوْفُوا | بِحِلْفِ | الْجَاهِلِيَّةِ |
| خپلې خطبې په دوران کې دا وفرمایل چې تاسو د زمانه جاهلیت قسم پوره کوې ځکه چې هغه یعنی | | | | | |
| فَإِنَّهُ | لَا | يَزِيدُ | يَعْنِي | الْإِسْلَامَ | إِلَّا شِدَّةً |
| یعنی اسلام هغه قسم زیات مضبوطوی مطلب دادې چې خپل قسم او خپله وعده پوره کول په اسلام کې ډیر زیات ضروری دی | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا | تُحْدِثُوا | حِلْفًا | فِي | الإِسلامِ». |
| ددې په اعتبار سره اسلامی احکام او وعده پوره کول او حلف کې څه قضاء نشته او په اسلام کې حلف یعنی قسم تړون مه ورکوئ. | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَوَاهُ | الترمذيُّ | من | طريقِ | ابنِ | ذَكْوَانَ | عَنْ | عَمْرٍو |
| امام ترمذی رحمه الله دا حديث د حسين ابن ذكوان په سند سره بروايت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نقل كړى دى | | | | | | | |

| |
|---|
| وَقَالَ: حَسَنٌ وَذَكَرَ حَدِيثَ عليٍّ: «المسلمونَ تَتَكَافَأُ» فِي «كتاب القِصاص»[1] |
| او ويلي ئي دي چې دا حديث حسن دي او د علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت المسلمون تتكافأ دمائهم په كتاب القصاص كې ذكر شوي دى. |

**توضيح**: أوفوا: يعنى د جاهليت په زمانه كې چه كومه معاهدې شوې دى د هغې خيال او ساتئ اسلام هغه نه ماتوى بلكه نور يې مضبوط او مستحكم كوى خو په دې كې به هغه ټولو قواعدو ته كتلې شى چې د اسلام د قواعدو مطابق وى د اسلام مخالف قواعد به په ځاې نه شى ساتلې. (مرقات ۵۳۸/۸)

ولاتحدثوا: يعنى د ميراث دا حكاماتو د نافذ كيدو نه پس د بل څه نوې معاهدې ضرورت نشته چه څوك چالره خپل وارث جوړولو معاهده اوكړى ځكه چه كوم حقوق اسلام وركړى دى ميراث هغه متعين كړې دى. (مرقات ۵۳۹/۸)

## الْفَصْلُ الثَّالِث

## د مسيلمه كذاب دوه قاصدان

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾عَنِ | ابْنِ | مَسْعُودٍ | قَالَ: | جَاءَ | ابْنُ | النَّوَّاحَةِ | وَابْنُ | أُثَالٍ | رَسُولَا مُسَيْلِمَةَ |
| ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وائى چې مسيلمه كذاب د نبوت مدعى دوه قاصدان ابن نواحه او ابن اثال د | | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | النَّبِيِّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَ لَهُمَا: |
| نبى كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې حاضر شو نبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوى ته او فرمايل آيا تاسو ددې حقيقت | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| «أَتَشْهَدَانِ | أَنِّي | رَسُولُ | الله؟» | فَقَالَا: | نَشْهَدُ | أَنَّ | مُسَيْلِمَةَ رَسُولَ الله |
| ګواهي وركوې چې زه د الله رسول يم هغه دواړو ويل نه بلكه مونږ ددې ګواهي وركوو چې مسيلمه د خداې رسول دې | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | الله | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | «آمَنْتُ | بِالله وَرَسُولِهِ |
| نبى كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې اوريدو سره او فرمائيل ما په الله او د هغه په رسول ايمان راوړې دې كه | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۳۹۸۳ اخرجه الترمذي في السنن ۱۲۴/۴ رقم الحديث ۱۵۸۵ وأحمد في المسند ۲۱۳/۳

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَوْ | كُنْتُ | قَاتِلًا | رَسُولًا | لَقَتَلْتُكُمَا». | قَالَ |
| زه د قاصدانو او استازو قتلونکې وې نو یقینًا ما به تاسو دواړه قتل کړې وې عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائی د نبی عَلَيْهِ السَّلَام د دې | | | | | |
| عَبْدُ | الله: | فَمَضَتِ | | | السُّنَّةُ |
| ارشاد مبارک پیش نظر دا سنت جاری شو یعنی دا ضابطه او ګرځیده له چې هیڅ قاصد او استاذې نه شی قتلولې | | | | | |
| أَنَّ | الرَّسول | لَا | يُقْتَلُ. | رَوَاهُ | أَحْمد [1] |
| برابر خبره ده که هغه هر څو مره غیر مناسب خبره ولې او نه کړی او د قتل سزا وار ولې نه وی. (احمد) | | | | | |

**توضیح** : نبی پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مسیلمه کذاب د دوؤ قاصدانو نه د خپل نبوت او رسالت ګواهی اوغوښتله نو هغوی په جواب کې اوویل چه مونږ خو صرف مسیلمه رسول منو په دې وجه ستاسو د نبوت ګواهی نه شو ورکولې د دې په جواب کې نبی پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لوې منصف په حیثیت سره جواب کې او فرمائیل چه زه الله تعالی او د هغه رسولان منم مسیلمه کذاب رسول نه دې بلکه کذاب او ملعون دې او ستاسو د ناخوښه خبرو اترو په وجه تاسو واجب القتل ئې لیکن زه قاصدان نه قتلوم په دې وجه تاسو بچ شوې. راوی په دې باندې تبصره کوی او فرمائی چه د حضور پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کلام سره بین الاقوامی طرز باندې دا ضابطه روانه شوه چه هیڅ یو قاصد او ایلچی به قتلولې نه شی. (مرقات ۸/۵۴۱، ۵۴۰)



---

(1) رقم الحدیث ۳۹۸۴ أخرجه احمد في المسند ۱/۳۸۴

# باب قسمة الغنائم والغلول فيها
# د مالِ غنیمت تقسیم او د خیانت بیان

**قال الله تعالٰی: ﴿واعلموا ان ما غنتم من شئ فان لله خمسه وللرسول ولذی القربی الخ﴾**(الانفال: ۴۱)
غنائم د غنیمة جمع ده. میدان جهاد کې د کفارو نه د جنګ په ذریعې سره چې کوم مال حاصلیږي. هغې ته مالِ غنیمت وایي. که یو مال د جنګ نه بغیر نه حاصل شي هغې ته مالِ فئ وایې. چې د هغې ذکر په جدا باب کې راتلونکی دی. مالِ غنیمت ته انفال او نفل هم وایي. نفل د ئاد په معنی کې دی.
دا چې د جهاد اصل مقصد اعلاء کلمة الله وي او مال د دې مقصود نه زیات حاصل شي، ځکه دې ته نفل یا زائد وایي.د **"واعلموا انما غنتم"** په آیت کې الله تعالی د مالِ غنیمت تقسیم کړی دی چې څلور برخې د مجاهدینو لپاره او پنځه برخه د بیت المال ده. د غنائمو په بحثونو کې یو څو اصطلاحي الفاظ راغلي دي. په هغې باندې پوهه کېدل لازمي دي.

**الغنیمة:** جهاد في سبیل الله کې چې د متهو په زور د کفارو نه چې کوم مال حاصلیږي. هغې ته مالِ فئ وایي. (مرقات۷/۵۴۱)

**تنفیل:** دا د نفل نه دی. چې زیاتوالي په معنی دی. باشاه یا امیرا لحرب چې په یوه کارنامه باندې مجاهد ته کوم انعام ورکوی. هغه تنفیل دی. مثلاً بادشاه وایي چې که چرې چا قلعه فتح کړه نو هغې له به د قلعې لسمه برخه ورکول کېږي. یا به د کافر بادشاه ګور به هغې ته ورکړی کېږي.

**السلب:** سلب د قبضه کولو په معنیٰ دی. بادشاه یا امیر الحرب چې کله اعلان وکړي. چې چا کوم کافر مړ کړو نو هغې ته به د مقتول د بدن سامان ملاوېږي. مثلاً سات (ګهنته)، د جیب سامان، اسلحه او سورلۍ وغیره ټول په سلب کې داخل دي.

**الرضخ:** رضخ د عطیه په معنی کې ده. کومو خلکو ته چې په مالِ غنیمت کې برخه نه ورکول کېږي. که هغوی په جهاد کې شامل شول نو هغوی ته به څه عطیه ورکول کېږي. دغې ته رضخ وایي. د خمس جدا کولو نه وروسته د نور مال نه عطیه غلامانو، ماشومانو او ښځو ته ورکول کېږي.

**الصفي:** صفی د انتخابولو په معنی کې دی. د تقسیم نه مخکې به نبي کریم ﷺ د یوې تورې یا د زغرې یا د وینځې انتخاب کولو. د هغې نوم صفي ؤو، نو ویل کېږي ام المؤمنین صفیة رضی الله عنها من الصفیة د نبي کریم ﷺ نه وروسته دا برخه منسوخ شوې ده.

**غلول:** مالِ غنیمت کې خیانت ته غلول وایي. چې ډیره لویه ګناه ده.

باقي تفصيلات زما د کتاب د دعوت جهاد په ابواب غنائمو کې دي. هلته يې کتل پکار دي.

## الفصل الاول

### د مالِ غنیمت استعمال د دې امت د خصوصیاتو نه دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل |
| فَلَمْ تَحِلَّ الْغَنَائِمُ لِأَحَدٍ مِنْ قَبْلِنَا ذٰلِكَ بِأَنَّ اللهَ |
| پس د غنیمت مال زمونږ نه مخکې بل هیڅ یو امت لپاره حلال نه ؤ. کله چې الله تعالی مونږ په مالې |
| رَأَى ضعفنا وعجزنا فطيبها لنا (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| تو که کمزورې او عاجزه ولیدلو نو د غنیمت مال یې زمونږ لپاره حلال کړو. |

**توضیح: فلم تحل:** مخکنې امتونو باندې یو څو مذهبې تنګسیاوې وې. د دې امت نه الله تعالی د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له برکته هغه تنګسیاوې لرې کړي چې د دې امت په خصوصیتونو کې شمار ل کېږي. مخکنې امتونو کې مال غنیمت او د قربانۍ غوښه استعمالول منع ؤو. د اسمان نه به اور راتللو او مقبول مال به او سوځېدلو. د دې امت لپاره الله حلال کړې ده. د مخکنې امتونو لپاره د جومات نه بهر د جماعت نه بغیر لمونځ جائز نه ؤو. د دې امت لپاره ټول جائز دي. د مخکنې امتونو لپاره د پاکوالې لپاره د اوبو نه بغیر د طهارت حاصلولو لپاره بله ذریعه نه وه. د دې امت لپاره یې خاوره د اوبو په ځای ګرځولې ده. او د تیمم حکم ورکړې شوی دی. په یهودو باندې واز که حرامه وه او د شنبې په ورځ د ماهیانو ښکار هم حرام ؤو او د اوښ غوښه حرامه وه. هغوی به که د شپې وخت کې ګناه وکړه نو د ورځې به یې په دروازې باندې لیکل. جامه باندې به که نجاست ولږېدلو نو هغه ځای به یې غوځولو، د وینځلو اجازت ورته نه ؤو. د دې امت نه دا ټول بوجونه لرې کړې شول. نصارې چې کوم رهبانیت کې ځان اخته کړی ؤو. الله تعالی د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په برکت سره مسلمانان د هغه ټولو تنګسیانو نه ازاد کړو. د همدغې احسان ذکر په دې حدیث کې دی چې الله تعالی په مونږ باندې احسان وکړو او مالِ غنیمت استعمالول یې راته حلال کړو. (مرقات ۵۳۲/۷)

---

[1] رقم الحدیث ۳۹۸۵ أخرجه البخاري في صحیحه ۲۲۰/۶ رقم الحدیث ۳۱۲۴ ومسلم في ۳۶۶/۳ رقم الحدیث (۳۲-۱۷۴۸)

## دوژل شوي کافر مال دوژونکي مجاهد دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حُنَيْنٍ | | | | | | | | |
| او حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د مکې د فتحې نه وروسته د غزوه حنین په کال مونږ د جهاد لپاره د | | | | | | | | |
| فَلَمَّا | الْتَقَيْنَا | كَانَتْ | لِلْمُسْلِمِينَ | جَوْلَةٌ | | | | |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره روان شو. کله چې د کافرانو سره زمونږ مقابله وشوه نو د څه لږ وخت لپاره مسلمانان د شکست | | | | | | | | |
| فَرَأَيْتُ | رَجُلًا | مِنَ | الْمُشْرِكِينَ | قَدْ | عَلَا | رَجُلًا | مِنَ | الْمُسْلِمِينَ |
| سره مخ شول. ما ولیدو چې یو مشرک په مسلمان باندې غالب شوی دی. ما شاته د هغې د څټ په | | | | | | | | |
| فَضَرَبْتُهُ | مِنْ | وَرَائِهِ | عَلَى | حَبْلِ | عَاتِقِهِ | بِالسَّيْفِ | فَقَطَعْتُ | الدِّرْعَ وَأَقْبَلَ عَلَيَّ |
| رګ باندې بنه تیز ګوزار وکړو او د هغې زغره مې ماته کړه. او هغه مشرک په ما راتاو شو او ماله یې دومره په | | | | | | | | |
| فَضَمَّنِي | ضَمَّةً | وَجَدْتُ | مِنْهَا | رِيحَ | الْمَوْتِ | | | |
| زوره زور کړم چې د هغې په وجه ماله مرګ خوند زاکړو یعنې زه مرګ ته نزدې شوم. زما په یو بل ګوزار | | | | | | | | |
| ثُمَّ | أَدْرَكَهُ | الْمَوْتُ | فَأَرْسَلَنِي | فَلَحِقْتُ | عُمَرَ | بْنَ | الْخَطَّابِ | |
| مرګ هغه ونیولو او زه تر ېنه خلاص شوم. د هغې نه وروسته زه د حضرت عمر ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مخ | | | | | | | | |
| فَقُلْتُ: | مَا | بَالُ | النَّاسِ؟ | | | | | |
| شوم او ورته او مې ویل چې زما په یو بل ګوزار سره مرګ هغه ونیولو او په خلکو څه شوي دي چې | | | | | | | | |
| قَالَ: | أَمْرُ | اللهِ | | | | | | |
| منډې وهئ؟ هغې وویل چې د الله تعالی هم دغه حکم دی یعنې دا څه چې کیږي د قضا او قدرت مطابق کیږي | | | | | | | | |
| ثُمَّ | رَجَعُوا | وَجَلَسَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | |
| بیا د خلک د دې عارضي تښتې نه وروسته بېرته میدان ته راغلل او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بل ځای کې کیناستلو او وې | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | مَنْ | قَتَلَ | قَتِيلًا | لَهُ | | | | |
| فرمایل چې کوم کس څوک مړ کړو او د هغې د وژونکي ګواه وي، اګر که یو ګواه وې نو د وژلی | | | | | | | | |
| عَلَيْهِ | بَيِّنَةٌ | فَلَهُ | | | | | | |
| شوي مال به د هغې وي. دې او رېدلو سره زه او درېدلم او اراده مې وکړه چې د دې مشرک د وژلو واقعه بیان کړم | | | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| سَلَبُهُ | فَقُلْتُ: | مَنْ |

خو زره کې مې وویل چې زما ګواهي به څوک ورکوي چې ما دا مشرک وژلی دی. آخر کې کیناستلم. نبي علیه السلام بیا دغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَشْهَدُ | لِي؟ | ثُمَّ | جَلَسْتُ |

شان وفرمایل چې څوک د دښمن کوم کس مړ کړي او د هغې د وژونکي ګواه وي نو وژلی شوي مال به د هغې وي. ما او دریدل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | قَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

وغوښتل او واقعه بیا نو لمې وغوښتل خو زره کې مې وویل چې زما ګواهي به څوک ورکوي؟ او زه بیا کیناستلم. نبي علیه السلام

| | | |
|---|---|---|
| مِثْلَهُ | فَقُمْتُ | فَقَالَ: |

دغه شان بیا په دریم ځل وفرمایل زه چې داځل هم او دریدلم خود خولې نه مې هیڅ را نه وتلی شو، نو نبي علیه السلام وفرمایل چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا | لَكَ | يَا | أَبَا قَتَادَةَ؟ |

ابو قتاده رضي الله عنه څه خبره ده. ته دیو غرض منداو د حاجت طلب کونکي په شان بار بار ودریږې او کینې، خو په خوله څه نه وایې؟

| | | |
|---|---|---|
| فَقَالَ | رَجُلٌ: | صَدَقَ |

نو هلته یا ما نبي علیه السلام ته وویل ما فلاني مشرک وژلی دی. یو کس زما خبره واوریدل او وې ویل چې ابو قتاده رضي الله عنه رښتیا وایې

| | | |
|---|---|---|
| وَسَلَبُهُ | عِنْدِي | فَأَرْضِهِ |

او د هغه مشرک مال زما سره موجود دی. ته هغه زما له راضي کړه چې دا د خپل حق نه لاس واخلې. او دې ته د دې مشرک د مال په بدل

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنِّي | فَقَالَ | أَبُو | بَكْرٍ: |

کې څه بل شی ورکړی شي یا دا په دې خبره رضا کړی شي چې دا ما سره په یوه بله طریقه مصالح وکړي. حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا | هَا | اللهِ | إِذاً | لَا |

دې او ریدلو هغه ته وویل چې نا قسم په خدای داسې نه شي کېدلی او نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په دې معامله کې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يعمدُ | أَسَدٍ | مِنْ | أُسْدِ | اللهِ |

د ابو قتاده رضي الله عنه خلاف هیڅ اراده نه کوي. ابو قتاده رضي الله عنه د الله په زمرو کې یو زمری دی. چې د

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُقَاتِلُ | عَنِ | اللهِ | وَرَسُولِهِ |

الله او د هغې د رسول د خوشحالولو لپاره د دښمن سره جنګیږي. بیا دا څنګه امکان لري چې په کوم

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيُعْطِيكَ | سَلَبَهُ. | فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| د ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حق دی هغه تاته در کړي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کس ته وويل چې ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | | |
| صَدَقَ | | | فأعطه | | | | فأعطانيه |
| صحيح وايي. ته ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه وژلي شوي مال ورکړه، نو هغه کس ماته د هغې مال راکړو. او | | | | | | | |
| فاتبعت | بِهِ | مَخْرَفًا | فِي | بَنِي | سَلِمَةَ | فَإِنَّهُ | |
| بيا وروسته ما د هغه مال په ذريعه يو باغ واخستلو چې په بنو سلمه کې واقع ؤو. او دا د ټولو نه | | | | | | | |
| لَأَوَّلُ مَالٍ تَأَثَّلْتُه فِي الإِسلامِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | | | | | | |
| اولنی مال ؤو چې ماته د اسلام د قبولو نه وروسته حاصل شو. | | | | | | | |

**توضيح**: **جولة**: ګرځېدلو او د ګشت به معنی کې دی. مراد دا چې کافر په موږ راتاؤ شول يعنې مونږ شکست وخوړلو. شکست ناکامه ځکه نه ؤو چې دا عارضي تېښته وه. دې کې هيڅوک شهيد شوی نه ؤو او نه زخمي شوی ؤو. (مرقات۷/۵۴۴)

**من يشهدلي**: يعنې ما زړه کې وويل چې زما په لاس وژلي شوي باندې به څوک ګواهي ورکړي. صرف او دربدلم. بيا کيناستلم او په خوله مې هيڅ ونه ويل. (مرقات۷/۵۴۴)

**فارضه مني**: يعنې کس اقرار وکړو چې د وژلي شوي سامان ما سره دی. وژونکي يې ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی خو زما له اړخه ته هغه راضي کړه يا د هغې له اړخه د خپله ځانه څه مال ورکړه يا دې مفته کې هغه ماته مال پرېږدي. (مرقات۷/۵۴۴)

**لاهاالله**: "**اى لا والله**" دا اصل کې قسم دی اګر که زيات مشهور نه دی.

**اذاً**: د نوين سره دی. ای اذا صدق ابو قتادة يعنې چې د ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره صحيح وي.

**لايعمد**: د ضرب د يضرب نه دی. **اى لا يقصد النبي فى ابطال حقه واعطاء سلمه اياك** يعنې چې د ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره رښتنې ده نو قسم په خدای چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هرګز داسې نه کوي چې د الله په زمرو کې د يو زمرې مال غنيمت تاته درکړي. اصل قصه دا وه چې يو کافر په جنګ حنين کې يو مسلمان پسې شو. حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شاته نه هغه په توره ؤوهلو، هغه راتاؤ شو او حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې دومره زور ورکړو چې هغې د مرګ خوشبوئي بويې کړله خو دا چې

(۱) رقم الحديث ۳۹۸۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۳۴ رقم الحديث ۴۳۲۱ ومسلم في ۳/۱۳۷۰ رقم الحديث (۴۱-۱۷۵۱)

کافر سخت زخمي شوی ؤو نو ځکه را وغورځېدلو . ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بېرته راغلو . د هغه کافر بدن سامان بل صحابي کوز کړی ؤو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د سامان د اخستلو اعلان وکړو نو ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ګواه په لټنه کې شو چې د دې وژلی شوې مال حاصل کړي، خو په ژبه یې هیڅ ونه ویل. بیا هغه کس د سامان د اخستلو اعتراف وکړو خو د سامان د نه ورکولو خبره یې وکړه. صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې باندې قسم وکړو او ویې فرمایل چې داسې به هرګز نه وي. بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سامان ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړو. ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي سلمه په محله کې په هغه سامان باندې یو باغ واخستلو چې هغې پرې مال ذخیره کړو. (مرقات ۵۴۴/۷)

**مخرف:** باغ ته وايي. **تأثلت:** د ذخیره کولو او د جمع کولو په معنی کې دی. د جمهورو په نزد سلب یوه ضابطه او قاعده ده چې چا کوم وخت کافر مړ کړو. د هغې سلب (مال) د هغه کس وژونکې دی، خو احناف فرمايي چې سلب مستقله ضابطه نه ده بلکې د وخت په توګه د جنګ امیر یا د بادشاه د اعلان په بنیاد باندې ملاوېږي. که امیر اعلان ونه کړو نو هیچا ته به نه ملاوېږي. ظاهري حدیثونه د جمهورو په حق کې دي.

## د مال غنیمت د تقسیم قانون

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْهَمَ لِلرَّجُلِ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مال غنیمت نه یو کس او د هغې د |
| وَلِفَرَسِهِ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ: سَهْمًا لَهُ وَسَهْمَيْنِ لِفَرَسِهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۱] |
| اَسپې لپاره درې برخې ورکړې یعنې یوه برخه خو خپله د هغې لپاره او دویمه د هغې د اَس لپاره. |

**توضیح: ثلاثة اسهم:** میدان جنګ کې دوه قسمه خلک جنګ کوي. یو هغه قسمه خلک دي چې د هغوی سره اَسونه وي. او ویم قِسم خلک پیدَل وي. اوس د اَسپو والا په پیدَل خلکو کې فرق دی چې اَسپو والو ته به زیاته ملاوېږي که پیدل والو ته به زیاته ملاوېږي، خو د برخې په مقررولو کې د فقهاؤ اختلاف دی چې چاته به څومره ملاوېږي. (مرقات ۵۴۴/۷)

**د فقهاؤ اختلاف:** د ائمه ثلاثو په نزد به پیدل مجاهد ته یوه برخه ملاوېږي او شهسوار ته به درې برخې ملاوېږي. یوه برخه خو به د هغې خپله وي او دوه به ورته د اَس په وجه ملاوېږي. د احنافو ائمؤ په نزد پیدل کس ته یو برخه ملاوېږي خو شهسوار ته دوه برخې ملاوېږي. یوه برخه به د هغې وي او یوه به د هغې د اَس وي.

**دلائل:** د جمهور فقهاؤ د زیر بحث حدیث د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روایت نه استدلال کړی دی.

---

(۱) رقم الحدیث ۳۹۸۷ أخرجه البخاري في صحیحه ۶۷/۶ رقم الحدیث ۲۸۶۳ ومسلم في ۱۳۱۲/۳ رقم الحدیث (۵۷-۱۷۶۲)

چې په خپلې مدعا باندې واضح دلیل دی. د احنافو ائمؤ په فصل ثانی کې د مجمع بن جاریه رضي الله عنه د روایت نمبر ۲۲ نه استدلال کړی دی. چې په واضحه توګه په کې ذکر دي چې په خیبر کې پیدل ته یوه برخه او شهسوار ته دوه برخې ورکړی شوې. الفاظ یې داسې دي "**فاعطی الفارس سهمین والراجل سهماً**". (ابوداؤد ،مرقات۵۴۶/۷)

د حضرت مجمع بن جاریه په روایت کې د غنیمت د مالونو د برخو په تقسیم او د مجاهدینو د تعداد هم بیان موجود دی. چې د احنافو مسلک باندې په واضحه توګه ثبوت دی او د جمهورو د مسلک نفې په کې ده. هغه داسې چې د خیبر د مالونو اتلس (۱۸) برخې وې او مجاهدین پنځلس سوه (۱۵۰۰) ؤو. چې درې سوه (۳۰۰) په کې شهوسواران ؤو او دولس سوه پیدل (۱۲۰۰) ؤو. درې سوه شهسوارانو کې هر یو ته دوه دوه برخې ورکړې شوې وېې، نو شپږ برخې لاړې او دولس پاتې شوې. دولس سوه پیدل والو کې هر یوه ته د سلو سلو (۱۰۰) یوه یوه برخه ورکړی شوه، نو پنځلس سوه (۱۵۰۰) مجاهدینو ته اتلس سوه برخې پوره شوې.

که د جمهورو د مسلک مطابق شهسوارانو ته درې برخې ورکړی شوې نو درې سوه مجاهدینو ته به ۹ برخمې ملاوی شي او دولس سوه ته به دولس برخې ملاوی شي. دغه شان به د مال غنیمت ټولې برخې یو ویشت (۲۱) شي. حال دا چې د حضرت مجمع جاریه رضي الله عنه په روایت کې په واضحه الفاظو کې راغلې دي چې "**فقسمها رسول الله ﷺ ثمانية عشر سهما**" یعنې ټولې اتلس برخې وې. (مرقات۵۴۸/۷)

**سوال**: دلته داسوال پیدا کېږي چې دراتلونکې د مجمع بن جاریه رضي الله عنه د روایت متعلق امام ابوداؤد وایي چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د بحث د لاندې روایت صحیح او واضح دی. او د مجمع بن جاریه رضي الله عنه روایت کې د یو راوې وهم دی. اصل کې درې سوه شهسواران نه ؤو بلکې دوه سوه شهسواران ؤو او دوه سوؤ ته شپږ برخې ملاؤ شوې وې.د دې جواب دا دی چې که شهسواران دوه سوه هم ومنلی شي نو بیا هم د جمهور خبره نه جوړېږي، ځکه دې خبره باندې خو اتفاق دی چې مجاهدین پنځلس سوه ؤو. چې د حدیبیه نه سیدها راغلل او خیبر کې جنګېدلې ؤو. که دوه سوه شهسواران ؤو نو پیدل به دیارلس سوه ؤو. چې هغوی ته دیارلس سوه برخې ورکړی شوې وي نو شپږ او دیالس (۱۳) بیا نورلس (۱۹) برخې شوې. حال دا چې دا اتفاقې ده چې ټولې برخې شپاړس وې.دا احنافو دویم دلیل همدغه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت دی چې په مصنف ابن ابی شیبه کې ذکر دی. الفاظ یې دا دي "**للفارس سهمان وللراجل سهم**" د احنافو ائمؤ د حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا روایت راجح ګڼلی دی. د دې وجه دا ده چې آس جهاد د آله ده او سړی ذی الاله ده. د آله درجه د الاله نه زیاته پکار نه ده، ځکه انسان د آس نه بغیر جنګېدلی شي خو آس د انسان نه بغیر نه شې جنګېدلی. (مرقات۵۴۸/۷)

**جواب**: زیر بحث حدیث د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د روایت جواب دا دی چې دا تنفیل او نورو انعامونو باندې محمول دی. چې د داسې شهسوارانو د حوصلې ساتنه وشي او خلک د زیات نه زیات آسونه راولې.

صاحب هدایه د دې دا جواب ورکړی دی چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دواړو روایتونو کې تعارض دی، نو دواړه ساقط دي. لهذا د حضرت جاریه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت د احنافو د استدلال لپاره سالم پاتې شو.

## مال غنیمت کې د ښځو او د غلامانو برخه نشته دی

﴿۴﴾ وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ هُرْمُزَ قَالَ: كَتَبَ نَجْدَةُ الْحَرُورِيُّ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ
او حضرت یزید ابن هرمز فرمایي چې نجده حروری حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یو خط ولیکلو چې هغې کې یې
يَسْأَلُهُ عَنِ الْعَبْدِ وَالْمَرْأَةِ يَحْضُرَانِ الْمَغْنَمَ
د ښځې او د غلام باره کې دا معلومه کړې وه چې کله دوی د غنیمت د مال د تقسیم په وخت کې موجود وي نو
هَلْ يُقْسَمُ لَهُمَا؟ فَقَالَ لِيَزِيدَ:
هغوی ته هم په مال غنیمت کې برخه ورکړی شي یا نا؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یزید نه یعنې ماته وفرمایل
اكْتُبْ إِلَيْهِ أَنَّهُ لَيْسَ لَهُمَا سَهْمٌ
چې ته زما له اړخه نجده ته دا جواب ولیکه چې د دې دواړو لپاره برخه مقرره نه ده. البته د تقسیم په وخت کې
إِلَّا أَنْ يُحْذَيَا. وَفِي رِوَايَةٍ: كَتَبَ إِلَيْهِ ابْنُ عَبَّاسٍ:
دوې له هسې څه ورکړئ. او یو روایت کې دا دي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې نجده دا جواب ولیکلو چې په
إِنَّكَ كَتَبْتَ إِلَيَّ تَسْأَلُنِي: هَلْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
خط کې تا زمانه دا پوښتنه کړې وه چې آیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به جهاد کې ښځې بوتللې او آیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام به ښځو ته
يَغْزُو بِالنِّسَاءِ؟ وَهَلْ كَانَ يَضْرِبُ لَهُنَّ بِسَهْمٍ؟ فَقَدْ كَانَ يَغْزُو بِهِنَّ
په مال غنیمت کې برخه ورکوله؟ نو د هغې جواب دا دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به ښځې جهاد ته د ځان سره بوتللې
يُدَاوِينَ الْمَرْضَى وَيُحْذَيْنَ مِنَ الْغَنِيمَةِ
چې د مریضانو ته به یې دوائي ورکوله او د زخمیانو مرهم پټئ به یې کولې. او هغوی له به یې په مال غنیمت کې هسې
وَأَمَّا السَّهْمُ فَلَمْ يَضْرِبْ لَهُنَّ بِسَهْمٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]
څه ورکول. خو د هغوی لپاره په مال غنیمت کې هیڅ برخه نه وه مقرره کړې شوې.

---

[1] رقم الحديث ۳۹۸۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۴۵/۳ رقم الحديث (۱۳۹-۱۸۱۲) وأبوداود في ۱۶۹/۳ رقم الحديث ۲۷۲۷

**توضیح** **نجدة**: نجدة د خوارجو د مشر نوم دی. (مرقات۷/۵۵۰)

**الحروی**: دا د حروراً اړخ ته منسوب دی چې د کوفه په اطرافو کې د يو ځای نوم دی. د خوارجو اولنئ اجتماع په همدغه ځای کې شوې وه. (مرقات۷/۵۵۱)

**ان یحذیا**: د حذی عطیه ته وايي. غلامانو او ښځو ته به برخه نه ورکړی کېدله. صرف د طبابت کولو په خاطر او زړه ساتنې په خاطر به يې څه ورکول، ځکه هغوی باندې د جنګ ذمه وارې نشتد دی. همدغه مسئله د نابالغه هلکانو هم ده. (مرقات۷/۵۵۱)

## د حضرت سلمه بن اکوع زړه ورتيا

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِظَهْرِهِ |
| او حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مسلمانانو او د کفارو په مينځ کې معاهده نه وروسته د حديبيه |
| مَعَ رَبَاحٍ غُلَامِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| نه بيرته راتلو دوران کې په لاره کې زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره په خپلې سورلۍ تول او ښان، د رباح سره چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ازاد شوی غلام ؤو، |
| وَأَنَا مَعَهُ فَلَمَّا أَصْبَحْنَا |
| مخکې روان کړو او زه هم د رباح سره شوم. مونږ دواړو د شپې يو ځای کې قيام وکړو او کله چې سحر شو |
| إِذَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ الْفَزَارِيُّ |
| نو مونږ ته معلومه شوه چې عبد الرحمن فزاری چې د مسلمانانو يو مشهور دښمن او کافر ؤو. د |
| قَدْ أَغَارَ عَلَى ظَهْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُمْتُ عَلَى أَكَمَةٍ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اوښانو يې چهاپه او هله او هغه يې روان کړل. زه په غونډۍ باندې وختلم |
| فَاسْتَقْبَلْتُ الْمَدِينَةَ فَنَادَيْتُ ثَلَاثًا يَا صَبَاحَاهُ |
| او د مدينې اړخ ته مې مخ کړو او درې ځل مې ياصباحاه يعنې خبردار دښمنه چغه اؤوهله او غشي مې ويشتل |
| ثُمَّ خَرَجْتُ فِي آثَارِ الْقَوْمِ أَرْمِيهِمْ |
| او هغه قوم يعنې عبد الرحمن او د هغې د قوم د پښو نښانو باندې روان شوم. هغه وخت زما په ژبه |
| أَنَا بِالنَّبْلِ وَأَرْتَجِزُ وَأَقُولُ: |
| باندې په اوچت اواز سره رجزيه يعنې رجزيه شعرونه ؤو. ما وويل ان ابن الاکوع. واليوم يوم الرضع يعنې ای دښمنانو! |

ابْنُ الأَكْوَعُ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعُ

په كولاؤ غوږنو يې وا وريږه د اكوع ځوي يم يعني ورځ د بدو خلكو لپاره يعني د دين د دښمن او لپاره بده ورځ ده.

فَمَا زِلْتُ أَرْمِيهِمْ وَأَعْقِرُ بِهِمْ

همد غه شان مې مسلسل تيران ويشتل او د غه شان مې د هغوی د سورلو واګي غوځولو سره مخكې روانؤوم

حَتَّى مَا خَلَقَ اللهُ مِنْ بَعِيرٍ

تر دې چې دې چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په اوښانو کې د الله په پيدا کړي شوي اوښانو کې هيڅ داسې اوښ پاتې نه شو

مِنْ ظَهْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا خَلَّفْتُهُ وَرَاءَ ظَهْرِي ثُمَّ اتَّبَعْتُهُمْ أَرْمِيهِمْ حَتَّى

چې ما د خپل ځان نه وروسته نه ؤو پرېښى. ما غشي ويشتل او ورپسې ورروان ؤوم. تر دې چې هغوی د خپل ځان د سپكولو په

أَلْقَوْا أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثِينَ بُرْدَةً وَثَلَاثِينَ

خيال خپل ديرش څادرونه او ديرش جامې غوزارې کړې يعنې په منډو کې يې خپل څادرونه او جامې هم غوزارولې

رُمْحًا يَسْتَخِفُّونَ وَلَا يَطْرَحُونَ شَيْئًا

چې د بدن سپيد کولو سره تيزه منډه وهلو کې اساني وي او هغوی به هر شی ويشتلو، هغوی به د نبي

إِلَّا جَعَلْتُ عَلَيْهِ آرَامًا مِنَ الْحِجَارَةِ يَعْرِفُهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ

په توګه هغې باندې كاڼي كيښودلو چې كه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د هغوی ملګرې د شاه طرف نه راځي چې هغوی دا

حَتَّى رَأَيْتُ فَوَارِسَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَحِقَ أَبُو قَتَادَةَ

وپيژني، تر دې چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سپاره وليدل او بيا مې دا وليدل چې ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته

فَارِسُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَبْدِ الرَّحْمَنِ فَقَتَلَهُ قَالَ

سور ويلى ؤو عبد الرحمن يې ونيولو او مړه يې کړو. بيا د دې غوبل نه وروسته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَيْرُ فُرْسَانِنَا الْيَوْمَ أَبُو قَتَادَةَ

وفرمايل چې نن زمونږ په سورو کسانو کې بهتر سور ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی او په پيدل سپاره کې د ټولو نه

وَخَيْرُ رَجَّالَتِنَا سَلَمَةُ. قَالَ: ثُمَّ أَعْطَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بهتر پيدل سلمه بن اكوع دی. بيا د هغې نه وروسته چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د كافرانو نه نيولی شوې مال تقسيم شروع کړو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَهْمَيْنِ: | سَهْمَ | الْفَارِسِ | وَسَهْمَ | الرَّاجِلِ | فَجَمَعَهُمَا | إِلَيَّ | جَمِيعًا | ثُمَّ |
| نو ماته يې دوه برخې راکړې يو برخه د سور او بله برخه د پيدل. دواړه برخې يې يو ځاى کړې او ماته يې | | | | | | | | |
| أَرْدَفَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَاءَهُ عَلَى الْعَضْبَاءِ رَاجِعَيْنِ إِلَى الْمَدِينَةِ. رَوَاهُ مُسلم[1] | | | | | | | | |
| راکړې او نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ په خپلې اوښې عضباء باندې زه شاته کښنولم او د مدينې اړخ ته روان شو. | | | | | | | | |

**توضيح**: سلمة بن اکوع: دا د شان والا صحابي دى. جنګو کې يې ډېرې برخې اخستلې دي. پيدل منډو کې مشهور ؤو. د آس نه به يې تيزه منډه وله. (مرقات ۵۵۳/۷)

**اغار**: حملې او وژني ته وايي. (مرقات ۵۵۳/۷)

**على ظهره**: د ظهر نه مراد د سورلۍ اوښ دی. **اکمة**: او چتې غونډۍ ته وايي. (مرقات ۵۵۳/۷)

**ياصباحاه**: پخوا زمانه کې به چاته د مرستې لپاره اواز کېدلو نو د عرب په معاشره کې به دغه قسمه اوازونه کېدل. د دې مطلب دا دی چې د دښمن د سحر وخت کې حمله کړې ده. تيار شئ او مرسته وکړئ، د لښکر کاروائی به اکثر د سحر وخت کې کېدله. (مرقات ۵۵۳/۷)

**ارتجز**: يعنې ما رجزيه شعرونه ويل. د بحر رجز وزن مستفعلن شپږ ځله دې.

**يوالرضع**: د دې مفرد راضع دی. د راضع يو مطلب کم اصل او ذليل دی يعنې نن د کم اصلو او د ذليلو د هلاکت ورځ ده. چې په خوله کې تی اونيسې او شوده روې چې د شودو د راويستلو اواز راون وځې. دويم مطلب دا دی چې نن هغه کس کامياب دی چې چاته شريفې ښځې شوده ورکړل. يعنې نن به په شودو فيصله کېږي. د زړه ورې مور شوده به زړه ورتيا پيدا کوي او ويرندوکې مور شوده به ويره پيدا کوي. (مرقات ۵۵۳/۷)

**يستخفون**: يعنې زيات سامان يې غوزار کړل چې د منډې وهلو لپاره سپک شي. (مرقات ۵۵۳/۷)

**أراماً**: د دې مفرد دارم دی، لکه څنګه چې اعناب او عنب علامت ته وايي. باندې چيانو کې اوس هم دا رواج دی چې لرګې وغيره شيانو باندې کاڼې ږدي. دا علامت وي چې دا مال د يو چا دی، نو څوک ورله بيا لاس نه وړي. ځينې خلک پرې کاڼي ږدي چې د طلاق قسم خوړلو اړخ ته اشاره وي. ارم په معنې د علامت، علامه بوصيري په قصيده برده کې ذکر کړی دی -

**فالصدق في الغار و الصديق لم يريا وهم** **يقولونه ما بالغار من ارم**

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۸۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۳۳/۳ رقم الحديث (۱۳۲-۱۸۰۷) وأحمد في المسند ۵۲/۴

**سهم الفارس:** د يو مجاهد ښې کارنامې باندې هغې ته زيات مال ورکول کېږي. ځکه حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دوه برخې ورکړې شوې.

| |
|---|
| ﴿٦﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُنَفِّلُ بَعْضَ مَنْ يَبْعَثُ مِنَ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کوم خلک جهاد ته لېږل هغې کې |
| السَّرَايَا لِأَنْفُسِهِمْ خَاصَّةً سِوَى قِسْمَةِ عَامَّةِ الْجَيْشِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| به ځينې خلکو له د عام لښکر په نسبت په مخصوصه توګه څه زياته برخه ورکول کېدله. |
| ﴿٧﴾ وَعَنْهُ قَالَ: نَفَّلَنَا رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم نَفَلًا سِوَى نَصِيبِنَا |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ له د خمس د مال نه زمونږ |
| مِنَ الْخُمُسِ فَأَصَابَنِي شَارِفٌ والشارف: |
| شوی برخو نه بغير هم څه زياته راکړه، نو زما برخه کې يو شارف راغلو او شارف هغه اوښې ته وايي |
| المسن الْكَبِير (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| لپاره مونږ د مقرر چې بوډۍ او غټه وي. |

**توضيح:** داد کېرنې او د ترغيب لپاره ځينې ښه مجاهدينو ته څه زياته ورکول جائز دي. همدغې ته نفل او تنفيل وايي.

## كفار كه د مسلمانانو مال قبضه كړي نو څه به كېږي؟

| |
|---|
| ﴿٨﴾ وَعَنْهُ قَالَ: ذَهَبَتْ فَرَسٌ لَهُ |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باره کې منقول دي چې يو ځل د هغې آس وتښتېدلو چې د ښمنانو يعنې |
| فَأَخَذَهَا الْعَدُوُّ فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ |
| كافرانو ګير كړو. بيا چې كله مسلمانان هغه كافرانو باندې فاتحين شول او د هغوی په مال غنيمت کې هغه |
| فَرُدَّ عَلَيْهِ فِي زَمَنِ |
| آس هم راغلو نو ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د هغې آس بېرته ورکړی شو او هغه په مال غنيمت کې شمار نه کړی شو. دا واقعه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |

---

([1]) رقم الحديث ۳۹۹۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۳۷/۶ رقم الحديث ۳۱۳۵ ومسلم في ۱۳۶۹/۳ رقم الحديث ۱۷۵۰.

([2]) رقم الحديث ۳۹۹۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۶۹/۳ رقم الحديث (۳۸-۱۷۵۰)

| | |
|---|---|
| رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَفِي رِوَايَةٍ: أَبَقَ عَبْدٌ لَهُ فَلَحِقَ بِالرُّومِ | |
| د زماني ده. او يو بل روايت كې دا دي چې د ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ غلام وتښتېدلو او روم ته ورسيدلو. | |
| فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ فَرَدَّ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ | |
| بيا چې كله مسلمانانو په روميانو باندې فاتحين شول نو خالد بن وليد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د | |
| بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] | |
| هغې غلام بېرته ورکړو. دا د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زمانې نه وروستنۍ واقعه ده. | |

**توضيح: فأخذها العدو**: يعني د ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه اوښ وتښتيدلو نو دښمن ونېولو. بيا پرې مسلمانان غالبه شو او آس يې بېرته ورکړو. د غه شان د هغې غلام تښتيدلې ؤو. بيا چې كله مسلمانان غالبه شو نو هغه هم مسلمانانو بېرته ونېولو. اوس مسئله دا ده چې كه كفار د يو مسلمان په مال باندې غلبه وكړي او د ځان سره يې ويسي نو آيا هغه خلک به د مال مالكان شي يا نا؟ دې كې د فقهاؤ اختلاف دى. (مرقات۷/۵۵۶)

**اختلاف**: امام شافعي رحمه الله فرمايي چې كافران به د دې مال مالكان نه وي. دا چې د چا مال دى د همغې به وي، خو د جمهورو په نزد كافران به د هغې مال مالكان شي. د دې اختلاف نتيجه به دا راؤځي چې كه وروسته مسلمانانو غلبه حاصله كړه او همغه مال يې قبضه كړو نو اوس به څه كېږي؟ د شوافعو په نزد به مال د هغې اصل مالک ته وركول كېږي. ګوياكې دا مال د هغې د ملكيت نه نۀ دى وتلى. د جمهورو په نزد كه دا مال په كافرانو كې تقسيم نه شو او د مسلمانانو په لاس كې د تقسيم نه مخكې راغلو نو دا د اصل مالک ما دى، خو كافرانو كې د تقسيمېدلو نه نه وروسته كه د مجاهدينو په لاس راغلو، نو اوس به دا په مال غنيمت كې شمال شي او په عام مسلمانانو به تقسيم شي. (مرقات۷/۵۵۶)

**دلائل**: شوافعو د بحث لاندې روايت نه استدلال كړى دى. چې كوم كې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او آس او د غلام د تښتيدلو او د كافرانو په لاس كې قبضه كېدلو قصه ده. او بيا دهغې بېرته د وركولو ذكر دى. دغه شان شوافعو د دې نه مخكې حديث نمبر ۵ كې د ذكر شوى ناقهٔ رسول د واقعې نه هم استدالال كړى دى. جمهورو د "**للفقراء المهاجرين**" نه استدلال كړى دى. د استدلال طرز داسې دى چې د صحابه كرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ مالونه په مكه مكرمه كې ؤو، خو د كافرانو به لاس دقبضه كېدلو په وجه الله د هغې مالكان د فقراء په نوم ياد كړي دي. د دې نه معلومه شوه چې د

---

[1] رقم الحديث ۳۹۹۲ اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۸۲ رقم الحديث ۳۰۶۸ وابن ماجه في ۲/۹۴۹ رقم الحديث ۲۸۴۷

مسلمانانو دا مال د کافرانو په ملکيت کې تلی ؤو او د تقسيم نه وروسته کافران د هغې مالکان شوې ؤو. خو د تقسيم نه مخکې کافران د هغې مال مالکان نه شي جوړيدلی، نو دا د عامه مالونو مسئله او په دې کې اختلاف ؤو. اوس دلته د تښتيدلې غلام جدا مسئله ده. دې کې هم د فقهاؤ اختلاف دی. هغه داسې دی چې که غلام مرتد شوی وتښتيدلو نو د ټولو فقهاؤ په نزد اتفاقاً کافران به د دې مال مالکان شي، خو که مسلمان يا ذی مسلمان وتښتې نو کافران د هغې مالکان شي، نو امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چې کافران د دې مالکان نه شي کېدی، خو جمهور وايي چې مرتد غلام پشان د مسلمان غلام به هم کافر مالک شي. دواړو فريقينو د بحث لاندې حديث د جزاء نه استدلال کړی دی، خو دا يو باريکه اجتهادي فرق دی، ځکه د دلائلو ضرورت نشته دی. (مرقات۷/۵۵۶)

## د خُمس حکم

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَن جُبيرِ بن مُطعمٍ قَالَ: مَشَيْتُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جبير ابن مطعم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه او حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په خدمت |
| فَقُلْنَا: أَعْطَيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ |
| کې حاضر شو او عرض مو وکړو چې تا (نبي عَلَيْهِ السَّلَام) د خيبر په خمس کې بنو مطلب ته برخه ورکړه |
| وَتَرَكْتَنَا وَنَحْنُ بِمَنْزِلَةٍ وَاحِدَةٍ مِنْكَ؟ |
| او مونږ له مو رانکړه، حال دا چې د ستاسو (دنبی عَلَيْهِ السَّلَام) په اعتبار سره مونږ يو مرتبه کې يو؟ |
| فَقَالَ: إِنَّمَا بَنُو هَاشِمٍ وَبَنُو المطلبِ وَاحِدٌ .. |
| نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې زه د دې نه بغير نور هيڅ نه پيژنم چې بنو هاشم او نبو مطلب يو دي. |
| قَالَ جُبَيْرٌ: وَلَمْ يَقْسِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ |
| حضرت جبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بنو شمس يعنې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وغيره |
| وَبَنِي نوفلٍ شَيْئًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| او بنو نوفل يعنې د حضرت جبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وغيره ته هيڅ برخه ور نه کړه. |

**توضيح** **من خمس خيبر**: مالِ غنيمت کې پنځمه برخه د بيت المال وي. د خمس دا برخه نبي

[1] رقم الحديث ۳۹۹۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۸۴/۷ رقم الحديث ۴۲۲۹

کريم ﷺ نژدژ خپلوانو او فقيرانو وغيره کې تقسيموله. د خيبر مال چې کله راغلو نو د نبي کريم ﷺ د خمس مال کې د خپلو نزدې خپلوانو بنو هاشم او بنو المطلب ته ورکړو خو بنو نوفل او بنی عبد الشمس ته هيڅ ورنه کړل. دې خبره باندې د پوهېدلو لپاره حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه نبي کريم ﷺ ته ورغلل او عرض يې وکړو چې يارسول الله ﷺ! نژديکت کې مونږ او بنو المطلب ستا لپاره برابر يو. دا خبره صحيح ده چې د ستا ﷺ تعلق د بنو هاشم سره دی. دې افضليت کې مونږ مداخلت نه شو کولی چې بنو هاشم ته ولی ورکړی شوي ده، خو بنو المطلب او مونږ په نژديکت کې تاته برابر يو، ځکه د عبد مناف څلور زامن ؤو. چې نومونه يې دا دي. ۱: هاشم ۲: مطلب ۳: عبد شمس ۴: نوفل.
نبي کريم ﷺ د هاشم په اولاد کې ؤو. حضرت عثمان رضي الله عنه د عبد شمس په اولاد کې ؤو. حضرت جبير بن مطعم د نوفل به اولاد کې ؤو. د دې حضراتو شکايت دا ؤو چې بنو المطلب ته خمس ورکړی شو نو مونږ ولې پرېښودلی شو. حال دا چې په نژديکت کې هيڅ فرق نشته دی. د دې په جواب کې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د نژديکت حق صرف بنو هاشم او بنو المطلب ته حاصل دی. ځکه دې خلکو په اسلام او جاهليت کې يو ځای پاتې کېدلو مظاهره کړې ده، ځکه کله چې قريشو د بنو هاشم سره بائيکاټ وکړو نو بنو المطلب د بنو هاشم سره ملګرتيا وکړه. او بنو نوفل او بنو عبد شمس په بائکاټ کې د کافرانو سره پوره فرخه واخستله. لهذا د هغوی نژديکت مونږ سره ختم شو نو په خمس کې د هغوی حق پاتې نه شو. راتلونکې حديث نمبر ۴۲ کې د دې واقعې نور تفصيل موجود دی. (مرقات۷/۵۵۹،۵۵۸)

## د مال فئ تعارف او حکم

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّمَا قَرْيَةٍ أَتَيْتُمُوهَا |
| او حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې کوم کلي تاسو ته لاړ شئ |
| وأقمتم فِيهَا فَسَهْمُكُمْ فِيهَا وَأَيُّمَا قَرْيَةٍ عَصَتِ اللهَ |
| او هغې کې قيام کوئ نو د هغوی په مال کې ستاسو برخه ده. او کوم کلی چې د خدای او د هغې د |
| وَرَسُولَهُ فَإِنَّ خُمُسَهَا لِلّٰهِ وَلِرَسُولِهِ ثُمَّ هِيَ لَكُمْ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| رسول نافرمانې وکړي نو په هغې کې پنځمه برخه د الله او د هغې د رسول لپاره ده، نوره ستاسو ده. |

**توضيح: واقمتم فيها:** يعني په داسې ځکه کې تاسو هيسار شوی چې هلته خلکو نه جنګ وکړو او نه

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۹۲ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۷۶/۳ رقم الحديث (۴۷-۱۷۵۶) وأبوداود في السنن ۴۲۷/۳ رقم الحديث ۳۰۳۶

يې مزاحمت وکړو او د هغوی مال تاسو ته د غنيمت په توګه ملاؤ شو. نو دا مال فئ دی. چې کوم کې مجاهدين. مقاتلين او په مدينه کې اوسيدونکې غير مجاهدين ټول شريک دي. ټولو ته برخه ملاوېږي. او هغې کې خمس نه وي. خو کوم ښار چې د الله نافرماني وکړه يعنې د هغه ځای اوسيدونکو د مجاهدينو مقابله وکړه، جنګ يې وکړو او شکست يې وخوړلو او مال غنيمت مسلمانانو ته ملاؤ شو. نو هغې کې مالِ خمس جدا کړئ او بيت المال ته يې حواله کړئ او پاتې څلور برخې به مجاهدينو کې تقسيم شي. بهرحال د حديث خلاصه دا ده چې مال فئ کې خمس نشته دی او مال غنيمت کې وي. آخري جمله ثم هي لکم کې وفرمايل چې خمس به هم تاسو مسلمانانو باندې تقسيم کېږي. زما ذاتي مال نه دی. (مرقات ۷/۵۶۳)

## مشترکه قومي دولت کې خيانت کونکی به دوزخ ته ځي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ خَوْلَةَ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: |
| او حضرت خوله انصاريه رضي الله عنها فرمايي چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي چې ځينې |
| إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُوْنَ فِيْ مَالِ اللهِ بِغَيْرِ حَقٍّ |
| خلک د الله په مال يعنې غنيمت فئ او د زکوة په مال کې ناحق يعنې بغير د څه حق د حقدارئ برخه اخلي. |
| فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[۱] |
| لهذا داسې خلک به د قيامت په ورځ د اور د سزه مستحق وي. |

**توضيح**: **يتخوضون**: خوش د ننوتلو په معنی کې دی. دلته اوقاف، مال غنيمت. زکوة او مال فئ کې بې ځايه تصرف کول مراد دی. دا خبره ياد ساتئ چې دې حديثونو کې ظاهراً غله او مال غنيمت کې د خيانت کولو الفاظ راغلې دي، خو دا فقط مال غنيمت نه دی. بلکې مشترکه قومي دولت او د ټولو مسلمانانو امانت مراد دی. لهذا سرکارې ادارو کې، مذهبی مدرسو کې او جهادې او غير جهادې تنظيمونو کې چې کوم مشترکه مالونه دي. هغې ټولو باندې دا الفاظ تطبيقيږي. څوک دا خيال ونه کړي چې دا خو د مال غنيمت د خيانت خبره ده. زه خو سرکارې دفتر يا کمپنئ يا د اوقافو مال کې خيانت کوم. د بحث لاندې حديث کې د مال الله لفظ راغلی دی. دې کې ټولې ادارې شاملې دي. زه به په نورو عنوانو کې مشترکه قومې ليکم يا به همدې عموم ته اشاره وي. (مرقات ۷/۵۶۶)

---

(۱) رقم الحديث ۳۹۹۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۳ رقم الحديث ۲۸۱۸ وأحمد في المسند ۶/۴۱۰

## مشترکه قومي دولت کې د خيانتونو مختلف صورتونه

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ
او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ورځ مونږ ته خطبه راکړه او د هغه خطبې دوران کې

فَذَكَرَ الْغُلُولَ فَعَظَّمَهُ وَعَظَّمَ أَمْرَهُ
يې په مال غنيمت کې د خيانت ذکر وکړو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته ډېره لويه ګناه وويله او ډېر په اهميت سره يې

ثُمَّ قَالَ: " لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ
هغه بيان کړو او بيا يې وفرمايل چې خبردار! زه په تاسو هيڅ يو کس د قيامت په ورځ داسې حال و نه وينم چې

عَلَى رَقَبَتِهِ بَعِيرٌ
هغه په خپل څټ باندې به اوښ ناوې او رمباړې (په چيغه سره او ازو يستل) په وهي يعنې کوم کس چې د مال غنيمت

لَهُ رُغَاءٌ يَقُولُ:
مثلاً د اوښ خيانت وکړي نو ميدان حشر کې به په داسې حالت کې راځي چې د هغې په څټ به همغه اوښ سور

يَا رَسُولَ اللهِ أَغِثْنِي
وي او هغه به رمباړې وهي. او بيا ماته دا وايي چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زما سفارش وکړه او ورته د هغې په جواب

فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا
کې او ايم چې اوس زه ستا د هيڅ شي ذمه وار نه يم يعنې زه تا د الله د عذاب نه نشم خلاصولی، ځکه ما درته په

قَدْ أَبْلَغْتُكَ. لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ
دنيا کې د شريعت احکامات د رسولې ؤو. او خبردار! زه قيامت کې تاسو په داسې حال او نه وينم چې هغوی په

عَلَى رَقَبَتِهِ فَرَسٌ لَهُ حَمْحَمَةٌ فَيَقُولُ:
خپل څټ باندې رمباړې وهونکې اَسونه پراته وي او ميدان حشر ته راشي او بيا ماته دا اوايي چې

يَا رَسُولَ اللهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ:
يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زما سفارش وکړه او زه ورته د هغې په جواب کې او ايم چې زه اوس ستا د

لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ
هيڅ شي ذمه وار نه يم. ځکه ما تا ته د شريعت احکامات د رسولې ؤو. يعنې ته مې د مخکې نه خبر کړې وې چې په مال

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا | أُلْفِيَنَّ | أَحَدَكُمْ | يَجِيءُ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |

غنیمت کې خیانت یا په بل شي کې تصرف لویه ګناه ده. او خبردار! زه قیامت کې تاسو په داسې حال او نه وینم چې هغې په

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | رَقَبَتِهِ | شَاةٌ | لَهَا | ثُغَاءٌ | يَقُولُ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ |

خپل څټ باندې امبی امبی کونکې بزې سپرې وي او میدان حشر ته راشي. او بیا ماته دا او ایې یا رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ!

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَغِثْنِي | فَأَقُولُ: | لَا | أَمْلِكُ | لَكَ | شَيْئًا |

زما سفارش وکړه او زه ورته د هغې په جواب کې او ایم چې زه اوس ستا د هیڅ شي ذمه وار نه ځکه ما تاته د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَدْ | أَبْلَغْتُكَ | لَا | أُلْفِيَنَّ | أَحَدَكُمْ | يَجِيءُ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |

شریعت احکامات در رسولي ؤو. او خبردار! زه قیامت کې تاسو په داسې حال او نه وینم چې هغې په خپل څټ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى | رَقَبَتِهِ | نَفْسٌ | لَهَا | صِيَاحٌ |

باندې یو چغې وهونکی سړی یعني هغه غلام یا وینځه چې هغې د غنیمت د قیدیانو نه په خیانت اخستی ؤ او په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَيَقُولُ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ | أَغِثْنِي |

غاړه یې وي او میدان حشر ته راشي. او بیا ماته دا او ایې یا رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ! زما سفارش وکړه او زه ورته د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَقُولُ: لَا | أَمْلِكُ | لَكَ | شَيْئًا | قَدْ | أَبْلَغْتُكَ |

هغې په جواب کې او ایم چې زه اوس ستا د هیڅ شي ذمه وار نه ځکه ما تاته د شریعت احکامات در رسولي ؤو.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | أُلْفِيَنَّ | أَحَدَكُمْ | يَجِيءُ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | عَلَى | رَقَبَتِهِ | رِقَاعٌ |

او خبردار! زه قیامت کې تاسو په داسې حال او نه وینم چې په خپل څټ باندې یې سره زر او سپین زر پراته وي او میدان

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَخْفُقُ | فَيَقُولُ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ | أَغِثْنِي | فَأَقُولُ: |

حشر ته راشي او ماته دا او ایې یا رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ! زما سفارش وکړه او زه ورته د هغې په

لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ صَامِتٌ فَيَقُولُ:

جواب کې او ایم چې زه اوس ستا د هیڅ شي ذمه وار نه یم ځکه ما تاته د شریعت احکامات در رسولي

يَا رَسُولَ اللهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ: لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قد أُبلغتك ".

ؤو. دا روایت د معنی او د مضمون په اعتبار سره بخاری او مسلم دواړو نقل کړی دی. الفاظ د

| |
|---|
| وَهَذَا لفظ مُسلم وَهُوَ أتم (مُتَّفق عَلَيْهِ) [۱] |
| مسلم دي چې د بخارې د الفاظ په نسبت پوره دي. |

**توضيح**: د دې حديث د ټول مشکل الفاظو تشريح په بهتره طريقه په ترجمه کې راغلي دي، نور د اړدولو ضرورت نشته دی.

## په مشترکه قومي دولت کې خيانت باندې سخت وعيد

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: أَهْدَى رَجُلٌ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې يو کس د هدې په |
| غُلَامًا يُقَالُ لَهُ: مِدْعَمٌ فَبَيْنَمَا مِدْعَمٌ يَحُطُّ |
| توګه يو غلام پيش کړو چې نوم يې مدعم ؤو. يو ورځ غالباً په ميدان جنګ کې هغې |
| رَحْلًا لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم إِذْ أَصَابَهُ سهم عائِر فَقَتَلَهُ |
| د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کجاوه کوزوله چې ناڅاپه د يو نامعلومه کس تير باندې ولږېدلو چې هغه پرې مړ شو. |
| فَقَالَ النَّاسُ: هَنِيئًا لَهُ الْجَنَّةُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| خلکو وويل چې مدعم ته دې جنت مبارک مدعم خوش قسمته شو چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خدمت په دوران کې شهيد شو او جنت ته |
| كَلَّا وَالَّذِي نَفسِي بِيَدِهِ إِن الشملة الَّتِي أَخَذَهَا |
| ورسيدلو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې داسې نه ده. قسم په هغه ذات د چا په لاس کې چې زما ژوند دی هغه څادر |
| يَوْمَ خَيْبَرَ مِنَ الْمَغَانِمِ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ لَتَشْتَعِلُ عَلَيْهِ نَارًا |
| چې مدعم د خيبر په ورځ د مال غنيمت د تقسيم نه مخکې اخستې ؤو او ترېنه جوړ او په مدعم باندې راوريږي. چې هغه خلکو |
| فَلَمَّا سَمِعَ ذَلِك النَّاس |
| د هغې سخت وعيد واورېدلو چا چې په مال غنيمت کې خيانت سهل ګڼلې ؤو او دا ګمان يې کړې ؤو چې وړه وړه او معمولي شيانو |
| جَاءَ رجل بشرك |
| باندې به نبول نه کېږي. هغوی وريېدل او هغوی چې د مال غنيمت نه کول واړه شيان اخستې ؤو، بېرته يې لاوړل تردې |

---

[۱] رقم الحديث ۳۹۹۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۵/۶ رقم الحديث ۳۰۷۳ ومسلم في صحيحه ۱۴۶۱ رقم الحديث (۲۴-۱۸۳۱)

أَوْ شِرَاكَيْنِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

تردې چې يو مزی يا دوه مزي يې هم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت ته راوړلې. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ليدلو سره وفرمايل

شِرَاكٌ مِنْ نَارٍ أَوْ شِرَاكَانِ

چې دا اوريوه مزی ده يا د اور دوه مزې دي. يعنې د خيانت شی هر حالت کې د دوزخ د اور حقدار دی، هغه

من نارٍ (مُتَّفقٌ عَلَيْهِ)[1]

که هر څومره معمولې وي.

**توضيح**: **سهم عائر**: نامعلومه تیر چې ناڅاپه پرې څوک ولېږېږي. **شمله**: څادر ته ويلی شوی دی. **تشتعل**: اور د لمبو کولو په معنی کې دی. **شراک**: مزې ته وايي. (مرقات ۵۶۸/۷)

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عبدِ اللهِ بنِ عَمْرٍو قَالَ: كَانَ عَلَى ثَقَلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ

او حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو کس چې د هغې نوم کرکره ؤ چې يو غزوه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د طرفه

يُقَالُ لَهُ كِرْكِرَةُ فَمَاتَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هُوَ فِي النَّارِ

د سامان او د اسبابو ساتونکی مقرر شو. کله چې هغه مړ شو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې کرکرة دوزخ کې

فَذَهَبُوا يَنْظُرُونَ فَوَجَدُوا عَبَاءَةً

واچولی شو، نو خلکو د هغې سامان کتل شروع کړو. هغې کې يوه ګلدانئ وموندلی شوه چې هغې د

قد غلها. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2]

مال غنيمت نه خيانت کړې وه.

**توضيح** **عباءة**: چوغې په شان څادر او غاړه بند ته عباء وايي. (مرقات ۵۷۰/۷)

## په جهاد کې د ضرورت مطابق د خوارو شيانو استعمال

﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عمر قَالَ: كُنَّا نُصِيبُ فِي مَغَازِينَا الْعَسَلَ وَالْعِنَبَ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ ته به په غزواتو کې شهد او انګور ملاوېدل نو مونږ به

---

(1) رقم الحديث ۳۹۹۷ اخرجه البخاري في صحيحه ۵۲۹/۱۱ رقم الحديث ۶۷۰۷ ومسلم في ۱۰۸/۱ رقم الحديث (۱۸۳-۱۱۵)

(2) رقم الحديث ۳۹۹۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۸۷/۶ رقم حديث ۳۰۷۴ وأخرجه ابن ماجه في السنن ۹۵۰/۲ رقم الحديث ۲۸۴۹

| |
|---|
| فنأكله وَلَا نرفعُه رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| هغه خوړل، د ځان سره به مو نه وړل. |

**توضیح: العسل:** اصول او قاعده دا ده چې کوم شیان د خوراک او څښاک متعلق وي یا د اَسونو د وښو متعلق وي نو د مال غنیمت د تقسیم نه مخکې د داسې شیانو استعمالول جائز دي، خو دا جائز نه دي چې هغه د ځان سره ویوړلی شي او ذخیره کړی شي. د همدغه ممانعت له اړخ په "ولا نرفعه" کې اشاره ده. د علماؤ په دې اتفاق دی چې مجاهدین تر کومې پورې د جنګ په میدان او محاذ جنګ کې وي، نو هغه وخت هغوی له د مال غنیمت نه د ضرورت په حساب د خوراک او څښاک شیان د تقسیم نه مخکې استعمالو جائز دي. هلته دار اسلام یعنې د جنګ د محاذ نه بېرته راتللو نه وروسته دا استعمال ناجائزه دی. (مرقات ۵۷۱/۷)

## خوندور صورت

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ: أَصَبْتُ جِرَابًا مِنْ شَحْمٍ يَوْمَ خَيْبَرَ فَالْتَزَمْتُهُ |
| او حضرت عبدالله بن مغفل فرمايي چې د خيبر په ورځ د وازګې نه که يوه بوجۍ ماته وموندله او را او چته مې |
| فَقُلْتُ: لَا أُعْطِي الْيَوْمَ أَحَدًا مِنْ هَذَا شَيْئًا فَالْتَفَتُّ فَإِذَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| کړه او د سینې سره مې ولګوله او په زړه کې یا په ژبه مې وویل چې نن به زه د دې وازګې نه چاته هیڅ |
| يبتسم إِلَيّ. مُتَّفق عَلَيْهِ. وَذكر الحَدِيث أَبِي هُرَيْرَةَ مَا أُعْطِيكُمْ فِي بَابِ رِزْقِ الْوُلَاةِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| نه ورکوم. بیا ما شاته وکتل نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ولاړ وو او ما پسې یعنې خما په دې کار پسې یې خندل. |

**توضیح:** د خیبر په جنګ کې په ابتداء کې د خوراک دومره تنګې راغله چې صحابؤ وابنه اخوړل، د خرو غوښې یې وخوړلې، هلته به یهود وسیدل، د هغوی لپاره وازګه استعملول حرام ؤو. لهذا په هغوی کې چا د وازګې نه ډکه بوجۍ په دېران کې غوزاره کړه. یو صحابي ته چې دا بوجۍ ملاوه شوه نو د سینې سره یې ولګوله چې خپله به یې خورم، هیچا ته به یې نه ورکوم. چې شاته یې وکتل نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یې په خندا ولیدلو. سبحان الله څه منظر ؤو.

---

(۱) رقم الحدیث ۳۹۹۹ أخرجه البخاري في صحیحه ۲۵۵/۶ رقم الحدیث ۳۱۵۴

(۲) رقم الحدیث ۴۰۰۰ أخرجه البخاري في صحیحه ۲۵۵/۶ رقم الحدیث ۳۱۵۳ ومسلم في ۱۳۹۳/۳ رقم الحدیث (۷۲-۱۷۷۲)

## الفصل الثاني

﴿۱۷﴾ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ اللهَ فَضَّلَنِي عَلَى الْأَنْبِيَاءِ

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل بيشکه الله ماله په انبياؤ

أَوْ قَالَ: فَضَّلَ أُمَّتِي عَلَى الْأُمَمِ

فضيلت او بزرګي راکړې ده. يا يې دا وفرمايل چې زما امت ته په نورو امتونو باندې فضيلت او بزرګې ورکړې

وأحلّ لنا الْغَنَائِم ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

شوې ده. او مال غنيمت زمونږ لپاره حلال کړی شوی دی.

### د مقتول سلب به قاتل ته ورکول کيږي

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: يَوْمَئِذٍ يَوْمَ حُنَيْنٍ:

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام په هغه ورځ يعنې د غزوه حنين په ورځ وفرمايل چې کوم کس

مَنْ قَتَلَ كَافِرًا فَلَهُ سَلَبُهُ فَقَتَلَ

کوم کافر دښمن مړ کړي، د هغه وژل شوي مال او اسباب به هم هغه وژونکي ته ملاوېږي، نو

أَبُو طَلْحَةَ يَوْمَئِذٍ عِشْرِينَ رَجُلًا وَأَخَذَ أسلابهم. رَوَاهُ الدَّارِمِيّ[2]

ابو طلحه په هغه ورځ د دښمنانو شل کسان مړه کړل او د هغې ټول مال او اسباب يې حاصل کړو.

**توضيح**: فله سلبه: د جمهورو په نزد د سلب ضابطه او قاعده ده چې هر حال کې به وزونکې ته ملاوېږي. که په موقع باندې امير اعلان وکړي يا نه. د احنافو په نزد موقع باندې موقتې اعلان ضروري دی. مستقله قاعده او ضابطه نشته دی. ياده دې وي چې سلب کې خمس نشته دی. تفصيل مخکې تير شوی دی. (مرقات ۵۷۴/۷)

﴿۱۹﴾ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ وَخَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عوف بن مالک اشجعي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د وژلي شوي

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۰۱ أخرجه الترمذي في السنن ۱۰۴/۴ رقم الحديث ۱۵۵۳ وأحمدفي المسند ۲۳۸/۵

(۲) رقم الحديث ۴۰۰۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۲/۳ رقم الحديث ۲۷۱۸ والدارمي في ۳۰۱/۲ رقم الحديث ۲۸۸۴

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَضٰى | فِي | السَّلَبِ | لِلْقَاتِلِ. |
| باره کې حکم وکړو چې هغه د وژونکي حق دی. دغه شان نبي کريم ﷺ د هغه مال او اسبابو نه | | | |
| وَلَمْ يُخَمِّسِ | السَّلَبَ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] |
| د خمس جدا نه کړو، لکه څنګه به يې چې په مال غنيمت کې جدا کولو. | | | |

## د ابو جهل اصل قاتل څوک ؤو؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: نَفَّلَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ سَيْفَ | | | |
| او حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې د جنګ بدر په ورځ د ابو جهل توره زما د برخې | | | |
| أَبِي جَهْلٍ | وَكَانَ قَتَلَهُ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[2] |
| نه زياته وه. واضحه شوه چې ابو جهل عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وژلی ؤو. | | | |

**توضيح**: **وكان قتله**: يعنې ابن مسعود رضي الله عنه ابو جهل وژلی ؤو. دې باره کې په حديثونو کې لږ اختلاف دی چې اصل کې ابو جهل چا وژلی ؤو. ځينې روايتونو کې دي چې د عفراء دوه زامنو وژلی، ځينو کې دې چې ابن مسعود رضي الله عنه وژلی، ځينو کې دې چې اوله حمله معاذ بن عمرو بن جموح کړې وه بيا معوذ راغلو او کارېې ورله خلاص کړو، نو اصل حقيقت دا دی چې په ابو جهل باندې اولنۍ حمله حضرت معاذ رضي الله عنه کړې وه او د هغې ورون يې غوڅ کړو او د اَس نه يې راغوزار کړو. بيا د زمرې پشان حضرت معوذ رضي الله عنه پرې ورچيته شو او غوزار يې پرې وکړو او هغه رپيدلو چې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ورته راورسيدلو او هغې سريې غوڅ کړو. دې اعتبار سره له هر اړخه ابو جهل د وژلو نسبت شوی دی. بلکې دا هم په روايتونو کې دی چې فرښتو د ابو جهل په وژلو کې عملاً برخه اخستې وه، خو اصل کردار د حضرت معاذ رضي الله عنه ؤو، نو ځکه د هغې سامان او اسباب ټول هغې ته ورکړی شو. باقې دوؤ (۲) ته څه نه څه ورکړی شو، لکه څنګه چې د بحث لاندې حديث کې دي چې د ابو جهل توره حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته ورکړی شوه. راروان حديث ۴۳ کې او په حديث ۴۴ کې پوره تفصيل راروان دی. (مرقات ۵۷۴،۵۷۵/۷)

اوس دلته يوه پوښتنه او تعارض دی. هغه دا دی چې يو روايت کې دي چې معاذ بن عمر بن الجموح ابو جهل مړ کړو او بل کې دي چې د عفراء دوه زامنو وژلی دی، دغه تعارض به دا سې لرې کول کېږي چې معاذ او معوذ دواړه د عفرار زامن دي او په مور کې شريک رونه دي خو پلاران يې جدا جدا

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۰۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۵/۳ رقم الحديث ۲۷۲۱ وأحمد في المسند ۲۶/۶ رقم الحديث ۴۰۰۴

(۲) رقم الحديث ۴۰۰۴ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۶/۳ رقم الحديث ۲۷۲۲

دي. د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ د پلار نوم عمرو بن الجموح دی او د معوذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ د پلار نوم حارث دی. عفراء د دواړو مور ده. لهذا معاذ بن عمر بن جموح او معوذ بن عفراء جدا جدا سړی نه دي.

## توره يې را ښکله او جهاد ته روان دی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۱﴾وَعَنْ | عُمَيْرٍ | مَوْلَى | آبِي | اللَّحْمِ | قَالَ: | شَهِدْتُ خَيْبَرَ |
| او حضرت عمير د آبي الحم ازاد شوی غلام وُو. وايي چې زه د خپلو مالکانو سره په غزوه خيبر کې شريک شوی يم د هغه غزوې د روانيدو | | | | | | |
| مَعَ | ساداتي | فَكَلَّمُوا | فِي | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| په وخت زما مالکانو زما باره کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خبرې وکړې يعنې هغوی زما تعريف او صفت وکړو او عرض يې وکړو | | | | | | |
| وَكَلَّمُوهُ | | | أَنِّي | | | مَمْلُوكٌ |
| چې په ميدان جنګ کې د جنګيدلو لپاره يا د خدمت په غرض عمير رَضِيَ اللهُ عَنهُم د ځان سره بوځئ. د غه شان هغوی نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته دا هم | | | | | | |
| فَأَمَرَنِي | | | فَقُلِّدْتُ | | | سَيْفًا |
| وويل چې زه يو غلام يم. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زما د مالکانو درخواست منظور کړو او ماته يې حکم وکړو چې زه مسلح شم او د مجاهدينو سره | | | | | | |
| فَإِذَا | أَنَا | أَجُرُّهُ | فَأَمَرَ | لِي | | بِشَيْءٍ |
| شامل شم، نو ماته يې توره راکړه او مسلح يې کړم يعنې يوه توره يې زما غاړې ته واچوله. چې به روان وُوم نو د کمر عمرئ په وجه يا لنډ قد | | | | | | |
| مِنْ | | | خُرْثِيِّ | | | الْمَتَاعِ |
| په وجه به ما خپله توره ځمکې پسې را ښکله او مزل به مې کولو. بيا د ښمنانو باندې د غلبې حاصلولو نه وروسته د مال غنيمت تقسيم | | | | | | |
| وَعَرَضْتُ | | عَلَيْهِ | | رُقْيَةً | | كُنْتُ |
| شروع شو، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه د هغې څه لږ شان ماته هم د راکولو حکم وکړو. د غه شان هره موقع باندې ما نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته خپله هغه منتر | | | | | | |
| أُرْقِي | بِهَا | الْمَجَانِينَ | فَأَمَرَنِي | بِطَرْحِ | | بَعْضِهَا |
| اورولی دی چې ما به لېونو باندې دمولو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه مې د هغې باره کې وپوښتل، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ماته د | | | | | | |
| وَحَبْسِ | بَعْضِهَا. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو | | دَاوُدَ |
| هغې د ځينو برخو د پرېښودلو او د ځينو د جاري ساتلو حکم وکړو. دا روايت ترمذی او ابوداؤد | | | | | | |

| |
|---|
| إِلَّا أَنَّ رِوَايَتَهُ انتهتْ عِنْد قَوْله: الْمَتَاعَ[1] |
| نقل كړې دى خو د ابو داؤد الفاظ په المتاع باندې پوره شوې دي. |

**توضيح**: حرثي المتاع: يعني د كور سامان را وغور ځېدلو يعني پتېله وغيره.

**أَجَزُ**: يعني عمر او قد د كموالي په وجه توره مې په زمكه رابنكله او روان ؤوم.

**ارقي بها**: يعني ما دم هم كولو. ما چې كله نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د دم الفاظ ولوستل نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځېنې منع كړل او ځېنې مې جاري وساتل. (مرقات ۵۷۵/۷)

## د خيبر غنيمتونو كې د احنافو استدلال

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾وَعَن محمع بن جارِيَةَ قَالَ: قُسِمَتْ خَيْبَرُ |
| او حضرت مجمع بن جاريه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې خيبر كې حاصل شوى مال غنيمت او زمكه په هغه خلكو كې تقسيم |
| عَلَى أَهْلِ الْحُدَيْبِيَةِ فَقَسَمَهَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| كړى شوه چې په صلح حديبيه كې شريك ؤو، نو نبي كريم ﷺ د هغه خيبر مال غنيمت او زمكه په |
| ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا وَكَانَ الْجَيْشُ أَلْفًا |
| اتلس (۱۸) برخو كې تقسيم كړه او په صلح حديبيه كې د شريك شوې لښكر تعداد پنځلس سوه |
| وَخَمْسَ مِائَةٍ فِيهِمْ ثَلَاثُمِائَةِ فَارِسٍ فَأَعْطِيَ الْفَارِسُ سَهْمَيْنِ |
| (۱۵۰۰) كسان ؤو چې هغې كې درې سوه (۳۰۰) سور ؤو ر. د غه شان سپارو ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دوه برخې وركړې |
| وَالرَّاجِلُ سَهْمًا رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ |
| او پيدل كسانو ته يې يوه برخه ابو داؤد دا روايت نقل كړى دى او ويلي يې دي چې دې باره كې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| أصح فَالْعَمَل عَلَيْهِ وَأَتَى الْوَهْمُ فِي حَدِيثِ مُجَمِّع |
| حديث صحيح دى. او همغې باندې اكثر ائمؤ عمل كړى دى. د غه شان د مجمع په روايت كې واهمه واقع شوى ده |

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۰۵ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۱/۳ رقم الحديث ۲۷۳۰ والترمذي في ۱۰۷/۴ رقم الحديث ۱۵۵۷.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّهُ | قَالَ: | ثَلاثُمِائَةِ | فَارِسٍ | وَإِنَّمَا | كَانُوا | مِائَتَيْ | فَارس[1] | |

چې هغې ويلې دي چې درې سوه سپاره ؤو. حال دا چې د سپارو تعداد دوه سوه ؤو.

**توضيح**: د دې حديث پوره تفصيل په حديث نمبر ۳ کې تير شوی دی.

## څوک چې ډېر په زړه ورتيا جنګ کوي ډيره برخه به اخلي

﴿۲۳﴾ وَعَن حبيب بن مسلَمَةَ الفِهْرِيِّ قَالَ شَهِدْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت حبيب ابن مسلمه فهری فرمايي چې د يوې غزوې په موقعه زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شوم

| | | | |
|---|---|---|---|
| نفل | الرّبع | فِي | البدأة |

شوم. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د جنګ په ابتداء کې جنګ کونکو ته د مال غنيمت نه د څلورمې برخې نه زياته برخه ورکړه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالثلث | فِي | الرجعة. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[2] |

او بېرته راتللو وخت کې يې جنګ کونکو ته يې د دريمې برخې نه زياته برخه ورکړه.

**توضيح**: **نفل الربع**: دا د تنفيل نه دی. د انعام په توګه زياتې برخې ته ويلې شوی ده. د دې صورت به دا ؤو چې مثلاً څه خلکو د اسلام د لښکر محاذ ته رسيدلو نه مخکې په کافرانو باندې حمله وکړه او کافرانو ته يې شکست ورکړو، نو هغه اولنۍ دستې ته به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مال غنيمت په توګه د ټول نه څلورمه برخه د انعام په توګه ورکوله. او په باقې مال کې به يې هم د عام مجاهدينو پشان برخه وه، ځکه دې خلکو ډېر د جرأت مظاهره کړې ده. (مرقات ۵۷۷/۷) د "**البداءة**" همدغه مطلب دی. دويم صورت به دا ؤو چې مثلاً د اسلام لښکر به بېرته د محاذ نه لاړو خو يوه دسته اوس هم د دښمن په مقابل کې کله جنګ کوي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به داسې خلکو ته د تقسيم نه مخکې د ټول مال دريمه برخه ورکوله ځکه دوی په جرأت کې د مخکنو نه زيات دي. همدغې ته "**في الرجعة**" ويلې شوې دي. اوس دې بحث دی چې دا انعام د خمس د لړې کولو نه روسته په پاتې څلورو برخو کې به ورکول کېدلو او که خمس به هم په دې شامل ؤو. راتلونکې روايت نمبر ۲۴ نه معلومېږي چې د خمس لرې کولو نه روسته به داسې کېدلو. او همدغه د احمد بن حنبل مسلک دی. ځينې ويلې دي چې دا انعام به د خمس د مال نه زيات ورکول کېدلو. (مرقات ۵۷۷/۷)

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۰۶ اخرجه ابوداود في السنن ۱۷۴/۳ رقم الحديث ۲۷۳۶ وأحمد في المسند ۴۳۰/۳

(۲) رقم الحديث ۴۰۰۷ أخرجه أبوداود في السنن ۱۸۲/۳ رقم الحديث ۲۷۵۰ وابن ماجه في ۹۵۱/۲ رقم الحديث ۲۷۵۳

﴿۲۴﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ

او حضرت حبیب ابن مسلمه فهري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ په ابتداء کې د اسلامي لښکر د

يُنَفِّلُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ

رسیدلو نه مخکې جنګ کونکو مجاهدینو ته د مال غنیمت نه د خمس جدا کولو نه وروسته د څلورمې برخې

وَالثُّلُثَ بَعْدَ الْخُمُسِ

نه زیاته ورکوله او د لښکر د بېرته راتللو صورت کې جنګ کونکو مجاهدینو ته د خمس جدا کولو نه وروسته

إِذَا قَفَلَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

د تهائي برخې نه زیاته ورکوله.

## په مالِ فئ کې ټول مسلمانان شریک دي

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي الْجُوَيْرِيَةِ الْجَرْمِيِّ قَالَ: أَصَبْتُ

او حضرت ابو جویره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د حضرت امیر معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت په زمانه کې یوه

بِأَرْضِ الرُّومِ جَرَّةً حَمْرَاءَ فِيهَا دَنَانِيرُ فِي إِمْرَةِ مُعَاوِيَةَ وَعَلَيْنَا

ورځ د روم په زمکه یو سور رنګې بوجۍ وموندله چې د دینارو نه ډکه وه. هغه وخت زمونږ د علاقې حاکم

رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ يُقَالُ لَهُ: مَعْنُ بْنُ يَزِيدَ

د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صحابؤ کې یو کس ؤو چې نوم یې معن ابن یزید ؤو. هغې بوجۍ واخستله

فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَقَسَمَهَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ

او هغې له راغلو. هغوی دا دینار مسلمانانو یعنې د اسلام مجاهدینو په مینځ کې تقسیم کړل او هغې کې

وَأَعْطَانِي مِنْهَا مِثْلَ مَا أَعْطَى رَجُلًا مِنْهُمْ

یې ماته هغومره راکړل څومره چې د یو کس په برخه کې راغلې وه. یعنې ماته یې د ټولو برابره راکړه، هیڅ یې زیاته رانکړه.

ثُمَّ قَالَ: لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او بیا هغې وفرمایل چې که چرې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا نه وی اورېدلی چې د خمس جدا کولو

---

[1] رقم الحديث ۴۰۰۸ اخرجه ابوداود في السنن ۱۸۳/۳ رقم الحديث ۲۷۴۹ والدارمي في ۳۰۰/۲ رقم الحديث ۲۴۸۳

| |
|---|
| لَا نَفَلَ إِلَّا بَعْدَ الْخُمُسِ لَأَعْطَيْتُكَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| نه وروسته زياته برخه وركول كېږي نو يقيناً ما به تاته د نورو نه زياته برخه دركړې وی. |

**توضيح** لولا انی: يعني انعام وغيره د دې مال نه زيات وركول كېږي. چې خمس ترېنه جدا كېږي يعنې هغه مال غنيمت وي چې د خمس جدا كولو نه وروسته د نورو څلورو برخو نه انعام وركول كېږي. لهذا انعام زه ځكه نه شم دركولی چې دا مال غنيمت نه دی بلكې مال فئ دی. چې د جنګ نه بغير تاته حاصل شوی دی، نو ځكه د انعام اميد مه ساته بلكې د عامو مسلمانانو پشان به تاته هم برخه ملاوېږي. (مرقات ۵۷۶/۷)

## د اهل سفينه خصوصيات

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الأَشعرِيِّ قَالَ: قَدِمْنَا فَوَافَقْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو موسى اشعری رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمايي چې كله مونږ حبشې نه راغلو او نبي كريم صَلَّىاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ له راغلو، |
| حِينَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ فَأَسْهَمَ لَنَا أَوْ |
| نو نبي كريم صَلَّىاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ هغه وخت خيبر فتح كړی وو، نو نبي كريم صَلَّىاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د مال غنيمت نه مونږ له هم برخه راكړه. |
| قَالَ: فَأَعْطَانَا مِنْهَا وَمَا قَسَمَ |
| ابو موسى اشعری رَضِيَاللَّهُعَنْهُ دا وويل چې نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ مونږ ته هم د مال غنيمت نه برخه راكړه او نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ د هغه مال |
| لِأَحَدٍ غَابَ عَنْ فَتْحِ خَيْبَرَ مِنْهَا |
| غنيمت نه بل هيڅ هغه كس ته برخه ورنه كړه چې د فتح خيبر په موقع موجود نه وو بغير د هغه كسانو نه چې غزوه خيبر |
| شَيْئًا إِلَّا لِمَنْ شَهِدَ مَعَهُ إِلَّا أَصْحَابَ سَفِينَتِنَا |
| پهوخت كې د نبي صَلَّىاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ سره وو او بغير زمونږ د كشتۍ والو نه يعني حضرت جعفر رَضِيَاللَّهُعَنْهُ او د هغې ملګرو نه چې نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ |
| جَعْفَرًا وَأَصْحَابَهُ أَسْهَمَ |
| مونږ كشتۍ والو ته هم په هغه غزوه خيبر كې شريك كېدونكو مجاهدونو سره برخه راكړه سره د دې |

[1] رقم الحديث ۴۰۰۹ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۷/۳ رقم الحديث ۲۷۵۳ وأحمد في المسند ۴۷۰/۳

| |
|---|
| لَهُمْ مَعَهم. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ(۱) |
| نه چې مونږ په دې غزوه خيبر کې شريک شوي نه ؤو. |

**توضيح**: د جنګ خيبر په موقع د حبشې نه مدينې ارخ ته په د دويمې هجرئ په موقع حضرت جعفر رضي الله عنه و غيره صحابه کرام رضي الله عنهم راورسيدل. نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هغوی لپاره په مال غنيمت کې برخه مقرره کړې وه. دا څنګه وشوه؟ نو دې کې د فقهاؤ اصولو باندې پوهېدل پکار دي. د امام شافعي رحمه الله اصول دا دي چې کله ميدان جنګ کې جنګ ختم شي او د کافرانو ته د شکست نه وروسته مال غنيمت د مسلمانانو لاس ته راغلل نو د بهر نه راتلونکې لښکر ته په هغې کې هيڅ حق نشته دی. دا به صرف په مجاهدينو باندې تقسيمېږي. د شوافعو په نزد دار اسلام د طرفه د ايستلو او ځان ساتلو شرط نشته دی.

## نبي کريم صلى الله عليه وسلم د يو خائن جنازه ونکړه

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ خَالِدٍ: أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت يزيد ابن خالد رضي الله عنه راوي دی چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په صحابه کرامو رضي الله عنهم کې |
| تُوُفِّيَ يَوْمَ خَيْبَرَ فَذَكَرُوا لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يو کس د خيبر په ورځ مړ شو. صحابه کرامو د هغې ذکر نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته بيان کړو. نبي عليه السلام ته وويل شو |
| فَقَالَ: صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ |
| چې د فلانن کس مړ شوی دی. نبي عليه السلام وفرمايل چې تاسو د هغې جنازه وکړئ، زه د هغې جنازه نه کوم. |
| فَتَغَيَّرَتْ وُجُوهُ النَّاسِ لِذَلِكَ |
| خلکو دې اوريدلو سره د وېرې نه د هغوی رنګ بدل شو چې معلومه نه ده چې نبي عليه السلام د هغې د جنازې لمونځ ولې نه کوي. |
| فَقَالَ: إِنَّ صَاحِبَكُمْ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللهِ |
| نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل زه د دې د جنازې لمونځ ځکه نه کم چې ستاسو دې ملګرې د الله په لاره کې يعنې مال |
| فَفَتَّشْنَا مَتَاعَهُ فَوَجَدْنَا خَرَزًا |
| غنيمت کې د خيانت ارتکاب کړی ؤو، نو د هغې مال او اسباب ولټولو، نو مونږ ته په هغې کې د |

(۱) رقم الحديث ۴۰۱۰ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۸/۳ رقم الحديث ۲۷۲۵

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ | خَرَزِ | يَهُودَ | لَا | يُسَاوِي |

یهودو یعنې د یهودو د ښځو په غاړه کولو امبیل ملاؤ شو. چې د دوه درهمو برابر هم نه ؤو. یعنې

دِرْهَمَيْنِ. رَوَاهُ مَالِك وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1]

د هغې قیمت د دوه درهمو نه هم کم ؤو.

**توضیح**: خزر: د غاړې هغه امبیل ته وايي چې د بیکاره شیانو نه جوړ شوی وي.

## خیانت شوي واګي قیامت کې خپله راوړه

﴿۲۸﴾ وَعَن عبدِ الله بنِ عَمْرٍو قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَصَابَ غَنِيمَةً

او حضرت عبدالله ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د مال غنیمت د راجمع کولو او د تقسیمولو اراده وکړه نو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَمَرَ | بِلَالًا | فَنَادَى | فِي | النَّاسِ |

حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته به یې د اعلان کولو حکم کولو، نو هغې د خلکو په مینځ کې اعلان کړو او د اعلان او ریدلو سره خلکو خپل خپل

| | | |
|---|---|---|
| فَيَجِيئُونَ | بِغَنَائِمِهِمْ | فَيُخَمِّسُهُ |

غنیمتونه راوړل یعنې چا سره چې د غنیمت څه ؤو، هغه یې راوړل او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به دربار کې جمع کړل. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اول خمس

| | | |
|---|---|---|
| وَيُقَسِّمُهُ | فَجَاءَ | رَجُلٌ |

یعنې پنځمبرخه جدا کړه او د هغې نه وروسته یې مال غنیمت خلکو یعنې مجاهدینو په مینځ کې تقسیم کړو. یو څل داسې وشو چې یو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَوْمًا | بَعْدَ | ذَلِكَ | بِزِمَامٍ | مِنْ | شَعَرٍ |

کس د مال غنیمت نه د خمس جدا کولو او هغې د مجاهدینو په مینځ کې د تقسیمولو نه یو ورځ وروسته د ویختانو نه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ | هَذَا | فِيمَا | كُنَّا | أَصَبْنَاهُ |

جوړ شوی واګي راوړلو او عرض یې وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! کوم مال غنیمت چې زمونږ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ | الْغَنِيمَةِ | قَالَ: أَسَمِعْتَ | بِلَالًا | نَادَى | ثَلَاثًا؟ |

په لاس راغلی ؤو هغې کې دا واګي هم ؤو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ درې ځله اعلان کړی ؤو.

---

(1) رقم الحدیث ۴۰۹۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۵/۳ رقم الحدیث ۲۷۱۰ والنسائي ۶۴/۴ رقم الحدیث ۱۹۵۹

قَالَ: نَعَمْ قَالَ: فَمَا
هغه تا اورېدلی ؤو؟ هغې وویل چې آؤ ما اورېدلی ؤو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې بیا هغه وخت
مَنَعَكَ أَنْ تَجِيءَ بِهِ؟ فَاعْتَذَرَ قَالَ:
ته د راوړلو نه څه شي منع کړې وې. هغې د تاخیر لپاره څه عذر بیان کړو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل
كُنْ أَنْتَ تَجِيءُ بِهِ يومَ القيامةِ
چې اوس دا د ځان سره کېده. اوس دا خپله د قیامت په ورځ د ځان سره راوړه او هلته خدای له د دې
فلنْ أقبلَه عَنْكَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]
تاخیر جواب ورکړه. زه تا نه هرګز دا نه نۀ اخلم.

## په مشترکه قومي دولت کې د خیانت سزا

﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ
او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار حضرت شعیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او هغه د شعیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل نیکه
أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ
عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په
حَرَّقُوا مَتَاعَ الْغَالِّ وضربوه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]
مال غنیمت کې د خیانت کونکې سامان او اسباب اوسوځول او هغوی له یې ښه وهل هم ورکړل.

**توضیح:** **حرقوا**، کوم کس چې خیانت وکړي نو د هغط سزه څه ده. دې حدیث کې دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې به د خائن مال سوځولی کېدلو. ځینې فقهاؤ لکه احمد بن حنبل وغیره وایي چې نن هم دغه شان حکم دی چې د خیانت کونکې مال دې اوسوځولی شي، خو ژوندی ځناور دې بچ کړی شي، صحیفې وغیره دې ونه سوځولی شي. دغه شان خیان کړی شوی مال دې هم اوسوځولی شي ځکه دا د خیانت کونکې مال نه دی بلکې د بیت المال مال دی. داغه شان د ژوندې ځناورو سوځول هم منع دی. د جمهورو فقهاؤ په نزد د خیانت کونکې مال

[1] رقم الحدیث ۴۰۱۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۶/۳ رقم الحدیث ۲۷۱۲ واحمد في المسند ۲۱۳/۲
[2] رقم الحدیث ۴۰۱۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۸/۳ رقم الحدیث ۲۷۱۵

او اسباب دي ونه سوځولي شي بلکې قاضي دې د سزا په توګه خيانت کونکي ته بله سزه ورکړي. دا حضرات فرمايي چې د بحث لاندې حديث تشديد او تغليظ باندې محمول دی. (مرقات ۵۸۴/۷)

## په خائن باندې پرده اچول هم خيانت دی

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ | | |
| او حضرت سمره ابن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمايل چې کوم کس په | | |
| يَكْتُمُ | غَالًّا | فَإِنَّهُ |
| مال غنيمت کې د خائن خيانت پټ کړو (يعنې هغې نه يې امير او حاکم خبر نه کړو چې فلانې کس خيانت کړی دی) نو د ګناه ګار | | |
| مِثْلُهُ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] |
| کېدلو په اعتبار سره هغه هم د خيانت کونکې پشان دی. | | |

**توضيح**: يعنې چاچې خائن پټ کړو او هغه يې بچ کړو، د هغې مخالف يې دباؤ کړو او خيانت شوی مال يې پټ کړو، نو دا کس به هم په دې خيانت کې برابر شريک وي.

## د تقسيم نه مخکې د مال غنيمت اخستل او خرڅول منع دي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شري | | | | |
| او حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غنيمت مال د تقسيم کولو نه اول هغه د | | | | |
| الْمغنم | حَتَّى | تقسم. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيّ[2] |
| اخستلو نه منع کړی دی ځکه د تقسيم نه مخکې د هغې هيڅ مالک نه وي. | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ | أَبِي | أُمَامَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او جضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې | | | | | | | |
| نَهَى | أَنْ | تُبَاعَ | السِّهَامُ | حَتَّى | تُقْسَمَ. | رَوَاهُ | الدَّارِمِيّ[3] |
| ممانعت نه اعلان وکړو چې د مال غنيمت برخې چې ترکومې پورې تقسيم نشي، هغه دې خرڅ نه کړی شي. | | | | | | | |

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۱۴ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۸/۳ رقم الحديث ۲۷۱۶

([2]) رقم الحديث ۴۰۱۵ أخرجه الترمذي في السنن ۱۱۲/۴ رقم الحديث ۱۵۰ وابن ماجه في ۷۴۰/۲ رقم الحديث ۲۱۹۶

([3]) رقم الحديث ۴۰۱۶ أخرجه الدارمي في ۲۹۸/۲ رقم الحديث ۲۴۷۶

﴿۳۳﴾ وَعَن خولةَ بنتِ قيسٍ: قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:إِنَّ

او حضرت خوله بنت قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې بيشكه

هَٰذِهِ الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ

دا مال يو شين او خوږ شی دی (يعني مال يو داسې شی دی چې د انسان نظر يې خوښوي او زړه خوشحالوي)

فَمَنْ أَصَابَهُ بِحَقِّهِ بُورِكَ لَهُ فِيهِ

لهذا كوم كس چې دا مال حق يعني حلال ذريعې سره حاصلوي نو د هغې لپاره په هغې كې بركت

وَرُبَّ متخوض فَمَا شَاءَتْ بِهِ نَفْسُهُ مِنْ مَالِ اللهِ وَرَسُولِهِ

اچولی كېږي. او ياد وساتئ چې ډېر داسې خلک دي چې د الله او د هغې د رسول په مال يعني مال غنيمت

لَيْسَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا النَّارُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

نه چې كوم شی د هغې زړه غواړي، هغه خپل كړي. د قيامت په ورځ به هغې له صرف د دوزخ اور وي.

## د ذوالفقار تورې ذكر

﴿۳۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَفَّلَ سيفه ذَا الْفَقَارِ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله توره چې نوم يې ذوالفقار ؤو

يومَ بدْرٍ رَوَاهُ أَحمد وَابْن مَاجَهْ وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ وَهُوَ الَّذِي رَأَى فِيهِ الرُّؤْيَا يَوْم أحد[2]

د جنگ بدر په ورځ د برخې نه زيات ؤو. (مسند احمد، ابن ماجه )

**توضيح**: **ذوالفقار**: فقار د ملا د تير كړيو (مهرو) ته وائي، د تورې په شا، يا خو دغه قسمه هډوكی ؤو. يا دغه قسمه مهر جوړ شوی ؤو. جنگ بدر كې دا توره د يو كافر مُنَبِّه بن حجاج په لاس كې ؤو. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه مړ كړو. هغه توره نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښه كړې وه. او د "صفي" په توگه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله اخستې وه. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مختلفو جنگونو كې استعمال كړې ؤو. د جنگ أحد نه مخكې چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوب كې كومه ماته توره ليدلې وه. هغه هم دغه صفي ؤو. د صفي انتخاب صرف د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خاص ؤو. بيا منسوخ شو. نبي كريم ﷺ دا توره

---

[1] رقم الحديث ۴۰۱۷ أخرجه الترمذي في السنن ۵۰۷/۴ رقم الحديث ۲۳۷۴ وأحمد في المسند ۳۷۸/۶.

[2] رقم الحديث ۴۰۱۸ أخرجه الترمذي في السنن ۱۱۰/۴ رقم الحديث ۱۵۶۱ وابن ماجه في السنن ۹۳۹/۲ رقم الحديث ۲۸۰۸

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړه، څکه خلك وايي. (مرقات ۷/۵۸۴)

لافتی الاعلی لا سیف الاذوالفقار

## څوک چې مؤمن وي خيانت به نه کوي

﴿۳۵﴾ وَعَن رويفع بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ

او حضرت رويفع ابن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې الله او

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَرْكَبُ دَابَّةً

په ورځ د آخرت باندې ايمان لري نو دهغې لپاره قطعاً روا نه دي چې هغه د مسلمانانو د مشترکه

مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا أَعْجَفَهَا رَدَّهَا فِيهِ

مال غنيمت نه يو ښاروی بغير له شرعې ضرورت نه سور شي او بيا چې کله هغه ښاروي کمزوری شي نو هغه مال غنيمت ته

وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

بېرته وسپاري او کوم کس چې الله او په آخرت باندې ايمان لري د هغې لپاره قطعاً دا جائز نه دي چې د

فَلَا يَلْبَسْ ثَوْبًا مِنْ فَيْءِ الْمُسْلمين حَتَّى إِذَا أخلقه

هغه د مسلمانانو د مشترکه جامې بغير له شرعې ضرورت نه واغوندې او بيا چې کله هغه زړې شي

ردها فِيهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

نو هغه مال غنيمت ته بېرته ورکړي.

﴿۳۶﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي الْمُجَالِدِ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ:

او حضرت محمد ابن ابو المجالد د حضرت عبدالله ابن ابی اوفی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوي چې ما د (عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ)

قُلْتُ: هَلْ كُنْتُمْ تُخَمِّسُونَ الطَّعَامَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟

نه وپوښتل چې آيا تاسو به د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې د خوراک د شيانو نه خمس يعني پنځمه برخه جدا کوله؟

قَالَ: أَصَبْنَا طَعَامًا يَوْمَ خَيْبَرَ فَكَانَ الرَّجُلُ يَجِيءُ

هغه وفرمايل چې د غزوه خيبر په ورځ د خوراک شيان هم زمونږ لاسه راغلي وُو، نو هر کس به راتللو او د هغې

(۱) رقم الحديث ۴۰۱۹ أخرجه ابوداود في [illegible] ۲/۶۱۶ رقم الحديث ۲۱۵۹

فَيَأْخُذُ مِنْهُ مقدارَ مَا يكفيهِ ثُمَّ ينْصَرِف. وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۱]

به يې د ضرورت مطابق اخستل او بېرته به تللو. (ابو داؤد)

﴿۳۷﴾ وَعَن ابنِ عُمَرَ: أَنَّ جَيْشًا غَنِمُوا فِي زَمَنِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې د مسلمانانو لښکر چې کله د جهاد

طَعَامًا وَعَسَلًا فَلَمْ يُؤْخذْ

نه بېرته راغلو نو په مال غنیمت کې یې د خوراک شیان او شهد راوړل. هغه لښکر چې د دې شیانو نه څه خوړلې

منهمُ الْخمس. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۲]

ښنلې ؤو یا چې څه هغوی پاتې شوې راوړې ؤو د هغې نه خمس یعنې پنځمه برخه نه جدا کړې شوې.

﴿۳۸﴾ وَعَنِ الْقَاسِمِ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت قاسم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (تابعی) چې د عبدالرحمن ازاد کړی شوی غلام ؤو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د څینې صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُم

قَالَ: كُنَّا نَأْكُلُ الجَزورَ

نه روایت کوي چې هغوی یعنې څینې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم بیان وکړو چې مونږ به په غزواتو کې د اوښ غوښه

فِي الغزْوِ وَلَا نُقَسِّمُهُ

خوړله او هغه به نه تقسیموله یعنې مونږ به په مجاذ جنګ کې د ضرورت مطابق د مال غنیمت نه اوښان ذبح

حَتَّى إِذَا كُنَّا لَنَرْجعُ إِلَى رِحَالِنَا

کول او د هغې غوښه به مو د تقسیم نه بغیر د خپل خپل حاجت مطابق اخستله تر دې چې مونږ به د سفر

وأخْرِجَتُنا مِنْهُ مَمْلُوءَة. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۳]

دوران کې خپلو ډیرو او خیمو ته بېرته راغلو نو زمونږه بوجۍ به د غوښو نه ډکې وي.

**توضیح: فناکل الجزور:** د ضرورت مطابق مجاهدین په میدان جنګ کې اوښ ذبح کولی او خوړلی

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۲۰ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۱/۳ رقم الحديث ۲۷۰۴

(۲) رقم الحديث ۴۰۲۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۴۹/۳ رقم الحديث ۲۷۰۱

(۳) رقم الحديث ۴۰۲۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۲/۳ رقم الحديث ۳۷۰۶

شي. خو چې هلته نه لښکر بېرته راشي او د سرحد نه راواوړي نو اوس دا چې ضرورت پاتې نه شو نو ځکه يې اوس استعمالول جائز نه دي بلکې ونډه هم د مال غنيمت نه نۀ شي اخستل کېدی.

اخرجنتا: د الخروج جمع ده. بوجئ او د خوراک د ايښودلو لوښو ته وايي. دا د ميدان جنګ پس منظر بيانوي چې مونږ به د خپلو خيمو اړخ ته دا غوښه د خوراک لپاره وړله. د ذخيره کول لپاره به مو نه وړله.

## د مشترکه مال نه ستن هم مه اوچتوئ

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: أَدُّوا |
| او د حضرت عباده ابن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به فرمايل چې ادا کوئ |
| الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ وَإِيَّاكُمْ |
| چې تار او ستن هم يعنې د مال غنيمت نه دا معمولې شی هم مه پټوئ او تاسو په مال غنيمت کې يا مطلق |
| وَالْغُلُولَ فَإِنَّهُ عَارٌ عَلَى أَهْلِهِ |
| د خيانت نه ځان وساتئ ځکه دې کې هيڅ شک نشته دی چې خيانت کول د خيانت کونکو خلکو لپاره به |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ |
| د قيامت په ورځ بې عزته کونکی وی. (دارمي او نسائی دا روايت د عمرو ابن شعيب او هغې د |
| عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ[1] |
| خپل پلار او هغې د خپل نيکه نه نقل کړی دی. |

**توضيح**: خِيَاط: تار ته وايي. **المخيط**: ستن ته وايي. **الخياط**: خا باندې کسره ده. ستنه کې اچولو والا تار. **المخيط**: خا باندې کسره ده. يا باندې فتحه ده. ستنې ته وايي. (مرقات ۵۸۹/۷)

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: |
| او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې هغې وويل: يو ورځ |
| دَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَعِيرٍ فَأَخَذَ وَبَرَةً |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مال فئ کې د راوړلی شوي يو اوښ خوا له تشريف راوړو او د هغې کوب |

[1] رقم الحديث ۴۰۲۳ اخرجه ابن ماجه في السنن ۹۵۰/۲ رقم الحديث ۲۸۵۰ والدارمي في ۳۰۲/۲

مِنْ سَنَامِهِ ثُمَّ قَالَ: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لَيْسَ لِي مِنْ هَذَا الْفَيْءِ

نه يې يو دوه ويختان راويستل او ويې فرمايل. خلكو! حقيقت دا دى چې د دې مال فئ كې زما هيڅ

شَيْءٌ وَلَا هَذَا وَرَفَعَ إِصْبَعَهُ

برخه نشته دى، نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په گوته باندې هغه دوه ويختان ؤو. خلكو ته يې د ښودلو لپاره گوته اوچته كړه او ويې فرمايل چې دا

إِلَّا الْخُمُسَ وَالْخُمُسُ

مال هم يعنې دومره معمولې برخه هم زما نشته دى. البته خمس يعنې د پنځمې برخې زه حقدار يم خو خمس هم په ما نه خرچ كېږي

مَرْدُودٌ عَلَيْكُمْ فَأَدُّوا

بلكې به هم تاسو باندې خرچ كېږي. يعنې د خمس مال هم ستاسو د خير لپاره خرچ كېږي. هغه وخت كې ستاسو لپاره اسلحه او اسونه

الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ فَقَامَ رَجُلٌ فِي يَدِهِ

وغيره حاصليږي. لهذا كه تاسو سره د مال غنيمت ستنه هم وي نو هغه هم جمع كړئ. د دې اورېدلو سره د يو كس په لاس كې

كُبَّةٌ شَعَرٍ فَقَالَ: أَخَذْتُ هَذِهِ لِأُصْلِحَ

د ويختانو نه جوړې شوې د پړي يوه غونډارې ؤو. او د رېدلو او ويې ويل چې د پړي دا ټوټه ما د ځان سره اينښې وه چې د دې

بِهَا بَرْدَعَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

په ذريعې سره د پالان د لاندې كمبله برابره كړم. اوس د دې باره كې څه حكم دى؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل

أَمَّا مَا كَانَ لِي ولبني عبدِ المطلبِ

چې تر كوم ځاى پورې د دې شي باره كې سوال دى چې زما او د بنو عبد المطلب په برخه كې دى، نو هغه ستا دى يعنې د دې

فهوَ لكَ فَقَالَ:

ټوټې نه چې څه زما د خاندان بنو هاشم او د هغې د حليف او ملگرې بنو عبد المطلب د خلكو برخه ده هغه خو مونږ تا ته دراوبخښله، خو

أَمَّا إِذَا بَلَغَتْ

د دې كې چې څه زمونږ نه بغير د نورو مجاهدينو ده، د هغې باره كې ته خبر شه چې كه چرې ته هغوى باندې هم دا برخه ځان ته اوبخښې

مَا أَرَى فَلَا أَرَبَ لِي

نو هيڅ مواخذه به پرې نه وي. او كه هغوى برخې و نه بخښلې نو د قيامت په ورځ به نيولې كېږي. د دې كس د اورېدلو سره وويل چې دا

| | | |
|---|---|---|
| فِيهَا | ونبَذَها. رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[۱] |
| پرې د ګناه دې حد ته رسيدلې دې چې زمامخې ته دې، نو بيا ماته د دې ضرورت نشته دې او د دې ويلو سره يې هغه پرې غوزار کړو. | | |

**توضيح**: كبة: يعني د ويختانو يو غونډارى، ښځې چې كله د چرخئ په ذريعه وړئ غوځوي او د وړئ يو ټوټه ماشوره جوړه شي. همغې ته كبة وايي. (مرقات۷/۵۹۰)

**بَردَعة**: د آس د زين لاندې يا د اوښ د كجاوې د لاندې چې كومه ټوټه په شا باندې خورول كېږي همغې ته بردعه وايي. نبي كريم صَلَّى‌اللّٰه‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ د هغه كس په جواب كې وفرمايل چې كه دا معمولي شى زماوى يا زماد خاندان وى نو ما به دركړى وى خو دا د بيت المال مال دى. هغه كس په جواب كې وويل چې كه د دومره شي معامله دومره لرې لاړله نو ماته د دې هيڅ ضرورت نشته دى. د دې ويل سره هغې هغه غونډارى غوزار كړو. (مرقات۷/۵۹۰)

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَن عمرو بن عَبَسَةَ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَعِيرٍ مِنَ | | |
| او حضرت عمرو ابن عبسه رَضِيَ‌اللّٰه‌عَنۡهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى‌اللّٰه‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ په (يو موقع كې) د مال غنيمت يو | | |
| الْمَغْنَمِ | فَلَمَّا | سَلَّمَ |
| اوښ ستره كړو او مونږ ته يې لمونځ راكړو. كله چې نبي كريم ﷺ سلام وګرځولو او د لمونځ نه فارغ شو | | |
| أَخَذَ وَبَرَةً مِنْ جَنْبِ الْبَعِيرِ ثُمَّ قَالَ: وَلَا يَحِلُّ لِي | | |
| نو د هغه اوښ د غاړې نه يې يو دوه ويختان راويستل او بيا يې وفرمايل چې ستاسو په مال غنيمت كې زما لپاره | | |
| مِنْ غَنَائِمِكُمْ مِثْلُ هَذَا إِلَّا الْخُمُسُ وَالْخُمُسُ مَرْدُودٌ فِيكُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۲] | | |
| دومره يعني د دې ويختانو هومره برخه هم نشته دى بغير د خمس نه او هغه خمس هم ستاسو په ضرورتونو كې خرچ كېږي. | | |
| ﴿۴۲﴾ وَعَن جُبير بنُ مُطعِمٍ قَالَ: لَمَّا قَسَمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ سَهۡمَ | | |
| او حضرت جبير ابن مطعم رَضِيَ‌اللّٰه‌عَنۡهُ فرمايي چې كله نبي كريم صَلَّى‌اللّٰه‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ په مال غنيمت كې د خپلو | | |
| ذَوِي الْقُرْبَى بَيۡنَ بَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ أَتَيۡتُهُ أَنَا وَعُثۡمَانُ بۡنُ عَفَّانَ | | |
| نږدې خپلوانو پنځمه برخه بنو هاشم او بنو مطلب په مينځ كې تقسيم كړه، نو زه د بنو نوفل او عثمان رَضِيَ‌اللّٰه‌عَنۡهُ | | |

(۱) رقم الحديث ۴۰۲۴ أخرجه النسائي في السنن ۲۶۲/۶ رقم الحديث ۳۶۸۸

(۲) رقم الحديث ۴۰۲۵ أخرجه ابوداود في السنن ۱۴۲/۳ رقم الحديث ۲۶۹۴ وأحمد في المسند ۱۸۴/۲

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقُلْنَا: | يَا | رَسُولَ | اللهِ | هٰؤُلَاءِ | | | |
| د بنو عبد شمس له اړخه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو او مونږ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ! زمونږ دا | | | | | | | |
| إِخْوَانُنَا | مِنْ | بَنِي | هَاشِمٍ | لَا | نُنْكِرُ | فَضْلَهُمْ | |
| ورور چې تعلق يې د بنو هاشم سره دى، مونږ د دې د فضيلت او د بزرګۍ نه انکار خو نه کوو ځکه ته الله تعالى په هغوى کې پيدا کړې | | | | | | | |
| لِمَكَانِكَ | الَّذِي | وضعكَ | اللهُ | | | | |
| يې. لهذا په دې اعتبار سره زمونږ په نسبت هغوى تا ته ډېر نزدې دي، ځکه ستا او د هغوى نيکه يو دى. يعنې هاشم، اګر که زمونږ او د | | | | | | | |
| مِنْهُمْ | أَرَأَيْتَ | إِخْوَانَنَا | | | | | |
| هغوى نيکه هم يو دى، خو مونږ تاسو دا او ايه چې د دې څه وجه ده چې تاسو د خمس په مال کې د خپلو خپلوانو کومه برخه د زمونږ هغه | | | | | | | |
| مِنْ | بَنِي | الْمُطَّلِبِ | أَعْطَيْتَهُمْ | وَتَرَكْتَنَا | | | |
| ورونو ته خو برخه ور کړه او مونږ ه مو محروم کړو حال دا چې زمونږ يعنې د بنو نوفل او د عبد شمس او د هغوى يعنې د بنى مطلب خپلولي | | | | | | | |
| وَإِنَّمَا | قَرَابَتُنَا | وَقَرَابَتُهُمْ | | | | | |
| يو ده. د غه شان لکه څنګه چې د هغوى نيکه د هاشم ورور و. د غه شان زمونږ نيکه هم د هاشم ورور ؤ. | | | | | | | |
| وَاحِدَةٌ | فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| ګويا کې د هغه دواړو د عرض حاصل دا ؤ چې په مال غنيمت کې چې کوم خمس جدا کېږي هغه د قرآن مطابق د | | | | | | | |
| إِنَّمَا | بَنُو | هَاشِمٍ | وَبَنُو | الْمُطَّلِبِ | | | |
| ستاسو د خپلوانو برخه ده، نو تاسو د خپلوانو يو ښاخ بنو مطلب ته د مال خمس نه ور کړو خو نورو دوه ښاخونو يعنې بنو نوفل او | | | | | | | |
| شَيْءٌ | وَاحِدٌ | هٰكَذَا | | | | | |
| بنو عبد شمس ته هيڅ ورنکړل. حال دا چې دا دواړه ښاخونه د يو لويې نيکه يعنې د عبد مناف اولاد دى، نو د دې امتيازي سلوک | | | | | | | |
| وَشَبَّكَ | بَيْنَ | أَصَابِعِهِ. | | | | | |
| څه وجه ده. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د يو لاس ګوتې د بل لاس ګوتو په مينځ کې ورکړې او دې اړخ ته يې اشاره وکړه او ويې فرمايل چې د دې نه بغير | | | | | | | |
| رَوَاهُ | الشَّافِعِيُّ | وَفِي | رِوَايَةِ | أَبِي | دَاوُدَ | | |
| هيڅ خير نه يم لکه څنګه چې د دا ګوتې په خپل مينځ کې يو شوې دي. د غه بنو هاشم او بنو مطلب هم يو شى دى. (شافعي رحمه الله) د | | | | | | | |

وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ وَفِيهِ: إِنَّا وَبَنُو الْمُطَّلِبِ

ابوداؤد او نسائي روايت هم دغه شان دی او هغې کې دا الفاظ دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې مونږ او

لَا نَفْتَرِقُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا إِسْلَامٍ وَإِنَّمَا نَحْنُ وَهُمْ شَيْءٌ وَاحِدٌ وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِه[1]

هغوی دواړه يو شی يو. دې ويلو سره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لاسونو گوتې يو بل سره يو ځای کړې.

**توضيح**: د دې حديث پوره تشريح د دې نه مخکې په حديث نمبر ۹ کې شوې ده. هلته يې وګورئ.

## الفصل الثالث

### د ابوجهل د مرګ قصه

﴿۲۳﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: إِنِّي وَاقِفٌ فِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ

حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د غزوه بدر په ورځ زه د دښمن په مقابل صف کې ولاړ وم. چې

فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي فَإِذَا بِغُلَامَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ

ما خپل ښي او چپ اړخ ته نظر واړولو نو څه وينم چې زه د دوه انصارو هلکانو په مينځ کې ولاړ يم چې بالکل

حَدِيثَة أَسنانها فتمنيت

کم عمري وو. ما دا ارمان وکړو چې کاش زه دې وخت کې د دې دواړو نه زيات د طاقت او تجربو والا په مينځ کې ولاړ

أَنْ أَكُونَ بَيْنَ

وی. يعني ما دا کم عمري د حوصلې او زړه ورتيا په اعتبار سره کم وګڼل او دا خيال مې وکړو چې دا د نوې عمر والا تجربه

أَضْلَعَ مِنْهُمَا فَغَمَزَنِي

کار دي. څکه کېدی شي چې د دښمن د حملې مقاومت ونه کړي او د جنګ په وخت کې وتښتي. چې ما ته به هم ترينه

أَحَدُهُمَا فَقَالَ: يَا عَمِّ

نقصان راورسي. زه په دې خيالونو کې اخته ؤوم چې ناڅاپه دې دواړو کې يو زه وڅکوندلم او وې ويل چې تره جانه

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۲۶ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۸/۳ رقم حديث ۲۷۵۵

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هَلْ | تَعْرِفُ | أَبَا | جَهْلٍ؟ | قُلْتُ: | نَعَمْ | | | | | |
| آيا ته ابو جهل پيژنې. هغه کوم يو دى او چرته دى؟ ما ورته وويل چې زه يې پيژنم خو زما وراره ستا د ابو جهل سره | | | | | | | | | | |
| فَمَا | حَاجَتُكَ | إِلَيْهِ | يَا | ابْنَ | أَخِي؟ | قَالَ: | أُخْبِرْتُ | أَنَّهُ | يَسُبُّ | |
| څه کار دى؟ هغې وويل چې زه خبر شوى يم چې هغه لعين نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کنځلې کوي. قسم کوم په | | | | | | | | | | |
| رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَالَّذِي | | | | |
| هغه ذات چې د چا په قبضه کې زما ژوند دى، که زه هغه او وينم نو زما بدن به د هغې د بدن نه تر هغه وخته پورې جدا نه شي تر کومې | | | | | | | | | | |
| نَفْسِي | بِيَدِهِ | لَئِنْ | رَأَيْتُهُ | | | | | | | |
| پورې په مونږ يو مرګ ته ژر ور رسيدلو کې تونده ونه کړي يعنې د ابو جهل خلاف زما په زړه کې دومره کرکه ده | | | | | | | | | | |
| لَا | يُفَارِقُ | سَوَادِي | سَوَادَهُ | | | | | | | |
| چې په ليدلو سره به پرې حمله کوم او تر هغې پورې به ورسره جنګ کوم چې تر څو پورې مونږ دواړو کې چې د چا مرګ | | | | | | | | | | |
| حَتَّى | يَمُوتَ | الْأَعْجَلُ | مِنَّا | | | | | | | |
| مخکې راتلونکى وي هغه مړ نه شي، اګر که زه شهيد شم او که هغه جهنم ته ورباندې رسل کړم. حضرت عبد الرحمن فرمايي چې ددې کم | | | | | | | | | | |
| فَتَعَجَّبْتُ | لِذَلِكَ | قَالَ: | | | | | | | | |
| عمرې خبره اورېدلو سره زه حيران شوم چې خدايا ددې کم عمرو په زړه کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره څومره مينه ده او د دوى جذبې | | | | | | | | | | |
| وَغَمَزَنِي | الْآخَرُ | فَقَالَ | | | | | | | | |
| همت او حوصلې او زړه ورتيا څه محشر خور شوى دى. عبد الرحمن فرمايي چې بيا هغه بل هلک زه وڅکوندلم او | | | | | | | | | | |
| لِي | مِثْلَهَا | فَلَمْ | أَنْشَبْ | | | | | | | |
| هغې هم همغه الفاظ وويل چې کوم اولنې ويلې ؤو. د هغې وروسته ما هيڅ توقف ونه کړو او ابو جهل مې | | | | | | | | | | |
| أَنْ | نَظَرْتُ | إِلَى | أَبِي | جَهْلٍ | يَجُولُ | فِي | النَّاسِ | فَقُلْتُ: | | |
| وليدلو چې د ښمن خلکو کې ګرځېدلو. ما د هغې اړخ ته اشاره کول سره هغه هلکانو ته وويل چې آيا | | | | | | | | | | |
| أَلَا | تَرَيَانِ؟ | هَذَا | صَاحِبُكُمَا | | | | | | | |
| تاسو هغه کس نه وينئ چې په د ښمنانو کې ګرځې راګرځې؟ همدغه تاسو ته مطلوب دى چې د کوم باره کې تاسو | | | | | | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| الَّذِي | تَسْأَلَانِي | عَنْهُ | قَالَ: |

خمانه پوښتنې کولې يعني دا کس وپېژنئ، دا ابو جهل دی. عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې دې او رېدلو سره دواړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فابتدراه | بسيفهما | فَضَرَبَاهُ | حَتَّى | قَتَلَاهُ |

خپلې تورې سنبال کړې او ژر د ابو جهل اړخ ورمخکې شول او په هغې يې حمله وکړه تر دې چې هغې يې مړ کړو.

ثُمَّ انْصَرَفَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُخبراهُ

بيا هغه دواړه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوا ته بېرته راغلل او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې د دې واقعې نه خبر کړو.

فَقَالَ: أَيُّكُمَا قَتَلَهُ؟ فَقَالَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: أَنَا قتله فَقَالَ: هلْ مسحتُما سيفيكما؟ فَقَالَا: لَا

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل تاسو دواړو خپلې تورې او چې کړې؟ هغوی وويل چې نه،

فَنَظَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى السَّيْفَيْنِ فَقَالَ: كِلَاكُمَا قَتَلَهُ

نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې دواړو تورو ته وکتل او ويې فرمايل چې تاسو دواړو هغه مړ کړی دی.

وَقَضَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَلَبِهِ لِمُعَاذِ بن عَمْرِو بن الْجَمُوحِ

او بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د ابو جهل سامان معاذ ابن عمرو ابن جموح ته ورکړئ او

وَالرَّجُلَانِ: مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ ومعاذ بن عفراء (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

هغه دواړه هلکانو چې ابو جهل يې مړ کړی ؤو معاذ ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابن جموح او معوذ ابن عفراء ؤو.

**توضيح**: **اضلع**: د اقوی په معنی کې دی يعني ما ارمان وکړو چې کاش زما بنې او چپ اړخ ته د دې دوه ماشومانو په ځای طاقتور سړي وی. (مرقات ۵۹۳/۷)

**فغمزني**: يعني د لاس په گوتو باندې يې زما بدن وشکونډلو چې زه د هغوی اړخ ته متوجې شم.

**سوادي سواده**: **ای جسمی جسمه و شخصی شخصه** (مرقات ۵۹۳/۷)

**الاعجل**: يعني د چا د مرګ چې مخکې وي هغه به مړ شي. دا هم د ځان وژنې حملې پشان دی. چې اصل کې بله ځان وژنه ده. (مرقات ۵۹۳/۷)

**لم انشب**: يعني هيڅ وخت په کې و لرېدلو. (مرقات ۵۹۳/۷)

**ومعاذ بن عفراء**: د دې نه مخکې ليکلی شوې دي چې دا دواړه مور عزيره ؤو ورنه ؤو او د مور نوم

---

[1]) رقم الحديث ۴۰۲۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۴۶/۶ رقم الحديث ۳۱۴۱ وأحمد في المسند ۱۹۳/۱

يې عفراء ؤو او پلاران د دواړو جدا جدا ؤو. د معاذ د پلار نوم عمرو بن جموح ؤو او د معوذ د پلار نوم حارث ؤو او د دواړو د مور نوم عفراء ؤو. نو د چا اړخ ته هم نسبت وشو صحيح دہ. هيڅ تعارض نشته دی. البته دومره دې ياده وي چې اول حضرت معاذ رضي الله عنه حمله وکړه بيا معوذ رضي الله عنه وکړه او وتښتېدل. بيا حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وروسته راغلو او د ابوجهل سره غوڅ کړو. فرښتو هم د خير په دې کار کې برخه اخستې وه. (مرقات ۷/۵۹۵، ۵۹۴)

## حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د ابوجهل په سينه باندې

| |
|---|
| ﴿۴۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ: |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د جنګ بدر په ورځ ميدان جنګ کې وفرمايل |
| مَنْ يَنْظُرُ لَنَا مَا صَنَعَ أَبُو جَهْلٍ؟ |
| چې کوم کس دی چې په ليدلو سره او ايې چې ابوجهل څه وکړل يعنې د هغې څه انجام شو، هغه وژلی شوی دی يا که |
| فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَوَجَدَهُ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا عَفْرَاءَ |
| ژوندی دی. نو حضرت ابن مسعود رضي الله عنه لاړو او هغې ابوجهل په داسې حالت کې وليدلو چې عفراء دواړو زامنو وهلې دی |
| حَتَّى بَرَدَ قَالَ: فَأَخَذَ بِلِحْيَتِهِ فَقَالَ: |
| او يخ کړی يې دی يعنې مرګ ته يې نزدې کړی ؤو. حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دې ليدلو |
| أَنْتَ أَبُو جَهْلٍ فَقَالَ: |
| سره د ابوجهل ګيره ونيوله او ورته وې يې ويل چې ابوجهل يې؟ ابوجهل د ابن مسعود رضي الله عنه دې پوښتنې شاته د پتې توقې او کرکه |
| وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ |
| محسوسه کړه او وې ويل چې بيشکه زه ابوجهل يم، خو آيا ته د هغه کس نه په اوچته مرتبه کې يې چې کوم تا وژلی دی؟ يعنې کوم کس |
| قَتَلْتُمُوهُ. وَفِي رِوَايَةٍ: |
| چې تا وژلی دی د هغې په لويه مرتبه کې هيڅ شوک نشته دی. د دې الفاظ په ذريعه ګويا کې ابوجهل دا دعوی وکړه چې په |
| قَالَ: فَلَوْ غَيْرُ |
| قريشو کې په مرتبه کې زمانه بل هيڅ شوک نشته دی او يو روايت کې دا دي چې ابوجهل په دې موقع دا وويل |

| | | |
|---|---|---|
| أَكَّارٍ | قتلني | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| چې که د غیر زراعت والا خلکو زه وژلی وی نو بهتره به وی. | | |

**توضيح** حتى برد: يعني د ژوند آخري سلګۍ يې وه. (مرقات ۷/۵۹۵)

**وهل فوق رجل:** يو مطلب دا دی چې د دې کس نه اوچت تا څوک وژلی دی. يعني زمانه تا هيڅ نويې کس نه دی وژلی. دويم مطلب دا دی چې يو کس دې وژلی دی دې باندې څه فخر کوي، نو لښکر موجود دی. د دې حديث په ترجمه کې په مظاهر حق کې څه ابهام دی.
ځينې روايتونو کې دلته څه تفصيل ديږ. هغه دا چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کله راغلو نو د ابوجهل په سينه کيناستلو. ابوجهل وويل چې ای شپونکيه! مبارک دې وي په لويې او اوچت مقام کيناستلې، خو دا راته اوايه چې د جنګ ميدان د چا په لاس کې دی؟ هغې ورته وفرمايل ميدان د محمد عربي او د مسلمانانو په لاس کې دی. ابوجهل وويل د ځان ښودنې ضرورت نشته دی، د يو کس نه بغير دې بل څوک وژلی دی. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ستانه بغير اويا (۷۰) کسان وژلی شوي دي. ابوجهل وويل دا راته اوايه زه وهلی چايمه؟ هغې ورته وويل د عفراء ځوي وهلی يې. ابو جهل وويل "**فلو غيرا كار قتلني**" کاش که د دهقان نه بغير بل چا وژلی وی. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابو جهل ږيره رانښکله او ورته ويې فرمايل چې "**وقد اخزاك الله يا عدوالله**" ای د الله دښمنه! الله ته ذليله کړی يې. بيا ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل ما تا وژونکی يم. ابوجهل وويل چې دا څه اولنئ واقعه نه ده چې يو غلام مالک وژلی دی. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل زه دې سر غوڅول غواړم. ابو جهل وويل خپله توره راته ابنايه. کله چې ابوجهل د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زنګ شوې توره وليدله نو وي ويل چې په دې نه بلکې زما توره واخله او سر مې جدا کړه خو د اوږو سره يې غوڅ کړه چې زماسر اوچت ښکاري او محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ايي ربنتيا هم چې د لوی سردار سر ؤو. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورله سر غوڅ کړو او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته يې کيښودلو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شکر سجده وکړه او ويې فرمايل: زماد امت فرعون ؤوژلی شو. تفصيلات زما په کتاب جنګ بدر کې وګورئ. (مرقات ۷/۵۹۶)

## د کمزور مسلمان مال بچ کول پکار دی

| |
|---|
| ﴿۴۵﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ: أَعْطَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا |
| او حضرت سعد ابن وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ حال دا چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مجلس کې ناست ؤم چې د |

(1) رقم الحديث ۴۰۲۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۲۴۶ رقم الحديث ۳۱۴۱ وأحمد في المسند ۱/۱۹۳

| |
|---|
| وَأَنَا جَالِسٌ فَتَرَكَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم مِنْهُم رَجُلًا |
| نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ يو جماعت ته څه مال ورکړو او هغه جماعت کې يو کس نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ پرېښود لو يعني هغې له يې |
| وَهُوَ أَعْجَبُهُمْ إِلَيَّ فَقُمْتُ |
| هيڅ ورنه کړل. حال دا چې هغه کس زما په نزد د دين په اعتبار سره د ټولو نه بهتر وُو. دې ليدلو سره زه او درېدلم |
| فَقُلْتُ: مَا لَكَ عَنْ فُلَانٍ؟ |
| او نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ ته مې عرض وکړو چې د فلاني کس لپاره څه دي چې نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ هغه د خپلې تحفې نه محرومه کړو؟ |
| وَاللهِ إِنِّي لَأُرَاهُ مُؤْمِنًا |
| قسم په خدای! زه خو دا صادقه مومن گڼم. نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ و فرمايل چې داسې مه وايه چې زه دا صادقه مومن |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْ مُسلماً ذكَرَ سَعْدٌ ثَلَاثًا |
| گڼم بلکې داسې وايه چې زه دا مسلمان گڼم. سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ مخې ته دا خبره درې ځله وويله، خو |
| وَأَجَابَهُ بِمِثْلِ ذَلِكَ ثُمَّ قَالَ: |
| نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ هم هر ځلې هم دغه شان جواب ورکړو. د هغې نه وروسته نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ و فرمايل چې زه يو کس |
| إِنِّي لَأُعْطِي الرَّجُلَ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ |
| ته مال ورکوم حال دا چې د هغې په نسبت هغه بل کس ما ته ډېر نزدې او ډېر خوښ وي او د هغې وجه دا وېره |
| خَشْيَةَ أَنْ يُكَبَّ فِي النَّارِ عَلَى وَجْهِهِ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| وي چې چرته هغه کس پر مخې دوزخ ته غوزار نه کړی شي. او د بخاری او مسلم يو روايت کې دا دي چې |
| وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: قَالَ الزُّهْرِيُّ: فنرى: أَنَّ الْإِسْلَامَ |
| زهری رحمه الله فرمايلي دي چې د دې ارشاد له نظره زما دا عقيده ده چې اسلام کې اصل کلمه يعني کلمه د شهادت |
| الْكَلِمَةَ وَالْإِيمَانَ الْعَمَلَ الصَّالِحَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| نوم دی او د زړه ايمان د نيک عمل يعني د تصديق نوم دی. |

(1) رقم الحديث ۴۰۲۹ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۲۴/۳ رقم الحديث (۱۱۸-۱۸۰۰)

**توضيح**: او مسلماً: علامه طيبي فرمايي چې "او" د بل په معنی کې دی. يعنې نبي کريم ﷺ دا ويل غواړي چې د ايمان يو پټ باطني امر دی. د دې حکم مه لګوئ بلکې صرف ظاهر باندې حکم لګوئ چې اسلام دی. لهذا دې ته مسلمان وايه، مؤمن مه وايه. د دې روايت نه په اسلام او ايمان کې د تباين پته لږېږي. تفصيل د جلد اول په كتاب الايمان کې دی. (الكاشف: ۸/۶۱،۶۰)

## حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د بدريانو مرتبه حاصله ده

| |
|---|
| ﴿۴۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ يَعْنِي يَوْمَ بَدْرٍ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د جنګ بدر په ورځ د خطبې ورکول لپاره او درېدلو |
| فَقَالَ: إِنَّ عُثْمَانَ انْطَلَقَ فِي حَاجَةِ اللهِ وَحَاجَةِ رَسُولِهِ |
| او ويې فرمايل چې بيشکه عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الله او د هغې د رسول د کار لپاره تلی دی، ځکه زه (خپله) د هغې له |
| وَإِنِّي أُبَايِعُ لَهُ فَضَرَبَ لَهُ رسولُ الله بِسَهْمٍ |
| اړخه بيعت کوم. بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره د جنګ بدر په مال غنيمت کې برخه مقرره |
| وَلَمْ يَضْرِبْ بِشَيْءٍ لِأَحَدٍ |
| کړه او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه بغير بل د هيچا لپاره داسې برخه مقرره نه کړه چې په جنګ |
| غَابَ غَيْرَهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| کې شريک شوی نه ؤو. |

**توضيح**: حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جنګ بدر کې د نبي کريم ﷺ لور حضرت رقيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په بيمار پرسئ کې مشغول ؤو. نبي کريم ﷺ د حکم مطابق جنګ بدر کې شريک نه شو. بدر والو درجه عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ملاوه شوه او د مال غنيمت برخه هم ورته ورکړې شوه.

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَعَن رافعِ بن خديجٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْعَلُ فِي قَسْمِ |
| او حضرت رافع ابن خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم ﷺ د مال غنيمت د تقسيم په |

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۳۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۳/۲۴۰ رقم الحديث ۱۴۷۸ ومسلم في صحيحه ۱/۱۳۲ رقم الحديث (۲۳۶-۱۵۰)

| |
|---|
| الْمَغَانِمِ عَشْرًا مِنَ الشَّاءِ بِبَعِيرٍ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] |
| وخت کې يو اوښ د لسو بزو برابر ګڼلی ؤو. (نسائي) |

## جهاد لپاره د لمر ډوبیدو سره حصار شو

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " غَزَا نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په انبياؤ کې يو نبي يعنې |
| فَقَالَ لِقَوْمِهِ: لَا يَتْبَعْنِي |
| ديوشع ابن نون عَلَيْهِ السَّلَامُ ذکر دی چې يو ځل هغې د جهاد اراده وړه او کله چې د جهاد لپاره روان شو نو هغې خپل قوم ته وويل |
| رَجُلٌ مَلَكَ بُضْعَ امْرَأَةٍ |
| چې ماسره دې هغه کس نه ځي چې د يوې ښځې سره يې نکاح کړې وي او هغه ښځه يې کور ته راوستلې وي او د جماع |
| وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَبْنِيَ بِهَا وَلَمَّا يَبْنِ بِهَا وَلَا أَحَدٌ بَنَى بُيُوتًا |
| اراده ورسره لري او تر اوسه پورې يې کور ته راوستلې وي او زماسره هغه کس مه ځئ چې کورېې جوړ کړی |
| وَلَمْ يَرْفَعْ سُقُوفَهَا وَلَا رَجُلٌ اشْتَرَى غَنَمًا أَوْ خَلِفَاتٍ |
| وې خو په هغې چت نه وي اچولی. دغه شان هغه کس هم زماسره مه ځئ چا چې بلاربې بزې او بلاربې اوښې |
| وَهُوَ يَنْتَظِرُ وِلَادَهَا |
| اخستې وي او د هغې د بچو د پيدا کېدلو په انتظار کې وي. د هغې نه وروسته هغه نبي د خپلو نورو ملګرو سره |
| فَغَزَا فَدَنَا مِنَ الْقَرْيَةِ |
| روان شو او کله چې هغه کلي ته نزدې ورسيدل چرته يې چې د جهاد اراده لرله نو مازيګر وخت شوی ؤ يعنې هغه |
| صَلَاةَ الْعَصْرِ أَوْ قَرِيبًا مِنْ ذَلِكَ فَقَالَ لِلشَّمْسِ: |
| داسې وخت کې هغه کلي ته نزدې ورسيدلو چې د مازيګر لمونځ د ختميدلو وخت ؤو. هغه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لمر |
| إِنَّكِ مَأْمُورَةٌ وَأَنَا مَأْمُورٌ |
| مخاطب کړو او وې ويل چې ته هم علېښې باندې مامورېې او زه هم د دې کلي په فتح کولو باندې ماموريم: |

[1] رقم الحديث ۴۰۳۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۸/۳ رقم الحديث ۲۷۲۶.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اللّٰهُمَّ | | احْبِسْهَا | | عَلَيْنَا | | فَحُبِسَتْ | | | |
| اې الله! ته لمر ودروې نو هغه لمر او دريدلو يعنې د پخوانو ماهرين فلكياتو د نظرېې مطابق د لمر رفتار يا د نوې نظرېې | | | | | | | | | |
| حَتّٰى | | فَتَحَ | | اللهُ | | عَلَيْهِ | | | |
| مطابق د ځمکې گردش په حکم ودرول شوی ؤ و چې د شپې د تورتم نه مخکې مخکې هغه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ جهاد وکړي. | | | | | | | | | |
| فَجَمَعَ | | الْغَنَائِمَ | | فَجَاءَتْ | | يَعْنِي | | النَّارَ | |
| او الله هغه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته فتح ورکړه. بيا چې مال غنيمت را جمع کړی شو او هغې د سوزولو لپاره اور بل کړی شو نو | | | | | | | | | |
| لِتَأْكُلَهَا | | فَلَمْ | | تَطْعَمْهَا | | فَقَالَ: | | | |
| هغه اور مال غنيمت او نه سوځولو. دې ليدلو سره نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپلو ملګرو ته وويل چې يقيناً په تاسو کې د | | | | | | | | | |
| إِنَّ | | فِيكُمْ | | غُلُولًا | | | | | |
| مال غنيمت خيانت شوی دی يعنې تاسو کې چا په مال غنيمت کې خيانت کړی دی. چې د هغې وجې اور خپل | | | | | | | | | |
| فَلْيُبَايِعْنِي | | مِنْ | | كُلِّ | | قَبِيلَةٍ | | | |
| کار نه کوي. لهذا تاسو کې هرې قبيلې کې يو يو کس له پکار دي چې هغه بيعت وکړي. چې بيعت شروع شو او | | | | | | | | | |
| رَجُلٌ | | فَلَزِقَتْ | | يَدُ | | رجلٍ | | | |
| د هرې قبيلې يو يو کس خپل لاس د هغه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په لاس کې کېښودلو نو د يو کس لاس د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د | | | | | | | | | |
| بيدِه | | فَقَالَ: | | فيكُم | | الغُلولُ | | | |
| لاس و نښتلو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه کس ته وفرمايل چې دې ذريعې سره ثابت شو چې خيانت ستا له اړخ شويدی | | | | | | | | | |
| فجاؤوا | بِرَأْسٍ | مِثْلِ | رَأْسِ | بَقَرَةٍ | مِنَ | الذَّهَبِ | فَوَضَعَهَا | | |
| بيا د هغه قبيلې والا يو د سرو زرو سر را وړو چې غوې د سر پشان ؤ او هغه يې کېښودلو. د هغې نه وروسته | | | | | | | | | |
| فَجَاءَتِ | النَّارُ | فَأَكَلَتْهَا | زَادَ | فِي | رِوَايَةٍ: | | | | |
| اور راغلو او هغه مال يې او سوځولو. او يو روايت کې راوي دا عبارت هم نقل کړی دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا وفرمايل | | | | | | | | | |
| فَلَمْ | تَحِلَّ | الْغَنَائِمُ | لِأَحَدٍ | قَبْلَنَا | ثُمَّ | أَحَلَّ | اللهُ | لَنَا | الْغَنَائِمَ |
| زمونږ نه مخکې د هيچا لپاره مال غنيمت حلال نه ؤو. بيا الله تعالى دا زمونږ لپاره حلال کړو. الله تعالى مالي | | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَأَى | ضَعْفَنَا | وَعَجْزَنَا | فَأَحَلَّهَا | لَنَا | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) | |

تو که بندې مونږ کمزورې ولیدلو نو مال غنیمت یې مونږ ته په ره حلال کړو.

**توضیح** نبي من الانبياء: وايي دا يوشع بن نون پيغمبر ؤو. هغې وزګار ځوانان د جهاد د پاره انتخاب کړل چې په زړه ورتیا سره جنګ وکړي.

**انت مأمورة:** يعنې کا ماته د جهاد حکم دی او تا باندې د اسمان د سفر حکم دی. ای الله دا ودروې چې زه د جهاد عمل پوره کړم او ښار ته دننه شم. دا چې د لمر د ډوبېدلو نه وروسته د شنبې ورځ د شروع والا ؤوه او د شنبې په ورځ د هغوی لپاره جهاد کول منع ؤو، ځکه حضرت يوشع عَلَيْهِ السَّلَامُ دعا وکړه چې د جهاد عمل پوره شي او ښار فتح شي. ګنې تر بله ورځ پورې به کافران مضبوط ښې. دا وخت کمزورې دي او د هغوی پښې ښوېدلې دي. د هغې دعا نه وروسته لمر او درېدلو. کله چې ښار فتح شو نو هغه لمر ډوب شو. د دې نه د جهاد د اهمیت او عظمت پته لږي. د تبليغ والو په نزد د جهاد هيڅ اهمیت نشته دی. بهرحال ښار فتح کېدلو نه وروسته مال غنیمت را جمع کړی شو، خو د رواج مطابق اور هغه اونسوځولو. حضرت يوشع عَلَيْهِ السَّلَامُ د خلکو سره د مصافحې کول حکم وکړو. د خيانت کونکې لاس د هغې د لاس سره ونښتلو. د دې حديث نه معلومه شوه چې د يهودو انبياؤ جهاد کړی دی. کوم خلک چې جهاد ته دهشت ګردي وايي هغوی په خپل نبي باندې اعتراض کوي.

## په مال غنیمت کې خیانت کونکی به دوزخ ته اچولی کېږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | قَالَ: | حَدَّثَنِي | عمر | قَالَ: |

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ ته بيان وکړو چې کله د خيبر ورځ

لَمَّا كَانَ يَوْمَ خَيْبَرَ أَقْبَلَ نَفَرٌ مِنْ صَحَابَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا:

راغله يعنې غزوه خيبر ختم شو، نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په صحابؤ کې يو څو خلک راغلل او خپل مينځ کې يې وويل

| | | | |
|---|---|---|---|
| فُلَانٌ | شَهِيدٌ | وَفُلَانٌ | شَهِيدٌ |

فلانی شهيد دی او فلانی کس شهيد دی يعنې هغه ورځ چې کوم مسلمانان شهيدان شوي ؤو د هغوی نومونه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | مَرُّوا | عَلَى | رَجُلٍ | فَقَالُوا: |

يې اخستل او د هغوی د شهادت ذکر يې کولو. تردې چې هغوی د يو کس په جسد باندې تير شول او ورته يې وويل

(۱) رقم الحديث ۴۰۳۲ أخرجه النسائي في ۷/۲۲۱ رقم الحديث ۴۳۹۱ وأحمد في المسند ۳/۴۶۲.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فُلَانٌ | شَهِيدٌ | فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: كَلَّا |
| چې دا فلانی کس شهید دی. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې اوربدلو سره و فرمایل چې هرگز نه، تاسو چې په کومه معنی کې | | | | | | | | |
| إِنِّي | رَأَيْتُهُ | فِي | النَّارِ | فِي | بُرْدَةٍ | غَلَّهَا | أَوْ | عَبَاءَةٍ |
| دې ته شهید وایې هغه صحیح نه دی، ځکه ما دې کس ته په مال غنیمت کې یو څادر یا یې و فرمایل چې یو دهرئ | | | | | | | | |
| ثُمَّ | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | |
| او د یوې کمبلي پټولو په وجه دوزخ کې په سوزېدلو باندې لیدلی دی. بیا نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه مخاطب | | | | | | | | |
| يَا | ابْنَ | الْخَطَّابِ | اذْهَبْ | فَنَادِ | فِي | النَّاسِ: | | |
| کړم او وې فرمایل چې ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاړ شه او د خلکو په مینځ کې درې ځله دا اواز وکړه چې | | | | | | | | |
| أَنَّهُ | لَا | يَدْخُلُ | الْجَنَّةَ | إِلَّا | الْمُؤْمِنُونَ | ثَلَاثًا | | |
| جنت ته صرف مومن یعنې کامل مومن داخلېږي. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه اوتلم او درې | | | | | | | | |
| قَالَ: فَخَرَجْتُ فَنَادَيْتُ: أَلَا إِنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ ثَلَاثًا. رَوَاهُ مُسلم [1] | | | | | | | | |
| ځله مې اواز وکړو چې خبردار! جنت ته به صرف مومن داخلېږي. (مسلم) | | | | | | | | |



[1] رقم الحديث ۴۰۳۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۲۸/۶ رقم الحديث ۳۱۲۴ ومسلم في ۱۳۶۶/۳ رقم الحديث (۳۲-۱۷۴۷)

# باب الجزية
# د جزيي بيان

**قال الله تعالیٰ: ﴿حتی يعطوا الجزية عن يد و هم صاغرون﴾ (سورة التوبة : ۲۹)**

جزيه د جزا نه دی. چې لغوي اعتبار سره د بدلې په معنی کې دی. اصطلاح کې "**الجزية ما يؤخذ من اهل الذمة**" يعنې جزيه هغه خاص محصول او ټيکس ته وايي چې د ذميانو نه د هغوی د مال او نفس د حفاظت په بدل کې اخستلی کېږي، نو د اسلامي حکومت ذمه واري ده چې هغوی د زميانو د مال او نفس او د هغوی د عزت او ابرو حفاظت وکړي. (مرقات ۶۰۴/۷)

**د جزيي حکمت**: اهل ذمۀ باندې د جزيي عملي کولو حکمت دا دی چې کله هغوی اسلام او اهل اسلام د نژدې نه وګوري او د هيڅ يَو اړخ نه په هغوی باندې پابندي نه وي. هر اړخ ته د اسلام شوکت او غلبه وي. د اسلام برکتونه وي، نو دير ژر به د اسلام آفاقي کشش هغوی اسلام ته رابنکاږي، ځکه په لاکهونو ذميانو په قرونِ اولیٰ کې داسې اسلام قبول کړی دی.دويم حکمت جزيه کې دا دی چې په ذميانو باندې جزيه بوج شي نو د هغوی زړونه به مغلوب شي. د اسلام قانون به غالب وي، نو په کفر کې به د ذميانو لپاره هيڅ فائده نه وي. بلکې دنيوي نقصان به هم وي او اخروي نقصان به هم وي، نو ځکه د جزيي د ذلت نه د وتلو لپاره او د دنيوي ګټو په غرض به هغوی اسلام ته راشي. نن سبا هم دا ليدلی کېږي چې چرته ټيکس کم وي يا نه وي. خلک هغه اړخ ته ځي. ګومره خلک دي چې خپل ځانونه په اهل باطلو کې شميري چې هلته ټيکس نه راځي. يَو ښه مسلمان به د زکوٰة نه د بچ کېدلو لپاره خپل ځان عيسائی، قاديانی او رافضي ښائی. د دې لپاره چې د زکوة نه بچ شي. که چرې هغه خلکو ته معلومه شي چې ټيکس زيات دی او زکوة کم دی نو دوی به خپل ځانونه د کافر په ځای ځان مسلمان ښاې. دا انسٰاني طبع او فطرت دی چې د نظر نه غور ځول کېدلی نه شي. قرآن کې الله تعالی همدغې اړخ ته اشاره کړې ده. "**حتی يعطوا الجزية عن يد و هم صاغرون**" (التوبة : ۲۹) چې په ذلالت سره خپل لاس باندې ټيکس او جزيه ور کړي، نو هغوی ته به احساس کېږي چې هغوی چرته ولاړ دي.

**د جزيي قِسمونه**: د جزيي دوه قِسمه دي. اولنی قِسم د صلحې په توګه دی. هغه داسې چې کفار ويري په وجه جنګ ونه کړي. بلکې د صلحي په توګه اسلام دِ جزيه ورکول قبول کړي. دغه شان جزيه د جانبي نو له اړخ نه رضامنتيا کېږي. د صلحې نه وروسته مسلمانانو له د هغې پابندي کو لازمه ده. دې صورت کې به جزيه د جانبي نو له اړخ د رضامنتيا مطابق وي.د جزيي دويم قِسم هـ

وي چې اسلامي لښکر د کفارو په يوه علاقه باندې حمله کوي. او د جنګ نه وروسته هغه فتح کړي او د هغې نه وروسته د کفارو د نه وژلو په بدل کې هغوی باندې جزيه مقرره کړي . هغې کې د وخت د خليفې او د امير الحرب خوښه وي چې هغوی څومره جزيه مقرروي. د کفارو خوښه به نه وي. (مرقات ۶۰۴/۷)

**ذميانو لپاره د اسلام د اړخ نه شرطونه** : د جزيه ادا کولو سره سره اسلام په ذميانو باندې يو څو نور شرطونه هم مقرروي چې لاندې ذکر دي:۱: ذميان به نوي کليسا يا عبادت خانه نه جوړوي ۲: ذميان به د خپل عبادتونو په ښکاره تشهير نه کوي ۳: د اسلامي قوانينو او قواعدو د تحقير او توهين به نه کوي ۴: بدن باندې به يو خصوصي نښان کوي د دې لپاره چې دا ذمي معلوم شي لکه د اميل استعمال يا سر باندې چوټي اينښودل وغيره ۵: ذميان خلک به د مسلمانانو نه ښه کور نه جوړي ۶: د مسلمانانو نه به د ښه شان و شوکت والا جامه نه استعمالوي ۷: اَسپي باندې سورلی نه کوي ګويا کې د مرسډيز او لينډ کروزر سورلی به نه کوي ۸: جزيه به خپله په ولاړه باندې په خپل لاس دفتر کې جمع کوي ۹: که مسلمان محصول وصولونکی هغې له ورغلو نو د ذمي ګريوان به نيسي او ديکا به ورکوي او محصول به ترينه اخلي.دا نه (۹) شرطونه دي. چې د دې نه نه وروسته نه شي ويل کيدې چې هيڅ يَو ذمي کس به اسلام قبلولو نه بغير پاتې شي، نو دا جزيه مقررول حقيقت کې د اسلام يو دعوت دی، خو نن سبا مسلمانان دومره کمزوري شوي دي چې دا خبرې په ژبه ويل هم نه خوښوي. کيني حقيقت خو دا دی چې کوم کافر د خپل حقيقي مالک نه باغي شي، نو هغې دا اخلاق کولو هم د هغې سره منننه (رعايت) دی، خو کوم خلک چې غيرت مند مسلمانان ؤو هغوی د خارو لاندې خخ دي. د خاورې د پاسه وَس ګډېدونکې (ډانسران) پاتې شوي دي.

ګل ګئے ګلشن ګئے پھولوں کے پتے رہ ګئے جو لوګ تھے وہ مر ګئے الّو کے پٹھے رہ ګئے

آدمیاں ګم شدند ملک خدا خر ګرفت شامت اعمال ماصورت نادر ګرفت

## الفصل الاول

## د مجوسيانو نه جزيه اخستل څنګه ده

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَن | بَجالَةَ | قَالَ: | كُنْتُ | كَاتِبًا | لِجَزْءِ | بْنِ | مُعَاوِيَةَ | عَمِّ | الْأَحْنَفِ |

حضرت بجاله رحمه الله (تابعي) فرمايي چې زه د جزء ابن معاويه رحمه الله تابعي سره چې د حضرت احنف رضي الله عنه (صحابي)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَتَانَا | كِتَابُ | عُمَرَ | بْنِ | الْخَطَّابِ | رَضِيَ | اللهُ | عَنْهُ | قَبْلَ | مَوْتِهِ |

تره ؤو، ورسره منشي ؤوم. يو ځل مونږ د حضرت (ام المومنين) د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه د مرګ نه مخکې

| |
|---|
| بِسَنَةٍ: فَرِّقُوا بَيْنَ كُلِّ ذِي مَحْرَمٍ مِنَ الْمَجُوسِ |
| يو خط راغلو. چې دا حکم په کې راکړی شوی وَو چې د مجوسيانو کلې په آتش پرستو کې د هغوی د محارمو په مينځ |
| وَلَمْ يَكُنْ عُمَرُ أَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنَ الْمَجُوسِ |
| فرق وکړئ. راويي وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه به اول د مجوسيانو نه جزيه نه اخستله. تردې چې |
| حَتَّى شَهِدَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا مِنْ مَجُوسِ |
| عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه گواهي ورکه يعنې هغې دا بيان کړل چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هجر |
| هَجَرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ وذُكِرَ حديثُ بُرَيدةَ: إِذَا أَمَّرَ أَمِيرًا عَلَى جَيْشٍ فِيبَابِ الْكِتَابِ إِلَى الْكُفَّارِ[1] |
| د يهوديانو نه جزيه اخستله. نو هله بيا حضرت عمر رضي الله عنه د مجوسيانو نه جزيه اخستل شروع کړه. |

**توضيح: من المجوس:** حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به په ابتداء کې د مجوسيانو نه جزيه نه اخستله، ځکه قرآن کريم کې آيت دَو ﴿من الذين اوتوا الكتاب حتى يعطو الجزية عن يد وهم صاغرون﴾ (سورة التوبة : ۲۹) د دې آيت نه په ظاهره معلومېدل چې د جزيې تعلق صرف د اهل کتابو يهود او نصارى سره دی. مجوس اهل کتاب نه دي بلکې آتش پرست دي. کله چې حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه گواهي ورکړه چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د هجر علاقې د مجوسو نه جزيه اخستله نو بيا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه جزيه اخستل شروع کړه. د جزيه اخستلو مطلب دا نه دی چې هغوی دې ژوندې پرې نه ښودلی شي بلکې مړه دې کړی شي. اوس د اهل کتابو او د مجوسو نه بغير نور د عجمو د کفارو نه به جزيه اخستلی کېږي يا نه. دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام شافعي رحمه الله په نزد د اهل کتابو نه بغير به د هيڅ يو کافر نه جزيه نه اخستلی کېږي. هغه که عربې وي يا عجمې وي. البته د مجوسيانو نه جزيه اخستل ځکه جائز دي چې د بحث لاندې حديث کې د دې واضحه تصريح موجود ده. د احنافو په نزد د اهل کتابو وغيره ټول نه به جزيه اخستلی کېږي. الته د عرب د مشرکانو او د مرتدينو نه به جزيه نه اخستلی کېږي. د هغوی لپاره به يا اسلام وي يا توره وي.

---

(۱) رقم الحديث ۳۰۴۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۷۵/۶ رقم الحديث ۳۱۵۷-۳۱۵۶ وأبوداود في السنن ۴۳۱/۳ رقم الحديث ۳۰۴۳

**دلائل**: امام شافعي رحمه الله د ﴿من الذین اوتوا الکتاب﴾ نه د مخالف په توګه استدلال کړی دی. البته د مجوسو تخصیص او د هغوی نه جزیه اخستل د بحث لاندې حدیث په وجه دی.
د احنافو ائمه فرمایي چې د عجمو کافران د غلام کول د ټولو په نزد جائز دي. دا د دې خبرې دلیل دی چې د هغوی نه جزیه اخستل هم جائز دي، ځکه چې ژوندې پرېښودل د کفر په حالت کې جائز دي نو بیا جزیه اخستل هم جائز پکار ده. باقې د مخالف مفهوم زمونږ لپاره دلیل نه دی. لهذا دا پیش کول بیکاره دی.

**ذي محرم من المجوس**: د مجوسیانو په نزد د لور، مور او د خور وغیره سره محارم سره نکاح کول هیڅ شرم نه ؤو. او نه منع ؤو، ځکه حضرت عمر رضي الله عنه حکم وکړو چې د داسې محارم د ازدواجي تعلق نه جدا کړه. (مرقات ۶۰۵/۷)

**هجر**: په یمن کې یوې علاقې نوم دی. چې نن سبا ورته احساء وایي. دغه شان مدینې ته نزدې د یوې علاقې نوم هم هجر ؤو. (مرقات ۶۰۵/۷)

## الفصل الثاني

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ مُعَاذٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ |
| د حضرت معاذ رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه حاکم او قاضي کړو او یمن ته یې روان کړو، نو |
| أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ كُلِّ حَالِمٍ يَعْنِي مُحْتَلِمٍ دِينَارًا أَوْ عَدْلَهُ مِنَ الْمَعَافِرِيِّ: |
| هغه ته یې هدایت وکړو چې هغه هلته د هر حالم یعنې د هر بالغ نه یو دینار یا یو د یو دینار په قیمت د معافری |
| ثِيَابٌ تَكُونُ بِالْيَمَنِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| ټوټه چې په یمن کې تیارېدله د جزیه په توګه واخلي. |

**توضیح: حالم**: د دې نه بالغ مراد دی یعنې د بالغ سړی نه به یو دینار جزیه اخستلې کېږي. که دینار نه وي د هغې د قیمت برابر به ترېنه د معافری ټوټه اخستلې کېږي.

**معافری**: د همدان د یوې قبیلې نوم دی. هغوی ته ټوټه منسوب وه. د روایت په آخر کې راوي اشاره

---

([1]) رقم الحدیث ۴۰۳۶ أخرجه ابوداود في السنن ۲۲۸/۳ رقم الحدیث ۳۰۳۸ والترمذي في ۲۰/۳ رقم الحدیث ۶۲۳

وکړه چې دا به په یمن کې جوړېده. علماؤ لیکلي دي چې اوس معافري د یوې توټې نوم دی او نسبت ختم شوی دی. د دې روایت نه په ظاهره معلومېږي چې بالغ کس له پکار ده. مالدار وې که غریب وې په هغوی باندې به په یو مقدار کې جزیه مقررېږي. همدغه د شوافعو مسلک دی خو د احنافو نزد په صاحب حیثیت مالدار باندې د کال ۴۸ درهمه جزیه ده. متوسطه طبقه باندې ۲۴ درهمه د کال دي او ادنی فقیر بانې دولس درهمه د کال دي. احنافو د څه مرسل روایتونو او د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د عمل نه استدلال کړی دی او د بحث لاندې حدیث مجمل هم دی او د صلح په صورت باندې محمول هم دی. (مرقات ۶۰۷/۷، ۶۰۶)

## په مسلمانانو باندې جزیه نشته دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَصْلُحُ قِبْلَتَانِ فِي أَرْضٍ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې یو زمکه باندې دوه قبلې |
| وَاحِدَةٍ وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ جِزْيَةٌ. رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[1] |
| پکار نه دي او په مسلمانانو باندې جزیه نه شي مقرر کېدی. (احمد، ترمذی، ابوداؤد) |

**توضیح**: **لاتصلح قبلتان**: د دې جملې یو مطلب دا دی چې د یهود او نصاری لپاره په جزیرهٔ عرب کې د اوسیدلو هیڅ ګنجائش نشته دی. ځکه د هغوی قبله بیت المقدس ده او د مسلمانانو بیت الله دی. او دا دواړه په مخالف اړخ کې دي. لهذا دوی د عرب د جزیرې نه اوباسئ. ګویا کې د "**ارض وحدة**" نه د عب جزیره مراد ده. دویم مطلب دا دی چې د مسلمانانو هیڅ ځمکې له دا مناسب او صالح نه دي چې هلته د مبالغې او د مقابلې په توګه او مساوات به توګه دوه قبلې اباد وې. د هغې صورت به دا وي چې د مسلمانانو په ملک کې کافران د جزیې نه بغیر اوسیږي یا مسلمان باجګذاب بن کر د کفار په مینځ کې په ذلت سره اوسیږي. (مرقات ۶۰۹/۷)

**ولیس علی المسلم جزیة**: مطلب دا دی چې یو ذمي کس ؤو. هغې باندې جزیه مقرره وه. بیا هغه مسلمان شو. اوس هغه ذمي نه بلکې مسلمان دی، نو اوس هغې باندې دا جزیه نشته دی. یا مطلب دا دی چې یو ذمي ؤو. هغې جزیه ورکوله خو بیا هغې بنده کړه، خو څه موده وروسته مسلمان شو. اوس چې په هغې باندې کومه پاتې جزیه وه د هغې ورکول لازم نه دي، ځکه اوس هغه مسلمان شوی

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۳۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴۳۸/۳ رقم الحديث ۳۰۳۵ والترمذي في ۲۷/۳ رقم الحديث ۶۳۳ وأحمدفي المسند ۲۲۳/۱

دی. او په مسلمان باندې جزیه نه وي.

## په جزیه باندې د صلحې یو صورت

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَن أنس قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى أُكَيْدِرِ دُومَةَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اکیدر دومه مقابلې ته ولیږلو. نو خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| فَأَخَذُوهُ فَأَتَوْا بِهِ فَحَقَنَ لَهُ دَمَهُ |
| او د هغې ملګرو اکیدر ونیولو او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې یې پیش کړو. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| وَصَالَحَهُ على الْجِزْيَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| هغه معاف کړو او جزیه باندې د هغې سره صلح وشوه. |

**توضیح: اکیدر دومة:** دومة د تبوک سره د یو ښار نوم دی. د هغې یو مقامي بادشاه ؤو چې نوم یې اکیدر ؤو. دا د روما د سلطنت ماتحت ؤو. د غزوه تبوک په موقع نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حکم وکړو چې لاړه او اکیدر ژوندی راوله. حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! هغه سړی د ښار دننه قلعه کې محفوظ دی، ژوندی یې څنګه راولم. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې هغه به تاته ځنګل کې ملاو شي، نو حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کله قلعه ته نزدې شو نو دغه وخت کې یو اسماني رنګه غوا راغله او د قلعه دیوال سره یې سر مښلو. اکیدر هغې په سپ را اوتلو. غوا د ځنګل اړخ ته وتښتېدله او اکیدر وریسې شاته ؤو چې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اکیدر باندې حمله وکړه او د اکیدر ورور ؤوژلی شو او خپله ګیر کړی شو.

کله چې اکیدر نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راوستلی شو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې اکرام وکړو. او د هغې ښار یې روغ پرېښودلو، خو د کال جزیه یې پرې مقرره کړه. دوه زره (۲۰۰۰) اوښان، اته سوه (۸۰۰) آسونه، څلور سوه (۴۰۰) زغري او څلور سوه نیزو باندې صلح وشوه. وروسته اکیدر مسلمان شو. د اکیدر نه بغیر هم د دېر بانده چیانو سردارانو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره صلح وکړه او جزیه یې قبوله کړه. شل (۲۰) ورځې وروسته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مدینې ته بېرته راغلو. (مرقات ۶۱۱/۷)

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۳۸ أخرجه ابوداود في السنن ۴۲۷/۳ رقم الحديث ۳۰۳۷.

## يهودو نصارى نه مالِ تجارت باندې د محصول اخستلو مسئله

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ حَرْبِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ عَنْ جَدِّهِ أَبِي أُمِّهِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت حرب ابن عبيد الله د خپل نيكه نه او هغه د خپل پلار نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ: إِنَّمَا الْعُشُورُ عَلَى الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ |
| وفرمايل يهود او نصارى باندې عُشر يعني لسمه برخه ده. او په مسلمانانو باندې څلويښتمه برخه واجب ده. |
| عُشُورٌ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ[1] |
| هغوى باندې عُشر واجب نه دى. |

**توضيح**: د عشور مفرد عشر دى. د مال لسمه برخه ويستلو ته عشر وايي. زمكه په دوه قسمه ده. عشري او خراجي. عشري هغه ځمكې ته وايي چې مالک يې مسلمان وي. مسلمان باندې د ځمكې په وجه صرف عشر فرض دى. خراجي هغه ځكه ده چې مالک يې ذمي كافر وي. هغې باندې د ځمكې خراج حرام دى. د حديث مطلب دا دى چې په مسلمان باندې دِ تجارت په مال كې عشر نشته دى. د مسلمان د ځمكې د عشر نفي دلته مقصود نه ده، خو د خراج سره د اهل كتاب په تجارتي مالونو كې هم عشر شته دى. دا چې په چونګې كې د هغوى د مالونو نه عموماً لسمه برخه اخستلې كېږي ځكه ورته عشر وويل شو. لهذا دلته د عشر نه اصطلاحي عشر مراد نه دى بلكې لسمه برخه مراد ده. د شوافعو مسلک دا دى چې كه په يهود او نصارى باندې جزيه مقرره ده نو بس همغه كافي ده. د دې نه بغير هغوى باندې هيڅ عشر وغيره نشته دى. احناف فرمايي چې كه كافران په خپلو علاقو او سرحدونو باندې د مسلمانانو د تجارتي مال نه عشر اخلې نو مونږ به يې هم اخلو، كنې نه به يې اخلو. د حديث د احنافو مؤيد دى. (مرقات ۶۱۲/۷)

## په ذميانو باندې د جزيې يَو عجيب صورت

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| او حضرت عقبه ابن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وكړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! |

[1] رقم الحديث ۴۰۳۹ اخرجه ابوداود في السنن ۴۳۵/۳ واحمد في المسند ۴۷۲/۳

إِنَّا نَمُرُّ بِقَوْمٍ فَلَا هُمْ يُضَيِّفُونَا

چې مونږ کله جهاد ته حو او د يو قوم په ابادۍ باندې تېرېږو نو هغه خلک نه زمونږ مېلمستيا کوي او نه مونږ له هغه شى

وَلَا هُمْ يُؤَدُّونَ مَا لَنَا

راکوي چې کوم هغوی باندې زمونږ د اسلام په وجه حق وي. يعنې د اسلام په وجه چې هغوی باندې زمونږ چې

عَلَيْهِم مِنَ الْحَقِّ

دا کوم حق دى چې هغوی قرض وغيره راکړي او زمونږ ضرورتونه پوره کړي او زمونږ خيال وساتې. هغوی دا

وَلَا نَحْنُ نَأْخُذُ مِنْهُمْ.

نه پوره کوي او چې مونږ د هغوی نه هيڅ يو شى په زوره نه اخلو نو ځکه مونږ سخت پريشانه يو او د هغوی

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

د رويې په وجه مونږ په لوى اضطرارې او نقصان کې اخته کېږو. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې که هغوی ستاسو

إِنْ أَبَوْا إِلَّا أَنْ تَأْخُذُوا

د مېلمستيا کولو نه يا تاسو په لاس کې نغد درکولو يا د په قرضو د يو شي خرخولو نه انکار وکړي او په دې

كُرهاً فَخُذُوا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

صورت کې د هغوی نه هيڅ يو شى په زوره د اخستلو نه بغير نه چاره نه وي نو په زوره يې ترېنه واخلئ.

**توضيح**: د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به مجاهدين هر ځاى ته تلل راتلل. لارې به خالې وې. لږ لږ ځايونو کې به د ذميانو ابادياني وې، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ذميانو باندې د معاهدې د لاندې جزيې سره دا لازمه کړې وه چې کله تاسو باندې مسلمانانو تېرېږي نو د مجبورۍ په وخت کې هغوی ته خوراک ورکوئ او کور کې به ورله د شپې انتظام کوئ. د دې جزيې متعلق په ډېرو مقاماتو کې دغه قِسمه حديثونه راځي چې که اهل کتاب درته خوراک نه درکوي نو په زوره يې ترېنه اخلئ. د جزيې صورت دا ؤو ګڼې د هيڅ مسلمان لپاره جائز نه ده چې د هغه د اهل کتاب نه په زوره خوراک وخورې. دا تول يا د معاهدې صورتونه دي يا د ولږې صورت کې دي يا د قرض په توګه دى چې وروسته به روپۍ ادا کوؤ. توضيحات جلد اول کې دا مسئله تفصيل سره ليکلى شوې

---

[1]) رقم الحديث ۴۰۴۰ أخرجه الترمذي في السنن ۴: ۱۲۵ رقم الحديث ۱۵۸۹

ده. (مرقات ۷/۶۱۳)

## الفصل الثالث

### په سروزرو او سپينو زرو باندې د جزيې مقدار

| |
|---|
| ﴿۷﴾ عَنْ أَسْلَمَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| حضرت اسلم رحمه الله (تابعی) فرمايي چې حضرت عمر ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل دور خلافت کې په هغه ذميانو |
| ضَرَبَ الْجِزْيَةَ عَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ أربعةَ دنانيرَ |
| باندې چې سره زر ورسره ؤو څلور ديناره جزيه مقرره کړه او کومو ذميانو به چې سپين زر لرل نو هغوی |
| وعَلى أهلِ الوَرِقِ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا مَعَ ذَلِكَ أَرْزَاقُ الْمُسْلِمِينَ وَضِيَافَةُ |
| باندې يې څلويښت درهمه مقرر کړل او د دې نه بغير يې پرې د مسلمانانو د خوراک څښاک د |
| ثلاثةِ أيامٍ. رَوَاهُ مَالكٌ[1] |
| درې ورځو مېلمستيا هم مقرره کړې وه. |

**توضيح**: ارزاق المسلمين: د دې نه مراد همغه مېلمستيا ده چې ذکر يې د دې نه مخکښې حديث کې راغلی دی. د حالاتو او د اشخاصو د تفاوت په وجه د جزيې مقررولو هم مختلف صورتونه پيدا شوې دي. دلته د کال څلور ديناره د کس په سر ذکر دي او د څلويښت درهمو د کال ذکر دی، خو دې سره د مېلمستيا حق هم يو زيات حق دی. (سورة النساء: ۱۲۸)



[1] الحديث ۴۰۲۱ أخرجه مالك في الموطأ ۱/ ۲۷۹ رقم حديث ۲۳ من كتاب الزكاة

# كتاب الصلح

## د صلحې بيان

قال الله تعالىٰ: ﴿وان جنحوا للسلم فاجنح لها و توكل على الله﴾(سورة الانفال:)

وقال الله تعالىٰ: ﴿والصلح خير﴾ (سورة النساء)

مصالحه او صلح د اصلاح نه مشتق دی چې د فساد ضد دی. يو بل سره په محبت و مودت سره معامله كول ته صلح وايي. كه چيرې د وخت صالحه بادشاه د مسلمانانو لپاره صلح مناسبه ګڼي. او صلح كولو كې فائده وي او د مسلمانانو عظمت او شوكت ته هيڅ نقصان نه رسيږي، نو د كفارو سره صلح بالعوض هم جاز ده او بغير د عوض نه هم جائز ده. او كه په صلح كې نقصان وي نو صلح جائز نه ده. اسلامي تاريخ كې د ټولو نه لويه صلح د حديبيي ده چې د شرطونو بيان يې راروان دی. كفارو سره د لسو (۱۰) كالو ډيره صلح پكار نه ده.

## الفصل الاول

## د صلح حديبيه تفصيلي بيان

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ وَمَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ قَالَا: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او د مسور ابن مخرمه او د حضرت مروان ابن حكم نه روايت دی. دا دواړه وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي بِضْعَ عَشْرَةَ مِائَةً مِنْ أَصْحَابِهِ |
| د حديبيه په كال خپل يو زرو څو سوه صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ځان سره كړل او د مدينې نه روان شول. كله |
| فَلَمَّا أَتَى ذَا الْحُلَيْفَةِ |
| چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ذوالحليفه ته ورسيدلو چې د مدينې منورې نه تقريباً شپږ ميله فاصله كې واقع دی او اييار على چې هم ورته |
| قَلَّدَ الْهَدْيَ وَأَشْعَرَ وَأَحْرَمَ مِنْهَا بِعُمْرَةٍ |
| وايي نو هدی يعنې د قربانئ ځاروي په غاړه كې يې پړی واچولو او اشعار يې وكړو. بيا يې د ذوالحليفه نه د عمرې لپاره |
| وَسَارَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِالثَّنِيَّةِ |
| احرام وتړلو او مخكې روان شو تردې چې كله ثنيه يعنې هغه سمڅې ته ورسيدلو چې د كوم اړخ نه مكې والو ته |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الَّتِي | يُهْبَطُ | عَلَيْهِمْ | مِنْهَا | بَرَكَتُ | بِهِ | رَاحِلَتُهُ |

راکوزېږي. نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اوښه چې قصواء نوم يې ؤو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يې کينولو. چې خلکو وليدل نو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّاسُ: | حَلْ | حَلْ | خَلَأَتِ الْقَصْواءُ |

خبرې يې شروع کړې چې "حل حل" دا لفظ به د اوښ د والوتله لپاره ويل کېدلو. قصواء پاڅېدله.

خلأت الْقَصْوَاء فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ وَمَا ذَاكَ لَهَا بِخُلُقٍ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې اورېدلو سره وفرمايل چې نه قصواء الوتې نه ده او نه دې د الوتلو عادت دی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَكِنْ | حَبَسَهَا | حَابِسُ | الْفِيلِ | ثُمَّ | قَالَ: | وَالَّذِي |

بلکې دا هغه ذات ودرولې ده کوم کوم ذات چې هاتې ودرولی ؤو. او بيا يې وفرمايل، قسم دی په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَفْسِي | بِيَدِهِ | لَا | يَسْأَلُونِي | خُطَّةً |

هغه ذات چې د چا په لاس کې زما ژوند دی چې قريش ما سره کومه هم داسې خبره کول غواړي چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُعَظِّمُونَ | فِيهَا | حُرُمَاتِ | اللهِ |

په کوم کې د الله د حرم عظمت وي نو زه به د هغوی خبره پوره کوم. يعنې که نن د مکې خلک د صلحې

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِلَّا | أَعْطَيْتُهُمْ | إِيَّاهَا | ثُمَّ |

په وخت کې کومې هم داسې خبرې مطالبه کوي چې د الله د حرم عظمت په کې وي نو زه به هغه خبره پوره کوم. بيا نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زَجَرَهَا | فَوَثَبَتْ | فَعَدَلَ | عَنْهُمْ | حَتَّى |

اوښه پاڅوله او هغه ژر پاڅېدله، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مکې لاره پرېښودله او بل اړخ ته روان شو چې د حديبيې آخري غاړې

| | | |
|---|---|---|
| نَزَلَ | بِأَقْصَى | الْحُدَيْبِيَةِ |

ته ورسېدې چرته چې يو کنده کې لږې اوبه وې کوز شو او هلته يې پړاؤ واچولو. خلکو د هغه کندې لږې اوبه راخستلې

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَى | ثَمَدٍ | قَلِيلِ | الْمَاءِ |

او استعمالول يې شروع کړل تر دې چې لږ وخت يې هغه ټولې اوبه راويستلې يعنې هغه کنده دا چې اوبه د ېرې لږې وې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَتَبَرَّضُهُ | النَّاسُ | تَبَرُّضًا | فَلَمْ | يَلْبَثْهُ | النَّاسُ |

نو ځکه د خلکو د کم نه کم مقدار کې د اخستلو باوجود هم اوبه ډېرې ژر ختمې شوې. خلکو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

حَتّٰی نَزَحُوهُ وَشُكِيَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَطَشَ فَانْتَزَعَ سَهْمًا مِنْ كِنَانَتِهِ

په خدمت کې د تندې شکايت وکړو. نبي کريم صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل تـ کش نه يو تير راوويستلو او

ثُمَّ أَمَرَهُمْ أَنْ يَجْعَلُوهُ فِيهِ فو الله

صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم ته يې حکم وکړو چې دا او به په دې کنده کې واچوئ. او بيا راوي وايي چې قسم په خداى! چې د هغه

مَا زَالَ يَجِيشُ لَهُمْ بِالرِّيِّ

تير په برکت سره د هغه خلکو د مړولو او به. کله هم نه ختمېدونکې او به ګويا کې په چپو راروانې دي ترديې چې خلک ترينه لړې

حَتّٰی صَدَرُوا عَنْهُ فَبَيْنَا هُمْ

شول يعني الله په هغه کنده کې دومره ډېرې او به پيدا کړې چې د ټولو خلکو ضرورتونه په اطمينان سره پوره شول. بلکې چې د

كَذَلِكَ إِذْ جَاءَ بُدَيْلُ بْنُ وَرْقَاءَ

هلته نه ېې ته راتلل نو هغه وخت هم او به پاتې وې. بهرحال صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُم په همغه حالت کې وو چې ناڅاپه بديل ابن ورقاء

الْخزاعِيُّ فِي نَفَرٍ مِنْ خُزَاعَةَ

خزاعی. د خزاعه څه خلکو سره د مکې د کفارو پيشان د مصالحت لپاره راغلو. بيا عروه ابن مسعود

ثُمَّ أَتَاهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ

هم د نبي کريم صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ته راورسيدلو. د هغې نه وروسته امام بخاری هغه اوږدې خبرې

وَسَاقَ الْحَدِيثَ إِلَى أَنْ قَالَ:

نقل کړې دي چې د نبي صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د بديل او عروه په مينځ کې وشوې چې صاحب مصابيح د اختصار له نظره

إِذْ جَاءَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو

دلته نه دې پيش کړې. او بيا يې دا بيان کړل چې آخر کار کله چې سهيل ابن عمرو د مکې والو آخري سفير او

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اكْتُبْ: هٰذَا

د نماينده په حيثيت راغو نو نبي کريم صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې وليکه: دا

مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ ". فَقَالَ سُهَيْلٌ:

هغه معاهده ده چې نبي کريم صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرې صلح کړې ده. سهيل دې الفاظ ليدلو سره وويل چې

وَاللهِ لَوْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ رَسُولُ اللهِ مَا صَدَدْنَاكَ عَنِ الْبَيْتِ

په خداى كه مونږ دا منلى چې ته د الله رسول يې نو نه به ته مونږ د خانه كعبې د تللو نه منع كولى او

وَلَا قَاتَلْنَاكَ وَلٰكِنِ اكْتُبْ: مُحَمَّدَ بْنَ عَبْدِ اللهِ

نه به مو جنګ كولى. لهٰذا دا سې وليكه چې دا هغه معاهده ده چې په كوم باندې محمد ابن عبد الله صلح كړې ده.

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَاللهِ إِنِّي لَرَسُولُ اللهِ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې او ريدلو سره وفرمايل چې قسم په خداى! زه د الله رسول يم اګر كه تاسو

وَإِنْ كَذَّبْتُمُونِي اكْتُبْ: مُحَمَّدَ بْنَ عَبْدِ اللهِ

زما تكذيب كوئ. خير د مصلحت په خاطر الفاظو كې ستاسو دا بدلون زه منم: على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ته محمد ابن عبد الله وليكه.

فَقَالَ سُهَيْلٌ: وَعَلَى أَنْ لَا يَأْتِيَكَ مِنَّا رَجُلٌ

بيا سهيل وويل چې د دې صلحې معاهده كې دا خبره هم منه چې تاسو كې هر څوك زمونږ خوا ته راغلو نو مونږ به هغوى بېرته نه پريږدو،

وَإِنْ كَانَ عَلى دِينِكَ

خو كه زمونږ ستاسو خوا ته يو كس راغلو، اګر كه ستاسو دين يې قبول كړې وي. نو هغه به تاسو مونږ ته بېرته راكوئ. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

إِلَّا رَدَدْتَهُ عَلَيْنَا

دا هم قبوله كړه. دې موقعه كې هم په واقعه كې د اختصار نه كار اخستلى شوى دى يعنې صاحب مصابيح د دې

فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ

معاهدې متعلق د بخارى بيان كړى شوى ټول تفصيل نه دى نقل كړى. يا دا د بخارى بل كوم يو روايت دى.

قَضِيَّةِ الْكِتَابِ قَالَ

چې صرف د دو مرده په كې بيان شوى دى. بهرحال نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صلح نامې نه فارغ شو، نو

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ: قُومُوا فَانْحَرُوا

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلو صحابو ته وويل چې پاسئ او لاړ شئ. او س د هدى څاروي ذبح كړئ او

ثُمَّ احْلِقُوا ثُمَّ جَاءَ نِسْوَةٌ مُؤْمِنَاتٌ فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى:

بيا سرونه وخريئ د هغې نه وروسته د بيرې ښځې مسلمانانې شوې او د مكې نه راغلې. او الله تعالى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رِيَا | أَيُّهَا | الَّذِينَ | آمَنُوا | إِذَا |

دا حكم نازل كړو ﴿يآ ايها الذين آمنوا اذا جآركم المؤمنات مهاجرات الخ﴾ اى ايمان والو! چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| جاءكم | المؤمناتُ | مهاجِراتٌ) | الآيَةَ. |

مسلمانانې ښځې كله هجرت وكړي او تاسو ته راشي الخ. لهذا الله د دې آيت كريمه په وجه مسلمانانو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَنَهَاهُمُ | اللهُ | تَعَالَى | أَنْ | يَرُدُّوهُنَّ | وَأَمَرَهُمُ |

د دې خبرې نه منع كړل چې هغوى دا ښځې كافرانو ته بېرته وركړي او هغوى له د دې خبرې حكم وركړو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ | يَرُدُّوا | الصَّدَاقَ | ثُمَّ | رَجَعَ | إِلَى | الْمَدِينَةِ |

چې د هغوى مهر بېرته وركړي. د هغې نه وروسته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بېرته مدينې ته لاړو. څه ورځې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجَاءَهُ | أَبُو | بَصِيرٍ | رَجُلٌ | مِنْ | قُرَيْشٍ | وَهُوَ | مُسْلِمٌ |

وروسته د قريشو يو كس ابو بصير چې مسلمان شوى ؤ و د مكې نه راؤتلو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خوا له راغلو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَأَرْسَلُوا | فِي | طَلَبِهِ | رَجُلَيْنِ |

د مكې قريشو دوه كسان د هغې لټولو لپاره مدينې ته راولېږل. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د معاهدې د ذكر شوې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَدَفَعَهُ | إِلَى | الرَّجُلَيْنِ | فَخَرَجَا | بِهِ |

شرط مطابق ابو بصير هغې دواړو ته بېرته وركړو. هغه دواړو ابو بصير ځان سره كړو او مكې ته روان شول او كله

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتَّى | إِذَا | بَلَغَا | ذَا | الْحُلَيْفَةِ | نَزَلُوا | يَأْكُلُونَ | مِنْ | تَمْرٍ | لَهُمْ |

يې چې په اولنې منزل ذوالحليفه كې قيام وكړو او د هغوى سره چې كومې كجورې وې د هغې خوړل يې شروع كړل،

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | أَبُو | بَصِيرٍ | لِأَحَدِ | الرَّجُلَيْنِ: | وَاللهِ | إِنِّي |

نو ابو بصير يو كس مخاطب كړو او ورته وې ويل چې قسم په خداى! اى فلانى سړى، زما خيال دى

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَأَرَى | سَيْفَكَ | هَذَا | يَا | فُلَانُ | جَيِّدًا |

چې ستا دا توره ډېره ښه ده. لړه يې ماته او ښايه چې زه يې هم وګورم. هغه كس ابو بصير ته د تورې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَرِنِي | أَنْظُرْ | إِلَيْهِ | فَأَمْكَنَهُ | مِنْهُ |

كتلو موقع وركړه يعنې هغې خپله توره د ابو بصير په لاس كې وركړه، بس دومره موقع كافي وه.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَضَرَبَهُ | حَتّٰى | بَرَدَ | وَفَرَّ |

ابو بصیر هغې باندې په دې توره دومره سخت ګوزار وکړو چې ژر یې ایخ کړو یعنې مړ شو. او دویم کس دې لیدلو سره

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْآخَرُ | حَتّٰى | أَتَى | الْمَدِينَةَ | فَدَخَلَ | الْمَسْجِدَ | يَعْدُو |

او درېدلو او وتښتېدلو تر دې چې مدینې ته بېرته راغلو. او د خپل مرګ له وېرې په منډه مسجد نبوي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته داخل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: لَقَدْ | رأى | هَذَا | ذُعراً |

شو. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې حالت لیدلو سره وفرمایل چې دا کس وېرېدلی معلومېږي. هغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | قُتِلَ | واللهِ | صَحَابِيٌّ |

کس وویل چې آؤ. قسم په خدای زما ملګری خو وژلی شو او زما په وژلو کې هم هیڅ شک نشته دی. یعنې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِنِّي | لَمَقْتُولٌ | فَجَاءَ | أَبُو | بَصِيرٍ |

په ما وپره سوره ده چې زه به هم وژلی کېږم یا بس زه بچ شوم ګڼې زه به هم وژلی شوی وی. ابو بصیر هم راغلو.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: وَيْلَ | أُمِّهِ |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې لیدلو سره وفرمایل چې افسوس دی د هغې په مور باندې یعنې د تعجب او د حیرانتیا مقام دی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِسْعَرَ | حَرْبٍ | لَوْ | كَانَ | لَهُ | أَحَدٌ |

دا د ابو بصیر جنګ خو اور لمبه کونکی دی. که د دې څوک مرسته کونکی وي نو مرسته به یې ورسره کړې وی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | سَمِعَ | ذٰلِكَ | عَرَفَ | أَنَّهُ | سَيَرُدُّهُ | إِلَيْهِمْ |

چې ابو بصیر دا خبره واورېدله نو پوهه شو چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به ما بیا کافرانو بېرته لېږي، نو ابو بصیر بیا کافرانو ته حواله کېدلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَخَرَجَ | حَتّٰى | أَتَى | سِيفَ | الْبَحْرِ | قَالَ: |

له وېرې نه پټ شو او د مدینې نه ؤوتلو تر دې چې هغه د سمندر په غاړه یوې علاقې ته ورسېدلو. روای وایې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَانْفَلَتَ | أَبُو | جَنْدَلِ | بْنُ | سُهَيْلٍ | فَلَحِقَ | بِأَبِي | بَصِيرٍ |

چې ابو سهیل هم د کفارو د قبضې نه راتښتیدلی ؤ او د ابو بصیر سره ملاو شو او بیا خو دا حال شو چې مکه کې

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجَعَلَ | لَا | يَخْرُجُ | مِنْ | قُرَيْشٍ | رَجُلٌ | قَدْ | أَسْلَمَ | إِلَّا | لَحِقَ | بِأَبِي | بَصِيرٍ |

به چا هم اسلام قبلولو او د قریشو د قبضې نه به راتښتیدلو او د ابو بصیر سره به ملاو ېدلو. تر دې چې د ابو بصیر سره د قریش

حَتَّى اجْتَمَعَتْ مِنْهُمْ عِصَابَةٌ فو الله مَا يَسْمَعُونَ

نه در اخلاصېدلو والړېږ دلويه ډله برابره شوه. او قسم په خداى! كوم خلكو به چې هم دا اورېدل چې د قريشو يوه تجارتي

بِعِيرٍ خَرَجَتْ لِقُرَيْشٍ إِلَى الشَّامِ إِلَّا اعْتَرَضُوا لَهَا

قافله وغيره د شام نه اړخ ته روانه شوې ده. هغوى به ورپسې شول او مړه به يې كړل او د هغوى ټول سامان او اسباب به يې ترېنه

فَقَتَلُوهُمْ وَأَخَذُوا أَمْوَالَهُمْ

اخستل. آخر دا چې كله د هغه خلكو د لاسه د قريشو خُله شوه او هغوى سختې پريشانۍ كې اخته شول، نو هغوى ته احساس وشو

فَأَرْسَلَتْ قُرَيْشٌ إِلَى

چې مونږ د مسلمانانو سره يو ډېر غير معقول شرط منلو څومره لويه ناداني ده او د هغې سره اوس مونږ خوړو. لهذا هغوى يو كس خپل

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سفير كړو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت ته يې راولېږلو. او د هغې په ذريعه يې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د الله قسم وركړو او د هغه خپلولۍ واسطه

تُنَاشِدُهُ اللهَ وَالرَّحِمَ

يې وركړه چې كوم د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د هغوى په مينځ كې [illegible] دا خواست يې وكړو چې ته په څه ناڅه طريقه دومره وكړه چې خپل يو

لَمَّا أَرْسَلَ إِلَيْهِمْ

كس ابو بصير او د هغې ملګرو ته دا حكم وكړه چې هغوى مدينې ته راشي او زمونږ د قافلې سره جنګ نه كوي او كله چې تاسو دا حكم

فَمَنْ أَتَاهُ فَهُوَ

ولېږي او هغه خلك ستا خوا ته راشي. نو بيا چې مونږ مكې والو كې يو كس هم مسلمان شي او ستا خوا ته راځي هغه به په امن كې وي

آمِنٌ فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ

يعني نه صرف دا چې د هغې په لاره كې به مزاحمت نه كېږي بلكې هغه به بېرته مونږ ته د راليږلو ضرورت هم نه وي د غه شان هغې وويل

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم

چې ته ابو بصير د دې طريقې نه منع كړه. مونږ به د معاهدې د صلحې د دې شرط نه منع شو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يو كس ابو بصير او د هغې

إِلَيْهِم. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

ملګرو ته ولېږلو چې د هغې په ذريعې هغوى ته حكم وشو چې هغوى دې د قريشو قافلو سره هيڅ جنګ نه كوي او زما خوا ته راشئ.

**توضيح**: حديبية: د يو كوهي نوم ؤو. د هغې په وجه د ځاى نوم شو. حديبيه د مكې او د جدې په

[1] رقم الحديث ۴۰۴۲ اخرجه البخاري في [illegible] ۲۷۳۱ وابوداؤد في السنن ۱۹۴/۳ رقم الحديث ۲۷۲۵

مینځ کې د یو مقام نوم دی چې څه برخه یې حرم کې داخله ده. نن سبا دې ته شمیسي وایي. مکې نه د مغرب اړخ ته تقریباً پنځلس سوه (۱۵۰۰) میله فاصله باندې حدیبیه واقع ده. (مرقات ۶۱۶/۷)

**حل حل:** یعنې زه زه. (مرقات ۶۱۷/۷) **خلأت القصویٰ:** یعنې قصواء او ښه والوتله:

**ثمد:** کنده چې لږې شان اوبه په کې وي. (مرقات ۶۱۷/۷) **یتبرضه:** لږې لږې اوبه اخستل.

**شکی:** د مجهول صیغه ده. د شکایت په معنی کې دی. د اوبو د کموالي شکایت نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وکړی شو. (مرقات ۶۱۸/۷)

**یجش:** جوش وهلو په معنی کې دی. **بالرّی:** یعنې ښې ډېرې اوبه راغلې. چې د خلکو تندې پرې ماتې شوي.

**صدروا:** یعنې ښې اوبه یې وڅښلې او بېرته لاړل. (مرقات ۶۱۸/۷)

**یردوالصداق:** د الله تعالی تکویني معامله وه چې د صلح حدیبیه کې د ښځو تذکره هیچاته هم یاده نه وه. وروسته کفار بیا پښیمانه ؤو، خو هیڅ په لاس ورنه غلل. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وحې وشوه چې ښځې د کافرانو ته بېرته مه ورکوئ. البته د ښځو مهرونه ورکړئ. دا د ابتدائي دور معامله وه. بیا دې کې بدلون راغلو، نو نن د هیڅ مسلمان نارینه د کافرانو له اړخ د بېرته ورکولو معاهده جائز نه ده. (مرقات ۶۲۵/۷)

**ذعراً:** یعنې هغې وېرونکې حادثه لیدلې ده. **ویل امه:** دا جمله اګر که د ښېرو لپاره وضع شوې ده خو دا د تعجب لپاره استعمالېږي. دلته تعجب معنی ده. (مرقات ۶۲۶/۷)

**مسعر حرب:** یعنې د جنګ اور لګونکی دی. که د دې سره څه ملګري نور شول او دې سره مرسته وکړي. دا مطلب ډېر واضحه دی. اګر که ملاعلي قاري رحمه الله دا مطلب ډېر زیات مناسب ګڼلی دی چې جنګ لمبه کونکی دی. کاش دې ته څوک ؤوایي چې زما خوا له مه راځه چې زه یې بېرته ور نه کړم. بهرحال نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابوبصیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مدینې نه بېرته ولېږلو، خو د کافران په لاس یې ور نه کړو. ابوبصیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاړو او د سمندر په غاړه یې ځان له ځای جوړ کړو. اوس چې د کافرانو نه کوم مسلمان راخلاصېدلو نو د ابوبصیر معسکر کې به هیسارېدلو. دا د هغه مظلومانو لپاره ازاده قبائلي علاقه جوړه شوه، نو د هغوی تعداد ۷۰ ته ورسیدلو او د کافرانو په مقابله کې یې چهاپه مار جنګ شروع کړو. د هغوی په تجارتي قافلو باندې یې حملې وکړې. قریش پریشانه شول او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یې خط ولیکلو او د خدای واسطه یې ورکړه او هغې ملګرې یې مدینې ته راوغوښتل. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ابوبصیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نوم خط ولېږلو چې مدینې ته راشه. هغه وخت ابوبصیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نزع په حالت کې ؤو. هغې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خط واورېدلو او بیا په خپله سینه باندې کیښودلو او ساه ئې ورکړه (مرقات ۶۲۶/۷).

*بنا کردند خوش رسمے بخاک و خون غلطیدن*

*خدا رحمت کند ایں عاشقان پاک طینت را*

## د صلح حدیبیه یو څو شرطونه

﴿۲﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: صَالَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ

او حضرت براء بن عازب رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم حديبيه کې په درې خبرو باندې

عَلَى ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ: عَلَى أَنَّ مَنْ أَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ

صلح کړې وه. اول خو دا چې د مکې مشرکانو نه چې کوم کس مسلمان شي او د نبي عليه السلام خوا له راځي.

رَدَّهُ إِلَيْهِمْ وَمَنْ أَتَاهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ

نبي عليه السلام به هغه بېرته مشرکانو ته ورکوي او د مسلمانانو نه چې کوم کس مشرکانو ته راځي نو

لَمْ يَرُدُّوهُ وَعَلَى أَنْ يَدْخُلَهَا مِنْ قَابِلٍ

هغه به مشرکان بېرته نه ورکوي. دويم دا چې نبي عليه السلام د حج او عمرې لپاره دې کال مکې نه داخلېږي بلکې بل کال له

وَيُقِيمَ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَا يَدْخُلَهَا إِلَّا

به مکې ته راځي او صرف درې ورځې به مکه کې تېسارېږي. او درېم دا چې بل کال که مکې ته راځي نو خپله

بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ وَالسَّيْفِ وَالْقَوْسِ وَنَحْوِهِ فَجَاءَ

ټوله اسلحه، کمان او دغه ټول شيان به په غلاف کې تاؤ او راوړي به يې. دې موقع کې ابو جندل د نبي عليه السلام خوا ته

أَبُو جَنْدَلٍ يَحْجِلُ فِي قُيُودِهِ

په داسې حال کې راورسيدلو چې د هغې په پښو کې ځنځېرونه ؤو چې د هغې په وجه هغه په ټوپونو ټوپونو روان ؤو،

فَرَدَّهُ إِلَيْهِمْ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

خو نبي عليه السلام هغه بېرته مشرکانو ته ولېږلو.

**توضيح**: ثلاثة اشياء: دې حديث کې د صلح حديبيه په شرطونو کې د درې اهم شرطونو بيان دی. ۱: اول شرط دا چې که يو مشرک مسلمانانو ته راشي نو مسلمانان به د دې پابند وي چې هغه به قريشو ته بېرته ورکوي. اګر که هغه مسلمان شوی ولې نه وي او کوم مسلمان چې کافرانو ته لاړ شي، نو هغوی به هغه قيد کوي او بېرته به يې نه ورکوي. همدغه شرط ؤو چې دومره سخت ؤو چې صحابه کرام رضي الله عنهم يې ولړځول. خو د هغوی د صلحې نظم و ضبط وساتلو او د اسلامي امارت د وفادارۍ

[1]) رقم الحديث ۴۰۴۳ أخرجه البخاري . صحيحه ۵: رقم الحديث ۲۷۰۰ ومسلم في ۳/۱۴۱۰ رقم الحديث (۹۲-۱۷۸۳)

مظاهره یې وکړه او شرط یې قبول کړو. ۲: دویم شرط دا ؤو چې بل کال چې کله مسلمانان عمرې ته راځي نو وړه اسلحه به ورسره وي، هغه هم په تیکئ او غلافونو کې به وي. او دې کال به بغیر د عمرې نه ځي. ۳: دریم شرط دا ؤو چې بل کال له به مکه کې صرف درې ورځو پورې مسلمانان قیام کوي، بیا به بېرته ځي. ۴: د دې نه بغیر څلورم شرط دا ؤو چې تر لسو کالو پورې به جنګ بندې وي. ۵: پنځم شرط دا ؤو چې کوم قبائل په فریقینو چې د چا سره تلل غواړي هغه دې لاړ شي، هغه به هم د معاهدې برخه وي. ۶: شپږم شرط دا ؤو چې د صلحې په موده کې به خیانت نه وي. (مرقات ۶۲۹/۷)

**بجلبان السلاح:** جیم باندې ضمه ده. لام باندې هم ضمه ده. با باندې د شد سره فتحه ده. دا د څرمنې د هغه بوجۍ نوم دی چې توری وغیره به په کې اچول کېدلی او هغه به یې وتړلي او د کجاوې یا د زین وروستنۍ برخې سره به یې ځوړنده ولي. مراد دا چې د اسلحې نمائش به نه وي. غلافونو کې پټې وي. (مرقات ۶۲۹/۷)

**یحجل فی قیوده:** ابوجندل د سهیل بن عمر ځوی ؤو. سهیل چې دا ولیدلو نو قلم یې ودرولو او وې ویل چې زماځوي ماته بېرته راکړئ نو صلحه نامه به لیکلی کېږي. نبي کریم ﷺ وفرمایل چې لا تر اوسا پورې دستخط نه دی شوی. دا مخکې راغلی دی. معاهده به د دې نه وروسته عملي کېږي. او که د ابوجندل راتګ په معاهده کې هم شمارل کېږي نو زه ستانه ابوجندل غواړم چې دا ماله راکړه. سهیل انکار وکړو. ابوجندل بېرته په ژړه لاړو. تاریخ والو د ابوجندل بېرته د تللو خطرناک منظر لیکلی دی. ابوجندل بیا د کفارو د لاسونو نه خلاص شو او د سمندر په غاړه د ابوبصیر رضي الله عنه خوا له لاړو. (مرقات ۶۳۰/۷)

## په صلح کې د یو سخت شرط حکمت

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَن أنس: أَنَّ قُرَيْشًا صَالَحُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاشْتَرَطُوا |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې د مکې قریشو د نبي کریم ﷺ سره صلح وکړه. هغوی |
| عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ مَنْ جَاءَنَا مِنْكُمْ لَمْ نَرُدَّهُ |
| په نبي علیه السلام باندې دا شرط ومنولو چې د نبي علیه السلام نه کوم کس مونږ له راشي نو مونږ به یې بېرته نه ورکوؤ |
| عَلَيْكُمْ وَمَنْ جَاءَكُمْ مِنَّا رَدَدْتُمُوهُ عَلَيْنَا |
| او که زمونږ نه کوم کس نبي علیه السلام ته راغلو نو ته به هغه بېرته مونږ له راکوي. صحابه کرامو رضي الله عنهم دا شرط د خپل ملي |
| فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| حمایت او د وقار منافي او د صلحې د اصولو د تقاضو نه لرې وګڼلو او عرض یې وکړو چې یا رسول الله ﷺ! |
| نَكْتُبُ هَذَا؟ قَالَ: نَعَمْ إِنَّه |
| یا مونږ دا شرطونه ولیکو یعنې آیا تاسو دا شرط منظوروي؟ نبي علیه السلام وفرمایل چې آؤ. ځکه دا ده چې مونږ |

من ذهبَ منّا إليهم

نه کوم يو کس دوی ته ځي نو ظاهره خبره ده چې هغه به مرتد تښتي. د دې اعتبار سره به هغه يو داسې کس وي

فَأَبْعَدَهُ اللهُ وَمَنْ جَاءَنَا مِنْهُمْ

چې الله تعالى به يې د خپل رحمت نه لرې کړي. او د دوی نه چې کوم کس مونږ له راځي. هغه به اګر که مونږ په

سَيَجْعَلُ اللهُ لَهُ فرجا ومخرجاً. رَوَاهُ مُسلم[1]

ورکولو مجبوره يو خو الله به ژر د هغې لپاره د خوشحالۍ او فراخۍ او د خلاصون او د نجات سامان پيدا کړي.

**توضيح: لم نرده:** صلح حديبيه کې دا شرط په مسلمانانو باندې د ټولو نه ډېر زيات بوج ؤو. حضرت عمر رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم مخې ته سختې خبرې وکړې او بيا يې د ابوبکر صديق رضي الله عنه مخې ته سختې خبرې وکړې. دواړو جواب ورکړو چې د الله او د هغې د رسول فيصله ده. اى عمر! دا ومنه. الله تعالى خپل رسول بې ياره او بې مرستې نه پرېږدي. بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم دې حکمت اړخ ته اشاره وکړه چې کوم کس زما مجلس پرېږدي او د کافرانو اړخ ته ورځي نو هغه به منافق وي. مونږ له پکار ده چې د لستوڼي مال وتښتو، نو چې هغه خپله ځي او الله هغه لرې کوي تو تاسو ولې پريشانه کېږئ؟ او کوم کسان چې د کافرانو د مجلس نه ماله راځي نو کېدی شي چې هغه يو جاسوس وي نو مونږ له پکار ده چې هغه پرېږ نه دو چې قريش هغه خپله بوځي نو تاسو ولې پريشانه کېږئ؟ او که هغه رښتني مسلمان وي نو ډېر ژر به الله تعالى د هغې لپاره نجات او د خلاصې لاره اسانه کړي. دې باندې صحابه کرامو رضي الله عنهم د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په ذهانت باندې اعتراف وکړو چې دا د نبوت فيصله ده. (مرقات ۶۳۲/۷، ۶۳۱)

## نبي کريم صلى الله عليه وسلم بيعت کې د هيڅ يوې ښځې په لاس کې لاس نه دی ايخی

﴿۴﴾ وَعَن عَائِشَةَ قَالَتْ فِي بَيْعَةِ النِّسَاءِ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ

او حضرت عائشه رضي الله عنها د ښځو د بيعت باره کې فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د هغه ښځو

يَمْتَحِنُهُنَّ بِهَذِهِ الْآيَةِ: ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ

سره چې د مکې نه به راتللې او د اسلام د قبلولو اظهار به يې کولو. د دې آيت په رڼا کې به يې کولو ﴿يا ايها النبي

إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ﴾ فَمَنْ

اذا جاءك المؤمنات يبايعنك﴾ اى نبي صلى الله عليه وسلم! چې مومنانې ښځې تا ته د بيعت لپاره حاضرې شي، الخ،

[1] رقم الحديث ۴۰۴۴ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۴۱۰/۳ رقم الحديث (۹۳-۱۷۸۴)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَقْرَرْتُ | بِهَذَا | الشَّرْطِ | مِنْهُنَّ | قَالَ | لَهَا: |
| نو هغوی چې به چې کومو ښځو د دې آيت ذکر شوی شرط د منلو اقرار کولو نو نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ به هغې ته و فرمايل | | | | | |
| قَدْ | بَايَعْتُكِ | كَلَامًا | يُكَلِّمُهَا | بِهِ | |
| چې ما تا سره بيعت وکړو او حال دا چې نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ به خبرې کولې او ښځې ته به يې دا خبره کوله | | | | | |
| وَاللهِ | مَا | مَسَّتْ | يَدُهُ | يَدَ | امْرَأَةٍ |
| خو په خدای قسم چې داسې کله هم نه دې شوې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يوې ښځې سره بيعت | | | | | |
| قَطُّ | فِي | الْمُبَايَعَةِ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | |
| کړې وي او د هغې لاس د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لاس سره لګېدلی وي. | | | | | |

**توضيح**: نن سبا ځينې ښه پيران صاحبان د ښځو په لاس کې لاس کېږدې او بيعت ترېنه اخلي، دا ښه پيران نه دي. چې معصوم نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترېنه ځان ساتلی دی نو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غلام له هم ځان ساتل پکار دي. د بيعت تفصيل په جلد اول کې تېر شوی دی.

## الفصل الثاني

## په صلح حديبيه کې اضافه شرطونه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾عَنِ | الْمِسْوَرِ | وَمَرْوَانَ: | أَنَّهُمْ | اصْطَلَحُوا | | | |
| د حضرت مسور او د حضرت مروان نه روايت دی چې د مکې قريشو چې په حديبيه کې په کومو | | | | | | | |
| عَلَى | وَضْعِ | الْحَرْبِ | عَشْرَ | سِنِينَ | | | |
| خبرو باندې صلح کړې وه هغې يو خبره دا هم وه چې د لسو کالو پورې به د فريقينو په مينځ کې جنګ نه وي. | | | | | | | |
| يَأْمَنُ | فِيهَا | النَّاسُ | وَعَلَى | | | | |
| چې خلک په دې ورځو کې په امن و امان سره اوسي. دا خبره هم د صلحې په معاهده کې شامله وه چې | | | | | | | |
| أَنَّ | بَيْنَنَا | عَيْبَةً | مَكْفُوفَةً | وَأَنَّهُ | لَا إِسْلَالَ | وَلَا إِغْلَالَ. | رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| زمونږ په مينځ کې بنده بوجۍ وي او دا چې نه مونږ په خپل مينځ کې پټه غلا وکړو او نه خيانت. | | | | | | | |

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۴۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱۲/۵ رقم الحديث ۲۷۱۳ ومسلم في صحيحه ۱۴۸۹ رقم الحديث (۸۸-۱۸۶۶)

([2]) رقم الحديث ۴۰۴۶ أخرجه ابوداود في السنن ۲۱۰/۳ رقم الحديث ۲۷۶۶ وأحمد في المسند ۲۳۵/۴.

**توضیح**: **عيبة مكفوفة**: بنده بوجګئ، عيبه اصل کې بوجګئ، صندوقچه او داسې بوجئ ته وايي چې د راز شيان په کې پټول کېږي. يا په کې خاصې جامې کيښودلې کېږي. دلته تربنه داسې زړه او سينه مراد ده چې هغې کې هم راز او نيازوي چې د يو بل لپاره خير خواهې وي. بغض او عناد او د شر او فساد خيال په کې نه وي.

**وان لا اسلال**: يعنې په پټه توګه به د يو بل مال نه پټوو.

**ولا اغلال**: او په ظاهري توګه به د يو بل سره خيانت نه کوؤ، مطلب دا چې ظاهراً او باطناً به د يو بل د ژوند او د مال خيال ساتو. ځېنې علماؤ د اسلال نه د تورې رابنکل مراد اخستي دي. او د اغلال نه يې زغره اغوستل مراد اخستې ده. يعنې تورا اخستلو سره زغره اغوستل باندې به د يو بل سره جنګ نه کوؤ.

## د معاهدې ساتنه ضروري ده

﴿۶﴾ وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عِدَّةٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت صفوان ابن سليم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د څه صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د زامنو نه او هغه زامن د خپلو صحابه

عَنْ آبَائِهِمْ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

پلارانو نه او هغوی د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل چې يا وساتئ کوم کس چې په هغه

أَلَا مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا

غير مسلم باندې ظلم وکړو چې د کوم سره معاهده شوې ده. لکه ذمي او مستامن يا يې د هغې حقوقو ته نقصان

أَوِ انْتَقَصَهُ أَوْ كَلَّفَهُ فَوْقَ طَاقَتِهِ

ورسولو يا يې هغې باندې د طاقت او د استعداد نه زيات بوج واچولو لکه يو ذمي باندې يې د هغې د حيثيت

أَوْ أَخَذَ مِنْهُ شَيْئًا

او د استطاعت نه زيات جزيه مقرره کړه يا يې د هغه حربي مستامن نه چې دار الاسلام ته د تجارت په غرض

بِغَيْرِ طِيبِ نَفْسٍ

راغلی وي، د هغې د تجارت د مال نه عشر يعنې د لسمې برخې نه زياته واخستله او د هغې د رضا او د خوشحالۍ

فَأَنَا حَجِيجُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[۱]

نه بغير يې د هغې نه څه شی واخستلو نو زه د قيامت په ورځ د هغې خلاف احتجاج کوم.

---

(۱) رقم الحديث ۲۰۲۷ أخرجه ابوداود ۴۳۷/۳ رقم الحديث ۳۰۵۲

﴿۷﴾ وَعَنْ أُمَيمةَ بنت رقيقة قَالَتْ: بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نِسْوَةٍ

او حضرت امين بنت رقيقه فرمايي چي ما د څه ښځو سره په اجتماعي توګه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره بيعت وکړو يعني مونږ يو څو ښځو

فَقَالَ لَنَا: فِيمَا

په اجتماعي توګه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره بيعت وکړو، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونږ ته وفرمايل چي ای ښځو ما تاسو سره په همغه شيانو باندي

اسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ قُلْتُ:

بيعت کړی دی چي د کوم طاقت او استطاعت تاسو لرئ يعني نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د شفقت له خاطره د هغه ښځو بيعت د هغوی د عملي

اللهُ وَرَسُولُهُ أَرْحَمُ بِنَا مِنَّا

استعداد او د همت پوري محدود کړو. ما وويل يشکه په خپل ذان باندي مونږ چي خپله څومره مهربانه او رحم دله کېدلی شو د هغي

بِأَنْفُسِنَا قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ

نه ډير زيات زمونږ په حق کي الله او د هغي رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رحم کونکی دی. او بيا ما عرض وکړو چي يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

بَايِعْنَا تَعْنِي صَافِحْنَا

مونږ سره بيعت وکړه. د دي خبري نه د هغي دا مراد ؤو چي مونږ سره مصافحه وکړه يعني د بيعت په وخت کي زمونږ لاس په خپل لاس

قَالَ: إِنَّمَا قَوْلِي

مبارک کي ونيسه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چي زما سلو (۱۰۰) ښځو ته وينا يوي ښځي ته د وينا کولو پشان ده. اول ښځو به ژبه وويل

لِمِائَةِ امْرَأَةٍ كَقَوْلِي

کافي دي چي ما تاسو سره بيعت وکړو، د هغوی لاس په لاس کي نيول ضروري نه دی. دويم دا چي که څه ښځي په اجتماعي توګه باندي

لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَمَالِكٌ فِي الْمُوَطَّأ [1]

بيعت کوي نو په ژبه باندي هم د جدا جدا ښځي لپاره مخاطب کېدل ضروري نه دي. بلکي يوي ښځي ته ويل د ټولو ښځو لپاره کافي دي.

## الفصل الثالث

## د معاهدې حديبيه متن

﴿۸﴾ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: اعْتَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذِي الْقَعْدَةِ

او حضرت براء ابن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ذی قعده ۶ هجرئ په مياشت کي د عمري لپاره د

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۴۸ أخرجه الترمذي في السنن ۱۲۹/۴ رقم الحديث ۱۵۹۷ ، والنسائي في ۱۴۹/۷ رقم الحديث ۴۱۸۱.

فَأَبَى أَهْلُ مَكَّةَ أَنْ يَدَعُوهُ

مدينې ته لاړو. د مکې خلکو د دې نه انکار وکړو چې هغوی نبي عَلَیهِ السَّلَام ته مکې ته داخليدلو موقع ورکړي يعني

يَدْخُلُ مَكَّةَ حَتَّى

هغوی نبي عَلَیهِ السَّلَام او د نبي کريم عَلَیهِ السَّلَام صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنهُم مکې ته د راتللو نه منع کړل، تر هغه وخت پورې

قَاضَاهُمْ عَلَى أَنْ يَدْخُلَ يَعْنِي مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ

چې نبي عَلَیهِ السَّلَام د مکې والو سره په دې خبره باندې صلح وکړې چې نبي عَلَیهِ السَّلَام به بل کال ته مکې ته راځي

يُقِيمُ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَلَمَّا كَتَبُوا الْكِتَابَ

او هغه وخت به هم په مکه کې صرف درې ورځې قيام کوي، نو صلح نامه وليکلی شوه. د نبي عَلَیهِ السَّلَام له اړخه

كَتَبُوا: هَذَا مَا قَاضَى

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم د نبي عَلَیهِ السَّلَام نوم مبارک داسې وليکلو چې دا هغه معاهده ده چې نبي عَلَیهِ السَّلَام پرې صلح

عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ. قَالُوا: لَا نُقِرُّ بِهَا فَلَوْ

کړې ده. د مکې والو دا الفاظ ليدلو سره نبي عَلَیهِ السَّلَام ته وويل چې مونږ ستا رسالت نه منو که چرې زمونږ دا

نَعْلَمُ أَنَّكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

علم وی يعنې که زمونږ په دې عقيده وی چې ته د الله رسول يې، نو مونږ به د مکې منع کولې ولې. مونږ خو صرف

منعناك وَلَكِنْ أَنْتَ

دومره منو چې ته محمد يې او د عبدالله ځوی يې. لهذا دې صلح نامه کې د محمد رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم په ځای

مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ فَقَالَ: أَنَا رَسُولُ اللهِ

محمد بن عبدالله وليکه. نبي عَلَیهِ السَّلَام وفرمايل چې زه د الله رسول هم يم او محمد بن عبدالله هم يم. دا صرف

وَأَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ.

ستاسو ضد او زياتی دی. ګنې تاسو به پوهېږئ زما دا دواړه صفتونه يعنې د الله رسول کېدل او محمد بن عبدالله

ثُمَّ قَالَ لِعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ:

کېدل په خپلو کې داسې لازم او ملزوم دي چې د يو بل نه جدا کېدی نه شي. حضرت علي بن ابی طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ

"امْحُ: رَسُولَ اللّٰهِ" قَالَ:

تەنبي علیه السلام و فرمایل چې صلح نامەیې لیکلەچې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لفظ وران کړه. حضرت علي رضي الله عنه و فرمایل

لَا وَاللّٰهِ لَا أَمْحُوكَ أَبَدًا فَأَخَذَ

چې قسم په خدای زه خو ستا نوم نه شم ورانولی. دې او رېدلو سره نبي علیه السلام د حضرت علي رضي الله عنه د لاس نه

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ يُحْسِنُ

هغه صلح نامه واخستله او سره د دې نه چې نبي علیه السلام لیکلو باندې نه پوهېدلو، خو نبي علیه السلام د رسول الله

يَكْتُبُ فَكَتَبَ: "هٰذَا مَا قَاضٰى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ:

لفظ وران کړو او دا یې ولیکل چې دا هغه معاهده ده چې په کوم باندې محمد بن عبد الله صلح کړې ده او په

لَا يُدْخِلُ مَكَّةَ بِالسِّلَاحِ

دې معاهده کې دا شرطؤو چې نبي علیه السلام او صحابه کرام رضي الله عنهم به مکې ته د اسلحو سره نه داخلېږي، خو

إِلَّا السَّيْفَ فِي الْقِرَابِ

مګر دا چې د هغوی اسلحې به په تیکو کې وي. او دا چې که چرې د مکې والو نه یو کس د نبي علیه السلام سره د

وَأَنْ لَا يَخْرُجَ مِنْ أَهْلِهَا بِأَحَدٍ

تللو اراده کوي نو هغه به د مکې نه پرېښودلی کېږي یعني کله چې نبي علیه السلام مکې ته راشي او بېرته ځي نو د

إِنْ أَرَادَ أَنْ يَتْبَعَهُ وَأَنْ لَا يَمْنَعَ مِنْ أَصْحَابِهِ أَحَدًا إِنْ أَرَادَ

مکې والو نه به هیڅ یو کس د ځان سره نه بوځي او دا چې که چرې په صحابه کرامو رضي الله عنهم کې یو کس مکې کې

أَنْ يُقِيمَ بِهَا "فَلَمَّا

د پاتې کېدو اراده وکړي نو نبي علیه السلام به یې په مکه د پاتې کېدو نه نۀ منع کوي، نو بل کال له نبي علیه السلام

دَخَلَهَا وَمَضَى الْأَجَلُ

مکې ته راغلو او مکه کې یې د درې ورځو هغه موده چې د صلحې په معاهده کې لیکلې شوې وه تېره شوه یعني درې

أَتَوْا عَلِيًّا فَقَالُوا: قُلْ لِصَاحِبِكَ:

ورځې پوره کېدو والا وې چې د مکې والا حضرت علي رضي الله عنه ته راغلل او هغې ته یې وویل چې تاسو خپل سردار

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اخْرُجْ | عَنَّا | فَقَدْ | مَضَى | الْأَجَلُ |

یعنې نبي کریم ﷺ ته او ایه چې کړی شوې موده پوره شوې ده. اوس زمونږ د ښار نه ؤوځه.

فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

نو نبي کريم ﷺ د مکې نه لاړو. (بخاری و مسلم)

**توضيح: انت محمد:** کافرانو محمد بن عبد الله ليکل غوښتل ځکه هغوی رسول الله ﷺ نه منلو. نبي کريم ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل چې د رسول الله ﷺ لفظ وړان که، حضرت علي رضي الله عنه انکار وکړو خو دا نافرمانۍ په وجه نه ؤو بلکې د اطاعت په غرض ؤو. چې ثواب پرې ملاوېږي. همدغه شان انکار حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د قرطاس په واقعه کړی ؤو، خو روافضو حضرت علي رضي الله عنه ونه چېړلو او حضرت عمرفاروق رضي الله عنه یې پرې ښنبودلو. دا د دوی د بدنيتۍ ښنانه ده (مرقات ۶۴۲/۷)

فعين الرضا عن كل عيب كليلة
ولكن عين السخط تبدى المساويا

الله تعالی د هغې نه وروسته په قرآن مجيد کې د نبي کريم ﷺ نوم سره ۹ ځله د رسول لفظ ذکر کړی دی. بلکې سورۀ فتح کې خو په ښکاره همدغه لفظ راغلو ﴿**محمد رسول الله والذين معه اشداء على الكفار الخ**﴾(سورة محمد: ۲۹)



(1) رقم الحديث ۲۰۴۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۳/۵ رقم الحديث ۲۶۹۹ ومسلم في ۳ ۱۴۰۹ رقم [illegible] ۱۱

# باب اخراج الیهود من جزیرة العرب

## د جزیرهٔ عرب نه د یهودو د ایستلو بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿وقاتلوهم حتی لا تکون فتنة و یکون الدین کله لله﴾(سورة الانفال : ۳۹)

جزیره اصل کښې د وچې د هغه ځای نوم دی چې له څلورو اړخونو نه ورته اوبه وي. دا چې د عرب په درې اړخونو کښې اوبه دي، ځکه د زمکې دې برخې ته د اکثري حکم په اعتبار سره جزیره ویلی شوي ده. کیښې د عرب په شمال کښې ملک شام واقع دی. چرته چې سمندر نشته دی. البته په اکثرو اړخوړ کښې اوبه دي. نو بحر هند، بحر شا او دجله او فرات دا ملک احاطه کړی دی. حدودِ اربعه یې څه داسې ده. د عرب په مشرقي اړخ کښې خلیج فارس او بحر عمان دی. مغربي اړخ کښې یې بحیرهٔ قلزم او نهر سویز دی. جنوب کښې بحر هند واقع دی او شمال کښې ملک شام واقع دی. چې سمندر ورته نشته دی.

جزیرهٔ په پنځه برخو کښې شامله ده. ۱: تهامه ۲: نجد ۳: حجاز ۴: عروض ۵: یمن

کله چې د جزیزه عرب نوم اخستلی کیږي نو په اوږدوالي کښې دا عدن تر عراق پورې دی. او په پلن والي کښې د جده نه تر شام پورې دی. دلته د کتاب په عنوان کښې فقط د یهودو د ویستلو لفظ راغلی دی، ځکه د نبي کریم ﷺ په دور مبارک کښې فقط یهود ویستلی شول. او نصاریٰ او عیسایان وروسته هغوی هم ویستلی شوي وُو، خو بیا هم په راتلونکو حدیثونو کښې د یهود و نصاریٰ او د اهل کتابو ذکر موجود دی. بلکې د مشرکینو د ویستلو ذکر هم دی. د دوی د ویستلو وجه دا ده چې دا جزیرهٔ عرب د نبي کریم ﷺ وطن دی او دي کښې د اسلام مرکز مکه او مدینه واقع ده، نو ځکه مذهبي او سیاسیي اعتبار سره دا مرکزونه د کفر و شرک د پلتیو نه لرې کول او د مفسد او مضر اثراتو نه دا پاکول ډیر مهم او قیاس ته نژدې دی. امام شافعي رحمه د کفارو نه د حجاز دا تطهیر د مکې او مدینې پورې محدود کړی دی، خو ائمه احناف دا تخصیص نه خوښوي. بلکې د ټول جزیرهٔ عرب د تطهیر فتوی ورکوي چې نه کلیسا وي، نه کنیسه وي، نه مندر وي، نه ګردواره وي، نه امام باړه وي، نه مرزاړه وي او نه هیڅ ایمان باړه وي. بهرحال چې حدیثونو کښې مطلق د جزیرهٔ عرب نوم راغلی دی او د **"لا یجتمع دینان فی جزیرة العرب"** الفاظ عام دي، نو دا عموم تر د مکې او مدینې پورې محدودول مناسب نه دي. لهذا د شوافو پر ځای د احنافو مسلک خپلول ډیر ښه دی. بالخصوص په نن سبا زمانه کښې.

## الفصل الاول

### د جزیره عرب نه د یهودو د ویستلو حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: بَيْنَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي چې یو لمونځ کښې خلک په مسجد نبوي ﷺ کښې ناست وُو. نبي علیه السلام (خپلې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | انْطَلِقُوا | إِلَى | يهود | فخرجنا | مَعَه |

هجرې مبارکې نه) راؤتلو او ويې فرمايل چې يهوديانو له لاړ شئ، نو مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره روان شو تر دې

حَتَّى جِئْنَا بَيت الْمدَارِس فَقَامَ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا مَعْشَرَ يَهُودَ

چې د يهودو مدرسې ته روسيدلو. نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دريدلو او ويې فرمايل چې اې د يهودو ډلې! تاسو مسلمانان شئ

أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا اعْلَمُوا

چې (د دنيا د پريشانو نه او د آخرت د عذاب نه) بچ شئ. تاسو پوهه شئ چې ځکه د خداى او د هغې د رسول ده

أَنَّ الْأَرْضَ لِلّٰهِ وَلِرَسُولِهِ

(يعنې د دې ځمکې حقيقي خالق او مالک الله تعالى دى او د هغې رسول د نائب او خليفه په حيثيت دې زمکه

وَأَنِّي أُرِيدُ أَنْ أُجْلِيَكُمْ

باندې متصرف او حاکم دى) که تاسو د مسلمانيدلو نه انکار کوي نو بيا واورئ چې (ما د اراده کړې ده چې تاسو

مِنْ هَذِهِ الْأَرْضِ. فَمَنْ وَجَدَ

به د دې ځمکې (يعنې د جزيرة العرب) نه شړم. پس تاسو کې چې کوم يو کس په خپل مال او اسباب

مِنْكُمْ بِمَالِهِ شَيْئًا

کې (څه داسې) شيز لرې (چې د ځان سره يې وړل امکان نه لري لکه جايداد غير منقوله وغيره) نو

فليبعه (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

هغې له پکار دې چې هغه خرڅ کړي

**توضيح: بينا نحن في المسجد:** حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې په همغه دوران کې چې مونږ په جومات کې ناست وُو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تشريف راوړو. (مرقات ۶۴۷/۷)

**سوال:** دلته دا سوال پيدا کيږي چې د بنو نظير جلا وطني په ۴ هجرئ کې شوې وه او د نبو قريظه تباهي په ۵هجرئ کې وشوه. حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ۷ هجرئ کې مسلمان شوى دى. هغه وخت خو ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شوى هم نه وُو، نو هغه څنګه وايي چې د بنو نظير د جلا وطنۍ په وخت کې

[1]) رقم الحديث ۴۰۵۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۷۰/۶ رقم الحديث ۳۱۶۷ ومسلم ۱۳۸۷/۳ رقم الحديث (۶۱-۱۷۶۵)

مونږ په جومات کې ناست ؤو؟ **جواب**: د دې اولنی جواب دا چې دلته د يهودو نه مراد د بنو قينقاع دي د دې څه خلک هغه وخت ويستلی شوي ؤو چې کوم وخت کې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شوی ؤو. دويم جواب دا چې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اکثر داسې جمله وايي چې مونږ هلته ؤو. او مونږ وليدل يا مونږ واورېدل. د دې نه حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ جماعت مراد اخلې. اګر که خپله هلته نه وي. مطلب دا وي چې زمونږ د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ جماعت هلته ناست ؤو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلو (د حديثنو پوهېدلو لپاره دا بهترينه قاعده ده).

**بيت المدارس**: دا به د يهود په نزد مدرسه وه، لکه څنګه چې زمونږ مدرسه وه. (مرقات ۶۴۷/۷)

**اجليکم**: يعنې زه د جزيره عرب نه تاسو جلا وطن کول غواړم. تاسو خپل مالونه خرڅ کړئ څو د دې ځای نه لاړ شئ. (مرقات ۶۴۷/۷)

## حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يهودو د ويستلو پس منظر وايي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ | وَعَنِ | ابْنِ | عمر | قَالَ: | قَامَ | عُمَرُ | خَطِيبًا | فَقَالَ: |

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خطبې لپاره اودرېدلو او په خطبه کې يې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

وفرمايل چې تاسو ټول خبريئ چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خيبر د يهودو د مال او جايداد متعلق يو معامله فرمايلې

| | | |
|---|---|---|
| كَانَ | عَامَلَ | يَهُودَ |

وه او هغه دا چې دا يهوديان به په خيبر کې د وسيدلو لپاره پرېښودلی کېږي. او د غشان د هغوی د کجورو باغونه او پټي به هم د دوی

| | | |
|---|---|---|
| خَيْبَرَ | عَلَى | أَمْوَالِهِمْ |

هم د دوی په ملکيت کې پرېښودلی کېږي. البته د دوی د پيداوار او عايد نه نيمه برخه اخستلی کېږي او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دوی باندې

| | | |
|---|---|---|
| وَقَالَ: | نُقِرُّكُمْ | مَا |

داسې جزيه هم مقرره کړې وه او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هم هغه وخت کې يهودو ته ويلي ؤو چې مونږ به تاسو په خيبر کې تر هغه وخت پورې

| | | |
|---|---|---|
| أَقَرَّكُمُ | اللهُ . | وَقَدْ |

پرېږدو چې تر کومې پورې الله تعالى تاسو پرېږدي يعنې تاسو تر هغه پورې په خيبر کې د اوسيدلو حقدار يئ چې تر څو پورې مونږ ته

| | | |
|---|---|---|
| رَأَيْتُ | إِجْلَاءَهُمْ | فَلَمَّا |

الله تعالى ستاسو د جلا وطنۍ حکم ونه کړي. لهذا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې اوس زه د هغوی جلا وطنۍ مناسب ګڼم.

أَجْمَعَ عُمَرُ عَلَى ذَلِكَ أَتَاهُ أَحَدُ بَنِي أَبِي الحُقَيْقِ

بيا چې كله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې خبرې فيصله وكړه نو د يهودو د قبيلې بنى ابى الحقيق يو كس چې د خپل

فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَتُخْرِجُنَا

قوم لوېې بوډه سردار ؤو. د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خدمت ته راغلو او وې ويل چې امير المؤمنين آيا ته مونږ جلا وطن

وَقَدْ أَقَرَّنَا مُحَمَّدٌ وَعَامَلَنَا عَلَى الْأَمْوَالِ؟

كوې. حال دا چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ د لته په خيبر كې د پرېښې ؤو. او زمونږ د مال او د اسبابو متعلق يې يو معاهده

فَقَالَ عُمَرُ: أَظَنَنْتَ أَنِّي نَسِيتُ

هم كړې وه؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمايل چې كه ته دا ګمان كوې چې ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا خبره هېره كړې ده

قَوْلُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَيْفَ بِكَ إِذَا

چې كومې ته تا زه مخاطب كړم او ودې ويله چې هغه وخت به ستا څه حال وي او څه به كوې چې ته به د خيبر

أُخْرِجْتَ مِنْ خَيْبَرَ تَعْدُو بِكَ قَلُوصُكَ

جلا وطن كېږې. او د شپې نه وروسته به ستا او بنې ته په منډو كړې ى. ګويا كې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د دې راتلونكې

لَيْلَةً بَعْدَ لَيْلَةٍ؟ فَقَالَ: هَذِهِ

وخت نه وړ وړولى وي چې تاسو به شپې د خيبر نه ؤځئ. د دې كس دې اورېدلو سره وويل چې دا خبره خو

كَانَتْ هُزَيْلَةً مِنْ أَبِي الْقَاسِمِ فَقَالَ كَذَبْتَ

ابو القاسم په د ټوقې په ټوقه كړې وه. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمايل چې اى د خداى د ښمنه! ته دروغ وى.

يَا عَدُوَّ اللهِ فَأَجْلَاهُمْ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا خبره په ټوقه كې نه كوې بلكې د معجزې په توګه يې كړې وه. تاسو ته يې د غيبي خبرې خبر

عُمَرُ وَأَعْطَاهُمْ قِيمَةَ مَا كَانَ لَهُمْ مِنَ الثَّمَرِ مَالًا

دركړى ؤو. او بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يهوديان جلا وطن كړل او د هغوى سره چې څه قسمه مېوه وه لكه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِبِلًا | وَعُرُوضًا | مِنْ | أَقْتَابٍ | وَحِبَالٍ | وَغَيْرِ | ذَٰلِكَ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[1] | |
| کجورې وغیره د هغې په قیمت کې یې هغوی ته مال، اوښان او اسباب لکه پړې او پالان وغیره ورکړل. | | | | | | | | | |

**توضیح: قلوص:** قلوص ځوان طاقتور اوښې ته وايي. (مرقات ۶۵۰/۷)

**لیلة بعد لیلة:** یعني شپې د شپې به ستا اوښه په منډو منډو وباسي، هغه منظره څنګه وي؟ د یهودیانو سردار وویل چې ابو القاسم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو ټوقې کولې. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې زه د الله دښمنه. دا ټوقې نه وي. ته دروغ وايې، نو بیا حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی جلا وطن کړل. (مرقات ۶۵۰/۷)

**واعطاهم قیمة:** د اعطاهم لپاره قیمة مفعول ثاني دی. او **مالاً** د دې بدل دی. دغه شان **ابلا** و **عروضاً** هم بدل دی. او من **اقتاب** دا **عروضاً** لپاره بیان دی. عبارت داسې دی "**فاعطاهم قیمة** یعني **ابلاً** و **عروضاً من الاقتاب والحبال ببدل ما کان لهم من الثمر**" یعني حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جلا وطن کونکو یهودو ته د هغوی د باغونو او د مېوؤ په بدل کې قیمت ادا کړو. هغه قیمت د اوښانو په شکل کې ؤو او د سامان به شکل کې هم ؤو، لکه پالان، کجاوې او پړې، دا یې هغوی ته ورکړل چې لاره کې یې پکار شي او د باغونو نه به د دې په بدل کې مسلمانانو ته پاتې شي. (مرقات ۶۵۰/۷)

## یهود او نصارٰی د جزیره عرب نه وباسئ

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسلم | أَوْصَى | بِثَلَاثَةٍ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مرګ په وخت کې د درې خبرو نصیحت وکړو. | | | | | | | | | | |
| قَالَ: | أَخْرِجُوا | الْمُشْرِكِينَ | مِنْ | جَزِيرَةِ | الْعَرَبِ | | | | | |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې مشرکان د جزیره عرب نه وباسئ یعني مکې او د مدنیې نه یې وباسئ او د قاصدانو او | | | | | | | | | | |
| وَأَجِيزُوا | الْوَفْدَ | بِنَحْوِ | مَا | كُنْتُ | أُجِيزُهُمْ | | | | | |
| نمایندګانو سره هغه سلوک کوئ کوم چې ورسره ما کولو. یعني چې هغوی له تاسو سره وي نو د هغوی خیال | | | | | | | | | | |
| قَالَ | ابْنُ | عَبَّاسٍ: | وَسَكَتَ | عَنِ | الثَّالِثَةِ | | | | | |
| ساتئ او هغوی ته: هغوی د ژوند ضرورتونه ورکوئ. راوي وايي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دریمه خبره . | | | | | | | | | | |

[1] رقم حدیث ۲۰۵۱، اخرجه البخاري في صحیحه ۳۲۷/۵ رقم الحدیث ۲۷۳۰

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَو | قَالَ: | فأنسيتها | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| باندې چپ پاتې شو يا حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دريمه خبره مانه هېره شوې ده. | | | |

**توضيح**: اوصیٰ: دې حديث کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امت به نوم د يو پيغام په شکل کې وصيت لېږلی دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا وصيت هغه وخت کړی دی کله چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ په مرض کې ؤو. مسلمانانو له پکار ده چې دې ته غوږ ونسې، ګنې همدغه شان به پاتې شي. دا درې وصيتونه ؤو. (مرقات ۶۵۰/۷)

۱: **اخرجوا المشركين**: علماؤ ليکلي دي چې د دې نه مراد يهود او نصاری دي، ځکه هغوی هم په شرک کې اخته شوي دي. يا امکان لري چې اهل کتاب او نور مشرکان ټول مراد وي. ظاهره همدغه ده. (مرقات ۶۵۰/۷)

۲: **اجيزوا الوفد**: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به د لرې لرې نه د اسلام قبلولو په غرض يا د دين زده کولو په اراده خلک به د وفد په شکل کې راتلل. خصوصاً په آخري عمر کې خو ټول کال وفدونه راتلل. نبي کريم ﷺ به د هغوی عزت کوو. هغوی هيسارول، خوراک ورکول، اوده کول او څه به يې عطيه ورکړه او بيا به يې لېږل، دا ټول به کېدل. د همدغه دود د جاري ساتلو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دويم وصيت کړی دی.

۳: دريم وصيت باره کې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې مانه هېر شوې دي. علماؤ ليکلي دي چې دريم وصيت د جيش اسامه باره کې ؤو چې دا خامخا ولېږئ. زير بحث حديث کې دې ته اشاره نشته دی. ځينې روايتونو کې د دې ذکر دی. قاضي عياض فرمايي چې دريم وصيت دا ؤو چې زما قبر د بت پشان مه جوړوئ چې غوښتنه ترېنه شروع شي. موطأ مالک کې د دې ذکر دی. (مرقات ۶۵۰/۷)

## د يهوديانو د ويستلو پخه اراده

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: أَخْبَرَنِي عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| او حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته بيان کړو چې |

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۵۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۷۰/۶ رقم الحديث ۳۰۳۵ ومسلم في ۱۲۵۷/۳ رقم الحديث (۲۰-۱۷۳۷)

| |
|---|
| أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لأُخرِجنَّ اليهودَ والنصَارى من |
| هغې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې زه به يهوديان او عيسايان د جزيره عرب نه ضرور |
| جزيرةِ الْعَرَب حَتّٰى لَا أَدَعَ فِيهَا إِلَّا مُسْلِمًا . رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِي رِوَايَةٍ: |
| وباسم تردې چې په جزيره عرب کې به د مسلمانانو نه بغير هيڅ څوک نه پرېږدم. او روايت کې دي چې |
| لَئِنْ عِشْتُ إِنْ شَاءَ اللهُ لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا و فرمايل چې که زما ژوند ؤو نو ان شاء الله يهوديان او عيسايان به د |
| مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ[1] |
| جزيره عرب نه ضرور وباسم. |

**توضيح:** نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو په داسې تاکيد سره فرمايلي دي چې خامخا م جزيره عرب نه يهود او نصارى وباسم، خو عربو نن سبا قسم خوړلی دی چې مونږ به يهود او نصارى به په جزيره عرب کې داخلؤو او کوم عرب مسلمانان چې د هغوی خلاف کوي او هغوی به د جزيره عرب نه وباسې او افغانستان يا سوډان به شړي. دا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وصيت ؤو او د دې به ضمن کې ګوياکې يوه سياسې فيصله هم وه او پيښګوئی هم وه چې که چرې داسې نه کوئ نو ګير به شئ. نن سبا يهود او نصارى د عرب مسلمانان ګير کړي دي. نن سبا که د دې حديث خبره څوک کوي نو وايي چې دا بنياد پرست دي او دا دهشت ګرد دي. شيخ اسامه د دې وجې نه در په در دی. انا لله وانا اليه راجعون.

## الفصل الثاني

| |
|---|
| لَيْسَ فِيهِ إِلَّا حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ لَا تَكُونُ قِبْلَتَانِ وَقَدْ مَرَّ فِي بَابِ الْجِزْيَةِ |
| دا فصل د حديث نه خالي دی. دې کې چې کوم حديث ؤو هغه په باب الجزيه کې تير شوی دی. |

[1] رقم الحديث ۴۰۵۳ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۳۸۸/۳ رقم الحديث (۶۳-۱۷۶۷) وأبوداود في السنن ۴۲۴/۳ رقم الحديث ۳۰۳۰.

## الفصل الثالث

## د يهوديانو دويستلو عمل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوره کړو

﴿۵﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَجْلَى الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ أَرْضِ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د حجاز په ځمکه يعنې جزيرة العرب نه د يهودو جلا وطنۍ د

الْحِجَازِ وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا ظَهَرَ

کار د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس انجام ته ورسيدلو. د دې نه مخکې کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خيبر په خلکو باندې

عَلَى أَهْلِ خَيْبَرَ أَرَادَ أَنْ يُخْرِجَ الْيَهُودَ مِنْهَا

غالب شوی ؤو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يهود د خيبر نه د شړلو اراده کړې وه ځکه کومه زمکه باندې چې د حق

وَكَانَتِ الْأَرْضُ لَمَّا ظُهِرَ عَلَيْهَا لِلّٰهِ

دين ته غلبه حاصله شي هغه زمکه د الله او د هغې د رسول او د مسلمانانو شي. هلته به صرف د الله دين غالب

وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُسْلِمِينَ فَسَأَلَ الْيَهُودُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او مسلمانانو ته د تصرف حق او حکمرانۍ حاصله وي، خو يهودو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته دا خواست وکړو

أَنْ يَتْرُكَهُمْ عَلَى أَنْ يَكْفُوا الْعَمَلَ

چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يهود په دې شرط د خيبر په زمکو باندې قابض او تصرف پرېږده چې هغوی محنت وکړي

وَلَهُمْ نِصْفُ الثَّمَرِ

يعنې د باغونو ساتنه او هغه او به کولو وغيره ټول کارونه وکړي او د هغې د پيدا کېدلو مېوؤ نيمه برخه به د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

حق وي، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغوی دا خواست منظور کړو خو دا يې ورته وفرمايل چې مونږ تاسو په دې شرط

نُقِرُّكُمْ عَلَى ذٰلِكَ مَا شِئْنَا فَأُقِرُّوا

ترهغه وخت پورې خيبر کې پرېږدو چې تر کومې پورې به مونږ غواړو. د هغې نه وروسته يې بيا په خيبر کې پرېښودل

| |
|---|
| حَتّٰى أَجْلَاهُمْ عُمَرُ فِي إِمارته إِلى تَيماءَ وأريحاء (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| تردې چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل دور خلافت په زمانه کې هغه ټول د تيماء او اريحا اړخ ته جلا وطن کړل. |

**توضيح: من ارض الحجاز**: د يهودو د جلا وطنۍ چې کوم ارمان او تاکيد نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کړی ؤو. هغه حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوره کړو. معلومه شوه چې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکمونه پوره کونکی ؤو. که حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چرته د تاريخ د صفحونه ويستلی شي نو د دين د تکميل مرحله پوره پاتې نه شي. روافضو باندې دې د الله لعنتونه وي چې د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خدمتونو نه انکار کوي. (مرقات ۶۵۲/۷)

**وكانت الارض**: يعنې کومه زمکه به چې د جهاد په ذريعه فتح کېدله هغه به د الله او د هغې د رسول او مسلمانانو وه او په مسلمانانو کې به تقسيمېدله. د خيبر ځمکو سره هم دغه شان وشوه خو د يهودو دا خواست وکړو چې اوس د دهقانانو په توګه مونږ دلته پرېږدئ، مونږ به ځمکې ابادې کړو. نيمه غله زمونږ او نيمه به د مسلمانانو وي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تر څو پورې زمونږ خوښه وي تاسو به پرېږدو ګنې جلا وطن کؤو به مو، نو حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغوی ويستل نو باقې ونه ساتل ګويا کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويستل او باقې نه ساتل انقركم کې د عمر شان ثومره شاندار شي. تيما او اريحا دواړه مقامونه د جزيره عرب نه بهر په شام کې دي. (مرقات ۶۵۲/۷)



---

[1] رقم الحديث ۴۰۵۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۲/۶ رقم الحديث ۳۱۵۲ ومسلم في ۱۱۸۷ رقم الحديث (۶-۱۵۵۱)

# باب الفئ
# د فئ بیان

**قال الله تعالیٰ: ﴿وما افآء الله علی رسولهم فما او جفتم علیه من خیل و لا رکاب﴾**

**وقال الله تعالیٰ: ﴿ما افآء الله علی رسولهم من اهل القریٰ فلله وللرسول ولذی القربیٰ﴾** (سورة حشر)

کوم مال چې مسلمانانو ته په میدان جنګ کې او د مقابلې نه بغیر تر لاسه شي، هغې ته فئ وایي. فاء یفئ فیئا د بیرته راتلو او رجوع په معنی کې دی. دا چې دا مال اول د کفارو په لاس کې ؤو. وس د حق حکومت سره قبضه شول او حقیقي مالک یعنې د الله تعالیٰ اړخ ته بیرته راغلی دی یا د مسلمانانو لاس ته راغلی دی نو ځکه دې ته مالِ فئ وایي. (مرقات ۶۵۳/۷)

قرآن پاک کې الله تعالیٰ د مالِ فئ تعارف هم کړی دی. او د دې مصرفول یې هم ویلي دي. د الله تعالیٰ حکم دی.

**﴿وما افآء الله علی رسوله منهم فما اوجفتم علیه من خیل ولا رکاب و لکن الله یسلط رسله علی من یشآء والله علی کل شئ قدیر ○ ما افآء الله علی رسوله من اهل القریٰ فلله و للرسول ولذی القربیٰ والیتامیٰ والمساکین وابن السبیل کی لا یکونه دولة بین الاغنیاء منکم﴾** (سورة حشر ۶، ۷)

ملا علی قاری مرقات کې لیکلي دي. چې مالِ فئ هغه وي چې کوم مسلمانانو ته بغیر د جنګ نه حاصل شي. د دې ځلور برخې به په پوره توګه د نبي کریم ﷺ په لاس کې وي. او نبي کریم ﷺ به په مناسب ځائ باندې خرچ کولې. دې کې مېلمنو باندې خوړل، اهل و عیال ته ورکول، مجاهدینو سره مرسته کول تول شامل ؤو، نو پنځمه برخه به نبي کریم ﷺ په هغې باندې مصرفول د کومو مصارفو ذکر چې الله تعالیٰ ذکر کړی دی. د مال مصرف او د اموالِ خراج او د خمس مصرف یو دی. دا نبي کریم ﷺ په اهل بیت، ښځو، ماشومانو وغیره باندې تقسیم کړو، یتیمانو او کونډو وغیره باندې یې خرچ کړه، مسکینانو او محتاجه خلکو باندې خرچ کړه، مسافرو او په پسماندګانو خلکو باندې یې خرچ کړه. دد ینه بغیر نور د خیر په کارونو کې د دې مصرفول جائز دي. مثلاً سرک یا پُل جوړول، هسپتال یا جومات او مدرسه جوړول، دې ټولو مصارفو کې مالِ فئ استعمالیدلی شي. اوس پاتې شوه دا خبره چې د مالِ فئ په تقسیم کې به د خلکو د مرتبې لحاظ وي یا نا؟ نو د جمهورو په نزد د دې لحاظ کېږي. هغه داسې چې اول افضل ته ورکړی شي بیا دې درجه په درجه ورکړی شي. مثلاً د ټولو نه اول دې د بدر والو ت ورکړی شي. بیا دې بیعت الرضوان والو کې تقسیم وي. بیا په اهل بیتو کې او بیا دې په عوامو کې تقسیم شي. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به د همدغه ترتیب خیال ساتلو، لکه مخکې په حدیث کې راروان دي.

خو امام شافعي رحمه الله فرمايي چې مال فئ کې د تقسيم د هيڅ ترتيب هيڅ لحاظ او اعتبار نشته دی. بلکې د ميراث پشان به مستحيقينو کې برابر شريک وي. بهرحال مال غنيمت کې صرف د مجاهدينو حق دی. مال فئ کې د ټولو مسلمانانو حق دی. دغه شان په مال فئ کې خمس نه وي. مال غنيمت کې خمس وي. خمس او د مال فئ د خرچ مواقع يو شان دي. نبي کريم ﷺ به چې کوم مال فئ ملاو شوی ؤو. هغه خو يو د بنو نضير په مالونو کې ملاو شوی ؤو. او دويم د خيبر د فتح کېدلو نه وروسته څه علاقې د جنګ نه بغير په ورغلې وي، په هغې کې مال فئ ملاؤ شوی ؤو، لکه د فدک باغ ؤو. نبي کريم ﷺ به د مسلمانانو په ضرورتونو کې هغه استعمالولو. د نبي کريم ﷺ د مرګ نه وروسته که چرې مال فئ ملاو شي نو وخت خليفه به يې په مسلمانانو باندې تقسيموي. (مرقات ۶۵۳،۶۵۴/۷)

# الفصل الاول

## د مال فئ خرچ کول

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ مالكِ بن أَوْسِ بنِ الحَدَثانِ قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: إِنَّ اللهَ |
| حضرت مالک بن اوس ابن حدثان فرمايي چې حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه وفرمايل الله دې مال فئ په سلسله |
| قَدْ خَصَّ رَسُولَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْفَيْءِ بِشَيْءٍ لَمْ عطه أحدا غيره |
| کې نبي کريم ﷺ ته يو خاص خصوصيت ورکړی ؤو. د نبي عليه السلام نه بغير يې بل هيچا ته هغه خصوصيت نه |
| ثُمَّ قَرَأَ (مَا أَفَاءَ اللهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُم) إِلى قوله (قدير) |
| دی ورکړی. بيا حضرت عمر رضي الله عنه دا آيت **ما افاء الله على رسوله منهم** ........تا ........**قدير** يې ولوستلو |
| فكانتْ هَذِهِ خَالِصَةً لرَسُول اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ |
| او ويې فرمايل چې دا صرف د الله د رسول لپاره مخصوص ؤو. چې د هغې نه به نبي کريم ﷺ د خپل |
| عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هَذَا الْمَالِ. ثُمَّ يَأْخُذُ |
| کورنۍ ته د ټول کال خرچ ورکولو. د هغې نه وروسته به چې هغې کې څه پاتې شول نو هغه به يې په هغه ځای کې خرچ |
| مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ مَجْعَلَ |
| کړل چې د الله د مال خرچ کولو ځای و نه دي يعني دا پاتې مال به يې د مسلمانانو په مفاد او د خير لکه د اسلحو او د آسونو وغيره په |

مَالِ اللهِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

اخستلو کې خرچ کولو. دغه شان په محتاجه او مسکینانو کې به یې چاته غوښتل نو هغې سر ده به یې پرې مرسته کوله.

﴿۲﴾وَعَن عمر قَالَ: كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا

او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې د يهودو د قبيلې د بنو نظير مال د هغه قسمه مالونو نه ؤو چې الله خپل

أَفَاءَ اللهُ عَلَى رَسُولِهِ مِمَّا لَمْ يُوجِفِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ

نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بغير د کوشش نه ورکړی ؤو، نو ځکه نه خو مسلمانانو آسونه په منډو کړي ؤو

بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِصَةً يُنْفِقُ

او نه او ښان، ځکه هغه مال د الله رسول لپاره مخصوص شوی ؤو چې د هغې نه به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ ثُمَّ يَجْعَلُ مَا بَقِيَ

خپل کور والو ته د ټول کال د ضرورتونو خرچ ورکولو. او بيا به چې د هغې نه څه پاتې شول نو هغه به

فِي السِّلَاحِ وَالْكُرَاعِ عُدَّةً فِي سَبِيلِ اللهِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2]

يې د اسلحو او د آسونو په اخستلو باندې خرچ کول چې هغه د الله په لار يعنې جهاد کې په کار شي.

**توضيح**: نفقة سنة: پوښتنه دا ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د توکل په وجه د ځان سره څه نه ساتل. دلته يې خرچه څنګه وساتله؟

د دې جواب دا دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خپل ځان لپاره نه ساتله. په ازواج مطهراتو کې به هم د ځينو ازواج لپاره د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخه داسې کېدل. د ټولو لپاره به نه ؤو.

## الفصل الثاني

### د مال فئ د تقسيم يو صورت

﴿۳﴾ عَن عوفِ بْنِ مَالِكٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَتَاهُ الْفَيْءُ

حضرت عوف ابن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مال فئ راغلو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به

---

(1) رقم الحديث ۴۰۵۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۷/۶ رقم الحديث ۳۰۹۴ ومسلم في ۱۳۷۸/۳ رقم الحديث (۴۹-۱۷۵۷)

(2) رقم الحديث ۴۰۵۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۹۳/۶ رقم الحديث ۲۹۲۰ ومسلم في ۱۳۷۸/۳ .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَسَمَهُ | فِي | يَوْمِهِ | فَأَعْطَى | الْآهِلَ | حَظَّيْنِ |

هغه په همغه ورځ په ضرورتمندو کې تقسيم کړو. کوم به چې د ښځې والا ؤو هغې له به يې دوه برخې ورکولې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَأَعْطَى | الْأَعْزَبَ | حَظًّا | فَدُعِيتُ | فَأَعْطَانِي | حَظَّيْنِ |

او مجرد ته به يې يوه برخه ورکوله، نو يو ځل يې زه هم راوغوښتلم او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماله دوه برخې راکړې

وَكَانَ لِي أَهْلٌ ثُمَّ دُعِيَ بَعْدِي عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ فَأُعْطِيَ حَظًّا وَاحِدًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

ځکه زما ښځه وه او بيا يې زما وروسته عمار بن ياسر راوغوښتلو چې ښځه يې نه وه نو هغې له يې يوه برخه ورکړه.

**توضيح**: الآهل: د واده کړې شوي په معنی کې دی.

**الاعزاب**: ناواده کړي ته اعزاب وايي. (مرقات ۶۵۸/۷)

**الكراع**: آسونو ته کراع وايي.

﴿۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د مال فئ راتلو نه وروسته به د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوَّلُ | مَا جَاءَهُ | شيءٌ | بدأَ | بالمحرَّرينَ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[2] |

هغې نه په ټولو کې اول هغه خلکو ته ورکول چې کوم په هغه وخت کې د غلامۍ نه ازاد کړې شوي ؤو.

**توضيح**: **المحررين**: ازاد شوی غلام مراد دی. دا چې دا به بې سرو او بې سامانه ؤو نو ځکه به يې د ټولو نه اول به د مالِ فئ تقسيم په هغوی کېدلو.

## د مالِ فئ غمې به هم تقسيمېږي

﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بطبية فِيهَا خَرَزٌ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له يو بوجۍ راوړلی شوه. چې د غمو نه ډکه وه.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَسَمَهَا | لِلْحُرَّةِ | وَالْأَمَةِ | قَالَتْ | عَائِشَةُ: |

نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه غمې په بيبيانو يعنې ازاد شوؤ ښځو او په وينځو باندې تقسيم کړې. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې زما

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۵۷ أخرجه ابوداود في السنن ۳۵۹/۳ رقم الحديث ۲۹۵۳ وأحمدفي المسند ۲۵/۶

(۲) رقم الحديث ۴۰۵۸ أخرجه ابوداودفي السنن ۳۵۸/۳ رقم الحديث ۲۹۵۱.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كَانَ | أَبِي | يَقْسِمُ | لِلْحُرِّ | وَالْعَبْدِ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[۱] |

پلار يعنې حضرت ابوبكر رضي الله عنه به كله چې راغلل نو هغه غمې به يې په ازاد كړې شوې غلامانو باندې هم تقسيمول.

**توضيح**: ظبيبة: ظا باندې فتحه ده. با ساكن دى. يا باندې فتحه ده. وړې بوجۍ ته وايي. چې په هغې كې عموماً ملغلرې ايښودلى كېږي. خرز: خا باندې فتحه ده. را باندې هم فتحه ده. آخر كې زا ده. د جواهرو يو قِسم دى، خو دلته غمې مراد دي.

**للحر والعبد**: د حضرت عائشه رضي الله عنها په دې كلام كې دا شاره ده چې د مال فئ غمې به په دور صديقي كې صرف په ښځو باندې نه تقسيمېدل بلكې نارينو باندې به تقسيمېدل. او دا شاره هم ده چې كه هغه نارينه او ښځه به وه او غلام به ؤو او كه وينځه به وه. دا چې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په زمانه كې به د مال فئ غمې صرف په ښځو تقسيمېدل. نارينو ته به نه وركول كېدل. حضرت عائشه رضي الله عنها دا تخصيص عام كول غواړې او فرمايي چې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په زمانه كې په نارينو هم تقسيمېدل. ملاعلي قاري رحمه الله ليكلي دي چې كېدى شي چې د غلام نه ازاد شوى غلام مراد وي ځكه غلام كه د چا غلام دى نو د هغې خرچ په مالک باندې دى. مال فئ كې د هغې برخه نه وي. بهرحال حق كېدل او عطيه وركول جدا جدا شيان دي. (مرقات ۶۵۹/۷)

## د مال فئ تقسيم كې د مرتبو د فرق لحاظ

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَن مَالِكِ بن أَوسِ بن الحدثانِ قَالَ: ذكر عمر بن الخطاب يَوْمًا الْفَيْءَ |
| او حضرت مالک ابن اوس ابن حدثان فرمايي چې يو ورځ حضرت عمر رضي الله عنه د مال فئ ذكر وكړو |
| فَقَالَ: مَا أَنَا أَحَقُّ بِهَذَا الْفَيْءِ مِنْكُمْ وَمَا أَحَدٌ مِنَّا |
| او ويې فرمايل چې د دې مال فئ زه ستاسو نه زيات مستحق نه يم او په مونږ يو كس دې مال فئ كې |
| بِأَحَقَّ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا أَنَّا عَلَى مَنَازِلِنَا مِنْ كِتَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ |
| د بل كس نه زيات مستحق دى. البته مونږ د الله كتاب او د هغې د رسول د تقسيم مطابق په خپله خپله مرتبه باندې يو، |
| وَقَسْمِ رَسُولِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَالرَّجُلُ وَقِدَمُهُ وَالرَّجُلُ |
| نو يو هغه كس دى د اسلام په قبوليت كې اوليت لري. يو هغه كس دى چې د دين په لاره كې زړه ورتيا او بهادرۍ |

(۱) رقم الحديث ۴۰۵۹ أخرجه ابوداود في السنن ۳۵۹/۳ رقم الحديث ۲۹۵۲ واحمد في المسند ۱۵۶/۶

| | | |
|---|---|---|
| وَبَلَاؤُهُ | وَالرَّجُلُ | وَعِيَالُهُ |

سره د لويې کارنامو او د کوشش او مشقت صفتونه لري. يو هغه کس دی چې اهل و عيال لري او يو هغه

وَالرَّجُلُ وَحَاجَتُهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]

کس دی چې ضرورت او حاجت لري.

**توضيح** **وقدمه:** يعني قديم الاسلام سړی به د مال فئ په تقسيم کې اوليت او افضل وي. (مرقات ۷/۶۶۰)

**فالرجل وبلاءة:** يعني مسلمان دی او بهادر دی، لويې معرکې کوي. د دين لويې لويې مشقتونه برداشت کوي. هغه زيلت مستحق دی. (مرقات ۷/۶۶۰)

**وعياله:** يعني کس د بچو والا دی. هغې ته به د هغې د بچو په خاطر زيات ورکول کېږي. (مرقات ۷/۶۶۰)

**وحاجة:** يعني داسې کې دی چې بالکل محتاجه دی. هغه زيات مستحق دی. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د مرتبو لحاظ ساتلی دی. هم دغه د جمهورو مسلک دی. امام شافعي رحمه الله د دې قائل نه دی. مسئله مخکې ليکلی شوې ده. راتلونکی حديث هم داسې دی. (مرقات ۷/۶۶۰)

﴿۷﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَرَأَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ:

او حضرت مالک رضي الله عنه ابن اوس فرمايي چې په يو موقع حضرت عمر رضي الله عنه دا آيت ولوستلو چې د زکوة د

(إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ) حَتَّى بَلَغَ (عَلِيمٌ حَكِيمٌ)

مصارفو بيان په کې دی ﴿انما الصدقات للفقراء والمساكين﴾ او دا آيت هغې د عليم حكيم پورې ولوستلو

فَقَالَ: هَذِهِ لِهَؤُلَاءِ.

او ويې فرمايل چې دې کې د زکوة اخستلو هغه خلک مستحق دي چې ذکر يې په دې آيت کريمه کې شوی دی.

ثُمَّ قَرَأَ (وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ)

يعني فقيران او مسکينان وغيره. بيا هغې دا آيت ولوستلو واعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خمسه وللرسول

حَتَّى بَلَغَ (وَابْنِ السَّبِيلِ) ثُمَّ قَالَ: هَذِهِ

او دا آيت يې د وابن السبيل پورې ولوستلو او ويې فرمايل چې دا د خمس مال د همغه خلکو حق دی چې ذکر

---

[1] رقم الحديث ۴۰۶۰ أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۵۸ رقم الحديث ۲۹۵۰

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِهَؤُلَاءِ. | ثُمَّ | قَرَأَ | (مَا | أَفَاءَ | اللهُ |

يې دې آيت شوی دی. يعنې د ذوی القربی وغيره د هغې نه وروسته هغې دا آيت ولوستلو چې د مال فئ بيان په کې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | رَسُولِهِ | مِنْ | أَهْلِ | الْقرى) | حَتَّى | بلغَ |

شوی دی چې چاچاته ورکړی شي ما افاء الله علی رسوله من اهل القری دا آيت يې د **للفقراء والذين جاء وامن**

| | | | |
|---|---|---|---|
| (للفقراءِ) | ثمَّ | قرأ | (والذينَ |

بعدهم پورې ولوستلو. يو نسخه کې دا عبارت دی چې **حتی بلغ للفقراء ثم قرأ والذين جاء و** اد دې مطابق به

| | | |
|---|---|---|
| جاؤوا | منْ | بعدِهِم) |

مفهوم دا وي چې هغوی دا آيت **ما افاء الله** شروع کړو او د **للفقراء** پورې يې دوه آيتونه ولوستل او بيا يې دا

| | | |
|---|---|---|
| ثُمَّ | قَالَ: | هَذِهِ |

آيت **والذين جاء وامن بعدهم** ولوستلو او ويې فرمايل چې دې آيت د ټولو مسلمانانو احاطه کړې ده. لهذا که

| | | |
|---|---|---|
| اسْتَوْعَبَتِ | الْمُسْلِمِينَ | عَامَّةً |

زما ژوند ؤو نو زما د خلافت په حدودو کې به هيڅ داسې مسلمان پاتې نه شي چې هغې ته د هغې د مال برخه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَئِنْ | عِشْتُ | فَلَيَأْتِيَنَّ | الرَّاعِيَ | وَهُوَ | بِسَرْوِ | حِمْيَرَ | | |

ورونه رسي. تردې چې هغه شپونکې ته به هم د هغې د مال فئ برخه وررسيږي چې په مقام سرو حمير

نَصِيبُهُ مِنْهَا لَمْ يَعْرَقْ فِيهَا جَبِينُهُ. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[1]

کې وي حال دا چې د دغې مال حاصلو کې د هغې تندې هم په گرد نه ککړ بږي.

**توضيح**: **استوعبت المسلمين**: يعنې دې آيت کې ټول مسلمانان شامل دي. (مرقات ۶۶۱/۷)

**الراعي**: شپونکې ته راعی وايي. دلته د لرو لرو علاقو خلک مراد دي. (مرقات ۶۶۱/۷)

**بسرو**: سين باندې فتح ده. را ساکن دی. واؤ متحرک دی. باجاره دی. سرو يم سره نزدې د يو ځای نوم دی. (مرقات ۶۶۱/۷)

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۶۱ أخرجه البغوي في الشرح السنة ۱۳۸/۱۱ رقم الحديث ۲۷۴۰

حمیر: د یمن د یوې مشهورې قبیلې نوم دی. یعې هغه باندې چې به د قبیله حمیر په علاقه کې اوسیږي او ماله به راشي نو زه هغې له په مال فئ کې برخه ورکوم.

ملاعلي قاري د پاس ذکر شوي تحقیق نه وروسته دا هم لیکلي دي چې د ځینې علماؤ دا خیال دی چې "سروحمیر" د یوې علاقې پوره نوم دی. لهذا بیا به د اضافت صورت نه وي. یعنې باندې چې به سروحمیر نه راشي. مظاهر حق کې ترجمه غلطه لیکلې شوې ده. (مرقات ۶۶۲/۷)

## دفدک قضیه کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ استدلال

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾وَعنهُ | قَالَ: | كَانَ | فِيمَا | احتجَّ | فيهِ | عُمَرُ | | | | |
| او حضرت مالک ابن اوس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کومې خبرې نه استدلال وکړو | | | | | | | | | | |
| أَنْ | قَالَ: | كَانَتْ | لِرَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | ثَلَاثُ | صَفَايَا | بَنُو | النَّضِيرِ |
| دهغه دا ؤو چې هغې وفرمایل یا دا چې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره درې صفایا وي. ۱: بنو نضیر | | | | | | | | | | |
| وخيبرُ | وفَدَكُ | فَأَمَّا | بَنُو | النَّضِيرِ | فَكَانَتْ | | | | | |
| ۲: خیبر ۳: فدک، نو د بنو نظیر د جلا وطنۍ نه وروسته د هغوی چې کوم مزمکه په قبضه کې راغلې وه د هغې نه حاصلیدونکی | | | | | | | | | | |
| حَبْسًا | لِنَوَائِبِهِ | وَأَمَّا | | | | | | | | |
| مال د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د اخراجاتو لکه د مېلمنو مېلمستیا او تواضع او د مجاهدینو لپاره د اسلحو او آسونو اخستل | | | | | | | | | | |
| فَدَكُ | فَكَانَتْ | حَبْسًا | | | | | | | | |
| وغیره مخصوص ؤو. د فدک محاصل به د هغه مسافرو د مرستې لپاره مخصوص ؤو چې کوم اګر که | | | | | | | | | | |
| لِأَبْنَاءِ | السَّبِيلِ | وَأَمَّا | خَيْبَرُ | | | | | | | |
| په خپل وطن کې به یې مال ؤو خو د سفر په دوران کې به ورسره مال او اسباب ختم شوي ؤو. او د خیبر محاصل | | | | | | | | | | |
| فَجَزَّأَهَا | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | ثَلَاثَةَ | أَجزَاء: | جزأين | |
| نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په درې برخو تقسیم کړي ؤو. هغې کې خو به دوه برخې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په | | | | | | | | | | |
| بينَ | المسلمينَ | وجزءً | نَفَقَةً | لِأَهْلِهِ | فَمَا | فَضُلَ | عَنْ | نَفَقَةِ | أَهْلِهِ | |
| مسلمانانو تقسیمولې او یوه برخه به یې په خپل اهل و عیال باندې خرچ کوله. او په هغې کې که به هم د | | | | | | | | | | |

| جَعَلَهُ | بَيْنَ | فُقَرَاءِ | الْمُهَاجِرِينَ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ[1] |
|---|---|---|---|---|---|

اهل و عیال د خرچ نه څه پاتې شوه نو هغه به نبي کریم ﷺ په غریب مهاجرینو باندې تقسیموله.

**توضیح**: ثلاث صفايا: صفايا د صفيه جمع ده. انتخابو او ټاکل او د خوښولو ته وايي. يعني د مال غنيمت د تقسيم نه مخکې به يو شی نبي کريم ﷺ د ځان لپاره خوښولو، نو دا صرف د نبي کريم ﷺ سره خاص ؤو. د نبي کريم ﷺ نه وروسته د هيچا لپاره جائز نه دي. د صفی اطلاق دلته کېدی شي د اجازت په توګه وي ځکه دا مالونه خو د مال فئ په برخه کې راځي. ګويا کې مال فئ باندې د صفی اطلاق شوی دی. (مرقات ۷/۶۶۳)

حبساً: د هيسارول په معنی کې دی. يعني د بنو نضير مالونه او د فدک مالونه نبي کريم ﷺ د حواثو او د مسافر د ضرورتونو لپاره هيسارول. او د خيبر مالونه نبي کريم ﷺ په درې برخو تقسيم کړي ؤو. يو برخه يې د خپل اهل و عيال لپاره خاص کړه او د دوه برخې يې د عام مسلمانانو لپاره خاص کړې. اصل پس منظر دا ؤو چې حضرت علي رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنه دواړو دا مطالبه کړې وه چې دا مالونه زمونږ په مينځ کې تقسيم کړه. حضرت عمر رضي الله عنه د دې نه انکار کړی ؤو. البته دا دواړه يې د دې مالونو متولي کړل، خو په دې توليت کې هم هغه دواړه متفق نه شو. بيا حضرت عباس رضي الله عنه راغلو او د حضرت علي رضي الله عنه باره کې يې سخت الفاظ استعمال کړل او د تقسيم مطالبه يې وکړه. حضرت عمر رضي الله عنه د تقسيم نه انکار وکړو او د هغې ټول پس منظر يې بيان کړو. چې دا وقفي مالونه دي. که تاسو يې نه شئ سنبالوی نو بېرته يې راکړئ. راروان حديث کې به يې هم تفصيل راشي، خو د ټولو نه زيات تفصيل د بخاري په کتاب المغازی کې دی او په مسلم کې هم تفصيل دی. (مرقات ۷/۶۶۳)

## الفصل الثاني

## د قضيه فدک پوره تفصيل

| ﴿۹﴾عَن | المغيرة | قَالَ: | إِنَّ | عمَرَ | بنَ | عبد | العزيزِ | جَمَعَ | بَنِي | مَرْوَانَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او حضرت مغيره بن شعبه فرمايي چې کله حضرت عمر ابن عبد العزيز خليفه شو نو هغې د مروان زامن راجمع

[1] رقم الحديث ۴۰۶۲ أخرجه ابوداود في السنن ۳/۳۷۵ رقم الحديث ۲۹۶۷.

حِينَ اسْتُخْلِفَ فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ لَهُ فَدَكُ

کړه او ويې فرمايل چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فدک په زمکه او جائيداد خپله ذاتي حق ساتلو.

فَكَانَ يُنْفِقُ مِنْهَا وَيَعُودُ

چې د هغې حاصل شوی عايد او پيداوار نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل اهل و عيال او فقراؤ او د مساکينو لپاره خرچ کولو.

مِنْهَا عَلَى صَغِيرِ بَنِي هَاشِمٍ وَيُزَوِّجُ مِنْهَا

همدې کې د بنو هاشم د وړو امداد باندې د خرچ کولو سره حسن سلوک کولو او بې خاونده ښځو او بغير د ښځې نارينۀ

أَيِّمَهُمْ وَإِنَّ فَاطِمَةَ سَأَلَتْهُ

ودونه به يې کول. يو ځل حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خواست کړې وو چې د فدک د زمکه او جايداد

أَنْ يَجْعَلَهَا لَهَا فَأَبَى

زما په نوم کړه يا د هغې عايد زما برخه هم مقرره کړه، خو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې خواست رد کړو. د

فَكَانَتْ كَذَلِكَ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَيَاتِهِ حَتَّى مَضَى

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په ژوند همدغه شان وو تر دې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دنيا نه لاړو او کله چې

لسبيله فَلَمَّا وُلِّيَ أَبُو بَكْرٍ علم فِيهَا بِمَا عَمِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه شو نو د هغې معمول هم هغه وو کوم چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل ژوند کې وو

فِي حَيَاتِهِ حَتَّى مَضَى

يعني د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ذکر شوې معمول پشان حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُم د فدک محاصل د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په اهل و عيال او د بنو هاشم

لِسَبِيلِهِ فَلَمَّا أَنْ

په ماشومانو او د بې وسه سړو او د ښځو په ودونو باندې خرچ کول. تر دې چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم مړ شو او

وُلِّيَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَمِلَ فِيهَا بِمِثْلِ

د هغې نه وروسته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه شو نو دې سلسله کې د هغې عمل هم هغه وو چې د دې دواړو يعني

مَا عَمِلَا حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ ثُمَّ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو. تر دې چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم مړ شو. او بيا مروان د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

| | | | |
|---|---|---|---|
| اقْتَطَعَهَا | | مَرْوَانُ ثُمَّ | صَارَتْ |

: خلافت په زمانه کښې يا يې د خپل حکمرانئ په دور کښې دا فدک د خپل او د خپل وارثانو جاګير وګڼلو. اوس

لِعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَرَأَيْتُ أَمْرًا مَنَعَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ

هغه جاګير د عمر بن عبد العزيز شو خو زه وينم چې کوم نبي کريم ﷺ خپل لُور فاطمه ته نه ؤ ورکړې. د دې

لَيْسَ لِي بِحَقٍّ وَإِنِّي أُشْهِدُكُمْ

زه هم مستحق نه شم کېدی. لهذا زه تا د خپلې فيصلې ګواه کوم چې ما فدک هغې ته په همغه حيثيت باندې

أَنِّي رَدَدْتُهَا عَلَى مَا كَانَتْ. يَعْنِي عَلَى عَهْدِ

بېرته ورکړو. چې په کوم باندې هغه ؤ. يعنې نبي کريم ﷺ او حضرت ابو بکر رضي الله عنه

رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې په کومه طريقه د هغې محاصل خرچ کېدلو. اوس به بيا په هم

وَأَبِي بَكْرٍ وعمَرَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

هغه طريقه خرچ کړې کېږي او فدک به د چا ذاتي جاګير نه کېږي.

**توضيح**: ان عمر بن عبدالعزيز: د دې حديث کښې خبره دلته نه څکه روانه ده چې بنو مروان د فدک وغيره وقفي مالونه قبضه کړل او خپل ذاتي مالو سره يې يو ځای کړي ؤ او عمر بن عبدالعزيز هغه را خلاصه او وقفي حيثيت يې ورکول غوښتل. (مرقات ۶۶۴/۷)

کانت له فدک: فدک د يو کلي نوم ؤ. چې د خيبر په اطرافو کښې ؤ. د مدينې نه په لرې فاصله کښې دا کلی واقع ؤ. يو شين ځای ؤ. چرته چې زياتې کجورې او څه د نورو مېوؤ باغونه هم ؤ. نبي کريم ﷺ ته فدک د صلح په صورت کښې ملاؤ شوی ؤ. چې حيثيت يې د مال فئ ؤ. د فدک باغ، د بنو نظير مالونه او خيبر زمکه د نبي کريم ﷺ ذاتي حيثيت ؤ. نبي کريم ﷺ د خپل اهل بيت نه بغير د عام مسلمانانو په مصارفو کښې دا مالونه خرچ کول. د نبي کريم ﷺ د مرګ نه وروسته د اهل بيتو او د نبي کريم ﷺ د خاندان څېنې کسانو دې مالونو باندې د ذاتي حيثيت دعوی وکړه، خو خلفاؤ دا د وقف په حيثيت کښې وساتل او د ميراث

---

(۱) رقم الحديث ۴۰۶۳ أخرجه ابوداود في السنن ۳۷۸/۳ رقم الحديث ۲۹۷۲

حیثیت یې ورنه کړو، ځکه د انبیاؤ مال په میراث کې نه شي تقسیم کېدلی، ځکه د مرګ نه وروسته انبیا ء ژوندي وي. چې اثر یې په دنیا پرېوځي. حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژوند مبارک کې هم د دې مطالبه کړې وه، خو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ورکولو نه انکار کړی ؤو.

د بحث لاندې حدیث کې حضرت عمر بن عبد العزیز د دې مال پس منظر بنو مروان ته بیان کړو او دا یې په همغه خپل حیثیت کې وقف وساتلو لکه څنګه چې د خلفائی راشیدینو په زمانه کې ؤو. څه د تفصیل سره دا پس منظر په خپل الفاظ کې د لوستونکو مخې بیانوم.

مال فدک د فدک باغ ؤو. حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه غوښتلی ؤو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ورکولو نه انکار وکړو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه عام خرچ کول. بیا حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وغوښتله. حضرت ابو بکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته د "**لا نرث ولا نورث ما ترکنا صدقة**" حدیث واورولو او د ورکولو نه یې انکار وکړو. حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د انسان په حیثیت ناراضا شوه. بیا صدیق اکبر د هغې کور ته ورغلو او غرمو ته ورد ېدلو او بخښنه یې ترېنه وغوښتله. حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته معافي وکړه. او دې سلسله کې یې ورته کله هم مراجعت ونه کړو. شپږ میاشتې وروسته حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مړه شوه، نو څه اوږدې جګړې ونه شوې. شیعه او روافض هسې شور کوي. او په دې مجلسونه ګرم کړي او خلک پرې ژړوي. او په صحابؤ باندې تبرا کوي. زه د شیعه ګانو دا پوښتنه کوؤم چې حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د فدک باغ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه هم غوښتلی ؤو. او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته د ورکولو نه انکار کړی ؤو. دې باندې شور ولې نه کوي؟ بیا چې کله حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلیفه شو د فدک باغ موجود ؤو هغې ولې حسنین رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته ورنه کړو؟ بیا حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله خلیفه شو او تر شپږ میاشتو پورې یې خلافت وکړو. هغې فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ولې په خپلو مالونو کې شامله نه کړه؟ د شرم خبره ده چې د فدک باغ په وجه پروپیګنډه جوړه کړي او په صحابؤ باندې طعن کوي حال دا چې د صحابؤ فتح کړی شوې ملک باندې ایران په خاموشئ سره قابض دی؟ تاسو ایران بېرته راکړئ تاسو ته به د فدک باغ بېرته درکړی شي. بهرحال د فدک د مال پشان د بنو نضیر د مالونو مسئله هم پیدا شوه. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ نه وروسته دا مال د وقف په توګه صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سنبال کړو. بیا د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نګرانئ کې بیا د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مشترکه توګه باندې نګرانې شوه، خو په خپل مینځ کې د اختلاف په وجه د دې مال متعلق حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تقسیم مطالبه وکړه چې جدا جدا به د خپلې خپلې برخې ساتنه کوي. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انکار وکړو او ویې فرمایل چې دا یو خو به قِسمه تقسیم شي.

داسې نه شي کېدلی. بیا مروان دا مالونه خپل ذاتي جایداد کې شامل کړل او بنو مروان په خپل مینځ کې تقسیم کړل. کله چې عمر بن عبدالعزیز خلیفه شو نو هغې د نورو اصلاحاتو سره سره دا اصلاح هم وکړه چې دا مالونه یې د هغوی نه بېرته واخستل او د وقف حیثیت یې ورکړو. د هغې د مرګ نه وروسته بیا بنو مروان هغه تقسیم کړل او داسې یې غیبه کړه چې تر ننه پورې معلومه نه شوه چې دا مالونه چرته لاړل. حضرت عمربن عبدالعزیز د بحث لاندې حدیث کې همدغه وایي چې کوم مالونه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته نه دې ورکړي نو زه څوک یم چې د ځان سره یې کېدم. بهرحال صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې دې الله تعالى رحم وکړي هغوی ډېر لویې مشقتونه برداشت کړل او د یوې شرعي مسئلې حفاظت یې وکړو.

الحمد لله د کتاب الجهاد تشریحات د توضیحاتو نه فارغ شوم. اوس په جهاد باندې د یو اعتراضاتو او د هغې جوابونه لیکم.

## په جهاد باندې عمومي اعتراضونه او د هغې جوابونه ۲۹ صفر ۱٤۱۸ھ

دا چې په جهاد کې د نفس او مال خطر وي، نو ځکه خلک د جهاد نه د بچ کېدلو لپاره قسم قسم بهانې جوړوي.

ے خود بدلتے نہیں قرآن بدل دیتے ہیں

**پوښتنه**: څه خلک وایي چې جهاد د جهد نه مشتق دی چې د سخت محنت په معنی کې دی، نو هر محنت جهاد دی. مونږ هم په جها لریا یو، ځکه د دین محنت کوو.

**جواب**: دا د جهاد لغوي معنی ده. د جهاد شرعي تعریف د کتاب په اول کې لیکلی شوی دی. شریعت کې د اصطلاحي مفهوم په اعتبار باندې دی. لغوي مفهوم باندې بناء نه دی. ګنې د صوم لغوي مفهوم امساک ساعة دی. لمونځ د تحریک صلوین یا د دعا په معنی کې دی. حج د قصد په معنی کې دی. د زکوة لغوي معنی د زیاتوالي ده. که اصطلاحي شرعي معنی پرېښودلی شي او لغوي معنی باندې عمل وکړی نو دا د ګمراه کېدو لپاره کافي ده. نن سبا عام خلک وایي د میاشو خلاف جهاد، د مچو خلاف جهاد یا د ملیریا خلاف جهاد دی. دا هغه جهاد دی چې د قیصر او کسری سلطنتونه یې پرې ذره ذره شول؟

**پوښتنه**: د څه خلکو خیال دی چې جهاد حسن لغیره دی. مونږ په حسن لعینه کې مشغول یو.

**جواب**: اصول فقه کې لیکلی شوې دي چې مامور به کې حسن پکار دی، ځکه د الله تعالى امر دی. د هغې په امر کې حسن ضروري دي. اوس فقهاؤ په هر هر مامور به کې حسن لټولی دی. ځینو کې د هغې ذات ملاو شوی دی او ځینو کې واسطه ملاو شوه، جهاد کې واسطې سره حسن ملاؤ شو نو

دې ته یې حسن لغیره وویل. دې سره د جهاد په حکم هیڅ اثر نه غورځېږي، خو مباح یا مستحب دی.
حال دا چې حسن لعینه دی، نو آیا رانجه لګول، او تیل او عطر استعمال کول، کالي ښځل او ګوتې ښځل، دا د دې جهاد نه افضل دي؟ د خدای نه وېرېږئ.

**پوښتنه**: د څه خلکو خیال دی چې جهاد فرض کفایه دی. لهذا تلل ضروري نه دي.

**جواب**: د جهاد فرض کفایه کېدل یا فرض عین کېدلو لپاره د جهاد په خپلو معروضې احوال دي.
تاسو ولې دې کې اخته کېږئ. آیا تاسو ته د "فرض" لفظ نه ښکاري؟ او آیا د فرض مطلب دا دی چې دې ته بیخې تګ پکار نه دی. فرض کفایه خو د فرض عین نه زیاد عام دی، ځکه دا یوه قومې فریضه ده. که ټولو پرېښودله نو په اجتماعي توګه به ټول ګناه ګار شي. بیا دا حکم دا وکړو چې نن سبا مسلمانان په کوم حالت کې دي هغوی باندې جهاد فرض عین نه دی. بلکې فرض کفایه دی؟
تاسو لږ د فقهې کتابونه وګورئ هغوی چې په کوم حالت کې جهاد ته فرض عین وایي، آیا هغه وخت مو په سر نه دی راغلی. کفار یو ځای شول او په فلسطین یې حمله وکړه، مسجد اقصی یې قبضه کړه. عراق یې قبضه کړو. افغانستان باندې یې قبضه وکړه. کشمیر یې قبضه کړی دی. هر اړخ نه یې په مسلمانانو باندې حمله کړې ده. بیا هم فرض عین نه دی؟

**پوښتنه**: د څه خلکو خیال دی چې جهاد بالنفس لویې جهاد دی. "رجعنا من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر" د روایت نه دا خلک استدلال کوي او ظلم د پاسه ظلم دی چې غټو او وړو دا پټې لولي چې د نفس سره جهاد کول دا لویې جهاد دی. کافران پرېږدئ. هغوی سره جنګ کول یا جهاد نه دی یا وړوکی جهاد دی. ټولو ته یې دا روایت زده کړی دی.

**جواب**: جهاد بالسیف کې لویوه مجاهده او د نفس اصل علاج کېږي. ولږه، تنده، وېره، هیبت، مشقت او محنت، قید و بند، مرګ او زخم او بې ارامې دا د جهاد د میدان اولنۍ تحفه ده. اوس اوایئ مجاهده کوم یو کې زیاته ده. یا خو قورمو خوړول، مېوې چوپلو، پکو لګولو او د دنیا نه بې غمه کېدل او ګېونه لګولو کې زیاته مجاهده ده؟ او باقې دا چې خلک کومه مقوله حدیث ګڼي. دا غلطه ده. دا د ابراهیم بن عبله مقوله ده. حدیث نه دی. (موضوعات کبیر د ملاعلي قاري رحمه الله وګورئ) او که دا حدیث دی نو آیا صحابه کرامو خپل ټول عمرونه په جهاد کې تېر کړل او په مفضول عمل کې اخته ؤو. او د افضل عمل نه محرومه ؤو؟ د خدای نه وېرېږئ او "وفضل الله المجاهدین علی القاعدین اجرا عظیما" (سورة النساء: ۹۵) وګورئ.

**پوښتنه**: څه خلک وایي چې دا مکې دور دی. کله چې مدنې دور راغلو مونږ به جهاد کوؤ. مکې دور

کې جهاد نه ؤو.

**جواب**: دا کوم قرآن او حدیث کې لیکلی شوې دي چې دا مکې دور دی؟ خلک مخکې ځې تاسو شاته راروان يئ؟ بیا دا اوایئ چې که دا مکې دور دی او جهاد نشته دی، نو مکې دور کې لمونځونه چرته ؤو. اخترونه او جمعه چرته وه. روژه چرته وه او زکوة او حج چرته ؤو؟ د شرابو حرمت چرته ؤو؟ پرده چرته وه؟ د سود حرمت چرته ؤو؟ که جهاد نه ؤو، نو دا څیزونه چرته ؤو. ټول پرېږدئ. په غور سره واورئ د جهاد حکم چې کله راغلو نو دې باندې عمل هم راغلو. د خدای نه وېرېږئ. شاته مه ځئ، کنده کې به ولېږئ. مخکې لاړ شئ.

**پوښتنه**: څه خلک وایي چې اول ایمان جوړ کړئ او بیا جهاد وکړئ. مونږ اوس ایمان جوړلو کې مشغول یو.

**جواب**: آیا کوم خلک چې جهاد کوي. دا بې ایمانه دي؟ د خدای نه وېرېږئ. لږ دا خو اوایئ چې آیا تاسو ایمان نه دی قبول کړی. که مو قبول کړی دی نو هغه څه شی دی. ایمان دی یا که بې ایمانې؟ او دا اوایئ چې د ایمان جوړولو معیار څه دی. په کوم تهرمامېټر باندې به د ایمان جوړولو فیصله کوئ؟ ایمان څه د کدو حلوه نه ده چې تاسو به یې پتیله کې پخوئ. که ایمان په عملونو جوړېږي، نو آیا د ایمان پشان لویې عمل پرېښودلو سره به ایمان جوړ شي یا که خراب به شي؟ آیا جهاد عمل نه دی. نو عمل کولو سره ایمان جوړېږي که پرېښودلو سره جوړېږي؟ بیا دا اوایئ چې د کوم ایمان په ذریعه چې تاسو لمونځ کوئ. روژه نیسئ. حج کوئ، دنیا کې ګرځئ راګرځئ، مال خرچ کوئ. وخت ورکوئ، آیا دې ایمان باندې تاسو جهاد نه شئ کول؟ صحابه کرام خو به میدان کې مسلمانان کېدل او به همغه میدان کې به یې جهاد کولو. کم نه کم تاسو خو د خپل ایمان جوړلو موده او د هغې دورانیه خو اوایئ چې څومره وخت کې به ستاسو ایمان جوړېږي. تاسو کله هم د خپلې دې مودې ذکر نه دی کړی. معلومه شوه چې تاسو د جهاد نه د تښتیدلو لپاره بهانې لټوئ. لهذا نه به ایمان جوړ شي او نه به جهاد وشي.

**پوښتنه**: ځینې خلک په جهاد اعتراض کوي چې افغانستان کې جهاد نه ؤو. دا د روس او امریکه جنګ ؤو. چې د پښتنو وینه په کې تویه شوې ده.

**جواب**: که دا جهاد نه ؤو او د کفر او اسلام جنګ نه ؤو. بلکې د امریکه جنګ ؤو، نو نن سبا د همغه مجاهدینو سره امریکه ولې جنګ کوي. او که امریکه د نفرت قابله وه. نو نن ته ولې د امریکه په غېږه کې ناست یې؟ او که د پښتنو وینه تویه شوې ده، نو آیا دا علماء کرامو، مجاهدینو او د طالبانو وینه د پښتنو وینه نه وه. او ولې دا انسانان نه ؤو. د هغې د وژلو لپاره چې پرون دا د روس سره څنګه ملګرتیا کوله. نن د امریکې ملګرتیا کوي. معلومه شوه چې نه د لته د پښتون خبره ده نه

د قومیت خبره ده. بلکې صرف د دین سره دښمنې او د عداوت خبره ده. کله چې کمیونسټ اوژلی شي نو شوی کوي چې پښتانه وژلی کېږي او دوی جنګولی کېږي. او کله چې عالم یا طالب علم پښتون وژلی کېږي نو پټه تماشه یې کوي او پرې خوشحالېږي.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې کافران مه وژنئ. دغه شان به هغوی دوزخ ته لاړ شي نو تاسو به ګناه شئ. **جواب**: قرآن عظیم کې الله تعالی اتیا (۸۰) آیتونو کې د قتل لفظ استعمال کړی دی او سلګونو (۱۰۰) آیتونو او حدیثونو کې د کافرانو د جنګ کولو او د هغوی د وژلو حکم ورکړی دی. خپله په میدان جنګ کې نبي کریم ﷺ اُحد کې ابن بن خلف په خپل لاس وژلی دی. الله او د هغې د رسول په حکم صحابه کرامو په زرګونو، لاکهونو کافران په جهاد کې وژلې دي. په زرګونو صحابه کرام خپله هم شیهیدان شوې دي. د یرموک په جنګ کې صحابه کرامو د یو لاکه نه زیات کافران وژلې دي. د جلولاء په جنګ کې صحابه کرامو د یو لاکه نه زیات کافران وژلې دي. د عراق په تکریت جنګ کې صحابه کرامو اتیا زره (۸۰۰۰۰) کافران وژلې دي. اسلامي تاریخ د داسې واقعاتونو ډک پروت دی، نو د پوښتنه کونکو دغه حضراتو نه پوښتنه ده چې د دغه وژلی شوؤ ذمه وار او ګناه ګار به څوک وي؟ کوم خلک چې داسې خبرې کوي هغوی د قرآن و حدیث او د سلف و صالحینو او د ټول امت په مسلمانانو باندې اعتراض کوي او د شریعت ښایسته مخونه مسخ کوي. هغوی ته صرف دومره عرض کوؤ چې د خدای په مخلوق د خدای نه زیات مه مهربانه کېږئ. جهاد کې که د الله یو باغې وژلی کېږي نو د هغې په بدل کې په زرګونو انسانان مسلمانان شي او جنت ته لاړ شي. که په مکه کې نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شلوریش کسان وژلی نه وی او مکه یې فتح کړی نه وی او کفار یې پرېښی وی، نو په اربونو کافران به پیدا شوی وی او په کفر به مړه شوې وی او دوزخ به تلې وی. خلاصه دا چې یا خو تاسو کافران اوژنئ یا به هغوی تاسو وژنئ. کومه خبره مو خوښه ده؟

*مصلحت در دین ماجنګ و شکوه  مصلحت در دین عیسیٰ غار و کوه*

یعنې زمونږ د دین مصلحت خو دا دی چې د جهاد جنډه په شان او شوکت سره اوچته کړو او د عیسایانو د مذهب مصلحت خو په کوټو او غارونو کې کېنې.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې مونږ نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوب کې لیدلی دی. د نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مو د جهاد اجازت وغوښتلو نو نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ۳۱۳ کسان جوړ کړئ بیا جهاد وکړئ. اوس مونږ کوشش کوؤ چې ۳۱۳ کسان جوړ شي نو بیا به جهاد کوؤ. **جواب**: د قرآن او حدیث او د شریعت د احکاماتو په موجودګئ کې د هیڅ یو کس ګنده خوبونه له اعتبار نشته دی. که زمونږ د ژوند ضابطه زمونږ خوبونه شي نو بیا د قرآن او حدیث څه ضرورت پاتې کېږي. بیا خو به

هر کس د خپل خواهش تابع شي. دغه شان که ار اوسه پورې دې امت کې ۳۱۳ کسان جوړ نه شول نو بیا دا ناکامه شنړ امت دی. د خدای نه وېرېږئ. د ۳۱۳ نه خو ستاسو واعظین زیات دي. ۹۰ کاله اوشو تر اوسه یې ایمان نه دی جوړ شوی. د ۳۱۳ حد چا ایښی دی؟ ځینې معرکو کې شپېته (۶۰) یا دیرش (۳۰) مسلمانانو هم مقابله کړې ده.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې که نن سبا صحیح جهاد شته دی نو مسلمانانو ته په فتح کې دا دومره تاخیر ولې دی. صحیح جهاد کې فتح ژر حاصلیږي. **جواب**: جهاد یو عظیم عبادت دی. مسلمانانو له جهاد کول پکار دی. نتیجه د الله په لاس کې ده. کله به فتح ژر ورکوي کله به یې ناوخته ورکوي. خپله نبي کریم ﷺ اته (۸) کاله پس یو لویې ښار فتح کړو. دا تاخیر ولې وشو؟ د لس کالو مسلسل جهاد نه وروسته صرف د عرب جزیره فتح شوه. بیا د صدیق اکبر په دوه کالو کې صرف تر دمشق پورې شام فتح شو. بیا د حضرت عمر په دور حکومت کې د مسلسل جهاد باوجود د حلبْ قلعه فتح شوه. د دولس زره (۱۲۰۰۰) صحابوُ د نبي کریم ﷺ سره د طائف قلعه محاصره کړې وه خو بیا هم قلعه فتح نه شوه. او بغیر د فتحې نه راغلل. زه وایم چې که د مجاهدینو نه ناوخته کېږي نو آیا تاسو به یې تماشه کوئ. مخکې راشئ او په منتهونو کې دنیا فتح کړې.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې د مجاهدین د مال په غرض جهاد کوي. د ځمکې لپاره جنګ کوي. دا جهاد صحیح نه دی. **جواب**: تاته د کوم ځای نه پته وچلیدله چې یو عرب ځوان د کړوړنو جایدار پریښودلو او افغانستان ته د مال په مال په غرض راغلی دی. آیا تاته د محاذ جنګ نه چا په موبائیل خبر درکړی دی؟ د خدای نه وېرېږه شوک چې ساه په تلې کېږدي او په میدان ورودانګي نو هغه د څه لپاره مال ګټي؟ او که داسې منده یې لرېدلې وي نو ته هم راشته او څه مال وګټه. یا وساتئ مجاهدین د الله لپاره جهاد کوي. دې اخلاص مندو پسې توقې مه کوئ ګنې په نفاق به مړه شئ. باقې دا شرعې حکم دی چې که مال غنیمت ملاو شي نو هغه په مسلمانانو باندې تقسیمېږي. صحابه کرامو د مال غنیمت برخه اخستې ده. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې الله زما د امت رزق د نیزې د لاندې ایښی دی. دخدای نه ویرېږئ. په سودې کاروبار د مال ګټلو او د مال غنیمت برخه اخستلو کې د ځمکې او اسمان فرق دی. باقې د ځمکې لپاره جهاد کول خکه ضروري دی چې دې باندې به د الله قانون نافذ شي. که زمکه نه وي نو جومات به چرته نه جوړوې. لمونځ به چرته کوي؟ قرآن کې د الله اعلان دی ﴿واخرجوهم من حیث اخرجوکم﴾ (البقرة: ۱۹۱) د کومې ځمکې نه چې کافرانو تاسو ویستلې وئ د هملته نه یې وباسئ. د اسلامي مملکت د سرحدونو تحفظ او د هغې ځمکې حفاظت په مسلمانانو باندې فرض دی.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې کوم ځای کې مسلمانان وژلی کیږي. دا د هغوی د ګناهونو نتیجه ده. دوی باندې د الله عذاب راغلی دی. د هغوی مرسته ضروري نه ده. **جواب**: دا یوه کمزورې فلسفه ده. او د ناځاپي مرګ انتظار دی. د ابنیاؤ نه بغیر هیڅ یو انسان د ګناه نه پاک نه دی. صحابه کرام محفوظ ؤو. معصوم نه ؤو. بیا د هغوی پاک جاعت باندې کافرانو ولې حمله وکړه؟ جهاد ته ګناه ګار خلک هم تللی شي؟ او د ټولو نه زیات ګناهونه هتله معاف کیږي. د ټولو مسلمانانو وهل د هغې د عملونه نتیجه وګڼئ او بیا خاموشه کېنئ، نو تاسو داسې ولې نه وایئ چې راشئ ورونو دا کافران خو د ټولو نه زیات ګناه ګاران دي، دوی به ؤوهو چې د الله عذاب پرې راشي او زمونږ په لاسونو دوی ته شزه ملاؤ شي. ﴿قاتلوهم يعذبهم الله بايديكم الخ﴾ دویمه خبره دا چې د جهاد پریښودل لویه ګناه ده. دا ولې نه وایي چې راشئ جهاد وکړو چې زمونږ ګناهونه معاف شي او مونږ د خدای د عذاب نه بچ شو. عجیبه هوښیار خلک دي. هر هغه ځای نه وتلو کې کامیاب شي چرته چې د ګوتې د غوڅېدلو خطر وي، خو یاد وساتئ! دې بچ کېدلو پسې شاته نښتل هم دي. اقبال مرحوم فرمایي :

افسوس صد افسوس نہ بنا تو | دیکھے نہ تیری آنکھ نے قدرت کے اشارات
تقدیر کے قاضی کا یہ فتویٰ ہے ازل سے | ہے جرم ضعیفی کی سزہ مرگ مفاجات

**سوال**: ځینې خلک وایي چې که کافران زمونږ په لاره کې مزاحمت جوړیږي نو جهاد به وي. تر اوسه پورې هغوی زمونږ په لاره کې مزاحمت نه دی کړی، نو ځکه جهاد نشته دی. **جواب**: تا هغه لاره کله اختیار کړې ده چې کافر مزاحمت وکړي؟ الله خو فرمایي ﴿ولا يزالون يقاتلونكم حتى يردوكم عن دينكم ان استطاعوا﴾ (البقرة : ۲۱۷) یعنې تر کومې پورې چې تاسو کافران نه کړي نو تر هغه وخت پورې به تاسو سره جنګیږي. آیا دا مزاحمت نه دی؟ اوس د کافر کېدلو لپاره تیار شئ یا د مقابلې لپاره میدان ته راشئ. **سوال**: ځینې خلک وایي چې کله عملونه جوړ شي نو الله به د کافرانو سره خپله و جنګیږي. جهاد او د اسلحې ضرورت نشته دی. نه مونږ له میدان ته د اسلحو سره میدان ته د تللو ضرورت نشته دی. بس مونږ به عملونه جوړ کړو، کار به الله تعالی کوي. **جواب**: الله ته د ولې پیدا کړې یې او تاته یې جنګ کولو حکم ولې کړی دی. چې هر څه یې خپله کول نو ولې ته یې صرف د قورمې خوړلو لپاره پیدا کړی یې؟ د قرآن اعلان دی. ﴿ولو شآء الله لأ نتصر منهم ولكن ليبلو بعضكم ببعض﴾ زه پوښتنه کوم، آیا د صحابه کرامو عملونه سل فیصده صحیح نه ؤو؟ بیا د عملونو

نه وروسته هغوی ولې په میدان کې قدم کیښودلو؟ او په زرګونو تعداد کې شهیدان شول؟ د خدای نه وېرېږئ. لاس په لاس باندې اېښودل سره کار نه کېږي.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې قرآن کې ډېر آیتونه دي چې کافرانو ته د بخښنولو حکم کوي، نو بیا جهاد څنګه؟ **جواب**: ترکومې پورې چې د جهاد حکم نه وُو راغلی نو کافران ته بخښنول حکم وُو. کله چې د جها حکم راغلو نو د بخښنلو حکم یې ختم شو. اوس جهاد کوئ، ځکه خو علماء کرام فرمایي چې کوم کس ته د ناسخ او منسوخ پته نه وي نو د هغې لپاره بیان کول یا وعظ کول حرام دي.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې د اسلام په اخلاقو خور شوی دی. په توره نه دی خور شوی. لهذا د جهاد په ځای د اخلاقو نه کار واخلئ. **جواب**: دا د کافرانو له اړخه ډېر پخوانی اعتراض دی. چې سلطان صلاح الدین ایوبی یې هم پریشانه کړی وُو، نو هغې په جواب کې وفرمایل چې زه نه پوهېږم چې اسلام به اخلاقو خور شوی دی یا که په جهاد، البته زه په دې پوهېږم چې د اسلام حفاظت او د اشاعت لپاره توره اوچتول فرض او ضروري ده. اصل قصه دا شوې وه چې اول کافرانو اعتراض وکړو چې دین اسلام د تورې په زور خور شوی دی، دې کې څه ذاتې کشش نشته دی، نو د وخت لوېو علماؤ ولیکل چې د اسلام په توره نه بلکې په اخلاقو خور شوی دی. هغې باندې د وخت علماؤ د هغه زمانه پروپیګنډه ماتول غوښتل، لکه نن سبا چې څنګه جهاد ته دهشت ګردې وایي. او علماء او طلباء جواب ورکوي چې اسلام کې دهشت ګردې نشته دی. د حقیقت کې په دهوکې سره د هغوی په ژبو باندې د جهاد نه انکار ویستل غواړي. علماؤ له دا ویل پکار دي چې جهاد او دهشت ګردئ کې فرق دی. بهرحال کله چې لوېو علماؤ ولیکل چې جهاد په توره نه بلکې په اخلاقو خور شوی دی، نو انګریزان راتاؤ شول او بل غوزار یې وکړو چې وګوره د مسلمانانو مشرانو لیکلي دي چې اسلام په اخلاقو خور شوی دی. دا توره او اسلحه او جهاد په اسلام کې د کوم ځای نه راغلو؟ زه وایم چې دا جمله غلطه ده چې اسلام په اخلاقو خوی شوی دی یا په توره خور شوی دی. آیا جهاد اوچتول او جهاد کول بد اخلاقې ده؟ او آیا نبي کریم ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم او سلفو صالحینو ټول عمر بداخلاقې کړې ده؟ جهاد او اخلاق او توره او اخلاق د یو بل سره مقابل کې پیش کولو والا اصل کې جهاد ته بداخلاقې وایي، نو ځکه مسلمانانو د ژبې نه دا جمله ویستل پکار نه دي، ځکه جهاد ته بداخلاقې ویل کفر دی.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې اسلام کې اقدامې جهاد نشته دی. بلکې د فاعې جهاد حکم دی.

**جواب**: د دفاع حق خپله حاصلیږي. هغه هیڅ قانون نه دی چې کوم چاله ورکړی شي. کوم کس چې د بل په مرئ چاړه رانبکاږي نو آیا هغه وخت به ذبح کېدونکې ته حق ورکړی کېږي چې اوس ته دفاع

وکړه. داسې وخت کې ځناور دفاع کوي. یو مرغۍ خپله ذبح کونکی په پنجه او په مښوکه باندې وهي. اسلام دفاع ته جائز ویلي دي او د اقدام حکم یې کړی دی. د قرآن اعلان دی ﴿قاتلوهم حتى لا تكونه فتنة﴾ (سورة انفال :۳۹) آیا دا اقدام نه دی و د جزیره عرب نه چې کله صحابؤ په شام باندې حمله وکړه، بیا یې په مصر وکړه بیا یې په صعید مصر او په دیابکر یې حمله وکړه بیا یې په عراق حمله وکړه بیا د دجلې وابنوتل او مدائن ته ورسیدل او د هغوی وائټ هاؤس قصر ابیض یې فتح کړو. آیا دا اقدام ؤو که دفاع وه؟ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې اُحد او د خندق جنګونه د دفاع په صورت کې پیدا شوي ؤو د هغې نه بغیر نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هر ځای اقدام کړی دی.

جنګ خندق کې چې کله کافران وتښتیدل نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل "الآن نغزوهم ولا يغزوننا" یعنې اوس به مونږ اقدام کوؤ، کافران به حمله نه کوي اودبیا لپاره به هم داسې وشو. بهرحال جهاد پریښودوسره مسلمان منافق شي اودنفاق په مرګ مړ شي. او په اجتماعي توګه امت مسلمه د ذلت ښکار شي لهذا داشعبه چې څومره فعاله وي هومره به مسلمانانو زورور وي ګنې هیڅ به نه وي.

**سوال:** نن سبا ټوله دنیا شور کوي چې جهاد دشت ګردي ده. منافق قسمه مسلمان هم دغه اعتراض کوي او جهاد ته فساد وایي. آیا واقعې جهاد فساد دی؟**جواب:** جهاد فساد نه بلکې دې سره خو د عالم فساد په امن کې بدل شي. دې باندې د عالم تاریخ ګواه دی. البته فسادې ذهن لرونکې فسادې خلک جهاد ته فساد وایي. دوی به یې وایي او جهاد به کېږي. باقې چې کوم خلک جهاد ته دهشت ګردي وایي نو که هغه خلک کافر دي نو د هغوی وینا صحیح ده، ځکه د هغوی کافرانه دهشت د مؤمنانو جهاد ختموي. د هغوی لپاره خو دا دهشت ګردي نوره هم زیاتول پکار ده. او که یو مسلمان د اعتراض په توګه جهاد ته دهشت ګردي وایي او د هشت ګردي نه فساد مراد اخلي نو داسې منابق مسلمان د دې اعتراض نه وروسته د اسلام نه خارج شي، ځکه جهاد د الله حکم دی او د الله د حکم توهین کول کفر دی. غلام احمد قادیاني خپلو کتابونو کې بار بار جهاد ته فساد ویلی دی او د جهاد د منسوخولو یې داسې اعلان کړی دی۔

| | |
|---|---|
| اب چھوڑ دو اے دوستوں جہاد کا خیال | دین کے لئے حرام اب قتل و قتال |
| اب آگیا مسیح جو دین کا امام ہے | دین کی تمام جنگوں کا اب اختتام ہے |
| اب آسماں سے نور خدا کا نزول ہے | اب جنگ اور جہاد کا فتویٰ فضول ہے |
| دشمن ہے وہ خدا کا جو کرتا ہے اب جہاد | منکر نبی کا ہے جو یہ رکھتا ہے اعتقاد |

خلاصه دا چې کوم مسلمان په جهاد باندې اعتراض او طعن کوي هغه مسلمان نه شي پاتې کېدی او جهاد به تر قیامت پورې جاري وي.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې مجاهدین هر ځای کې شکست خوري او ځای کې وهل خوري، هغوی سره د الله هیڅ مدد نشته دی. **جواب**: دا خلک دروغ وایي. مجاهدین بدناموي. زه د هغوی نه پوښتنه کوم. د سویت یونین طاقت چرته لاړو. نیمه دنیا باندې د حکومت کونکي طاقت نوم د دنیا د نقشي نه ولي ورک شو؟ هغه میدان کې چا وهل وخوړل، مجاهدنو یا که روسانو؟ اوس دې وخت کې د دنیا ۳۷ کافر ملکونو او ۵۵ مسلمانان ملکونو د افغانستان په طالبانو او مجاهدینو باندې حمله کړې ده خو مجاهدین ورته په تش لاس خوله ماتی جواب ورکوي. او دنیا اقرار کوي چې مجاهدینو ته کافران ناکامه دي. آیا دا د الله مرسته نه ده؟ بیا چې د مجاهدینو د جسدونو نه کومه خشبوې خیژي آیا دا د الله د مرستې اعلان نه دی؟ باقې د تکلیفونو تلل راتلل دا د جهاد برخه ده. صحابه کرامو باندې د دې نه زیات تکلیفونه راغلې دي. مجاهدینو پسې تهوقې مه کوئ چې وهل خوري. زه تاسو نه پوښتنه کوم چې د الله د مرستې ضرورت چرته ضرورت وي. تاسو د دښمن په مقابله کې کوم محاذ پرانستلی دی؟ آیا د یکې لاندې د قورمې خوړلو او د لوښو ښځلو وخت کې د اسمان نه مرستې لپاره فرښتې راکوزېږي؟ دغه شان جهاد او اقامت دین د معذرت پرېښودلو نه وروسته به تاسو وهل ولې خورئ، تاسو د ګلانو د په غاړه کولو او ګلدستو مستحق وئ.

**سوال**: ځینې خلک وایي چې جهاد لپاره د سرکارې حکم ضرورت دی. چې خلیفه نه وي او سرکارې حکم او اعلان نه وي نو دا شخصې جهاد صحیح نه دی؟ **جواب**: سرکار له پکار ده چې د جهاد اعلان وکړي چې شخصې جهاد ختم شي. هر مسلمان حکومت باندې د شریعت په حکم دا فریضه لازمه کېږي چې هغه کم نه کم یو کال کې دوه ځله د کافرانو سره جهاد وکړي. که سرکار د کافرانو سره په جهاد نه کولو باندې سازش وکړي نو ولې مسلمان به جهاد پرېږدي؟ که داسې ضروري وي نو بیا خو سرکاد د جمعه او د اخترونو او د عامو لمونځونو انتظام او اهتمام خو پرېښی دی نو ولې مسلمانان به دا هم پرېږدي؟ سرکار نفاذ شریعت پرېښی دی نو ولې مسلمانان هم د دې نه لاس والي خلي. داسې نه کېږي، جهاد به تر قیامت پورې ضروري وي.

ہم پوچھتے ہیں شیخ کلیسا نواز سے
مشرق میں جنگ شر ہے تو مغرب میں بھی ہے شر
حق سے اگر غرض ہے تو زیبا ہے کیا یہ بات
اسلام کا محاسبہ یورپ سے در گذر

# کتاب الصيد والذبائح

## د ښکار او د ذبيحو بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿وما علمتم من الجوارح مکلبين تعلمونهن مما علمکم الله فکلوا مما امسکن عليکم واذکروا اسم الله عليه﴾ (مائده: ۴۵)

صيد مصدر دی. دا کله د اصطياد په معنی کې راځي يعني ښکار کول او کله د اسم المفعول په معنی کې راځي. يعنې ښکار شوی شی. ذبائح د لفظ سره دا دويم مفهوم زيات مناسب دی. مطلب به دا شي چې د ښکار او د مذبوحه شيانو بيان. حرم د زمکې نه بغير هر ځای کې ښکار کول جائز او مباح دی. البته حالت احرام کې هيڅ ځای کې د وچې ښکار جائز نه دی، خو سمندري ښکار د احرام په حالت کې هم جائز دی. دا پابندي د احرام حق دی. د حرم په زمکه کې د هر يو لپاره ښکار کول حرام دی. که د احرام په حالت کې وي يا نه وي. دا پابندي د حرم د زمکې حق دی. ښکار کول مباح دی. کتاب الله او سنت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د امت په اجماع سره د دې اباحت ثابت دی، خو امام مالک رحمه الله فرمايي چې که چرې يو کس فقط د لوبو ټوقو په خاطر ښکار کوي نو دا مکروه دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله ښکار نه دی کړی. البته ښکار کول يې جائز ګڼلي دی. او هغه يې خوړلي دی. ښکار يې د ښکار کولو وخت کې ليدلی دی. د ښکار ټول مسائل يې بيان کړي دي او د هغې د ضرر نه يې خبرتيا هم کړې ده. د صحابو په ډله کې د ښکار مسائل د ټولو نه زيات عدي بن حاتم پوښتلي دي او دا ښکاري هم ؤو. بيا ابو ثعلبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتلي دي. دا هم ښکاري ؤو. څو نورو صحابو هم ښکار کړی دی، لکه ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وغيره.

**ذبائح:** دا د ذبيحه جمع ده. د ذبح عمل ته وايي. بيا ذبح په دوه قسمه ده. يوه ذبح اختياري ده. دويمه ذبحه اضطراري ده. ذبح اختياري کې دا ضروري ده چې د حلقوم اکثر رګونه پرې کړی شي او **بسم الله** ورسره وي. ذبح اضطراري کې ښاروی يا د مرغه زخمي شي، هغه د ذبحي لپاره کافي دی، خو په دې شرط چې د ويشتلو وخت کې **بسم الله** او تکبير ويلی شوی وي. (مرقات ۶۶۷/۷)

## الفصل الاول

### د سپي او تير په ذريعې سره شوي ښکار مسائل

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عدِيِّ بنِ حاتِمٍ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ |
| حضرت عدي ابن حاتم فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمايل چې کله ته خپل سپې پرېږدې نو دالله د |

فَاذْكُرِ اسْمَ اللهِ

نوم ذکر کوه یعنې ته چې کله د ښکار لپاره تربیت شوی سپی د پرېښودلو اراده کوې نو هغه په بسم الله الله اکبر ویل سره

فَإِنْ أَمْسَكَ عَلَيْكَ فَأَدْرَكْتَهُ حَيًّا

پرېږده. او که یا هغه سپی ستا لپاره ښکار نېولی وي او هغه ښکار تا ته ژوندی ملاؤ شي او هغه قصداً نه ذبح

فَاذْبَحْهُ وَإِنْ أُدْرِكْتَهُ

کوې نو د هغې خوړل به ستا لپاره حرام وي، ځکه هغه صورت کې به هغه مردار وي. او که ته ښکار په داسې

قَدْ قَتَلَ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ فَكُلْهُ

حالت کې ومومې چې سپي هغه وژلی وي خو هغې د هغې نه هیڅ نه خوړلي نو ته هغه ښکار وخوره، خو که سپي

وَإِنْ أَكَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا

د هغې نه څه خوړلي وي نو بیا ته هغه مه خوره ځکه صورت کې د هغې باره کې هیڅ نه شي ویل کېدی چې سپي

أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ

هغه د ځان لپاره نېولی وي. چې د دې خبرې علامت به وي چې سپي ته زده کړه نه ده شوې، خو د هغه سپي نېول

فَإِنْ وَجَدْتَ مَعَ كَلْبِكَ كَلْبًا

شوی ښکار حلال دی چې زده کړه ورته شوې وي او که ته د ښکار سره د خپل سپي خوا کې بل سپی هم ومومې او

غَيْرَهُ وَقَدْ قَتَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّكَ

حال دا چې دې دواړو کې به یو سپي ښکار وژلی وي نو هغه صورت کې هم دا ښکار مه خوره ځکه تا ته به معلومه

لَا تَدْرِي أَيُّهُمَا قَتَلَ.

نه وي چې دا ښکار په دې دواړو کې کوم یو نېولی دی. که بل سپي وژلی وي نو کېدی شي چې هغې ته زده کړه نه

وَإِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ

وي شوې یا د پرېښودلو وخت کې هغې باندې بسم الله نه وي ویل شوې او یا هغه یو داسې کس پرېښې وي چې

فَاذْكُرِ اسْمَ اللهِ

د هغې د لاس ذبح کړی شوی شی حلال نه وي لکه مجوسي یا بت پرست وغیره او کله چې ته په ښکار پسې تیر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنْ | | غَابَ | | عَنْكَ | | يَوْمًا |
| ورخوشې کړي نو هغه وخت د الله ذکر کوه يعني بسم الله ويل سره غشی پرېږده او بيا که ښکار تر يوې ورځې | | | | | | |
| فَلَمْ | | | تَجِدْ | | | فِيهِ |
| پورې ستانه ورک وي او د هغې نه ورسته تا ته ملاؤ شي نو هغه وخوره خو په دې شرط چې هغه ښکار کې دې د | | | | | | |
| إِلَّا | | أَثَرَ | | سَهْمِكَ | | فَكُلْ |
| خپل تير نه بغير بل هيڅ نښان نه وي او که هغه ښکار تا ته په اوبو کې ډوب شوی ملاؤ شو او د ستا د تير نښان | | | | | | |
| إِنْ | شِئْتَ | وَإِنْ | وَجَدْتَهُ | غَرِيقًا | فِي | الْمَاءِ |
| هم په کې موجود وي نو ته هغه مه خوره ځکه امکان لري چې ستا په تير هغه مړ شوی نه وي بلکې او بو کې په | | | | | | |
| فَلَا تَأْكُلْ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | | | | | |
| ډوبيدلو سره مړ شوي وي. | | | | | | |

**توضيح**: اذا رسلت كلبك: دې حديث کې د ښکار د ډېرو مسائلو بيان راغلی دی. چې د قرآن کې آيت کې ورته اشارې دي. ﴿وما علمتم من الجوارح مكلبين تعلمونهن مما علمكم الله فلوا مما امسكن عليكم واذكروا اسم الله عليه﴾ (سورة مائده : ۴۵) دې آيت د "الجوارح" نه څېرونکې او ښکار کونکې درندې او مرغان وغيره مراد دي، لکه پړانګ، زمرا و سپی وغيره او مرغانو کې باز وغيره مراد دي. (مرقات ۶۶۷/۷)

**مكلبين**: يعني تا هغه ښکار پسې پرېښی دی. دا وړوکی د ذبح کولو لپاره دی، ځکه دې وخت کې بسم الله الله اكبر ويل پکار دي. او همدغه کافي ده، خو که ښکار زخمي حالت کې ملاو شو نو بيا يې ذبح کول اختياري ضروري دي.

**تعلمونهن**: يعني چې زکړه ورته شوې وي، تعليم يافته سپی وي. فقهاؤ د تعليم يافته کېدلو لپاره درې شرطونه بيان کړي دي. ۱: اولنی شرط دا چې کله يې ښکار پسې پرېږدي نو ښې منډې پسې ؤوهي ۲: د ښکار دوران کې يې چې کله بېرته راوغواړي نو ژر بېرته راشي ۳: دريم شرط دا چې ښکار نيولو سره مالک ته بېرته راولي. خپله يې بالکل ونه خوري. دغه شان سپی معلم کېږي. د هغې د پرېښودلو وخت کې بسم الله ويلو سره ښکار حلال شي. د دې په وژلو سره ذبح پوره کېږي. که چرې ښکار تر اوسه پورې ژوندی وي نو بيا د هغې ذبح ضروري ده. د باز وغيره د معلم کېدلو لپاره دوه شرطونه دي. ۱: چې ښکار

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۶۴ اخرجه البخاري في صحيحه ۶۱۰/۹ رقم الحديث ۵۴۸۴ ومسلم في ۵۳۱/۳ رقم الحديث (۶-۱۹۲۹)

پسې يې پرېږدي نو ښه ډېر ورپسې والوځي ۲: دويم شرط دا چې کله يې بېرته راوغواړي نو ښي والوښي او بېرته راشي. د ښکار نه خوړل د مارغه لپاره شرط نه دی. (مرقات ۶۶۹/۷)

**وان اكل فلا تأكل**: يعنې که ښکاري سپي ښکار وکړو او ويې خوړلو نو بيا پاتې ښکار مه خورئ. اوس مسئله دا ده چې که سپي وخوړلو او ښکار مړ شو نو آيا هغه حلال دی يا نه؟ دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: امام مالک او امام اوزاعی فرمايي چې داسې ښکار هم حرام دی. دې خوراک هم حلال دی. جمهور ائمه فرمايي چې داسې ښکار خوړل حرام دي.

**دلائل**: امام مالک او امام اوزاعي رحمه الله د سنن ابی داؤد د روايت نه استدلال کړی دی. چې دا الفاظ په کې راځي: "**اذا رسلت كلبك و ذكرت اسم الله عليه فكل وان اكل من**" (ابو داؤد ص ۳۸ ج ۲)

جواب: د جمهورو له اړخ د امام مالک د استدلال يو جواب دا دی چې دا حديث ډېر قوي او مضبوط دی. د امام مالک د مستدل دا درجه نشته دی. دويم جواب دا دی چې د قرآن آيت: مما امسکن عليکم کې په واضحه توګه د حلالېدلو لپاره د ښکار نه خوړل بلکې د امساک شرط دی. د دې وجې نه به د امام مالک مستدل پرېښودل غواړي. درېم جواب دا دی چې په **فلا تأكل** کې نهي ده. او د حل او حرمت په مقابله کې حرمت ته غوره والی ورکول کېږي. "**فان وجدت مع كلبك كلباً**" دې حديث کې دا دويمه مسئله ده. د دې تشريح داسې ده چې که ښکاري سپي سره د بل يو کس دويم سپی شامل شو او هغې ښکار ؤوژلو نو دې حديث کې دي چې هغه ښکار مه خورئ ځکه اصل خبره د **بسم الله** د لوستلو او د نه لوستلو ده. او دا چې دويم سپی په کې شامل شو، نو دې کې دوه شکوک دي. اولنۍ دا خبره مشکوکه ده چې دا معلومه نه ده چې هغه معلم دی يا نا. ډېر امکان لري چې هغه غير معلم وي. دويمه خبره دا ده چې د سپي پرېښودلو وخت کې د الله نوم اخستلو سره **بسم الله** ويلی شوې دا يا نا، نو ځکه نبي کريم ﷺ و فرمايل چې دا مه خورئ. (مرقات ۶۶۸/۷)

**حكم د متروك التسميه ذبيحه**: **فذكراسم الله**: دې حديث کې دريمه مسئله بيان شوې ده، چې د متروک التسميه څه حکم دی. سپی د ورپسې کولو وخت کې يا د تير ويشتلو وخت کې يا که په ذبح اختياري کې چا قصداً بسم الله پرېښودله، نو آيا دا ذبيحه حلاله ده او که حرامه ده. دې کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د فقهاؤ اختلاف**: د امام شافعي رحمه الله په نزد که چا د قصداً **بسم الله** پرېښودله يا ترينه هېره شوه، نو هر حالت کې ښکار حلال دی. يو ضعيف قول د حنابلو هم داسې دی. داؤد ظاهری او امام شعبی رحمه الله فرمايي چې هر حالت کې ښکار حرام دی. امام ابو حنيفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله جمهور فرمايي چې که چرې چا قصداً **بسم الله** پرېښودله

نو ښکار حرام دی. او که چرې نسیاناً تسمیه پاتې شوه نو ښکار حلال دی. (مرقات ۶۶۹/۷)

**دلائل:** فریق اول امام شافعي رحمه الله د دې اجتهاد نه استدلال کړی دی. چې قرآن کې چې د بسم الله کوم ذکر دی هغه عام دی. هغه که په ژبه وویل شي یا که په زړه کې وویل شي او د مسلمان په زړه کې بسم الله او د الله نوم هر وخت موجو وي. لهذا متروک التسمیه ذبیحه حلاله ده.

فریق ثاني داؤد ظاهري او شعبي رحمه الله دلیل دا دی چې د قرآن آیت ﴿**ولا تأکلوا مما لم یذکر اسم الله علیه وانه لفسق**﴾ عام او مطلق دی. که تسمیه په هیري سره پاتې شي یا قصداً پرېښودلی شوه، ذبیحه حرامه ده.

فریق ثالث جمهور و د قرآن د آیت نه استدلال کړی دی او فرمایي چې آیت کې ﴿**وانه لفسق**﴾ ویلی شوی دی. چې د تسمیه پرېښودل فسق دی. او فسق هغه کار ته وایي چې هغې کې قصد او اراده وي. که چرې فعل کې قصد او اراده نه وي نو هغه فسق نه دی. لهذا قصداً تسمیه پرېښودلو سره به ذبیحه حرامه وي. او نسیاناً تسمیه پرېښودلو سره به ذبیحه حرامه نه وي، ځکه حدیث کې د "**رفع عن امتي الخطاء والنسیان**" یوه ضابطه ده. جمهور و د دې باب د ټولو حدیثونو نه هم استدلال کړی دی. چې تسمیه په کې شرط دی. د بحث د لاندې حدیث په رڼا کې یو څو خبرې د خلاصي په توګه لیکلی کېږي. چې حقیقت کې د ښکار د شرطونو نه دي.

۱: خکال د حلال کیدو اولنی شرط دا دی چې ښکار کونکی مسلمان وي. د کافر ښکار او ذبیحه حرامه ده.

۲: ښکاري سپی ښکاري پرېښی وي. دا دویم شرط دی. که خپله سپي ښکار ونیؤو او حاضر یې کړو نو هغه به حلال نه وي.

۳: دریم شرط دا چې د سپي وغیره پرېښودلو وخت کې ښکاري د الله نوم اخستی وي. که قصداً تسمیه پرېښودل شوه نو ښکار به حلال نه وي.

۴: د کوم ښاروي یا مرغه په ذریعه چې ښکار کېږي هغه به معلَّم وي، د غیر معلَّم ښکار د ذبحې نه بغیر حرام دی.

۵: تعلیم یافته سپي هم که د ښکار نه وروسته ښکار و خوړلو نو پاتې برخې استعمال د سړي لپاره حرام دی.

۶: تعلیم یافته سپي د ښکار حلال کېدلو لپاره شپږم شرط دا دی چې سپي ښکار زخمي کړی وي. بغیر زخم نه که ښکار مړ شي نو د هغې استعمال حرام دی.

۷: ښکار که چرې ورک شي او د خرابېدو نه مخکې وموندل شي نو د هغې خوړل حلال دي او که چرې خراب شي یا اوبو کې غرق شي او مړ شي نو د هغې خوړل حلال نه دی.

## د ټوپک په ګولۍ باندې ښکار څنګه دی؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا نُرْسِلُ الْكِلَابَ الْمُعَلَّمَةَ |
| او حضرت عدي رضي الله عنه فرمایي چې ما عرض وکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! مونږ تربیت شوې (یعنې زده کړه ورته |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | كُلْ | مَا | أَمْسَكْنَ | عَلَيْكَ |

شوې وي) سپي پرېږدو؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل ستاسو سپې چې كوم ښكار ستاسو لپاره ونيسي او وې ساتې نو هغه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْتُ: | وَإِنْ | قَتَلْنَ؟ | قَالَ: | وَإِنْ | قَتَلْنَ | قُلْتُ: | |

خورئ. ما عرض وكړو كه سپې ښكار ؤوژني؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل اګر كه وې وژني. بيا ما عرض وكړو چې

| | | |
|---|---|---|
| إِنَّا | نَرْمِي | بِالْمِعْرَاضِ. |

مونږ ښكار باندې بغير له څوكې والا تير خوشې كؤو او د هغې په ذريعه ښكار كؤو، نو آيا هغه ښكار خوړل صحيح

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ: | كُلْ | مَا | خزق |

دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې كوم ښكار هغه تير زخمي كړي يعنې كه هغه سيدها لاړې او ښكار په څوكه

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَا | أَصَابَ | بعرضه | فقتله |

ولږي او هغه مړ شي نو هغه خورئ او كه د په څوكه نه بلكې د پلن والي په اړخ باندې په ښكار ولږې او هغه

فَإِنَّهُ وقيذ فَلَا تَأْكُل (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

ښكار زخمي شي او مړ شي نو هغه وقيذ دی، هغه مه خورئ.

**توضيح**: انا نرمي بالمعراض: يعنې كله مونږ ښكار پسې تير ورخوشې كؤو. هغه پرې په پلن والي ولږې. د دې څه كم دی؟ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جواب كې وفرمايل "كل ما خزق" خزق منډلو او نافذ كېدلو ته وايي. څوكه او تيره څوكه والې باندې زخمي كول مراد دی. معراض هغه تير دی چې په پلنوالې په ښكار ولږې د تيره اړخ نه ونه لږې. دا د وقيذ په حكم كې دی. ښكار حلال نه دی. د دې نه د هر هغه آلې والا څيز حكم راؤځې چې كوم كې تيره څوكه نه وې بلكې په خپل بوج، زور او دباؤ باندې ښكار وشلوې.

**د فقهاؤ اختلاف**: اوس دې كې اختلاف دی چې بغير د تيرې څوكې والا څيز باندې ښكار حلال دی يا كه حرام دی. كوم كې چې نن سبا د ټوپک مسئله مخې ته راځې. امام مكحول رحمه الله او اوزاعی شامی رحمه الله او څه د نورو علماؤ رأی دا ده چې د ټوپک په ګولۍ باندې كړی شوی ښكار حلال دی.

د جمهور علماؤ رائې ده دا چې د تيرې څوکې نه بغير او زخم کولو نه بغير د دباؤ په ذريعه وژلى شوى ښكار حلال نه دى. لهذا د ټوپک به ګولۍ ښكار حلال نه دى، خو دا چې ژوندى وي او ذبح اختياري شي نو حلال دى. (مرقات ۶۷۱/۷)

**دلائل**: امام اوزاعی او د شام علماؤ او امام مکحول د قرآن د آيت نه استدلال کوي چې ﴿مما امسكن عليكم﴾ کې د زخم ذکر نشته دى. آيت مطلق دى. دا د زخم سره نه شي مقيد کېدى. لهذا بغير د څوکې والا څيز سره ښکار جائز دى.

جمهور د ذکر شوې حديث نه استدلال کوي چې نبي کريم ﷺ د معراض ښكار وقيذ ګڼلى دى او د "خزق" قيد يې لګولى دى چې تيره څوکه باندې زخم وي او وينه توېه شي نو بيا حلال دى ګڼې نه دى.

جمهور د اوزاعی د استدلال دا جواب کړى دى چې مما امسكن کې د امساک قيد عدمِ اكل لپاره دى چې ستاسو لپاره هيسار شي او د خپل خوراک لپاره هيسار نه شي. د دې آيت د زخمي کېدلو نه کېدلو سره هيڅ تعلق نشته دى. بلکې امساک او زخم يو ځاى هم کېدى شي. بهرحال د ټوپک ګولۍ اګر که د بارودو په زور لاړه شي او ښكار ته زور ور کوي خو په دې کې څه داسې قِسمه تيزوالى شته دى چې د چاقو يا چاړه نه يې په تيزه غوځوې. علماؤ له د دې باره کې له سوچ کول پکار دى. دې مسئله کې د فقهاؤ او د مفتيانو د اختلاف نه مخکې د مسئلې اصل حقيقت بيانول ضروري دى. دې سلسله کې مولانا خالد سيف الله ليکي. د ذبح کولو دوه طريقې دي. يو د څاروُ د ذبح کولو طريقه چې د سړي په اختيار کې وي. دې ته د فقهې په اصطلاح کې "ذبح اختيارى" وايي. دويم صورت د داسې څاروُ د ذبح کولو دى چې د سړي په اختيار کې نه وي مثلاً د ښكار څاروى، چې د وړاندې نه يې د وژلو کوشش کېږي. د دې د ذبح کولو طريقه د هغه څاروُ نه لږه شان مختلف ده کوم چې د انسان په اختيار کې وي. او دې ته د فقهې په اصطلاح کې "ذبح اضطرارى" وايي.

ذبح اختياري او د ذبح اضطرارې د تقسيم نه وروسته مولانا خالد سيف الله ليکي:

ذبح اضطرارې د مرئ کې د خاص رګونو غوڅول ضروري نه دي بلکې دومره کافي ده چې په کوم څيز د شکار لپاره استعمل شوى وي هغه ښكار زخمي کړي. د زخمي کېدلو نه وروسته که ښكار کونکى هغه ژوندى ونيسې نو اوس د مرئ رګونه به غوڅول غواړي او که د ورسيدلو نه مخکې څاروى مړ شوى ؤو نو د هغې زخمي کېدل کافي دي. او دا حلال دى. د ښكار په معامله کې دا خصوصي سهولت د قرآن او حديث د تصريحاتو نه ماخوذ دى.

ښكارې څاروى ټوپک باندې د ويشتلو صورت کې که ټوپک چلونکى مسلمان وي او د ګولۍ چلولو وخت کې يې "بسم الله الله اكبر" اويله او ګولۍ په خوشې کړه او ښكار پرې ولږېدلو او هغه

مړ شو نو دا ښکار به حلال وي يا که حرام. هدايه او د فقهې د نورو کتابونو د ترصيح نه داسې معلومېږي چې که په دې خبره يقين وي چې دا څاروی د زخم په وجه مړ شوی دی نو بيشکه حلال دی او که يقين شي چې د زخم نه شويدی نو بيشکه حرام دی. د هدايه عبارت دا دی.

**"والاصل في هذه المسائل ان الموت ان كان مضافا الى الجراح بيقين كان حلالا وان كان مضافا الى الثقل بيقين كان حراماً وان رقع الشك ولا يدرى مات بالجرح او بالثقل كان حراماً احتياطاً"**

مولانا مفتي محمود صاحب د نومبر ۱۹۵۶ء په مطابق د ربيع الاول ۱۳۷۶ء، مولانا مفتي رشيد احمد لدهيانوی چې هغه وخت د دارالعلوم کراچی کې د مفتي او مدرس ؤ ته يو وليکلو "دې مسئله (يعنې د ټوپک په ګولی ښکار" کې دې احقر ته خپله تردّد دی. لاندې ذکر شؤو دلائلو باندې نظر واچوه او د خپلې رائې نه مې خبر کړه. او نفس دلائلو د لاندې فانظر الى ما قال ولا تنظر الى من قال په اړه موجبه رايه قائم کړي.د هغې وروسته مولانا متفى محمود صاحب حلت او حرمت باندې دلالت کونکي ډېر روايتونه ذکر کړل او خپله رائې هم وليکله. هغه په ذکر شوي خط کې ليکي.او اوس د کوترې نه تر هوسۍ پورې ښکار په ټوپک باندې کېږي. قدرت على الذكات الا ختيارية څېنې وخت ملاوېدلی شي. اخراج الدم هم کامل وي، نو دې سخت ضرورت کې سره دتميز الدم المسفوح باكمل وجه وهو المقصود حرام ګرځولو په معنې کې به وي چې د دغه زماني خلک به د رخصت خداوندي نه فائده مند نه وي.مولانا مفتي محمود دې مسئله کې د رائی د اظهار باره کې ځومره د احتياط نه کار اخلي. د دې اندازه د دې خبرې نه کېدلی شي چې دواړه قسمه دلائل د ذکر کولو باوجود يې ډېر په احتياط سره خپله رائی ليکلې ده. او د هغې د وجې اړخ ته هم اشاره کوي. دا صحيح ده چې بې له وجې د نوې آلاتو او د نوې زمانې سره احکام کې د بدلون کول الحاد او زندقه ده او د فقهاؤ د عباراتو او د اشاراتو خلاف هيڅ يو حکم هم د فتنې نه خالي نه دی، خو د شرعي دلائلو په موجودګئ کې د فقهاء کرامو اصولو د لاندې مقرره کړی شوې مسئلې باندې غور کول به هم د ملامتيا قابل وي، نوې آلې او ضرورتونه، زمانه باندې غور او فکر نه کول او د ټوپک ګولی دختو ټوپک باندې قياس کول او پرېښودل کول د علماؤ شان نه دی. او بيا ټوپک کې صرف ګولی او په چاړه خو ښکار نه کېږي بلکې د څوکې والا ګولی څوکه خو د معراض د څوکې نه کمه نه وي. ټول به يو حکم کې راوستل څنګه صحيح وي.مولانا رشيد احمد لدهيانوی د فقهاء کرامو رحمهم الله د ډېرو عبارتونو حوالې ورکړې دي او د عقلي دلائلو نه يې هم مرسته اخستې ده، خو آخر کې د مولانا مفتي محمود د دې قول "بلکې د څوکې والا ګولی څوکه خو د پلن غشي د څوکې نه کمه نه

وي " د لاندې ليکې.اقوال د داسې ګولۍ د ښکار په حلت کې هيڅ شک نشته دی او نه دې کې د هيڅ قِسمه اختلافاتو ګنجائش شته دی. امداد المفتيين کې د داسې ښکار د حلت فتوی ليکلې شوې ده.البته که يو دومره وړه ګولۍ دومره وړوکې څاروی ؤوژنې چې د ګولۍ د وزن متحمل کېدلی نشي يعنې که ګولۍ د تيزې څوکې والا نه وی نو بيا هم د وزن نه يې څاروی وژل شوی وی نو دا څاروی به حلال نه وی.مولانا محمد ايوب جان صاحب بنوری، د حضرت مفتي صاحب د موقف وضاحت داسې کوی: حضرت مفتي صاحب ډېر دلائل پيش کړل. هغې کې يو دليل دا هم ؤو چې کله ټوپک باندې ګولۍ ويشتلی کېږي نو هغه وخت د هغې نه اور ؤځې او هغه زخمي شي. او په اور سره ذبح کول فقهاء کرام حلال ګڼي، نو ځکه حلال دی.راقم الحروف فضل محمد يوسف زئی وضاحت کول غواړي چې د يوې اوږدې تجربې او د اوږد بحث او مباحثې نه وروسته دې نتيجې ته رسيدلی يم چې د ټوپک په ګولۍ او په چاړه باندې ښکار شوی څيز حلال دی، ځکه د "كُلُّ مَاَ خَزَقَ" مطابق زخم دلته موجود دی او "مَاَ أَنْهَرَ الدَّمُ" هم په پوره توګه موندلی کېږي. چاقو او چاړه باندې چې کومه غوښه پرېکړيشي او وينه ترېنه روانه شي. ګولۍ او چاړه کې د دې نه کم نه دی. لهذا د دې په حلال کېدو کې شک کول پکار نه دي.د حضرت مولانا مفتي محمود صاحب په دې فتوی سره زماډېره حوصله افزائی شوې ده. او يوه زړه مسئله حل شوې ده. "الحمد لله"

## د يهودو او نصاراؤ په لوښو کې خوراک څنګه دی؟

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَن أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِي قَالَ: قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ إِنَّا |
| او حضرت ابو ثعلبه خشنی فرمايي چې ما عرض وکړو ای د الله نبي (ﷺ)! مونږ د يو داسې قوم په مينځ کې |
| بِأَرْضِ قوم أهل كتاب أَفَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ وَبِأَرْضٍ |
| اوسيږو چې اهل کتاب دي، نو آيا د هغوی په لوښو کې خوړلی او څښلی شو؟ او مونږ په داسې علاقه کې |
| صَيْدٍ أَصِيدُ بِقَوْسِي وَبِكَلْبِي الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ وَبِكَلْبِي |
| اوسيږو چې ښکار په کې ډېر زيات دی. زه خپله ليندۍ يعنې د غشي او تربيت ياقته سپي په ذريعه |
| الْمُعَلَّمِ فَمَا يصلح؟ |
| ښکار کوم او په غير تربيت يافته سپي باندې هم ښکار کوم، نو زما لپاره کوم يو شی صحيح دی؟ |
| قَالَ: أَمَّا ذَكَرْتَ مِنْ آنِيَةِ أَهْلِ الْكِتَابِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې تر کومې پورې د دې شې تعلق دی چې تا د اهل کتابو د لوښو باره کې پوښتلی دی نو |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنْ | وَجَدْتُمْ | غَيْرَهَا | فَلَا | تَأْكُلُوا | فِيهَا |
| که د هغې لوښو نه بغیر نور لوښي ملاوېږي نو بیا د هغوی په لوښو کې خوراک مه کوه او څښنه او که نور لوښي درته | | | | | |
| وَإِنْ | لَمْ | تَجِدُوا | فاغسلوها | وَكُلُوا | فِيهَا |
| نه ملاوېږي نو اول هغه ؤوينځه او وچ يې کړه او بيا يې پکې خوره او څښنه. پاتې شوه د ښکار خبره نو کوم ښاروی | | | | | |
| وَمَا | صِدْتَ | بِقَوْسِكَ | فَذَكَرْتَ | اسْمَ | اللهِ | فَكُلْ |
| چې تا په خپل تير باندې ښکار کړی دی او د تير ويشتلو وخت کې د الله نوم اخستی دی، نو هغه خوره. دغه شان | | | | | |
| وَمَا | صِدْتَ | بِكَلْبِكَ | الْمُعَلَّمِ | فَذَكَرْتَ | اسْمَ | اللهِ |
| کوم ښاروی چې تا په تربيت يافته سپي باندې ښکار کړی دی او د هغه سپي پرېښودلو وخت کې دې د الله نوم | | | | | |
| فَكُلْ | وَمَا | صِدْتَ | بِكَلْبِكَ | غَيْرِ | معلم |
| اخستی دی نو هغه هم وخوره او دغه شان چې کوم ښکار تا په غیر تربيت يافته سپي باندې ونيولو او هغه د ذبح | | | | | |
| فأدركت | ذكاته | فكل | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | |
| کولو قابل يعنې ژوندی دې وموندلو او بيا دې ذبح کړی دی نو هغه هم خوړلی شي. | | | | | |

**توضيح**: د اهل کتابو په لوښو کې که هغوی د خنزير غوښه اېښې وي يا يې د شرابو لپاره استعمال کړي وي نو که په هغه صورت کې بل لوښی ملاوېدلی شي نو د هغې د هغې لوښو استعملول قطعاً جائز نه دی، خو که بل لوښی نه ملاوېږي نو بيا د هغې وينځل او استعمالول جائز دي. مجبوري ده. او که د هغوی دا لوښي په شرابو وغيره کې استعمال شوي نه وي نو بيا يې صرف وينځل او استعمالول جائز دي. اګر که خپل لوښی هم موجود وي. بهرحال اسلام غواړي چې مسلمانانو کې اسلامي غيرت او حميت پاتې وي، ځکه لړ اختلاط سره سړی ورو ورو د غير مسلمو په معاشره کې ورک شي. بد اخلاقي جائز نه ده خو د اخلاقو هم يو مقام وي. اخلاق د دې نوم دی چې د خدای د ښمنانو سره د زړه مينه پيدا شي. د بحث لاندې اشاره هم دغه ده چې که خپل لوښی موجود وي نو د کافر لوښی مه استعمالوه. (مرقات ۶۷۲/۷)

---

(1) رقم الحديث ۴۰۶۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۰۴/۹ رقم الحديث ۵۴۷۸ ومسلم في ۱۵۳۲/۳ رقم الحديث (۸-۱۹۳۰)

## وژلی شوی ښکار که ورک شي نو څه حکم يې دی؟

﴿۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
او حضرت ابو ثعلبه خشني فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل چې که تاسو د الله نوم اخستلو سره په ښکار
إِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ
پسې تير ورخوشې کړئ او بيا هغه ښکار تير لږېدلو سره ستاسو له نظره ورک شي يعنې که په يو داسې ځای کې
فَغَابَ عَنْكَ فَأَدْرَكْتَهُ
مړ شي چې هغه وخت کې تاسو ملاو نشو او بيا هغه ستاسو په لاس درشي او تاسو په هغې کې د خپل غشي نښان
فَكُلْ مَا لَمْ
ليدلو سره دا يقين وکړئ چې دا ستاسو تير لږېدلو سره مړ شوی دی نو دا تاسو خوړلی شئ. چې تر کومې پورې
يُنْتِنْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]
يې بويې تغير نه وي پيدا کړی.

**توضيح: مالم ينتن:** مثلاً يو کس د مرغۍ وغيره ښکار وکړو خو وليد له او په چاخو کې ورکه شوه. اوس د هغه ورک شوې ښکار څه حکم دی. دې حديث کې ويلی شوې دي چې تر څو پورې هغه ښکار بد بويې نه وي کړي نو تره هغه وخت پورې يې خوړل جائز دي، خو شرط دا دی چې هغه ښکار په بله څه وجه نه وي مړ شوی. بلکې د ښکارې کس د تير وغيره په وجه مړ شوی وي او ويشتلو وخت کې يې بسم الله الله اکبر ويلې وي. معمولې بدبويې سره حرام نه دی. اګر که د صحت لپاره مضر وي، خو ښکار لپاره لازم دي چې هغه دا ښکار تر د خپل وسه پورې مسلسل ولټوي. راتلونکې حديث کې دي چې درې ورځې وروسته هم ملاو شي، بيا هم جائز دی. (مرقات ۶۷۲/۷)

﴿۵﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الَّذِي يُدْرِكُ صَيْدَهُ بَعْدَ ثَلَاثٍ:
او حضرت ثعلبه خشني فرمايي چې نبي کريم ﷺ د هغه ښکار په حق کې چې خپل ښکار درې ورځې وروسته

---

[1]) رقم الحديث ۴۰۶۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۳۲/۳ رقم الحديث (۹-۱۹۳۱) وابوداود في السنن ۲۷۸/۳ رقم الحديث ۲۸۶۱

فكله مَا لم ينتن. رَوَاهُ مُسلم[1]

وموموې، ویې فرمایل چې هغه وخوره خو چې هغې کې بدبويې پیدا شوې نه وي.

## د شکمنې ذبیحې حکم

﴿٦﴾ وَعَن عَائِشَةَ قَالَت: قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ هُنَا

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې يو ځل يو صحابي عرض وکړو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! دلته څه داسې

أَقْوَامًا حَدِيثٌ عَهْدُهُمْ

خلک هم دي چې د شرک زمانه یې ډېره نزدې ده یعنې هغه نوي مسلمانان چې د اسلام احکامات او دیني مسائل یې پوره

بِشِرْكٍ يَأْتُونَنَا بِلُحْمَانٍ لَا نَدْرِي

نه دي زده کړي، هغه خلک مونږ له غوښه راوړي او مونږ ته د هغې علم نه وي چې هغوی د دې ذبح

أَيَذْكُرُونَ اسْمَ اللهِ عَلَيْهَا أَمْ لَا؟

کولو وخت کې د الله نوم اخستی دی یا نه، نو آیا د هغوی لاوړلې شوې غوښه مونږ خوړلې شو. یا نه؟

قَالَ: اذْكُرُوا أَنْتُم اسمَ اللهِ وكلوا. رَوَاهُ البُخَارِيّ[2]

نبي عليه السلام وفرمايل تاسو د الله نوم اخلئ او هغه خوړئ.

**توضیح**: **اذکروا انتم اسم الله**: صحابؤ دا مسئله پوښتلې ده چې د مختلف ځايونو نه غوښه راځي. معلومه نه ده چې د هغوی ذبح څه قسمه ده. د هغې خوراک څنګه دی. نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې شک مه کوئ. بسم الله او ايئ او وې خورئ. د دې حديث مطلب دا نه دی چې د څاروي ذبح کولو وخت کې که بسم الله نه وې ويلې شوې نو تاسو يې د هغې د مړه کېدو نه وروسته په بسم الله ويلو سره وخورئ. د دې حديث مطلب دا دی چې که ذبح کونکی د ذبحې قابل وي او د کوم اطرافو نه چې غوښه راغلې ده هلته مسلمانان دي، نو د تحقيق او تفتيش او شک او شبې نه بغير مسلمانانو باندې د ښه ګمان به بنياد په بسم الله ويلو سره خوړل پکار دي. نن سبا چې کومه غوښه د برازيل او د تهائی لينډ او يا د نورو کافرانو نه مسلمانانو ته راځي، نو هغې کې د ډېر زيات تحقيق ضرورت دی. د دې ملکونو د يوې منصوبې د لاندې مسلمانان د حرام غوښو خوړلو په ذريعې د ګمراه کولو اراده کړې ده.

---

(1) رقم الحديث ۴۰۶۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۳۲/۳ رقم الحديث ۱۰-۱۹۳۱) والنسائي في ۱۹۴/۷ رقم الحديث ۴۳۳۰

(2) رقم الحديث ۴۰۶۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۳۴/۹ رقم الحديث ۵۵۰۷ وأبوداود في السنن ۲۵۴/۳ رقم الحديث ۲۸۲۹

مسلمانان دومره بې احساسه او بې وسه شوي دي چې هغوی د پخپله د ځارو د ذبح کولو همت هم روان دی. حرمين شريفينو ته حرامه غوښه راځي او خلک يې خوري. دلته پاکستان کې هم د چرګانو فارمونو کې چرګې مړې شي نو هغه د عوامو په خوراکونو کې او په هوټلونو کې وربانديږي خوري. او هغه مردارې وي، خو غوښه ارزانه وي نو ځکه اخستلی کيږي. حضرت مولانا شاه انور شاه کشميري فرمايي چې دې حديث کې نبي کريم ﷺ د وسوسو د لرې کولو لپاره داسې فرمايلې دي چې وسواسې کيږئ مه. بلکې بسم الله ؤوايئ او وې خورئ. بسم الله ويلو سره به ستاسو وسوسه ختمه شي. دا مطلب نه دی چې په حرامو غوښو باندې بسم الله ويلو سره حلاله شي.

## د غير الله په نوم ذبيحه حرامه ده

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْ | أَبِي | الطُّفَيْلِ | قَالَ: | سُئِلَ عَلِيٌّ: |
| او حضرت ابو طفيل رضي الله عنه فرمايي چې د حضرت علي رضي الله عنه نه داپوښتنه وکړی شوه چې نبي عليه السلام د څه شي | | | | |
| هَلْ خَصَّكُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ؟ | | | | |
| په ذريعې باندې خصوصيت او امتياز ورکړی دی؟ يعنې آيا دا صحيح ده چې نبي عليه السلام تاسو ته چې اهل | | | | |
| فَقَالَ: مَا خَصَّنَا بِشَيْءٍ | | | | |
| بيت رسول دي څه داسې احکامات ورکړي دي چې نورو خلکو ته يې نه دي ورکړي؟ حضرت علي رضي الله عنه | | | | |
| لَمْ يَعُمَّ بِهِ | | | | |
| وفرمايل چې نا. نبي عليه السلام زمونږ لپاره هيڅ داسې شی نه دی مخصوص کړی چې د نورو خلکو لپاره عام شوي | | | | |
| النَّاسَ إِلَّا مَا | | | | |
| نه وي بغير د دې شې نه چې زما د توري په تيکئ کې د يو څو احکاماتو د مجموعې په صورت کې موجود دي. خو | | | | |
| فِي قِرَابِ سَيْفِي | | | | |
| دې احکاماتو باره کې زه هم په دې نه پوهيږم چې آيا هغه احکامات مونږ اهل بيتو لپاره خاص دي يا د هغې تعلق | | | | |
| هٰذَا فَأَخْرَجَ صَحِيفَةً | | | | |
| په عمومې توګه د ټول امت سره دی. بيا حضرت علي رضي الله عنه د خپلې توري د تيکئ نه يو کاغذ راويستو چې دا | | | | |
| فِيهَا: لَعَنَ اللهُ مَنْ ذَبَحَ لِغَيْرِ اللهِ | | | | |
| احکامات په کې درج ؤو چې په هغه کس دې د الله لعنت وې چې د غير الله په نوم يو ځاروی ذبح کړي او . ، | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَعَنَ | اللّٰهُ | مَنْ | سَرَقَ | مَنَارَ | الْأَرْضِ | وَفِي | رِوَايَةٍ | مَنْ |
| هغه کس دې د الله لعنت وي چې د ځمکې نښانه پټه کړي او په یو روایت کې دا سې الفاظ دي چې په هغه کس | | | | | | | | |
| غَيَّرَ | مَنَارَ | الْأَرْضِ | وَلَعَنَ | اللّٰهُ | مَنْ | لَعَنَ | وَالِدَهُ | |
| دې د الله لعنت وي چې د ځمکې نښان بدلوي و په هغه کس دې د الله لعنت وي چې په خپل پلار لعنت کوي | | | | | | | | |
| وَلَعَنَ اللّٰهُ مَنْ آوَى مُحْدِثًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] | | | | | | | | |
| او په هغه کس دې د الله لعنت وي چې بدعتي ته ځای ورکوي. | | | | | | | | |

**توضيح:** **خصکم**: دا پروپیګنډه د هغه وخت نه تر اوسه پورې شروع ده چې نبي کریم ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته څه خصوصي نصیحتونه کړي وُو. صحابؤ بار بار د هغې باره کې د حضرت علي رضي الله عنه نه پوښتنه کړې ده او حضرت علي رضي الله عنه مسلسل انکار کړی دی. تر ننه پورې روافض په خپلو اذانونو کې د وُوصی رسول الله الفاظ تکراروې او د حضرت علي رضي الله عنه خبرې ته دروغجنه وايي. (مرقات ۶۷۵/۷)

**قراب**: د تورې نیام ته وايي. یو لیکلی شوی خط هغې په دې نیام کې ایښی وُو. (مرقات ۶۷۵/۷)

**لغیرالله**: د الله د نوم نه بغیر د بل چا په نوم څاروی ذبح کول داسې دي لکه د حضرت عیسی علیه السلام په نوم یا د حضرت عزیر علیه السلام په نوم یا د شیخ عبدالقادر رحمه الله په نوم یا د حسن رضي الله عنه او حسین رضي الله عنه په نوم یا د یو پیر فقیر په نوم څاروي ونومول شي چې دا د فلانکي د نوم څاروی دی. بیا هغه ذبح کړي. د ذبح وخت کې ځینې بې دینه نو د غیرالله نوم اخلي او ځینې بې دینه خو د الله نوم اخلي خو ساه د بل لپاره وباسي. د غیرالله په نوم د نومولو نه وروسته د ذبحې وخت کې بسم الله وايي او حال دا چې هغه نذر او نیاز د غیرالله په نوم وي.

**منار الارض**: د ځمکو نښانو ته منار ویلې شوی دی. د دې نښان نه مراد هغه د علامت والا کاڼي وغیره دي چې د دوه مشترک ملګرو د ځمکې حدود باندې ایښودلی کېږي. د هغې پټولو یا بدلولو سره هغه د بل زمکه خپلول غواړي. کله داسې هم کېږي چې دا نښان د یو اړخ نه لرې کړي او بل اړخ ته یې ویسې. او اصل مالک ته امتیاز پاتې نشي. دا هم خپلول غواړي. او نن سبا په ځمکو کې د تولو نه زیات بدلول د پټواریانو په لاسونو باندې کېږي. د دې حدیث اولنی مصداق همدغه پټواری خلک دي چې د ځمکې په نقشه کې او په لټها کې او د کس په نمبر کې ګړ بړ کوي او بیا یې صحیح کولو باندې روپۍ حاصلوي. خپله یې خراب او بیا پرې روپۍ اخلي. (مرقات ۶۷۵/۷)

---

(1) رقم الحدیث ۴۰۷۰ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۵۶۷/۳ رقم الحدیث (۴۵-۱۹۷۸) والنسائي في السنن ۲۳۲/۷ رقم الحدیث ۴۴۲۲

**لعن والده**: یعنې د مور او پلار نافرماني کوي او بیا هغوی د تنقید نښانه جوړه کړي یا د بل مور او پلار ته کنځلې وکړي. هغې د بل مور او پلار ته کنځلې وکړي نو د غه شان هغه بیا خپله د هغه کنځلو ذریعه شي.

**محدثاً**: د دې نه بدعتي کس مراد دی. داسې کس ته ځای ورکړي یا یې پټ سنبال کړي. مدینه یا مکه وغیره کې د هغې سره مالي تعاون کول، د هغې رائی ته ترویج ورکول او د هغې تعظیم او عزت کول، هغه پیر او مرشد کول ټول د لعنت سبب دی. (مرقات ۷/۶۷۶)

## کوم شی چې درګونووینه تویه وولی شي نو ذبح کول پرې جائز ده

﴿۸﴾وَعَن رَافِع بن خديج قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ

او حضرت رافع بن خدیج رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ما عرض وکړو یا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! سبا د دښمن یعنې د کافرانو سره

إِنَّا لَاقُوا الْعَدُوِّ غَدًا وَلَيْسَتْ مَعَنَا

زمونږ مقابله ده او مونږ سره چړې نشته دی. یعنې کېدی شي چې د جنګې هنګامو په وجه مونږ سره چاړې نه

مُدًى أَفَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ؟

وي او مونږ ته د څاروُ د ذبح کولو ضرورت پیښ شي، نو آیا په هغه صورت کې مونږ په قینچې سره ذبح کولی شو؟

قَالَ: "مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللهِ

نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کو څیز سره وینه تویې کړی شي او هغې باندې د الله نوم اخستلی شوي وي نو هغه

فَكُلْ لَيْسَ السِّنَّ

خوړلی شي یعنې هغه څاروی خوړل جائز دي چې کوم په یو داسې څیز سره ذبح کړی شوی وي چې په هغې وینه

وَالظُّفُرَ وَسَأُحَدِّثُكَ عَنْهُ:

تویه شي اګر که هغه وسپنه وي یا بل شی وي خو په غاښونو او نوکانو باندې ذبح کول جائز نه دي. او زه تاته د

أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَأَمَّا الظُّفُرُ

دواړو باره کې وایم چې د دې په ذریعه ذبح کولو ولې جائز نه دي، نو واوره! غاښ هډوکی دی او ترکوم ځای پورې

فَمُدَى الْحَبَشِ" وَأَصَبْنَا نَهْبَ إِبِلٍ وَغَنَمٍ

چې د نوک تعلق دی نو دا د حبشیانو چاړه ده. حضرت رافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د دښمن څه اوښان او بزې په

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَنَدَّ | مِنْهَا | بَعِيرٌ | فَرَمَاهُ | رَجُلٌ | | بِسَهْمٍ |
| غنیمت کې زمونږ لاس ته راغلي. هغې کې یو اوښ راوپارېدلو او وتښتېدلو، خو مونږ یو کس هغه په تیر ویشتلو | | | | | | |
| فَحَبَسَهُ | فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او وې درولو یعنې هغه اوښ په غشو ولږېدلو او راغوزار شو. نبي عَلَيْهِ السَّلَام دې لیدلو سره وفرمایل چې | | | | | | |
| إِنَّ | لِهَذِهِ | الْإِبِلِ | أَوَابِدَ | كَأَوَابِدِ | | الْوَحْشِ |
| اوښانو کې ځینې اوښان د انسانانو نه داسې وپارېږي، لکه څنګه چې ځنګلي ښاروي د انسانانو نه پارېږي. | | | | | | |
| فَإِذَا | غَلَبَكُمْ | مِنْهَا | شَيْءٌ | فَافْعَلُوا | بِهِ | هَكَذَا (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| لهذا که اوښانو کې یو اوښ ستاسو د قبضې نه وتښتي نو د هغې سره همدغه شان معامله کوئ. | | | | | | |

**توضیح: مدیً**: د مدیة جمع ده. چاړه ته وایي. مطلب دا چې مونږ ته به د ښاروُ د ذبح کولو ضرورت پیښیږي. تنګ حالت به وي. د جهاد سفر دی که چاړه ملاوه نه شوه نو آیا مونږ په "**القصب**" باندې ښاروی ذبح کولی شو؟ قصب د بانس تراشلی شوي ته وایي. چې د چاړه پشان تېره وي. د ورېږ ټاټه او ګنې پوستکی هم دغه شان تېره وي. لرږو کې هم داسې تېره راوځي. چې اردو کې ورته کهیچ او کهپچی وایي.

**فعظم**: یعني غاښ خو هډوکی دی او په هډوکي ذبح کول صحیح نه ده. لهذا په غاښ باندې ذبح کول صحیح نه ده. (مرقات ۶۷۷/۷)

**فمدی الحبش**: یعني نوکان خو د حبشیانو چاړې دي. هغوی دا استعمالوي. لهذا مسلمانانو له د کافرانو دا طَریقه خپلول پکار نه ده. هر تیری شی چې ښاروی پرې اساني سره ذبح شي نو ذبح جائز ده. اوس که غاښ او نوک که دبدن سره لږېدلي وي نو په اتفاق سره هغې باندې ذبح ناجائزه ده، خو که جدا جدا ولاړ وي نو هغې باندې ذبح کولو کې د فقهاؤ اختلاف دی. (مرقات ۶۷۷/۷)

**د فقهاؤ اختلاف**: د جمهور فقهاؤ په نزد غاښ او نوک باندې ذبح مطلقاً ناجائزه ده. هغه که د بدن نه جدا وي یا که پیوسته وي. د احنافو ائمؤ په نزد که غاښ او نوک د بدن سره پیوسته وي نو ذبح ناجائزه ده خو که جدا وي او په استعمالول سره وینه تویه کړی شي نو ذبح د کراهت سره جائزه ده. جمهورو د ذکر شوي حدیث نه استدلال کړی دی. د احنافو ائمؤ راتلونکي فصل ثاني کې د عدي بن حاتم د حدیث ۱۸ نه استدلال کړی دی. چې الفاظ یې دا دی. "**امر رالدم بم شئت**" یعنې په کوم

---

[1] رقم الحديث ۴۰۷۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۶۳۸/۹ رقم الحديث ۵۵۰۹ ومسلم في ۱۵۵۷/۳ رقم الحديث (۲۰-۱۹۶۸)

څيز چې وغواړئ وينه تويه کړئ. دا حديث عام دی. غاښونه او نوکان هم شامل دي. اصل مقصد وينه تويول دي. که د مقلوع غاښ او نوک بندې ذباؤ نه راځي او وينه تويه شي نو ذبيحه حلاله پکار ده. البته فعل کې کراهت دی. راتلونکی حديث ۹ نه هم د احنافو دليل دی. ځکه غاښ او تېره هډوکی يو څيز دی. جمهورو چې د زير بحث حديث نه کوم استدلال کړی دی، نو احناف دا حديث په غير مقلوع غاښ او په غير مقطوع نوک باندې حمل کوي، ځکه د حبش خلک به ښاروی همدغه شان ذبح کولو. يا دا جواب دی چې د بحث لاندې حديث کې ممانعت د کراهت په درجه کې دی. هغه د احنافو په نزد هم مکروه دی، خو ذبيحه حلاله ده. د احنافو استدلال کمزوری دی.

**اوابد:** پاريدونکي او تېوپ وهونکي ځناور ته ويل کيږي. د دې مفرد آبدة دی. يو شاعر د آس تعريف کوي او وايي (مرقات ۶۷۸/۷).

وقـد اغـتـدی والـيـطر فی وکـنـاتـهـا

بـمـنـجـرد قـيـد الاوابـد هـيـکـل

دې صورت کې به ذبح اختياري نه وي بلکې ذبح اضطراري به شي چې د بسم الله سره زخم لګول کافي دي.

## په تيره کاڼي باندې ذبح کول جائز ده

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾وَعَن | كعبِ | بنِ | مَالك | أَنه | كَانَ | لَهُ | غَنَمٌ تَرْعَى |
| او د حضرت کعب ابن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې د ابن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د بزو يو رمه وه چې د مدينې په | | | | | | | |
| بِسَلْعٍ | فَأَبْصَرَتْ | جَارِيَةٌ | لَنَا | بِشَاةٍ | مِنْ | غَنَمِنَا | مَوْتًا |
| يو غر سلع باندې يې څرولې. يو ورځ زمونږ يوې وينځې يو بزه وليده چې هغه مره کېدونکې ده، نو هغې د يو | | | | | | | |
| فَكَسَرَتْ | حَجَرًا | فَذَبَحَتْهَا | بِهِ | فَسَأَلَ | | | |
| کاڼي تېوټه ماته کړه او د هغه تېوټه په ذريعه يې هغه بزه ماته کړه. بيا کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه | | | | | | | |
| النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | | | |
| دې مسئلې باره کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وپوښتل چې دې صورت کې د بزې غوښه خوړل حلاله دا يا نا؟ | | | | | | | |
| فَأمره | بأكلها. | رَوَاهُ | البُخَارِيّ[1] | | | | |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغې ته د هغه بزې غوښه د خوړلو حکم وکړو. | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۰۷۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۸۲/۴ رقم الحديث ۲۳۴۰ وابن ماجه في ۱۰۶۲/۲ رقم الحديث ۳۱۸۲

## که مړی هم کوئ نو په طريقه يې وکړئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى | | | | |
| او حضرت شداد بن اوس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل الله په هر څيز باندې | | | | |
| كَتَبَ | الْإِحْسَانَ | عَلَى | كُلِّ | شَيْءٍ |
| احسان کول لازم کړي دي يعنې د الله له اړخه هر کار په ښايسته، ښه او نرمۍ سره د کولو حکم کړی دی. | | | | |
| فَإِذَا | | قَتَلْتُمْ | | فَأَحْسِنُوا |
| ترديچې سزاءً د چاوژل يا د ځارۍ په ذبح کولو کې هم مهرباني او زړه خوږې او ښه او نرمه طريقه اختيارول | | | | |
| الْقِتْلَةَ | | وَإِذَ | | اذبَحْتُمْ |
| لازم کړې ده. لهذا چې په تاسو چې څوک د قصاص يا د حد په توګه باندې وژنئ نو هغه په نرمۍ او ښې طريقې | | | | |
| فَأَحْسِنُوا | | الذَّبْحَ | | وَلْيُحِدَّ |
| سره وژنئ چې هغې ته تکليف نه وي لکه تېره توره استعمال کړئ او وژلو کې تندې کوئ او تاسو کې چې څوک | | | | |
| أَحَدُكُمْ | | شَفْرَتَهُ | | وَلْيُرِحْ |
| څاروي ذبح کوي نو ښې او نرمې طريقې سره يې ذبح کوئ. لهذا دا ضروري ده چې تاسو کې هيڅ يو کس چې | | | | |
| ذَبِيحَتَهُ. | | رَوَاهُ | | مُسلم[1] |
| څاروی ذبح کول غواړي نو خپله چاړه ښه تېره کړئ او ذبح کونکې څاروي ته ارام ورکړئ. | | | | |

**توضيح**: مطلب دا دی چې ميدان جهاد کې يا قصاص کې چې څوک وژل غواړي نو په هغه قتل کې هم د سليقې نه کار واخلئ چې هغې ته تکليف نه وي او مه يې شکل ورانوئ. دغه شان په ذبح کولو کې هم سليقه اختيار کړئ چې د ضرورت نه زيات غوښ نه کړئ. چاړه ښه تېره کړئ. اسلام د احسان او سليقې حکم کوي، خو نن سبا خلک بې سليقه راغلل چې د اسلام طريقې ته طريقه نه وايي.

## څاروی تړل او نښانه کول جائز نه دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَنِ | ابْنِ | عُمَرَ | قَالَ: | سَمِعْتُ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | يَنْهَى |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د دې | | | | | | | | |

(1) رقم الحديث ۴۰۷۳ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۴۸/۳ رقم الحديث (۵۷-۱۹۵۵) وابوداود في السنن ۲۴۴/۳ رقم الحديث ۲۸۱۵

| |
|---|
| أَنْ تُصْبَرَ بهيمةٌ أَو غيرُها للْقَتْل (مُتَّفقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| خبرې نه منع کوله چې هيڅ ځاروی و غيره د وژلو لپاره وتړئ او بيا يې نښانه کړئ. |

**توضيح**: **ان تصبر**: دا د مجهول صيغه د صبر نه ده. د صبر دوه مطلبه دي. يو دا چې ځارې مو وتړلو او خوراک او څښاک مو پرې بند کړو چې مړ شي. تر دې چې مرګ راشي. دې صورت کې للقتل کې لام اجليه وي. اى لا جل القتل يعنې د قتل لپاره يې وتړلو. دويم مطلب دا دی چې ځاروی يې د نښانی لپاره وتړلو او بيا يې په هغې باندې تيران شروع کړل، ګولۍ ويشتل يې پرې شروع کړلې چې مزه هم وکړي او نښانه هم صحيح شي. دا سخت منع دي، ځکه دې کې زنده سرې ته ضرر رسي. چې په ذبح باندې يو اضافې سزه ده. دا مطلب په راتلونکو روايتونو کې زيات مناسب دی. چې د صبراً په ځای په کې د غرضاً لفظ راغلی دی. (مرقات ۶۸۱/۷)

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ مَنِ اتَّخَذَ شَيْئًا |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کس باندې لعنت ويلی دی چې په |
| فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] |
| زنده سرې باندې نښانه ولګوي. |
| ﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا تَتَّخِذُوا شَيْئًا فِيهِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل هيڅ يو زنده سرى تړلو او |
| الرُّوحُ غَرَضًا. رَوَاهُ مُسلم[3] |
| په هغې باندې نښانه مه جوړوئ. |
| ﴿۱۴﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوله باندې څپېړه وهونکی او خوله داغولو نه منع کړې ده |

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۷۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۴۲/۹ رقم الحديث ۵۵۱۴ وأحمد في المسند ۹۴/۲.

([2]) رقم الحديث ۴۰۷۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۴۳/۹ رقم الحديث ۵۵۱۵ ومسلم في ۱۵۴۹ رقم الحديث (۵۹-۱۹۵۸)

([3]) رقم الحديث ۴۰۷۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۴۹/۳ رقم الحديث (۵۸-۱۹۵۷) والنسائي في السنن ۲۳۸/۷ رقم الحديث ۴۴۴۳.

عَنِ الضَّرْبِ فِي الْوَجْهِ وَعَنِ الْوَسْمِ فِي الْوَجْه. رَوَاهُ مُسلم[1]

یعنې د یو کس یا څاروي په خوله باندې څپېړه یا دره وهل وغیره مه وهئ او مه د چا خوله داغوئ.

## څوک په خوله مه وهئ او مه پر مخ داغ ورکوئ

﴿۱۵﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَيْهِ حِمَارٌ وَقَدْ وُسِمَ فِي وَجْهِهِ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ورځ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته یو خر تېر شو چې داغلی شوی ؤو.

قَالَ: لَعَنَ اللهُ الَّذِي وَسَمَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[2]

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې او ربدلو سره و فرمایل چې په هغه کس دې د الله لعنت وي چاچې دې له داغ ورکړی دی.

**توضیح: لعن الله**: یو هیڅ یو ژوندي سري مخ او خوله باندې داغ ورکول منع دي. هغه که انسان وي یا څاروي وي، مخ او خوله نه بغیر د بدن په نورو اندامونو باندې داغل جائز دي، ځکه د راتلونکې حدیث نه ثابت دي. البته انسان د بدن د غلو په حېنې روایتونو کې مطلقاً ممانعت راغلی دی. د دې وجه دا ده چې نهمی شفقة ده چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نورو اسبابو سره د علاج ترغیب ورکړی دی، ځکه په اور باندې داغولو سره ډېر تکلیف وي، خو که نور علاجونه ناکامه شي نو آخري مجبوری باندې داغول صحیح دي، لکه ویلی شوي دي "آخر الداء الكيّ" بلکې که مجبوري وي نو مخ باندې هم داغ لګول جائز دي. د دې ممانعت دویم وجه دا کېدی شي چې د جاهلیت خلکو داغول یو معجزاتي او قطعي یقیني علاج ګڼلو. ګویا کې داغ ورکول د هغوی د اوهام پرستئ یوه برخه وه، ځکه مسلمانان منع کړی شول. (مرقات ۶۸۲/۷)

## د ضرورت او مصلحت په خاطر داغول جائز دي

﴿۱۵﴾ وَعَن أَنس قَالَ: غَدَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه یو ورځ د سحر وخت کې عبد الله ابن طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت

لِيُحَنِّكَهُ فَوَافَيْتُهُ فِي

ته بوتلم چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کجورې وژوویٔ او د هغې په تالو کې یې کېږدي، نو هغه وخت کې ما نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

يَدِهِ الْمِيسَمُ يَسِمُ

په داسې حال کې ولیدلو چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په لاس مبارک کې د داغولو یوه آله وه چې د هغې په ذریعه

---

[1] رقم الحديث ۴۰۷۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۷۳/۳ رقم الحديث (۱۶۰-۲۱۱۶) وأخرجه الترمذي في السنن ۱۸۳/۴ رقم الحديث ۱۷۱۰

[2] رقم الحدث ۴۰۷۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۷۳/۳ رقم الحديث (۱۰۷-۲۱۱۷) وابوداود في السنن ۵۷/۳ رقم الحديث ۲۵۶۴

إِبِلَ الصَّدَقَة (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

يې د زكوة اوښان داغل.

**توضيح: الميسم**: داغ كولو والا آلې ته ميسم ويلى شوي ده. لكه سيخ وغيره وي. دا داغ لګول په بدن باندې نه ؤو، ځكه هيڅ تعارض نشته دى. د بدن نورې برخې مرادى دى. (مرقات ۶۸۲/۷)

**ليحكمه**: د تحنيک عمل دا دى چې سړى په خپله خوله كې كجورې وژؤوئ او لاړې يې كړي او بيا هغه نوې پيدا شوي ماشوم په تالو كې كېږدي او هغه پرې وركلک كړي چې د نيک كس مباركې لاړې د ماشوم خوراک شي. (مرقات ۶۸۱/۷)

﴿۱۷﴾وَعَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ:

او حضرت هشام ابن يزيد د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت كوي چې هغې وويل زه يو ورځ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په

دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي

خدمت كې حاضر شوم، نو هغه وخت نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د څاروُ په غوجل كې ؤو. ما وليدل چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

مِرْبَدٍ فَرَأَيْتُهُ يَسِمُ شَاءَ حسبته

د بزو وغيره باندې اندامونو له داغ وركول. هشام وايي چې زما ګمان دى چې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان كړى ؤو

قَالَ: فِي آذانها (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه بزو وغيره غوږونو باندې داغونه لګول.

## الفصل الثاني

## هر هغه شى چې وينه تويوي ذبح پرې جائز ده

﴿۱۸﴾عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ

او د حضرت عدي ابن حاتم نه روايت دى چې هغې عرض وكړو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ماته دا او ايه چې

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۷۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۶۶/۳ رقم الحديث ۱۵۰۲ ومسلم في ۱۶۷۴/۳ رقم الحديث (۱۰۹-۲۱۱۹)

([2]) رقم الحديث ۴۰۸۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۵۳/۹ رقم الحديث ۵۵۴۲ ومسلم في ۱۶۷۴/۳ رقم الحديث (۱۱۱-۲۱۱۹)

أَحَدُنَا أَصَابَ صَيْدًا وَلَيْسَ مَعَهُ سِكِّينٌ

که مونږ کې یو کس د يو ښکار ونيسي او هغه وخت د هغې سره چاړه نه وي نو آيا هغه يې د کاڼي

أَيَذْبَحُ بِالْمَرْوَةِ وَشِقَّةِ الْعَصَا؟ فَقَالَ:

په يو ټوټه يا د يو لرګي په توټکي هغه ښکار ذبح کولی شي؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل چې

أَمْرِرِ الدَّمَ بِمَ شِئْتَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1]

په کوم څيز دې خوښه وي بسم الله پرې اوايه او وينه تويه کړه.

**توضيح:** **المروة:** د کاڼي سپينه ټوټه مراد ده. چې تېره وي.

**شقة العصاء:** د لرګي تراشل او توټکی مراد دی. چې تيره وي.

**امْرِرالدم:** يعنې وينه تويه کړه چې په څيز دې خوښه وي. د حديث د دې عموم نه احنافو جدا شوی غاښ او جدا شوی نوک د ذبح کولو د جواز باندې استدلال کړی دی. يعنې بسم الله اوايه او وينه تويه کړه. (مرقات ۶۸۴/۷)

## د ذبح اضطراري حکم

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي الْعُشَرَاءِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ

او حضرت ابو العشراء د خپل پلار نه نقل کوي چې هغې عرض وکړو يا رسول الله ﷺ! آيا د

أَمَا تَكُونُ الذَّكَاةُ

شرعي ذبحې تعلق مرئ او سينې د سر په مينځنئ برخې سره دی. يعنې شرعي توګه کې ذبح صرف

إِلَّا فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ؟

هغې ته ويلی کېږي چې د ښاروي تالو او د سينې په مينځ کې د زخم سره وينه تويه شي. نبي ﷺ

فَقَالَ: لَوْ طَعَنْتَ فِي فَخِذِهَا لَأَجْزَأَ عَنْكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ

وفرمايل که ته د ښکار پتون ته هم جراحت ورسوې نو ستا لپاره به کافي وي. امام ابو داؤد فرمايي

وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهَذِهِ ذَكَاةُ

چې دا يعنې حديث کې ذکر شوې ذبح اجازت ورکول د هغه ښاروي متعلق دی چې کوهې کې پرېوتی وي

---

[1] رقم الحديث ۴۰۸۱ أخرجه ابوداود في السنن ۲۴۹/۳ رقم الحديث ۲۸۲۴ والنسائي في ۱۹۴/۷ رقم الحديث ۴۳۰۴.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْمُتَرَدِّي | وَقَالَ | التِّرْمِذِيُّ: | هٰذَا | فِي | الضَّرُورَةِ[1] |

يعنې دا د ذبح اضطراري د صورت حكم دی. او امام ترمذی فرمايي چې دا ضرورت د حالت حكم دی.

**توضيح** **اماتكون**: يعنې آيا ذبح صرف سينې او د مرئ په مينځ كې كېږي بل هيڅ ځای كې نه وي؟ دې جمله كې استفهام دی. د دې په جواب كې ذبح اضطراري ته عموم ويلی دی چې اضطراري ذبح كې زخم چرته هم ولګول شي پوره شي. د مرئ سره خاص نه دی. البته اختياري ذبح مرئ كې وي. (مرقات ۶۸۵/۷)

﴿۲۰﴾وَعَن عدي بن حَاتِم أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او د عدب ابن حاتم نه روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل كومو ښكارو ته چې تاسو زده كړې وي

مَا عَلَّمْتَ مِنْ كَلْبٍ أَوْ بَازٍ ثُمَّ أَرْسَلْتَهُ وَذَكَرْتَ

هغه كه سپی وي يا باز وي او تاسو هغوی كې يو ښكار پسې پرېښودلو او د پرېښودلو وخت كې مو د

اسْمَ اللهِ فَكُلْ مِمَّا أَمْسَكَ عَلَيْكَ. قُلْتُ:

الله نوم واخستلو نو تاسو هغه ښكار وی خورئ چې كوم تاسو له هغه سپي يا باز نيولی دی. ما عرض وكړو چې اګر

وَإِنْ قَتَلَ؟ قَالَ: إِذَا قَتَلَهُ وَلَمْ يَأْكُلْ

كه هغه ښكار وژلی وي؟ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل اګر كه هغه سپی يا باز ښكار وژلی وي او خپله يې دهغې

مِنْهُ شَيْئًا فَإِنَّمَا أَمْسَكَهُ عَلَيْكَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

نه هيڅ نه وي خوړلی، نو د دې مطلب د دې نه بغير بل هيڅ نشي كېدی چې هغې ښكار ستاسو لپاره نيولی دی.

﴿۲۱﴾وَعَنْهُ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرْمِي الصَّيْدَ

او حضرت عدب بن حاتم فرمايي چې ما عرض وكړو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! زه ښكار په غشو ولم او

فَأَجِدُ فِيهِ مِنَ الْغَدِ سَهْمِي

بيا بله ورځ (چې هغه ښكار كوم ځای كې پروت وي او ماته ملاو شي نو) هغې كې خپل و مومم (آيا زه هغه ښكار

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۸۲ أخرجه ابوداود في السنن ۲۵۰/۳ رقم الحديث ۲۸۲۵ والترمذي في ۶۲/۴ رقم الحديث ۱۴۸۱

([2]) رقم الحديث ۴۰۸۳ أخرجه ابوداود في السنن ۲۷۱/۳ رقم الحديث ۲۸۵۱.

قَالَ: إِذَا عَلِمْتَ أَنَّ سَهْمَكَ
خوړلی شم؟) نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دې صورت کې که ته پوهه شي چې دا ښکار هم ستا غشي وژلی
قَتَلَهُ وَلَمْ تَرَ فِيهِ
دی او هغه ښکار کې د بل چا د تير نښان ونه مومې نو هغه خوړلی شي او که په ښکار کې د کوم درنده غاښ
أَثَرَ سَبُعٍ فَكُلْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1]
يا د پنجې وغيره نښان ومومې يا د بل غشي علامت ومومې نو په هغه صورت کې يې مه خوره.

## د کوم سپي چې ذبيحه حرامه ده د هغه سپي ښکار هم حرام دی

﴿۲۲﴾وَعَنْ جابِرٍ قَالَ: نُهِينَا عَنْ صَيْدِ كَلْبِ الْمَجُوسِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]
او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د مجوسيانو د سپي ونيولي شوي ښکار د خوړلو نه منع کړی شوي يو.

**توضيح**: که ښکاروی ژوندی وي او مسلمانان هغه ذبح کړي نو حلال به شي اګر که د مجوسې سپي نيولي وي خو که مړ شو نو حرام دی.

﴿۲۳﴾وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا
او حضرت ابو ثعلبه خشني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما عرض وکړو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! مونږ اکثر د
أَهْلُ سفر تمر الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى وَالْمَجُوسِ
سفر کونکو خلکو نه يو. زمونږ لاره په يهوديانو، عيسايانو او د مجوسيانو په اباديانو باندې هم وي. هغه وخت د هغوی د
فَلَا نَجِدُ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ
لوښو نه بغير نور لوښي مونږ سره نه وي، نو آيا مونږ د هغوی په لوښو کې خوراک څښاک کولی شو؟
قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا غَيْرَهَا فَاغْسِلُوهَا بِالْمَاءِ
نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل که د هغوی د لوښو نه بغير تاسو ته نور لوښي نه ملاوېږي نو د هغوی لوښي ووينځئ

---

(1) رقم الحديث ۴۰۸۴ أخرجه الترمذي في السنن ۵۵/۴ رقم الحديث ۱۴۶۸، والنسائي في ۱۹۳/۷ رقم الحديث ۴۳۰۰

(2) رقم الحديث ۴۰۸۵ أخرجه الترمذي في السنن ۲۴۰/۴ رقم الحديث ۱۴۶۶ وابن ماجه في ۱۰۷۰/۲ رقم الحديث ۳۲۰۹

ثُمَّ كلوا فِيهَا وَاشْرَبُوا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

او اوچ يې کړئ او بيا په کې خورئ او څښئ.

**توضيح**: د دې باب حديث نمبر ۳ کې د زير بحث حديث او د اهل کتابو د لوښو تفصيل تير شوی دی.

## د غير مسلمو د لاس خوراک حلال دی

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت قبيصه بن هلب رضي الله عنه د خپل پلار نه روايت کوي چې هغې وويل چې ما د نبي عليه السلام نه د |
| عَنْ طَعَامِ النَّصَارَى وَفِي رِوَايَةٍ: |
| عيسايانو د خوراکونو باره کې وپوښتل چې مونږه يې وخورو يا نه؟ او يو روايت کې داسې دي چې د دې باره کې |
| سَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ: إِنَّ مِنَ الطَّعَامِ طَعَامًا |
| يو کس د نبي عليه السلام نه مسئله وپوښتله نو هغې عرض وکړو خوراکونو کې يو خوراک يعني د يهوديانو او د عيس... |
| أَتَحَرَّجُ مِنْهُ فَقَالَ: لَا يَتَخَلَّجَنَّ فِي صَدْرِكَ شَيْءٌ |
| خوراک داسې دی چې زه تيرينه پرهيز کوم. نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې ستا په زړه کې يو څيز |
| ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ. وَأَبُو دَاوُد[2] |
| يعنې شک او شبه پيدا کېدل پکار نه دي. تا د دې عمل په ذريعې د عيسائيت مشابهت اختيار کړی دی. |

**توضيح**: **اتحرج**: زه تنګسيا محسوسومه او بيا ترېنه ځان ساتم. (مرقات ۷/۶۸۸)

**لايتخلجن**: دا د خلجا نه دی. يعنې ستا په زړه کې هيڅ خلجان او شک تيريدل پکار ندي.

**ضارعت**: دا د مضارعت مشابهت په معنی کې دی يعنې دې طريقې سره تا د نصاری مشابهت اختيار کړو، ځکه هغوی ځان باندې ډېره تنګې کوي. او لږ شک راتلو په وجه خپل ځان باندې حلال خوراک حرام کړي. مسلمانانو له پکار ده چې ترکومې پورې د حرمت يقين نه وي صرف د شک په بنياد هيڅ يو شی مه حراموئ. پوښتنه کونکی دا چې عدي بن حاتم ؤو چې مخکې عيسائی ؤو نو ځکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم د نصاری ذکر کړی دی. (مرقات ۷/۶۸۸)

---

(1) رقم الحديث ۴۰۸۶ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۳ رقم الحديث ۱۴۶۴ وأحمد في المسند ۴/۱۹۳.

(2) رقم الحديث ۴۰۸۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۴۷ رقم الحديث ۳۷۸۴ والترمذي في ۴/۱۱۳ رقم الحديث ۱۵۶۵

## د مجثمة خوراک منع دی

﴿۲۵﴾وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الْمُجَثَّمَةِ
او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مجثمه د خوراک نه منع فرمايلې ده او مجثمه هغه
وَهِيَ الَّتِي تُصْبَرُ بِالنَّبْلِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]
ښکار وي ته وايي چې کوم وتړلی شي او د نښانې پشان ودرولی شي او بيا په تير باندې ؤويشتل شي.

**توضيح**: دا چې دلته ذبح اختياري کېدی شي. د دې په ځای ذبح اضطراري اختيارول جائز نه ده. ښکاروی مردار دی او دا عمل ظلم دی. مجثمه هغه ژوندی ښکاروي وي چې تړلی شوی په نښنه کړی شي. د دې نه مخکې مصبرة او د غرضاً کوم الفاظ تير شوې دي دا ټول د يو مفهوم عمل دی.

## هغه ښکاروي چې خوراک يې حرام دی

﴿۲۶﴾ وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ كُلِّ
او حضرت عرباض ابن ساريه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خيبر په ورځ د دې ښکارو د خوړلو نه منع
ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَعَنْ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَعَنِ الْمُجَثَّمَةِ
وکړه پنجې والا ماتونکی درنده، پنجې والا مارغه، ...ورني خرونو غوښه، مجثمه، او خليسه، او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په
وَعَنِ الْخَلِيسَةِ وَأَنْ تُوطَأَ الْحَبَالَى حَتَّى يَضَعْنَ مَا فِي
جهاد کې د نيولی شوؤ د هغه وينځو سره د جماع کولو نه هم منع کړې ده چې حامله وي چې تر څو پورې هغه ما
بُطُونِهِنَّ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى:
ونه زيږوی کوم چې د هغې په خيټه کې دی. حضرت محمد ابن يحيى (چې د امام ترمذی شيخ او استاذ دی او د حديث
سُئِلَ أَبُو عَاصِمٍ عَنِ الْمُجَثَّمَةِ
په راويانو کې يو راوي دی وايي چې زما شيخ او استاذ حضرت ابو عاصم رحمه الله نه د مجثمه باره کې وپوښتلی
فَقَالَ: أَنْ يُنْصَبَ الطَّيْرُ أَوِ الشَّيْءُ فَيُرْمَى
شوه نو هغې وفرمايل چې چې مرغی وغيره وتړلی شي او بيا په غشي ؤويشتلی شي. دغه ښاند

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۸۸ أخرجه الترمذي في سنن ۵۹/۴ رقم الحديث ۱۴۷۳

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَسُئِلَ | عَنِ | الْخَلِيسَةِ | فَقَالَ: الذِّئْبُ |
| حضرت ابو عاصم رحمه الله نه د حليه معنى باره كې وپوښتلې شو نو هغې وويل چې د دې مطلب دا دی چې | | | |
| أَوِ السَّبُعُ | يُدْرِكُهُ الرَّجُلُ | فَيَأْخُذُ | مِنْهُ |
| لېوه يا بل كوم درنده ښكاروي يو ښكاروي نيولې وي او بيا يو كس د هغه درنده هغه ښكاروي قبضه كړي | | | |
| فَيَمُوتُ فِي يَدِهِ قَبْلَ أَنْ يذكيها. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] | | | |
| او هغه د ذبح كولو نه مخكې د هغه كس په لاس كې مړ شي. | | | |

**توضيح**: **ذی ناب**: هغه درنده ته ذی باب وايي چې د هغې نوكان وي د رباعې غاښونو سره يې ښي او چپ اړخ ته تېره غاښونه وي او په هغې نور ښكاروي ښېرئ، لكه زمری، لېوه، پړاګ، ايږه، بيزو، خنزير، لومبړه، او بجو وغيره دي.

**من السباع**: د دې مطلب دا دی چې د هغه د دې په ذريعه ښېرل كوي او نور ښكاروي پرې ښېروي. د من السباع دا لفظ چې څنګه د درنده ګانو سره لږي دغه شان د ذی مخلب مارغانو سره هم لږي.

**ذی مخلب**: ميم باندې كسره ده. خا ساكن دی. لام باندې فتحه ده. پنجې ترېنه مراد دي. يعنې كوم مارغان چې په پنجو باندې ښېرول كوي لكه باز، شكره، ټپوس، چرغ، او خر په پنجو باندې نور مارغان ښېروي. يعنې ذی ناب او ذی مخلب هغه صورت كې حرام دي چې هغه د ناب او د مخلب ښكار كوي. كه ښكار نه كوي نو حرام نه دي لكه اوښ ذی ناب دی خو د ناب ښكار نه كوي.

**الحمر الاهلية**: د دې نه كورنې خره مراد دي. لهذا ځنګلې خره د دې نه اوتل ځكه هغه حلال دي چې ګوره خر (زيبره) ورته وايي. چې د جمعيت د جنډې په رنګ كې وي. افريقه د دې نه ډكه ده. (مرقات ۶۸۹/۷)

**عن الخليسه**: يعنې زمری يا لېوه مثلاً د بزې ښكار وكړي او يو انسان ترېنه هغه راخلاصه كړه خو هغه بزه مړه شوې ده. هغې ته خليه وايي. دا چې دا مرداره شوې ده نو ځكه مسلمانانو له د دې خوړل حرام دي. (مرقات ۶۸۹/۷)

**وان توطأالحبالى**: يعنې كه د چا به لاس كې وينځه راغله خو حامله ده، نو د حمل زېږېدلو پورې د هغې سره جماع جائزه نه ده. د دې نه منكوحه حامله ښځه مراد نه ده. كه وينځه حامله نه وي نو تر د يو حيض پورې انتظار ضروري دی. دا په جهاد كې په لاس راغلې والا د وينځې خبره ده. (مرقات ۶۸۹/۷)

---

[1] رقم الحديث ۴۰۸۹ اخرجه الترمذي في ۵۹/۴ رقم الحديث ۱۴۷۴ وأحمد في المسند۴/۱۲۷.

## د شریطه خوراک منع دی

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ شَرِيطَةِ |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راویان دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شریطه |
| الشَّيْطَانِ. زَادَ ابْنُ عِيسَى: هِيَ الذَّبِيحَةُ يُقْطَعُ |
| شیطان نه منع کړې ده. ابن عیسی یو راوي دا نور بیان کړو چې شریطه شیطان دا دی چې د ځاروي مرئ او پاس |
| مِنْهَا الْجِلْدُ وَلَا تُفْرَى الْأَوْدَاجُ ثُمَّ تُتْرَكُ حَتَّى تَمُوتَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| څرمن غوڅه کړی شي او د هغې تول رګونه غوڅ نه کړی شي او بیا هغه پرېښودلی شي تر دې چې هغه مړ شي. |

**توضیح: شریطة الشیطان:** دا د جاهلیت په ناجائزه ذبائحو کي یو وه. هغه دا سې چې په مرئ کې به یې ورله لږ رګ غوڅ کړو او نبنان به یې پرې جوړ کړو او پرې به یې ښودله. ټول رګونه به یې ورله نه غوڅول، هغه به په ترپکو ترپکو مړ شو. دا د شیطان نبنان دی چې ناجائز دی، ځکه دا ډېر زیات ظلم دی. او د رګونه نه دم مسفوح نه وځي، نو حرام مردار دی.

**ولا تفری الاوداج:** مرئ کې څلور رګونه وي. چې هغې سره د ذبح شرعې تعلق دی. د یو نوم حلقوم دی. دې سره د سا تعلق دی. درمختار کې دې ته راجح او صحیح ویل شوی دی. د بل نوم المری دی. چې د هغې سره د خوراک او څښاک تعلق دی، نورو دوؤ ته دجان وایي. چې د مرئ مخکنئ رخه کې وي. حلقوم او د مرئ په مینځ کې وي. دې ته د ساه رګ هم وایي. دې څلور واړو کې کوم درې غوڅ شي نو شرعې ذبح به پوره شي. حدیث کې د اوداج لفظ څلور رګونو لپاره ویل کېږي. که دوه رګونو غوڅ شي او باقې دوه وي نو ذبح نه کېږي.

**ولا تفری:** د مجهول صیغه ده. **الفری** د غوڅولو معنی کې دی. هغه د ژوندو ځاروؤ څرمن د غوڅولو او ویستلو لپاره ویل کېږي.

## د خیټې د بچي د ذبیحې حکم

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ذَكَاةُ الْجَنِينِ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې د مور ذبح کول، د هغې د خېټې بچي هم |

---

[1] رقم الحدیث ۴۰۹۰ أخرجه ابوداود في السنن ۳/۲۵۱ رقم الحديث ۲۸۲۶ وأحمد في المسند ۱/۲۸۹

| |
|---|
| ذَكَاةُ أُمِّهِ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد والدارمي [۱] وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيّ عَن أَبِي سعيد [۲] |
| ذبح کول هم دي. (ابو داؤد، دارمي) ترمذی دا روایت دی حضرت ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه نقل کړی دی. |

**توضیح**: ذکاة الجنین ذکاة امه: یعنې د مور ذبح د هغې د خېټې د بچې ذبح ده. تفصیل داسې دی چې که چرې حامله ځاروی ذبح کړی شوی وي او د ذبحې نه وروسته د هغې د خېټې نه بچی راؤتلو نو د هغې دوه صورتونه دي. یا به هغه بچی ژوندی وي یا به مړ شوی وي. که ژوندی وي نو اتفاقاً د هغې ذبح کول ضروري دي. ذبح کولو نه بغیر به حلال نه وي. که بچی مړ شوی وي نو دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (مرقات ۶۹/۷۱)

**د فقهاؤ اختلاف**: جمهور او د صاحبینو په نزد د ذبح کولو نه بغیر هغه بچی حلال او پاک دی. د مور ذبح کېدل د هغې بچی لپاره کافي دي، خو په دې شرط چې نام الخلقت وي او د هغې په بدن ویختان راغلې وي. امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي چې داسی بچی مردار دی او د هغې خوړل حرام دي.

**دلائل** : ذکر شوی حدیث د جمهورو دلیل دی. ذکاة امه مرفوع ګڼي. چې هغوی ترېنه استدلال کوي. یعنې د جنین(بچي) ذبح همدغه ده چې د هغې مور ذبح شي. د جمهورو دویم دلیل قیاس دی. هغوی دا قیاس کوي چې ګوره سا اخستلو کې د خېټې بچی د مور تابع وي. اخستلو او خرخولو کې د مور تابع دی، خوراک څښاک کې او ژوند او مرګ کې کې دا بچی د مور تابع دی. لهذا ذبح کې هم دا بچی د مور تابع پکار دی، ځکه دا بچی د مور جزء متصل دی. د جدا ذبح کولو ضرورت نشته دی. امام ابو حنیفه رحمه الله خپل استدلال کې فرمایي چې که دا بچی د مور په ذبح او د هغې د مرګ نه مخکې مړ شوی وي نو دا میتة د مردار په حکم کې دی. او که د مور د مرګ نه وروسته سا بندتلو سره مړ شوی وي نو دا منخنقة د سا وتلو والا ځاروي په حکم کې دی. او دا دواړه حرام دي. لهذا جنین حرام دی.

**جواب**: د زیر حدیث مطلب د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد هغه نه دی کوم چې جمهورو ګڼلی دی بلکې دا امام صاحب په نزد دا حدیث په تشبیه باندې محمول دی یعنې **"ذكاة الجنين كذكاة امه"** د دې مطلب واضح دی چې څنګه یې مور ذبح کړی شوې ده دغه شان د هغې بچی هم ذبح کړه. د ذبح کولو طریقه یو شان ده. دې بچی باندې رحم کول سره د ذبح کولو نه بغیر مه پرېږدئ. دغه شان دا

---

([۱]) رقم الحديث ۴۰۹۱ أخرجه ابوداود في السنن ۲۵۱/۳ رقم الحديث ۲۸۲۷،والدرامي في ۱۱۵/۲ رقم الحديث ۱۹۷۹.

([۲]) رقم الحديث ۴۰۹۲ أخرجه الترمذي في السنن ۶۰/۴ رقم الحديث ۱۴۷۶.

خیال مه کوئ چې دومره وړوکی بچی د ذبح کولو لپاره حلال نه دی، لکه څنګه چې ځينې دا حلال نه ګڼي. د دې مطلب تائید په حدیث کې د ذکاة امه د منصوب لوستلو نه هم کېږي. چې منصوب نزع الخافض دی.

**ای کذکاة امه**، او د دې مطلب تائید د راتلونکي حدیث نمبر ۲۹ نه هم کېږي. چې کوم کې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د جنین د غورځولو او د نه خوړولو پوښتنه کړې ده، ځکه دا حدیث د جمهورو د مطلب نه دی. باقي د بچی د ذبحې معامله اخستلو او خرڅولو وغیره باندې قیاس کول جائز نه دي، ځکه ذبح کې وينه تویل کېږي. دا په اخستلو او خرڅولو باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دی. دغه شان دا معامله د مباح او محرم ده. داسې صورت کې ترجیح محرم ته ورکول کېږي.

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾وَعَنْ أَبِي سعيدٍ الخدريِّ قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| او حضرت ابوسعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ عرض وکړو یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! کله چې |
| نَنْحَرُ النَّاقَةَ ونذبح الْبَقَرَةَ وَالشَّاةَ فنجد فِي بَطْنِهَا جَنِينًا |
| مونږ اوښ ذبح کوو، یا غوا او بزه ذبح کوو نو اکثر وختونو کې مونږ د هغه ذبیحه په خیټه کې مړ بچی اوينو. |
| أَنُلْقِيهِ أَمْ نَأْكُلُهُ؟ قَالَ: كُلُوهُ |
| آیا مونږ هغه غوزار کړو او که وې خورو؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې که ستاسو خوښه وي نو |
| إِنْ شِئْتُمْ فَإِنَّ ذَكَاتَهُ ذَكَاةُ أُمِّهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| هغه خورئ ځکه د هغې د مور ذبح کېدل د هغې بچی ذبح هم ده. |

## بې وجې څاروی یا مارغه وژل جائز نه دي

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او د حضرت عبدالله ابن عمرو ابن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل. |
| مَنْ قَتَلَ عُصْفُورًا فَمَا فَوْقَهَا بِغَيْرِ حَقِّهَا سَأَلَهُ اللهُ |
| که یو یوه مرغۍ یا د هغې نه وړوکی یا غټ بله کومه مرغۍ په ناحقه مړه کړي نو الله به پوښتنه کوي |
| عَنْ قَتْلِهِ قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا حَقُّهَا؟ |
| د هغه کس نه د ناحق وژلو باره کې. عرض وکړی شو یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! او د هغه مرغۍ وغیره حق څه دی؟ |

---

[1] رقم الحديث ۴۰۹۳ اخرجه ابوداود في السنن ۲۵۲/۳ رقم الحديث ۲۸۲۷ وابن ماجه في ۱۰۶۷/۲ رقم الحديث ۳۱۹۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: أَنْ | يَذْبَحَهَا | فَيَأْكُلَهَا | وَلَا | يَقْطَعَ |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې هغه ذبح کړی شي. د نورو ښکار ؤ پشان دې نه وژلی کېږي. او بيا هغه وخوړلی شي.

رَأْسَهَا فَيَرْمِيَ بِهَا. رَوَاهُ أَحْمد وَالنَّسَائِيُّ والدارمي[1]

د نه چې د هغې نه سر غوڅ کړئ او بيا يې غوزاره کړئ.

**توضيح**: د بو ښکاروي ژوند اخستل لويه خبره او لويه حادثه ده. د جائز مقصدونو نه بغير هغې باندې اقدام کول پکار نه دی. جائز مقصد دا دی چې هغه ذبح کړی شي او وخوړلی شي. دا نه چې د لوبو ټوقو لپاره استعمال کړی شي او استعمال نه کړی شي. د ضرورت لپاره وژل هم د جائز مقصدونو کې شامل دی. دې حديث کې د عصفور اړخ ته يو ځل د مؤنث اړخ ضمير راجع شوی دی او په دويم ځل د مذکر اړخ ته ضمير راجع شوی دی. علامه طيبي رحمه الله فرمايي چې د جنس په اعتبار سره مؤنث ته ضمير راجع شوی دی. او د لفظ په اعتبار سره مذکر ته ضمير راجع شوی دی.

يا دې کې د "زيدٌ هاهو" قاعده ده چې د کلمة په اعتبار سره مؤنث دی او د لفظ په اعتبار سره مذکر دی. د "فما فوقها" د تحقير لپاره هم کېدی شي چې مرغۍ وي يا د مرغۍ نه وړوکی ښکاروی وې او د غټ اړخ ته هم اشاره کېدی شي چې مرغۍ وي يا د مرغۍ نه غټه وي.

## د ژوندي ښکاروی نه غوڅه کړی شوې غوښه مرداره ده

﴿۳۱﴾عَن أَبِي وَاقِد اللَّيْثِيِّ قَالَ: قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ

او حضرت ابوواقد ليثی فرمايي چې کله نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مکې نه هجرت وکړو او مدنيې ته راغلو نو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَهُمْ | يَجُبُّونَ | أَسْنِمَةَ | الْإِبِلِ | وَيَقْطَعُونَ | أَلْيَاتِ | الْغَنَمِ |

هغه وخت به مدينه کې خلکو داسې کول چې د اوښانو کوفونه او کوناټې به يې غوڅول. او بيا به يې هغه خوړلو،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: مَا | يُقْطَعُ | مِنَ | الْبَهِيمَةِ | وَهِيَ | حَيَّةٌ |

نو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کوم يو څيز د داسې ښکاروي نه غوڅ کړی شي چې ژوندی وي، نو هغه

فَهِيَ مَيْتَةٌ لَا تُؤْكَلُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[2]

غوڅ کړی شوی څيز مردار دی، هغه مه خورئ.

---

(1) رقم الحديث ۴۰۹۴ أخرجه النسائي في السنن ۲۳۹/۷ رقم الحديث ۴۴۴۵ والدارمي في ۴/۲ رقم الحديث ۱۹۷۸.

(2) رقم الحديث ۴۰۹۵ أخرجه ابوداود في السنن ۲۷۷/۳ رقم الحديث ۲۸۵۸ والترمذي في ۶۲/۴ رقم الحديث ۱۴۸۰.

**توضیح**: يجبون: چې يجب د غوڅولو په معنی کې دی اسنمة د سنام جمع ده. اوښ او غوايا وغيره کوهان ته وايي. (مرقات۱ ۷/ ۶۹)

**اليات**: د الية جمع ده. د ګډې لکئ، کوناټي او لم ته وايي. د جاهليت زمانه کې چې به کله د عربو غوښو ته ضرورت ؤو، نو د ټول څاروي په ځای به يې د ژوندې او کوف او ژوندې ګډې کوناټي غوڅول. او غوښه به يې استعمالوله. اسلام د دې ظالمانه کار نه منع وکړه او دغه شان جدا شوې ټوټه يې حرام کړه، ځکه دې کې دم مسفوح (وينه بهيدونکي) شامله ده. (مرقات۱ ۷/ ۶۹)

## الفصل الثالث

## په هرې تيرې آلې باندې ذبح جائز ده

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي حَارِثَةَ أَنَّهُ كَانَ يَرْعَى لِقْحَةً بِشِعْبٍ |
| حضرت عطا ابن يسار قبيله بني حارث د يو کس نه روايت کوي چې هغې يو ورځ اوښه د أحد د غر |
| مِنْ شِعَابِ أُحُدٍ فَرَأَى بِهَا الْمَوْتَ |
| په يوه دره څراوله چې د هغې اوښې د مرګ آثار يې موندل يعني هغې وليدل چې اوښه په څه وجه مړه کېږي. |
| فَلَمْ يَجِدْ مَا يَنْحَرُهَا بِهِ |
| هغه وخت هغې ته هيڅ داسې څيز ملاؤ نه شو چې د هغې په ذريعه يې اوښ ذبح کړې وی. آخر دا چې هغې |
| فَأَخَذَ وَتِدًا فَوَجَأَ بِهِ فِي لَبَّتِهَا حَتَّى |
| يو ميخ را اوچت کړو او د هغې څوکه يې د اوښې په سينه کې او منډله او وينه يې ترېنه توبه کړه. بيا هغې |
| أُهْرَاقَ دَمَهَا ثُمَّ أَخْبَرَ |
| دا واقعه نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته بيان کړه او د هغې د غوښې باره کې يې ترېنه وپوښتل چې دې صورت کې د هغې خوړل څنګه دي؟ |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَمَالِكٌ وَفِي رِوَايَتِه: |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د غوښې خوړلو اجازت ورکړو. او يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې آخر هغې |
| قَالَ: فذكاها بشظاظ[1] |
| يو تېره لرګي باندې ذبح کړو. |

[1] رقم الحديث ۴۰۹۶ أخرجه ابوداود في السنن ۳/ ۲۴۹ رقم الحديث ۲۸۲۳ ومالک في المؤطا ۲/ ۴۸۹ رقم الحديث ۳ .

**توضیح**: بلاربي او ښې ته "لقحة" وايي. (مرقات ۷۵ ۶۹/۷)

**وتداً**: وتد میخ ته وايي. دلته غټ او د څوکې والا میخ مراد دی. چې د تیر په توګه استعمالیدلی شي. چې نحر پرې ممکن وي.

**لبتها**: مرئ او سینې ته وايي. (مرقات ۶۹/۷۶)

**شظاظ**: هغه لرګي ته شظاظ وايي چې دواړو اړخونه یې د څوکې والا وي. (مرقات ۶۹/۷۶)

## د دریاب د ځارو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: مَا من دَابَّة |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د او بو هیڅ یو ځاروی داسې نشته |
| إِلَّا وَقَدْ ذَكَّاهَا اللهُ لِبَنِي آدَمَ . رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ[1] |
| دی چې الله د بنی آدم لپاره ذبح کړی نه وي. |

**توضیح**: یعنې دریاب کې څومره ځاروي دي الله هغه ذبح کړي دي او هغه د انسان لپاره حلال دي. د دې دریابې ځارو نه مراد ماهیان دي، ځکه هر قسمه ماهي د ذبحې نه بغیر حلال دی. د ماهي نه بغیر سمندري ځارو باره کې د فقهاؤ اختلاف دی. جمهور یې حلال ګڼي نو د هغوی په نزد دا حدیث د ټول دریابې ماهیانو لپاره شامل دی، خو احناف صرف ماهیانو ته حلال وايي، نو د هغوی په نزد دې حدیث کې صرف ماهي شامل دی. تفصیل سره اختلاف جلد اول ص ۶۳۰ باندې لیکلی شوی دی. (مرقات ۶۹/۷۶)



(۱) رقم الحديث ۴۰۹۷ أخرجه الدارقطني في السنن ۲۶۷/۴ رقم الحديث ۴ في كتاب الصيد والذبائح .

# باب ذکر الکلب

## د سپي متعلق د احکاماتو بیان

دي باب کې به هغه حدیثونه بیانېږي. چې د سپي متعلق احکامات به ترینه معلومېږي چې کوم قِسمه سپی ساتل جائز او کوم قِسمه سپی ناجائز دی او کوم قِسم سپی وژل جائز دی. دورِ جاهلیت کې د خلکو د سپو سره ډېره مینه وه، لکه څنګه چې نن سبا ده. د دې مینې د ختمولو په غرض د اسلام په اَبتداء کې په لویه کچه د سپو د وژلو عملیات شروع شول. چې د خلکو زړونو کې کرکه پیدا شوه نو بیا د یَو قِسمه سپو د ساتلو اجازت ملاؤ شو. او شوقي سپو د ساتلو ممانعت وکړی شو. د ټولو حدیثونو نه معلومېږي چې د درې قِسمه سپو ساتنې اجازت دی.۱: څارؤ د حفاظت لپاره ۲:ښکار لپاره۳: پټي د حفاظت لپاره. فقهاؤ دې سره د کور د چوکیدارئ سپې ذکر کړی دی.

## الفصل الاول

### بې له ضرورته سپي ساتل د نقصان سبب دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم کس چې د څارؤ د ساتلو والا سپې او د |
| أَوْ ضَارٍ نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطَانِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| ښکاري سپې نه بغير بل سپې ساتې، نو د هغې د عملونو د ثواب نه هره ورځ دوه قیراطه برابر کمی کوي. |

**توضیح**: **اقتنى**: د ساتلو په معنی کې دی. **كلب ماشية**: د بزو په رمه کې یو سپی وي چې د بزو د حفاظت لپاره ساتلی کېږي. دې ته کلب ماشیة وایي. (مرقات۶۹/۷ ،الکاشف ۱۱۱/۸)

**او كلب ضار**: دا هغه ښکارې سپې ته وایي چې د ښکار دومره شوق لري ګویا کې ښکار د هغې طبیعت ثانیه جوړ شوی وي. ځینې روایتونو کې دا لفظ ضاریاً راغلی دی. ځینو کې ضارې راغلی دی. ځینو کې ضار راغلی دی. د ټولو نه مراد ښکاري سپی دی. علامه طیبي فرمایي چې د ضار نه اول رجل موصوف هم مخذوف منل کېږي. یعنې کلب رجل صائد د ښکار کولو سړې والا سپی. (مرقات۶۹/۷،الکاشف : ۱۱۱/۸)

---

([1]) رقم الحديث ۴۰۹۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۰۷۹ رقم الحديث ۵۴۰۰ ومسلم في ۱۲۰۱/۳ رقم الحديث ۱۵۷۴/۵۰)

قیراطان: دا تثنیه ده. د دې مفرد قیراط دی. قیراط د یو وزن نوم دی. چې د نیم دانګ یا د ځینو په قول دینار د ۶/۴ یا د ځینو په قول د دینار د لسمې برخې د نیمې برابر وي. د ځینو په قول یو قیراط د جوارو د پنځه دانو برابر دی. قیراط د کرکې په توګه د وړو څیزونو لپاره هم ویل کېږي. او د تعظیم لپارغټو څیزونو لپاره هم ویل کېږي. شوقیه سپې ساتلو باندې ځکه ثواب کمېږي چې د رحمت فرښتې هغه کور ته نه راځي، نو ثواب متاثره کېږي. دویم دا چې سپی خلکو ته ضرر ورکوي، خوړل کوي، غاپې، وېرول کوي نو د ثواب نقصان کېږي. (مرقات۸ ۶۹/۷)

**سوال:** ځینو حدیثونو کې د یو قیراط ثواب د کمولو ذکر دی او ځینو کې د دوه قیراط د کمولو ذکر دی. چې په ظاهره تعارض دی. **جواب:** د دې جواب دا دی چې د دې تعلق د سپې د ضرر رسولو سره دی. که چرې سپې زیات ضرر رسوي نو دوه قیراطه ثواب ضایع شي. که کم ضرر رسوې نو یو قیراط ثواب کمېږي. دویم جواب دا دی چې د دې تعلق مکان او مقام سره دی چې مقدس او مبارک مقاماتو کې سپې ساتلو سره دوه قیراطه کمېږي او عامو مقاماتو کې یو قیراط کمېږي. اول د یو قیراط وحې راغله نو بیا د دوه قیراطه وحې راغله، نو هیڅ تعارض نشته دی. (مرقات۸ ۶۹/۷)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: من اتَّخَذَ كَلْبًا إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ | | | | | | |
| او حضرت ابو هریرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم کس چې د څارؤ د حفاظت والا، | | | | | | |
| أَوْ | صَيْدٍ | أَو | زرعٍ | انتقصَ | منْ | أُجرِه |
| ښکار کولو والا، د کهیت کهلیان د ساتلو والا سپې نه بغیر بل سپی ساتې نو د هغې د ثواب نه هره | | | | | | |
| كلَّ يومٍ قِيرَاط (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | | | |
| ورځ یو د قیراط برابر ثواب کمېږي. | | | | | | |

## د سپو دوژلو حکم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾وَعَن جَابر قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ | | | | | | |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته د مدینې د سپو د وژلو حکم کړی ؤو. مونږ | | | | | | |
| حَتَّى | إِنَّ | الْمَرْأَةَ | تَقْدَمُ | منَ | البادِيَةِ | بكلبِها |
| به د مدینې د اطراقو سپې وژلو تردې چې کومه ښځه به ځنګل ته راغله او د هغې سره به سپې ؤو نو مونږ به | | | | | | |

---

(۱) رقم الحدیث ۴۰۹۹أخرجه البخاري في صحیحه ۵/۵ رقم الحدیث ۲۳۲۲ ومسلم في ۱۲۰۳/۳ رقم الحدیث (۵۸-۱۵۷۵)

فتقتله ثُمَّ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِهَا وَقَالَ: عَلَيْكُمْ

هغه هم ختمولو بيا وروسته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عامو سپو د وژلو نه منع وکړه او دا حکم يې وکړو

بِالْأَسْوَدِ الْبَهِيمِ ذِي النقطتين فَإِنَّهُ شَيْطَان . رَوَاهُ مُسلم [1]

چې خالص تور سپې چې د دوه نقطو والا وي، وژل يې ستاسو لپاره ضروري دي ځکه هغه شيطان دی.

**توضيح:** اول د عامو سپو د وژلو حکم راغلو چې په زړونو کې نفرت پيدا شي. بيا د شوقيه او اسود بهيم نه بغير د سپو اجازت وشو. **النقطين:** يعنې داسې تک تور سپی چې د هغې د سترګو د پاسه دوه سپينې نقطې او داغونه وي. دا ډېر زيات ضررې وي. د ضرر سبب وي. او د فايدې نه خالي وي، ځکه ورته شيطان ويلی شوی دی. (مرقات۹ ۷/ ۶۹)

﴿۴﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ

او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونږ ته د ټولو سپو يا د مدينې د سپو د وژلو حکم

إِلَّا كَلْبَ صيدٍ أَو كلب غنم أَو مَاشِيَة (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [2]

وکړو خو د ښکارې سپو او د بزو د حفاظت والا سپو او د څارؤ د حفاظت والا سپې يې مستثنی کړل.

**توضيح: او کلب ماشية:** يعنې د بزو د رمې د حفاظت لپاره يا د څارؤ د حفاظت لپاره وي نو دا جمله د تعميم نه وروسته د تخصيص لپاره دهږ يا او د شک لپاره دی چې د راوي شک شو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم لفظ استعمال کړی ؤو. غنم او ماشية يو څيز دی.

## الفصل الثاني

﴿۵﴾عَن عبد الله بنِ مُغفَّلٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

حضرت عبد الله ابن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

لَوْلَا أَنَّ الْكِلَابَ أُمَّةٌ مِنَ الْأُمَمِ لَأَمَرْتُ بِقَتْلِهَا كُلِّهَا

چې که چرې دا خبره نه وی چې سپې هم د ډلو نه يو ډله دی نو ما به يقيناً حکم کړی وی چې دا ټول ؤوژنئ، نو په

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۰۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۳۰/۱۲۰۰ رقم الحديث (۴۷-۱۵۷۲) والترمذي في ۴/ ۶۶ رقم الحديث ۱۴۶۸

([2]) رقم الحديث ۴۱۰۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۲۰۰ رقم الحديث (۴۶-۱۵۷۱)

| |
|---|
| فَاقْتُلُوا مِنْهَا كُلَّ أَسْوَدَ بَهِيمٍ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ: |
| دې کې چه کوم يو سپى هم خالص د تور رنګ والا وي نو هغه اوژنئ. او ترمذى دا روايت نور نقل کړى دى |
| وَمَا مِنْ أَهْلِ بَيْتٍ يَرْتَبِطُونَ كَلْبًا إِلَّا نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِمْ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ |
| چې کوم کور والا بغير له ضرورته سپى ساتي نو د هغې د عمل نه ثواب هره ورځ يو قيراط کمېږي، خو |
| إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ أَوْ كَلْبَ حَرْثٍ أَوْ كَلْبَ غنم[1] |
| ښکارې سپى او د پټې ساتلو والا سپى او د رمې ساتلو والا سپى د دې نه مستثنى دى. |

**توضيح**: **امة**: لکه څنګه چې الله د انسان د يو خاص مصلحت د لاندې پيدا کړى دى او د انسان نسل يې جاري ساتلى دى. همدغه شان يې ځناور هم د يو مصلحت د لاندې پيدا کړي دي. لهذا د هغوى ساتل هم د حکمت يو تقاضا ده. همغې اړخ ته حديث کې اشاره ده چې که چرې سپي مستقل امت نه وى نو ما به د ټولو د وژلو حکم کړى وى. د نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ کشتئ کې چې کوم انسانان او حيوانات داخل شول نو د هغې نسل به پاتې وي، نو ځکه د هيڅ نسل د بيخ نه ختمول ممکن نه ده. (مرقات ۷/۷۰۰)

## د ځاروؤ جنګول منع دي

| |
|---|
| ﴿۶﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّحْرِيشِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځاروي يو ته د راپارولو يعنې هغوى په |
| بَيْنَ الْبَهَائِمِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2] |
| خپل مينځ کې د جنګولو نه منع کړې ده. |

**توضيح**: مطلب دا دى چې اوښان، هاتيان، ګډې، غوايان، ميخې، سپې، چرګې او مرزان جنګول سخت منع دي. هغه که په شرط وې يا بغير له شرطه وي. چې د ځاروؤ جنګول منع دي نو د انسانانو په ناحقه جنګول خو به لويه ګناه وي. **"والفتنة اشد من القتل"**

(دې باب کې دريم فصل نشته دى)

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۰۲ أخرجه ابوداود في السنن ۳/۲۶۷ رقم الحديث ۲۸۴۵ والترمذي في ۴/۶۷ رقم الحديث ۱۴۸۹.

([2]) رقم الحديث ۴۱۰۳ أخرجه ابوداود في السنن ۳/۵۶ رقم الحديث ۲۵۶۲ والترمذي في ۴/۱۸۲ رقم الحديث ۱۷۰۸

# باب ما يحل اكله و ما يحرم

## خوراک د کوم څارو حلال یا حرام دي

قال الله تعالیٰ ﴿ويحل لهم الطيبات و يحرم عليهم الخبائث﴾ (سورة اعراف : ۱۵۷)
قرآن کریم الله تعالی څلو شیان قطعي حرام کړي دي. ۱: میتة یعنې مردار ۲: دم مسفوح یعنې د رګونو نه وتلي وینه ۳: ما اهل لغير الله یعنې الله د نوم بغیر د غیرالله په نوم ذبح شوی څاروی. د قرآن آیت دی ﴿قل لا اجد فما اوحی الی محرماً علی طاعم یطعمه الا ان یکونه میتة او دما مسفوحاً او لحم خنزیر فانه رجس او فسقاً اهل لغیر الله به﴾ (انعام آیت ۱۴۵)
د دې څلور شیانو نه بغیر په حدیثونو کې د ډیرو شیانو ممانعت او د حرمت ذکر نبي کریم ﷺ کړی دی. د همدې بیان په دې باب کې دی.

## الفصل الاول

### ذی ناب درنده حرام دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :كُلُّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ و فرمایل درنده ګانو چې کوم څناور د خیرې والاوي |
| فَأَكْلُهُ حرامٌ. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| چې په غاښ خپل ښکار نیسي لکه زمری او لېوه وغیره نو د دې خوړل حرام دي. |
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ د هر هغه درنده د غوښې خوړلو نه منع کړې ده چې د خیرې |
| وَكُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ [2] |
| والاوي او د هر هغه مارغه خوړلو نه یې منع کړې ده چې خاوند د پنجې وي یعنې چې په خپله پنجه ښکار کوي لکه باز وغیره |

**توضیح**: د ذی مخلب مارغانو تفصیل مخکې تیر شوی دی.

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۰۴ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۳۴/۳ رقم الحديث (۱۵-۱۹۳۳) والترمذي في ۶۱/۴ رقم الحديث ۱۴۷۹.
([2]) رقم الحديث ۴۱۰۵ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۳۴/۳ رقم الحديث (۱۶-۱۹۳۴) وابوداود في ۱۵۹/۴ رقم الحديث ۳۸۰۳

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي ثَعلبةَ قَالَ: حَرَّمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لُحُومَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[۱] |
| او حضرت ابو ثعلبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کورنو خرو غوښه حرامه کړې ده. |

**توضيح**: د کورنو خرو د حرمت تفصيل هم د همدغه حديث ۲۶ کې ليکلی شوی دی.

## آيا آس حلال دی؟

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خيبر په ورځ د کورونو خرو د غوښې خوړلو نه |
| وَأَذِنَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[۲] |
| ممانعت جاري کړو او د آسونو د غوښو خوړلو اجازت يې ورکړی ؤو. |

**توضيح**: آس که د خر د نسل نه وي نو د هغې غوښه په اتفاق سره حرامه ده. که آس کې د خر د نسل ملاوټ نه وي آيا د هغې غوښه حلاله ده يا که حرامه ده. دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. (مرقات۷۰۲/۷)

**د فقهاؤ اختلاف** : د امام شافعي رحمه الله، امام احمد بن حنبل رحمه الله او د صاحبينو په نزد د آس غوښه حلاله او پاکه ده. ذبح يې کړي او وې خورئ او مزې کئ. امام مالک رحمه الله او امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چې د آس غوښه خوړل مکروه ده يا مکروه تحريمې ده يا مکروه تنزيمې ده.

**دلائل** :د جمهورو دليل د بحث لاندې حديث دی.

امام مالک رحمه الله او امام ابو حنيفه رحمه الله د قرآن آيت **﴿والخيل والبغال والحمير لتركبوها و زينة﴾** (سورة النحل : ۸)نه استدلال کړی دی. د استدلال طرز داسې دی چې الله په آسونو کې مهمه فائده هغې باندې سپوريدل او رُکُوب ګڼلې دی. که د دې غوښه جائزه وی نو الله به خامخا فرمايلې وی ځکه د رکوب نه غوښه زياته مهمه وه او الله تعالی مهم ذکر کوي. د امام ابو حنيفه رحمه الله اړخ ته هم دا منسوب ده چې هغې به د آس غوښې ته ځکه مکروه ويله چې آس د جهاد آله ده. که دا ذبح کړی شي نو د جهاد ميدان به کمزوری شي. امام ابو حنيفه رحمه الله راتلونکي د حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت نمبر ۲۶ نه استدلال کړی دی. چې الفاظ يې دا دي **"عن خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ان رسول**

---

(۱) رقم الحديث ۴۱۰۶ اخرجه البخاري في صحيحه ۶۵۳/۹ رقم الحديث ۵۵۲۷ ومسلم في ۱۵۳۸/۳ رقم الحديث (۲۳-۱۹۳۶)

(۲) رقم الحديث ۴۱۰۷ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۱/۴ رقم الحديث ۳۸۰۳ والنسائي في ۲۰۵/۷ رقم الحديث ۴۳۴۳.

الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **نهی عن اکل لحوم الخیل والبغال والحمیرة**" (ابوداؤد او نسائی، مرقات ۷/۷۰۳)

**جواب**: ذکر شوی حدیث په جائز مع الکرابة باندې محمول دی. چې په حدیثونو کې تعارض پاتې نشي. دغه شان دا مسئله د محرم او د مبیح ده چې محمر ته په کې ترجیح ورکول کېږي. بهرحال د احنافو کتاب کفایت المنتهی کې لیکلی شوی دي چې امام ابوحنیفه رحمه الله د مرګ نه مخکې درې ورځې مخکې د خپل دې قول نه د صاحبینو او د جمهورو قول ته رجوع کړې ده او په همدې باندې فتوی ده. درمختار کې هم داسې لیکلی شوې ده چې امام صاحب د خپل قول نه رجوع کړې ده او په همدې باندې فتوی ده.

## غوښه د وحشي خر حلاله ده

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَن أَبِي قتادَةَ أَنَّهُ رَأَى حِمَارًا وَحْشِيًّا فَعَقَرَهُ |
| او د حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغې ګورخر ولیدلو او هغه یې ووژلو او بیا یې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ |
| د غوښې خوړلو باره کې مسئله وپوښتله، نو نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترېنه وپوښتل چې آیا تاسره د هغې |
| مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ شَيْءٌ؟ قَالَ: مَعَنَا |
| په غوښه کې څه شته دی؟ نو ابو قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما سره د هغې پانچې شته دی، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام |
| رِجْلَهُ فَأَخَذَهَا فَأَكَلَهَا (مُتَّفَق عَلَيْهِ)[1] |
| هغه پانچې واخستلې او هغه یې وخوړلې. |

## سوئ حلاله ده

| |
|---|
| ﴿۶﴾وَعَن أنس قَالَ: أَنْفَجْنَا أَرْنَبًا بِمَرِّ الظَّهْرَانِ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ورځ مونږ مقام الظهر کې د ښکار لپاره یو خرګوش پسې شو، |
| فَأَخَذْتُهَا فَأَتَيْتُ بهَا أَبَا طلحةَ فذبحها |
| نو په منډه کې مو هغه ونېولو او بیا مو هغه ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له راوستلو. ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ذبح |

---

([1]) رقم الحدیث ۴۱۰۸ أخرجه مسلم في صحیحه ۶۱۳/۹ رقم الحدیث ۴۵۹۰ ومسلم في ۸۵۵/۲ رقم الحدیث (۶۳-۱۱۹۴)

| |
|---|
| وَبَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَرِكِهَا وفخذيها فقبله (مُتَّفق عَلَيْهِ) [1] |
| كړو او د هغې يو پتون او دواړه پتونونه يې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ولېږل. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه قبول كړه. |

**توضيح**: انفجنا: يعني مونږ خرګوش پسې شو. هغه د خپلي سوري نه په اوريدلو وكتلو.

**فقبله**: د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبلول د هغې د حلاليدلو دليل دى.

**وركها**: ورک پيږ پتون او د هغې كولمي ته وايي او فخذ عام پتون لپاره ويلى كېږي.

## سنډه حلال دی که حرام؟

| |
|---|
| ﴿۷﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:الضَّبُّ لَسْتُ آكُلُهُ |
| او حضرت ابن عمر رضى الله عنه فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل سنډه نه زه خورم او |
| وَلَا أُحَرِّمُهُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [2] |
| نه دا حرام ګڼم.(بخاری ومسلم) |

**توضيح**: **الضب**: دې ته ګهوړ هم وايي او سنډه هم ورته وايي. او ګهوړ پهوړ ته هم وايي. دا عجيبه حيوان دى. شارحينو ليكلي دي چې د سنډه دوه ذكره وي. او تر د اووه سوه (۷۰۰) كالو پورې د هغې عمر كېدى شي. اوبو ته نژدې نه ورځي. صرف په شبنم ګوزاره كوي او ځلويښت ورځې وروسته ميتازې كوي او كله هم د دې غاښونه نه غورځېږي.نبي كريم ﷺ د طبعي كراهت په وجه دا نه دى خوړلى، نورو باندې يې نه دى حرام كړى.نو د امام شافعي او امام احمد په نزد د دې غوښه حلاله ده.خو امام ابو حنيفه رحمه الله په فصل ثانى كې د عبدالرحمن بن شبل د حديث ۳۳ نه استدلال كړى دى او د ګهوړ خوړلو ته يې حرام ويلي دي. د حديث الفاظ دا دي: "**ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهىٰ عن اكل لحم الضب**" امام ابو حنيفه رحمه الله دې روايت باندې د حلت روايتونه منسوخ ګڼي.

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ أَخْبَرَهُ |
| او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت شوى دى چې حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغې ته بيان وكړو چې يو |

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۰۹ أخرجه الترمذي في صحيحه ۳۰۲/۵ رقم الحديث ۲۵۷۲ ومسلم في ۱۵۴۷/۳ رقم الحديث (۵۳-۱۹۵۳).

([2]) رقم الحديث ۴۱۱۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۶۲/۹ رقم الحديث ۵۵۳۶ومسلم في ۱۵۴۳/۳ رقم الحديث (۴۰-۱۰۴۳)

| | |
|---|---|
| أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مَيْمُونَةَ وَهِيَ خَالَتُهُ | |
| ورځ د نبي عَلَيۡهِ السَّلَامُ سره د حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنهَا کور لاړو چې د حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنهُ ترور هم وه او د | |
| وَخَالَةُ ابْنِ عَبَّاسٍ فَوَجَدَ | |
| ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ هم. هغې د هغې سره هغوی یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ یا حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنهُ | |
| عِنْدَهَا ضَبًّا مَحْنُوذًا فَقَدَّمَتِ الضَّبَّ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | |
| یوه سمسېره وریته شوې وموندله. حضرت میمونه رَضِيَ اللهُ عَنهَا هغه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ ته پیش کړه، خو | |
| فَرَفَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ عَنِ الضَّبِّ فَقَالَ خَالِدٌ: | |
| نبي عَلَيۡهِ السَّلَامُ د هغې سمسېرې نه خپل لاس رابنکلو. حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې دا ولیدل نو وې پوښتل | |
| أَحَرَامٌ الضَّبُّ يَا رَسُولَ اللهِ؟قَالَ:لَا وَلَكِنْ لَمْ يَكُنْ بِأَرْضِ قَوْمِي | |
| چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ! آیا سمسیره حرام دی؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ نا. بلکې دا زمکه د قوم | |
| فَأَجِدُنِي أَعَافُهُ قَالَ خَالِدٌ: | |
| په زمکه یعنې حجاز کې نشته دی نو ځکه ورسره د ب[illegible] دننه نه کراهت محسوسوم. د حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیان | |
| فَاجْتَرَرْتُهُ فَأَكَلْتُهُ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ إِلَيَّ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | |
| دی چې دې او ربدلو سره ما هغه سمسېره خپل اړخ ته رابنکلو او خوړلو مې او نبي عَلَيۡهِ السَّلَامُ زما اړخ ته کتل. | |

**توضیح:** محنوذ: وریت شوي سمسیره. رفع: یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ د هغې د خوړلو نه لاس رابنکلو. اعافه: یعنې زما ترېنه کرکه کېږي. اجترته: ما هغه خپل اړخ ته رابنکلو او په خوړلو مې ورله شروع کړه او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ په تعجب سره کتل. (مرقات۷/۷۰۶)

## د چرګ غوښه حلاله ده

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ لَحْمَ الدَّجَاجِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې ما نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ د چرګ غوښه خوړلو باندې لیدلی دی. |

(۱) رقم الحدیث ۴۱۱۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۶۳/۹ رقم الحديث ۵۵۳۷ ومسلم في ۱۵۴۲/۳ رقم الحديث (۱۹۴۰-[illegible])

(۲) رقم الحدیث ۴۱۱۲ أخرجه البخاري صحيحه ۶۴۵/۹ رقم الحديث ۵۵۱۷ ومسلم في ۱۲۷۰/۳ رقم الحديث (۹-۱۶۴۹)

**توضيح**: حديث کې د کورني چرګ خبره ده. هغه وخت د فارم چرګان نه ؤو. د فارم د چرګو باره کې عام علماء فرمايي چې حلال دي. ډېر کم علماء بلکې که يو نيم عالم دې ته حرام ويلې دي. هغوی وايي چې د فارم چرګان اول نه تر اخر پورې په حرامو خوراکونو باندې غټېږي. دا د جلاله په حکم کې دي. لهذا حرام دي. د ګوجرانواله مفتي محمد عيسى مدظله د دې د حرام کېدلو فتوىٰ ورکوي. محتاط علماء د دې چرګانو غوښه نه خوري، خو د صحت لپاره مضر د ټولو په نزد دي. کورنو چرګانو کې اختلاف دی.

## ملخ خوړل جائز دي

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ كُنَّا | | | |
| او حضرت ابن ابى اوفى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره اوه (۷) غزاګانې کړي. | | | |
| نَأْكُلُ | مَعَهُ | الجرادَ | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| مونږ به په دې موقعو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملخان خوړل. | | | |

**توضيح**: **نأكل معه**: د حديث په اکثر روايتونو کې اکثر د معه لفظ نشته. او چرته چې دا لفظ دى نو د دې مطلب دا دى چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په شتون کې صحابؤ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ملخان خوړلي دي. خپله نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم ملخ نه دى خوړلى. نه يې خپله خوړلى دى او نه يې په نورو حرام کړى دى. (مرقات ۷/۷۰۸)

## قصه د عنبر ماهي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَن | جابِرٍ | قَالَ: | غَزَوْتُ | جَيْشَ | الْخَبْطِ | | | |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې جيش الخبط يعني پاڼې راڅنډل او خوړونکې والا لښکر سره جهاد ته تلونکو | | | | | | | | |
| وَأُمِّرَ | عَلَيْنَا | أَبُو | عُبَيْدَةَ | فَجُعْنَا | جُوعًا | شَدِيدًا | | |
| سره زه هم شريک ؤوم. حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لښکر امير وټاکل شو، نو مونږ سخت وږي شو. | | | | | | | | |
| فَأَلْقَى | الْبَحْرُ | حُوتًا | مَيِّتًا | لَمْ | نَرَ | مِثْلَهُ | | |
| سمندر يو مړ ماهي خپلې غاړې ته راغورزار کړو. مونږ د ومره غټ ماهي کله هم نه ؤو ليدلى. دې قسمه | | | | | | | | |
| يُقَالُ | لَهُ: | الْعَنْبَرُ | فَأَكَلْنَا | مِنْهُ | نِصْفَ | شَهْرٍ | فَأَخَذَ | أَبُو عُبَيْدَةَ |
| ماهي ته به يې عنبر ويله، نو مونږ تر نيمې مياشتې هغه په فراخۍ سره وخوړلو. بيا ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د | | | | | | | | |

---

(1) رقم الحديث ۴۱۱۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۶۲۰ رقم الحديث ۴۵۹۵ ومسلم في ۳/۱۵۳۴ رقم الحديث (۵۲-۱۹۵۲)

عَظْمًا مِنْ عِظَامِهِ فَمَرَّ الرَّاكِبُ

هغې په هډوکو کې يو هډوکی يعني يوه پوښتۍ ودروله نو د هغې د لاندې به يو اوښ په اسانۍ سره تيرېدلو. د هغې

تَحْتَهُ فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَكَرْنَا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نه وروسته چې کله مونږ بيا مدينې ته راغلو نو مونږ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مو د دې واقعې ذکر وکړو،

فَقَالَ: كُلُوا رِزْقًا

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: کوم رزق چې الله تاسو ته دررسوي نو هغه خورئ يعني تاسو دا بنه کړي دي چې ماهي مو خوړلی دی،

أَخْرَجَهُ اللهُ إِلَيْكُمْ

ځکه هغه الله ستاسو رزق کړو او تاسو ته يې درورسولی ؤو، او که د هغه ماهي څه برخه تاسو سره پاتې وي نو په مونږ هم

وَأَطْعِمُونَا إِنْ كَانَ

وخورئ، ګويا کې دا خبره نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغوی د زړه د خوشحالولو لپاره او د هغه ماهي د حلال کېدل حکم د مؤکد کولو

مَعَكُمْ قَالَ: فَأَرْسَلْنَا

په غرض وفرمايلو چې د دې خلکو په زړه کې دا خيال پيدا نه شي چې دا ماهي خو اصل جائز نه ؤو خو زمونږ د اضطراري

إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حالت له نظره يې دا مونږ له حلال کړو. حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نو د هغه ماهي څه برخه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

مِنْهُ فَأَكَلَه (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

ته ولېږله او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وخوړله.

**توضيح:** الخبط: خ باندې فتح ده. او با ساکن دی. او دواړو باندې زبر هم ويل کېږي. خبط د بوټو پاڼو ته وايي. دا چې دې غزوه کې د اسلام لښکر د بوټو پاڼې راڅنډلې او بيا به يې خوړلې تر دې چې شنې پاڼې هم ختمې شوې، نو ځکه يې نوم سرية الخبط او جيش الخبط شو. دې ته سرية سيف البحر هم وايي، يعني سمندر د غاړې سرمايه د مدينې منورې نه د پنځه ورځو په فاصله باندې واقع ده. درې سوه (۳۰۰) صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دې چاپه مار جنګ کې تلې ؤو. چې امير يې ابو عبيده بن الجراح ؤو. ۶ آ□. کې د صلح حديبيه نه مخکې دا واقعه پيښه شوې وه. د بوټو پاڼو خوړلو باندې د صحابه کرامو

---

(۱) رقم الحديث ۴۱۱۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۷۸/۸ رقم الحديث ۴۳۶۲ ومسلم في ۱۵۳۶/۳ رقم الحديث (۱۷-۱۹۳۵)

رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ شوندې چاودلې وې، خولې یې زخمي شوې وې او قضاء حاجت به یې د پچو پشان ؤو، آخر کې الله مدد وکړو او یو ډیر غټې جوسې والا ماهي یې دسمندر د غاړې نه را وغورزولو چې نوم یې عنبر دی، د غټوالي په وجه دا د دابة لفظ سره هم یاد کړې شوی دی ګنې دا ماهي ؤو، لکه څنګه چې دبحث لاندې حدیث کې بخاري او مسلم دې ته حوت ویلی دی. درې سوه مجاهدینو دا تریوې میاشتې پورې وخوړلو. ځینې روایتونو کې د ۱۵ ورځې او ځینې روایتونو کې د ۱۸ ورځو د خوړلو ذکر دی. دې کې هیڅ تعارض نشته، ځکه چا چې څومره ورځې خوړلی وې د هغې ذکر یې وکړو. ټول لښکر تر د ۱۵ ورځو پورې وخوړلو. بیا چې چا سره څومره غوښه پاتې شوه هغې هغه هومره ورځې وخوړله. چا ۱۸ ورځې او چا ۳۰ ورځې. د برکت له وجې نبي کریم ﷺ هم وخوړله او د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ خاطر هم مقصود ؤو او د جواز فتوی یې هم ورکړه. صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د دې نه ډېر تیل هم حاصل کړل. کشتیانو کې یې هم استعمال کړل او په بدنو یې ومږل. د ماهي د سترګې سوري کې ۹۰ کسان کیناستل. او نه به ښکاره کېدل. د پوښتئ د هډوکي لاندې په اوښ سپور یو کس تیر شو. (مرقات۷/۷۰۸)

## مچ که د خوراک څکاک شیانو کې ولوېږي نو څه حکم یې دی

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا وَقَعَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کله تاسو کې د |
| الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أحدِكم فَلْيَغْمِسْهُ. كُلَّهُ ثُمَّ |
| یو کس په لوښي کې مچ وغورځېږي نو هغې پکار ده چې هغه هغه ټولې مچې له غپا ورکړي او بیا |
| لِيَطْرَحْهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ شِفَاءً وَفِي الْآخَرِ دَاءً. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (۱) |
| راو یستلو سره غوزاره کړي ځکه د مچ په دواړو وزرو کې یوې ورزې کې شفا ده او بله کې بیماري ده. |

**توضیح:** مچ که د چای پشان ګرم ځیزونو کې ولوېږي او په کې اوسوځي نو د هغې خوراک څنګاک ذکر په دې حدیث نشته. هغه په طبعي او عرفي توګه د قابل استعمال نه دی. خبره د هغه خوراک څنګاک باره کې ده چې یخ وي. چې مچ په کې غوځېدلو سره ګیره شي، لکه شوده، شړومبې، شربت او یخ سالن کې مچ وغورځېږي. دې حدیث کې د همدغه صورت باره کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې مچ له هغې کې غوپه ورکړئ او بیا یې ترې راوباسئ او ویې غورزوئ، د غوپه کولو وجه دا ویلی شوې ده چې د مچ په یو وزر کې زهر او بیماري ده او بل وزر کې علاج او شفاء ده. مخکې د دویم فصل په حدیث ۳۹، ۴۰ کې دا تفصیل دی چې مچ د شفا والا وزر د ډوبیدلو نه بچ کول کوي چې صرف بیماري او جراثیم انسان کې داخل

(۱) رقم الحدیث ۴۱۱۵ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۵۰ رقم الحديث ۵۷۸۲ وابوداود في السنن ۴/۱۸۲ رقم الحديث ۳۸۴۴

شي. لهذا تاسو ټول سچ ډو بوئ يې چې شفا هم حاصله شي. د مچ په چپ وزر کې بيماري ده. تجربه ګواه ده چې په لوی مهارت سره مچ يو وزر او چت ساتي. صدق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. دې کې هيڅ استبعاد نشته دی چې په يو ښاروي کې دوه صفتونه جمع وي. د شهدو مچۍ کې شهد هم دي او زهر هم دي. د لړم په ځرمن د هغې د زهرو لپاره شفاء ده، نو زهر هم شته دی او شفاء هم په کې ده. (مرقات ۷/۷۱۰)

## کنګل غوړو وغيره کې که موږک ولوېږي نو څه کم دی؟

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَن ميمونةَ أَنَّ فَأْرَةً وَقَعَتْ فِي سَمْنٍ فَمَاتَتْ |
| او د حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې يوه مږه په کنګل غوړو کې پرېوتله او مړه شوه. د |
| فَسُئِلَ رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم فَقَالَ: |
| نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه و پوښتلی شو چې څه وکړی شي، نو نبي کريم ﷺ و فرمايل چې دا مږئ او د هغې ګير چاپېره غوړي |
| أَلقوهَا وَمَا حولهَا وكلوه. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| راو باسئ او غوزار يې کړئ او نور غوړي وخورئ. |

**توضيح**: که مايع څيزونو کې مږه وغيره وغورځيږي او مړه شي نو ټوله مايع به نجسه شي او هغه وغورځولی شي او ضايع به شي. د بحث لاندې حديث کې د مايع څيز مسئله نه ده. د مايع څيز مسئله د فصل ثاني په حديث ۲۰ کې راروانه ده. دلته دې حديث کې په کنګل غوړو کې د مږې د ليدلو مسئله ده. چې د هغې باره کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې مړه شوې مږه لرې کړئ او د هغې ګير چاپېره غوړي هم وغورزوئ او نور غوړي استعمال کړئ. د دې وجې دا ده چې کنګل غوړو کې صرف هغه برخه پليته شي چې کومې برخې سره مړه شوې مږه لږېدلې وي. باقې برخه پاکه ده. (مرقات ۷/۷۱۱)

## دمار دوژلو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَن ابْن عمر أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې عموماً |
| "اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ وَاقْتُلُوا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ وَالْأَبْتَرَ |
| ټول ماران وژنئ او خصوصاً هغه مار چې د هغې په شا باندې دوه توري پټې وي او هغه مار چې ابتر ورته وايي ؤوژنئ، |

---

(۱) رقم الحديث ۴۱۱۶ اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۶۶۷ رقم الحديث ۵۵۳۸ وابوداود في السنن ۴/۱۸۰ رقم الحديث ۳۸۴۱.

| | | |
|---|---|---|
| فَإِنَّهُمَا | يَطْمِسَانِ | الْبَصَرَ |
| ځکه دا دواړه قسمه ماران بينائي ختموي. يعني صرف کتلو سره سړي ړوند شي او د دې سبب د هغې د زهرو خاصيت | | |
| وَيَسْتَسْقِطَانِ | الْحَبَلَ | قَالَ |
| دی چې کوم دې مارانو کې وي. دغه شان دا دواړه ماران حمل هم غورځوي. يعني که حامله ښځه دې ته وګوري | | |
| عَبْدُ | اللهِ: فَبَيْنَا | أَنَا |
| نو د زهرو په وجه يا د هغې د وېرې او د دهشت په وجه د هغې حمل غورځېږي. حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي | | |
| أُطَارِدُ حَيَّةً أَقْتُلَهَا | نَادَانِي | أَبُو لُبَابَةَ: |
| چې يوه ورځ چې ما مار باندې حمله کوله او د وژلو په طمع يې ؤوم چې يو صحابي ابو لبابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماته | | |

لَا تَقْتُلْهَا فَقُلْتُ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْحَيَّاتِ.

اواز وکړو چې دا مه وژنه. ما وويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د ټولو مارانو د وژلو حکم کړی دی. حضرت ابو لبابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

فَقَالَ: إِنَّهُ نَهَى بَعْدَ ذَلِكَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوتِ وَهن العوامر (مُتَّفق عَلَيْهِ) [1]

ووېل خو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د عام حکم نه وروسته د کور والا مار د وژلو نه منع کړې وه، ځکه هغه کور اباد ؤونکي دي.

**توضيح: ذالطفيتين:** د کوم مار په شا چې دوه توري پټې (کرخي) وي هغې ته **ذالطفيتين** وايي.

**الابتر:** دا هغه مار ته وايي چې لکئ يې بيخي وړه وي. ګلګت شتيال کې دا مار ما ليدلی دی. د يو ليشت نه لږ اوږد وي. لکئ د نشوالي برابر وي. د هغه ځای خلکو وويل چې که مار ثوک وچيچي نو سړی ژر مړ کېږي. دا دواړه قسمه ماران ډېر زهريله وي. که حامله ښځه دا اويني نو د زهرو په اثر د هغې حمل وغورځېږي، او که ثوک ورته وګوري نو د هغه کس بينايي لاړه شي. دا د دې د زهرو خاصيت دی، ځکه د دې و وژلو ډېر تاکيد شوی دی.

**اطارد:** مار پسې کېدل او هغې باندې د غالب کېدلو لپاره هغه تېنتول.

**العوامر:** دا د **عامرة** جمع ده. يعني دا مار په کورونو کې اوسيږي او کورونه اباد وي. د دې عمرونه زيات وي، ځکه ورته عوامر ويلی شوي دي. علامه تورپشتي فرمايي چې دا پيريان دي. د عوامر اطلاق په پيريانو باندې کېږي. مطلب دا دی چې کورونو کې اکثر چې کوم ماران اوسيږي هغه

---

[1] رقم الحديث ۴۱۱۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/ ۳۴۷ رقم الحديث ۳۲۹۷ ومسلم في ۴/ ۱۷۵۲ رقم الحديث (۱۲۸-۲۲۳۳)

حقيقت کې پيريان وي. چې د مارانو صورت يې اختيار کړي وي، ځکه د هغې په وژلو کې احتياط پکار دی چې خدای مه که هغه چرته پيريان نه وي چې د نقصان رسيدلو قوی خطر پيدا نشي. د دې حديث نور تفصيل او اوږده قصه مخکې راروانه ده. (مرقات۷/۷۱۳)

## د کور نه د پيريانو شړلو طريقه

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَن | أَبِي | السَّائِب | قَالَ: | | | | | | | |
| او حضرت سائب رحمه الله چې د حضرت هشام ابن زهره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ازاد شوی غلام ؤو او تابعي دی. وايي چې يو ورځ | | | | | | | | | | |
| دَخَلْنَا | عَلَى | أَبِي | سَعِيدٍ | الْخُدْرِيِّ | | | | | | |
| مونږ ابو سعيد خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ له د هغې کور ته لاړو، نو مونږ هلته ناست ؤو. چې ناڅاپه مو هلته د ابو سعيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ | | | | | | | | | | |
| فَبَيْنَمَا | نحنُ | جلوسٌ | إِذْ | سمعنَا | | | | | | |
| د تخت د لاندې يو نرې اواز واورېدلو. مونږ چې وکتل نو هلته يو مار ؤو. زه د هغې وهلو پسې ونځښتلم | | | | | | | | | | |
| تَحت | سَرِيره | فَنَظَرْنَا | فَإِذَا | فِيهِ | حَيَّةٌ | فَوَثَبْتُ | لِأَقْتُلَهَا | وَأَبُو | سَعِيدٍ | يُصَلِّي فَأَشَارَ |
| خو ابو سعيد خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې لمونځ يې کولو ماته اشاره وکړه چې کينه، زه کينا ستلم. کله چې | | | | | | | | | | |
| إِلَيَّ | أَنِ | اجْلِسْ | فَجَلَسْتُ | فَلَمَّا | انْصَرَفَ | أَشَارَ | إِلَى | بَيْتٍ | فِي | الدَّارِ فَقَالَ: |
| ابو سعيد خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لمونځ وکړو نو هغې د کور يوې کوټې ارخ ته اشاره وکړه او وې پوښتل چې | | | | | | | | | | |
| أَتَرَى | هَذَا | البيتَ؟ | فَقلت: | نعم | فَقَالَ: | كَانَ | فِيهِ | | | |
| آيا ته دا کوټه ليدلې ده؟ ما وويل آؤ بيا ابو سعيد خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې دې کوټه کې به زمونږ | | | | | | | | | | |
| فَتًى | مِنَّا | حَدِيثُ | عَهْدٍ | بِعُرْسٍ | قَالَ: | | | | | |
| د خاندان يو ځوان اوسيدلو چې نوی نوی واده يې شوی ؤو. حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې | | | | | | | | | | |
| فَخَرَجْنَا | مَعَ | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | إِلَى | الْخَنْدَقِ | فَكَانَ |
| مونږ ټول د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د غزوه خندق لپاره لاړو. چې محاذ د مدينې په مضافاتو کې قائم کړی شوی ؤو. | | | | | | | | | | |
| ذَلِكَ | الْفَتَى | يَسْتَأْذِنُ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | بِأَنْصَافِ | النَّهَارِ |
| دا ځوان به د غرمې وخت کې هره ورځ د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه کور ته د تللو اجازت غوښتلو، ځکه د ناوې | | | | | | | | | | |

فَيَرْجِعُ إِلَى أَهْلِهِ فَاسْتَأْذَنَهُ يَوْمًا

محبت به دا په دې مجبوره کولو، نو خاندان سره د ملا وېدلو لپاره به هغه راتللو او شپه به یې کور کې تېره کړه او بېرته به راغلو

فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او د مجاهدینو سره به شامل شو. یوه ورځ یې د معمول په حساب د نبي عَلَيۡهِ السَّلَامُ نه اجازت وغوښتلو. چې نبي عَلَيۡهِ السَّلَامُ اجازت

خُذْ عَلَيْكَ سِلاَحَكَ فَإِنِّي أَخْشَى

ورکړو او ورته یې فرمائیل چې خپله اسلحه د ځان سره کېږده، ځکه زه وېرېږم چې چرته بنو قریظه حمله ونه کړي.

عَلَيْكَ قُرَيْظَةَ. فَأَخَذَ

بنو قریظه مدینه کې د یهودو یوه قبیله وه. چې دې موقع کې د قریشو حلیف شوي وه او د مسلمانانو خلاف په جنګ کې شریکه وه.

الرَّجُلُ سِلاَحَهُ ثُمَّ رَجَعَ فَإِذَا

هغه ځوان خپله اسلحه واخستله او کور ته روان شو. کله چې د خپل کور مخې ته ورسیدلو نو څه وینې چې هغې

امْرَأَتُهُ بَيْنَ الْبَابَيْنِ قَائِمَةٌ فَأَهْوَى إِلَيْهَا

ښځه د کور به دواړو دروازو کې یعنې د ننه او بهر د دروازه په مینځ کې ولاړه ده. ځوان د ښځې ویشتلو

بِالرُّمْحِ لِيَطْعَنَهَا بِهِ وَأَصَابَتْهُ غَيْرَةٌ

لپاره د هغې اړخ ته نیزه اوچته کړه ځکه دا یې ولیدل چې د هغې ښځه بهر ولاړه ده، هغه په غیرت کې راغلو، خو ښځې

فَقَالَتْ لَهُ: اكْفُفْ عَلَيْكَ رُمْحَكَ

هغې ته وویل چې خپله د ځان سره کېږده او لږ کور کې خو وګوره چې څه شیز زما د راویستلو سبب شوی دی.

وَادْخُلِ الْبَيْتَ حَتَّى تَنْظُرَ مَا الَّذِي أَخْرَجَنِي فَدَخَلَ فَإِذَا بِحَيَّةٍ عَظِيمَةٍ

دې او رېدلو سره ځوان کور ته ننوتلو او هلته نا څاپه د هغې نظر په یو مار ولګېدو، هغه په مار حمله وکړه شو

مُنْطَوِيَةٍ عَلَى الْفِرَاشِ فَأَهْوَى إِلَيْهَا بِالرُّمْحِ

او نیزه کې یې را تاؤ کړو او بیا د کور نه رابهر شو او نیزه یې د کور په برنډه کې ښخه کړه. مار په ځوان باندې

فَانْتَظَمَهَا بِهِ ثُمَّ خَرَجَ فَرَكَزَهُ فِي الدَّارِ فَاضْطَرَبَتْ عَلَيْهِ

حمله وکړه. بیا دا معلومه نه شوه چې دواړو کې اول څوک شو، مار او که ځوان یعنې دواړه داسې یو ځای مړه شول

فَمَا يُدْرَى أَيُّهُمَا كَانَ أَسْرَعَ مَوْتًا: الْحَيَّةُ أَمِ الْفَتَى؟ قَالَ:

چې دا پته هم ونه لږېدله چې اول څوک مړ شوی دی. حضرت ابو سعید رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ فرمایي چې د دې واقعې نه

فَجِئْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَكَرْنَا ذَلِكَ لَهُ وَقُلْنَا:

وروسته مونږ د نبي عَلَیْهِالسَّلَام په خدمت کې حاضر شو او نبي عَلَیْهِالسَّلَام ته مو دا واقعه بیان کړه. او عرض مو وکړو

ادْعُ اللهَ يُحْيِيهِ لَنَا فَقَالَ:

چې تا د الله نه دعا وغواړه چې الله زمونږ ځوان ژوندی کړي. نبي کریم صَلَّیاللّٰهُعَلَیْهِوَسَلَّمَ وفرمایل چې د

اسْتَغْفِرُوا لِصَاحِبِكُمْ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ لِهَذِهِ الْبُيُوتِ عَوَامِرَ

خپل ملګري لپاره مغفرت وغواړئ. او بیا یې وفرمایل چې د مدینه په دې کورونو کې عوامر یعنې پیریان او سیږې. چې مؤمنان

فَإِذَا رأيتُم مِنْهَا شَيْئًا فحرِّجوا عَلَيْهَا ثَلَاثًا

هم په کې دي او کافران هم. لهذا تاسو کې څوک هغې کې کوم یو د مار په صورت ؤوینئ نو درې ځله یا درې ورځې هغې باندې

فَإِنْ ذَهَبَ وَإِلَّا فَاقْتُلُوهُ فَإِنَّهُ كَافِرٌ.

تنګې کوي، بیا که هغه لاړ شي ډېره ښه ده ګني مړیې کړئ، ځکه د غه صورت کې به هم د غه ګڼلې کېږي چې هغه په پیریانو

وَقَالَ لَهُمْ: اذْهَبُوا فَادْفِنُوا صَاحِبَكُمْ

کې کافر دی. بیا نبي عَلَیْهِالسَّلَام انصارو ته وفرمایل چې لاړ شئ او د خپل ملګري تدفین وکړئ. یو بل

وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: إِنَّ بالمدينةِ جِنًّا قد أَسْلَمُوا

روایت کې دا الفاظ دي چې نبي عَلَیْهِالسَّلَام وفرمایل په مدینه کې څه پیریان دي او هغوی هغه هم دي چې

فَإِذا رأيتُم مِنهُم شَيْئًا فَآذِنُوهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ

مسلمانان شوې دي، نو هغې کې تاسو کوم یو د مار په صورت کې اوینئ نو درې ورځو پورې هغه

فَإِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ فَاقْتُلُوهُ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ. رَوَاهُ مُسلم [1]

خبردار کړئ. بیا که د ورځو نه وروسته هغه را ښکاره شي نو هغه او وژنئ ځکه هغه شیطان دی.

**توضیح**: **یحییه لنا**: د صحابؤ دا خواست د دې لپاره نه ؤ چې مړ شوی صحابي راژوندی شي بلکې د هغوی

(۱) رقم الحديث ۴۱۱۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۵۶/۴ رقم الحديث (۱۴۰-۲۲۳۶) والترمذي في السنن ۶۵/۴ رقم الحديث ۱۴۸۴.

خیال ؤو چې کېدی شي دا ژوندی وي. د مار د زهرو په وجه بې هوشه شوی دی. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې دا خبرې پرېږدئ هغه مړ شوی دی. د هغې لپاره استغفار وغواړئ. (مرقات۷/۷۱۵)

**عوامر**: یعنې د مارانو په شکل کې پيریان دي. چې په کورونو کې اباد دي. (مرقات۷/۷۱۵)

**فحرجوا علیها**: یعنې هغې ته او ایئ چې اوس په تنګئ او ګیر کې یې، اوس د وتلو کوشش مه کوه. که بیا را اوتلې نو مونږ به په تا حمله وکړو او مړ به دې کړو. اوس ستا خوښه ده پاتې کېږې او که ځې. یو روایت کې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کله کور کې مار رابښکاره شي نو هغې ته دا ؤوایئ: **"انشدكم بالعهد الذى اخذ عليكم سليمان بن داؤد لا تؤذونا ولا تظهروالنا"** درې ورځو پورې دې دا عمل وکړی شي، ځکه که هغه مسلمان پیری وي نو لاړ به شي او که نه وي نو معلومه به شي چې دا کافر پیری دی. اوس هغه مار اوژنئ ځکه اوس هغه شیطان شوی دی. چې حقیقت کې ابلیس دی. یا حقیقت کې مار دی. یا کافر پیری دی. د دې ټولو وژل جائز دي. (مرقات۷/۷۱۵)

## د چرمښکئ دوژلو حکم

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾وَعَن أم شريك: أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ |
| او د حضرت ام شریک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه روایت دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کربوړي د وژلو حکم کړی دی |
| وَقَالَ: كَانَ يَنْفُخُ عَلَى إِبْرَاهِيم (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| او وي فرمایل چې دې کربوړي به حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام پسې اور پو کلو. |

**توضیح**: **الوزغ**: د دې جمع اوزاغ ده. څرموښکئ ته وایي. منجد چې کوم تصویر ورکړی دی هغه هم څرموښکئ ده. مصباح اللغات کې هم د دې ترجمه څرموښکئ لیکلی شوې ده. مظاهر حق د دې ترجمه کربوړي کړې ده. چې محل د تأمل ده. څرموښکئ ډېر زهریله ځناور دی. که په خوراک کې وغورځېږي نو ټول خوړوکي پرې مړه کېږي. دا کله نا کله څوک خوري، خو د خوړلو سره کس مړ کېږي. ما یو ځل لیدلي دي چې یو طوطي یې د دربه اړخ وچیچلو. د چیچلو سره یې طوطي مړ کړو. دا په طبعي توګه ورانکاري ده. که خاموشه ښکاري نو په مالګه کې پوکی وهي. یا هغې کې ځان مړي. چې د دې مالګې استعمالول سره د ابرص مریض شي. دې د طبعي وران کارئ او بد نیتئ د اظهار په توګه حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام پسې د نمرود بل شوي اور ته پوکی ؤوهلو. ګنې د دې پوکې سره به څه اثر وکړي صرف د دښمنئ اظهار یې وکړو، ځکه اسلام کې د دې په وژلو دا انعام

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۱۹ اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۸۹ رقم الحديث ۳۳۵۹ ومسلم في ۴/۱۷۵۷ رقم الحديث (۱۴۲-۲۲۳۷)

ملاوېږي چې که يو غوزار کې مړه شوه مو د يو صاع د صدقې ثواب ملاوېږي. او که په دېرو غوزارونو کې مړه شوه نو د نيم صاع د صدقې ثواب ملاوېږ. دا په يو غوزار اکثر نه مري. د دې لپاره لښنده يا ټوپک بهترينه اسلحه ده. ژر پرې مرې. حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا به د دې وژلو لپاره دوه ډنډې ساتلې. يو به يې د کور په برانډه کې او يه به يې په کوټه کې ايښنودله. د هګۍ پوستکې ايښودلو سره ښرموښکۍ تښتي. ورسره لاندې حديث کې هم د ښرموښکۍ د وژلو حکم بيان کړې شوی دی. او د هغې نه وروسته حديث ۱۸ کې د هغې وژلو باندې د سلو (۱۰۰) نيکيانو د ثواب ملاوېدلو بيان دی، خو په دې شرط چې وژونکې اول نمبر حاصل کړي. دويم نمبر والا ته ۵۰ او دريم والا ته د ۲۰ درجو ثواب ملاوېږي. (مرقات ۷/۷۱۶)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ |
| او د حضرت سعد بن ابی وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کربوړي وژلو حکم وکړو |
| وَسَمَّاهُ فُوَيْسِقًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| او د دې نوم يې فويسق کيښنودلو. |

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قَتَلَ وَزَغًا |
| او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کوم کس چې کربوړی |
| فِي أَوَّلِ ضَرْبَةٍ كُتِبَت لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ وَفِي الثَّانِيَةِ دُونَ ذَلِكَ |
| په يو غوزار کې مړ کړي نو د هغې لپاره سل نيکياني ليکلی کېږي. او په دويم کې د هغې نه کم او |
| وَفِي الثَّالِثَةِ دون ذَلِك. رَوَاهُ مُسلم[2] |
| په دريم کې د هغې نه کم. (مسلم) |

## د ميږي د وژلو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَرَصَتْ |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې الله کوم انبياء مخکې تير شوي دي. هغې |

[1]) رقم الحديث ۴۱۲۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۵۸/۴ رقم الحديث ( ۱۴۴-۲۲۳۸) وابوداود في ۴۱۶/۵ رقم الحديث ۵۲۲۶

[2]) رقم الحديث ۴۱۲۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۵۸/۴ رقم الحديث (۱۴۷-۲۲۴۰) وابو داود في ۴۱۶/۵ رقم الحديث ۵۲۶۳

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نَمْلَةٌ | نَبِيًّا | من | الأنبياءِ | فأمرَ | بقريةِ |
| کې د يو نبي واقعه ده چې يو ورځ هغه يو ميږي وچيچلو. هغې د ميږو د کور باره کې حکم وکړو چې دا وسوځولی شي | | | | | |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّمْلِ | فَأُحْرِقَتْ | فَأَوْحَى | اللهُ | تَعَالَى | إِلَيْهِ: | أَنْ | قَرَصَتْكَ | نَمْلَةٌ |
| نو کوريې ورله وسوځولو نو بيا الله هغې باندې دا وحې رانازله کړه چې ته يو ميږې خوړلې وې نو تا ورله په | | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَحْرَقْتَ | أُمَّةً | مِنَ | الْأُمَمِ | تُسَبِّحُ؟" | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| جماعتونو کې يو جماعت وسوځولو چې تسبيح يعنې د الله په پاکې بيانولو کې به مشغوله وه. | | | | | |

**توضيح:** نبياً: ځينو ويلې دي چې دا حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤو. ځينو د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ نوم ليکلی دی. مرقات کې ليکلی شوې دي چې هغه نبي د الله نه سوال وکړو چې په يو قوم کې هر قسمه او نيک او بد خلک وي، خو چې ستا عذاب راځي نو نيکان او بدان ټول په کې راګير شي. حال دا چې ټول مجرمان نه وي. الله د يو مثال په ذريعه هغه پوهه کول غوښتل، نو نبي د بوټې د لاندې اوده شو. يو ميږی هغه وچيچلو او هغې د ټولو کورنه وسوځول. الله ترېنه د عتاب په توګه وپوښتل چې ودې سوځول ټول او خوړلی يو وي. دې کې اشاره وه کله کله امتياز مشکل شي، نو ټول وژل غواړي. د هغه نبي په سوځولو باندې عتاب نه ؤو بلکې د ټولو وژلو باندې عتاب ؤو، خو دا د هغوی په شريعت کې ؤو. زمونږ په شريعت کې ميږه، کټمل، سپګه وغيره سوځول جائز نه دي. په بله کومه طريقه باندې يې وژل پکار دي. کوم ميږي چې ضرر رسولی دی د سزه په توګه هغه وژل پکار دي خو سوځول يا د ټولو وژل جائز نه دي. د ميږانو د ورکولو يوه طريقه په مرقات کې ليکلی شوې ده چې سړی په چوکۍ کېنې او ميږی مخاطب کړي او د الله حمد او ثناء ولولې او بيا دا وظيفه ووايې اني احرج عليكن الا خرجتن من داري فاني اكره ان تقتلن في داري (مرقات ۷/۷۱۹، ۷۱۸)

## الفصل الثاني

## په مايع غوړو کې د موږک د لوېدلو مسئله

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا وَقَعَتِ الْفَأْرَةُ فِي السَّمْنِ |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل که په غوړو کې موږه وغورځېږي او مړه شي او هغه |

[1] رقم الحديث ۴۱۲۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۵۴ رقم الحديث ۳۰۱۹ ومسلم في ۴/۱۷۵۹ رقم الحديث (۱۴۸-۲۲۴۱)

فَإِنْ كَانَ جَامِدًا فَأَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَإِنْ كَانَ مَائِعًا فَلَا تَقْرَبُوهُ. رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُودَاوُد[1] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيّ عَن ابْن عَبَّاس[2]

غوړي ګنګل وي نو هغه مږه او د هغې د څلورو اړخونو غوړي راوباسئ او غوزاريې کړئ او پاتې غوړي مصرف کړئ. او که غوړي مايع وي يعنې ويلي شوې وي نو بيا هغې ته نزدې هم مه ورزئ يعنې هغه مطلقاً مه خورئ.

**توضيح: مائعاً**: که غوړي وغيره کنګل وي نو د هغې مسئله مخکې په حديث ۱۳ کې ليکلې شوې ده. دلته د مايع څيز مسئله ده يعنې که غوړه وغيره ويلي شوې وي او هغې کې مږه وغيره وغورځيږي نو ټوله مايع نجسه شي او خوړل به يې حرام شي. دا اتفاقي مسئله ده. اوس دا قسمه څيزونه د خوراک او د خرڅولو نه بغير د څه لپاره استعملول جائز دي يا نا؟ دې کې د علماؤ مختلف اقوال دي. د ځينې علماؤ په نزد مطلقاً د دې نه فائده اخستل ناجائز دي. بلکې دا ضايع کول لازم دي. ځينې علماء فرمايي چې دغه قسمه غوړي او تيل وغيره په ډيوه کې استعماليدلی شي. کشتيانو باندې مږلی کيږي. د امام ابو حنيفه رحمه الله قول داسې دی. او د امام شافعي رحمه الله مشهور قول هم دغه شان دی. اګر که د کراهت سره دی. (مرقات۷/۷۱۹)

﴿۲۱﴾ وَعَنْ سَفِينَةَ قَالَ: أَكَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَحمَ حُبَارَى. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[3]

او حضرت سفينه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د حباري غوښه خوړلې ده.

**توضيح**: د حباری ترجمه تدری او د د سرخاب نه کيږي. دا يو مرغۍ ده اګر که کم عقله ده.

## د ناپاکه خوراک خوړونکې ځناور حکم

﴿۲۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الْجَلَّالَةِ وَأَلْبَانِهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ:

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جلاله د غوښې خوړلو او د هغې د شودو څښلو نه منع کړې ده. ترمذی او د ابو داؤد په روايت کې داسې دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۲۳ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۸۱ رقم الحديث ۳۸۴۲ وأحمدفي المسند۲/۲۳۲

([2]) رقم الحديث ۴۱۲۴ أخرجه الدارمي في السنن ۲/۱۴۹ رقم الحديث ۲۰۸۵

([3]) رقم الحديث ۴۱۲۵ أخرجه أبوداود في السنن ۴/۱۵۵ رقم الحديث ۲۷۹۷ والترمذي في ۴/۲۳۹ رقم الحديث ۱۸۲۸

| |
|---|
| قَالَ: نُهِيَ عَنْ رُكوبِ الْجَلالَةِ[1] |
| وويل چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جلاله باندې د سپوريدلو نه منع كړې ده. |

**توضيح**: كومه غوا وغيره چې د انسان د ګندئ خوړلو عادت لري نو هغې ته جلاله وايي.

## سمسيره خوړل حرام دي

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَن عبدِ الرَّحمنِ بنِ شِبْلٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ أَكْلِ |
| او د حضرت عبدالرحمن ابن شبل نه روايت دي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګوه د غوښې د خوړلو نه |
| لَحمِ الضَّبِّ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2] |
| منع كړې ده.(ابوداؤد) |

**توضيح**: كېدى شي چې په ابتداء كې د سمسيرې غوښه خوړل حلاله وه. بيا دې حديث سره ممانعت راغلو. اولنى حكم منسوخ شو. د احنافو همدغه مسلك دى. مباح او حرامو كې حرامو ته ترجيح وركول كېږي. (مرقات۷/۷۲۱)

## د پيشو غوښه حرامه ده

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ أَكْلِ الْهِرَّةِ |
| او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پيشو غوښه او د هغې د قيمت |
| وَأَكْلِ ثَمَنِهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ[3] |
| خوړولو نه منع كړې ده.(ابوداؤد،ترمذى) |

**توضيح**: د پيشو غوښه د ټولو په نزد حرامه ده، د چين خلك د ځنګلي وغيره پيشوګانو غوښه خوري چې د هغې په وجه هغوى په نيمونيا قسمه مرضونو كې اخته دي. البته پيشو خرخول او د هغې روپۍ د احنافو په نزد جائز دي، خو مكروه دي، ځكه دا مردادر كاروبار دى. او مسلمانانو له د مردار كاروبار نه ځان ساتل پكار دي. (مرقات۷/۷۲۱)

---

(1) رقم الحديث ۴۱۲۶ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۸۴ رقم الحديث ۳۷۸۵والترمذي في ۴/۲۳۸ رقم الحديث ۱۸۲۴.

(2) رقم الحديث ۴۱۲۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۵۵ رقم الحديث ۳۷۹۶

(3) رقم الحديث ۴۱۲۸ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۶۱ رقم الحديث ۳۸۰۷ والترمذي في ۳/۵۷۸ رقم الحديث ۱۲۸۰.

## غوښه د خر، قچر او د درنده حرامه ده

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾وعنهُ حَرَّمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي يَوْمَ خَيْبَرَ الْحُمُرَ الْإِنْسِيَّةَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خيبر په ورځ په کورکې د ساتلې شوؤ |
| وَلُحُومَ الْبِغَالِ وَكُلَّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَكُلَّ ذِي مِخْلَبٍ |
| خرو، قچرو او د هر قسمه کچلی والا درنده ګانو او د په پنجو باندې د ښکار کونکو مارغانو |
| مِنَ الطَّيْرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1] |
| غوښه حرامه کړې وه. (روایت کړې دې امام ترمذی) |

**توضیح**: تشریح او توضیح حدیث ۲۶، **باب الصید** کې تیر شوې ده.

## د اس غوښه خوړل منع ده

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْخَيْلِ |
| او د حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اَسونؤو، قچرو او د خرو د |
| والبِغَالِ والحمِيرِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[2] |
| غوښو خوړولو نه منع کړې ده. (نسائی) |

**توضیح**: تفصیل یې تیر شوی دی. "باب ما یحل اکله وما یحرم" کې حدیث ۴ وګورئ. د بحث لاندې حدیث د امام ابو حنیفه رحمه الله د مسلک مطابق دی. د امام مالک هم دغه مسلک دی.

## د معاهد مال بې وجې اخستل منع دی

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾وَعَنْهُ قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ |
| او حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د خيبر په جهاد کې شريک ؤوم. |
| فَأَتَتِ الْيَهُودُ فَشَكَوْا أَنَّ النَّاسَ قَدْ أَسْرَعُوا |
| يو موقع کې يهودې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ته راغلو او دا شکايت يې وکړو چې خلکو دهغوی د |

---

(۱) رقم الحديث ۴۱۲۹ أخرجه الترمذي في السنن ۶۱/۴ رقم الحديث ۱۴۷۸.

(۲) رقم الحديث ۴۱۳۰ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۱/۴ رقم الحديث ۳۷۹۰ والنسائي في ۲۰۲/۷ رقم الحديث ۴۳۳۱.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَى | خَضَائِرِهِمْ | فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| کجورو اړخ ته تونديږ کړي ده. يعني مسلمانانو زمونږ د کجورو د بوټو نا مېوه راشکولې ده. حال دا چې مونږ | | | | | | | | |
| أَلَا | لَا | يَحِلُّ | أَمْوَالُ | المعاهِدِينَ | | | | |
| معاهده کړې ده، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل خبردار! د هغه خلکو مال حلال نه دی چې د چا سره کلکه وعده شوی دی | | | | | | | | |
| إِلاَّ بحقِّها. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | | | | | | | |
| بغير د هغه حق نه چې د دې مال په متلعق دی. | | | | | | | | |

**توضيح**: كه معاهده كونكى ذمي دى نو پ هغې باندې جزيه ده. جزيې د حق نه بغير د هغې مال قبضه كول حرام دی او كه معاهده كونكى مستامن دی نو د هغې د مال تجارت چې د لارې كوم ټيکس اخستلی کېږي هغې ته عشر وايي. د هغې نه بغير ترېنه هيڅ اخستل ظلم دی.

**خضائر**: دا د **خضير** جمع ده. د كجورو هغه باغ ته وايي چې په كچه كجورو كې يې شين رنګ خور شوی وي يعنې ببنېدلو ته نزدې وي، نو دې وجې نه دا لفظ د خضرة د مادې نه جوړ شوی دی. (مرقات۷/۷۲۲)

## ماهي، ملخ، كليجي او اينه حلاله ده

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۲۸﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أُحِلَّتْ لَنَا مَيْتَتَانِ | | | |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دوه بغير د ذبح شوؤ شيانو | | | |
| وَدَمَانِ: | الْمَيْتَتَانِ: | الْحُوتُ | وَالْجَرَادُ | وَالدَّمَانِ: |
| او دو وينه وينې حلالې دې. دو بغير ذبحې نه شيان خو ماهي او ملخ دی. او دوه وينې كليجې او اينه دی. | | | |
| الْكَبِدُ وَالطِّحَالُ". رَوَاهُ أحمدُ وابنُ مَاجه وَالدَّارَقُطْنِيّ[2] | | | |
| دا دواړه اصل كې جام شوي وينه ده. نه دا چې غوښه ده. | | | |

**توضيح**: الميتتان: يعنې د ذبح كولو نه بغير حلال دي. دې اعتبار سره دې ته ميتتان ويلى شوي دي. **دمان**: دوه وينې كليجي او اينه مراد دی. كه دې ته زور وركړی شي او ګوټو كې وسولو شي نو دا خالصه وينه شي، خو دا دواړه وينه حلاله ده. باقي حرام دي. (مرقات۷/۷۲۳)

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۳۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۱/۴ رقم الحديث ۳۸۰۶ وأحمدفي المسند۸۹/۴.

([2]) رقم الحديث ۴۱۳۲ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۰۱/۲ رقم الحديث ۳۳۱۴ والدارقطني في السنن ۲۷۱/۴ رقم الحديث ۲۵.

## د سمک طافي حکم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۹﴾وَعَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: | | | | | | |
| او حضرت ابوزبیر د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم | | | | | | |
| مَا | أَلقَاهُ | | البحرُ | | | وجزر |
| ماهي چې دریاب غاړې ته راویشتي وي یا د اوبو نه راخلاص شوی وي یعنې د دریاب بالکل او چې شوي وي | | | | | | |
| عَنْهُ | الْمَاءُ | فَكُلُوهُ | وَمَا | مَاتَ | فِيهِ | وَطَفَا |
| یا بل اړخ ته تللې وي نو هغه ماهي خورئ. او کوم ماهي چې دریاب کې مړ شي او پاس راشي هغه | | | | | | |
| فَلَا تَأْكُلُوهُ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: الْأَكْثَرُونَ | | | | | | |
| مه خورئ. (ابوداؤد، ابن ماجه) او محی السنة ویلي دي چې اکثر محدثین دي خبرې قائل دي چې دا حدیث په جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | |
| عَلَى | أَنَّهُ | مَوْقُوفٌ | على | جَابر | [1] | |
| باندې موقوف دی. یعنې د هغوی په نزد دا د نبي عَلَيْهِ السَّلَام ارشاد نه دی بلکې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل قول دی. | | | | | | |

**توضیح: اوجزر عنه الماء:** که سمندر وغیره کې اوبو کې د څه مصیبت یا د ټکر یا د بل څه مصیبت نه ماهي مړ شو او اوبو ته پاس راوښتلو نو هغه د ټولو په نزد حلال دی. یا سمندر غاړې ته راغوزار کړو یا ډېرو اوبو سره ماهي یو ځای ته راغلو او اوبه بېرته لاړې. ماهي په اوچتوالي کې پاتې شو او مړ شو نو د ټولو په نزد دا ماهي حلال دی، خو که سمندر او دریا کې د ننه ماهي خپله مړ شو، په خارجي وجه نه دی مړ شوی او د اوبو سر ته راغلو نو د هغې په خوړلو کې اختلاف دی. شوافعو او د مالکیو په نزد دا حلال دی. هغه که په هره وجه مړ شوی وي خو امام ابوحنیفه رحمه الله دا طافي حرام ګڼلی دی. د بحث لاندې حدیث د احنافو دلیل دی او جمهور بغیر له دلیل نه دي. البته هغوی د احنافو دلیل ته کمزوری وایي. چې محی السنة ویلي دي چې د اکثرو په نزد دا حدیث موقوف دی. ملا علی قاری رحمه الله فرمایي چې موقوف کېدل زمونږ د استدلال لپاره مضر نه دی، ځکه دغه قسمه احکاماتو باندې مشتمل حدیثونه د مرفوع په حکم کې دي. د ماهي پټه دومره کمزورې ده چې معمولي تیز اواز سره چوي، نو ځکه د اسمان تندر راغورځېدلو سره یا د دریاب باندې د اسمان بجلي راغورځېدلو یا د ډائنمائټ الوتلو سره ماهیان مړه شي او اوبو د بره راشي. ښکاریان خلک داسې کوي او بیا یې نیسي. (مرقات۷/۷۲۳)

---

([1]) رقم الحدیث ۴۱۳۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۵/۴ رقم الحدیث ۳۸۱۵ وابن ماجه في ۱۰۸۲/۲ رقم الحدیث ۳۲۴۷

## حکم د ملخ

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾وَعَن سلمَان قَالَ: سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْجَرَادِ |
| او حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ملخ خوړلو او د هغې د حقيقت باره کې وپوښتل، نو |
| فَقَالَ: أَكْثَرُ جُنُودِ اللهِ |
| نو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې ملخان د الله په مرغانو کې د ټولو نه لويې لښکر دی. نه خو زه |
| لَا آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ. |
| دا خورم ځکه طبعاً زه کراهت محسوسوم او نه په نورو باندې دا شرعاً حرام کړم، ځکه د الله له اړخ حلال کړی شوی دی، |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدُ وَقَالَ محيي السّنة: ضَعِيف[1] |
| لکه څنګه چې مخکې حديث کې تير شوې دي. ابوداؤد. او محی السنة وويل چې دا حديث ضعيف دی. |

**توضیح**: **جنود الله**: د الله په مخلوقاتو کې الوتونکو مخلوق کې د ټولو نه زيات ملخان دي. او د دې لښکر د ټولو نه غټ دی. او د قيامت نه مخکې د دوی ورکېدل د قيامت په علاماتو کې دی. ځينې ملکونو کې لويې لويې ملخان وي، نو ځکه که دا ښوک پاک کړي او وې خوري نو جائز دي. اګر که نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دي خوړلې. (مرقات ۷/۷۲۴)

## د سحر چرګ ته بد مه وايئ

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾وَعَن زيدِ بن خالدٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ سَبِّ الدِّيكِ |
| او حضرت زيد ابن خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چرګ ته بد ويلو نه منع کړې ده. دغه شان |
| وَقَالَ: إِنَّهُ يُؤَذِّنُ لِلصَّلاةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيشکه دا چرګ د لمونځ لپاره خبر درکوي. |

**توضیح**: د سحر وخت کې خلک اوده وي. کله چې چرګ اذان وکړي نو د کور والا ځينې خل پريشانه شي او کنځلې کوي، ځکه چرګ نصف اخر کې يو خل اذان کوي. بيا د پښمنې وخت کې بل ځل اذان کوي. او خلک د پښمنې او د تهجدو لپاره راپاڅوي. بيا آخري ساعت کې د سحر لمونځ لپاره راپاڅوي.

---

(۱) رقم الحديث ۴۱۳۴ أخرجه ابوداود في السنن ۴ ۵ ۱۰۵ رقم الحديث ۳۸۳۱وابن ماجه في ۱۰۷۳ رقم الحديث ۳۲۱۹

(۲) رقم الحديث ۴۱۳۵ أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۲/۱۹۹ رقم الحديث ۳۲۷۰ وأحمد في المسند ۵/۱۹۲.

چرګ د اسماني سره وابسطه وي. پاس فرښتې متحرک شي، نو هلته د چرګ رابطه قائمه شي. بیا اذان کوي، ځکه دې ته کنځل کوي یو پاک نظام ته د کنځلو مترادف دی. لهذا منع ده. سعدي بابا ویلې دي.

اے مرغ سحر عشق ز پروانہ بیاموز

کاں سوختہ راجاں شد آواز نیامد

ای د سحر چرګه د پروانه نه عشق زده کړه، فضول چغې او شور کې. وګوره پروانې په چپه خوله د ژوند قربان کړو. یاد وساتئ چې د ې چرګ د نن سبا فارمې چرګ مراد نه دی. چې د اذان وخت ورته معلوم نه وي. ماښام او د ماسخوتن نه وروسته اذان کوي، ځکه د انسان مصنوعې لاس د دې په تخلیق کې شامل شو. چرګ ته وخت د پته نه وي او چرګې ته د بچې راویستلو پته نه وي.

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:لَا تَسُبُّوا الدِّيكَ فَإِنَّهُ |
| او حضرت زید رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چرګ ته بد مه وایئ، ځکه هغه |
| يُوقِظُ للصلاةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| مو د لمونځ لپاره راپاسوي. |

## کور کې که مار ولیدلی شي نو څه کول پکار دي

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ: قَالَ أَبُو لَيْلَى: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عبدالرحمن بن ابولیلی فرمایي چې حضرت ابولیلی بیان کړی دی چې نبي عَلَیهِ السَّلَام و فرمایل چې کله |
| "إِذَا ظَهَرَتِ الْحَيَّةُ فِي الْمَسْكَنِ فَقُولُوا لَهَا: إِنَّا نَسْأَلُكِ بِعَهْدِ نُوحٍ وَبِعَهْدِ |
| کور کې مار ښکاره شي نو د هغې مخې ته دې وویل شي چې مونږ تا نه د حضرت نوح عَلَیهِ السَّلَام د عهد |
| سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ أَنْ لَا تُؤْذِينَا فَإِنْ عَادَتْ |
| او د سلیمان ابن داؤد عَلَیهِ السَّلَام د عهد واسطه درکوؤ او دا غواړو چې مونږ ته ضرر مه رسوئ. که د هغې نه |
| فَاقْتُلُوهَا". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ[2] |
| وروسته هغه بیا راښکاره شو نو هغه اوژنئ. |

**توضیح**: دا یو قِسم له وظیفه هم ده او مار ته یوه وعده وریادول هم ده، ځکه حضرت نوح عَلَیهِ السَّلَام مار په

[1] رقم الحديث ۴۱۳۶ اخرجه ابوداود في السنن ۳۳۱/۵ رقم الحديث ۱۹۲/۵ احمد في المسند ۱۹۳/۵

[2] رقم الحديث ۴۱۳۷ اخرجه ابوداود في السنن ۴۱۵/۵ رقم الحديث ۵۲۶۰ والترمذي في ۶۶/۴ رقم الحديث ۱۴۵۸.

کشتۍ کې واچولو نو د مارانو نسل پاتې شو ګنې ختم شوی به وی او د حضرت سلیمان عَلَیۡهِ‌السَّلَامُ عهد ځکه چې هغې خو په مارانو باندې حکومت کړی ؤو. د هغې سره به یې خبرې کولې. (مرقات ۷۲۸/۷)

## د انتقام د ویرې د مار نه وژل ګناه ده

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۴﴾وَعَنۡ | عكرمةَ | عَنِ | ابنِ | عبَّاسٍ | قَالَ: | لَا |
| او حضرت ابن عکرمه د حضرت ابن عباس رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنۡهُ نه نقل کوي او فرمايي چې زه د دې نه بغیر هیڅ | | | | | | |
| أَعۡلَمُهُ | إِلَّا | رَفَعَ | الۡحَدِيثَ: | أَنَّهُ | | |
| نه پوهېږي حضرت حضرت ابن عباس رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنۡهُ د مرفوع په طریقه دا حدیث بیان کړی دی چې نبي عَلَیۡهِ‌السَّلَامُ به د | | | | | | |
| كَانَ | يَأۡمُرُ | بِقَتۡلِ | الۡحَيَّاتِ | وَقَالَ: | | |
| مارانو د وژلو حکم کولو او فرمایل به یې چې کوم کس د بدلې اخستلو او د انتقام د وېرې نه هغه ماران | | | | | | |
| مَنۡ | تَرَكَهُنَّ | خَشۡيَةَ | ثَائِرٍ | | | |
| پرېږدي نو هغه یو ضرر رسونکی د نه وژلو او قضاء او د قدر الهی باندې د یقین نه کولو په سبب زمونږ | | | | | | |
| فَلَيۡسَ مِنَّا. رَوَاهُ فِي شَرۡحِ السّنة[1] | | | | | | |
| نه ندی. یعنې زمونږ په لاره روان نه دی. | | | | | | |

**توضیح**: **ثائر**: انتقام ته ثائر وایي. یعنې د انتقام د وېرې نه مار نه وژني. د عربو په جاهلیت دور کې یو غلطه عقیده وه. هغه دا چې که یو کس مار اوژلو نو د هغې ملګری به ضرور راځي او د دې وژنکې نه به انتقام اخلي. که نر یې وژلی وي نو د خزېنځ انتقام لپاره به راځي. او که خزېنه یې وژلې وي، نو د نر انتقام اخلي. دا چې دا غلطه عقیده په ادهام پرستۍ باندې بناء وه نو ځکه نبي کریم صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَیۡهِ‌وَسَلَّمَ منع کړه چې کوم کس دا سې عقیده ساتې نو هغه کس زمونږ نه ندی. یعنې اګر که هغه په نور اسلام باندې قائم دی خو دې خاصه شعبه کې د اسلام به طریقه نه دی. دا مطلب نه دی چې هغه کس کافر شو. (مرقات ۷۲۸،۷۲۹/۷)

## کله نه چې جنګ شروع دی صلح بیخې شوي نه ده

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ وَعَنۡ أَبِي هُرَيۡرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ: مَا سَالَمۡنَاهُمۡ مُنۡذُ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنۡهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَیۡهِ‌وَسَلَّمَ وفرمایل چې د کله نه مونږ د مارانو |

---

[1] رقم الحديث ۴۱۳۸ أحمد في المسند ۳۴۸/۱

| | | |
|---|---|---|
| حَارَبْنَاهُمْ | وَمَنْ | تَرَكَ |

سره جنګ شروع کړی دی. نو د هغه وخت نه مونږ د دوی سره مصالحت نه دی کړی. لهذا کوم کس

| | | |
|---|---|---|
| شَيْئًا | مِنْهُمْ | خِيفَةً |

چې دې مارانو کې يو مار د دې وېرې نه د وژلو نه وېرېږي چې خپله به هغه مار يا به د هغې جوړه نقصان

فَلَيْسَ مِنَّا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

راورسوي او بدله به واخلي نو هغه زمونږ نه نهٔ دی.

**توضيح**: يعني طبعاً دواړه د يو بل دښمنان دي. د مار خيال دی چې انسان کله هم ما ونيې نو سر به مې چتوي. دا زما دښمن دی. انسان سوچ کوي چې کله مې هم په مار پښه کيښودله نو ټک به راکړي او اوبه مې کړوي، نو ځکه له دواړو اړخ پخه دښمني ده. او چې د کومې نه دښمني شوې ده نو کله هم صلح نه ده شوې. څه ضعيف روايتونو کې دي چې ابليس د جنت نه د راويستلو نه وروسته بيا د ننه کولو والا مار ؤو. بيا ابليس وسوسه ورواچوله او حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ يې د جنت نه راويستلو، نو يقيناً دا کلک جنګ دی. (مرقات ۷/۷۲۹)

﴿۲۶﴾وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ

او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل ټول مارن مړه کړئ او که

كُلَّهُنَّ فَمَنْ خَافَ ثَأْرَهُنَّ فَلَيْسَ مِنِّي. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[2]

که يو کس د انتقام نه وېرېدلی وي نو هغه زمونږ نه نهٔ دی.

## د زمزم په کوهي کې مار

﴿۲۷﴾وَعَنِ الْعَبَّاسِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا

او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغې يو ورځ عرض وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

نُرِيدُ أَنْ نَكْنُسَ زَمْزَمَ وَإِنَّ فِيهَا مِنْ هَذِهِ الْجِنَّانِ يَعْنِي الْحَيَّاتِ الصِّغَارِ فَأَمَرَ

مونږ د زمزم د کوهي صفايي غواړو خو هغې کې ماران يعني واړه واړه ماران دي؟

---

[1] رقم الحديث ۴۱۳۹ أخرجه ابوداود في السنن ۵ ۴۰۹ رقم الحديث ۵۲۴۸ وأحمد في المسند ۲/ ۲۴۷

[2] رقم الحديث ۴۱۴۰ اخرجه ابوداود في السنن ۵/ ۴۰۹ رقم الحديث ۵۲۴۹ والنسائي في السنن ۶/ ۵۱.

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِهِنَّ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه مارانو د وژلو حکم وکړو.

**توضيح**: دا چې د زمزم د کوهې د صفائی ضرورت ؤو. خو مشكل دا پيښې دو چې هلته واړه واړه ماران ؤو. د هغې د وژلو خطر ؤو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې وې وژنئ اوس مجبوري ده، ځکه د دې نه بغير صفائی امکان نه لري، نو د دې حديث د عوامر د نه وژلو والا حديث سره هيڅ تعارض نشته دی. (مرقات۷/۷۳۰)

## کورنی سپین مار مه وژنئ

﴿۳۸﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: اقْتُلُوا

او د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د ټولو مارانو نه

الْحَيَّاتِ كُلَّهَا إِلَّا الْجَانَّ الْأَبْيَضَ الَّذِي كَأَنَّهُ قضيب فضّة. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

بغير د جان يعنې سپين وړوکی مار چې سپينو زرو د چاړه پشان وي.

## ورانی د مچ وکورئ

﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تاسو کې د يو کس په

فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَامْقُلُوهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ دَاءً

لوښي کې چې د خوراک څښاک څيزوي مچ وغورځيږي نو هغې له غپا ورکړئ ځکه د هغې په يو وزر کې بيماري

وَفِي الْآخَرِ شِفَاءً فَإِنَّهُ يَتَّقِي بِجَنَاحِهِ

ده او په بل وزر کې يې شفاء ده. او مچ په يو شي اول هغه وزر ډوبوي چې کوم کې بيماري ده. لهذا

الَّذِي فِيهِ الدَّاءُ

ټول مچ ته غوپه ورکول پکار دي چې د شفاء والا وزر سره هغه جراثم ورک شي کوم چې د بيمارۍ والا وزر په وجه

---

[1] رقم الحديث ۴۱۴۱ أخرجه ابوداود في السنن ۴۱۰/۵ رقم الحديث ۵۲۵۱

[2] رقم الحديث ۴۱۲۲ أخرجه ابوداود في السنن ۴۱۵/۵ رقم الحديث ۵۲۶۱

| |
|---|
| فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| په وجه د خوراک ښناک ځيز ته رسيدلې ده. |

**توضيح**: **يتقى**: دا د تقوى نه دى. د بچ کېدلو په معنى کې دى. يعني مچ خپل نبي وزر د ډوبيدلو نه بچ کوي. هغه داسې چې بني وزره اوچته نيسې او چپ وزر ډوبوې. دې کې د مچ دا شرارت وي چې د چپ وزر والا جراثم په شودو وغيره کې پرېږدې او د شفاء والا جدا ساتې چې جراثيم ختم نه شي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دا غپا کړئ چې د شفاء والا وزر هم ډوب شي او جراثيم ختم شي. ځينو شارحينو د يتقى دا ترجمه هم کړې ده چې مچ د زهر والا وزر مخکې ساتې. هغه حضرات وايي چې د لغت نه ثابت دي چې **يتقى** د **يقدم** په معنى کې استعمالېږي. بهرحال د ورو مچ شرارت خو وګورئ او د هغې عداوت وګورئ. (مرقات۷/۷۳۲،۷۳۱)

| |
|---|
| ﴿۴۰﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل |
| إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي الطَّعَامِ فَامْقُلُوهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ سُمًّا |
| چې که په خوراک کې مچ پرېوځي نو هغې له غپا ورکړه ځکه د دې په يو وزر کې زهر دي او په بل |
| وَفِي الْآخَرِ شِفَاءً وَإِنَّهُ يُقَدِّمُ السَّمَّ وَيُؤَخِّرُ الشِّفَاءَ. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[2] |
| وزر کې يې شفاء ده او مچ خپل د زهر والا وزر مخکې ډوبوې او بيا د شفاء والا. |

## د څلور قسمه ځناور وژل منع دي

| |
|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِ أَرْبَعٍ مِنَ الدَّوَابِّ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دغه څلور واړو ځناور د وژلو نه |
| النَّمْلَةِ وَالنَّحْلَةِ وَالْهُدْهُدِ وَالصُّرَدِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ[3] |
| منع کړې ده. ميږى، د شهدو مچى، هد هد او شين تيغ. |

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۴۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۲/۴ رقم الحديث ۳۸۴۴ وأحمد في المسند۳۴۰/۲.

([2]) رقم الحديث ۴۱۴۴ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۵۹/۲ رقم الحديث ۳۵۰۴ وأحمد في المسند۶۷/۳ والبغوي في شرح السنة ۲۶۱/۱۱.

([3]) رقم الحديث ۴۱۴۵ أخرجه ابوداود في السنن ۴۱۸/۵ رقم الحديث ۵۲۶۷ وابن ماجه في ۱۰۷۴/۲ رقم الحديث ۳۲۲۴.

**توضیح**: النملة: یعنې غیر مضر میږې وژل منع دي. (مرقات۷۳۳/۷)

نحلة: د شهدو مچې یو مبارک حیوان دي. او مبارک شهد تیاروي. (مرقات۷۳۳/۷)

**الهدهد**: دا یوه مرغۍ ده. دې ته اکثرو ژبو کې **هد هد** وايي. کهټ بړهئ هم ورته وايي. ملاچرچگ او ملاچرگک هم ورته وايي او کلي کرکانړې هم ورته وايي. دا چې دا مردار او بدبوداره ده نو خوراک یې جائز نه دی، نو فضول وژلو نه یې منع کړې ده. مضر هم نه دی. (مرقات۷۳۳/۷)

**صرد**: صرد یو مرغۍ ده. چې سر یې غټ وي. اوږدې اوږدې وزرې یې وي. او اوږده منبوکه یې وي. نیم سپین وي او نیم تور وي. د مرغیو ښکار کوي. دا د منجد تحقیق دی. مظاهر حق والا د دې نوم کلچړی لیکلی دی. مصباح اللغات کې د دې نوم لټورا لیکلی دی. زما په خیال زمونږ علاقه کې یو مرغۍ ده **صرد** همغه دی. چې پښتو کې ورته شین تغ وايي. اوبو کې غپا وهي، او د ماهي ښکار کوي. او امکان لرې چې د وړو مرغو ښکار هم کوي. دا بې ضرره مرغۍ ده. د دې وژل منع دي. والله اعلم

## الفصل الثالث

## تحلیل او تحریم حق فقط د شارع دی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۲﴾عَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | رَضِيَ | اللّٰهُ | عَنْهُمَا | قَالَ: | كَانَ | أَهْلُ | الْجَاهِلِيَّةِ |

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې د جاهلیت زمانه کې به خلکو د خپل نفسي خواهشاتو مطابق

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَأْكُلُونَ | أَشْيَاءَ | وَيَتْرُكُونَ | أَشْيَاءَ | تَقَذُّرًا |

څه شیزونه خوړل او څه شیزونه به یې پرېښودل. یعنې د کوم شیانو نه به یې کرکه کېدله نو هغه به یې نه خوړل،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَبَعَثَ | اللّٰهُ | نَبِيَّهُ | وَأَنْزَلَ | كِتَابَهُ |

نو الله خپل نبي راولېږلو او په هغوی باندې او د هغوی په ذریعه د هغې په امت باندې خپل کتاب نازل کړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَأَحَلَّ | حَلَالَهُ | وَحَرَّمَ | حَرَامَهُ | فَمَا | أَحَلَّ |

او خپل حلال شیان یې حلال کړي دي او حرام شیان یې حرام کړل. دغه شان الله چې کوم شیان حلال کړي دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَهُوَ | حَلَالٌ | وَمَا | حَرَّمَ | فَهُوَ | حَرَامٌ |

هغه حلال دي او د هغې نه بغیر حلال نه دي. او کوم شیانو ته یې چې حرام ویلې دي هغه حرام دي او په کومو

وَمَا سَكَتَ عَنْهُ

شيانو يې چې سکوت اختيار کړى دى يعنې د کوم شيانو باره کې يې چې څه نه دي ويلې چې دا حلال دي

فهوَ عفوٌ وتَلا

او که حرام دي. نو هغه شى معاف دى چې هيڅ مواخذه پرې نشته دى او بيا ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا آيت ولوستلو

(قُلْ لَا أَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَى طَاعِمٍ

اى محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! او ايه چې کوم احکامات د وحې په ذريعه ماته راځي هغې کې هيڅ حرام خوراک نه مومم

يَطْعَمُهُ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا) رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

د هيڅ خوراک کونکي لپاره چې کوم هغه خورې خو دا چې هغه مردار وي يا وينه. الخ.

**توضيح**: خلاصه دا چې د شريعت او د شارع حکم ته وګورئ خپل خواهشات په کې مه دا خلوئ.

﴿۴۳﴾وَعَنْ زَاهِرٍ الأَسْلَمِيِّ قَالَ: إِنِّي لَأُوقِدُ تَحْتَ الْقُدُورِ بِلُحُومِ الْحُمُرِ

او حضرت زهرا سلمى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ ما هغه پتلې ته اور بلولو چې د خر غونښه پخولو

إِذْ نَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

لپاره اينښودلى شوې وه چې ناڅاپه نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخ يو اعلان کونکې دا علان وکړو چې

أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَاكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2]

نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تاسو د خر د غوښې خوړلو نه منع کوي. (روايت کړې دې بخارى)

## د پيريانو قسمونه

﴿۴۴﴾وَعَنْ أَبِي ثعلبةَ الخُشَنِيِّ يَرْفَعُهُ:

او حضرت ابو ثعلبه خشنى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مرفوع په طريقه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د

الْجِنُّ ثَلَاثَةُ أَصْنَافٍ صِنْفٌ لَهُمْ أَجْنِحَةٌ يَطِيرُونَ فِي الْهَوَاءِ وَصِنْفٌ

پيريانو درې قسمونه دې. يو هغه پيرى دى چې د هغې وزرې وى او په هوا کې الوځي. دويم هغه

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۴۶ أخرجه ابوداود في السنن ۱۵۷/۴ رقم الحديث ۳۸۰۰.

([2]) رقم الحديث ۴۱۴۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۵۱/۷ رقم الحديث ۴۱۷۳

| |
|---|
| حَيَّاتٌ وَكِلَابٌ وَصِنْفٌ يُحِلُّونَ ويظعنونَ . رَوَاهُ فِي شرح السنّة [1] |
| قسم دي چې د مار او سپي په شکل کې ښکارې او دريم هغه قسم دي چې منزل ته کوزېږي او روانېږي. |

**توضيح**: جنات: دې حديث کې د پيريانو درې قسمه بيان کړی شوي دي. : ځېنې پيريان د مارغانو پشان الوځي. ۲: ځېنې پيريان د مار پشان کشېږي. ۳: او ځېنې پيريان کورونو ته کوزېږي. پيريان د اور نه پيدا شوی مخلوق دی. د دوی په طبيعت او خمير کې ورانی پروت دی. پيريان کې که شرارت او سرح کشې د حد نه زياته شي نو دا شيطانان شي. او ديوان ترېنه جوړ شي. او که د هغوی ورانی زيات نرم شو او د طبيعت نه اضافې ورانی ختم شو نو د دې نه پيريان جوړ شي او که ورانی په اعتدال سره وي نو دا پيريان دي. د دوی ودونه کېږي. او اولادونه يې کېږي. د دنيا په انسانانو کې چې څومره فرقې وي نو په پيريانو کې هم هغه هومره فرقې وي. دوی کې يهود او نصارىٰ، مسلمان او هندو، بدعتې، توحيدې، بريلوې ديوبندې، اهل حديث او منکر حديث، روافض او شيعه او سپاه صحابه وغيره هر قِسمه خلک وي او خپل مينځ کې يې لانجې هم وي. د پيريانو عمرونه ډېر زيات وي. (مرقات۷/۷۴۱)



[1] رقم الحديث ۴۱۴۸ مرقاة المفاتيح ۷۳/۸

# باب العقيقة

## د عقيقي بيان

اسلام دا چې يو کامل پوره بلکې د ژوند پوره ضابطه ده، نو ځکه دې کې د انسانې ژوند د هرې شعبې متعلق قواعو او قوانين موجود دي، نو د اسلام د همدغه جامعيت د نظر لاندې په حديثونو کې د نوي پيدا شوي ماشوم عقيقه او تحنيک وغيره مسائلو او فضائلو ذکر موجود دی. زما په خيال که د عقيقي باب د باب الاضحية نه وروسته ايښودلی شوی وی نو ډير به مناسب وی، ځکه عقيقه هم د قربانۍ پشان د يو ځاروي ذبح کول دي، خو کيدی شي چې لېکوال عليه الرحمة د ذبحې الفاظو ته نظر کړی وي، نو دا يې د ذبائح سره کيخودلو. والله اعلم.

**عق د يعق عقا نصر ينصر** نه په معنی د شق يشق شقاً د څيرول په معنی کې دی. دا چې د نوي پيدا شوي ماشوم د سَر ويختان خامخا غوڅول کيږي، ځکه د ويختانو د پاکولو، اؤوهه ورځ باندې نوم ايښودل او د يوې (۱) بيزې د ذبح کولو نوم عققه ايښودلی شوی دی. د امام احمد بن حنبل رحمه الله د يو قول مطابق او د ابن حزم او د اهل ظوهرو په نزد عقيقه واجب ده. د جمهور علماؤ په نزد عقيقه سنت ده، خو په دې شرط چې په اؤوه (۷) ورځو کې دننه دننه وشي. امام احمد رحمه الله او اهل ظواهرو د عقيقي لپاره د اهريقوا وغيره د امر صيغو ته په کتنې سره د وجوب قول کړی دی. جمهور فقهاء فرمايي چې اکثر حديثونو کې د عقيقي لپاره د سنت لفظ ويلی شوی دی. لهذا سنت ده، واجب نه ده. راتلونکې حديث نمبر ۸ نه معلوميږي چې د نبي کريم ﷺ د عقيقي لفظ نه خوښ نه ؤو، ځکه به نبي کريم ﷺ د نيسکه او ذبيحه اطلاق خوښولو. د دې حديث راوي فرمايي چې د عقيقه لفظ د عق نه اخستی شوی دی. چې د نافرمانۍ په معنی کې دی، ځکه د نبي کريم ﷺ خوښ نه ؤو، خو علامه توريشتی فرمايي چې دا توجيه د راوي خپل خيال دی. ګينې نبي کريم ﷺ خپله په ډيرو ځايونو کې د عقيقي لفظ استعمال کړی دی، نو د نه خوښول څه مطلب شو؟ بهرحال د عقيقي د ځاروي لپاره همغه شرط دی کوم چې د قربانۍ د ځاروي لپاره وي. روايتونو او د حديثونو مطابق عقيقه په اؤومه ورځ مسنون ده. امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمايي چې که چرې په اؤومه ورځ امکان نه لري نو بيا دې په څوالسمه (۱۴) ورځ وکړی شي. ګينې په يؤويشتمه (۲۱) ورځ دې وکړی شي او يا دې په اته ويشتمه ورځ (۲۸) ورځ وکړی شي. بيا په پنځ ديرشتمه (۳۵) ورځ وهلم جراً. امام مالک فرمايي چې د عقيقي د ځاروي هډوکې ماتول پکار نه دي. بلکې روغ دې ؤويستلی شي او خخ دې کړی شي. امام شافعي رحمه الله فرمايي چې ماتول يې صحيح دي. بيا د عقيقي غوښه پخول او خوړل بهتر دي. او اومه

غوښه تقسیمول ډیره ګټوره ده. هسي دواړه برابر دي. جاهیلت کې به د ماشوم د عقیقې په وینه کې ککړ کول کیدلو. اسلام کې دا جائز نه ده. البته په زعفرانو باندې رنګول بهتر دي.

# الفصل الاول

## د عقیقې کولو حکم

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَن سلمانَ بن عامرٍ الضَّبي قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَعَ | | | | |
| حضرت سلمان ابن عامر رضي الله عنه فرمایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلي دي چې د | | | | |
| الْغُلَامِ | عَقِيقَةٌ | فَأَهْرِيقُوا | عَنْهُ | دَمًا |
| هلک په پیدائش باندې عقیقه کول مسنون یا مستحب ده. لهذا د دې له اړخ څاروی ذبح کوئ او د | | | | |
| وأَمِيطوا عَنهُ الْأَذَى. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] | | | | |
| دې نه اذی یعنې د سر ویختان او ګند لیري کوئ. | | | | |

**توضیح**: **اهریقوا**: وینه غوزاره کړئ، د دې مطلب دا دی چې د دې له اړخه د عقیقې څاروی ذبح کړئ. (مرقات ۷/۷۴۲)

**امیطوا عنه الاذی**: اماطت د ازاله په معنیٰ کې دی. او اذیٰ نه مراد ګند دی. چې د پیدائش وخت کې د سر د ویختانو سره وي. بلکې دا ویختان خپله ګنده وي. نن سبا نو مولو ژر په هسپتالونو کې لمبوې. چې د بدن لپاره ډېر مضر دي. اکثر ماشومان چې د نیمونیا ښکار شوې وي. د هغې وجه هم دغه ده، خو ډاکټران د انګریزان په فلسفه روان دي. که د ماشوم ژر لمبول ضروري وی نو اسلام به تر اوٶه (۷) ورځو پورې کله هم تاخیر نه کولی. انګریز زده ډاکټر د نوم نلی د بیخ نه غوځ کړي. دې کې خپل د وخت فیشن خو شته دی خو خرابیدلو سره ډېر نقصان کوي. او د کلو جاهله ښځې د نوم نلی ډېر د پاس نه غوځوې چې د زخم ډکېدلو لپاره ډېر مفید وي. اکه په دې کې فیشن نه وي، نو دا د کلې جاهله ښځې د ډاکټرانو نه زیاتې عاقلې دي. (مرقات ۷/۷۴۲)

## تحنیک سنت عمل دی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ | عَائِشَةَ: | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | كَانَ يُؤْتَى |
| او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم له نوی پیدا شوی ماشوم را وستلی شو. | | | | | | | | | |

---

[1] رقم الحديث ۴۱۴۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۹۰/۹ رقم الحديث ۵۴۷۱ وأبوداود في السنن ۲۶۱/۳ رقم الحديث ۲۸۳۹

| | | |
|---|---|---|
| بِالصِّبْيَانِ | فَيُبَرِّكُ | عَلَيْهِمْ |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې لپاره د بركت دعا وكړه يعني د هغې مخې ته به يې فرمايل. الله دې تا باندې بركت او رحمت نازل | | |
| وَيُحَنِّكُهُمْ. رَوَاهُ مُسلم (۱) | | |
| كړي او د هغې تحنيک به يې كولو. | | |

**توضيح**: تحنيک د هغه عمل نوم دی چې يو عالم يا صالح كس كجوره خوله كې ښه وچيچې او بيا هغه لاړې د هغه نوې پيدا شوې ماشوم خولې كې كېږدي. ماشوم هغه تير كړي. دا كجوره خوړ شي هم دی او مباركه مېوه هم ده نو ځكه د دې انتخاب كړی شوی دی. شهد و سره هم دا عمل كېدی شي، نوی ماشوم د خوب حالت كې وي. د هغې د بدن حواس او مشاعر په دې خوړ شې سره رابيدار شي او د هغې خېټې سره ته اولنی خوراک د دې عالم يا د صالح كس د لاړو په بركت سره راشې او كله به چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چا تحنيک كولو د هغې به باره كې به څه وويل شي او بيا چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وي، بيا خو به د تحنيک شان څه بل شان وي. (مرقات ۷۴۳/۷)

## اولنی مولود في الاسلام

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ | أَسْمَاءَ | بِنْتِ | أَبِي | بَكْرٍ | أَنَّهَا | حَمَلَتْ | بِعَبْدِ | اللهِ | بْنِ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ |
| د حضرت اسماء بنت ابو بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې مكه كې عبد الله ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې نه پيدا شو. | | | | | | | | | |
| قَالَتْ: | فَوَلَدْتُ | بِقُبَاءَ | ثُمَّ | أَتَيْتُ | بِهِ | | | | |
| حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې د قباء په مقام باندې زما ولادت وشو نو ما عبد الله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | | | | |
| رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَوَضَعْتُهُ | فِي | حِجْرِهِ | ثُمَّ دَعَا بِتَمْرَةٍ |
| د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت كې پيش كړو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په غيږه كې مې كېښود لو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ كجورې راوغوښتلې | | | | | | | | | |
| فَمَضَغَهَا | ثُمَّ | تَفَلَ | فِي | فِيهِ | ثُمَّ | حَنَّكَهُ | | | |
| او هغه يې وژوله. بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلې لاړې د هغې په خوله كې واچولې. د هغې نه وروسته | | | | | | | | | |
| ثُمَّ | دَعَا | لَهُ | وبرك | عَلَيْهِ | | | | | |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې لپاره دعا وكړه او بركت يې ورله وغوښتلو يعني دا سې يې وفرمايل چې الله دې | | | | | | | | | |

(۱) أخرجه مسلم في صحيحه ۲۳۷/۱ رقم الحديث (۲۸۶/۱۰۱) وأخرجه ابوداود في السنن ۳۳۳/۵ رقم الحديث ۵۱۰۶

| |
|---|
| فَكَانَ أَوَّلَ مَوْلُودٍ وُلِدَ فِي الْإِسْلَامِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| دې باندې برکت نازل کړي، نو عبد الله ابن زبير رضي الله عنه اولنئ سړی ؤو چې د اسلام په عهد کې پیدا شو. |

**توضیح بقباء:** مدینه منوره په قباء کې کې د مدینې د انصارو یوه محله وه. نبي کریم صلی الله علیه وسلم مدینې ته د خلیدلو نه مخکې په قباء کې قیام وکړو او هلته یې د قباء بیناد کینښودلو چې د اسلام اولنئ جومات ؤو. او د رتبې به لحاظ سره په ټوله دنیا کې په اول نمبر باندې ؤو. (مرقات ۷/۷۴۳)

**اول مولود:** یعنې د هجرت نه وروسته په مهاجرینو کې چې کوم اولنی ماشوم پیدا شوی ؤو هغه عبد الله بن زبیر ؤو. او د مدینې په انصارو کې چې کوم ماشوم اول پیدا شوی ؤو هغه نعمان بن بشیر ؤو. (مرقات ۷/۷۴۳)

## الفصل الثاني

## په عقیقه کې څو چیلي وي

| |
|---|
| ﴿۴﴾ عَنْ أُمِّ كُرْزٍ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: أَقِرُّوا الطَّيْرَ |
| او حضرت ام کرز رضي الله عنها فرمايي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه اورېدلي دي چې مرغۍ د هغې |
| عَلَى مَكِنَاتِهَا. قَالَتْ: وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: |
| په جالو کې پرېږدئ. ام کرز رضي الله عنها فرمايي چې ما د نبي علیه السلام نه دا هم اورېدلي دي چې عقیقه کې |
| عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ وَلَا يَضُرُّكُمْ |
| د هلک له اړخه دوه بيزې او د جينۍ له اړخ یوه بزه ده او دې کې ستاسو لپاره هیڅ نقصان نشته دی چې دوه بیزې |
| ذُكْرَانًا كُنَّ أَوْ إِنَاثًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وللترمذي وَالنَّسَائِيّ من قَوْله: يَقُول: |
| نروي یا که ماده وي یعنې د خبرې لحاظ ضروري نه دی چې د هلک په عقیقه کې ورغمې ذبح کړی شي او د جینئ |
| عَنِ الْغُلَامِ إِلَّا آخِره وَقَالَ التِّرْمِذِيّ: هَذَا صَحِيح[2] |
| په عقیقه کې بزې ذبح کړی شي په روایت کې تر آخر پورې دي. او ترمذی ویلې دي چې دا صحیح دی. |

**توضیح اقروا الطیر علی ومکناتها:** اقروا د امر صیغه ده. په ارام او جاري ساتلو په معنی کې دی.

---

(1) رقم الحديث ۴۱۵۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۹ ۵۸۷ رقم الحديث ۵۴۶۹ ومسلم في ۳/۱۶۹۱ رقم الحديث (۲۶*۲۱۴۶)

(2) رقم الحديث ۴۱۵۲ أخرجه ابوداود في السنن ۲۲۷/۳ رقم الحديث ۲۸۳۵ والترمذي في ۸۳/۴ رقم الحديث ۱۵۱۶

(مرقات۷۴۳/۷)مکنات د مکنة جمع ده. جالې ته وايي. ځينو ويلې دي چې هګو ته وايي. دا لفظ کنات هم دی. (مرقات۷۴۴/۷) امرء القيس وايي.

وقد اغتدی والطير في وکناتها بمنجرد قيد الاوابد هيکل

ذکرانا کن: يعنې دا هيڅ باک نو کوي چې دو ورغمې وي يا که بزې وي، دا ضروري نه ده چې د هلک له اړخه ورغمې وي او له جينئ له اړخه بزې وي. (مرقات۷۴۴/۷)

د عربو عادت ؤو چې کله به يو پسې تلل نو د جالو نه به يې مرغۍ پاسولې چې د هغه د کاميابئ او د ناکامئ اندازه وشي. ک مرغۍ به د جالې ښي ته والوتله نو عرب به خوشحاله شول او سفر به يې جاري کړو او که مرغۍ به د چپ اړخ نه پاڅيدله نو نو سفر به يې ختم کړو. دا ټول د اهوام پرستئ کارونه ؤو، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع وکړه. دا د حديث يو حکم دی چې پوره شو چې داسې مه کوئ. دې حديث کې دويم حکم د عقيقې بيان کړی شوی دی. (مرقات۷۴۴/۷)

## د عقيقې طريقه

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَن الحسنِ عَن سَمُرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:الْغُلَامُ |
| او حضرت حسن بصري رحمه الله د حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل هرماشوم |
| مُرْتَهَنٌ بِعَقِيقَتِهِ تُذْبَحُ عَنْهُ |
| د خپلې عقيقې په بدل کې ګانه دی. د هغې د پيدائش په اوومه (۷) ورځ د هغې لپاره عقيقه وکړئ، |
| يَوْمَ السَّابِعِ وَيُسَمّٰى وَيُحْلَقُ رَأْسُهُ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ |
| په اوومه ورځ هغې له نوم کېږدئ او د هغې سر وخرائيوئ. دا احمد، ترمذی، ابوداؤد، او نسائی |
| لٰكِنْ فِي رِوَايَتِهِمَا رَهِينَةٌ بدلمرتهنٌ وَفِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ وَأَبِي دَاوُدَ: |
| نقل کړی دی خو ابوداؤد د نسائی په روايت کې دی. او احمد او د ابوداؤد په يو روايت کې د |
| وَيُدَمّٰى مَكَانَ : وَيُسَمّٰى وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ : وَيُسَمّٰى أَصَحُّ[1] |
| يسمی په ځای وَيُدَمّٰى دی او ابوداؤد ويلې دي چې دا لفظ د يسمی نه زيات صحيح دی. |

**توضيح**: مرتهن: يو روايت کې لفظ رهينة هم راغلی دی. هغه روايت زيات محفوظ هم دی او

[1] رقم الحديث ۲۱۵۳ أخرجه ابوداود في السنن ۲۵۹/۳ رقم الحديث ۲۷۳۷،۲۷۳۸ والترمذي في ۸۵/۴ رقم الحديث ۱۵۲۲

بامعنې هم دی، ځکه مرتهن هغه کس ته وايي چې د هغې سره رهن اېښودلی شوی وي. دا مطلب صحيح نه جوړېږي او که د مرتهن په ځای الغلام مرهون اسم مفعول واخستلی شي نو معنې به صحيح شي خو په روايتونو کې داسې لفظ نشته دی. لهذا دومره به کول غواړي چې دلته په مرتهن ويلو سره د روای نه سهو شوې ده. او صحيح لفظ همغه رهينة دی.چې ابوداؤد او په نسائي کې ذکر شوی دی.

ماشو خپله عقيقه کېڅانه دی. د دې مطلب دا دی چې که عقيقه ونه کړی شوه او ماشوم مړ شو نو د قيامت په ورځ به د خپل مور او پلار شفاعت نه کوي، نو شفاعت موقوف او محبوس دی. عقيقه باندې دويم مطلب دا دی چې د ماشوم د صحت او د هغې غټولو او د مصيبتونو نه د هغې حفاظت په عقيقه باندې موقوف دی. دې روايت کې لفظ يُدمّی هم منقول دی چې امام احمد په مسند احمد کې ذکر کړی دی. دا د تدمية نه دی چې په وينو کې د ککړ شوې په معنی کې دی. ماشوم د عقيقې په وينه کې ککړ کړی شي. دا د جاهليت طريقه وه. لهذا دې لفظ کې هم د يو راوي نه تصرف شوی دی. اصل لفظ يُسمّی دی يعنې د ماشوم نوم دې کېښودلی شي. ابو داؤد دې ته صحيح ويلې دي.

**تلطخ:** د جاهليت طريقه مکروه ده چې اوس موقوف شوې ده. د هغې په ځای اوس اسلام کې د زعفرانو او د خلوق په ذريعې باندې ماشوم رنګول کېږي، لکه څنګه چې په راتلونکې حديث نمبر ۱۰ کې ذکر دي. (مرقات۷/۷۵۱)

## د حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عقيقه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وکړه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْ | مُحَمَّدِ | بْنِ | عَلِيِّ | بْنِ | حُسَيْنٍ | | |
| حضرت محمد بن علی ابن حسين يعنې حضرت امام باقر ابن امام زين العابدين ابن امام حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د | | | | | | | |
| عَنْ | عَلِيِّ | بن | أبي | طَالب | قَالَ: | عَقَّ | رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت علي ابن طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوي چې هغې وفرمايل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل لمسي او | | | | | | | |
| عَنِ | الْحَسَنِ | بِشَاةٍ | وَقَالَ: يَا | فَاطِمَةُ | | | |
| زماځوي د حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په عقيقه کې يو بيزه ذبح کړې وه. او ويې فرمايل چې ای فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! | | | | | | | |
| احْلِقِي | رَأْسَهُ | وَتَصَدَّقِي | بِزِنَةِ | شَعْرِهِ | فِضَّةً | فَوَزَنَّاهُ | |
| د حسن سر وخرائيوه او د دې د سر د ويختانو په وزن سپين زر صدقه کړه، نو د هغې ويختان وتلل | | | | | | | |
| فَكَانَ | وَزْنُهُ | دِرْهَمًا | أَوْ | بَعْضَ | دِرْهَمٍ. | رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ: هَذَا |
| نو هغه يو درهم يا د يو درهم نه په کم وزن ؤو. نرمذی دا روايت نقل کړی دی او ويلې يې دي چې دا | | | | | | | |

| |
|---|
| حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ لِأَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ |
| حديث حسن غريب دی او دي اسناد متصل يعني مسلسل نه دي. ځکه محمد ابن علی ابن حسين |
| لَمْ يُدْرِكْ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ[1] |
| د حضرت علي ابن ابی طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه نه دی موندلی. |

**توضيح** بشاة: يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په عقيقه کې يو بزه ذبح کړه.

**سوال**: زير بحث حديث کې د يوې بزې بيان دی. سنن ابوداؤد کې هم داسې دي خو سنن نسائی کې دو کبش ذکر دی. دلته د دې نه مخکې په حديث ۴ کې د عقيقې ضابطه بيان کړی شوې ده چې د هلک له اړخ د دوه بزې او د جينۍ له اړخ د يوې (۱) بزې ذکر دی. په ظاهره خو روايتونو کې اختلاف دی.

**جواب**: اصل ضابطه خو همغه ده چې په عقيقه کې د هلک له اړخه دوه او د جينۍ له اړخه يوه بزه ده. دلته د حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په عقيقه کې چې د يوې بزې ذبح کولو ذکر دی نو دې کې به تاويل کول غواړي. اول تاويل او جواب دا دی چې افضل خو دوه دې خو د يوې بزې عقيقه په جواز باندې محمول ده. دويم جواب دا دی چې يوه بزه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخه وه او دويمه د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له اړخه يا د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له اړخه وه. دريم جواب دا دی چې د بحث لاندې روايت غير متصل دی. دې کې انقطاع ده. لهذا د دې په ځاېد دوه بزو والا روايت اولی بالقبول دی. (مرقات ۷۴۸/۷)

## عقيقه کې يې دوه ګډان ذبح کړي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَقَّ عَنِ الْحَسَنِ |
| او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت امام حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| وَالْحُسَيْنِ كَبْشًا كَبْشًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَعِنْدَ النَّسَائِيِّ: كبشين كبشين[2] |
| او د امام حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په عقيقه کې يو يو ګډ ذبح کړه. (ابو داؤد) |

**توضيح** امکان لري چې د ولادت په وخت کې يې يوه ګډ ذبح کړی وي او د عقيقې په وخت کې يې بل ګډ ذبح کړی وي، نو دې ته يو يو کبش هم ويل کېدی شي او دوه دوه هم ورته ويل کېدی شي. يا بل يو صورت کېدی شي، ځکه داد فعل النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذکر دی. چې ډېر احتمالات او

---

(۱) رقم الحديث ۴۱۵۴ أخرجه الترمذي في ۸۴/۴ رقم الحديث ۱۵۲۲

(۲) رقم الحديث ۴۱۵۵ أخرجه ابوداود في السنن ۲۶۱/۳ رقم الحديث ۲۸۴۱ والنسائي في ۱۶۶/۷ رقم الحديث ۴۲۱۹.

خصوصيات په کې راتلی شي، خو د قول النبي ﷺ همغه ضابطه ده چې په حديث نمبر ۴ کې دی چې د هلک له اړخه دوه بزې او د جينۍ له اړخه يوه بزه عقيقه ده. (مرقات ۷۴۹/۷)

## عقيقه چې د چاوي هغه دې د نافرمانۍ نه بچ شي

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: |
| او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار او د هغه د خپل نيکه نه روايت کوي هغې وويل د نبي عليه السلام نه |
| سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْعَقِيقَةِ فَقَالَ: لَا يُحِبُّ اللهُ الْعُقُوقَ |
| د عقيقې باره کې وپوښتلی شو نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چې الله عقوق نه خوښوي ګويا کې |
| كَأَنَّهُ كَرِهَ الِاسْمَ وَقَالَ: مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ |
| دا لفظ نبي کريم ﷺ د عقيقې سره د نومولو سره ناخوښ کړی دی چې د چا کره هلک پيدا |
| فَأَحَبَّ أَنْ يَنْسِكَ عَنْهُ فَلْيَنْسِكْ عَنِ الْغُلَامِ شَاتَيْنِ وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةً. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| شي نو هغه له پکار ده چې هغه د دې له اړخه دوه بزې ذبح کړي او که جينۍ پيدا شي نو يوه بزه. |

**توضيح:** د لفظ عقيقه اطلاق باندې په ابتدائي بحثونو کې کلام شوی دی. د دې حديث ظاهره مطلب دا دی چې کله د نبي کريم ﷺ نه د عقيقې باره کې وپوښتل شول نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چې الله عقوق يعني نافرمانې نه خوښوه وي. لهذا د چاچې عقيقه شوې وي نو ګوياکې هغه د عقوق نه بچ شو. ګوياکې دا د عقيقې کولو ترغيب شو. مخکې روايت کې چې د کانه کره الاسم کوم تفسير دی دا د يو راوي له اړخه دی. هغې دا ګڼلې ده چې نبي کريم ﷺ به لفظ عقوق نه خوښولو. حال دا چې واقعه داسې نه ده. نبي کريم ﷺ دا خپله استعمال کړی دی. "هٰذا ما فهمت والله اعلم" (مرقات ۷۴۹/۷)

## نبي کريم ﷺ د حضرت حسن رضي الله عنه غوږ کې اذان وکړو

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَذَّنَ فِي أُذُنِ الْحَسَنِ ابْنِ عَلِيٍّ |
| او حضرت رافع رضي الله عنه فرمايي چې ما نبي کريم ﷺ وليدلو چې د حسن ابن علی رضي الله عنه په غوږ کې يې |

---

[1] رقم الحديث ۴۱۵۶ أخرجه ابوداود في السنن ۲۶۲/۳ رقم الحديث ۲۸۴۲ والنسائي في السنن ۱۶۲/۷ رقم الحديث ۴۲۱۲.

| |
|---|
| حِينَ وَلَدَتْهُ فَاطِمَةُ بِالصَّلَاةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حسن صَحِيحٌ[1] |
| اذان وکړو کله چې هغه د حضرت فاطمې رضي الله عنها نه پیدا شو او هغه اذان د لمونځ د اذان پشان ؤو. |

**توضیح**: د سوچ مقام دی چې د چا په غوږ کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم اذان وکړي نو د هغې مقام به څومره اوچت وي. لهذا د هغې وژل به څومره لویه ګناه وي.

## الفصل الثالث

## په جاهلیت کې عقیقه څنګه وه؟

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾عَن بُرِيدَةَ قَالَ: كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا وُلِدَ لِأَحَدِنَا |
| حضرت بریده رضي الله عنه فرمایي چې د جاهلیت په زمانه کې به زمونږ رواج داؤو چې کله به مونږ کې د چا |
| غلامٌ ذَبَحَ شاةً ولَطَخَ رأسه بدمه فلَمَّا |
| هلک پیدا شو نو هغې به بزه ذبح کوله او د هغه بزې وینه به یې د هغه هلک په سر ومږله، خو کله |
| جَاءَ الْإِسْلَامُ كُنَّا نَذْبَحُ الشَّاةَ يَوْمَ السَّابِعِ وَنَحْلِقُ رَأْسَهُ |
| چې اسلام راغلو نو مونږ به د پیدائش په اؤومه (۷) ورځ بزه ذبح کوله، د هغې سر به مو خرائیلو او |
| وَنُلَطِّخُهُ بِزَعْفَرَانٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَزَاد رزين: ونُسَمِّيه[2] |
| د هغې په سر به مو زعفران مږلو. (روایت کړې دې ابوداؤد) |

**توضیح**: اسلام د جاهلیت طریق موقوف کړه او خپله مبارکه طریقه یې عملې کړه، نو اوس څکه مسلمانانو له د اسلام طریقه خپلول پکار ده. د جاهلیت زمانه کې به خلوک خپل ماشوم د څناور په وینه کې ککړولو. د هغه ماشوم په ژوند کې به درندګي پیدا شوه. اسلام د هغې په ځای د زعفرانو حکم وکړو چې ماشوم مشک او زعفران شي، څکه علماؤ لیکلي دي چې د عقیقه خوړلو سره څه شریني ورکول هم پکار ده چې د ماشوم اخلاق ښایسته شي. (مرقات ۷۵۱/۷)

---

([1]) رقم الحدیث ۴۱۵۷ أخرجه ابوداود في السنن ۳۳۳/۵ رقم الحدیث ۵۱۰۵ والترمذي في ۸۲/۴ رقم الحدیث ۱۵۱۴.

([2]) رقم الحدیث ۴۱۵۸ أخرجه ابوداود في السنن ۲۶۳/۳ رقم الحدیث ۲۸۴۳.

# كتاب الاطعمة

# د خوراكونو بيان

قال الله تعالى: ﴿وطعمون الطعام على حبه مسكيناً ويتيماً واسيراً﴾ (سورة الدهر : ۸)

وقال الله تعالى: ﴿كلوا واشربوا ولا تسرفوا﴾

اسلام دا چې كامل او پوره بلكې د ژوند پوره ضابطه ده، ځكه هغه خپل منونكو ته د ژوند د هري شعبي متعلق ښه ښه هدايات وركوي. او هغوى ته لار ښونه كوي چې مسلمانان د غير قومونو د تقليد په ځاى د نورو لپاره تقليد جوړ شي. همدغه سلسله كې اسلام د خوراك څښاك د آدابو او اصول او قاعد ښاې. دي حديثونو كې د همدغه شيانو ذكر دى.

## الفصل الاول

## د خوراك درې آداب

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن عمر بن أَبِي سَلَمَة قَالَ: كُنْتُ غُلَامًا فِي حِجْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمر ابن ابى سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه ماشوم ؤوم. او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په پرورش او تربيت كې ؤوم. |
| وَكَانَتْ يَدِي تَطِيشُ فِي الصفحة. |
| يو ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره خوراك كولو او زما لاس په لوښي كې ژرژر تاوېدلو يعني څنګه چې د ماشومانو عادت وي |
| فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سم الله |
| ما به د خپلې مخې په ځاى د لته او هلته لاس اچولو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته وفرمايل چې بسم الله وايه |
| وكل بِيَمِينك وكل مِمَّا يليك (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| په ښي لاس خوراك كوه او د هغه ځاى نه يې خوره چې تا سته نزدې وي يعنې د خپلې مخې نه يې خوره. |

**توضيح**: عمرو بن سلمه د ام سلمه اولنى خاوند ؤو. ام سلمه چې كله د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نكاح راغله نو عمرو بن سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تربيت كې راغلو. هغې اړخ ته د "في حجر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" ته اشاره كړى شوې ده.

**تطيش**: يعنې لاس مې اخوا ديخوا په لوښي كې ګرځولو. كله به مې د يو ځاى نه خوړله او كله به مې

---

(1) رقم الحديث ۴۱۵۹ مرقاة المفاتيح ۸۳/۸

د بل ځای نه خوړله لکه څنګه چې دعامو ماشومانو عادت وي. نبي کريم ﷺ هغې ته آداب وښودل. او دا چې بسم الله ويلو سره خوراک شروع کوه، دويم دا چې په ښي لاس خوراک شروع کوه، دريم دا چې د خپلې مخې نه يې خوره. دلته د درې آدابو بيان دی. د دې مطلب دا نه دی چې ټول همدغه آداب دي هيڅ حصر نشته دی. (مرقات۵/۸)

## بسم الله که ونه وايي نو شيطان به در سره خوراک کوي

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَن حُذَيفَة قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الشَّيْطَانَ يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ |
| او حضرت حذيفه رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ و فرمايل چې کوم خوراک کې د الله |
| أَنْ لَا يُذْكَرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| نوم وانغستلی شي نو هغه شيطان د خپل ځان لپاره حلال ګڼي. |

**توضيح: يستحل**: يعني د شيطان دا کوشش وي چې څنګه به مسلمان په غفلت سره خوراک شروع کړي چې شيطان ته موقع ملاوه شي او هغه يې هم ورسره وخوري. بسم الله ويلو سره دا خبيث تښتي. (مرقات۶/۸)

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا دَخَلَ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ و فرمايل کله چې يو کس خپل کور يعنې |
| الرَّجُلُ بَيْتَهُ فَذَكَرَ الله |
| د خپل خوب ځای ته داخل شي او د داخليدلو وخت کې د الله نوم اخلي يعنې بسم الله ويلو سره د |
| عِنْدَ دُخُولِهِ وَعِنْدَ طَعَامِهِ قَالَ الشَّيْطَانُ: |
| خوب ځای ته داخل شي او بيا د خوراک کولو وخت کې هم د خدای نوم واخلي، نو شيطان خپلو تابعدارانو ته وايي |
| لَا مَبِيتَ لَكُمْ وَلَا عَشَاءَ وَإِذَا دَخَلَ فَلَمْ |
| چې دې کور ستاسو لپاره هيڅ ځای نشته دی او نه خوراک شته دی. او کله چې سړی کور ته د داخليدلو |
| يَذْكُرِ اللهَ عِنْدَ دُخُولِهِ قَالَ الشَّيْطَانُ: أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ |
| وخت کې د الله نوم وانخلي نو شيطان خپلو تابعدارانو ته وايي چې دې کې تاسو ته ځای ملاو شو |

---

[1] رقم الحديث ۴۱۶۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۹۷/۳ رقم الحديث (۲۰۱۷*۱۰۲) وأبوداود في السنن ۱۳۹/۴ رقم الحديث ۳۷۶۶.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | لَمْ | يَذْكُرِ | اللهَ | عِنْدَ | طَعَامِهِ | قَالَ: |
| او کله چې د خوراک وخت کې د خدای نوم وانخلې نو شیطان خپلو تابعدارانو ته وايي چې دې | | | | | | |
| أَدْرَكْتُمُ الْمَبِيتَ وَالْعَشَاءَ". رَوَاهُ مُسلم [1] | | | | | | |
| کور تاسو ته هم ځای ملاو شو او خوراک هم درته ملاو شو. | | | | | | |

**توضیح**: د دې حدیث حاصل دا دی چې کور ته د راتللو وخت کې او بیا د خوراک کولو وخت کې چې کله سړی بسم الله او ايي نو د شیطانانو د جماعت امیر هغوی ته وایي چې دلته نه ستاسو لپاره خوراک شته دی او نه د شپې تېرولو لپاره د ځای ګنجائش شته دی، نو که کور ته د راتللو وخت کې بسم الله او نه وایي نو همدغه شیطان وایي چې ورونو! د شپې د تېرولو ځای ملاو شو او کله چې د خوراک کولو وخت کې بسم الله اونه وایي نو شیطان وایي خوشحاله شئ خوراک او شپه دواړه ملاو شول. علماؤ لیکلې دي چې بیا ابلیس جماع کې هم د هغه کس سره په جماع کې شریک شي. نن سبا دور کې د جهالت په وجه دا وباء عامه ده. مادرن طبقه د بسم الله نه لرې ده. (مرقات۸/۷)

## خوراک ځښاک په ښي لاس مسنون دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ | | | | |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کله چې تاسو کې یو کس خوراک کوي | | | | |
| فَلْيَأْكُلْ | بِيَمِينِهِ | وَإِذَا | شَرِبَ | فَلْيَشْرَبْ |
| نو خپله ښي لاس باندې خوراک کوئ او چې څيز ځښي نو شي لاس یې ځښئ یعنې د اوبو وغیره لوښي | | | | |
| بِيَمِينِهِ. رَوَاهُ مُسلم [2] | | | | |
| په ښي لاس باندې نیسئ. | | | | |

**توضیح**: **بیمینه**: شریعت د انسان په هر ځای رهنمائی کړې ده. لهذا د شریعت حکم دی چې په ښي لاس خوراک کوئ او قضائی حاجت په ښي لاس پاکوئ، اوس که یو د دې خلاف روان وي او په چپ لاس خوراک کوي نو د شریعت نافرمانۍ سره سره به د دې خوراک هم بدمزه شي، ځکه کله چې هغې ته رایاد شي اوس اوس یې قضائی حاجت په چپ لاس پاک کړو او اوس یې هغه لاس په خوله کې

(۱) رقم الحدیث ۴۱۶۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۹۸/۳رقم الحديث (۱۰۲-۲۰۱۷)وابوداود في ۱۳۸/۴رقم الحديث ۳۸۶۵

(۲) رقم الحديث ۴۱۶۲أخرجه مسلم في صحيحه ۵۹۸/۳ رقم الحديث (۱۰۵-۲۰۲۰) وأبوداؤد في السنن ۱۴۴/۴ رقم الحديث ۳۷۷۶

ایښي دي او څټي یې نو کرکه ورله راشي او خوراک بې خونده شي. (مرقات۸/۸،۷)

## په چپ لاس باندې شیطان خوراک څښاک کوي

﴿۵﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَأْكُلَنَّ أَحَدُكُمْ

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسو کې دې هیڅ یو کس

بِشِمَالِهِ وَلَا يَشْرَبَنَّ بِهَا فَإِنَّ الشَّيْطَانَ

په چپ لاس خوراک نه کوي او نه دې په چپ لاس څه شي وڅښي ځکه دا د شیطان شیوه ده چې هغه

يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِهَا. رَوَاهُ مُسلم [1]

په خپل چپ لاس خورک کوي او په چپ لاس څښاک کوي.

**توضیح**: د دې حدیث نه معلومه شوه چې کوم خلک په چپ لاس خوراک کوي، دا په حقیقت کې شیطان شوی دی. اګر که شکل یې د سړي دی. شیطان د انسان دښمن دی خو ښکارې ورته نهٔ، خو د هغې کار او کردار ښکارې، نو کوم کس چې د شیطان کردار خپلوي نو ښه پوهه شئ چې هغه د شیطان دوست او خپله ښه پوخ شیطان دی. (مرقات۸/۸)

## درې ګوتو باندې خوراک کول او ګوتې څټل سنت دي

﴿۶﴾وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ بِثَلَاثَةِ أَصَابِعَ

او حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په درېو ګوتو خوراک کولو او

وَيَلْعَقُ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يمسحها. رَوَاهُ مُسلم [2]

د خوراک د فارغېدلو نه وروسته به یې په څه رومال وغیره وچولو یا به یې د وینځلو نه مخکې څټل.

**توضیح**: **بثلاثة**: انسان له پکار ده چې خوراک کې کم نه کم درې ګوتې استعمال کړي. او د مړئ لپاره کم نه کم د درې ګوتو ضرورت وي. بیا د لوښي څټل هم د برکت سبب دی او لاس د او چولو یا د وینځلو نه مخکې هم سنت دی. دې کې برکت دی. او دې کې د خورک لذت دی. ځینې وخت کې د ضرورت په بناء د درې ګوتونو نه زیات هم نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خوراک کې استعمال کړي دي. هغې سره د جواز اړخ ته اشاره شوې ده. (مرقات۸/۹)

---

([1]) رقم الحدیث ۴۱۶۳ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۹۸/۳ رقم الحديث (۱۰۶-۲۰۲۰) وابوداود في السنن ۱۴۴/۴ رقم الحديث ۳۷۷۶

([2]) رقم الحدیث ۴۱۶۴ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۰۵/۳ رقم الحديث (۱۳۱-۲۰۳۲) واحمد في المسند۴۵۴/۳.

﴿۷﴾وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِلَعْقِ الْأَصَابِعِ وَالصَّفْحَةِ

او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګوتو او لوښي د څټلو حكم وكړو

وَقَالَ: "إِنَّكُمْ لَاتَدْرُونَ: فِي أَيِّهِ الْبَرَكَةُ؟" . رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

او ويې فرمايل چې تاسو نه پوهېږئ چې كومه ګوته كې يا په مړئ كې بركت وي.

## د خوراك نه وروسته ګوتې خپله وڅټئ يا يې په بل وڅټئ

﴿۸﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ

او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل كله چې تاسو كې يو خوراك وكړي

فَلَا يمسحْ يدَه حَتَّى يلعقها أو يلعقها (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

نو لاس تر هغه وخت پورې مه اوچوئ او مه يې وينځئ چې تر څو پورې د لاس ګوتې و نه څټئ او يا يې په بل و نه څټئ.

**توضيح: اويلعقها:** يعنې يا يې خپله وڅټې او يا يې په بل وڅټې، څټوكی داسې كس وي چې د هغې د ګوتو نه كركه نه وي مثلاً ځوی يا لور وغيره وي. واړه ماشومان وي يا خادم يا طالب علم او غلام وي. العاق د باب افعال نه په بل د څټلو په معنیٰ كې دی. وړو باندې ګوتې څټلو باندې ما خپل مشران ليدلي دي. (مرقات ۱۰/۸)

## كه د خوراك په وخت كې مړئ ولوېږي نو څه كول پكار دي

﴿۹﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " إِنَّ الشَّيْطَانَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې شيطان ستاسو سره

يَحْضُرُ أَحَدَكُمْ عِنْدَ كُلِّ شَيْءٍ مِنْ شَأْنِهِ حَتَّى يَحْضُرَهُ عِنْدَ طَعَامِهِ

هر وخت په هر كار كې موجود وي. تردې چې د خوراك كولو وخت كې هم ستاسو سره موجود وي.

فَإِذَا سَقَطَتْ من أحدكم لقمة فَلْيُمِطْ

لهذا تاسو كې چې د چانه مړئ وغورځېږي نو هغې له پكار ده چې هغه اوچت كړي او خاوره وغيره

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۶۵ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۰۶/۳ رقم الحديث (۱۳۳-۲۰۳۳)

([2]) رقم الحديث ۴۱۶۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۷۷/۹ رقم الحديث ۵۴۵۶ ومسلم في ۱۶۰۵/۳ رقم الحديث (۱۲۹-۲۰۳۱)

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | كَانَ | بِهَا | مِنْ | أَذًى | ثُمَّ | لِيأْكلها | وَلَا | يَدعهَا | للشَّيْطَانِ | |

چې کوم شی هغې پسې اينختی وي هغه پاک کړي او وي خوري، هغه شيطان ته پرېږ نه دي. او که

فَإِذا فرغ فليلعق أَصَابَ فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي: فِي أَيِّ طَعَامِهِ يَكُونُ الْبركَة؟ ". رَوَاهُ مُسلم[1]

خوراک موو کړو نو خپلې ګوتې وڅټئ ځکه دا معلومه نه دا چې کوم خوراک په کومه برخه کې برکت دی.

**توضيح: فليمط**: اماطه د ازاله په معنی کې دی يعنې که د هغې سره خس و خشاک يا څه خاوره لړېدلي وي او پاکول يې ممکن وي نو د وسه پورې هغه پاکه کړئ او د متکبرينو خلک پشان هغه په ځمک يا دسترخوان باندې مه پرېږدئ، ځکه شيطان راشي او هغه خورې. يا د هغې په ضايع کولو باندې خوشحالېږي، نو شيطان له د خوشحالئ موقع مه ورکوئ، هغه ستاسو دښمن دی. که پاکول يې امکان نه لري نو هغه سپې يا پيشو باندې وخورئ چې د الله رزق ضايع نه شي. کله چې د خوراک فارغ شئ نو په عاجزئ او انکسارئ د الله شکر ادا کړئ او ګوتې وڅټئ. دې کې برکت دی او د نظام هضم لپاره فائده مند دی. (مرقات ۱۰/۸)

## په تکيه وهلو سره خوراک کول منع دی

﴿۱۰﴾ وَعَن أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: لَا آكل مُتكئا. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2]

او حضرت ابو جحيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل زه تکی وهلو سره خوراک نه کوم.

**توضيح: متكئا**: يعنې تکی وهل او بې اعتنائی او تکبر سره خوراک نه کوم، نو زما امت له هم داسې خوراک کول پکار نه دی. دا د تکبر والا خلک کوي. (مرقات ۱۱/۸)

## مېز او چوکئ باندې د خوراک د کولو حکم

﴿۱۱﴾ وَعَن قَتَادَة عَنْ أَنَسٍ قَالَ: مَا أَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى خِوَانٍ

او حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم په مېز باندې

وَلَا فِي سُكُرُّجَةٍ وَلَا خُبِزَ لَهُ مُرَقَّقٌ قِيلَ لِقَتَادَةَ:

خوراک نه دی کړی او نه کله د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره چپاتئ پخه کړی شوې ده. د حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه

---

(1) رقم الحديث ۴۱۶۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۰۷/۳ رقم الحديث (۱۳۵-۲۰۳۳)

(2) رقم الحديث ۴۱۶۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۹/۵۴۰ رقم الحديث ۵۳۹۹وابوداو في السنن ۱۴۰/۴ رقم الحديث ۳۷۶۹.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| علی مَا يَأْكُلُونَ؟ | قَالَ: | علی | السّفر. | | | رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |

وپوښتلی شو چې نبي کريم ﷺ به څه شي خوراک کولو؟ هغې وفرمايل چې په دسترخوان باندې.

**توضيح: على خوان:** خوان اصل کې دسترخوان ته ويل کېږي خو دلته د خوان نه مراد چوکۍ يا مېز دی چې خوراک پرې کيښودلو سره خوړلی کېږي د دې لپاره چې خورک ته ښکته نه شي. دا چې مالدا، عيش پرست، متکبر او د غير اسلامي تهذيب د خلکو شيوه ده چې هغوی په چوکۍ يا مېز باندې خوراک کوي، کله کينې، کله يې په ولاړه ولاړه خورې، نو نبي کريم ﷺ دا طريقه نه ده خوښه کړې. چوکۍ باندې د خوراک رواج ځينې علماؤ کې هم راغلی دی.

**ولا في سكرجة:** يعنې نه نبي کريم ﷺ په تشتری مجمع اوتړې کې خوراک کړی دی. سُكُرَّجَةٍ سين او کاف باندې پيش او را باندې زبر سره شد دی. جيم باندې زبر دی آخر کې ګرده تا ده. او سُكُرِجة هم دی. کاف باندې سکون دی او را باندې زير دی. شد نه دی. منجد ليکلي دي "الصحفة التى يوضع فيها الاكل" هغه کاسه او پيالۍ او مجمعه او پتنوس چې خورک په کې اېښودلی کېږي. دا سامان هم عيش اړخ ته اشاره ده چې د هر شي لپاره جدا جدا لوښي او پتنوس دی. امکان لري چې د حديث په مفهوم کې هم داخل وي خو ملاعلي قاري رحمه الله مرقات کې د سکرجه نه مربه، اچار او چکنۍ ايښودلو لوښي مراد اخستې دي. او مطلب يې دا بيان کړی دی چې د خوراک نه زيات شيان چې خوراک هضم کړي د هغې لپاره به جدا جدا لوښي نه ؤو، لکه څنګه چې نن سبا تماشې راغلې يو زنده دل يحيى بن معاذ رازی رَحِمَهُ اللَّهُ نيا داره علماؤ ته وويل: ياأصحاب العلم ١:قصوركم قيصرية٢:وبيوتكم كسروية٣:واثوابكم طالوتية٤:واخفاكم جالوتية٥:واوانيكم فروعونية ٦: ومراكبكم قارونية ٧: وموائدكم جاهلية ٨: ومذاهبكم شيطانية فاين المحمدية؟"

**مرقق:** يعنې د نبي کريم ﷺ لپاره د چپاتو ډوډو اهتمام کله نه دی شوی.

**على السفر:** د سفرة جمع ده. دسترخوان ته وايي. کوم شي چې د څرمن، ريکسن يا ټوټې او د پلاسټک وي. نن سبا هم دې کې تماشې راغلې دي. البته مجبوري جدا شی دی. (مرقات١٢/٨)

---

[1]) رقم الحديث ۴۱۶۹ اخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۰/۹ رقم الحديث ۵۳۸۶ والترمذي في السنن ۲۲۰/۴ رقم الحديث ۱۷۸۸.

## نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ډوډئ ولیدله او نه وریته شوي بیزه

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَن | أنس | قَالَ: | مَا | أَعْلَمُ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | رَأَى | رَغِيفًا |

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه نه یم خبر چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم نرئ ډوډی چپاتئ لیدلې وي

| | | | |
|---|---|---|---|
| مُرَقَّقًا | حَتَّى | لَحِقَ | بِاللهِ |

تردې چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ الله سره ملاقات وشو یعني نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل ټول ژوند کې کله هم د چپاتئ صورت نه دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | رَأَى | شَاةً | سَمِيطًا | بِعَيْنِهِ | قَطُّ. | رَوَاهُ | البُخَارِيُّ[1] |

لیدلی دا چې کله یې هم چپاتئ خوړلې وهي. د غه شان نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وریته شوي بیزه هم کله په خپلو سترګو نه لیدلې.

**توضیح**: رأى: چې دا شیان یې لیدلې نه دي، نو د خواک یې سوال نه پیدا کېږي.

شاة سمیطاً: هغه زمانه کې به د چین په خلکو کې داسې رواج ؤو چې د بزې نه به یې څرمن او ویختان اویستل او د ګرمو اوبو په تپ او براس به یې کینبودله. دا چائنیز خوراک به د چین خلکو تیارولو. د هغې نه وروسته عیاش پرستو هغه طریقه خپله کړه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا لیدلې هم نه ده. (مرقات۱۲/۸)

## میده یا د اغږلی شوي وړو ډوډئ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ده خوړلې

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَن | سهل | بن | سعد | قَالَ: | مَا | رَأَى | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ النَّقِيَّ مِنْ |

او د حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کله نه الله رسول کړی دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حِينِ | ابْتَعَثَهُ | اللهُ | حَتَّى | قَبَضَهُ | اللهُ وَقَالَ: |

نو د هغه وخت نه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ میده نه لیدلې تردې چې الله د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روح قبض کړو.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | رَأَى | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | مُنْخُلًا | مِنْ حِينِ |

او حضرت سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د کله نه الله رسول کړی دی نو د هغه وخت نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کله چڼر نه

| | | |
|---|---|---|
| ابتعثهُ | اللهُ | حَتَّى |

دی لیدلی تردې چې الله د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روح قبض کړو یعني نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د رسالت ورکولو نه وروسته تر د آخري وخت پورې

---

(۱) رقم الحديث ۴۱۷۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۰/۹ رقم الحديث ۵۳۸۵ وابن ماجه في السنن ۱۱۰۰/۲ رقم الحديث ۳۳۰۹.

| | | |
|---|---|---|
| قبضَهُ | قِيلَ: | كَيْفَ |

د میدی نه تیار شوی څیز یا په چڼ چڼ شوې د وړو ډوډۍ خوړل خو لا څه، کله هم نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې صورت نه دې لیدلې.

كُنْتُمْ تَأْكُلُونَ الشَّعِيرَ غَيْرَ مَنْخُولٍ؟

نه دی لیدلی. د حضرت سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وپوښتلی شو چې بیا به تاسو د جوارو نه بغیر چڼ شوې وړو ډوډۍ څنګه

قَالَ: كُنَّا نَطْحَنُهُ وَنَنْفُخُهُ

خوړله؟ حضرت سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې مونږ به جوار د میده کولو نه وروسته هغه پوک وهلو نو د الوتلو والا

فَيَطِيرُ مَا طَارَ وَمَا بَقِي ثريناه فأكلناه. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1]

شیان به ترینه والوتل او کوم څیز به چې پاتې شو یعنې وړه، نو هغه به په اوبو کې واغړل او بیا به مو د هغې ډوډۍ پخوله.

**توضیح: النقي:** سپین میده وړو ته نقي وایي. د هغې ډوډۍ مراد ده.

**المنخل:** د وړو چڼ ته منخل وایي. په دې چڼ کړی شوې وړو ته مُنخل او منخول وایي.

**الشعیر:** یعنې د جوارو وړو کې خو ډېر پوستکې وي. هغه د ازغو پشان وي. د چڼولو نه بغیر به مو هغه څنګه خوړله؟ ویې فرمایل چې پوکی به مو ورکړو، نو غټ پوستکې به ترینه والوتل او پاتې به مو په اوبو کې لوانده کړل. او پاخول او خوړل به مو.

**ثرینا:** لوندولو ته وایي. (مرقات ۸/۱۴)

## خوراک کې نقص مه راوباسئ

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: مَا عَابَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا قَطُّ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم خوراک ته بد نه دې ویلې. که

إِنِ اشْتَهَاهُ أَكَلَهُ وَ إِنْ كرهه تركه (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2]

د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ورته زړه کېدلو نو وبه یې خوړله او که خوښه به یې نه وه نو پرې به یې ښودله.

**توضیح: ماعاب:** خوراک کې عیب هغه کس راوباسې چې د مخکې نه موړ وي. وږی شوی انسان کله هم داسې نه کوي. ویل کېږي چې خوراک ته هغه پورې خورئ چې په خوراک کې انتخاب نه

---

(1) رقم الحديث ۴۱۷۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۴۹/۹ رقم الحديث ۵۴۱۳ وابن ماجه في ۱۱۰۷/۲ رقم الحديث ۳۳۳۵.

(2) رقم الحديث ۴۱۷۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۴۷/۹ رقم الحديث ۵۴۰۹ ومسلم في ۱۶۳۲/۳

وي، خوراک کې چې کله انتخاب شروع شي نو هغه وخت لاس را ښکل پکار دي. (مرقات۸/۱۴)

## مؤمن په يوه کولمه او کافر په اؤوه کولمو خوراک کوي

| | |
|---|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْكُلُ أَكْلًا كَثِيرًا فَأَسْلَمَ فَكَانَ | |
| او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يو کس ؤو چې ډېره خوراک به يې کولو. کله چې مسلمان شو نو | |
| يَأْكُلُ قَلِيلًا فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: | |
| به يې لږه خوړله. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د هغې ذکر وشو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې | |
| إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ وَالْكَافِرُ يَأْكُلُ فِي سبعةِ أمعاء . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] | |
| حقيقت دا دی چې مؤمن خو د يوې کولمې خوراک کوي او د کافر د اؤوه (۷) کولمو خوراک کوي. | |
| وَرَوَى مُسْلِمٌ عَنْ أَبِي مُوسَى وَابْنِ عُمَرَ المسند مِنْهُ فَقَط[2] | |
| او مسلم دا روايت دی ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوي. چې دا واقعه په کې ذکر نه ده، | |
| وَفِي أُخْرَى لَهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | |
| خو مسلم د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه يو بل روايت نقل کړی دی چې هغې کې دا سې دي چې يو ورځ د | |
| ضَافَهُ ضَيْفٌ وَهُوَ كَافِرٌ فَأَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ فَحُلِبَتْ | |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ميلمه راغلو چې کافر ؤو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې لپاره د بزې د لوشلو حکم وکړو، | |
| فَشَرِبَ حِلَابَهَا ثُمَّ أُخْرَى فَشَرِبَهُ ثُمَّ أُخْرَى | |
| بزه ولوشلې شوه. او هغه کافر شوده وڅښل. بيا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم دويمه بزه ولوشلې شوه. | |
| فَشَرِبَهُ حَتَّى شَرِبَ حِلَابَ سَبْعِ شِيَاهٍ ثُمَّ إِنَّهُ أَصْبَحَ فَأَسْلَمَ فَأَمَرَ لَهُ | |
| هغې دا شوده هم وڅښل. بيا چې سحر شو نو هغه مسلمان شو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه وخت هم د هغې لپاره بزې د لوشلو حکم وکړو. | |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ فَحُلِبَتْ فَشَرِبَ حِلَابَهَا ثُمَّ أَمَرَ بِأُخْرَى | |
| بزه ولوشلې شوه. او هغې هغه شوده وڅښل بيا هغې د بلې بزې د لوشولو حکم وکړو، نو بزه ولوشلې شوه، | |

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۷۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۶/۹ رقم الحديث ۵۳۹۶ وأخرجه ابن ماجه في ۱۰۸۴/۲ رقم الحديث ۳۲۵۶.

([2]) رقم الحديث ۴۱۷۴ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۳۲/۳ رقم الحديث (۱۸۴-۲۰۶۱) والترمذي في السنن ۲۳۴/۴ رقم الحديث ۱۸۱۸

| |
|---|
| فَلَمْ يَسْتَتِمَّهَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْمُؤْمِنُ يَشْرَبُ |
| خو اوس يې د هغې شوده ټول ونه څښلی شو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې مومن په يوه |
| فِي مِعًى وَاحِدٍ وَالْكَافِرُ يشربُ فِي سَبْعَة أمعاء[1] |
| کولمه څښل کوي او کافر په اوؤ (۷) کولمو څښل کوي. |

**توضيح**: **في سبعة امعاء**: يعنې کافر په اؤوه (۷) کولمو خورک کوي. ګوياکې د کافر د خوراک اؤوه کولمې دي. (مرقات۸/۱۴)

**سوال**: دې حديث باندې په ظاهره دا اشکار کېږي چې د انسان په حيثيت ټول انسانان يو شان دي، نو بيا دا ويل څنګه صحيح کېدی شي چې د کافر اؤوه کولمې دي او د مومن يوه کولمه ده؟ مشاهده هم د دې خلاف ده. **جواب**: د دې پوښتنې مختلف جوابونه ورکړی شوي دي. علامه نؤوی رحمه الله اؤوه جوابونه ورکړي دي. علامه طيبي هم د ورکولو کوشش کړی دی. او قاضي عياض مالکی رحمه الله هم جواب ورکړی دی. ملاعلي قاري رحمه الله د دې ټول اقوال او جوابونه نقل کړي دي، خو کوم چې واضح جواب دی او ټول د هغې په نقل کولو باندې اتفاق هم کړی دی هغه د قاضي عياض جواب دی. فرمايي چې مومن په خوراک څښاک کې ډېر لالچ او حرص نه کوي، ځکه په خوراک او څښاک کې برکت راشي. او پليټ يې په لږ خوراک ډک شي، خو کافر په خوراک او څښاک کې ډېر لالچې او حرصناک وي. د هغې نقطه نظر خو د ځناور پشان د خوراک او څښاک وي، نو د دې دواړو په مينځ کې د حرص او عدم حرص په وجه د خوراک او څښاک په معامله کې دومره تفاوت دی، ګوياکې د يو او د اوؤ (۷) کولمو تفاوت دی. مومن د يوې کولمې په مقدار خوراک کوي او کافر د اوؤ (۷) کولمو په مقدار خوراک کوي. ګوياکې دا يو مثال دی. د علامه طيبي د کلام خلاصه هم تقريباً همدغه شان ده. د ټولو اقوالو خلاصه دا ده چې د کامل مومن شان زهد او قناعت او ترک دنيا ده، نو هغه په قوت لا يموت باندې صابر وی. او د کافر معامله د دې برعکس ده. اوس دا ضروري نه ده چې د هر مومن شان زهد او قناعت وي. کېدی شي چې ځينې مومن د کافر نه هم زيات حرص لري او زيات خورک کوي، خو چې هغه د خپل مومنانه شان نه غورځېدلی وي. لهذا حديث باندې په اعتراض نه راځي. (مرقات۸/۱۵،۱۴)

---

[1] رقم الحديث ۴۱۷۵ اخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۳۲ رقم الحديث (۱۸۵-۲۰۶۲) وابن ماجه في ۲/۱۰۸۴ رقم الحديث ۳۲۵۸ .

## قناعت که وي نو د دوؤ خوراک د درېو لپاره کافي کېږي

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: طَعَامُ الِاثْنَيْنِ كَافِي الثلاثةِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د دوه کسانو خوراک درې کسانو له |
| وطعامِ الثلاثةِ كَافِي الْأَرْبَعَة (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او د درې کسانو خوراک د څلورو لپاره کافي کېږي. |

**توضيح**: د حديث مطلب دا نه دی چې د دوه کسان خوراک د درې کسانو په لپاره په مړه خېټه کافي وي. بلکې که د قناعت نه کار واخستلی شي نو هغه خوراک درې کسانو له د کفايت په توګه پوره کېږي. او د څلور خوراک د کفايت په توګه اتو (۸) له کافي کېږي، لکه څنګه چې په راتلونکې حديث کې د دوه چنده خبره شوې ده چې د څلور خوراک د اتؤ (۸) لپاره د کفايت په توګه کافي کېږي. نيمه خېټه پاندې خوراک کولو سره سړی نه مرې او بل پرې ژوندی شي. دې دواړو حديثونو کې د يو ځای خوراک کولو ترغيب ورکړی شوی دی. (مرقات۸/۱۵)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: طَعَامُ الْوَاحِدِ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې د يو کس خوراک |
| يَكْفِي الِاثْنَيْنِ وَطَعَامُ الِاثْنَيْنِ يَكْفِي الْأَرْبَعَةَ وَطَعَامُ الْأَرْبَعَةِ يَكْفِي الثمانية . رَوَاهُ مُسلم[2] |
| د دوه کسانو لپاره او د دوؤ د څلورو لپاره او د څلورو د اتؤ (۸) لپاره کافي کېږي. |

## مريض کس لپاره تلبينه بهترين شی دی

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې تلبينه د |
| التَّلْبِينَةُ مُجِمَّةٌ لِفُؤَادِ الْمَرِيضِ تَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحزن (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[3] |
| بيمار زړه ته سکون او قوت ورکوي او ځينې غمونه لرې کوي. |

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۷۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۳۲/۳ رقم الحديث (۱۸۶-۲۰۶۳) والترمذي في السنن ۲۳۵/۴ رقم الحديث ۱۸۱۹

([2]) رقم الحديث ۴۱۷۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۶/۹ رقم الحديث ۵۳۹۲ ومسلم في ۱۶۳۰/۳ رقم الحديث (۱۷۸-۲۰۵۸).

([3]) رقم الحديث ۴۱۷۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۳۰/۳ رقم الحديث (۱۷۹-۲۰۵۹) والترمذي في السنن ۲۳۶/۴ رقم الحديث ۱۸۲۰

**توضیح**: التلبينة: دا د هغه حريره نوم دى چې د وړو او د شوده نه جوړېږي. دا چې د شودو (پيو) ماده زياته وي، نو ځکه ورته تلبينه ويلى شوى دى. چې ماده يې د پيو ده. په دې کې شهد او داسې نور خواږه يو ځائ کولى کيږي. نرم وي، څنبل کېدى شي. پيو کې پخ شوي مينچي چې په اختر کې پخولى کيږي، هغه هم دغه شان وي. شير خرمه هم د دې مصداق دى. (مرقات ۱۸/۸)

**مجمة**: اى مريحة مفرحة خوشحالي ورکونکى او راحت رسونکي ته وايې. چې زړه پرې خوشحاله او قوي کېږي. د همدغې بيان مخکې جملې کې راغلى دى. ګوياکې دا د هغې لپاره بيان دى. (مرقات ۱۸/۸)

## کدو د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښ ؤ

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ خَيَّاطًا دَعَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ يو درزي نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل تيار شوي خوراک لپاره دعوت ورکړو |
| صَنَعَهُ فَذَهَبْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَّبَ خُبْزَ شَعِيرٍ |
| د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره زه هم لاړم. هغې د جوارو ډوډۍ او خوروه راوړله او په دسترخوان يې |
| وَمَرَقًا فِيهِ دُبَّاءٌ وَقَدِيدٌ فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ |
| کيښودله چې کدو او اوچه غوښه هم په کې وه. ما وليدل چې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا چې کدو زيات |
| الدُّبَّاءَ مِنْ حَوَالَي الْقَصْعَةِ فَلَمْ أَزَلْ |
| خوښ ؤ نو ځکه به يې د کاسې غاړو ته کدو لټولو او خوړله به يې، نو ځکه د هغه ورځې نه وروسته |
| أُحِبُّ الدباءَ بعد يومِئذٍ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| زه کدو خوښوم، ځکه دا د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښ ؤ. |

**توضیح**: خياطاً: درزي ته وايي. دې خوش قسمته د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دعوت کې خوروه کې د اوچې غوښه پوټې اېښې ؤ. او د کدو ټوټې وي.

**قديد**: د اوچې غوښې پوټو ته وايي. کدو او ټينډه ټول د يو مزاج سبزې ده. د دې حديث نه معلومه شوه چې د غريبانانو دعوت قبلول مسنونه طريقه ده. او خپل خادمان هم د ځان سره کېنول پکار دي. او که په لوښي کې مختلف شيان وي نو د هغې انتخابول او اخستل جائز دي، خو په دې شرط چې په شريکانو بده نه لږي. (مرقات ۱۸/۸)

---

[1] رقم الحديث ۴۱۷۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۵/۹ رقم الحديث ۵۴۹۷ ومسلم في ۱۷۳۶ رقم الحديث (۹۰/۲۲۱۶)

## په اور باندې پوخ شوي شي خوړلو سره اودس لازم نه دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾وَعَن عَمرو بنِ أُمَيَّةَ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يحتز من كتف الشَّاةِ | | | |
| او د حضرت عمرو بن امیه رضی الله عنه روایت دی چې هغه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ولیدلو چې د بیزې یوه اوږه چې د هغه په | | | |
| فِي يَدِهِ | فَدُعِيَ | إِلَى | الصَّلَاةِ |
| لاس کې وه په چاړه یې غوښوله. بیا دغه دوران کې نبي علیه السلام د لمونځ لپاره راوغښتلی شو، نو نبي علیه السلام | | | |
| فَأَلْقَاهَا وَالسِّكِّينَ | الَّتِي يَحْتَزُّ بِهَا | ثُمَّ قَامَ | فَصَلَّى |
| هغه اوږه او هغه چاړه چې اوږه یې پرې غوښوله پرې یې ښودله او او دریدلو او لمونځ یې ادا کړو. | | | |
| وَلَمْ | يَتَوَضَّأْ | (مُتَّفَق عَلَيْهِ)[1] | |
| نبي علیه السلام هغه وخت اودس ونه کړو ځکه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم اودس ؤو. | | | |

**توضیح**: **یحتز**: ای یقطع: چاړه باندې غوښولو ته وایي. که غوښه سخته وي نو هغه په چاړه غوښول بهتر دي، خو که غوښه نرمه وي نو په چاړه غوښول مناسب نه دي بلکې دعجمو ناخوښه طریقه ده. د دې حدیث نه معلومه شوه چې اهل حق کله د اذان اواز واوري نو ژر لمونځ ته متوجې شي. دویمه دا خبره معلومه شوه چې اور باندې د پوخ شي خوړلو سره اودس نه ماتیږي. لکه څنګه چې د ځینو حضراتو خیال دی. (مرقات۸/۲۰)

## خوږ شی د نبي کریم صلی الله علیه وسلم خوښ ؤ

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الْحَلْوَاءَ |
| حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به خوږ څيز او شهد |
| وَالْعَسَل. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2] |
| زيات خوښول. (بخاری) |

**توضیح**: **الحلواء**: د حلواء نه مراد مطلق خوږ شی دی. د هغې نه وروسته د العسل ذکر د تخصیص بعد تعمیم د. او که د حلواء نه مشهوره حلواء مراد وي نو دې کې هم هیڅ باک نشته دی. البته خاص کول محل نظر دی. بدعتیان خلک د حلواء ډېر تعریفونه کوي. دې حدیث کې خوږ شی مراد دی. د شان والا طبیعت

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۸۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۲۴/۹ رقم الحديث ۵۳۷۹ ومسلم في ۱۶۱۵/۳ رقم الحديث (۱۴۴-۱۲۰۴۱)

([2]) رقم الحديث ۴۱۸۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۸۴/۹ رقم الحديث ۵۴۶۲ ومسلم في ۲۷۴/۱ رقم الحديث (۹۳-۳۵۵)

والاخلک هم خوږشی خوښوي، خوږوالی د جگر غذا ده. د خوشبو د زړه غذا ده. (مرقات۸/۲۰)

## سرکه بهترین سالن دی

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾وَعَنْ جَابِرٌ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَ أَهْلَهُ الْأُدُمَ. |
| او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو ورځ د خپل کور والو نه سالن وغوښتلو. |
| فَقَالُوا: مَا عِنْدَنَا إِلَّا خَلٌّ فَدَعَا بِهِ فَجَعَلَ |
| کور والو وویل چې مونږ سره سالن نشته دی. البته سرکه شته دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سرکه راغوښتله |
| يَأْكُلُ بِهِ وَيَقُولُ: نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ . رَوَاهُ مُسلم [1] |
| او د هغې سره يې ډوډۍ خوړل شروع کړه او دا به يې فرمايل چې سرکه بهترین سالن دی. سرکه بهترین سالن دی. |

**توضیح**: **ادام**: سالن ته وايي او الخل سرکې ته وايي. سرکه کم خرچ بالا نشني سالن دی. سالن هم دی. طعام هم دی. او د بدن لپاره مفید هم دی.

## د خرړي فايدې

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَنْ سعيد بنِ زيدٍ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ |
| او حضرت سعيد ابن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د خرړی د من یو قسم دی. |
| وَمَاؤُهَا . شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: |
| او د دې اوبه د سترګو لپاره شفاء ده. (بخاري او مسلم) او د مسلم یو روایت کې دي چې خرړی د |
| مِنَ الْمَنِّ الَّذِي أَنزلَ اللهُ تَعَالَى على مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَامِ (مُتَّفَق عَلَيْهِ) [2] |
| هغه مَن نه دی چې الله په حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَام باندې نازل کړی ؤو. |

**توضیح**: الکمأة: د دې جمع اکمؤ ده. ځمکې او د غر په خرباو لرږو او د ځنو بوټو په جرړلو کې دا بوټی پیدا کېږي. د دې ډېر قِسمونه دي، خو مونږ سره دوه مشهور دي. دې ته اردو کې کهمبی او زمونږ په ژبه کې ورته خرړی وايي. دا د بارانونو په موسم کې کېږي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا د سترګو لپاره شفاء ده. دې ته شحم الارض هم وايي، ځکه د وازګې پشان یو ځکې

---

(1) رقم الحديث ۴۱۸۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۵۷/۹ رقم الحديث ۵۴۳۱ ومسلم في ۱۱۰۱/۲ رقم الحديث (۲۱-۱۴۷۴)

(2) رقم الحديث ۴۱۸۳أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۲۲/۳ رقم الحديث (۱۶۶-۲۰۲۵) وأبوداود في السنن ۱۹۹/۴ رقم الحديث ۳۸۲۰

بوټي دی. شودو يا اوبو کې پخول کېږي. دا تازه غوښې پشان خوندور وي. نبي کريم ﷺ وفرمايل چې دا يو نعمت دی، لکه څنګه چې بني اسرائيلو ته د نعمت په توګه صحراء کې من او سلوی ورکړی شوې ؤو. نبي کريم ﷺ د دې يوه فائده دا ويلې ده چې که د دې اوبه وزبېښلی شي نو د شپې يو څاکی په سترګه کې واچولی شي نو نظر صحيح کېږي. باب الطب کې به د دې بيان ان شاء الله راشي.

## د خربوزې او کهجورو يو ځائ کولو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ |
| او حضرت ابن جعفر رضي الله عنه فرمايي چې ما نبي کريم ﷺ په خربوزه او تازه کجورو ملاؤولو |
| الرُّطَبَ بِالْقِثَّاءِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او خوړلو باندې ليدلی دی. |

**توضيح**: رطب: لوندو کجورو ته وايي او القثاء خربوزه ته وايي. چې اوږده اږده مېوه يې وي. ګويا کې مار دی کجوره ګرمه وي. او خربوزه يخه وي. دغه شان چې دواړه ملاو کړی شې نو اعتدال پيدا شي. (مرقات۸/۲۴،۲۳)

## د پيلو دونې فضيلت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَرِّ الظَّهْرَانِ | | | | | |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې يو موقع کې مونږ د نبي کريم ﷺ سره په مقام مر الظهر کې ؤو. | | | | | |
| نَجْنِي | | الْكَبَاثَ | | | فَقَالَ: |
| چې مکې ته نژدې يو ځای دی. او پيلو پخې پخې مېوې مو راجمع کولې. نبي کريم ﷺ وفرمايل چې | | | | | |
| عَلَيْكُمْ | بِالْأَسْوَدِ | مِنْهُ | فَإِنَّه | أَطْيَبُ | فَقِيلَ: |
| د دې کومه مېوه توره وي نو هغه واخلئ ځکه هغه ښه وي. او فائده هم رسوې. مونږ عرض وکړو | | | | | |
| أَكُنْتَ | تَرْعَى | الْغَنَمَ؟ | | قَالَ: | نَعَمْ |
| يا رسول الله ﷺ! آيا تا ﷺ بزې څرولې دي؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل آؤ. | | | | | |

[1]) رقم الحديث ۴۱۸۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۶۳/۱۰ رقم الحديث ۵۷۰۸ ومسلم في ۱۶۱۹/۳ رقم الحديث (۱۵۷-۲۰۴۹)

| |
|---|
| وهل من نبيٍّ إلاّ رعاها؟ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او کوم نبي دی چې بزې یې نه وې څرولې. |

**توضیح: بمر الظهران**: دا مکې مکرمې ته نزدې د یو مقام نوم دی. همدلته نبي کریم ﷺ د فتح مکه په موقع باندې پړاؤ اچولی ؤو.

**نجنی**: انتخابول او د راماتولو په معنی کې دی. (مرقات۸/۲۳)

**الکباث**: د پیلو پخو مېوؤ ته وایي "**ای النضیج من ثمر الراك**" (مرقات۸/۲۳)

**وهل من نبي**: صحابه کرام رضي الله عنهم کله چې د نبي کریم ﷺ نه دا واورېدل چې د پیلو د مېوؤ نه تور و خورئ دا ډېر خوندور وي، نو د دې نه صحابه کرامو انداز ه ولګوله چې دا معلومات صرف هغه خلکو ته وي چې صحراء کې بزې څروي. دې وجې نه صحابه کرامو وپوښتل چې یا رسول الله ﷺ! آیا تا بزې څرولې دي. نبي کریم ﷺ د یوې ظابطې اړخ ته اشاره وکړه چې هر نبي بزې څرولې دي. دې کې دا حکمت وي چې بزه یو عاجز او کمزوری حیوان دی، خو طبعي توګه باندې څرولو کې ډېر متحرک واقع دی. د بوټې یوه پاڼه د یو ځای نه خورې او په لیدلو سره بل ځای ته رسېږي. که معمولې کاڼې باندې ویشتلی شي نو مړه کېږي. ځنګل کې د بزې دښمنان هم زیات وي، ځکه لومېږه هم دا څېرولی شي، نو ځکه د څرونکو په مزاج کې عاجزي، اعتدلال او د سخت برداشت ماده پیدا شي. او همدغه شیان دي چې انبیاؤ ته یې ضرورت وي. چې آینده عوامو ته لاړ شي او په کولاوه سینه او په سړو مازغو هغوی پوهه کړي. بزو څرولو سره د نظم او ضبط مهارت هم حاصلیږي. چې بیا د انسانانو منظم کول او تاوده او یخ برداشت کول اسان وي. ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کې لیکلي دي چې حضرت موسی علیه السلام نه الله وپوښتل چې آیا ته پوهېږې چې تاله مو ولې نبوت درکړو.؟ حضرت موسی علیه السلام په نفې کې جواب ورکړو، نو الله جواب ورکړو چې تا یو ځل بزې څرولې او یوه بزه درنه وتښتېدله نو هغې پسې شوی او ښه ستړی شوی، خو بزه دې ونیوله او هغې ته دې وویل چې او بې وسې! ځان دې هم په مصیبت کې واچولو او زه دې په مصیبت کې واچولم. ما چې ولیدل چې په حیوان ستا دومره شفقت دی نو ته مې د انسانانو لپاره کړې او وراومې لېږلې.

نن سبا خلک بغیر د تربیت نه دعوت کونکې جوړ شي او نقصان کوي. د حدیث نه معلومه شوه چې نبوت همیشه په عاجزه او متواضع طبقاتو کې راغلی دی.

[1] رقم الحدیث ۴۱۸۵اخرجه البخاري في ۵۶۴/۹ رقم الحدیث ۵۴۴۰ ومسلم في ۱۶۱۶/۳ رقم الحدیث (۱۴۷۱-۲۰۴۳)

## د خوراک کولو وخت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کيفيت

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾وَعَن أنس قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقْعِيًا |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اقعاء په حالت کې ناسته باندې |
| يَأْكُلُ تَمْرًا وَفِي رِوَايَةٍ: يَأْكُلُ مِنْهُ أكلا ذريعاً. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| کجورو خوړلو باندې ليدلى دى او يو روايت کې دا دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کجورې ژر ژر خوړلې. |

**توضيح: مقعياً**: د اقعاء نه دى. د کيناستلو يو حالت دى. چې کس په کې په کوناټو باندې کېني او. په زنګنونو باندې ودرېږي. دا يو متواضع صورت دى.

**ذريعاً**: ژر ژر يې خوړلې. کېدى شي په څه وجه تندئ کې وُو. (مرقات۸/۲۴)

## د ملګرو سره دوه دوه کجورې يو ځاې مه خورئ

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقْرِنَ الرَّجُلُ بَيْنَ |
| او حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع کړې ده چې يو کس دوه کجورې |
| التَّمْرَتَيْنِ حَتَّى يستأذِنَ أَصْحَابه (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [2] |
| يو ځاې کړي او په يو ځل دوه کجورې وخورې، خو مګر دا چې د خپلو ملګرو نه اجازت وغواړي. |

**توضيح: ان يقرن**: د ضرب او نصر دواړو نه راځي. قران دوه کجورې يو ځاى کول او خوړلو ته وايي. علمه سيوطى فرمايي چې دا د هغه وخت خبره ده چې کله د خوراک ډېره تنګسيا وه. بيا چې کله وسعت شو نو دا حکم موقوف او منسوخ شو. اوس دوه کجورې په ځاى خوړلى شي.

بهرحال د ادب تقاضا همدغه ده چې د ملګرو سره په مجلس کې يوه يوه کجوره مستحب دي، خو جدا يې شوک خورې نو درې درې هم په وى ځل خوړلى شي. او که د مجلس ټول ملګرې اجازت وکړي نو بيا هم دوه دوه په يو ځاى خوړلى شي، لکه څنګه چې دې حديث کې ذکر دي. (مرقات ۸/۲۵)

---

[1] رقم الحديث ۴۱۸۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۷۵/۹ رقم الحديث ۵۴۵۳ ومسلم في ۱۶۲۱/۳ رقم الحديث (۱۶۳-۱۲۰۵۰)

[2] رقم الحديث ۴۱۸۷مسلم في صحيحه ۱۶۱۶/۳ رقم الحديث (۱۴۸-۲۰۴۴) و(۱۴۹-۲۰۴۴)

## کور کې د کهجورو ساتلو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:لَا يَجُوعُ أَهْلُ بَيْتٍ |
| او د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د هغه کور خلک نه وږي کېږي |
| عِنْدَهُمُ التَّمْرُ. وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ:يَا عَائِشَةُ بَيْتٌ لَا تَمْرَ فِيهِ |
| چې کوم کور کې کجورې وي. او یو روایت کې داسې دي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا چې |
| جِيَاعٌ أَهْلُهُ قَالَهَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1] |
| کوم کور کې کجورې نه وي د هغه کور والا وږې دي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا الفاظ درې ځله وفرمایل. |

**توضیح**: یعنې که په کور کې کجورې وي نو د کور والا په فقر او فاقه کې نه دي. او که کجورې په کور کې نه وي نو وږي دي. دا حدیث د هغه خلکو متعلق دی چې مدینه منوره کې اباد ؤو. د هغوی ګوزاره به صرف په کجورو وه. دغه شان دې حدیث کې د کجورو څه فضیلت هم بیان شوی دی چې کور کجورې د برکت سبب دی. د دې نه دا معلومه شوه چې کجورې کور کې ذخیره کول جائز دي. او دا هم معلومه شوه چې که صرف کجورې وي او نور هیڅ نه وي نو بیا هم کس له دا شکایت جائز نه دی چې کور کې د خوراک لپاره هیڅ نشته دی. (مرقات۸/۲۴)

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾وَعَنْ سعدٍ قَالَ: سمعتُ رسولَ الله يَقُولُ:مَنْ تَصَبَّحَ |
| او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلې دي چې کوم کس د سحر وخت کې د بل کوم |
| بِسَبْعِ تَمَرَاتٍ عَجْوَةٍ لَمْ يضرَّه ذَٰلِكَ الْيَوْمِ سم وَلَا سحر (مُتَّفق عَلَيْهِ) [2] |
| شي خوړلو نه مخکې اؤوه (۷) عجوه کجورې خوري هغې ته به د هغه ورځ هیڅ زهر او جادو نقصان نه رسوي. |

**توضیح**: **تمرات عجوة**: عجوه د مدینې په ښو کجورو کې دي. رنګ یې تور وي، خوږوالې کې ډېر خوږ نه وي بلکې معتدل وي. د دې هډوکی ګول وي. دانه هم ګول وي. ډېرې ګرانې دي. یو زمانه کې به په سل (۱۰۰) ریال یوه کلو خرڅېدله. دې کې الله یو خاصیت ایښی دی چې سحر کې د دې اؤوه دانې په نهره خوله خوړلو سره سړی د زهر او سحر نه محفوظ وي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کېدی

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۸۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۱/۵ رقم الحديث ۲۴۸۹ ومسلم في ۱۹۱۷/۳ رقم الحديث (۱۵۱-۲۰۴۵)

([2]) رقم الحديث ۴۱۸۹ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۱۸/۳ رقم الحديث (۱۵۳-۲۰۴۶) وأبوداود في السنن ۱۷۴/۴ رقم الحديث ۳۸۳۱

شي چې د عجوه کجورې لپاره دعا غوښتلې وي چې به کجوره کې دا اثر وي. د اؤوه شمیر د الله په علم کې دی چې په دې کې څه حکمت دی. آینده د عجوه نور تفصیل را روان دی. (مرقات ۸/۲۷)

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:إِنَّ فِي عَجْوَةِ |
| او د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل د عالیه په عجوه |
| الْعَالِيَةِ شِفَاءً وَإِنَّهَا تِرْيَاقٌ |
| کجورو کې شفاء ده. او هغه د زهرو وغیره لپاره دی تریاق خاصیت لري. چې د ورځ په ابتدائی |
| أَوَّلَ البكرة. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| برخه کې یعنې په نهره وخوړلی شي. |

**توضیح** العالیة: د مدینې اطرافي علاقو ته عوالي وایي. ځینې عوالي درېو نه تر د آته (۸) کلو مزتره پورې واقع دي. د بحث لاندې حدیث کې په مدینه منوره کې په عوالي د یو عوالي ذکر دی.

**اول البکرة:** یعنې سرح په نهره خوړلو سره به دا فائده وي. تریاق د یوې دوائی نوم دی چې د زهرو لپاره گټور وي. وایي (مرقات ۸/۲۸،۲۷).

چوں تریاق از عراق آورده شود مار گزیده مرده شود

## ولږه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په کور کې

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾وَعَنْهَا قَالَتْ: كَانَ يَأْتِي عَلَيْنَا الشَّهْرُ |
| او حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي چې ځینې میاشت به مونږ باندې دسې تېرېدله چې مونږ به هغې کې او رنه بلولو. |
| مَا نُوقِدُ فِيهِ نَارًا إِنَّمَا هُوَ |
| یعنې وخت به موتهوله میاشت گوزاره کوله. زمونږ کور کې د خوراک د سامان د نشتوالي په وجه په نغرې کې به اور نه بلیدلو |
| التَّمْرُ وَالْمَاءُ إِلَّا أَنْ يُؤْتَى بِاللُّحَيْمِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] |
| او هغه وخت کې به زمونږ انحصار صرف په کجورو او اوبو باندې ؤو، خو دا چې کله به لږه شان غوښه راغله. |

---

([1]) رقم الحدیث ۴۱۹۰ أخرجه البخاري في صحیحه ۵۶۹/۹ رقم الحدیث ۵۴۴۵ ومسلم في ۱۶۱۸/۳ رقم الحدیث (۲۰۴۷-۱۵۵)

([2]) رقم الحدیث ۴۱۹۱ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۶۱۹/۳ رقم الحدیث (۱۵۶-۲۰۴۸) واحمد في المسند ۱۰۵/۶.

**توضيح**: **لُحيم**: دا د لحم تصغير دی. د ثقليل لپاره دی. يعنې د بهر نه به چې کله هم چا تحفه راولېږله نو بيا به مونږ غوښه خوړله. ګنې کجورو او اوبو باندې به مو ګوزاره کوله. ياده دې وي چې د نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ولږې اختياري وي. دا د شرم سبب نه ؤو. بلکې د فخر سبب د چې د نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ذات کې د ټولو انبياؤ صفات پيدا شي.

حسن يوسف دم عيسىٰ يد بيضا داری

آنچه خوباں همه دارند تو تنها داری

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۲﴾وَعَنْهَا | قَالَتْ: | مَا | شَبِعَ | آلُ | مُحَمَّدٍ | يَوْمَيْنِ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې کله هم داسې نه دې شوي نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کور والو ته دوه ورځې | | | | | | |
| مِنْ | خُبْزِ | بُرٍّ | إِلَّا | وَأَحَدُهُمَا | تمر | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| د غنمو ډوډۍ باندې خېټه ډکه کړې وي او په هغه دوه ورځو کې يوه ورځ خوراک د کجورو نه وه. | | | | | | |

**توضيح**: **خبزبر**: يعنې د غنو په ډوډۍ خېټه نه ده ډکه شوې، د جوارو هغې باندې به ډکه وه. نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فقر او فاقې او د ترک دنيا باره يوه ضابطه د خپل ځان لپاره مقرره کړې وه. دويمه ضابطه د اهل بيتو لپاره وه. او دريمه ضابطه د عام امت لپاره وه. د ځان لپاره خالص فقر ؤو. د اهل بيتو لپاره څه د ساتلو ضرورت ؤو. د امت لپاره يې اسانې وساتله. (مرقات۲۸/۸)

## په اوبو او کهجورو باندې ګله هم خېټه ډکه نه شوه

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۳﴾وَعَنْهَا | قَالَتْ: | تُوُفِّيَ | رَسُولُ | اللّٰهِ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَمَا | شَبِعْنَا |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې دنيا نه لاړو او مونږ د هغې په ژوند | | | | | | | | | | |
| مِنَ | الأسودين | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] | | | | | | | | |
| کې کله دوه تور شيزونه يعنې کجورې او اوبه په مړه خېټه ونه ښبلې. | | | | | | | | | | |

**توضيح**: **الاسودين**: د دوه تورو نه مراد اوبه او کجورې دي. اوس پوښتنه دا ده چې د اوبو ملاوېدل څه مشکل ؤو چې په هغې يې خېټه نه وه ډکه شوې؟ نو د دې جواب دا دی چې سړی په نهره خوله اوبه نه شي ښبلی. چې په خېټه کې کجورې وغيره نه وي نو په نهره اوبه هم نه ښبل کېږي، نو ځکه د

(۱) رقم الحديث ۴۱۹۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۸۲/۱۱ رقم الحديث ۶۴۵۸ ومسلم في ۲۲۸۲/۴ رقم الحديث (۲۶-۲۹۷۲)

(۲) رقم الحديث ۴۱۹۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۸۲/۱۱ رقم الحديث ۶۴۵۵ وابن ماجه في السنن ۱۱۱۰/۲ رقم الحديث ۳۳۴۴.

کجورو نه ملاوېدلو په وجه ګويا کې او به هم په ملاوې نه شوې چې خېټه پرې ډکه شي. د اسودين د ترغيب په توګه دی. ګنې او به توري نه وی. (مرقات ۲۹/۸)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۴﴾وَعَن | النّعمانِ | بن | بشيرٍ | قَالَ: أَلَسْتُمْ |
| او د حضرت نعمان ابن بشير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغې يو موقع کې و فرمايل چې آيا تاسو چې | | | | |
| فِي | طَعَامٍ | وَشَرَابٍ | مَا | شِئْتُمْ؟ |
| خپل خوراک څښاک کې څنګه غواړي عيش نه کوئ؟ يعنې تاسو په خپل خوراک او څښاک کې د خپل خواهش مطابق وسعت | | | | |
| لَقَدْ | رَأَيْتُ | نَبِيَّكُمْ | صَلَّى | اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او افراط اختيار ولو سره د عيش او راحت ژوند تېروئ. او حال دا چې ما ستاسو نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په داسې حال کې ليدلی | | | | |
| وَمَا يَجِدُ | مِنَ الدَّقَلِ | مَا يَمْلَأُ | بَطْنَهُ. | رَوَاهُ مُسلم [1] |
| دی چې هغوی ته به ناکاره کجورې هم دومره نه ملاوېدلې چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرې خپله خېټه ډکه کړې وی. | | | | |

**توضيح:** **الدقل**: ناکاره کجورو ته دقل وايي. حضرت نعمان ابن بشير خو يا دا کلام د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ نه وروسته صحابه ته کړی دی. يا يې تابعينو ته کړی دی. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې فانې دنيا ته د عيش او عشرت لپاره نه ؤو راغلی، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دنيا د خوندونو نه ځان وساتلو. څه به چې ورسره ؤو نو په نور به يې قربانول. او خپله به يې فقر او فاقه برداشت کول. دا فقر اختياري وه. ځينې روايتونو کې دي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به صرف په کجورو ګوزاره کوله. بل هيڅ خوراک به نه ؤو. بيا يو حديث کې دي کجورې به هم ډېرې لږې وې او هغه کجورې به هم ناکاره وې. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زهد او قناعت ژوند تېر کړو او کرامت يې دې فانې دنيا ته د تعليم او مثال په توګه پرېښودلو. قصديه برده کې دي ـ

ظلمت سنة من احيا الظلام الى ❁ ان اشتكت قدماه الضر من ورم

و شد من سغب احشائه وطوی ❁ تحت الحجارة کشحاً مترف الادم

## او مه ؤوړه خوړل څنګه ده؟

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۵﴾وَعَن | أَيُّوب | قَالَ: | كَانَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | إِذَا أُتِيَ | بِطَعَامٍ |
| او حضرت ابو ايوب انصاري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې کله به نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خوراک راوړلی شو | | | | | | | | | | |

---

([1]) رقم الحديث ۴۱۹۵ اخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۸۴ رقم الحديث (۲۹۷۷) والترمذي في ۵۰۶/۴ رقم الحديث ۲۳۷۲

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَكَلَ | مِنْهُ | وَبَعَثَ | بِفَضْلِهِ | إِلَيَّ | وَإِنَّهُ | بَعَثَ | إِلَيَّ | يَوْمًا | |
| نو نبي کريم ﷺ به هغه خوړلو او پاتې خوراک به يې ماته رالېږلو. يو ورځ يې ماته داسې | | | | | | | | | |
| بِقَصْعَةٍ | لَمْ | يَأْكُلْ | مِنْهَا | لأَنَّ | فِيهَا | ثُومًا | | | |
| کاسه راولېږله چې خوراک په کې ؤو. او د هغې نه يې هيڅ نه ؤو خوړلې ځکه هغې د اوږې بوې ؤو. | | | | | | | | | |
| فَسَأَلْتُهُ: | أَحَرَامٌ | هُوَ؟ | قَالَ:لَا | وَلَكِنْ | أَكْرَهُهُ | مِنْ | أَجْلِ | رِيحِهِ | . |
| ما وپوښتل چې آيا اوږه حرامه ده؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل نه بلکې د دې د بوې په وجه زه دا نه خوښوم. | | | | | | | | | |
| قَالَ : | فَإِنِّي | أَكْرَهُ | مَا | كَرِهْتَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] | | | | | |
| ابوايوب انصاري رضي الله عنه عرض وکړو چې بيا خو يې زه هم نه خورم، ځکه کوم شي چې تاسو نا خوښه کړي دی هغه زه هم نه خوښوم. | | | | | | | | | |

**توضيح: اتى بطعام**: د يمن بادشاه په مدينه حمله وکړه چې بيا په کې د هغې ځوي مړ شو. هغې د مدينې د ورانولو قسم وخوړلو. د مدينې ځينې يهود علماؤ هغې ته وويل چې داسې مه کوه دا نبي کريم ﷺ د هجرت آخري ځای دی. هغه به د مکې نه هجرت وکړي او دلته به راشي، نو بادشاه توبه وکړه. او يو کور يې جوړ کړو چې کله هغه مدينې ته راشي، نو دې کور کې به اوسيږي. هغه يو رقعه (چيټۍ) هم ولیکله. چې يو څو شعرونه په کې ؤو. دوه شعرونه دا دي.

شهدت على احمد انه رسول من الله بارى النسم

فلو مد عمرى الى عمره لكنت وزير اله وابن عم

حضرت ابوايوانصاري رضي الله عنه د هغه بادشاه د خاندان نه ؤو او اتفاقاً په همغه کور کې اوسيدلو. نبي کريم ﷺ چې مدينې ته تشريف راوړو نو هر انصارې غوښتل چې نبي کريم ﷺ زما کور کې ؤاوسيږي نبي کريم ﷺ وفرمايل چې خما اوښه ازاده پرېږدئ، دا چې چرته کيناستله نو زه به هلته اوسيږم، نو اوښه راغله او د ابوايوب انصاري رضي الله عنه د کور مخې ته کيناستله. د مدينې انصارو به چې کله دعوت ورکولو نو خوراک به يې پوخ کړو او د هغې کور ته بې راوړلو او نبي کريم ﷺ د خپلو صحابوٴ سره خوړلو. هم هغې ته دې حديث کې اشاره ده. چې "اذا اتى بطعام" يعني کله به چې خورک راوړلی شو.

د اوږې په وجه نبي کريم ﷺ خوراک قبول نه کړو او په ملګرو يې وخوړلو. او مه اوږه خوړل

---

(١) رقم الحديث ۴۱۹۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۲۳/۳ رقم الحديث (۱۷۰-۲۰۵۳) والترمذي في السنن ۲۳۰/۴ رقم الحديث ۱۸۰۷.

حرامه نه ده. البته مکروه ده. (مرقات ۷/۳۱، ۳۰)

## د پیاز، اوږه او بدبویه شی خوړلو سره جوماتونه تلل منع دی

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:مَنْ أَكَلَ ثُومًا أَوْ بَصَلًا |
| او د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم کس چې اوږه یا کچه پیاز وخوري |
| فَلْيَعْتَزِلْنَا أَوْ قَالَ: |
| نو هغې له پکار ده چې هغه زمونږ نه جدا شي یعني زمونږ مجلس ته دې نه رائحي. یا یې دا وفرمایل چې هغې له پکار |
| فَلْيَعْتَزِلْ مَسْجِدَنَا أَوْ لِيَقْعُدْ فِي بَيْتِهِ. |
| ده چې زمونږ جوماتونه رانشي. یا یې دا وفرمایل چې هغه چرته د تلو نه په ځای خپل کورکې کیني. او دیوې |
| وَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِقِدْرٍ فِيهِ خَضِرَاتٌ مِنْ بُقُولٍ |
| ورځې واقعه ده چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم له پتیلا راوړلی شوه. چې هغې هر قسمه ترکاري وه. یعني اوږه، پیاز او غنم |
| فَوَجَدَ لَهَا رِيحًا فَقَالَ:قَرِّبُوهَا إِلَى بَعْضِ |
| وغیره نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغې کې بوې محسوس کړو نو خپلو صحابؤ کې یې یو کس ته وکړه |
| أَصْحَابِهِ وَقَالَ: كُلْ |
| او ورته ویې فرمایل چې دا هغه فلاني کس له ویسه او هغه کس یې مخاطب کړو او ویې فرمایل چې ته دا وخوره، |
| فَإِنِّي أُنَاجِي مَنْ لَا تُنَاجِي (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| زه یې نه خورم ځکه زه چې د کومې هستئ سره خبرې کوم هغې سره ته خبرې نه کوې. |

**توضیح**: **مسجدنا**: راوي ته په بیان کولو کې دوه ځای شک شوی دی نو ځکه یې "او" ذکر کړې دی. چې د شک لپاره راځي. هر هغه کس چې کچه پیاز یا اوږه یا مولئ یا ګندنا یا تمباکو یا نسوار یا پان استعمالوې او د خولې نه یې بدبوې خېژي یا هسې د بیمارۍ په وجه د هغې د خولې نه بدبویې ځي نو د داسې کس لپاره جوماتونه تلل مکروه دي. تر څو چې بدبوې لاړه نشي. د جومات نه بغیر د عام خلکو مجلسونه ته تګ هم مکروه دی. **قربوا او د اکل په الفاظو کې تعارض نشته دی**،

---

[1] رقم الحدیث ۴۱۹۷ اخرجه البخاري في صحیحه ۳۳۹/۲ رقم الحدیث ۸۵۵، ومسلم في ۳۹۴/۱ رقم الحدیث (۷۳-۵۶۴)

جدا جدا مخاطب کېدی شي جمع هم او مفرد هم. دې حدیث کې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نه خوړلو علت دا بیان کړی دی چې زما خبرې د فرښتو سره وي نو ځکه احتیاط کوم. ستاسو معامله داسې نه ده، تاسو یې وخورئ. (مرقات ۸/۳۲،۳۱)

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾وَعَنِ الْمِقْدَامِ بن معدي كرب عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت مقداد ابن معدیکرب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل |
| كِيلُوا طَعَامَكُمْ يُبَارَكْ لَكُمْ فِيهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| چې د خوراک او څښاک څیزونه تلئ. تاسو له دې کې برکت اوچولی کېږي. |

**توضیح**: کیلوا: د کیل نه دی د تللو په معنی کې دی. دا چې کوم څیزونه تلل کېږي نو هغه غله وي او غله خوړلی کېږي، نو ځکه یې په اطعمه کې ذکر کړو. ګنې دا د کتاب البیوع مسئله ده. هلته لیکلی شوې ده. (مرقات ۸/۳۲)

## د خوراک نه وروسته د الله تعالی حمد و ثناء

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَفَعَ مَائِدَتَهُ |
| او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روایت دی چې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مخې نه به چې دسترخوان اچتولی کېدلو |
| قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا |
| نو د الله په حمد او ثناء کې به یې داسې فرمایل چې ټول تعریفونه الله لره دي. داسې تعریف چې ډېر دی او پاک دی یعنې |
| مُبَارَكًا فِيهِ غَيْرَ مَكْفِيٍّ |
| ښکاره کولو او دریا نه خالي دي، چې برکت په کې اچولی شوی دی یعنې هغه داسې د برکت والا حمد دی چې |
| وَلَا مُوَدَّعٍ وَلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] |
| همیشه جاري وي او کله نه قطع کېږي. هغه نه کفایت شوی دی او نه تر ېنه بې پروائي وي. ای زمونږه ربه. |

**توضیح**: غیر مکفي: د دې لفظ نه تر آخر پورې ټولې جملې او ټول کلام د حمد صفت هم کېدی شي. او د خوراک صفت هم کېدی شي. دواړو صورتونو کې به مطلب کې فرق راځي. که د حمد صفت وي نو مطلب به داسې وي چې دا حمد به همیشه همیشه د الله لپاره قائم او دائم ساتو. هیڅ یوې مرحله

---

(1) رقم الحدیث ۴۱۹۸ اخرجه البخاري في صحیحه ۴/۳۴۵ رقم الحدیث ۲۱۲۸ وابن ماجه في السنن ۲/۷۵۱ رقم الحدیث ۲۲۳۲.

(2) رقم الحدیث ۴۱۹۹ اخرجه البخاري في صحیحه ۹/۵۸۰ رقم الحدیث ۵۴۵۸ وأبوداود في السنن ۴/۱۸۶ رقم الحدیث ۳۸۴۹.

کې به دا مونږ کافي نه ګڼو. بلکې مسلسل به جاري وي.

**ولا مودع:** یعنې دا تعریف به مونږ نه پرېږدو بلکې مسلسل به یې جاري ساتو. (مرقات۸/۳۴)

**ولا مستغنی عنه:** او نه به مونږ د دې حمد نه مستغنې کېږو. بلکې دې ته مونږ هر وخت محتاجه یو. خلاصه دا چې دا په هیڅ حد کافي ونه ګڼلی شي او نه دا پرېښودلی شي او نه د دې نه بې پروائی وکړی شي. که دا جملې د خوراک صفت جوړ کړی شي نو بیا به د دې جملو مطلب دا سې وي چې خورک د الله نعمت دی. هیڅ وخت دا کافي ونه ګڼلی شي بلکې هر وخت د دې احتیاج ساتل پکار دی.

**ولا مودع:** یعنې نه د دې لټه او طلب پرېښودلی کېدی شي او نه د دې نه مستغنې کېدلی شي. (مرقات۸/۳۴)

## د خوراک څکاک نه وروسته د الله شکر ادا کړئ

﴿۳۹﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَيَرْضَى عنِ العبدِ أنْ يأكلَ الأكلَةَ فيحمدُه عَلَيْهِ أَوْ يَشْرَبَ الشَّرْبَةَ فَيَحْمَدَهُ عَلَيْهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل الله د بنده د هغه خبرې نه خوشحاله او راضي کېږي چې یوه مړئ وخوري او هغې باندې د خدای حمد او ثناء بیان کړي یا یو ځل وڅکي او په هغې د خدای حمد او ثناء بیان کړي، نور دوؤ (۲) روایتونو کې چې هغې کې یو روایت د

سنذکرُ حَدِيثَي عائشةَ وَأَبِي هريرةَ: مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الدُّنْيَا. فِي بَابِ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دی او دویم روایت د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی. دا دواړه روایتونه به ان شاء الله مونږ په باب فضل الفقراء کې نقل کوؤ یعنې دواړه روایتونه صاحب مصابیح په کتاب الاطعمه کې نقل کړي وو خو مونږ دا په باب فضل الفقرآء کې نقل کړی دی.

**توضیح:** یعنې چې د چا کلی وي نو د هغه ځای بادشاه درباندې خوري نو تعریف هم د هغې پکار دی ځکه "الانسان عبدالاحسان"

---

[1]) رقم الحدیث ۴۲۰۰ اخرجه مسلم فی صحیحه ۲۰۹۵/۴ رقم الحدیث (۸۹-۲۷۳۴)

# الفصل الثاني

## د خوراک نه مخکې بسم الله ووايئ

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾عَن أَبِي أَيُّوب قَالَ: كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُرِّبَ طَعَامٌ |
| حضرت ابو ایوب انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ؤو چې خوراک راوړلی شو. |
| فَلَمْ أَرَ طَعَامًا كَانَ أَعْظَمَ بَرَكَةً مِنْهُ |
| د خوراک دوران کې ما محسوسه کړه چې ما هغه چې په دې خوراک کې کوم لويې برکت وليدلو کله |
| أَوَّلَ مَا أَكَلْنَا وَلَا أَقَلَّ |
| چې مونږ خوراک شروع کړی ؤو. داسې برکت ما په هيڅ خوراک کې نه ؤو ليدلی او د خوراک په |
| بَرَكَةً فِي آخِرِهِ قُلْنَا: |
| آخر کې مې چې کوم کم برکت وليدلو نو داسې کم برکت هم په هيڅ خوراک نه ؤو ليدلی، نو مونږ عرض وکړو |
| يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ هَذَا؟ قَالَ: |
| چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! د دې څه سبب دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې حقيقت کې |
| إِنَّا ذَكَرْنَا اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ حِينَ أَكَلْنَا ثُمَّ قَعَدَ مَنْ أَكَلَ |
| مونږ د خوراک په اول کې د الله نوم اخستی ؤو خو وروسته يو داسې کس کيناستلو چې خوراک يې خو وکړو |
| وَلَمْ يُسَمِّ اللهَ فَأَكَلَ مَعَهُ الشَّيْطَانُ. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[1] |
| خو د الله نوم يې وانغستلو. لهذا د هغې سره شيطان هم وخوړله. په دې وجه آخر کې بې برکتې وشوه. |

## که هير شي در نه نو په مينځ کې هم بسم الله ووايئ

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کله چې تاسو کې کوم کس خوراک |
| فَنَسِيَ أَنْ يَذْكُرَ اللهَ عَلَى طَعَامِهِ فَلْيَقُلْ: |
| ته کيني او شروع کې ترېنه د الله نوم هير شي او د خوراک په مينځ کې ورته راياد شي نو هغې له |

[1] رقم الحديث ۴۲۰۱ أخرجه البغوي في شرح السنة ۲۷۵/۱۱ رقم الحديث ۲۸۴۴

بِسۡمِ اللهِ أَوَّلَه وآخرَه". رَوَاهُ التِّرمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد(۱)

پکار ده چې هغه دا او ايي چې بسم الله اوله و اخره.

﴿۴۲﴾وَعَن أُمَيَّةَ بن مَخۡشِيِّ قَالَ: كَانَ رَجُلٌ يَأۡكُلُ فَلَمۡ يُسَمِّ

او حضرت اميه بن مخشی رضي الله عنه فرمايي چې يو ورځ يو کس د خورک لپاره کيناستلو نو هغې د الله نوم وانخستلو

حَتَّى لَمۡ يَبۡقَ مِنۡ طَعَامِهِ إِلَّا لُقۡمَةٌ

يعنې د بسم الله لوستلو نه بغير کيناستلو تردې چې هغه کې خوراک کې بغير د يوې مړئ نه بغير هيڅ پاتې نشو

فَلَمَّا رَفَعَهَا إِلَى فِيهِ

او هغې ته راياد شول مانه د خوراک په شروع کولو کې بسم الله هيره شوې وه، نو هغې هغه آخري مړئ خلې

قَالَ: بِسۡمِ اللهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ

ته د وړولو وخت کې بسم الله اوله و آخره وويله. نبي کريم صلی الله عليه وسلم دې ليد لو سره وخندل او

ثُمَّ قَالَ: مَا زَالَ الشَّيۡطَانُ يَأۡكُلُ مَعَهُ فَلَمَّا ذَكَرَ اسۡمَ اللهِ

ويې فرمايل چې شيطان د دې سره سم لړيا ؤو خو چې دې د الله نوم واخستلو نو د شيطان نه هغه

اسۡتَقَاءَ مَا فِي بَطۡنه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۲)

ټول څه راؤتل کوم چې د هغې په خيټه کې ؤو.

**توضيح**: استقاء: کوم څه يې چې په خيټه کې ؤو هغه يې کانګې کړي. څه يې چې تېر کړي ؤو هغه يې راغوزار کړل. (مرقات۸/۳۹)

## د خوراک نه وروسته دعا

﴿۴۳﴾ وَعَنۡ أَبِي سَعِيدٍ الۡخُدۡرِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَرِغَ مِنۡ طَعَامِهِ

او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چې کله به نبي کريم صلی الله عليه وسلم د خوراک نه فارغ شو

قَالَ: الۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطۡعَمَنَا

نو فرمايل به يې هر قسمه تعريف د الله لپاره مناسب دی. چې هغې مونږ له د خورک لپاره راکړل. مونږ

(۱) رقم الحديث ۴۲۰۲ أخرجه أبوداود في السنن ۱۳۹/۴ رقم الحديث ۳۷۶۷ والترمذي في ۲۵۴/۴ رقم الحديث ۱۸۵۸

(۲) رقم الحديث ۴۲۰۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۴۰/۴ رقم الحديث ۳۷۶۸ وأحمد في المسند ۳۳۶/۴

وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِينَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْن مَاجَه[۱]

لهٔ يې څښناک راکړو او مونږه يې مسلمانان کړو. (ترمذی، ابوداؤد، ابن ماجه)

﴿۴۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الطَّاعِمُ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل چې څوک خوراک و کړي

الشَّاكِرُ كَالصَّائِمِ الصابر. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[۲] وَابْن مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ

او هغه د الله شکر ادا کړي نو هغه د صبر کونکي او د روژه دار پشان دی. (ترمذی) ابن ماجه او دارمي

عَنْ سِنَانِ بْنِ سَنَّةَ عَنْ أَبِيه[۳]

دا روايت د سنان بن سنه نه او هغې د خپل پلار نه نقل کړی دی.

﴿۴۵﴾وَعَنْ أَبِي أَيوبِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَكَلَ أَوْ شَرِبَ قَالَ:

او حضرت ابو ايوب فرمايي کله به نبي کريم صلی الله علیه وسلم خوراک او څښناک کولو نو فرمايل به يې

الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَ وَسَقَى

چې هر قسمه تعريف د الله لپاره لائق دی. چاچې خوراک راکړو اد خورک او څښناک څيزونه يې په

وَسَوَّغَهُ وَجَعَلَ لَهُ مخرجا رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۴]

اسانۍ سره د تالو نه تير کړل او د هغې د ويستلو لاريې پيدا کړه.

## د خوراک نه مخکې او وروسته لاس وينځۍ

﴿۴۶﴾وَعَن سلمانَ قَالَ: قَرَأْتُ فِي التَّوْرَاةِ

او حضرت سلمان رضي الله عنه فرمايي چې ما د اسلام قبلولو نه مخکې به تورات کې لوستلي ؤ چې په

أَنَّ بَرَكَةَ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ بَعْدَهُ

خوراک کې د برکت د خوراک نه وروسته او دس کول دي، نو د اسلام د قبلولو نه وروسته يو وړځ ما

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۰۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۷/۴ رقم الحديث ۳۸۵۰ والترمذي في ۴۷۴/۵ رقم الحديث ۳۴۵۷.

(۲) رقم الحديث ۴۲۰۵ أخرجه الترمذي في السنن ۵۶۳/۴ رقم الحديث ۲۸۳۲ وأحمد في المسند ۲۸۳/۱

(۳) رقم الحديث ۴۲۰۶ أخرجه ابن ماجه في السنن ۵۶۱/۱ رقم الحديث ۱۷۶۵ والدارمي في ۱۳۰/۲ رقم الحديث ۲۰۲۴

(۴) رقم الحديث ۴۲۰۷ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۷/۴ رقم الحديث ۳۸۵۱

| |
|---|
| فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَرَكَةُ |
| نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د دې مضمون ذکر وکړو، نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې خوراک کې |
| الطَّعَامِ الْوُضُوءُ قَبْلَهُ وَالْوُضُوءُ بعدَه. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[1] |
| د برکت ذريعه د خوراک نه مخکې اودس کول دي او د خوراک نه وروسته اودس کول دي. |

**توضيح: في التوراة:** تورات کې د خوراک کولو نه وروسته د لاس وينځلو او د خولې د کنګالولو بيان ؤو. صحابي هغه لوستلی ؤو. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې د هغې تذکره وکړه چې د خوراک نه مخکې هم لاس وينځل پکار دي او د خوراک نه وروسته. دا دواړه د برکت سبب دی. ګوياکې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشاره وکړه چې شريعت محمد کامل او پوره بلکې اکمل دين دی. د شريعت د تکميل تقاضا ده چې د خوراک نه مخکې هم لاس وينځل دي او وروسته هم وينځل دي. دلته د اودس نه اصطلاحي اودس والا اودس مراد نه دی بلکې د دې نه نه لغوي اودس مراد دی، چې صرف لاس وينځل او خله کنګالول دي، او همدغه اودس د **مما مست النار** لپاره دی، جلد اول کتاب الطهارة کې دا مسئله په تفصيل سره ليکلې شوې ده. (مرقات ۴۱/۸)

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ |
| او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تشناب نه بهر ته راغلو نو |
| فَقُدِّمَ إِلَيْهِ طَعَامٌ فَقَالُوا: أَلَا نَأْتِيكَ بِوَضُوءٍ؟ |
| نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له خوراک راوړلې شو. ځينې صحابه کرامو عرض وکړو چې مونږ تاله د اودس اوبه |
| قَالَ: إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ |
| راوړو؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې ماته د بې اودسۍ نه وروسته د اودس کولو حکم د وجوب د طريقې |
| إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلَاةِ رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد |
| حکم هغه صورت کې راکړې شوی دی چې لمونځ ته د اودريدلو اراده وکړمه. (ترمذی، ابوداؤد، |

---

[1] رقم الحديث۳۲۰۸ أخرجه ابوداود في السنن ۱۳۶/۴ رقم الحديث ۳۸۵۱ والترمذي في ۲۴۸/۴ رقم الحديث ۱۸۴۶.

وَالنَّسَائِيُّ[1] وَرَوَاهُ ابْن مَاجَه عَن أَبِي هُرَيْرَة[2]

نسائی) او ابن ماجه دا روايت د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی.

**توضيح**: يعنې اصطلاحي شرعې او دس هغه وخت کې کله چې سړی لمونځ ته اودرېږې او اودس يې نه وي، نو هغه وخت اودس فرض دی. د خوراک کولو لپاره اصطلاحي اودس لازم نه دی.

## مينځ پر پرېدئ او د غاړو نه يې خورئ

﴿۴۸﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّهُ أُتِيَ بِقَصْعَةٍ مِنْ ثَرِيدٍ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نقل کوي چې يو ورځ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې د ثريد يوه

فَقَالَ: كُلُوا مِنْ جَوَانِبِهَا

پياله راوړلی شوه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په مجلس کې موجود صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته وفرمايل چې د دې

وَلَا تَأْكُلُوا مِنْ وَسَطِهَا فَإِنَّ الْبَرَكَةَ تَنْزِلُ فِي وَسَطِهَا.

پيالې د غاړو نه يې وخورئ، د دې د مينځ نه يې مه خورئ، ځکه برکت د دې په مينځ کې نازلېږي.

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حسن صَحِيح

(ترمذی، ابن ماجه، دارمي) ترمذی ويلې دي چې دا حديث صحيح حسن دی او د

وَفِيْ رِوَايَةِ اَبِيْ دَاودَ قَالَ اِذَا اَكَلَ اَحَدُكُمْ طَعَامًا

ابوداؤد په روايت کې داسې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل: تاسو کې يو کس د خوراک کولو لپاره کينې

فَلَا يَأْكُلْ مِنْ اَعْلَى الصَّحْفَةِ وَلٰكِنْ يَأْكُلْ مِنْ اَسْفَلِهَا

نو هغې له پکار ده چې د پيالې د بره نه يې نه خورې بلکې د پيالې د لاندې نه دې خورې ځکه د

فَاِنَّ الْبَرَكَةَ تَنْزِلُ مِنْ اَعْلَاهَا[3]

برکت برنئ برخه کې نازلېږي.

---

[1] رقم الحديث ۴۲۰۹ أخرجه أبوداود في اسنن ۱۳۶/۴ رقم الحديث ۲۷۶۰ والترمذي في ۲۴۸/۴ رقم الحديث ۱۸۴۷

[2] رقم الحديث ، ۴۲۱ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۰۸۵/۲ رقم الحديث ۳۲۶۱

[3] رقم الحديث ۴۲۱۱ أخرجه أبوداود في السنن ۱۴۲/۴ رقم الحديث ۳۷۷۲ والترمذي في ۲۲۹/۴ رقم الحديث ۱۸۰۵

**توضيح: کلوا من جوانبها:** د لوښي مينځ کې د خوراک لويه برخه وي. برکت او ادب د خوراک دا دی چې دې کې د لوښې برخې د غاړو نه وخوړلی شي. دا نه چې د خوراک ابتداء د مينځ نه وکړي او دا راوغورځوي. دا سپک خوئي هم دی. او د برکت لپاره نقصان هم دی. د اعلى رکابي نه همدغه پاسنۍ برخه مراد ده. او د اسفل رکابي نه لاندنۍ برخه او د هغې غاړې مراد دی.

**ثريد:** هغه خوراک ته وايي چې ډوډۍ په ښوروه کې اچولو سره ښه نرمه کړی شي او بيا وخوړلی شي، خوندوره هم وي، ژر هضميږي هم او کم خرچ بالانشين هم ده. (مرقات۸/۴۳)

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم په تکيه وهلو سره خوراک نه دی کړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَن عبد الله بن عَمرو قَالَ: مَا رُئِيَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مُتَّكِئًا | | | | | |
| او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تکيه لګولو سره خوراک کولو | | | | | |
| قَطُّ | وَلَا يَطَأُ | عقبه | رجلَانِ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] |
| باندې نه دی ليدلی شوی او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شاته به دوه کسان هم نه تلل. | | | | | |

**توضيح: متکأً:** تکيه لګول سره خوراک کول د متکبرين او متجبرينو عادت دی. چې خوراک هم کوي او بې احتياجې هم ظاهروي. ګويا کې هغه الله او د هغې د رزق نه بالکل بې احتياجه دی.

**ولا يطأُ عقبه رجلان:** يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خلکو نه مخکې مخکې د ملګرو به جلوه کې نه تللو. بلکې په مينځ کې به ؤو. کله کله به داسې هم ؤو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به بالکل آخر کې ؤو. او دوه کسان به هم د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شاته نه ؤو. د زياتو خو هيڅ خبره نشته، خو که يو کس به ؤو نو د هغې نفي نشته، لکه څنګه به چې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځانله ؤو. بهرحال دا د عام معمول ضابطه نه ده بلکې کله به يو صورت ؤو او کله به بل صورت ؤو.

**عقب:** پوندې ته وايي. مراد ترې شاته کېدل دي.

## په جومات کې د خوراک کولو مسئله

| |
|---|
| ﴿۵۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ: أُتِيَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخُبْزٍ |
| او حضرت عبد الله بن حارث بن جزء فرمايي چې يو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې ډوډۍ او د |

[1] رقم الحديث ۴۲۱۲ أخرجه أبوداود في السنن ۴/۱۴۱ رقم الحديث ۳۷۷۰ وابن ماجه في ۱/۸۹ رقم الحديث ۲۴۴.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَحْمٍ | وَهُوَ | فِي | الْمَسْجِدِ | فَأَكَلَ |

غوښې والا خوراک راوړلی شو، خو نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ په جومات کې وُو. هغه خوراک نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ هم وخوړلو

وَأَكَلْنَا مَعَهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى وَصَلَّيْنَا مَعَهُ

او د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ سره مونږه هم وخوړلو. بیا او دریدلو او نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لمونځ وکړو. مونږ هم ورسره لمونځ

وَلَمْ نَزِدْ عَلَى أَنْ مَسَحْنَا أَيْدِيَنَا

وکړو، نور د دې نه مونږ هیڅ زیات و نه کړل چې د خوراک د فارغ کیدلو نه وروسته چې لاسونه مو په هغه کاڼو او چ

بِالْحَصْبَاءِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1]

کړي ؤو چې کوم په جومات کې ؤو.

**توضيح: فأكل**: که مجبوري او ضرورت وي نو جومات کې خوراک او څښاک جائز دی یا څوک مسافر دی د هغې هیڅ ځای نشته دی. یا دیني طلبه دي یا د محلې کس دی خو کور کې یې ځای تنګ دی او هغه مجرد دی. ناواده کړی شوی دی یا یو اعتکاف کونکی دی، نو دې خلکو لپاره جومات کې خوراک جائز دی، خو په دې شرط چې جومات کې د ګندګۍ احتمال نه وي. که ګندګي خوریږي نو بیا خوراک کول حرام یا مکروه دی. نن سبا خلک د اعتکاف په نیت جومات کې خورک کول جائز کوي، نو هغوی له د دوه خبرو خیال ساتل پکار دي. یو دا چې که چرې اعتکاف د څلېریش (۲۴) ساعت لپاره دی نو روژه نیول لازم دي. دویمه خبره دا چې اعتکاف د عبادت لپاره وي. د خورک او څښاک جائز کولو په نیت اعتکاف نه کیږي. لهذا د عبادت په غرض اعتکاف وکړئ، خوراک به خپله راشي. بیا اعتکاف کې ګپ شپ لګول به هم منع وي. (مرقات۸/۴۵)

﴿۵۱﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ورځ د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ په خدمت کې پخه کړې وریته شوې غوښه راوړې

فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ

شوه. هغې کې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ته د لاس برخه ورکړی شوه، ځکه د لاس برخه د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ډېره خوښه

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۱۳ أخرجه ابن ماجه في ۲/۱۰۹۷ رقم الحديث ۳۳۰۰

| |
|---|
| فَنَهَسَ مِنْهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْن مَاجَه[1] |
| وه، نو هغه نبي كريم ﷺ په غابنونو باندې په راخكلو سره وخوړلو. |

**توضيح**: د بې تكلفۍ او ساده والې په وجه نبي كريم ﷺ په خوله غوښه خوړلې ده. او كه غوښه نرمه وي نو داسې كول پكار دي.

**فنهس**: غابنونو باندې چيچلو سره خوراك كولو ته نهس وايي. (مرقات۸/۴۵)

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:لَا تَقْطَعُوا اللَّحْمَ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل غوښه په چاړه مه غوڅوئ |
| بِالسِّكِّينِ فَإِنَّهُ مِنْ صُنْعِ الْأَعَاجِمِ وَانْهَسُوهُ |
| يعني چاړه باندې غوڅولو سره غوښه مه خورئ ځكه دا د عجميانو طريقه ده. بلكې غوښه په غابنونو |
| فَإِنَّهُ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَقَالَا: لَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ[2] |
| باندې خورئ، ځكه غابنونو باندې غوښه خوړلو سره خوندوره او ډېره خوشګواره وي. |

**توضيح**: **لاتقطعوا**: يعنې بغير له ضرورته غوښه په چاړه باندې غوڅول او خوړل د متكبره عجمو كار دي. غوښه كه ښه پخه او نرمه وي نو په خولې باندې خوړل پكار ده. دې كې ډېرې فائدې دي. چاقو باندې د زخمي كېدلو خطره نشته دي. د تكبر او غرور خطر نشته دي، د نبي كريم ﷺ د نافرمانۍ خطر نشته دي. او كه مجبوري وي نو مجبوري خو مجبوري ده، په دې كې نرمي ضرور شته دي.

**وانهسوه**: نهس د غابنونو په غاړو باندې خوړلو ته وايي.

**اهنأ**: د هنأ نه دي، خوندور او موافق د طبعي خوراك ته وايي.

**وامرأ**: چې په اسانۍ تېرېږي او نه بوج كېږي. يعنې راحت رسونكى او ښائسته خوند والا ښه هضميدونكى دى آيت: ﴿هنيأ مريأ﴾ اړخ ته اشاره "فانه" كې د النهس اړخ ته ضمير راجع دى.

## د مرض لپاره پرهيز ضروري دى

| |
|---|
| ﴿۵۳﴾وَعَن أُمِّ المنذِرِ قَالَتْ: دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ام منذر انصاريه رضي الله عنها فرمايي چې يو ورځ نبي كريم ﷺ زما خوا له تشريف راوړو. |

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۱۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۸/۸ رقم الحديث ۴۷۱۲ من حديث طويل وكذلك مسلم في ۱۸۴/۱ رقم: ۳۲۷۰-۱۹۴

([2]) رقم الحديث ۴۲۱۵ أخرجه ابوداود في السنن ۱۴۵/۴ رقم الحديث ۳۷۷۸ والبيهقي في شعب الايمان ۹۱/۵ رقم الحديث ۵۸۹۸

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَعَهُ | عَلِيٌّ | وَلَنَا | دَوَالٍ | مُعَلَّقَةٌ |

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم ؤو. هغه وخت زمونږ کور کې د اچو کجورو غونچې زوړندې

فَجَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ وَعَلِيٌّ مَعَهُ يَأْكُلُ

وې، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه غونچونه خوراک شروع کړو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم په خوراک شروع کړه.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ: مَهْ يَا عَلِيُّ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې ای علی (رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ)! ته د دې کجورو د خوړلو نه ځان وساته ځکه ته کمزوری

فَإِنَّكَ نَاقِهٌ قَالَتْ:

يې يعنې ته اوس د بيمارۍ نه راپاڅيدلی يې او تا باندې د کمزورۍ اثر غالب دی، نو ځکه ستا لپاره پرهيز ضروري دی.

فَجَعَلْتُ لَهُمْ سِلْقًا وَشَعِيرًا

حضرت ام منذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د هغې د صحابؤ لپاره چقندر او جوار تيار کړې

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عَلِيُّ مِنْ هٰذَا فَأَصِبْ فَإِنَّهُ

ؤو، نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې علي (رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ)! ته دا وخوره ځکه ستا لپاره ډېر ګټور

أَوْفَقُ لَكَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ[1]

او موافق دی. (روايت کړې دې احمد، ترمذی، ابن ماجه)

**توضيح**: **دوال**: د دې مفرد دالية دی. د کجورو غونچو او نيم پخته غونچو ته وايي. چې بُسر ورته وايي. کله چې پخې شي نو بيا ورته رطب وايي.

**مه يا علي**: يعنې مه يې خوره، مه کوه. (مرقات ۸/۴۶)

**نَاقِهٌ**: نقاهت کمزورۍ ته وايي. بيمار سړی چې کله صحت مند شي، خو کمزوری وي. دې ته ناقه وايي. دا چې د بيمارۍ په وجه معده کمزورې وي، نو دروند ثقيل هضمول مشکل وي. (مرقات ۸/۴۶)

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۱۶ اخرجه داود في السنن ۴/۱۹۳ رقم الحديث ۳۸۵۶ والترمذي في ۴/۳۳۵ رقم الحديث ۲۰۳۷

## د دیګچي خوراک به د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښ ؤ

| |
|---|
| ﴿۵۴﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ الثُّفْلُ. |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ديګچي د ويخ (خورک) |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان[1] |
| خوښ ؤ. (روايت کړې دې ترمذی، بیهقی) |

**توضيح**: **الثفل**: د دیګچي ويخ کې چې کوم خوراک پاتې شي ته الثفل وايي. دې کې دې سوځېدلو لړ خوند هم وي. دا خوندور وي او د دې په خوړلو کې عاجزي او انكساري هم ده. متكبره خلک دې ته ګوتې هم نه وروړي، دا زياتره د وريژو په پخلي کې وي. (مرقات۴۸/۸)

## د خوراک نه ورسوته لوخي پاکول د مغفرت سبب دی

| |
|---|
| ﴿۵۵﴾وَعَن نُبَيْشَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:مَنْ |
| او حضرت نبيشه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايل کوم کس |
| أَكَلَ فِي قَصْعَةٍ فَلَحَسَهَا اسْتَغْفَرَتْ لَهُ الْقَصْعَةُ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ |
| چې پيالی يا کاسه کې خوراک وکړي او بيا هغه په ګوتو وڅټي نو هغه پياله د هغې لپاره استغفار کوي. |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيب[2] |
| امام ترمذی وائی دا حدیث غريب دې |

**توضيح**: لحسها: يعنې په ګوتو باندې لوښی وڅټلو او لوښی يې پاک کړو. (مرقات۴۹/۸)

## د خوراک نه وروسته لاس وينځئ بيا اوده کيږئ

| |
|---|
| ﴿۵۶﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:مَنْ |
| او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کوم کس چې په |

---

[1] رقم الحديث ۴۲۱۷ أخرجه أحمد في المسند۳/ ۲۲۰ والبيهقي في الشعب

[2] رقم الحديث ۴۲۱۸ أخرجه الترمذي في السنن ۴/ ۲۲۸ رقم الحديث ۱۸۰۴ وابن ماجه في ۲/ ۱۰۸۹ رقم الحديث ۳۲۷۱

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَاتَ | وَفِي | يَدِهِ | غَمَرٌ |
| داسې حالت کې شپه تېره کړي چې د هغې د په لاس غوړوالی لګېدلی وي او د خوراک نه وروسته یې هغه | | | |
| لَمْ | يَغْسِلْهُ | فَأَصَابَهُ | شَيْءٌ |
| نه وې وینځلی او بیا هغې ته څه ضرر ورسېږي یعنې ضرر رسونکي ځناور د خوراک بوی یا غوړوالي پسې راکوزېږي او هغې | | | |
| فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه [1] | | | |
| ته ضرر ورسوي نو هغه دې خپل ځان ملامته کړي ځکه غوړو لاسونو سره چې څملي نو خپله د ضرر سبب دی. | | | |

**توضیح**: فلا یلومن: یعنې خوراک دې وکړو نو د هغې په وجه لاس پسې غوړوالي ونښلي او هغې د وینځلو نه بغیر غرمه یا ماخوستن کې اوده شوی او د زمکې یوې حشرې یعنې میږې وغیره وخوړلې یا یې د خوراک د خوشبوې په وجه وڅټلې نو دررسېدلو نو سړی دې صرف خپل ځان ملامته کړې، ځکه شریعت هغې ته لار ښودنه کړې وه هغې پرې عمل ونه کړو. صدق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ۱۹۷۲! کې دارالعلوم کراچۍ کې ما سره داسې واقعه شوې وه. د شپې مې لاس پورې د خوراک خوشبوې پاتې وه. تر سحر پورې مې د خوب په حالت کې میږه بد حشر کړی ؤو. او لاس مې پړسېدلی ؤو. (مرقات ۵۰/۸)

## ثرید د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښ ؤو

| |
|---|
| ﴿۵۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ أَحَبَّ الطَّعَامِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الثَّرِيدُ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ډوډۍ ثرید او د |
| مِنَ الْخُبْزِ وَالثَّرِيدُ مِنَ الْحَيْسِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [2] |
| حیس ثرید د ټولو نه زیات خوښ خوراک ؤو. |

**توضیح** ثرید په دوه قسمه وي. یو د ډوډۍ ثرید او بل د خوروا ثرید دی. دا هم د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښ ؤو. بله د "حیس" په نوم ثرید دی. د ډوډۍ ثرید داسې وي چې د ډوډۍ پوتې په خوروا کې ماته او لونده کړی شي او ثرید ترېنه جوړ شي او بیا خوړل کېږي. د حیس ثرید هغه خوراک ته وایي چې چوارې، غوړي او پنیر وغیره ګډوډ کړی شي او د مالیده پشان جوړ شي. دا هم د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[1] رقم الحدیث ۴۲۱۹ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۸/۴ رقم الحدیث ۳۸۵۲ والترمذي في السنن ۲۵۵/۴ رقم الحدیث ۱۸۶۰.

[2] رقم الحدیث ۴۲۲۰ أخرجه ابوداود في السنن ۱۴۷/۴ رقم الحدیث ۳۷۸۳

خوښ ؤو. دواړه هضمېدونکي، صحت ورکونکي او کم خرچ بالا نشین دی. (مرقات۸/۵۰)

## د زیتون فضیلت

| |
|---|
| ﴿۵۸﴾وَعَن أَبِي أُسَيدٍ الأَنْصَارِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُوا الزَّيْتَ |
| او حضرت ابو ایوب انصاری رضی الله عنه فرمايي چې نبي كريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې زيت يعنې د زيتونو |
| وَادَّهِنُوا بِهِ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ[1] |
| غوړي خورئ او په دې بدن مالش کوئ ځکه هغه د يو برکتي بوټي تيل دي. |

**توضیح**: زيتون خوړل کېږي هم او بدن پرې هم مالش کېږي.

**شجرة مبارکة**: د الله تعالی ارشاد دی ﴿و قد من شجرة مبارکة زيتونة لا شرقية ولا غربية﴾ حديث کې د همدغې اړخ ته اشاره ده.

## سرکه سالن دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۹﴾وَعَن | | أُمِّ | هَانِئٍ | | قَالَتْ: | | دَخَلَ |
| او حضرت ام هانی رضی الله عنها چې د ابو طالب لور او د حضرت علي رضی الله عنه خور وه. وايي چې يو ورځ | | | | | | | |
| عَلَى | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَ: أَعِنْدَكِ | شَيْءٌ |
| نبي علیه السلام زمونږ کور ته راغلو. نبي علیه السلام ماته وفرمايل چې د خوراک لپاره ستا سره څه دي؟ | | | | | | | |
| قُلْتُ: | لَا | إِلَّا | خُبْزٌ | يَابِسٌ | وَخَلٌّ | | فَقَالَ: هَاتِي |
| ما وويل چې اوچه ډوډۍ او د سرکې نه بغير بل هيڅ نشته دی. نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې راې وړه. | | | | | | | |
| مَا أَقْفَرَ بَيْتٌ مِنْ أُدُمٍ فِيهِ خَلٌّ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[2] | | | | | | | |
| هغه کور د خوراک نه خالي نه دی چې کوم کې سرکه وي. (روايت کړې دی ترمذی) | | | | | | | |

**توضیح**: يعنې کوم کې سرکه وي نو دا نشي ويل کېدی چې دې کور کې خوراک نشته دی. دا سرکه خپله خوراک دی. دوائي هم ده او خوراک هم دی. او کم خرچ بالا نشين هم دی.

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۲۱ اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۵۱ رقم الحديث ۱۸۵۲ والدارمي في ۲/۱۳۹ رقم الحديث ۲۰۵۲.

([2]) رقم الحديث ۴۲۲۲ اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۴۶ رقم الحديث ۱۸۴۱

## كهجوري هم د سالن كار كوئ

﴿۶۰﴾ وَعَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ كِسْرَةً

او حضرت یوسف بن عبد الله ابن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وربشو د

مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ فَوَضَعَ عَلَيْهَا تَمْرَةً فَقَالَ: هَذِهِ إِدَامُ هَذِهِ وَأَكَلَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

ډوډۍ يوټيې واخستل او كجوره يې پرې كيښودله او ويې فرمايل چې دا كجوره د ډوډۍ د يوټيې سالن دى.

## غير مسلم معالج ته رجوع كول جائز ده

﴿۶۱﴾ وَعَنْ سعدٍ قَالَ: مَرِضْتُ مَرَضًا أَتَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل زه سخت بيمار شوم، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ناروغۍ

يَعُودُنِي فَوَضَعَ يَدَهُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ

پوښتنې لپاره راغلو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وخت زما دواړو په مينځ كې يعنې په سينه باندې لاس

حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَهَا عَلَى فُؤَادِي وَقَالَ:

كيښودلو چې يخوالې يې ما په خپل زړه كې محسوس كړو. بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې

إِنَّكَ رجلٌ مفؤودٌ ائْتِ الْحَارِثَ بْنَ كَلَدَةَ

ته يو داسې كس يې چې د زړه په درد اخته يې. يعنې ته د زړه يې. لهذا دا حارث بن كلده ته لاړ شه

أَخَا ثَقِيفٍ فَإِنَّهُ رجل يتطبب

چې د قبيله ثقيف سره تعلق لري، ځكه هغه كس د طب به علاج باندې پوهيږي. هغې له پكار ده چې

فليأخذ سبع تمرات من عَجْوَةِ الْمَدِينَةِ

هغه د مدينې د ښو لو نه اعلى قسم د عجوه كجورو نه اؤوه (۷) دانې كجورې واخلې او هغه كجورې

فَلْيَجَأْهُنَّ بِنَوَاهُنَّ ثُمَّ لِيَلُدَّكَ بِهِنَّ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

د هډوكو سره وټكوي او بيا يې د هغې نه وروسته د دوائې په صورت كې ستا خوله كې واچوي.

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۲۳ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۷۳ رقم الحديث ۳۸۳۰

([2]) رقم الحديث ۴۲۲۴ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۰۷ رقم الحديث ۳۸۷۵

**توضيح مفئود**: دا د فؤاد نه دی. د زړه مریض ته وايي. ګویا کې نبي کریم ﷺ صحیح تشخیص وکړو چې ته د زړه مریض یې.

**حارث بن کلدة**: دا د عربو مشهور حکیم ؤو. چې د بنو ثقیف سره یې تعلق ؤو. اوس پوښتنه دا ده چې نبي کریم ﷺ حضرت سعد رضي الله عنه ته اول حکیم ته د تللو مشوره ورکړه او بیا یې ورله خپله دوائی هم تجویز کړه او بیا یې د نسخې د جوړولو کار حکیم ته وسپارلو. داسې یې ولې وکړو؟ د دې جواب دا دی چې نبي کریم ﷺ اول سعد ته د حکیم د تللو مشوره ورکړه، خو بیا چې نبي کریم ﷺ ته د هغې حکم وشو چې د زړه مریضانو ته دا نسخه اسانه او فائده منده ده، نو نبي کریم ﷺ ورله دوائي هم تجویز کړه چې هغه د حکیم اوږدو او لنډو بوټو په چکر کې ونه غورځېږي. بیا نبي کریم ﷺ د ترکیب او د معجونو جوړولو کار حکیم ته پرېښودلو، ځکه هغه دې کې ماهر ؤو او د هغې کار ؤو. د دې حدیث نه دا معلومه شوه چې غیر مسلم ډاکټر او حکیم باندې علاج کول او هغې ته تلل جائز دي. دې حدیث کې د فليأخذ نه تر آخر پورې د غائب پورې د ټول ضمائر د طبیب اړخ ته دي. **يتطبب**: یعنې هغه کس د طبابت په عمل کې ماهر دی. **عجوة المدينة**: معلومه شوه چې د دې نسخې لپاره د مدینې عجوه کجورې ضروري دي.

**فليجأ**: وجاء د یوجا نه دی. ماتولو او د میده کولو په معنی کې دی. (مرقات ۸/۵۵)

**بنواهن**: د نواة جمع ده. د کجورې هډوکې ته وايي. یعنې د عجوه کجورې د هغې هډوکو سره میده کړي او کپه تر ېنه جوړه کړي او کپه په مریض وخوري. (مرقات ۸/۵۵)

**ليلدك**: د نصر د ینصر نه لدود دی. هغه دوائی ته وايي. چې د خولې په ذریعه مریض ته ورکړی کېږي. (مرقات ۸/۵۵)

## غذا معتدله کړئ او وي خورئ

| |
|---|
| ﴿۶۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْكُلُ الْبِطِّيخَ بِالرُّطَبِ. |
| او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ به خربوزه د کجورو سره خوړله. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ: وَيَقُولُ: يُكْسِرُ |
| (ترمذی) او ابوداؤد دې روایت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې نبي کریم ﷺ به فرمایل |
| حَرَّ هَذَا بِبَرْدِ هَذَا وَبَرْدَ هَذَا بِحَرِّ هَذَا. |
| چې د دې کجورې ګرمي د خربوزې سره ماتېږي. او د خربوزې یخوالی د کجورې د ګرمۍ سره ماتېږي. |

| |
|---|
| وَقَالَ التِّرْمِذِيّ: هَذَا حَدِيث حسن غَرِيب[1] |
| او ترمذی ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دی. |

**توضيح**: **البطيخ**: خربوزې ته عربئ کې بطيخ وايي. د دې خوند يخ وي.

الرطب: دا تازه کجورو ته وايي. چې مزاج يې ګرم وي. دې دواړو ګډوډولو سره خوراک کې اعتدال پيدا کېږي. دواړه د يو بل ګرمي او يخني ختموي. مظاهر حق کې د بطيخ معنیٰ خربوزه کړی شوې ده. چې محل تأمل دی. (مرقات۸/۵۶،۵۵)

## ميؤو کې چينجي پيدا کېدلو سره ميوه نه نجسه کېږي

| |
|---|
| ﴿۶۳﴾وَعَن أَنَسٍ قَالَ: أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې کجورې پيش کړی شوې. |
| عَتِيقٍ فَجَعَلَ يُفَتِّشُهُ وَيُخْرِجُ السُّوسَ مِنْهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| چې چينجې په کې شوې وُو. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه کجورې شلولي او چينجي به يې ترې نه غوزارولو. |

**توضيح**: **السوس**: ميوؤ کې ځينې ځل چينجي وشي او خوراک کې چاته پته نه لږي. د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يو حديث کې دي چې "دود الثمر کالثمر" دا دې خبرې ته اشاره ده چې ميوه نجسه نه وي لهذا که په غفلت سره چا په ميوه کې وخوړلو نه باک نه کوي. زير بحث حديث کې دومره خبره ده چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کجورو نه چينجي پاکول او هغه به يې استعمالول. چې د هغه قسمه کجورو د پيدا کولو جواز ترې پيدا کېږي. **سوس**: ميوؤ او غله کې چې کوم چينجې پيدا کېږي. هغې ته سوس وايي. عتيق پرانی کجور ته وايي. چينجو نه ميوه پاکول د نظافت او نفاست دی چې شرعاً مطلوب دی. (مرقات۸/۵۶)

| |
|---|
| ﴿۶۴﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجُبْنَةٍ فِي تَبُوكَ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د غزوه تبوک دوران کې يوه موقعه کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت کې د پنير |

---

[1] رقم الحديث ۴۲۲۵ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۷۶ رقم الحديث ۳۸۳۶ والترمذي في ۴/۲۴۶ رقم الحديث ۱۸۴۳

[2] رقم الحديث ۴۲۲۶ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۷۴ رقم الحديث ۳۸۳۲ وابن ماجه في ۲/۱۱۰۶ رقم الحديث ۳۳۳۳

فَدَعَا بِالسكين فسمّى وقطع. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۱]

يوه ټکړه راوړلی شوه، نو نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چاړه راوغوښتله او بسم الله ويلو سره یې هغه پرې کړه.

جبنة: د پنير ټکړې ته وايي په نون باندې شد هم لوستلی شوی دی او بغير د شد نه هم دی (مرقات ۸/۵۶)

## اسلام چې کوم شیانو ته حرام ویلي دي همغه حرام دي

﴿۶۵﴾ وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ السَّمْنِ وَالْجُبْنِ

او حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه غوړو، پنير او پوستين يا ګورخر باره کې

وَالْفِرَاءِ فَقَالَ: الْحَلَالُ

وپوښتلی شو چې دا څیزونه حلال دي یا که حرام دي؟ نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د حلت او حرمت په سلسله کې

مَا أَحَلَّ اللهُ فِي كِتَابِهِ وَالْحَرَامُ مَا حَرَّمَ اللهُ

اصول د نظر د لاندې ساتئ چې حلال همغه شی دی چې الله په خپل کتاب کې حلال کړي دي. يعنې چې حلال

فِي كِتَابِهِ وَمَا

کېدل یې قرآن بيان کړي وي. او حرم همغه څيزونه دي چې الله په خپل کتاب کې حرام کړي وي. او په کومو

سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ مِمَّا

څيزونو یې چې سکوت اختيار کړی دی يعنې کوم څيز ته یې چې نه حلال ويلي دي او نه یې ورته حرام ويلي

عَفَا عَنْهُ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وموقوفٌ على الأصحّ[۲]

دي. هغه د هغه قسم نه دي چې معاف کړی شوي دي يعنې د هغې استعمالول یې مباح کړي دي.

**توضیح**: السمن: غوړو ته وايي. د څه خلکو شک شوی ؤو، ځکه یې د غوړو باره کې وپوښتل. ګنې ځای د پوښتنې نه ؤو. (مرقات ۸/۵۷، ۵۶)

**الجبين**: دا لفظ د نون د شد سره هم ويلی شوی دی او بغير د شد نه هم ويلی شوی دی. پنير ته وايي. د دې باره کې پوښتنه ځکه وکړی شوه چې هغه زمانه کې به د پنير جوړلو لپاره د اوښ يا د بيزي وارګه استعماليدلي. ظاهره ده چې دا سوال دی. (مرقات ۸/۵۶)

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۲۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۶۹ رقم الحديث ۳۸۱۹

(۲) رقم الحديث ۴۲۲۸ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۱۹۲ رقم الحديث ۱۷۲۶ وابن ماجه في السنن ۲/۱۱۷ رقم الحديث ۳۳۹۷.

الفراء: دا لفظ په دواړو معنو کې استعماليدلی شي. عام شارحينو ليکلي دي چې الفراء د کسره او مد سره جمع ده. او الفراء د فا د فتحې سره مفرد ديږ ځنګلي خر يا ګورخر ته وايي. د دې باره کې د حلال او حرام کېدلو باره کې د بوښتنې ضرورت ؤو. ځېنو شارحينو الفراء د "فرو" جمع ګنلې ده چې د پوستين په معنی کې دی. دې صورت کې پوښتنه ځکه وکړی شوه چې د څرمن نه به کافرانو پوستنې تيارولو، نو کېدی شي چې د مرادې څرمن وي. نبي کريم ﷺ د زياتو پوښتنو او کهود کريد نه منع کړو او ويې فرمايل چې د حرام او حلالو څيزونو تذکره په قرآن او حديث کې راغلې ده، لکه ﴿ما آتكم الرسول فخذوه و مانهاكم عن فانتهوا﴾ او د کومو څيزونو نه چې قرآن او حديث خاموش دی هغه مباح دي. د دې حديث نه فقهاؤ دا ضابطه راويستلې ده چې څيزونو کې اصل خبره اباحت دی. د حرمت او حلت حکم ثانوی امر دی. (مرقات۸/۵۶)

## د ښه خوراک خواهش جائز دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿٦٦﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَدِدْتُ | | | | | | | |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې يو نبي کريم ﷺ په مجلس کې وفرمايل چې زه خوښوم چې | | | | | | | |
| أَنَّ | عِنْدِي | خُبْزَةً | بيضاءَ | | | | |
| زما مخې ته د غنمو سپينه ډوډۍ وي چې غوړو او شودو کې لونده کړی شوې وي. دې او رېدلو | | | | | | | |
| مِنْ بُرَّةٍ سَمْرَاءَ مُلَبَّقَةٌ بِسَمْنٍ وَلَبَنٍ فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَاتَّخَذَهُ فَجَاءَ بِهِ | | | | | | | |
| يو کس د جماعت نه پاڅېدلو او لاړلو او ذکر ډوډۍ يې تياره کړه او راې وړله. نبي عليه السلام دې ليدلو سره | | | | | | | |
| فَقَالَ: | فِي | أَيِّ | شَيْءٍ | كَانَ | هٰذَا؟ | قَالَ | |
| وفرمايل چې دې ډوډۍ باندې چې کوم غوړي لرېدلي دي هغه په کوم لوښي کې ؤو؟ هغې وويل چې هغه د | | | | | | | |
| فِي عُكَّةِ ضَبٍّ قَالَ: ارْفَعْهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهُ وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: هٰذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ[1] | | | | | | | |
| سمسيري د څرمنې په لفافه کې ؤو. نبي کريم ﷺ وفرمايل زه يې نه خورم. دا زما د مخې نه او چت کړئ. | | | | | | | |

**توضيح** خبزة بيضاء: يعني د سرو غنمو سپينه ډوډۍ وي او په غوړو کې ککړه شوې وي. ښه سره غنمو کې سپينه وي. خلک نن سبا په اشتهاراتو کې ليکي د سرو زرو پشان غنم، د سپينو زرو پشان وړه. (مرقات۸/۵۷)

ملبقه: د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغه ده. ګډ وډولو سره د نرمولو په معنیٰ کې دی. دلته غوړو او شودو کې د ګډ وډولو لپاره استعمالېږي. (مرقات۸/۵۷)

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۲۹ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۸/۴ رقم الحديث ۳۸۱۸ وابن ماجه في السنن ۱۱۰۹/۲ رقم الحديث ۳۳۴۱

عکة: کُپې ته وایي. چې غوړو کې ایښودلی کېږي. (مرقات۸/۵۸)

ضب: سمسیره ته وایي. د دې د حلال او د مکروه کېدلو متعلق بحث په باب ما یحل اکله الخ کې حدیث نمبر ۸ او حدیث نمبر ۲۳ کې شوی دی. د احنافو په نزد گوه حلال نه دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د گوه نه طبعي کرکه کړې ده. کېدی شي چې په دې وجه یې څرمن کې ایښودلی شوي غوړي نه وي استعمال کړې، خو د دې حدیث نه د حرمت استدلال مشکل دی، ځکه ابوداؤد دې حدیث ته منکر ویلی دی.

علماؤ لیکلې دي چې الله تعالی خپلو خاصو بنده گانو ته د خوراک خوښه ښځگه ناخوښه کوي چې د دنیا د خوندونو نه التفات نه وي. کله چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله وفرمایل "مالي وللدنیا" الخ د هغې نه وروسته د هغه خوندونو نه خوند اخستل د عقل نه بره ؤو، ځکه دې کې یو غیبي ستونزه راغله، خو د دې حدیث نه دا ثابته شوه چې د ښه خوراک خواهش کول جائز دی. (مرقات۸/۵۸)

## اومه اوږه خوړل منع ده

| |
|---|
| ﴿٦٧﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الثُّومِ إِلَّا |
| او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اوږې د خوړلو نه منع کړې ده خو |
| مَطْبُوخًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[1] |
| دا چې هغه پخه وي. (ترمذی او ابوداؤد) |

**توضیح**: **الثوم**: دې حدیث کې اومه اوږه منع کړی شوې ده. او پخه اوږه جائز کړی شوې ده. د دې وجه دا ده چې د پخولو نه وروسته اوږه کې بدبوې نه پاتې کېږي. د بدبوې تعلق صرف د اوږې یا پیاز وغیره سره نه دی. بلکې هغه کسان هم جوماتونه د لمونځ کولو نه منع کول کېږي چې د هغې د خولې نه د گندهنې بدبوې خیژي. (مرقات۸/۵۸)

## د پیاز خوړلو مسئله

| |
|---|
| ﴿٦٨﴾ وَعَنْ أَبِي زِيَادٍ قَالَ: سُئِلَتْ عَائِشَةُ عَنِ الْبَصَلِ |
| او حضرت ابوزیاد فرمایي چې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه د پوخ شوي پیاز باره کې وپوښتلی شو چې دا حرم دی |
| فَقَالَتْ: إِنَّ آخِرَ طَعَامٍ أَكَلَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| یا که حلال؟ نو هغې وفرمایل چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې په خپل ژوند کې آخري خوراک کړی |

---

[1] رقم الحدیث ۴۲۳۰ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۷۳ رقم الحدیث ۳۸۲۸ والترمذي في السنن ۴/۲۳۰ رقم الحدیث ۱۸۰۸

| |
|---|
| طَعَامٌ فِيهِ بصل. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۱] |
| ؤو؟ هغې کې پوخ شوی پياز ؤو. |

**توضیح**: دا حدیث که د پیاز په جواز باندې حمل کړی شي او د ممانعت حدیثونه په مکروه تنزیهي باندې حمل کړی شي نو هیڅ تعارض به پاتې نشي، ځکه د مکروه تنزیهي مطلب خلاف اولیٰ دی. یا دا هم ویل کېدی شي چې د بحث لاندې حدیث تعلق د پوخ شوې پیاز سره دی. ظاهره ده چې د دې اجازت دی. (مرقات ۵۹/۸)

## د کوچو سره کهجوري د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښې وې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۶۹﴾ وَعَن | بُسرٍ | ابنَيْ | السُّلَمِيَّين |

او د حضرت بسر دواړه زامنو یعنې حضرت عبدالله او حضرت عطیه نه چې اسلمي او صحابي دی. روایت دی چې

قَالَا: دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دې دواړو وویل چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ کره راغلو، نو مونږ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې

فَقَدَّمْنَا زُبْدًا وَتَمْرًا وَكَانَ يُحِبُّ الزبدَ والتمرَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۲]

ته کوچ او کجوري پیش کړې. چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام وخوړل. نبي عَلَيْهِ السَّلَام به کوچ او کجوري خوښولې.

## لوخي کې مختلف شیان وي د خوښې شی ترینه اخلئ

﴿۷۰﴾ وَعَنْ عِكْرَاشِ بْنِ ذُؤَيْبٍ قَالَ: أُتِينَا بِجَفْنَةٍ

او حضرت عکراش بن زویب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو موقع کې مونږ له یوه غټه پیاله راوړلې شوه

كَثِيرَةِ من الثَّرِيدِ وَالْوَذْرِ

چې ډېر ثرید په کې ؤو یعنې خوره کې د لوندې شوې ډوډۍ پوتې او د گوشت پوټې په کې ؤو. د

فَخَبَطْتُ بِيَدِي فِي نَوَاحِيهَا

خوراک دوران کې ما خپل لاس هر اړخ ته وړلو یعنې د خپلې مخې نه مړئ کولو په ځای به مې هر اړخ ته لاس اچولو.

وَأَكَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ فَقَبَضَ بِيَدِهِ الْيُسْرَى

او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خپلې مخې نه خوراک کولو، نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل چپ لاس

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۳۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۶/۴ رقم الحديث ۳۸۳۷ وابن ماجه في ۱۱۰۶/۲ رقم الحديث ۳۳۳۴

(۲) رقم الحديث ۴۲۳۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۶/۴ رقم الحديث ۳۸۳۷ وابن ماجه في ۱۱۰۶/۲ رقم الحديث ۳۳۳۴

عَلَى يَدِيَ الْيُمْنَى ثُمَّ قَالَ: يَا عِكْرَاشُ كُلْ مِنْ مَوْضِعٍ وَاحِدٍ

زما ښي لاس ونیولو او ویې فرمایل چې عکراش د یو ځای نه یعنې د خپلې مخې نه خوراک کوه

فَإِنَّهُ طَعَامٌ وَاحِدٌ. ثُمَّ أُتِيْنَا بِطَبَقٍ فِيهِ أَلْوَانُ التَّمْرِ

ځکه دا یو شان خوراک دی. بیا مونږ له یو کاسه راوړلی شو. چې هغې کې قسمه قسمه کجورې وې.

فَجَعَلْتُ آكُلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ

ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هدایت مطابق د خپلې مخې ته کجورې او چتولي او خوړل شروع کړه، خو اوس د

وَجَالَتْ يَدُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الطَّبَقِ

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لاس په طباق کې هر اړخ ته ګرځېدلو یعنې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به د خپل طبعې مطابق د کاسې د هر ګوټ نه اچتولې

فَقَالَ: يَا عِكْرَاشُ كُلْ مِنْ

صرف د دې کار په ذریعه دا بیان نه کړو. بلکې دا تعلیم ئې ورکړو او وې فرمایل چې عکراش! چه د کوم اړخ نه نه غواړې خوره،

حَيْثُ شِئْتَ فَإِنَّهُ غَيْرُ لَوْنٍ وَاحِدٍ ثُمَّ أُتِيْنَا بِمَاءٍ

ځکه دا په قسم نه دي. د هغې نه وروسته مونږ له اوبه راوړلی شوې، نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله

فَغَسَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ وَمسح بَلل كَفَّيْهِ وَجْهَهُ

دواړه لاسونه وینځل او د لاس لوندوالی یې په خپله خوله او ترڅنګلو پورې لاسونو پورې او په سر باندې ومښل

وَذِرَاعَيْهِ وَرَأْسَهُ وَقَالَ: يَا عِكْرَاشُ هَذَا الْوُضُوءُ

او ویې فرمایل چې عکراش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا د دې خوراک کولو نه وروسته او دس دی. چې اور بدل کړی دی. یعنې دا

مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [1]

لاس او خوله وینځل چې د خوراک او دس ورته وایي د دې خوراک په وجه دی چې په اور پخ شوی دی.

**توضیح**: **الوذر**: دا د وذرة جمع ده. د غوښې هغه پوټو ته وایي چې هډوکی په کې نه وي. (مرقات ۸/۶۰)

**خبطت**: لاس اچولو ته وایي. یعنې ما د پیالې هر اړخ ته لاس اچول شروع کړل. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما لاس ونیول او ویې فرمایل چې دا یو قسم له خوراک دی. لهذا د خپلې مخې نه یې

---

[1] رقم الحديث ۴۲۲۳ اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۴۹ رقم الحديث ۱۸۴۸ وابن ماجه في السنن ۲/۱۰۸۹ رقم الحديث ۳۲۷۴

خوره. د هغې نه وروسته د مختلف قسمه کجورو یو کاسه راوړلی شو. ما د خپلې مخې نه کجورې اچتولې. نبي کریم ﷺ وفرمایل چې دا د چرته نه هم غواړې نو د هملته نه یې خوره، ځکه دا یو قِسم شی نه دی. بلکې جدا جدا رنګونو باندې مشتمل دی. بیا د هغې نه وروسته اوبه راوړلی شوي. نبي کریم ﷺ پرې خوله او مخ وینځلو او بیا یې وفرمایل چې عکراش رضي الله عنه! **ما مست النار** نه چې د کوم اودس حکم دی هغه همدغه لاس وینځل او غرغره کول دي یعني لغوي اودس مراد دی. توضیحات جلد اول کتاب الطهارة کې دا مسئله تېره شوې ده. د دې حدیث نه یوه خبره معلومه شوه چې که یو قِسم خوراک وي نو د مخې نه دې وخوړلی شي او که مختلف قِسمه مېوه وي نو د هر ځای نه یې خوړلی شي. دا دویمه خبره معلومه شوه چې **مامست النار** چې د کوم اودس حکم دی هغه لغوي اودس دی. اصطلاحي نه دی. (مرقات۸/۶۰)

## د حریرې فائده

| |
|---|
| ﴿۷۱﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَخَذَ أَهْلَهُ الْوَعْكُ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې کله به د نبي کریم ﷺ د کور والو تبه شوه نو |
| أَمَرَ ‏ بِالْحَسَاءِ ‏ فَصُنِعَ ‏ ثُمَّ |
| نبي علیه السلام به د حساء د تیارول حکم کولو، نو هغه به تیار کړی شو او بیا به نبي علیه السلام بیمارانو |
| أمر ‏ فَحَسَوْا ‏ مِنْهُ ‏ وَكَانَ ‏ يَقُولُ: إِنَّهُ |
| ته د حساء د څښلو حکم کولو چې هغه به بیمارو څښل. نبي کریم ﷺ به فرمایل چې حقیقت کې |
| لَيَرْتُو ‏ فُؤَادُ ‏ الحزين ‏ ويسرو ‏ عَنْ ‏ فؤاد ‏ السقيم |
| حساء غم شوي زړه ته طاقت ورکوي او د بیمار د زړه نه غم او تکلف داسې لرې کوي |
| كَمَا تسرو إِحْدَاكُنَّ الْوَسَخَ بِالْمَاءِ عَنْ وَجْهِهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[1] |
| لکه څنګه تاسو ښځو یوه ښځه د خپلې خولې نه ګند په اوبو پاکوئ. (روایت کړې دې ترمذی) |

**توضیح** الوعك: سختې تبې ته وایي. (مرقات۸/۶۱)

**الحساء**: د خوراک یو نرم قِسم ته حساء وایي. چې د وړو. اوبو او د غوړول نه جوړېږي. کله دې

---

[1] رقم الحديث ۴۲۳۲ اخرجه الترمذي في السنن ۳۳۶/۴ رقم الحديث ۲۰۳۹ وابن ماجه في ۱۱۴۰/۲ رقم الحديث ۳۴۳۵.

شکر هم کډه وړي. د مکې خلک دې ته حريره وايي. (مرقات۸/۶۱)

**فحسوا:** يعني خلکو هغه او څښل. دا د جمع صيغه ځکه ده چې په تبه کې ټول شريک ؤو. يا د دې حريره په څښلو کې ټول شريک ؤو. (مرقات۸/۶۱)

**وکان يقول:** يعني نبي کريم ﷺ وفرمايل "انه" يعني دا حساء او حريره "ليرتو" لام د ابتدائيه تاکيديه لپاره دی. رتی يرتو: نصر د ينصر نه دی. چې معنی يې زړه قوي کول دي. ای "يقوی القلب" يعني غمګين زړه قوي کوي. ويسرو: (يسرو يکشف ويرفع) په معنی کې دی يعني بوج او خوا کوي.

کما تسرو: يعني څنګه چې تاسو ښځې د خپلو مخونو نه د اوبو تپه ذريعه ګند لرې کوئ. دا مخې ته ښځې وې نو ځکه يې هغوی ته خطاب وکړو. (مرقات۸/۶۱)

## عجوه د جنت کهجوره ده

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْعَجْوَةُ مِنَ الْجَنَّةِ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل. عجوه د جنت کجوره ده |
| وَفِيهَا شِفَاءٌ مِنَ السُّمِّ وَالْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وماؤها شفاءٌ للعينِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| او دې کې د زهرو شفاء ده او خريړې د من قسم دی او د هغې اوبه د سترګو لپاره شفاء ده. |

**توضيح**: مطلب دا چې د دې اصل د جنت نه دی يا به چې جنت کې کومې کجورې وي نو هغه به ښې کجورې وي.

## الفصل الثالث

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾عَن المغيرةِ بن شعبةَ قَالَ: ضِفْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ |
| حضرت مغيره بن شعبه فرمايي زه يو شپه د نبي کريم ﷺ سره د يو چا کره مېلمه شوم. هغه |
| فَأَمَرَ بِجَنْبٍ فَشُوِيَ |
| کس زمونږ لپاره يوه بزه ذبح کړه او نبي عليه السلام د هغه بېزې يو اړخ د وريتولو حکم وکړو. کله چې هغه اړخ وريت |
| ثُمَّ أَخَذَ الشَّفْرَةَ فَجَعَلَ يَحُزُّ لِي بِهَا مِنْهُ |
| کړی شو نو نبي عليه السلام يو چاړه راواخستله او د هغې په ذريعه يې زما لپاره پوټې غوښول. دغه وخت |

[1] رقم الحديث ۴۲۳۵ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۵۰ رقم الحديث ۲۰۶۶ وابن ماجه في ۲/۱۱۴۳ رقم الحديث ۳۴۵۵ .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَجَاءَ | بِلَالٌ | يُؤْذِنُهُ | بِالصَّلَاةِ | فَأَلْقَى | الشَّفْرَةَ |
| کې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لمونځ خبر راکولو لپاره راغلو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چاړه غوزاره کړه او د | | | | | |
| فَقَالَ: | مَا | لَهُ | تَرِبَتْ | يَدَاهُ؟ | |
| تعجب په اندازيې وفرمايل چې په بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه شوي دي؟ چې داسې وخت کې د خبر لپاره راغلو. د هغې دواړه لاسونه | | | | | |
| قَالَ: | وَكَانَ | شَارِبُهُ | وَفَاءً | فَقَالَ | لِي: |
| دې په خاورو ککړ شي. مغيره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي هغه وخت د هغې شونډې يعني بريت غټ شوي ؤو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل | | | | | |
| أَقُصُّهُ عَلَى سِوَاكٍ؟ | أَوْ | قُصَّهُ عَلَى سِوَاكٍ | . | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيّ [1] |
| چې زه ستا شونډې په مسواک وړې کړم يا يې دا وفرمايل چې شونډې په مسواک کېږده او وړې يې کړه. | | | | | |

**توضيح** **ضفت**: يعنې زه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د چاکره مېلمه شوم.

**يحز**: چاړه باندې د غوښې غوځولو په معنی کې دی. کله چې غوښه سخته وي نو د چاړه استعمال جائز دی. ګنې دا طريقه د اهل عجم د فارس والو ده. **يوذنه**: دا د ايذان نه دی. د خبر ورکولو به معنی کې دی. يعنې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خبر ورکولو چې د لمونځ وخت شو. **فشوى**: د وريتولو په معنی کې دی. يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوربه ته وويل چې يو اړخ يې وريت کړه، نو هغې وريت کړو. **شاربه وفاءً**: يعنې د مغيره بن شعبه بريت غټ شوې ؤو. دې کې مغيره بن شعبه د شاربې په ځای شاربه ويلی دی. دا التفات دی.

**اقصه لك علی سواك**: يعنې زه به ستا بريت په مسواک کېږدم او درله واړه به يې کړم. يا يې ته خپله په سمواک کېږده او غوځ يې کړه. دا هم امکان لري چې شونډې په مسواک وي او د هغې سره برابر د بريتو ويختان په قينچې غوځ کړي. چې يو قطار کې غوځ شي. او دا هم امکان لري چې قينچې نه وي بلکې په مسواک باندې ويختان برابر کړي کېږدي او چاړه يا چاقو يې غوځ کړي.

## خوراک کې که بسم الله نه وي ويل شوي نو شيطان هم خوراک کوي

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: كُنَّا إِذَا حَضَرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم |
| او حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله به مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په يو خوراک کې ؤو |

---

[1] رقم الحديث ۴۲۳۶ أخرجه ابوداود في السنن ۱۳۱/۱ رقم الحديث ۱۸۸ والترمذي في الشمائل رقم الحديث ۱۶۷.

لَمْ نَضَعْ أَيْدِيَنَا حَتَّى يَبْدَأَ

نو مونږ به تر هغه وخت پورې خوراک ته لاس نه وروړلو چې تر څو پورې به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شروع نه وه کړې.

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعُ يَدَهُ

کله به چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس وروړاندې کړو نو د هغې نه وروسته به مونږ هم لاس وروړاندې کړو. د

وَإِنَّا حَضَرْنَا مَعَهُ مَرَّةً طَعَامًا فَجَاءَتْ

يو ځل واقعه ده چې کله مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ډوډۍ خوړله نو د ې وخت کې يوه جينۍ د

جَارِيَةٌ كَأَنَّهَا تُدْفَعُ فَذَهَبَتْ

خوراک لپاره داسې راغله چې ګوياکې هغه رادېکه کړې شوې وې. يعنې د ولږې د شدت په وجه بې اختياره شوې وه

لِتَضَعَ يَدَهَا فِي الطَّعَامِ

او په خوراک يې داسې رامنډه کړلې لکه چا چې د شاته نه په دسترخوان باندې رادېکه کړې وي. بيا چې

فَأَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهَا

څنګه هغې وغوښتل چې د بسم الله ويلو نه بغير خوراک شروع کړي نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې لاس ونيولو.

ثُمَّ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ كَأَنَّمَا يُدْفَعُ

بيا بانډې چې هم دغه شان راغلو چې ګوياکې خوراک باندې رادېکه کړې شوې وي. او هغې هم د بسم الله ويلو نه بغير

فَأَخَذَهُ بِيَدِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

خوراک باندې لاس اچول وغوښتل نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې لاس هم ونيولو او بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

إِنَّ الشَّيْطَانَ يَسْتَحِلُّ الطَّعَامَ

چې حقيقت دا دې چې شيطان دا خوراک د ځان لپاره حلالوي او هغه خوراک باندې قادر کېږي چې

أَنْ لَا يُذْكَرَ اسْمُ اللهِ عليهِ وإِنَّه جَاءَ بِهَذِهِ الْجَارِيَةِ

کوم خوراک باندې د الله نه وانغستلې شي. نو شيطان دا جينۍ راوستله چې د دې بسم الله د نه ويلو

لِيَسْتَحِلَّ بِهَا فَأَخَذْتُ بِيَدِهَا فَجَاءَ بِهَذَا الْأَعْرَابِيِّ

په سبب خوراک د ځان لپاره حلال کړي خو ما د دې لاس ونيولو بيا شيطان دا بانډه چې راوستلو چې

لِيَسْتَحِلَّ بِهِ فَأَخَذْتُ بِيَدِهِ وَالَّذِي

د دې په ذريعه خوراک د ځان لپاره حلال کړي خو ما د دې لاس هم ونيولو. قسم په هغه ذات دی چې د چا په

نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ يَدَهُ فِي يَدِي مَعَ يَدِهَا.
لاس کې زما ژوند دی بیشکه هغه وخت د شیطان لاس د دې جینئ د لاس سره زما په لاس کې ؤو. یو بل

زَادَ فِي رِوَايَةٍ: ثُمَّ ذَكَرَ
روایت کې حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یا مسلم دا الفاظ هم نقل کړي دي چې د هغې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د

اسمَ اللهِ وأكَلَ. رَوَاهُ مُسلم[1]
الله نوم واخستلو یعنې بسم الله یې ولوستله او خوراک یې وکړو.

**توضیح: تدفع**: د شړلو په معنی کې دی. ګویا کې هغه وینځې او بانډه چې ته څوک دېکې ورکوي او د خوراک لپاره یې حاضروي. (مرقات ۶۵/۸)

**یستحل**: چې شیطان د خپل ځان لپاره خوراک ممکن کړي. (مرقات ۶۵/۸)

## ډیر خوراک کول د نحوست علامت دی

﴿۷۵﴾عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَادَ أَنْ يَشْتَرِيَ غُلَامًا
او د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې یو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو غلام اخستلو اراده وکړه، نو د

فَأَلْقَى بَيْنَ يَدَيْهِ تَمْرًا فَأَكَلَ الْغُلَامُ فَأَكْثَرَ
ازمایلو په توګه مخکې کجورې کینبودلې، نو هغه غلام د کجورو نه زیاتې کجورې وخوړلې.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ كَثْرَةَ الْأَكْلِ
نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې لیدلو سره وفرمایل چې دا ډیر خوراک د بې برکتئ سبب او د بې برکتئ

شُؤْمٌ. وَأَمَرَ بِرَدِّهِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان[2]
علامت دی. بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه غلام د بېرته ورکولو حکم وکړو.

## مالګه بهترین سالن دی

﴿۷۶﴾وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَيِّدُ
او حضرت انس ابن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ستاسو په سالنو

(1) رقم الحديث ۴۲۳۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۹۷/۳ رقم الحديث ۲۰۱۷/۱۰۲ وأبوداود في السنن ۱۳۹/۴ رقم الحديث ۳۷۶۶.

(2) رقم الحديث ۴۲۳۸ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۳۱/۵ رقم الحديث ۵۶۶۱

| |
|---|
| إِدَامِكُمُ الْمِلْحُ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ[1] |
| کې بهترین سالن مالګه ده. (ابن ماجه) |

**توضيح**: مثلاً ګور کې سالن نشته دی خو مالګه شته دی، نو د جوارو یا غنمو ډوډۍ د مالګې په اوبو کې بهترینې طریقې سره خوړلی کېږي. د ښکار کولو وخت کې خلک دغه شان ډوډۍ خوري. ډېره مزه کوي. (مرقات۸/۶۷، ۶۶)

## بوټان ویستلو سره خوراک کولو باندې قدمونو ته راحت ملاوېږي

| |
|---|
| ﴿۷۷﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا |
| او حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې تاسو ته |
| وُضِعَ الطَّعَامُ فَاخْلَعُوا نِعَالَكُمْ |
| خوراک کیښودلی شي او تاسو د خوراک لپاره کینئ، نو خپل بوټان وباسئ ځکه بوټان ویستل د |
| فَإِنَّه أَرْوَحُ لأقدامكم[2] |
| پښو لپاره ډېر راحت ورکونکی دی. |

**توضيح**: کله چې سړی خوراک کوي نو د بدن ټولو اندامونو ته خوند حاصلېږي. تردې چې پښو ته هم راحت رسیږي. که پښې په بوټانو کې بندې وي نو هغه د راحت نه محرومه شي. او د هغې په وجه د ټول بدن خوند خراب شي. (مرقات۸/۶۷)

## خوراک لږ یخول او بیا خوړل پکار دي

| |
|---|
| ﴿۷۸﴾وَعَن أَسمَاءَ بِنتِ أَبِي بَكرٍ: أَنَّهَا كَانَتْ إِذَا أُتِيَتْ بِثَرِيدٍ |
| او د حضرت اسماء بنت ابی بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا باره کې دا روایت دی چې کله به هغې ته ثرید راوړلی شونو |
| أَمَرَتْ بِهِ فَغُطِّيَ حَتَّى تَذْهَبَ |
| هغې به د هغې د سر اینبودلو حکم کولو، نو هغې باندې به سر کیښودلی شو. تردې چې د هغې لوړی او تپ |

---

(1) رقم الحديث ۴۲۳۹ أخرجه ابن ماجة في السنن ۱۱۰۲/۲ رقم الحديث ۳۳۱۵

(2) رقم الحديث ۴۲۴۰ أخرجه الدارمي في السنن ۱۴۸/۲ رقم الحديث ۲۰۸۰.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَوْرَةُ | دُخَانِهِ | وَتَقُولُ: | أَنِّي | سَمِعْتُ |
| به ؤوتلو يعنې د هغې د ګرمۍ شدت به ختم شولو . د هغې نه وروسته به يې هغه خوړل. او هغې به فرمايل چې ما | | | | |
| رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: هُوَ أعظم للبركة . رَوَاهُمَا الدَّارِمِيّ[1] | | | | |
| د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې د خوړک نه ګرموالي وتل برکت کې د زياتوالي سبب دی. | | | | |

**توضيح**: فورة دخانه: يعنې کوم براس او تپ به چې د ګرمۍ له وجې وتلو نو د هغې د اېښولو لپاره به يې پرې د پاسه سر کېښودلو چې خوراک څه لږ يخ شي او بيا وخوړلی شي، ځکه زيات ګرموالې په وجه خوله هم سوځې او د کولمو لپاره هم مضر دی. څه انتظار کول او پټېلي له دم ورکول او بيا خوړل فائده مند او خوندور شي. او هغې کې برکت راځې. جامع صغير کې ليکلی شوې دي "ابردوا بالطعام فان الحار لا بركة فيه"(مرقات۸/۶۷)

## د خوراک لوښې دعاء هم کوي او بښېري هم کوي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷۹﴾وَعَن نُبَيْشَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ أَكَلَ | | | | | |
| او حضرت نبي شه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې پياله يا رکيبۍ وغيره | | | | | |
| فِي | قَصْعَةٍ | ثُمَّ | لَحِسَهَا | | |
| کې خوراک وکړي او بيا هغه په ګوتو وڅټي نو هغه پياله په زبان حال سره يا زيات صحيح دا دي چې په زبان قال | | | | | |
| تَقُولُ | لَهُ | الْقَصْعَةُ: | أَعْتَقَكَ | اللهُ | مِنَ النَّارِ |
| سره هغه کس ته وايي چې څنګه چې تا د شيطان خوراک يا د هغې د خوشحاليدلو نه زه بچ کړم، | | | | | |
| كَمَا أعتقتني منَ الشيطانِ". رَوَاهُ رزين[2] | | | | | |
| همدغه شان دې الله تا ته د دوزخ د اور نه خلاصون درکړي. | | | | | |

**توضيح**: تقول: د حديث مطلب دا دی چې د خوراک لوښی دعا هم کوی او ښېرې هم کوي، ځکه دا لوښی چې کله ګنده پروت وي نو شيطان راشي او دا څټې. هغه وخت لوښی ښېرې کوي چې زه دې د شيطان د مشق تخته ولې جوړ کړم. او که وې څټلو او وينځلی شو نو دعا کوي چې زه دې د شيطان د تسلط نه بچ کړم. (مرقات۸/۶۸)

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۴۱ أخرجه الدارمي في السنن ۲/۱۳۷ رقم الحديث ۲۰۴۷

([2]) رقم الحديث ۴۲۴۲ أخرجه رزين .

# باب الضيافة

## د ميلمستيا بيان

**قال الله تعالى: ﴿ويطعمون الطعام على حبه مسكيناً و يتيماً و اسيرا﴾(سورة الدهر : ۸)**

د ضاف يضيف ضيفاً و ضيافة اصل معنى د مائل كيدلو ده. مېلمه هم يو اړخ ته مائله كېږي. ضيف مېلمه ته وائي او مضيف كوربه ته وايي او ضيافت مېلمستيا ته وايي. د جمهور علماؤ په نزد په خنده تندې سره مېلمستيا كول مستحب دي. ځينې علماء فرمايي چې مېلمستيا يوه ورځ واجب ده بيا مستحب ده. دې علماؤ كې شيخ ليث رحمه الله هم شامل دی. خو جمهور علماء فرمايي چې مېلمستيا د اخلاقياتو د قبيل نه ده. لهذا واجب نه ده بلكې مستحب ده. او كومو روايتونو كې چې د واجب يا د لازم الفاظ راغلي دي. هغه خو يا په اضطراري حالت باندې محمول دي يا د هغې نه هغه خاص ټيكس يا جزيه مراده ده چې د خوراک په صورت كې په ذميانو باندې مقررول كېږي يا په ابتداء د اسلام كې ضيافت واجب ؤو. بيا يې وجوب منسوخ شو او استحباب يې پاتې شو. بهرحال مېلمستيا د اسلام يو خاص پېژندګلوی ده. كومو علاقو كې چې انسانيت موجود وي او د عصر تعليم نه فطرت د مسخ كيدلو نه محفوظ وي. هلته مېلمستيا ډېر په لويه كچه باندې كېږي. اسلام څه آداب او قواعد هم مېلمنو ته خودلي دي. دغه شان كوربه يې هم د يو څو قواعدو پابند كړی دی. راتلونكې حديثونو كې همدغه بيان دی.

# الفصل الاول

## د مېلمه اكرام كول د ايمان علامت دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ كَانَ |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل كوم كس چې په |
| يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَمَنْ كَانَ |
| الله او قيامت باندې ايمان ساتي نو هغې له پكار ده چې د خپل مېلمه عزت وكړي. كوم كس چې په |
| يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ |
| الله او د قيامت په ورځ ايمان ساتي نو هغې له پكار ده چې خپل ګاونډي ته تكليف ورنه كړي او |
| وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ. |
| كوم كس چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان ساتي نو هغې له پكار ده چې د خبره وكړي يا چپ پاتې شي. |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةٍ: | بَدَلَ الْجَارِ | وَمَنْ | كَانَ | يُؤْمِنُ | بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ |
| او بخاری کې یعني د ګاونډ په ځای دا دي چې کوم کس الله او د قیامت په ورځ ایمان ساتي نو | | | | | | |
| الْآخِرِ | فَلْيَصِلْ | رَحِمَهُ" | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | |
| هغې له پکار ده چې خپلوي وساتي یعني د خپلو خپلوانو او عزیزانو سره ښه سلوک او د احسان معامله وکړي. | | | | | | |

**توضیح: فلیکرم:** دې حدیث کې د دریو ښو خصلتونو ترغیب ورکړی شوی دی. د دې مطلب دا نه دی چې کوم کس کې دا درې خصلتونه نه وي نو هغه مومن نه دی. دا د ترغیب یو اندزاه ده او د دې خصلتونو په خپلولو ته ترغیب ورکول مقصود دی، لکه څنګه چې یو کس خپل ځوي ته وایي "ان کنت ابنی فاطعنی" دا خوړلو ترغیب دی چې دې کې د کامل مومن خبره شوې ده چې کامل مومن همغه دی چې کوم کې دا درې خصلتونه موجود وي. علماؤ لیکلي دي درې ورځو پورې په خنده تندي او نرم اخلاقو سره مېلمه ته خوراک ورکول د کوربه فریضه ده. د هغې نه وروسته خوراک ورکول صدقه او خیرات دی. که خوښه یې وي پرې ودې خوري او که ښوښه یې نه وي، پرې نه دې خوري. مېلمستیا کې دې یو ځل د اعلی اندازوي، نور دې عام دعوت وي. (مرقات۶۸/۸)

**فلایؤذ جاره:** په اصل کې د شریعت خو دا حکم دې چه دګاونډی د ټولو حقوقو خیال اوساتلې شی ځکه چه «فلیکرم جاره فلیحسن جاره» الفاظ په حدیث کې دی. لیکن که یو سړې د حقوقو خیال نه ساتی نو کم نه کم ګاونډی ته خو دې تکلیف نه ورکوی. (مرقات۶۹/۸)

## کوربه باندې بوج مه جوړیږئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْكَعْبِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ | | | | | |
| او د حضرت شریح کعبي نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ وفرمایل کوم کس چې په الله او د | | | | | |
| وَالْيَوْمِ | الْآخِرِ | فَلْيُكْرِمْ | ضَيْفَهُ | | |
| قیامت په ورځ ایمان ساتې نو هغې له پکار ده چې د خپل مېلمه تعظیم او عزت وکړي. مېلمه سره | | | | | |
| جَائِزَتُهُ | يَوْمٌ | وَلَيْلَةٌ | وَالضِّيَافَةُ | ثَلَاثَةُ | أَيَّامٍ |
| احسان او تکلف زمانه یو ورځ او یوه شپه ده او د مېلمستا کولو زمانه درې ورځې ده. او د درې | | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۲۴۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۴۵/۱۰ رقم الحديث ۶۰۱۸ ومسلم في ۶۸/۱ رقم الحديث: (۷۵-۴۷)

فَمَا بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ وَلَا يَحِلُّ

ورځو نه وروسته چې څه ورکول کېږي هغه به هدیه یا خیرات وي. او د مېلمه لپاره دا جائز نه دي

لَهُ أَنْ يَثْوِيَ عِنْدَهُ حَتَّى يُحَرِّجَهُ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

چې هغه یو کوربه ته د درې ورځو نه زیات د پوښتنې نه بغیر هیسار شي چې هغه په تنګسیا کې اخته نه شي.

**توضیح**: جائز ته: ای عطیته، د مېلمه په مېلمستا کې په اولنۍ ورځ کې د دعوت ښه اهتمام کول پکار دی. او بیا د عام عادت مطابق خوراک ورکول پکار دی. درې ورځو نه وروسته چې هغه لاړ شي نو هغې له د یوې ورځې او شپې جائزه یعنې د سفر رخصت دې ورکړې شي. علامه ابن اثیر جزری په نهایه کې لیکلي دي چې د جائزه مطلب همدغه دی، خو د ابن اثیر نه بغیر نور علماء لیکلي چې مېلمه ته چې په اولنۍ ورځ کوم د تکلف والا خورک ورکړې شوی دی همغه د هغې انعام او جائزه ده. دا معنې ډېره واضحه او راجح ده. نن سبا خلکو ته عجیبه ښکاري چې درې ورځې مېلمه ته څنګه خوراک ورکړې شي او څنګه یې کور وساتو خو که د مخکنې دور د انسانانو تاریخ ولوستلی شي او نن سبا د قبائل خلکو ته وکتلی شي نو دې کې هیڅ وړاندې والی نه محسوسېږي. بهرحال خلک غورځېدلې دي خو انساني شرافت او د هغې تاریخ خو نه دی غورځېدلی. تاریخ خو جاري دی. بیا هم د علاقو او د حالاتو له نظره خپله مېلمه د ډېر د احتیاط نه کار اخستل پکار دی چې په چا بوج نه شي، هره ورځ دې نه راځي او که راشي نو ژر دې بېرته لاړ شي. (مرقات ۷۱/۸)

## په ذمیانو باندې د مجاهدینو میلمستیا لازمه ده

﴿۳﴾وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت عقبه ابن عامر رضی الله عنه فرمایي چې ما نبي صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو چې کله تاسو

"إِنَّكَ تبعثنا فتنزل بِقَوْمٍ

مونږ جهاد ته یا د کار لپاره لېږې نو داسې هم کېږي چې د داسې خلکو په مینځ کې قیام کولو ضرورت شي

لَا يُقْرُونَنَا فَمَا تَرَى؟

چې زمونږ مېلمستیا نه کوي. داسې صورت کې تاسو څه حکم کوي. آیا مونږ به زوره هغوی باندې مېلمستیا کولی شو یا

فَقَالَ لَنَا: إِنْ نَزَلْتُمْ بِقَوْمٍ

نا؟ نو نبي علیه السلام مونږ ته وفرمایل چې که چرې تاسو د سفر په دوران کې د یو قوم په مینځ کې قیام کوئ او هغه تاسو

---

[1] رقم الحدیث ۴۲۴۴ اخرجه البخاري في صحیحه ۴۴۵/۱۰ رقم الحدیث ۶۰۱۹ ومسلم في ۱۳۵۳/۳ رقم الحدیث ۴۸/۱۵

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأْمُرُوا | لَكُمْ | بِمَا | يَنْبَغِي | لِلضَّيْفِ | فَاقْبَلُوا | فَانْ |

له شي چې يو مېلمه ته ورکولو لائق وي نو تاسو هغه قبلوئ او که داسې نه کوي يعنې د مېلمستيا

لَمْ يَفْعَلُوا فَخُذُوا مِنْهُمْ حق الضَّيْف الَّذِي يَنْبَغِي لَهُم (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1]

حق نه ادا کوي نو تاسو د هغوی نه مېلمستيا حق اخستلی شئ چې د يو مېلمه لائق وي. (بخاري مسلم)

**توضيح:** لايقرونناً: دا د قرا نه دی. مېلمستيا ته وايي. د دې حديث مطلب دا دی چې که چرې کوربه د مېلمستيا حق نه ادا کوي نو مېلمه د هغې نه په زوره حق اخستلی شي. دا حديث د هغه حضراتو لپاره دليل دی چې د يوې ورځې مېلمستيا ته واجب وايي، خو جمهور فقهاء فرمايي چې مېلمستيا مستحب ده. او دا حديث د هغه ذميانو باره کې دی چې هغوی باندې به د جزيې مقررولو وخت کې دا هم مقررول کېدل چې که مجاهدين په تاسو باندې تېرېږي نو تاسو به هغوی ته خوراک ورکوئ، نو دا عامه مېلمستيا نه ده. بلکې د جزيې يوه برخه ده يا د دې نه مراد اضطراري حالت دی چې د هغوی نه يې وخورئ او وروسته ورله قيمت ادا کړئ. د ټولو نه ښه جواب اولنی دی، ځکه د يو مسلمان مال د هغې د خوشحالئ نه بغير خوړل حرام دی. کېدی شي چې دا حکم په ابتداء کې وي او بيا منسوخ شوی وي. باب الاعتصام کې جلد اول کې دا مسئله تېره شوې ده.

## د ميلمه په راتللو باندې د خوشحالئ اظهار کول پکار دی

﴿۳﴾ وَعَن أَبِي هريرةَ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْم وَلَيْلَة

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو نبي عَلَيْهِ السَّلَام د ورځې يا د شپې وخت کې چرته د تللو لپاره د کور نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِذَا | هُوَ | بِأَبِي | بَكْرٍ | وَعُمَرَ | فَقَالَ: |

ووتلو چې ناڅاپه د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو. نبي عَلَيْهِ السَّلَام پوښتنه وکړه: څه شي تاسو د کور

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا | أَخْرَجَكُمَا | مِنْ | بُيُوتِكُمَا |

نه راوېستلي وئ. يعنې وخت دا چې ستاسو د راوتلو عادت نه دی نو ځکه څه ضرورت درته پېښ شوی دی چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| هَذِهِ | السَّاعَةَ؟ | قَالَا: | الْجُوعُ |

ستاسو د کور نه د راوتلو سبب شو. هغې دواړو عرض وکړو چې مونږ ولږې د کور نه راوېستلو باندې مجبوره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | وَأَنَا | وَالَّذِي | نَفْسِي | بِيَدِهِ |

کړي يو. يعنې د لږې ډېروالي مونږ د کور نه راوېستلي يو. نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل او زه هم. قسم په هغه ذات چې

[1] رقم الحديث ۴۲۴۵ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰۷/۵ رقم الحديث ۲۴۶۱ ومسلم في ۱۳۵۳/۳ رقم الحديث (۱۷-۱۷۲۷)

لَأَخْرَجَنِي الَّذِي أَخْرَجَكُمَا

د چا په لاس کې زما ژوند دی همدغه شي د کور نه راویستلی یم. یعنې زه د کور نه د ولږې په وجه راوتلی یم.

قُومُوا فَقَامُوا مَعَهُ فَأَتَى رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ

راپاتسئ او ما سره راځئ، نو هغه دواړه هم راپاڅېدل او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره شول. بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د یو انصاری

فَإِذَا هُوَ لَيْسَ فِي بَيْتِهِ فَلَمَّا رَأَتْهُ الْمَرْأَةُ

کور ته ورسیدلو چې نوم یې ابو الهیثم ؤو، خو هغه کور کې موجود نه ؤو. د هغې ښځې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ولیدلو نو وې

قَالَتْ: مَرْحَبًا وَأَهلا فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

پخیر راغلئ. ته د خپلو خلکو سره راغلی یې. ستا راتلل دې مبارک وي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته ووئیل چې

أَيْنَ فُلَانٌ؟ قَالَتْ: ذَهَبَ يَسْتَعْذِبُ لَنَا مِنَ الْمَاءِ

فلانی یعنې ستا خاوند چرته دی؟ هغې عرض ورکړو چې هغه مونږ خوږو اوبو راوړلو لپاره تللی دی. د غه وخت کې هغه

إِذْ جَاءَ الْأَنْصَارِيُّ فَنَظَرَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَاحِبَيْهِ

انصاری د کور والا راغلو. هغې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د هغې دواړه صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل کور

ثُمَّ قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ

ته په راتلو ولیدل نو خپلې دې خوش بختۍ باندې یې قابو نه وه او وې ویل الحمد الله. د خدای شکر دی. د ډیر بزرګانو میلمنو

مَا أَحَدٌ الْيَوْمَ أَكْرَمَ أَضْيَافاً مِنِّي

په اعتبار سره نن ورځ ما ته هیڅ خوشحالې نه ده نصیب شوې. یعنې نن ورځ زما مېلمانه د نورو خلکو د میلمنو

قَالَ: فَانْطَلَقَ فَجَاءَهُمْ

نه زیات بزرګان او معزز دي. راوي یعنې حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د هغې نه وروسته هغه انصاری خپله د کجورو

بِعِذْقٍ فِيهِ بُسْرٌ وَتَمْرٌ وَرُطَبٌ

بوټو له لاړو او د مېلمنو لپاره یې د کجورو یوه غونچه راوړله چې پخې، نیم پوخته او ترو تازه هر قسمه کجورې

فَقَالَ: كُلُوا مِنْ هَذِهِ وَأَخَذَ الْمُدْيَةَ

په کې وې. بیا هغې وویل چې تاسو یې د دې نه خورئ. د هغې نه وروسته هغې چاړه راواخستله او بزه ذبح

فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِيَّاكَ وَالْحَلُوبَ

کول یې غوښتل نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغې ته وفرمایل چې د شودو والا بېزه مه ذبح کوله ځان وساته.

| | | |
|---|---|---|
| فَذَبَحَ | لَهُمْ | فَأَكَلُوا |

آخر دا چې هغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د هغې د صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ لپاره يوه بزه ذبح كړه او چې د هغې غوښه پخه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنَ | الشَّاةِ | وَمِنْ | ذَلِكَ | الْعِذْقِ | وَشَرِبُوا |

د هغې غوښه پخه شوه نو ټولو د هغې غوښه وخوړله او د هغ غونچې نه كجورې وخوړلې او اوبه يې وڅښلې.

فَلَمَّا أَنْ شَبِعُوا وَرَوُوا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ:

چې د اوبو نه يې خيټې ډكې شوې نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې

وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتُسْأَلُنَّ عَنْ هَذَا النَّعِيمِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

قسم په هغه ذات چې د ځا په لاس كې زما ژوند دی د قيامت په ورځ به تاسو نه د دې نعمتونو باره

أَخْرَجَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ الْجُوعُ ثُمَّ لَمْ تَرْجِعُوا حَتَّى أَصَابَكُمْ

كې پوښتلې كېږي. ولږ تاسو ستاسو د كورونو نه راويستلي وئ خو تاسو كورته لا تلي هم نه وئ

هَذَا النعيمُ . رَوَاهُ مُسلم . وَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي مَسْعُودٍ: كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فِيبَابِ الْوَلِيمَةِ[1]

چې د خداى له اړخ تاسو ته دا نعمتونه دركړې شو.

**توضيح: مرحبًا واهلاً:** يعنې پخير راغلئ، تاسو خپل كور ته راغلئ. د ځكې دا ټوته ستاسو لپاره هواره او خوش ګواره ده. د دې حديث نه د مېلمستيا ډېر ښه اصول مخې ه راځي. اول دا چې د خپل ولږې او تندې او د تكليف او پريشانئ اظهار د خپلو دوستانو ته كول جائز دي، لكه څنګه چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ابوبكر او عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وكړل. دويم دا چې خپل د اعتماد قابل ملګرې خواله بغير د دعوت نه خپله هم سړى تلى شي او خپل ملګري هم بوتللى شي، لكه څنګه چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بوتللي ؤو. دريم دا چې د خپلې خوښې شې طلب كول او كوربه د ښه شې د وركولو نه منع كول جائز دي. لكه څنګه چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع كړو. څلورم دا چې د مېلمه نه دا پوښتل چې تاسو خوراك كوئ يا نه نو دا مناسبه نه ده بلكې ژر د خوراك كولو څه فكر كول پكار دی لكه څنګه چې هغه انصارى صحابي كړي دي چې كجورې يې ورله مخې ته كېښودلې او د بزې ذبح كولو پسې شو. پنځم دا چې د دنيوې نعمتونو نه خوند اخستلو باندې د قيامت په ورځ د دې نعمتونو باره كې پوښتلى كېږي. (مرقات ۷۳/۸)

---

[1] رقم الحديث أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۰۹/۳ رقم الحديث (۱۴۰-۲۰۳۸) وابن ماجه في السنن ۱۰۶۲/۲ رقم الحديث ۳۱۸۱.

## الفصل الثاني

| |
|---|
| ﴿۵﴾عَن المقدامِ بن معدي كرب سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| حضرت مقداد ابن معدیکرب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دا اورېدلي دي چې کوکس په |
| أَيُّمَا مُسْلِمٍ ضَافَ قَوْمًا فَأَصْبَحَ الضَّيْفُ مَحْرُومًا |
| یو قوم کې د چا مېلمه شو او هغې د محرومۍ په حالت کې سحر یعني د هغې کور به د شپې د هغې مېلمستیا ونه |
| كَانَ حَقًّا عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ |
| کړه، نو په هر مسلمان به دا حق وي چې د هغې سره مرسته وکړي تردې چې دا کس د چا مېلمه شوی دی د هغې |
| نَصْرُهُ حَتَّى يَأْخُذَ لَهُ بِقِرَاهُ مِنْ مَالِهِ وَزَرْعِهِ. |
| مال او د زراعت نه د مېلمستیا په قدر یعني د یو مېلمه د خوراک او څښاک په حساب ترېنه وصول کړئ. |
| رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَفِي رِوَايَةٍ: وَأَيُّمَا رَجُلٍ ضَافَ قَوْمًا |
| (دارمي و ابوداؤد) او د ابوداؤد په یو روایت کې داسې دي چې کوم په یو قوم کې مېلمه شو او |
| فَلَمْ يُقْرُوهُ كَانَ لَهُ |
| هغه خلکو د هغې مېلمستیا ونه کړه نو هغوی ته به دا حق حاصل وي چې هغه خلکو پسې شي او د |
| أَن يعقبهم بِمثل قراه[1] |
| هغې د مال او اسبابو نه د مېلمستیا په قدر وصولي وکړي. |

**توضیح:** د دې حدیث تعلق هم په ظاهره د ذمیانو سره دی چې هغوی باندې د جزیه په توګه د مجاهدینو مېلمستیا لازمه شوې وه. د مېلمه خوراک څښاک ته "قِرا" وايي.

## د بدو بدله بد نه دي

| |
|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ الْجُشَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: |
| او حضرت ابولاحوص د خپل پلار مالک ابن فضله صحابي نه روایت کوي چې هغې وفرمایل چې ما یو ورځ |
| قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ |
| عرض وکړو یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! که زه په یو چا تېرېږم یعني د هغې سره مېلمه شم او هغه |

[1] رقم الحديث ۴۲۴۷ أخرجه ابوداود في السنن ۱۲۹/۴ رقم الحديث ۳۷۵۱ والدارمي في ۶۳۴/۲ رقم الحديث ۲۰۳۷

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَلَمْ | يُقْرِنِي | وَلَمْ | يُضِفْنِي | ثُمَّ |

مېلمستیا ونه کړې او نه زما د مېلمستیا حق ادا کړي او د هغې نه وروسته د هغې تېرېنده زما سره وي یعني هغه زما مېلمه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَرَّ | بِي | بَعْدَ | ذَلِكَ | أَأَقْرِيهِ | أَمْ | أَجْزِيهِ؟ |

شي نو آیا زه د هغې مېلمستیا وکړم او که د هغې نه بدله واخلم یعني زه د هغې سره همغه شان سلوک وکړم

قَالَ : بل اقره. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [1]

چې کوم یې ما کړی وُو؟ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نا. د دې نه بدله مه اخله بلکې د هغې مېلمستیا وکړه.

## د خوراک نه وروسته دعاء

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْ | أَنَسٍ | أَوْ | غَيْرِهِ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یا د هغې نه بغیر د بل کوم یو صحابي نه روایت دی چې یو ورځ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اسْتَأْذَنَ | عَلَى | سَعْدِ | بْنِ | عُبَادَةَ |

سعد ابن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور ته ورسیدلو نو د هغې نه یې کور ته د ننوتلو اجازت وغوښتلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | السَّلَامُ | عَلَيْكُمْ | وَرَحْمَةُ | اللهِ |

دروازه باندې او دریدلو او ویې فرمایل چې السلام علیکم ورحمة الله، تاسو باندې دې سلامتي وي او د هغې رحمت دې وی

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ | سَعْدٌ: | وَعَلَيْكُمْ | السَّلَامُ |

آیا زه د ننه راتلی شم؟ سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کور نه جواب ورکړو چې وعلیکم السلام ورحمة الله او تاسو باندې هم د الله سلامتي

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَرَحْمَةُ | اللهِ | وَلَمْ | يُسْمِعِ |

او رحمت نازل شي، آیا زه د ننه راتلی شم؟ سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کور نه جواب ورکړو چه وعلیکم السلام خو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | حَتَّى | سَلَّمَ | ثَلَاثًا |

هغه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا جواب ورنکړو تر دې چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې ځله سلام اوکړو

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَرَدَّ | عَلَيْهِ | سَعْدٌ | ثَلَاثًا |

او سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته درې ځله جواب ورکړو، خو نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وانه وریدلو. یعني

[1] رقم الحديث ۴۲۴۸ اخرجه الترمذي في السنن ۳۲۰/۴ رقم الحديث ۲۰۰۶ واحمد في المسند ۴۷۳/۳ رقم الحديث ۴۲۴۹.

| | | |
|---|---|---|
| وَلَمْ | يُسْمِعْهُ | فَرَجَعَ |

سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سلام جواب دري ځله قصداً په ورو ورو ورکړو چې نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یې وانوري

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

نو نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې جواب نه اورېدلو سره بېرته روان شو. حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې وليدلو چې کوم شی

| | | |
|---|---|---|
| فَاتَّبَعَهُ | سَعْدٌ | فَقَالَ: |

د سعادت د حصول د زیاتي ذریعه غوښتله هغه زما لپاره بالکل د محرومۍ سبب شوه او یو قسم له د بې ادبۍ

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَا | رَسُولَ | اللهِ | بِأَبِي |

صورت هم پیدا شو، نو په منډه د کور نه ؤوتلو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پسې شو او عرض یې وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْتَ | وَأُمِّي | مَا | سَلَّمْتَ | تَسْلِيمَةً | إِلَّا | هِيَ |

په تا دې زما مور او پلار قربان وي تا چې څو ځله سلام کړی دی هغه هو مره زما غوږونو اورېدلی دی او

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِأُذُنِي: | وَلَقَدْ | رَدَدْتُ | عَلَيْكَ |

حقیقت دا دی چې ما په هر ځله جواب هم درکولو. البته دا جواب مې ستا غوږونو ته نه در رسیدلو ځکه زه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَمْ | أُسْمِعْكَ | أَحْبَبْتُ | أَنْ | أَسْتَكْثِرَ |

ستا نه د ډېر سلام او برکت خواهش مند ؤوم یعنې زما مقصد دا ؤو چې زما جواب د ستا سو غوږونو ته

| | | |
|---|---|---|
| مِنْ | سَلَامِكَ | وَمِنَ |

درونه رسیږي چې ته څو مره ډېر سلامونه کوي نو زما په حق کې هغه هو مره زیات د برکت او د سعادت د حصول

| | | |
|---|---|---|
| الْبَرَكَةِ | ثُمَّ | دَخَلُوا |

ذریعه شي، نو د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له اړخه د دې حقیقت د اظهار او د عذر خواهۍ نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْبَيْتَ | فَقَرَّبَ | لَهُ | زَبِيبًا |

او حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کور ته داخل شو او د سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته او چې کجورې پېش کړې. چې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَكَلَ | نَبِيُّ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَلَمَّا | فَرَغَ | قَالَ: |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وخوړلې. کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خوراک نه فارغ شو نو د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حق

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَكَلَ | طَعَامَكُمُ | الْأَبْرَارُ | وَصَلَّتْ | عَلَيْكُمُ | الْمَلَائِكَةُ | وَأَفْطَرَ |
| کې يې دعا وکړه چې د الله نيکان دې ستا خوراک وخوري، فرښتې دې ستا لپاره استغفار وکړي | | | | | | |
| عِنْدَكُمُ الصَّائِمُونَ . رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ[1] | | | | | | |
| او روژه دار دې ستا سره روژه ماتې وکړي. | | | | | | |

**توضيح: اكل طعامكم الابرار:** دا صيغه د ماضې ده، خو د انشاء او د دعا لپاره د استقبال په توګه استعمال شوې دی يعنې د الله نيکان بندې ګان ستا خوراک وخوري. (مرقات۸/۷۹)

**وصلت عليكم الملائكة:** د صائمون نه مراد هغه خل کدي چې هغوی ډوډۍ نه وي خوړلي هغه که روژه دار وي يا نه وي. دا جمله هم د دعا په توګه ده يعنې روژه دار دې ستا سره روژه ماتې وکړې. د خوراک نه وروسته دا دعاګاني وي. ځينې خلک لاس اوچت کړي او دعا کوي. دا معلومه نه ده چې هغوی د کوم ځای نه ثابتوي. د خوراک نه وروسته دا دعا هم منقول ده "**الحمد لله الذی اطعمنی هذا ورزقنيه من غير حول منی ولا قوة**" او د کوربه لپاره دا دعا ده. "**الله بارك له فی امواله و اولاده**"

## د پرهيزګاره خلکو ضيافت ډير بهتر دی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ | أَبِي | سَعِيدٍ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ:مَثَلُ الْمُؤْمِنِ |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه روايت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې د مومن او د | | | | | | | | | |
| وَمَثَلُ | الْإِيمَانِ | كَمَثَلِ | الْفَرَسِ | فِي | آخِيَّتِهِ | | | | |
| ايمان مثال د هغه آس پشان دی چې خپل پړي کې تړلی شوی وي او د اخوا ديخوا چکرو نه وروسته | | | | | | | | | |
| يَجُولُ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى آخِيَّتِهِ وَإِنَّ الْمُؤْمِنَ يَسْهُو ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى الْإِيمَانِ | | | | | | | | | |
| خپل پړي ته راشي. او دغه شان مومن غفلت او کوتاهي کوي، خو بيا هم د ايمان اړخ ته راځي. لهذا | | | | | | | | | |
| فَأَطْعِمُوا طَعَامَكُمُ الْأَتْقِيَاءَ وَأَوْلُوا مَعْرُوفَكُمُ الْمُؤْمِنِينَ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ[2] | | | | | | | | | |
| تاسو خپل خوراک متقي او پرهيزګارانو ته ورکوئ او خپلې عطيې ټولو مسلمانانو ته ورکوئ. | | | | | | | | | |

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۴۹ اخرجه احمد في المسند ۳/۱۳۸.

([2]) رقم الحديث ۴۲۵۰ اخرجه احمد في المسند۳/۵۵ والبيهقي في الشعب ۷/۴۵۲ رقم الحديث ۱۰۹۶۴ وابونعيم في الحلية ۸/۱۷۹

**توضیح**: **اَخِيَّتِهٖ**: همزه باندې مد دی خا باندې کسره ده یا باندې شد دی بیا "تا" ده. د دې اسانه ترجمه پړې او کنډه ده. اصل کې د اخية بهترین مصداق د ځناور په غوجل کې کوم د سائیکل ټائر په زمکه خښېږي او هغه د پړې سره وتړي او بیا پړې ځناور تړي. دې ته ګله هم وایي. د حدیث مطلب دا دی چې مومن د خپل ایمان مرکز سره تړلی شوی دی. ځناور د کِله نه کافي لرې لاړ شي خو پړی موجود وي نو آخر کې بېرته دې پړې ته راشي. همدغه شان مثال د مومن دی چې د ایمان د کلی سره تړی شوی دی. که د ګناه اړخ ته لاړ شي نو د خپل ایمان مرکز ته بېرته راشي. د مسلمان مرکز، ایمان او قرآن دی. بیت الله او مدینة الرسول دی. جوماتونه او مدرسې او علماء دي. بې لازی شوی مسلمان د همدغه ځای نه د هدایت حاصلوی شي. (مرقات۸/۷۹)

**فاطعموا**: دا فا جزائیه ده. د دې شرط مخذوف دی. یعنې کله چې د مسلمانانو مرکز یو دی نو دې مرکز ته ټولو له راجمع کېدل پکار دي. لهذا دا مرکز مضبوط کړئ. د دې صورت به دا وي چې د یو بل مېلمستیا وکړئ چې محبت او اتحاد پیدا شي. پرهیز ګارانو ته د خوراک تخصیص ځکه شوی دی چې کله هغوی خوراک وکړي نو عبادت به کوي او تاسو ته به دعاګانې کوي او د هغوی دعاګانې قبلېږي. (مرقات۸/۷۹)

**واولوا**: دا د ایلاء نه دی. والي او متولي د جوړولو په معنی کې دی. یعنې مسلمانان د خپلو عطیو سره خاص کړئ او د منافقانو او د کافرانو پرواه مه کوئ. (مرقات۸/۸۰)

## ګونډو باندې ناسته او خوراک کول عاجزي ده

﴿۹﴾ عَن عبد الله بنِ بُسر قَالَ: كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَصْعَةٌ

او حضرت عبدالله ابن بسر رضي الله عنه فرمایي چې د نبي علیه السلام سره یو غټه کاسه وُه. چې څلورو کسانو

يَحْمِلُهَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ

به اوچتوله. یعنې کله به چې هغې خوراک کېښودلی شو نو هغه دومره درنه وه چې څلورو کسانو ته اوچتوله.

يُقَالُ لَهَا: الْغَرَّاءُ

یا خالي هغه دومره لویه یا درنه وه چې د څلور کسانو نه بغیر به نه اوچتې دله، نو هغه کاسې ته به یې غراء ویله

فَلَمَّا أَضْحَوْا وَسَجَدُوا الضُّحَى أُتِيَ بِتِلْكَ الْقَصْعَةِ

کله به چې د څابنت وخت شو او خلکو به د څابنت لمونځ وکړو نو هغه کاسه به راوړلی شوه او هغې کې به یې

وَقَدْ ثُرِدَ فِيهَا فَالْتَفُّوا عَلَيْهَا فَلَمَّا كَثُرُوا

ثرید تیارولو. بیا به خلک د هغې نه ګیر چاپېره راجمع شول. تر دې چې د خلکو شمیر به زیات شو او ناستې ځای

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| جُثًا | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

به تنګ شو، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په ګونډو کيناستلو. دغه شان کيناستلو باندې ليدلو سره يو ورځ

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ | أَعْرَابِيٌّ: | مَا | هٰذِهِ الْجِلْسَةُ؟ |

يو باندچي وويل چې دا څنګه ناسته ده؟ يعنې دغه شان کيناستل د ستاسو د شان سره مناسب نه دي. دې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: إِنَّ | اللهَ | جَعَلَنِي |

او رېدلو سره نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل چې حقيقت دا دی چې الله زه د عاجزئ او انکسارئ والا جوړ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَبْدًا | كَرِيمًا | وَلَمْ | يَجْعَلْنِي | جَبَّارًا | عَنِيدًا | ثُمَّ |

کړی يم. سرکشه او ضدي کړی يې نه يم. او دغه شان د عاجازئ او انکسارئ ناسته لنډه لاره ده. بيا

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ: | كُلُوا | مِنْ | جَوَانِبِهَا |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ټول مخاطب کړل او ويې فرمايل چې د دې د غاړو يعنې د خپلې مخې نه يې خورئ، د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَدَعُوا | ذِرْوَتَهَا | يُبَارَكْ | فِيهَا. | رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُد[1] |

دې پاس ځای پرېږدئ يعنې په مينځنې خوراک لاس مه اچوئ تاسو له به دې کې برکت واچولی شي.

**توضيح**: الغراء: د روښانه په معنی کې دی. مراد ترېنه غټ تال والا کاسه دی. (مرقات۸/۸۰)

**جثی**: په ګونډو باندې ناستې ته وايي. مطلب دا چې تکيا وهلو سره خوراک کول جائز نه دی. د دې نه بغير چې په هر صورت کې کينې نو جائز دی. البته د نبي کريم ﷺ په انداز کې کيناستل مسنون دي، خو دا په سنن زوائدو کې دي. که د ثواب نيت مو وکړو نو ثواب به ملاوېږي کنې په عادت سره ناستې باندې ثواب نه ملاوېږي. (مرقات۸/۸۰)

## راغونډېدلو سره خوراک کې برکت نازلېږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْ | وَحْشِيِّ | بْنِ | حَرْبٍ | عَنْ | أَبِيهِ | عَنْ جَدِّهِ: |

او حضرت وحشي ابن حرب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه او هغه د خپل پلار نه او وحشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل نيکه نه نقل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | أَصْحَابَ | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالُوا: |

کوي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو څو صحابه کرامو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يو ورځ وپوښتل چې

(1) رقم الحديث ۴۲۵۱ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۴۳ رقم الحديث ۳۷۷۳ وابن ماجه في ۲/۱۰۸۶ رقم الحديث ۳۲۶۳

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَا | رَسُولَ | اللهِ | إِنَّا | نَأْكُلُ |

یارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! مونږ اکر که بنه دېر خوراک کوؤ خو زمونږ خېټه نه ډکې کېږي. او مونږ دا غواړو چې زمونږ

| | | |
|---|---|---|
| وَلَا | نَشْبَعُ | قَالَ: |

خېټه ډکه شي چې د عبادت طاقت حاصل کړو. یا مونږ ته د قناعت دولت حاصل شي. نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې دېر خوراک

| | | |
|---|---|---|
| فَلَعَلَّكُمْ | تَفْتَرِقُونَ؟ | قَالُوا: |

کولو باوجود هم د خېټې نه ډکېدلو وجه دا معلومېږي چې کېدی شي چې تاسو جدا جدا خوراک کوئ؟ هغوی عرض وکړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَعَمْ | قَالَ: | فَاجْتَمِعُوا | عَلَى | طَعَامِكُمْ |

چې آو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نو بیا تاسو خپل خوراک ته په یو ځای کېنئ او د هغې خوړلو

وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ يُبَارِكْ لَكُم فِيهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

وخت کې بسم الله وایئ. ستاسو خوراک کې به برکت واچولی شي.

**توضیح**: په ښکاره داسې معلومېږي چې په یو ځای په غونده په یو لوښي کې د خوراک کولو باره کې ویل شوی دی. کېدی شي دسترخوان باندې کیناستلو سره په جدا جدا کاسو کې خوراک کولو سره دا شرط پوره نه شي. د عربو خلک لس لس کسان په یو ځای خوراک ته کېني. اوس هم په قبائلو کې داسې رواج دی.

## الفصل الثالث

## قیامت کې به د عیش والاؤوند باره کې پوښتلی کېږي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾عَنْ | أَبِي | عَسِيبٍ | قَالَ: | خَرَجَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | لَيْلًا |

حضرت ابو عسیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د یو واقعه ده چې د شپې وخت کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د کور نه ؤوتلو او

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَمَرَّ | بِي | فَدَعَانِي | فَخَرَجْتُ | إِلَيْهِ | ثُمَّ مَرَّ |

ما ته یې تشریف راوړلو او ځې یې راوغوښتلم. زه د کور نه راؤتلم او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره شوم. بیا نبي عَلَيْهِ السَّلَام

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِأَبِي بَكْرٍ | فَدَعَاهُ | فَخَرَجَ | إِلَيْهِ |

ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له ورغلو او هغه یې راوغوښتلو او راوې غوښتلو او هغه هم د کور نه راؤوتلو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره شو.

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۵۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۳۸/۴ رقم الحديث ۳۷۶۴ وابن ماجه في ۱۰۹۳/۲ رقم الحديث : ۳۲۸۶.

ثُمَّ مَرَّ بِعُمَرَ فَدَعَاهُ فَخَرَجَ إِلَيْهِ فَانْطَلَقَ

هغې نه ورسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د عمر خوا له ورغلو او راوې غوښتلو. هغه هم د خپل نه راؤوتلو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

حَتَّى دَخَلَ حَائِطًا لِبَعْضِ الْأَنْصَارِ

سره شو. مونږ ټول د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره شو تردې چې يو باغ ته ورسيدلو چې ديو انصاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باغ ؤو.

فَقَالَ لِصَاحِبِ الْحَائِطِ: أَطْعِمْنَا بُسْرًا

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د باغ مالک ته وويل چې په مونږ کجورې وخوروه. د باغ مالک د کجورو يو غونچه راوړله او

فَجَاءَ بِعِذْقٍ فَوَضَعَهُ فَأَكَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ

زمونږ مخې ته يې کيښودله. د هغې نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هم وخوړله او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحابؤ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ يعني مونږ

ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ بَارِدٍ فَشَرِبَ فَقَالَ:

هم وخوړله. بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ يخې اوبه راوغوښتلې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او بيا مونږ وڅښلې. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل

لَتُسْأَلُنَّ عَنْ هٰذَا النَّعِيمِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ:

چې يقيناً د قيامت په ورځ به ستاسو نه د دې باره کې پوښتلې کېږي. روايې وايي دې اوريدلو سره

فَأَخذ عمر العذق فضرب فِيهِ الْأَرْضَ حَتَّى تَنَاثَرَ الْبُسْرُ

عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کجور غونچه را اوچته کړه او په ځمکې ته يې راويشتله تردې چې د هغې کچه کجورې

قِبَلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ

د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته خورې شوې. بيا هغې عرض وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

إِنَّا لمسؤولونَ عَنْ هٰذَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ قَالَ:

آيا د قيامت په ورځ به مونږ نه د دې باره کې هم پوښتنه کېږي؟ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

نَعَمْ إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ

آؤ! د هر نعمت باره کې به پوښتنه کېږي. هغه که کم وي يا زيات وي البته د درې شيانو باره کې پوښتنه نه کېږي.

خِرْقَةٍ لَفَّ بِهَا الرَّجُلُ عَوْرَتَهُ أَوْ كِسْرَةٍ سَدَّ بِهَا جَوْعَتَهُ

يو خو هغه ټوټه د چې په هغې سړی خپل ستر پټوي او دويم د ډوډۍ ټوټې چې په هغې خپله ولږه ختمه کړي

أَوْ حُجْرٍ يتدخَّلُ فِيهِ مِنَ الْحَرِّ وَالْقُرِّ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِيشعب الْإِيمَان .[1]

او درېم کور او هجره چې هغې د ګرمۍ او يخنۍ نه د بچ کېدلو لپاره ننوځي.

**توضيح**: **تناثر**: د ښورېدلو په معنی کې دی. **قِبل**: د اړخ ته معنی کې دی يعنې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اړخ ته ښورې شوې. (مرقات۸/۸۲)

**حجر**: که "ح" مخکې وي نو دا حجره د کوټې په معنی کې ده. او که "ج" مخکې وي نو دا د سورې په معنی کې دی. دلته د حجرې نه مراد وړه کوټه ده. (مرقات۸/۸۳) **يتدخل**: يعنې په ګرانه هغې ته داخلېږي. د ګرمۍ او د يخنۍ نه د بچ کېدلو لپاره کافي وي. (مرقات۸/۸۳) **قر**: يخنۍ ته وايي. (مرقات۸/۸۳)

## د خوراک نه يو ځای پاڅېږئ

﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا وُضِعَتِ الْمَائِدَةُ

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کله دسترخوان خور کړی شي او

فَلَا يَقُومُ رَجُلٌ حَتَّى تُرْفَعَ الْمَائِدَةُ

خلک دې ته د خوراک لپاره کېني نو هيڅ يو کس دې تر هغې پورې نه پاسيږي چې تر څو پورې دسترخوان او چت نه کړی

وَلَا يَرْفَعُ يَدَهُ وَإِنْ شَبِعَ

شي او د خوراک نه تر هغه وخت پورې لاس را نښکلی شي چې تر څو پورې ټول کسان خوراک ونکړي. اګر

حَتَّى يَفْرُغَ الْقَوْمُ

که د هغې خېټه ډکه شوې وي. او که د څه عذر په وجه د دسترخوان نه پاڅېدل ضروري وي نو يا د نور کسانو

وَلْيُعْذِرْ فَإِنَّ ذَلِكَ

د فارغېدلو نه مخکې لاس رابښکل وي نو هغې له پکار ده چې خپل عذر بيان کړي يعنې معذرت وغواړي او د

يُخْجِلُ جَلِيسَهُ فَيَقْبِضُ

دسترخوان نه پاسېږي، ځکه هغه خپلو ملګرو ته شرم وررولي. کله چې يو کس دا ووينې چې د هغې ملګري

يَدَهُ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ لَهُ

خوراک بس کړو نو د شرم په وجه به هغه هم بس کړي. او دا ډېر امکان لري چې هغه او س د هم خوراک

[1] رقم الحديث ۴۲۵۳ أخرجه احمد في المسند ۸۱/۵ والبيهقيّ في شعب الايمان ۱۴۳/۴ رقم الحديث ۴۶۰۱

| |
|---|
| فِي الطَّعَامِ حَاجَةٌ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ [1] |
| کولو خواهش لري یعنې د هغې خیته نه وي ډکه شوي. |

**توضیح: فلا یقوم**: د خوراک په آدابو کې یو ادب دا دی چې خواړه ملګري یو ځای کینولی شي. ډاکټر د ډاکټر سره، مولا د طالب علمانو سره، علم والا د علم والا سره وغیره غیره.

*کند هم جنس باهم جنس پرواز* *کبوتر باکبوتر باز باباز*

او کوربه د هغه کسانو سره کینې چې د هغوی سره هغه مانوس وي چې مېلمنو ته په خوراک کې د هغې په وجه وحشت او تکلف نه وي. د خوراک دوېم ادب دا دی چې په اجتماعي خوراک کې هیڅ یو کس د نورو احبابو نه مخکې د خورک نه مخکې بس نه کړي. بلکې تر آخر پورې هسې ځان وساتې چې د شرم په وجه نور هم خوراک پرېږ نه دي.

**ویعذر**: یعنې که یو کس ژر پاسیږي یا څه مجبوري وي نو خپلو ملګرو ته معذرت وکړي او ؤوایې چې ورونو تاسو خوراک کوئ. ما اول وخوړله. زه ژر چرته روان یم. دا د دې لپاره چې نور د شرم په وجه د خوراک نه پا نسېږي. چې لا تر اوس پورې د خوراک خواهش وي خو د دنورو د بس کولو په وجه هغوی هم بس کړي. (مرقات۸/۸۳)

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كَانَ |
| او حضرت امام جعفر د ابن محمد د خپل پلار یعنې د امام محمد باقر نه روایت کوي چې هغې وویل |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَكَلَ مَعَ قَوْمٍ كَانَ آخِرَهُمْ أَكْلًا. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان مُرْسلًا [2] |
| چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې د خلکو سره خوراک کولو نو د ټولو نه آخر کې پاڅیدونکی کس به وو. |

## که ولږه وي نو خوراک کې تکلف مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَنْ أَسمَاء بنتِ يزِيد قَالَتْ: أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت اسماء بنت یزید فرمایي چې یو ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له خوراک راوړلی شو. او بیا |
| بِطَعَامٍ فَعَرَضَ عَلَيْنَا |
| هغه خوراک مونږ ته کینبودلی شوه، مونږ اګر که اوږي ؤو او د خوړلو خواهش مو لرو خو لکه څنګه چې عادت وي صرف |

[1] رقم الحدیث اخرجه ابن ماجه في السنن ۱۰۹۶/۲ رقم الحدیث ۳۲۹۵ والبیهقي في الشعب ۸۳/۵ رقم الحدیث ۵۸۶۴

[2] رقم الحدیث ۴۲۵۵ اخرجه البیهقي في شعب الایمان ۱۲۲/۵ رقم الحدیث ۶۰۳۷.

| | | |
|---|---|---|
| فَقُلْنَا: | لَا نَشْتَهِيهِ. | قَالَ: |

تكلفا مونږ وويل چې مونږ د خوړلو خواهش نه لرو. نبي كريم ﷺ دې اوريدلو سره وفرمايل

لَا تَجْتَمِعْنَ جُوعًا وَكَذِبًا. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ[1]

چې ولږه او دروغ مه يو ځاي كوئ. (ابن ماجه)

**توضيح**: لانشتهيه: يعنې زمونږ زړه نه كېږي حال دا چې زړه مو كېدلو. مطلب دا دى چې وږي خو يو خو د په تكلف سره مو وويل چې ولږه مه نشته دى، نو دې كې د دوه شيانو نقصان دى يو خو يې د دنيا خوراک ونه خوړلو، دويم دا چې د دروغو ارتكاب يې وكړو. دا د امت د داسې اشخاصو لپاره تنبيه ده چې داسې كوي. (مرقات ۸۵/۸)

﴿۱۵﴾وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُوا

او د حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه نه روايت دى چې نبي كريم ﷺ وفرمايل چې خوراک

جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا فَإِنَّ الْبَرَكَةَ مَعَ الجماعةِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ[2]

په يو ځاى كوئ، جدا جدا يې مه خورئ ځكه بركت د جماعت سره وي.

## ميلمه د كور دروازې پورې پرېږدئ

﴿۱۶﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِنَ السَّنَةِ أَنْ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل دا سنت دي چې يو كس د

يَخْرُجَ الرَّجُلُ مَعَ ضَيْفِهِ إِلَى بَابِ الدَّارِ. رَوَاهُ ابْن مَاجَه[3]

خپل مېلمه د استقبال كولو يا د هغې د رخصتولو لپاره د كور تر دروازې پورې ؤوځي. (ابن ماجه)

وَرَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْهُ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاس

بيهقي په شعب الايمان كې دا روايت د ابو هريره رضي الله عنه او د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل كړى دى. او

---

[1] رقم الحديث ۴۲۵۶ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۰۹۷/۲ رقم الحديث ۳۲۹۸.

[2] رقم الحديث ۴۲۵۷ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۰۹۳/۲ رقم الحديث ۳۲۸۷.

[3] رقم الحديث ۴۲۵۸ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۱۴/۲ رقم الحديث ۳۳۵۸

وَقَالَ: فِي إِسْنَادِه ضَعِيف[1]

بیهقي ویلي دي چې د سند په سلسله کې ضعیف دی.

**توضیح**: من السنة: د دې مطلب دا دی چې د مېلمه رخصتولو وخت کې د هغې سره تر د دروازې پورې تلل د پخوانئ زمانې یو عادت دی. چې د تهذیب او د ښه اخلاقو یوه برخه ده. یا دا مطلب دا دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې دا عمل زما د سنت مطابق دی. (مرقات ۸۵/۸)

## په ضیافت کې برکت دی

﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْخَيْرُ أَسْرَعُ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم کور کې چې مېلمنو ته

إِلَى الْبَيْتِ الَّذِي يُؤْكَلُ فِيهِ مِنَ الشَّفْرَةِ

خوراک ورکول کېږي هلته خیر یعني د رزق برکت او نیکي دومره تیزئ سره رسیږي چې هغه تیزئ

إِلَى سَنَامِ الْبَعِيرِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[2]

سره چاړه هم د اوښ کوف طرف ته نه رسیږي.

**توضیح**: الی سنام البعیر: اوښ چې کله ذبح کېږي، نو د ذبح کولو نه وروسته اول ژر ژر د هغې د کو هان نه غوښه غوڅولی کېږي او په شوق سره خوړلی کېږي. دې حدیث کې یې وفرمایل چې کوم کور کې مېلمه ته خوراک ورکړی شو نو د هغه کور اړخ ته خیر او برکت د دې نه هم ژر راځي، لکه څنګه چې چاړه د ذبح شوې اوښ کوف اړخ ته ژر ته ځي. (مرقات ۸۶/۸)



---

[1] رقم الحديث ۴۲۵۹ البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث

[2] رقم الحديث ۴۲۶۰ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۱۴/۲ رقم الحديث ۳۳۵۷

# باب المضطر

## وهذا الباب خال عن الفصل الاول والثالث

## د مضطر بیان

د دې باب د لاندې صاحب مشکوة هیڅ عنوان نه دی تړلی. ګویا کې دا باب د مخکنیو د لواحقاتو نه دی. د ... خبره دا ده چې دې باب کې فصل اول او فصل ثالث دواړه نشته دی. فقط فصل ثانی ذکر دی. د؛ چې صاحب مشکوة د مصابیح اقتداء کوي او صاحب مصابیح ته د دې متعلق هیڅ حدیث نه دی ملاؤ شوی. لهذا فصل اول یې نه دی ایخی. باقی فصل ثالث راوړل د مصابیح په نزد نشته دی، ځکه د دې نفي ضرورت نشته دی. بهرحال که دا بیخې دا باب نه وی نو ډیر به ښه وی، نو دا حدیثونه به د مخکنې باب په **فصل ثاني** کې لیکلی شوي وی، خو دا چې د مضامینو په اعتبار سره دا حدیثونه باکل مختلف دي نو ځکه علامه طیبي رحمه الله او ملاعلي قاري رحمه الله ورله د **باب المضطر** عنوان تړلی دی چې ډیر ښه دی.

## الفصل الثاني

## په اضطراري حالت کې د مردار خوړلو مسئله

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾عَن | الفجيع | العامري | أَنَّهُ | أَتَى | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د حضرت فجیع عامري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغه یو ورځ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | مَا | يَحِلُّ | لَنَا | مِنَ | الْمِيتَةِ؟ | | | |
| حاضر شو او عرض یې وکړو چې حضرت دا اوایه چې زمونږ لپاره په مردار کې څه حلال دي؟ | | | | | | | | |
| قَالَ: | مَا | طعامُكم؟ | قُلنا: | | | | | |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې اول دا اوایه چې خوراک درته په کوم مقدار ملاوېږي؟ مونږ عرض وکړو | | | | | | | | |
| نَغْتَبِقُ | وَنَصْطَبِحُ | قَالَ | أَبُو | نُعَيْمٍ: | | | | |
| چې مونږ ته پیاله شوده مابنام کې او یو پیاله سحر کې ملاوېږي. د حدیث روای ابو نعیم فرمایي | | | | | | | | |
| فَسَّرَهُ | لِي | عُقْبَةُ: | قَدَحٌ | | | | | |
| چې زما استاد او شیخ حضرت عقبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د **نغتبق** او د **نصطبح** دا وضاحت کړی دی چې یو پیاله شوده | | | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| غُدْوَةً | وَقَدَحٌ | عَشِيَّةً |
| سحر کې او يو پياله شوده ماښام کې. بهرحال نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ د فجيع د ې جواب اوريدلو سره وفرمايل چې د خوراک | | |
| قَالَ: ذَاكَ | وَأَبِي | الْجُوعُ |
| دا مقدار د خپل پلار د قسم ولږه واجب کوي. يعني سحر او ماښام صرف يوه يوه پياله شوده شريکول ولږه ختمه کړي او د | | |
| فَأَحَلَّ لَهُمُ الْمَيْتَةَ عَلَى هَذِهِ الْحَالِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | |
| انساني ژوند د بقاء ذريعه نه شي جوړيدلی شي. نو نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ هغه صورت کې د هغې لپاره مردار حلال کړی ؤو. | | |

**توضيح: ماطعامكم**: يعني تاته په خوراک کې څه ملاويږي؟ (مرقات ۸/۸۷)

**نغتبق و نصطبح**: د حديث راوي ابونعيم وايي چې زما استاد د دې دواړو کلماتو داسې مطلب بيان کړی دی چې د شودو يوه پياله سحر کې او يوه ماښام کې ملاويدله. صبوح د سحر نه او غبوق ماښام ته وايي.

**ذاك وابي الجوع**: ذاک مبتداء دی او الجوع د دې خبر دی. او وابی په مينځ کې جمله معترضه قسميه ده. علامه طيبي فرمايي "وابی جملة قسمية معترضة بين المبتداء والخير" (طيبي) يعني په خدای قسم دا خو خالصه ولږه ده. يعني حالت اضطراري دی. لهذا مردار خوره او ژوند بچ کړه. (مرقات ۸/۸۷)

**پوښتنه**: د دې حديث د راتلونکي حديث سره واضحه تعارض دی ځکه د بحث کې دې چې که د شودو يو پياله سحر او ماښام ملاويږي نو دا حالت اضطراري دی. او مردار خوړل جائز دی او راتلونکې حديث کې ذکر دی چې تر څو پورې په وابنو باندې هم گوزاره کېږي نو تر هغه وخت پورې مردار خوړل ناجائز دي. د دې تعارض د لرې کولو څه طريقه ده؟

**جواب**: د دې تعارض د لرې کولو سريقه دا ده چې د اضطرارې متحقق حد خو همغه دی چې د کوم ذکر په راتلونکې د ابو واقد په حديث نمبر ۲ کې دی چې وابنه هم ملاويږي هغه وخورو او مردار ونه خورو.

او د زير بحث حديث جواب دا دی چې هغې چې د کوم د يوې پيالې ذکر دی. دا د يو يو کس لپاره نه وه. بلکې د ټول قوم لپاره به سحر يوه پياله او ماښام يوه پياله وه، نو د ټول قوم لپاره د يوې پيالې نه

---

[1] رقم الحديث ۴۲۶۱ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۶۷ رقم الحديث ۳۸۱۷

به څه ملاو شي؟ يو ګوټ هم مشکل دی. دا خو خالص اضطراري حالت دی. لهذا د دې حديث او د راتلونکې حديث مفهوم او مضمون يو دی.

د دې حديث د يو څو الفاظو نه معلومېږي چې د شودو يوه پياله به د يو قوم لپاره وه. مثلاً **ما طعامکم** کې ټول قوم ته خطاب دی. دغه شان د راوي پوښتنه **"مایحل لنا"** کې د ټول قوم لپاره پوښتنه ده. د يو کس لپاره نه وه.

باقې دواړو حديثونو باندې د پوهېدل لپاره ضروري دي چې د ثبوت اضطراري باره کې د د فقهاؤ اختلاف بيان کړی شي، ځکه دې مسئله کې د فقهاؤ اختلاف دی. (مرقات ۸/۸۸)

**د فقهاؤ اختلاف:** امام مالک او د امام احمد بن حنبل او يو قول کې د امام شافعي په نزد که يو کس د خپل طبعي حالت مطابق دومره خوراک نه مومي چې خېټه يې پرې ډکه شي نو هغه کس له مرداره خوړل جائز دي. د مردار خوړلو او د تحقيقِ اضطراري باره کې د دې حضراتو په نزد ډېر لوی وسعت دی.

امام ابوحنيفه رحمه الله او يو قول کې د امام شافعي رحمه الله په نزد اضطراري حالت به هغه وخت کې متحقق وي چې د سړی ژوند ته و لږې په وجه د هلاکت خطر وي شي نو بيا مردار خوړل جائز دي چې ژوند پاتې شي. صرف د **قوت لا يموت** او د **سدرمق** تر حد پورې دې وخوري. (الکاشف: ۸/۱۹۲)

**دلائل:** جمهورو د بحث د لاندې حديث نه استدلال کړی دی. د احنافو ائمۀ د راتلونکې حضرت ابؤواقد ليثی رحمه الله د حديث نه استدلال کړی دی.

د احنافو له اړخه د زير بحث حديث جواب د دې نه مخکې د پوښتنې او د جواب په ضمن کې تېر شوی دی چې دا يوه پياله د ټول قوم لپاره وه. دا خو د عين اضطراري دی.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ | أَبِي | وَاقِدٍ | اللَّيْثِيِّ | أَنَّ | رَجُلًا | قَالَ: | يَا | رَسُولَ | اللهِ إِنَّا |
| او حضرت ابؤواقد ابو ليثی رضي الله عنه فرمايي چې يو کس عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ! مونږ | | | | | | | | | |
| نَكُونُ | | بِأَرْضٍ | | | فَتُصِيبُنَا | | | | بِهَا |
| کله په داسې زمکه يعنې داسې ځای ته ورسېږو چې مونږ ته هلته خوراک نه ملاوېږي. چې د هغې | | | | | | | | | |
| المخمصة | | فَمَتَى | | يحلُّ | | لنا | | | الميتةُ؟ |
| په وجه مونږ هلته د مخمصه ولږې په حالت کې اخته شو. دې صورت کې مردار خوړل زمونږ لپاره کله حلالېږي؟ | | | | | | | | | |

| |
|---|
| قَالَ: مَا لم تصطبحوا وتغتبقوا |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامِ وفرمايل چې کله تاسو ترسحرپورې يا د ماښام پورې د خوراک څښاک هيڅ شی ونه مومئ يا د هغه |
| أَوْ تَحْتَفِئُوا بِهَا بَقْلًا فَشَأْنُكُمْ بِهَا. |
| زمکه يعني هغه ځای چرته چې تاسو وئ او د ترکارئ د ځيزونو نه تاسو ته هيڅ ځيز ملاو نه شي، |
| مَعْنَاهُ: إِذَا لَمْ تَجِدُوا صَبُوحًا |
| نو تاسو مردار خوړلی شئ. حاصل دا چې تاسو ته هيڅ داسې ځيز نه ملاوېږي. چې ولږه ختمو نکې |
| أَوْ غَبُوقًا وَلَمْ تَجِدُوا بَقْلَةً |
| يا د خيټې ته مرسته ورکونکې وي نو ستاسو حالت به د مردار متعلق وي. يعني داسې صورت |
| تَأْكُلُونَهَا حَلَّتْ لَكُمُ الْمَيْتَةُ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ[1] |
| راتلو کې مردار خوړل به ستاسو لپاره حلال وي. |



[1] رقم الحديث اخرجه الدارمي في السنن ۲/۱۲۰ رقم الحديث ۱۹۹۶ واحمد في المسند۵/۲۱۱.

# باب الاشربة
# د څکونکو شیانو بیان

**قال الله تعالی: ﴿کلوا واشربوا ولا تسرفوا﴾ (سورة الاعراف: ۳۱)**

**اشربة:** د شراب جمع ده. او شراب د مشروب په معنی کې دی. مشروب هر څکونکې شي ته وايي. هغه که اوبه وي، نبیذ وي، شربت وي یا جوس وي. دا چې مشروب د طعام تابع وي، ځکه یې د کتاب الاطعمه د لاندې تابع ذکر کړو او لباس د طعام تابع نه دی نو ځکه یې هغه د جدا کتاب په عنوان کې ذکر کړو. دې باب کې د اوبو د څکلو آداب، مستحبات او د مکروهاتو ذکر کړی دی. (مرقات۸/۹۱)

## الفصل الاول
## په درې ساګانو کې د اوبو د څکلو فایدې

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَنَفَّسُ فِي الشَّرَابِ ثَلَاثًا. |
| حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به د اوبو په مینځ کې درې ځله سا اخستله. او |
| مُتَّفق عَلَيْهِ. وزادَ مسلمُ فِي روايةٍ ويقولُ: إِنَّه |
| د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ هم نقل دي چې او نبي علیه السلام به فرمايل چې دغه شان په درو ساګانو کې اوبه څښل |
| أَرْوَى وأبرأُ وأمرأُ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| ښه مړول کوي او تنده ماتوي. بدن ته صحت ورکوي او ښه هضمېږي او معدې ته ډېر په اسانۍ سره ځي. |

**توضیح: ثلاثاً:** یعنې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به درې درې ساګانو کې اوبه څښلې. دا د غالب احوالو خبره ده. ګنې د ترمذی په روایتونو کې په دوه ساګانو کې د اوبو څښلو خبره هم ملاوېږي. هغه هم کله کله شوی دی. یو بل حدیث کې دي چې اوبه د اوښ پشان مه څښئ بلکې دوه ساګانو یا درې ساګانو کې یې څښئ. دې کې هم د دوه ساګانو ذکر دی. (مرقات)

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۶۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۹، رقم الحديث ۵۶۳۱ ومسلم في ۳/۱۶۰۲، رقم الحديث (۱۲۳-۲۰۲۸)

د اوبو په آدابو کې يو ادب دا هم دی چې کله انسان سا اخلې نو لوښی دې د خولې نه اخوا کړي چې د سا اخستلو په وجه اوبو کې څه څيز غوزار نه کړي.
قاضي عياض ليکلي دي چې درې ساګانو سره اوبو څښلو کې يوه فائده دا ده چې دې سره تنده ښه ماتېږي. دويمه فائده دا ده چې دا د هضم لپاره ګټوره ده، ځکه دغه شان د اوبو يخوالی معدې او اعصابو ته نسبتاً کم نقصان رسوي. او که هغه پ يو سا باندې اوبه وڅښې نو معده د يو ځل نه يخه شي او نقصان به کېږي. د دې حديث په دې آخري جملو د همغه فايدو بيان دی، خو په سنت نبوی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې عمل کول د ټولو نه لويه فائده ده. (مرقات ۹۲/۸)

**اروی**: ای اشدرواء يعنې ښه مړول کوي. (مرقات ۹۲/۸)

**ابرأ**: دا د برأت نه دی يعنې دغه شانې اوبه څښل د بدن لپاره صحت ورکونکی او د بيمارۍ نه د برأت سبب دی. (مرقات ۹۲/۸)

**امرأ**: ای اقوی هضماً، ښه هضمېږي. (مرقات ۹۲/۸)

## د مشک په خوله باندې د اوبه څکلو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِن فِي السقاء (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مشک په غاړه باندې اوبو څښلو نه منع کړې ده. |

**توضيح**: من فی السقآء: فی لفظ مشدد دی. اصل کې د فوه نه دی. چې د فم په معنی کې دی. ای من فم القربة د مشکيزې په خوله باندې د اوبو څښلو نه ځکه منع کړې شوې ده چې امکان لرې چې د مشکيزې په خوله کې څه کچره کې وي يا مضر ځناور يا حشره وغيره نښتې وي. يا اوبو کې دننه ګونګټ يا ګندګي وي او دغه شان په پټو سترګو څښلو سره هغه خولې کې لاړ شي. او اوبه د مشکيزې ذ تورتم نه د خيټې تورتم ته يو ځل نه څښلو سره د معدې د خرابېدلو خطر هم وي. دغه شان اوب څښلو سره د دې ګيس دننه لاړ شي. چې د صحت لپاره مضر کېدلی شيّ. او کله کله په جامو باندې اوبه وغورځېږي او ډېره لونده شي. کله کله د خولې نه د خوراک پوټې د اوبو په لوښي کې دننه لاړ شي. چې د صفائی خلاف دي. دا وجوهات په خپل ځای خو د يو مسلمان لپاره د دې ممانعت د ټولو نه لويه وجه دا ده چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا منع کړې دي. او دا د مسنون طريقې خلاف ده. د مشکيزې پشان دا حکم د لوټې لپاره هم دی. بوجۍ، ، بوتل يا د هره هغه لوښي هم دی،

[1] رقم الحديث أخرجه البخاري في صحيحه ۹۰/۱۰ رقم الحديث ۵۶۲۹ وأبوداود في السنن ۱۰۹/۴ رقم الحديث ۳۷۱۹ .

چې د هغې د دننه حالت علم چاته نه وي. د راتلونکي حديث تشريح او توضيح هم دغه شان ده. (مرقات۸/۹۳،۹۲)

**پوښتنه**: اوس پوښتنه دا ده چې د دې باب په آينده حديث نمبر۱۹ کې حضرت کبشه فرمايي چې نبي کريم ﷺ د مشکيزې په خوله باندې خپله اوبه وڅښلې، نو د دې تعارض څه جواب دی؟

**جواب**: د دې جواب دا دی چې د مجبورۍ په وخت کې داسې کول جائز دي. ګنې نه دي. دويم جواب دا دی چې يو وړه مشکيزه وي يو غټه مشکيزه وي. په وړې مشکيزې باندې نبي کريم ﷺ څښلې دي. چې هغې کې يقيناً د مضرې حشرې خطر نه ؤو. دريم جواب دا دی چې عام عادت کول يې ممنع دی. د يو نيم ځل څښلو ګنجائش شته دی.

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اخْتِنَاثِ |
| او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ د مشک خوله اړول يعنې د |
| الْأَسْقِيَةِ زَادَ فِي رِوَايَةٍ: وَاخْتِنَاثُهَا: |
| هغې خوله اړولو او اوبه د څښلو نه منع کړې ده. او رواي يو روايت کې دا الفاظ هم نقل کړي دي چې د مشک د |
| أَنْ يُقْلَبَ رَأْسُهَا ثُمَّ يُشْرَبَ مِنْهُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| خولې اړولو مطلب دا دی چې د مشک سره يعنې خوله سرچپه کړی شي او بيا د هغې نه اوبه وڅښلې شي. |

**توضيح**: اختناث: دا د خنث نه دی چې معنې يې د مشکيزې خوله اړول او د خپلې خولې سره لګول دي. يعنې داسې استعمالو سره اوبه جائز نه دي. وجوهات پاس بيان شوي دي. (مرقات۸/۹۳)

## په ولاړه باندې د اوبه د څکلو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ نَهَى |
| او حضرت انس رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ نه نقل کړي چې نبي کريم ﷺ د دې نه منع |
| أَنْ يَشْرِبَ الرَّجُلُ قَائِمًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[2] |
| کړې ده چې يو کس په ولاړه اوبه وڅښي. |

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۶۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۸۹ رقم الحديث ۵۶۲۵ ومسلم في ۳/۱۶۰۰ رقم الحديث (۱۱۱-۲۰۲۳)

([2]) رقم الحديث ۴۲۶۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۰۰ رقم الحديث (۱۱۳-۲۰۲۴) وابوداود في السنن ۴/۱۰۸ رقم الحديث ۳۷۱۷

**توضیح**: **قائما**: دې حديث کې په ولاړه د اوبو څښلو نه د منعې ذکر دی. او ورسره روايت کې دي چې که چرې په هيره يې وڅښلو نو هغې له پکار دي چې اوبه کانګې کړي. د دې حديث تعلق د اصل او قاعدې سره دی چې د شريعت همدغه قاعده ده. چې په ناسته اوبه وڅښې. او هم دغه د نبي کريم ﷺ عادت ؤو او د نبي کريم ﷺ د امت هم په دې هم عمل دی. د دې برعکس په فصل ثانی کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حديث ۱۳ کې په ولاړه د اوبو د څښلو ذکر موجود دی، نو د دې حديث تعلق د بيان د جواز سره دی چې که مجبوري دا سې وي نو هغه جائز ده کله ځای نه وي. کله توندې وي. مله بله څه مجبوري وي چې استثنائی صورتؤنه دي. دويم جواب دا چې زير بحث حديث کې ممانعت کراهت تنزيهې باندې محمول دی او راتلونکی د حضرت ابن عمر رضي الله عنه والا حديث په جواز باندې محمول دی. او کراهت تنزيهې او د جواز په مينځ کې منافات نشته دواړه يو شی دی. بهرحال اصل قاعده او قانون په ناسته د څښلو دی. کله ناکله که د دې قانون برعکس وي نو هغه به د مجبوري استثنائی صورت وي. چې د ناستې ځای نه وي، نو کله توندې وي او کله څه بله مجبوري وي. په استثنائی صورتو کې يو صورت د زمزم د اوبو دی چې هغه په ولاړه څښل کېږي، ځکه هغه مبارکې اوبه دي چې څومره زياتې وڅښلی شي نو نقصان نه کوي. منافق د دې نه کمې اوبه څښې، نو مسلمانانو ته حکم دی چې په ولاړه يې وڅښې، ښې ډېرې دې وڅښې چې پوښتۍ ډکې شي. د قيام په حالت کې نورو اوبو سره په ډکه خېټه اوبه وڅښلی شي نو کيناستلو سره بوج کمېږي، خو په زمزم باندې خېټه بوج نه مسحوسوې. دغه شان د اودس نه بچ شوې اوبه په ولاړه څښلی کېږي. هغه هم مبارکې اوبه دي ضرر به نه رسوي. عجيبه حکمت دی چې د ناستې حالت کې خېټه کې کوتونه جوړېږي. په ډکه خېټه اوبه څښلو سره چې کله سړی ودرېږي نو اوبه خېټه کې خورې شي. او ګنجائش پيدا کېږي. هيڅ بوج به نه وي، خو د قيام په حالت کې اوبو څښلو سره به دا فائده ورکه وي. (مرقات ۸/۹۴،۹۳)

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَشْرَبَنَّ أَحَدٌ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې تاسو کې دې هيڅ يو |
| مِنْكُمْ قَائِمًا فَمَنْ نَسِيَ مِنْكُمْ فَلْيَسْتَقِئْ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| کس په ولاړه اوبه نه څښي او که چا په هېره په ولاړه اوبه وڅښلې نو هغې له پکار دي چې کانګې يې کړي. |

[1] رقم الحديث ۴۲۶۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۰۱ رقم الحديث (۱۱۶-۲۰۲۶)

## په ولاړه باندې د زمزم د اوبو استعمال مستحب دي

﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِدَلْوٍ مِنْ مَاءِ زَمْزَمَ
او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې د زمزم د اوبو يو
فَشَرِبَ وَ هُوَ قَائِمٌ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]
ډول راوړلو نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه په داسې حالت كې وڅښلې چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولاړ وو.

## د اودس نه پاتې شوې اوبه په ولاړه څكل كيدلى شي

﴿۷﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّهُ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ قَعَدَ فِي حَوَائِجِ النَّاسِ
او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى د چې يو ورځ هغې د غرمې لمونځ وكړو او بيا د خلكو د مقدمو او د معاملاتو
فِي رَحَبَةِ الْكُوفَةِ حَتَّى
د فيصلو لپاره د كوفې يو اوچت او فراخه ځاى باندې خپل مجلس قائم كړو او هلته به يې د خلكو د جنګونو معاملې
حَضَرَتْ صَلَاةُ الْعَصْرِ ثُمَّ أُتِيَ بِمَاءٍ
اوريدلې او فيصلې به يې كولې تردې چې د مازيګر وخت راغلو. چې د اودس لپاره اوبه راوړلى شوې نو
فَشَرِبَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ
هغې د خپلې تندې د ماتولو لپاره د اودس نه مخكې د اودس اوبه وڅښلې او بيا هغې د اودس لپاره مخ او لاسونه
وَذَكَرَ رَأْسه وَرِجلَيْهِ
ؤوينځل. او راوي دا ذكر كړل چې هغې د خپل سر مسح وكړه او د خپلې پښې يې وينځلې. د هغې نه وروسته
ثُمَّ قَامَ فَشرب فَصله وَهُوَ
حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ودريدلو او د اودس پاتې اوبه يې وڅښلې. او به يې په داسې حالت كې وڅښلې چې هغه
قَائِمٌ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ أُنَاسًا يَكْرَهُوْنَ الشُّرْبَ قَائِمًا
ولاړ وو. او بيا يې وفرمايل چې ځينې خلك په ولاړه اوبه څښل په كراهت باندې محمول كوي. يعنې

---

[1] رقم الحديث ۴۲۶۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۸۱ رقم الحديث ۵۶۱۷ ومسلم في ۳/۱۶۰۲ رقم الحديث ۴۲۶۸

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | صَنَعَ |
| هغوی دا ګمڼ چې په ولاړه او به څښل مکروه دي، خو حقيقت دا دی چې نبي کريم ﷺ همدغه | | | | | | |
| مِثْلَ مَا صَنَعْتُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] | | | | | | |
| شان کړې دي لکه څنګه چې اوس ما وکړل. | | | | | | |

**توضيح**: ذکر راسه: يعنې راوي په هغه او دس کې د سر د مسحې بيان هم وکړو او د پښو د وينځلو ذکر يې هم وکړو. **مَا صَنَعْتُ**: حضرت علي رضي الله عنه دا ويل غواړي چې څنګه ما د اودس پاتې اوبه وڅښلې همدغه شان عمل نبي کريم ﷺ کړی ؤو. بهرحال د دې نه د عامو اوبو د څښلو د جوازخبره نه ثابتېږي ځکه د زمزم او او دس دا وبو صورت دا ستثنائی صورتونو نه دی (مرقات ۸/۹۶)

## په مجبورئ کې د تالاب يا نهر نه په خوله اوبه څکلی شئ

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ | جَابِرٍ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | دَخَلَ | عَلَى | رَجُلٍ | مِنَ | الْأَنْصَارِ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه راوي دی چې يو ورځ نبي کريم ﷺ د يو انصاری رضي الله عنه يعنې د ابو الهيثم | | | | | | | | | | | | |
| وَمَعَهُ | صَاحِبٌ | لَهُ | فَسَلَّمَ | فَرَدَّ | الرَّجُلُ | | | | | | | |
| چې ذکر يې تير شوی دی چې باغ ته ورغلو. د نبي عليه السلام سره يو صحابي يعنې حضرت ابوبکر رضي الله عنه هم ؤو. | | | | | | | | | | | | |
| وَهُوَ | يُحَوِّلُ | الْمَاءَ | فِي | حَائِطٍ | | | | | | | | |
| نبي عليه السلام باغ ته رسيد لو سره سلام عليکم وکړو. هغه انصاری هغه وخت باغ له او به ورکولې. د | | | | | | | | | | | | |
| فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: إِنْ | كَانَ | عِنْدَكَ | | | | | |
| نبي عليه السلام د سلام جواب يې ورکړو. نبي عليه السلام هغې ته وفرمايل چې که ستا سره په مشک کې زړې | | | | | | | | | | | | |
| مَاءٌ | بَاتَ | فِي | شَنَّةٍ | وَإِلَّا | كَرَعْنَا؟ | | | | | | | |
| اوبه وي نو راې وړه او که تا سره دا سې اوبه نه وي نو بيا به مونږ لختې يا نهر باندې خوله کېږدو او اوبه به وڅښو. | | | | | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | عِنْدِي | مَاءٌ | بَاتَ | فِي | شَنٍّ | فَانْطَلَقَ | إِلَى | الْعَرِيشِ | | | | |
| هغه عرض وکړو چې آؤ ما سره په زوړ مشک کې او به زړې او به شته دی، نو هغه سېر ته لاړ و چې کوم هغې باغ | | | | | | | | | | | | |

(1) رقم الحديث ۴۲۶۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۸۱ رقم الحديث ۵۶۱۶

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَسَكَبَ | فِي | قَدَحٍ | مَاءً | ثُمَّ | حَلَبَ | عَلَيْهِ |

کې ودرولې ؤو. او يوې پياله کې يې اوبه روا ړلې يعنې باندې يعنې هغه پياله کې د کور ساتلې د بزې شودې ولښل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | دَاجِنٍ | فَشَرِبَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

او هغه پياله يې نبي عَلَيۡهِ‌السَّلَامُ ته پيش کړه. بيا نبي عَلَيۡهِ‌السَّلَامُ هغه وڅښل. بيا د هغې نه وروسته هغه انصاری

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | أَعَادَ | فَشَرِبَ | الرَّجُلُ | الَّذِي | جَاءَ | مَعَهُ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيّ[1] |

د اولنۍ پيالې پشان يوه بله پياله راوړله چې بيا هغه کسانو وڅښله کوم چې د نبي عَلَيۡهِ‌السَّلَامُ سره ؤو.

**توضيح**: **ومعه صاحب له**: شارحين ليکلي چې د دې نه مراد حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ‌اللهُ‌عَنۡهُ دی، ځکه الله هغه د صاحب په لقب سره ياد کړی دی. **"اذ يقول لصحابه"** د شارحينو قول په سر سترګو قبول دی، خو ما چې په خپل زړه مازغو باندې ښومره زور ورکړی دی هغه هومره د ماغو انکار کړی دی، ځکه د حديث په آخر دا الفاظ دي. **فشرب الرجل الذی جاء معه** داسې الفاظ د صديق لپاره ښنګه استعماليدلی شي. دا خو د يو غير معروف کس لپاره د استعمالول الفاظ دي. والله اعلم.

**ماء باتٌ**: يعنې د شپې نه ايښودلی شوې اوبه.

**شنة**: زړې مشکيزې ته وايي.

**والا کرعنا**: يعنې که داسې اوبه او مشکيزه نه وي نوبيا به مونږ يو تالاب يا په نهر خوله کېږدو. اوبو د ښنبلو ترتيب داسې دی چې که لوښی وي نو په هغې دې وڅښلی شي. که لوښی نه وي نو بيا دې په دواړه لپو کې اوبه وڅښلی شي. که په دې هم مشکل وي نو بيا په خوله ښنبل جائز دي، لکه ښنګه چې د دې روايت نه معلومېږي. ماته د غرونو د اوبو په خولې باندې د ښنبلو تجربه شوې ده. هلته ځينې اوبه داسې وي چې لوښي يا لپه کې را اوچتول او ښنبل امکان نه لري، نو داسې مجبورۍ کې په خوله باندې د ښنبلو اجازت دی. د ابن ماجه په يو بل روايت کې په خوله باندې د اوبو ښنبلو نه منع شوې ده. هغه په نهې کراهت تنزيهې باندې محمول دی. او د بحث لاندې حديث د جواز لپاره دی. يعنې که مجبوري وي نو په خوله باندې اوبه ښنبلی شي.

**داجن**: د کور ساتلې شوې بزې ته وايي. (مرقات ۹۷/۸)

---

([1])رقم الحديث ۴۲۷۰ اخرجه البخاري في صحيحه ۵۷/۱۰ رقم الحديث ۵۶۱۳ وابوداود في السنن ۱۱۲/۴ رقم الحديث ۳۷۲۴.

## سرو او د سپینو زرو لوخو کې اوبه څکل حرام دي

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:الَّذِي يَشْرَبُ |
| او د حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل کوم کس چې د |
| فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ. |
| سپینو زرو په لوښي کې او کوم شی څښې نو د هغې دا څښل به د دې نه بغیر بله هیڅ نتیجه پیدا نه |
| مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: إِنَّ الَّذِي يَأْكُلُ وَيَشْرَبُ فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۱] |
| کړي چې د هغې به خیټه کې به د دوزخ اور ګوټ ګوټ ور کوز کړی شي. (بخاری و مسلم) |

**توضیح: یجرجر**: اوښ د رمباړې وخت کې چې د هغې د خولې نه کوم اواز وځي هغې ته جرجرة وایي. دله ګوټ ګوټ خیټه کې اور داخلول مراد دي. دې داخیدلو سره د جرجره اوزا پیدا کېږي. (مرقات۹۸/۸)

**نار جهنم**: راجح او واضح او سانه ترکیب همدغه دی چې د نار جهنم کلمه یجرجر مفعول به دی. ای **یجرجر نار جهنم في بطنه** یعنې مسلسل به یې د دوزخ اور نه خیټه ډکولی کېږي.

اوس د دې حدیث حکم او فقه دا ده چې د ټول امت په دې اتفاق دی چې د هر نابینه او زنانه لپاره د سرو او سپینو لوښي استعمالول په هرحال کې ناجائز او حرام دي. هغه که په خوراک څښاک کې استعمال وي یا د بل کوم یو مقصد لپاره وي. البته د ښځو لپاره سرو او سپینو زرو زیوارت استعمالول جائز دي. د زیوارتو تعلق د هغې د ذاتې ښایست سره دی چې مطلوب دی. لوښو کې دا شی نشته دی، نو ځکه د ښځو لپاره هم منع دی. که د کوم لوښي په غاړو کې د سپین زر لږېدلې وي یا یې یو پټری لږېدلی وي نو مسلمانانو له پکار دي چې خوله هغه ځای کې کېږدي چې کوم ځای باندې سپین زر نه وي. (مرقات۹۸/۸)

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:لَا تَلْبَسُوا |
| او حضرت حذیفه رضي الله عنه فرمایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه اورېدلي دي چې مه اغوندئ |
| الْحَرِيرَ وَلَا الدِّيبَاجَ وَلَا تَشْرَبُوا فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ |
| د ریښمو جامې او مه غټ ریښم اغوندئ. چې دواړه یو قِسمه د ریښمو ټوټه وي. دغه شان د سرو زرو او |

(۱)رقم الحديث ۴۲۷۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۹۶/۲۰ رقم الحديث ۵۶۳۴ ومسلم في ۱۶۳۴/۴ رقم الحديث (۱-۲۰۶۵)

وَالْفِضَّةِ وَلَا تَأْكُلُوا فِي صِحَافِهَا

مه د سپينو زرو په لوښو کې او به څه ښيز ښنبئ. او مه د سرو او سپينو زرو په کاسو او پيالو کې خوراک کوئ،

فَإِنَّهَا لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَهِيَ لَكُمْ فِي الْآخِرَةِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

ځکه دا ټول شيان د نيا کې د کافرانو لپاره دي. او ستاسو لپاره په آخرت کې دي. (بخاری ومسلم)

## ښي اړخ ته د جام گرځول پکار دي

﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: حُلِبَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کور ته تشريف راوړو، نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لپاره د ساتلې

شَاةٌ دَاجِنٌ وَشِيبَ لَبَنُهَا بِمَاءٍ مِنَ الْبِئْرِ الَّتِي فِي دَارِ أَنَسٍ

شوې بزې شوده ولوشلی شو او هغه شوده د هغه کوهي په اوبه کې گډه کړی شو چې د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کور کې وه.

فَأُعْطِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَدَحَ فَشَرِبَ

بيا د شودو دا پياله د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت کې پيش کړی شوه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تر ېنه څه شوده وڅښل. هغه وخت

وَعَلَى يَسَارِهِ أَبُو بَكْرٍ وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ چپ اړخ تـه ابـو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ناست ؤو. او نبـي اړخ تـه يـې يـو بانـده چـې ناستی ؤو.

فَقَالَ عُمَرُ: أَعْطِ أَبَا بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللهِ

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! دا پاتې شوده حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړه،

فَأَعْطَى الْأَعْرَابِيَّ الَّذِي عَنْ يَمِينِهِ ثُمَّ

خو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه بانده چې ته ورکړه کوم چې نبي اړخ ته ناست ؤو. بيا يې وفرمايل چې د نبي اړخ والا مخکې دی. او بيا د چپ اړخ والا

قَالَ: "الْأَيْمَنُ فَالْأَيْمَنُ وَفِي

او يو روايت کې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه موقع کې دا وفرمايل چې ياد وساتئ د نبي اړخ والا زيات حقدار دی لهذا د نبي اړخ والا

رِوَايَةٍ: الْأَيْمَنُونَ الْأَيْمَنُونَ

ته يې ورکړه. يعني چې دا معلومه شوه چې د نبي اړخ والا زيات حقدار دی نو تاسو هم نبي اړخ والا لحاظ

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۷۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۹۶/۱۰ رقم الحديث ۵۶۳۳ ومسلم في ۱۶۳۷/۳ رقم الحديث (۴-۲۰۶۷)

| |
|---|
| أَلاَ فَيَمِّنوا (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| ساتئ. زه د همدغي نه ابتداء کوم. |

**توضیح**: الایمنون: دا ټول الفاظ د یمین د مادې نه ماخوذ دي. یعني د ښي اړخ نه جام ګرځول پکار دی. د ښي اړخ والا زیات حقدار دی.

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحٍ |
| او د حضرت سهل ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې یو ځل د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې د شودو یا د اوبو پیاله |
| فَشَرِبَ مِنْهُ وَعَنْ يَمِينِهِ غُلَامٌ أَصْغَرُ |
| راوړلی شوه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې نه وڅښل. هغه وخت کېد نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ښي اړخ ته یو کم عمری ؤو چې |
| الْقَوْمِ وَالْأَشْيَاخُ عَنْ يَسَارِهِ |
| د مجلس په حاضرینو کې د ټولو نه وړوکی ؤو. یعني ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نور چې کوم بوډاګان کسان ؤو. هغوی |
| فَقَالَ: يَا غُلَامُ أَتَأْذَنُ أَنْ أُعْطِيَهُ الْأَشْيَاخَ؟ |
| چپ اړخ ته ؤو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې ای هلکه آیا ته اجازت کوې چې دا پاتې شوده یا اوبه دې بوډه ګانو |
| فَقَالَ: مَا كُنْتُ لِأُوثِرَ بِفَضْلٍ مِنْكَ أَحَدًا يَا رَسُولَ اللهِ |
| ورکړم؟ هغه وړوکي وویل چې نا یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زه ستا نه پاتې شوې شودو یا د اوبو په سلسله کې |
| فَأَعْطَاهُ إِيَّاه (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَحَدِيث أَبِي قتادةَ سنذكر فِيبَابِ الْمُعجِزَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى)[2] |
| د خپل ځان نه بل ته ترجیح نه شم ورکولی، نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه پاتې شوده هغه کم عمري ته ورکړل. |

**توضیح**: غلام: د غلام نه مراد حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی. دا ښي اړخ ته ناست ؤو. (مرقات ۱۰۲/۸)

**لاأوثر**: یعني زه د ستاسو نه (اې د الله رسوله) پاتې شوې اوبو یا شودو په ورکولو کې په خپل ځان هیچاته ترجیح نه ورکوم. د دې حدیث نه د ایثار بالطاعات مسئله واضح کېږي. د ایثار بالطاعات مطلب دا دی چې یو کس ته نیکې ملاوېږي او هغه خپل ځان پرېږدي او بل له موقع ورکړي چې دا نیکې دې ته ملاو شي. مثلاً د جماعت په اولنې صف کې یو کس ولاړ وي. شاته صف کې یو بزرګ راشي او بزرګ ته یې په اول صف کې موقع ورکړه. دې ته ایثار بالطاعات وایي. ایثار بالطاعات که په واجباتو کې وي نو دا ناجائز دي. او که طاعات غیر واجبه وي نو مکروه دي. دا خو د ایثار رالطاعات خبره وه،

(۱) رقم الحدیث

(۲) رقم الحدیث ۴۲۷۴ اخرجه البخاري في صحيحه ۳۴/۵ رقم الحدیث ۲۳۵۸ ومسلم في ۱۶۰۴/۳ رقم الحدیث ۴۲۷۴.

خو که په دنوې امورو کې یو کس ایثار کوي نو دا مستحب دي. مثلاً خپل حق بل ته پریښودل یا خپل نمبر بل ته ورکول. خپل ځای باندې بل کېنول، نو دې کې د ادب ثواب ملاویږي. (مرقات۸/۱۰۲)

## الفصل الثاني

## کړ ځېدو راګرځېدو کې د ضرورت په بناء خوراک څکاک جائز دی

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَنِ ابنِ عمَرَ قَالَ: كُنَّا نَأْكُلُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَمْشِي |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به یوه زمانه داسې |
| وَنَشْرَبُ وَنَحْنُ قِيَامٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ |
| هم وه چې مونږ به په روانه کې خوراک کولو. او بیا به مو په ولاړه او به وغیره څښلې. (ترمذی، ابن ماجه، دارمی) |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ[1] |
| امام ترمذی وائی چه دا حدیث حسن صحیح غریب دې |

**توضیح: قیام:** د دې حدیث نه معلومه شوه چې په روانه کې خوراک کول بلا کراهت جائز دی، خو د دې نه استدلال کولو لپاره ضروري دی چې دا عمل د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په عمل کې راغلی وي. او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې تصویب کړی وي او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تقریر ضابطه پوره شوې وي. که داسې نه وي نو د صحابي دا عمل به په ضرورت او مجبوری باندې حمل کېږي، ځکه د ټولو علماؤ او فقهاؤ په دې خبره اتفاق دی چې ولاړ او به څښل مناسب نه دي، ځکه دا د اوبو د څښلو خلاف دي. د دې باب د حدیث ۴ د لاندې دا مسئله په تفصیله سره تیره شوې ده. او نورو ډېرو حدیثونو کې په ولاړه د اوبو ممانعت راغلی دی. د خوراک مسئله خو ډېره مهمه ده، نو ځکه د بحث لاندې حدیث کې به تاویل کېږي. دغه شان د خوراک د شیانو حال هم مختلف دی. که کجورې وي یا انګور وي نو دا د ډوډۍ نه مخلتف دي. (مرقات۸/۱۰۳)

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جده قَالَ: |
| او حضرت عمرو ابن شعیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې هغې وفرمایل |

[1] رقم الحديث ۴۲۷۵ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۱۵ رقم الحديث ۱۸۸۰ وابن ماجه في السنن ۲/۱۰۹۸ رقم الحديث ۳۳۰۱

| |
|---|
| رَأَيت رَسُول لله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْرَبُ قَائِمًا وَقَاعِدًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| ما نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ولاړه په اوبو څښلو باندې هم ليدلى دى او په ناسته هم. |

**توضيح: قائماً قاعداً:** عام عادت د ناستې ؤو. د قيام په حالت كې اوبه څښل د جواز د بيان يا د نورو مجبوريو په وجه كله كله شوى دى.

## د اوبو څكلو وخت كې په لوخي كې سا مه اخلئ

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع كړې ده چې اوبه وغيره وڅښل وخت كې |
| أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الْإِنَاءِ أَوْيُنْفَخَ فِيهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[2] |
| لوښي يا پياله وغيره كې سا واخستلى شي يا په كې پوكه وكړى شي. |

**توضيح : يتنفس:** لوښي كې د سا اخستلو نه په دې وجه منع شوې ده چې امكان لري چې د خولې نه لاړې يا نور سامان اوبو كې وغورځېږي. او طبيعت يې ناخوښه كړي. يا د سږې په خولې بدبويې وي او هغه اوبو ته ورسيږي نو دا د صحت لپاره هم مضر دي او مُكدّرِ طبيعت هم دى. دغه شان اوبو كې سا اخستل د ځناور عادت دى. لهذا انسان له د سا اخستلو وخت كې د لوښي نه خوله جدا كول پكار دي. علماؤ ليكلي دي چې كه د ګرم شي د يخولو لپاره پوكى وهل منع دى. او د څښلو په شيانو كې څه ډكى (كنړكى) وي نو هغه هم په پوكې لرې كول منع دي. (مرقات۱۰۳/۸)

## يو سا باندې اوبه څكل د ځناورو كار دى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:لَا تَشْرَبُوا وَاحِدًا كَشُرْبِ الْبَعِيرِ | | | | |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې تاسو په يو سا اوبه مه څښئ لكه څنګه چې اوښ اوبه څښي. | | | | |
| وَلَكِنِ | اشْرَبُوا | مَثْنَى | وَثُلَاثَ | وَسَمُّوا |
| بلكې دوه يا درې ساګانو كې اوبه څښئ او كله چې تاسو اوبه څښئ نو بسم الله وايئ او چې د څښلو | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۲۷۶ اخرجه الترمذي في السنن ۲۲۶/۲ رقم الحديث ۱۸۸۳ واحمد في المسند ۱۷۴/۲

[2] رقم الحديث ۴۲۷۷ اخرجه في السنن ۱۱۴/۴ رقم الحديث ۳۷۲۸ والترمذي في ۲۶۹/۴ رقم الحديث ۱۸۸۸

إِذَا أَنْتُمْ شَرِبْتُمْ وَاحْمَدُوا إِذَا أَنْتُمْ رفعتم. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

نه وروسته د لوښي نه خپله خوله او چتوئ نو حمد وايئ. يعني هر ځل يا آخري ځل کې. (ترمذی)

**توضيح**: وسموا: يعني په ابتداء کې بسم الله الرحمن الرحيم وايئ او آخر کې دغه حمد او ثناء وايئ. ﴿الحمد لله الذى جعله عذباً فراتاً برحمته ولم يجلعه ملحاً اجاجاً بذنوبنا﴾ (مرقات ۱۰۴/۸)

## داوبو نه د دکې وغيره لرې کولو طريقه

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ النَّفْخِ فِي

او د حضرت ابو سعدی خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام او بو کې د پوکې وهلو نه منع کړې ده يو

الشَّرَابِ فَقَالَ رَجُلٌ: الْقَذَاةَ

کس دې او رېدلو سره عرض وکړو چې که په اوبو کې دکې وغيره وي نو څه وکړو؟ ځکه که پوکې نه کوؤ نو دکې

أَرَاهَا فِي الْإِنَاءِ

به څنګه ؤځي؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل تا هغه غوزار کړه يعني د پاس نه لرې او به غوزاري کړه چې هغه دکې

قَالَ: أَهْرِقْهَا قَالَ:

وغيره تړنه وځي. او دا هغه کس بد پوکې د ممانعت نه پېدې هم پوه شوی وي چې دې سر د اهم ضروری شوه چې داوبو څښلو

فَإِنِّي لَا أَرْوَى مِنْ نَفَسٍ وَاحِدٍ قَالَ:

او په مينځ کې سا وانخستلی شي بلکې په يو سا کې او به وڅښلی شي، نو ځکه هغې عرض وکړو چې زه يو سا يعني يو سا کې اوبو څښلو باندې نه مړېږم، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل

فَأَبِنِ الْقَدَحَ عَنْ فِيكَ

چې دا سې يې څښنه چې اول لږې شان وڅښنه او بيا پيالە د خولې نه لرې کړه او د لوښي نه بهر سا واخله

ثُمَّ تَنَفَّسْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ والدارمي[2]

او بيا هم دغه شان په دويم او دريم سا کې نورې او به وڅښنه.

**توضيح**: القذاة: د دې معنی دکی دی.

(۱) رقم الحديث ۴۲۷۸ أخرجه الترمذي في السنن ۲۶۷/۴ رقم الحديث ۱۸۸۵.

(۲) رقم الحديث ۴۲۷۹ أخرجه الترمذي في السنن ۲۶۸/۴ رقم الحديث ۱۸۸۷ والدارمي في ۱۶۱/۲ رقم الحديث ۲۱۲۱.

**قال:** دا چې حديث کې د دې نه منع شوې ده چې په لوښي کې اوبه وڅښلی شي يا پوکی ؤوهلی شي نو هغه کس کېدی شي دا ګڼلې وي چې اوبه په يو سا څښل پکار دي، ځکه هغې پوښتنه وکړه.

**فاني لااروی:** يعنې زه په يو سا نه مړېږم: نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې لوښی د خولې نه لرې کړه او سا واخله. هغه کس اولنۍ پوښتنه دا کړې وه چې زه د لوښي په اوبو وغيره کې کله ډکی وينم نو هغه څنګه لرې کړم. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې اوبه د پاس نه غوزارې کړه. ډکی به اول وځي. علماؤ ليکلي دي چې د ډکې اخوا کولو طريقه دا هم ده چې بل لرګې وغيره يې ډکی لرې کړی شي. (مرقات۸/۱۰۴).

## اوبه د لوښي په مات ځاې باندې مه څکئ

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾وَعَنْهُ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشُّرْبِ مِنْ |
| او حضرت ابوسعيد خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پيالې په سورې باندې د |
| ثُلْمَةِ الْقَدَحِ وَ أَنْ يُنْفَخَ فِي الشَّرَابِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| اوبو څښلو نه منع کړې ده. او نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوبو کې د پوکې وهلو نه هم منع کړې ده. |

**توضيح: ثلمة القدح:** د پيالۍ مات ځای ته ثُلْمَةٌ وايي چې د پيالې سوری هم ورته وايي. هغه وخت به دلرګې لوښي ؤد هغه پيالوغاړې به عموماً ماتېدلې داسې ځای باندې د اوبو څښلو د ممانعت وجه داده چې دا ځای ګنده وي او خوله کې هم صحيح نه راځي، نو اوبه وغيره په جامو باندې وغورزېږي او هسې هم دا د تهذيب خلاف ده.ددې حديث مطلب دا نه دی چې که د لوښي کومه برخه ماته وي نو هغه مه استعمالوئ. بلکې مطلب دا دی چې هغه مات ځای مه استعمالوئ. (مرقات۸/۱۰۵)

## اوبه د ضرورت په وخت کې د مشکيزې په خوله باندې څکل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾وَعَنْ كَبْشَةَ قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت کبشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا (صحابيه) فرمايي چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ کره تشريف راوړو |

---

[1] رقم الحديث ۴۲۸۰ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۱۱ رقم الحديث ۳۷۲۲ واحمد في المسند۳/۸۰ رقم الحديث ۴۲۸۰.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَشَرِبَ | مِنْ | فِي | قِرْبَةٍ | مُعَلَّقَةٍ | قَائِمًا | فَقُمْتُ | إِلَى فِيهَا |

فَقَطَعْتُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غريبٌ صَحِيحٌ[1]

مشک خولې ته وردېدلم او هغه مې غوڅ کړو. (ترمذی و ابن ماجه) امام ترمذی وائی دا حديث حسن دې

**توضيح: قربة:** نبي کريم ﷺ د اختنات نه منع کړې ده او دلته يې خپله اختنام وکړو. د دې تفصيل په حديث نمبر ۳ کې تير شوی دی. کېدی شي د څه مجبوری په وجه يا د جواز د بيانولو لپاره نبي کريم ﷺ داسې کړي وي. (مرقات ۸/۱۰۵)

**فقطعته:** د برکت د حصول د لپاره مې هغه غوڅ کړو او د ځان سره مې کيښنودلو. دا هم ويل کېدی شي چې حضرت ام سلمه رضي الله عنها هغه ځکه غوڅ کړو چې په هغه ځای د چا خوله و نه لږي. چرته چې د نبي کريم ﷺ شونډې مبارکې لږې دلې وي. (مرقات ۸/۱۰۵)

## د نبي کريم ﷺ يخ او خوږ شربت خوښ ؤو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنِ | الزُّهْرِيِّ | عَنْ | عُرْوَةَ | عَنْ | عَائِشَةَ | قَالَتْ: |

او حضرت زهری د حضرت عروه رضي الله عنه او هغه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل کوي چې هغې يعني عائشه رضي الله عنها وفرمايل

كَانَ أَحَبُّ الشَّرَابِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحُلْوَ الْبَارِدَ.

چې د نبي کريم ﷺ په نزد د څښناک په شيانو کې يخ خوږ شی د ټولو زيات خوښ ؤو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ: | وَالصَّحِيحُ | مَا | رُوِيَ | عَنِ | الزُّهْرِيِّ |

دا روايت ترمذی نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا صحيح دی. چې د زهری په حواله

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا[2]

د نبي کريم ﷺ نه د ارسال په طريقه نقل کړی شوی دی.

**توضيح: الحلوالبارد:** د يخ خوږ شي څښناک لپاره دا ضروري نه دی چې صرف اوبه وي بلکې شوده هم کېدی شي او د شهدو شربت هم کېدی شي. د دغه شان مطلب اخستلو کې به د ډېرو حديثونو په مينځ کې

---

([1]) رقم الحديث ۴۲۸۱ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۷۰ رقم الحديث ۱۸۹۲ وابن ماجه في ۲/۱۱۳۲ رقم الحديث ۳۴۲۳

([2]) رقم الحديث أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۷۲ رقم الحديث ۱۸۹۵ وأحمد في المسند ۶/۳۸.

تطبيق راشي، لکه په ځينې روايتونو کې راغلي دي چې د نبي کريم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څښاک په شيانو کې شوده د ټولو نه زيات خوښ ؤو. يو روايت کې د شهدو ذکر هم راغلی دی، يعنې د نبي کريم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يخ خوږ شی خوښ ؤو، هغه که د شهدو سره ؤو او که د شودو يا اوبو سره وي. (مرقات۸/۱۰۶)

## د خوراک او د څښاک په څيز کې د شودو نه هيڅ بهتر شی نشته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ | | | | | |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کله چې تاسو کې يو کس | | | | | |
| طَعَامًا | فَلْيَقُلِ: | اللهُمَّ | بَارِكْ | لَنَا | فِيهِ |
| خوراک وکړي نو داسې دې او ايې يعنې دا دعا دې ولولي اى الله مونږ له په دې خوراک کې برکت واچوي | | | | | |
| وَأَطْعِمْنَا | | خَيْرًا | | مِنْهُ. | وَإِذَا |
| او مونږ له د دې نه هم ښه خورک راکړي او تاسو کې چې يو کس ته شوده د څښلو لپاره ملاؤ شي نو داسې دې | | | | | |
| سُقِيَ | لَبَنًا | فَلْيَقُلِ: | اللهُمَّ | بَارِكْ | لَنَا فِيهِ |
| او ايې يعنې دا دعا دې وکړي اللهم بارک لنا فيه وزدنا منه. اى الله! مونږ له دې شودو کې برکت واچوي او مونږ له د څښلو | | | | | |
| وَزِدْنَا | مِنْهُ | فَإِنَّهُ | لَيْسَ | | شَيْءٌ |
| لپاره د دې نه زيات راکړې او د شودو څښلو نه د دې دعا نه هم ښه د څښلو لپاره راکړې والا الفاظ مه وايئ ځکه د شودو نه بهترين | | | | | |
| يجزى | | مِنَ | الطَّعَامِ | | وَالشَّرَابِ |
| هيڅ شی نشته دی. چې د خدای نه و غوښتلي شي او د دې وجه دا ده چې بل هيڅ داسې شی نشته دی چې د خوراک او څښاک بدل | | | | | |
| إِلَّا | اللَّبَنُ ". | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو دَاوُد[1] | |
| وي بغير د شودو نه چې د خېټې د ډکولو خاصيت هم لري او د تندې د ماتولو هم. | | | | | |

**توضيح**: يعنې د شودو متلعق دا نه شي ويل کېدی چې د څښاک په شيانو کې د دې نه بل بهتر شی نشته دی، ځکه شوده د تندې ماتولو کار هم کوي او د ولږې د ختمولو کار هم کوي، نو ځکه دعا کې زدنا ويل پکار دي. خيراً ويل پکار نه دي.

**يجزى**: اى يكفي، کافي کېدلو ته وايي. (مرقات۸/۱۰۷)

---

[1] رقم الحديث ۴۲۸۳ اخرجه ابوداود في السنن ۱۱۶/۴ رقم الحديث ۳۷۳۰ والترمذي في ۴۷۲/۵ رقم الحديث ۳۴۵۵.

## د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره د خوږو اوبو خاص اهتمام

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْتَعْذَبُ لَهُ الْمَاءُ مِنَ السُّقْيَا. |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره به خوږې اوبه د سقيا نه راوړلی کېدلې. |
| قِيلَ: هِيَ عَيْنٌ بَيْنَهَا وَ بَيْنَ الْمَدِينَةِ يَوْمَانِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| ځينې حضراتو بيان کړی دی چې د سقيا د يوې چينې نوم دی. چې د مدينې نه دوه نزله فاصلې باندې واقع دی. |

## الفصل الثاني

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ شَرِبَ فِي إِنَاءِ ذَهَبٍ |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کوم کس چې د سرو يا |
| أَوْ فِضَّةٍ أَوْ إِنَاءٍ فِيهِ شَيْءٌ |
| سپينو زرو په لوښي کې څښل کوي يا په يو داسې لوښي کې څښل کوي چې هغه اګر که تهول د سرو |
| مِنْ ذَلِكَ فَإِنَّمَا يُجَرْجِرُ |
| يا د سپينو زرو نه وي خو په هغې کې د سرو يا سپينو زرو څه برخه وي نو د هغې دا څښل به د دې نه |
| فِي بَطْنِهِ نَارَ جهنمَ. رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيّ[2] |
| بغير بله هيڅ نتيجه ورنکړي چې د هغې په خېټه کې به د دوزخ اور ګوټ ګوټ وردننه کړی شي. (دارقطني) |



[1] رقم الحديث ۴۲۸۴ أخرجه ابوداود في السنن ۱۱۹/۴ رقم الحديث ۳۷۳۵ واحمد في المسند ۱۰۰/۶.

[2] رقم الحديث ۴۲۸۵ أخرجه الدارقطني في السنن ۴۰/۱ رقم الحديث ۱ من كتاب الطهارة.

# باب النقع و الانبذة
## نقيع او د نبيذو بيان

قال الله تعالیٰ: ﴿تتخذون من سكراً و رزقاً حسناً﴾ (سورة النحل: ٦٧)

**نقيع** او نبيذ د څښلو د شربتونو د قسمونو نه دي، نقيع د جوړولو صورت دا وي چې انګور يا کجورې په اوبو کې لمدې کړی شي او د څه وخت لپاره پرېښودلی شي چې اوبو کې خوږوالی پيدا شي، بس همدغه نقيع دی. د دې څښل جائز او د بدن او نظام هضم لپاره ډېر فائده مند دي.

**نبيذ** په معنی د **منبوذ**، ګوزار شوي شي ته وايي. د دې د جوړولو طريقه دا ده چې کجورې په اوبو کې واچولی شي او د لږ وخت لپاره پرېښودلی شي چې اوبو کې لږ شان تيزوالی پيدا شي خو دومره تيزوالی او تغير رانشي چې مُسکر جوړ شي. دا نبيذ دی. د دې څکل جائز او حلال دی. که مُسکر شو نو حرام دی. (مرقات ۸/۱۰۹)

**د نبيذ قسمونه**: ۱: که چرې کجورې او انګور وغيره په اوبو کې واچولی شي او د ګډوډې دلو نه مخکې مخکې استعمال کړی شي نو دا د اوبو په حکم کې دی. د ټولو په نزد په دې باندې او دس کول هم جائز دي او عام استعمال يې هم جائز دی. ۲: که چرې کجورې او انګور وغيره په اوبو کې واچولی شي او ډېر وخت پرېښودلو په وجه په کې سکر پيدا شو يا يې په اور باندې پوخ کړی شو او اوبو کې جوش او سکر پيدا شو، نو دا د ټولو په نزد حرام دي. نه په دې باندې او دس کېږي او نه عام استعماليدلی شي. ۳: که چرې اوبو کې کجورې او انګور وغيره واچولی شو. اوبو کې معمولي شان ګډوډوالی راغلو. جوش هم رانغلو، زګ هم ونشو، نو په دې کې د فقهاؤ اختلاف دی. جمهور او د صاحبينو په نزد دا د او دس لپاره استعمالول جائز نه دي، خو د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد د دې عام استعمال هم جائز دی. د مرګ نه لږ وخت مخکې امام ابو حنيفه رحمه الله د صاحبينو قول ته رجوع وکړه چې په دې باندې او دس ناجائز دی. توضيحات جلد اول ص ۶۳۳ باندې دا مسئله ډېره په تفصيل سره تيره شوې ده.

## الفصل الاول

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن أَنسٍ قَالَ: لَقَدْ سَقَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحِي |
| د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دی چې هغې وويل چې ما نبي کريم صلی الله علیه وسلم باندې دې خپلې |

| |
|---|
| هٰذَا الشَّرَابَ كُلَّهُ: الْعَسَلَ والنَّبِيذَ والماءَ وَاللَّبن. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| پیاله کې ټول څیزونه څښنولې دي لکه شهد، نبیذ، اوبه او شوده. |

**توضیح**: بقدحي هذا: حضرت انس رضي الله عنه چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم باندې په كومه پياله كې څيزونه څښنولې ؤو. هغه پياله د نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره وه. بيا هغه حضرت نضر بن انس رضي الله عنه د حضرت انس رضي الله عنه په اته لاكه (۸۰۰۰۰) درهم باندې اخستې وه. حضرت امام بخاری رحمه الله په بصره كې دا پياله ليدلې وه. او د هغې د خوش قسمتئ به څه اوايو چې په هغه پياله كې يې اوبو د څښنلو سعادت هم حاصل كړې ؤو. (مرقات۸/۱۰۹)

## د نبي كريم صلى الله عليه وسلم لپاره د نبيذ جوړولو طريقه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَن عائشةَ قَالَتْ: كُنَّا نَنْبِذُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سِقَاءٍ | | | | | |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې مونږ به نبي كريم صلى الله عليه وسلم له په يو مشک كې نبيذ جوړولو. | | | | | |
| يُوكَأُ | أَعْلَاهُ | وَلَهُ | عَزْلَاءُ | | |
| چې د پاس نه به مو بندولو. او د هغې په لاندې برخه كې هم د هغې غاړه وه. مونږ به هغه مشک كې كجورې وغيره | | | | | |
| نَنْبِذُهُ | غُدْوَةً | فَيَشْرَبُهُ | عِشَاءً | وَنَنْبِذُهُ | عِشَاءً |
| اچولې، نو نبي عليه السلام به هغه د شپې وخت كې څښنل او كه په هغې كې به مو كجورې وغيره د شپې واچولې | | | | | |
| فيشربُه غُدوةً. رَوَاهُ مُسلم[2] | | | | | |
| نو نبي عليه السلام به هغه د سحر وخت كې څښنل. | | | | | |

**توضیح**: سقاء: مشكيزې ته وايي. **يوكأ**: مزې باندې تړلو ته وايي. د مشكيزې يوه برخه پاسنۍ ده. چې د هغې غاړه وي يعنې پاسنۍ برخه به مو په مزې باندې تړله. (مرقات۸/۱۱۰)

**عزلا**: د مشكيزې د لاندې چې كومه غاړه وي هغې عزلا وايي. پوهېدل پكار دي چې د مشكيزې يو پاس اړخ ته غاړه وي نو هغه هرې مشكيزه كې وي خو د دې مشكيزې يو غاړې لاندې اړخ ته هم وه چې نسبتاً وړه وه. پاسنۍ غاړه به يې وتړله او په لاندنۍ غاړه به يې څښنل. دا دې حديث مطلب دی. نبيذ د جوړولو دا طريق كېدی شي د ګرمۍ په زمانه كې وه چې سحر او ماښام په كې نبيذ تيارېدلی

---

(۱) رقم: لحديث ۴۲۸۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۵۹۱ رقم الحديث (۸۹-۲۰۰۸) واحمدفي لامسند۳/۲۴۷

(۲) رقم الحديث ۴۲۸۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۵۹۰ رقم الحديث (۸۵-۲۰۰۵) وأبوداود في السنن ۴/۱۰۴ رقم الحديث ۳۷۱۱.

شي. ديخنئ موسم کې کله يو ورځ او کله درې ورځې اخلي. لکه څنګه چې نورو حديثونو کې د دې ذکر دی. نبيذ: د جوړولو په معنی کې دی يعني مونږ به نبيذ تيارولو. (مرقات۸/۱۱۰)

## نبيذ تر کومې پورې ايښودل کيدی شي؟

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْبَذُ لَهُ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ لپاره به چې کوم نبيذ د شپې په |
| أَوَّلَ اللَّيْلِ فَيَشْرَبُهُ إِذَا أَصْبَحَ يَوْمَهُ ذَلِكَ |
| اوله برخه کې اچولی کېدو. هغه به نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ د راتلونکې ورځ سحر کې څښلو. بيا به يې |
| وَاللَّيْلَةَ الَّتِي تَجِيءُ وَالْغَدَ وَاللَّيْلَةَ الْأُخْرَى |
| راتلونکې شپه کې هم څښلو. بيا به يې په دويمه ورځ او په دويمه شپه څښلو او بيا به يې راتلونکې |
| وَالْغَدَ إِلَى الْعَصْرِ فَإِنْ بَقِيَ شَيْءٌ |
| ورځ يعني د دريمې ورځ تر مازيګر پورې څښلو او که د هغې نه وروسته به هم د هغې نه څه پاتې شو |
| سَقَاهُ الْخَادِمَ أَوْ أَمَرَ بِهِ فَصُبَّ. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| نو په خادم به يې څښل او يا به يې د غورزارولو حکم کولو، نو هغه به غوزار کړی شو. (مسلم) |

**توضيح:** **اوامربه:** دا أو شک لپاره نه دی بلکې د تنويع لپاره دی يعني نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ باندې به تر درې ورځو پورې نبيذ څښنول کېدو. دريمې ورځې د مازيګر نه وروسته دا چې د نبيذ آخره برخه به پاتې ؤو، نو ځکه به يې هغه په خادم باندې څښنولو، خو که په آخري برخه کې به نشه راغله نو بيا به يې هغه غوزارولو. معلومه شوه چې تر درې ورځو پورې نبيذ ساتل آخري حد دی.

علماؤ ليکلې دي چې د دې نه حديث نه دا خبره زده کېږي چې غلام او خادم ته د خوراک او څښاک پاتې شيان ورکولی شي او دا عمل هم جائز دی چې کوم په حديث کې دی. (مرقات۸/۱۱۰)

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ يُنْبَذُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سِقَائِهِ |
| او حضرت جابر رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ لپاره به په مشک کې نبيذ جوړېدلو او که |
| فَإِذَا لَمْ يَجِدُوا سِقَاءً يُنْبَذُ لَهُ فِي تَوْرٍ مِنْ حِجَارَةٍ. رَوَاهُ مُسلم [2] |
| کوم وخت کې به مشک نه ؤو نو بيا به نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ لپاره په کاڼي په لوښي کې نبيذ جوړېدلو. (مسلم) |

[1] رقم الحديث ۴۲۸۸ أخرجه مسلم في ۱۵۸۹رقم الحديث (۷۹-۲۰۰۴) وأحمد في المسند ۱/ ۲۴۰ .

[2] رقم الحديث ۴۲۸۹ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۸۴/۳ رقم الحديث (۶۲-۱۹۹۹) وأبوداود في السنن ۹۹/۴ رقم الحديث ۳۷۰۲

**توضیح** تور: تور د کاڼي او د پیتلو لوښي ته وايي.

**من حجارة**: د کاڼي د لوښي تعین شوی دی. پخوانۍ زمانه کې به د لرګې، وسپنې، پیتل او د کاڼي نه به لوښي جوړېدل. (مرقات۸/۱۱۰)

## په کوم کوم لوخو کې نبیذ جوړول منع دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهى عَنِ الدُّبَّاء |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کدو نه جوړو شوي لوښي، |
| والحنتم والمزفت وَالنَّقِيرِ وَأَمَرَ |
| لرګي تراشل شوي لوښي او د غوړو لوښي د نبیذ جوړولو نه منع و فرمایله او حکم یې وکړو چې د |
| أَنْ يُنْبَذَ فِي أَسْقِيَةِ الْأَدَمِ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| څرمنې په مشک کې دې نبیذ جوړ کړی شي. |

**توضیح**: **الدباء**: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسلام په ابتدائی دور کې په دغه قسمه لوښو کې د نبیذ جوړولو نه منع کړې وه. چې د شراب لیدلو سره دوباره د شرابو رغبت پیدا نه شي او د هغه لوښو د خاص اثر نه د نبیذ په شرابو کې بدل نشي، کله چې د شرابو نه کرکه په زړونو کې کیناستلو او په نشه یي او غیر نشه یي شیانو کې فرق کول اسان شو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه قسمه لوښو کې نبیذ د جوړلو اجازت ورکړو، لکه د ورسره لاندې روایت کې د دې ذکر دی.

اوچ تش کدو ته دباء وايي. غټ منګې ته **حنتم** وايي. روغني لوښي ته **مزفت** وايي. تراشل شوي تش لرګي ته **نقير** وايي،(مرقات۸/۱۱۰) هغه زمانه کې به په خاصه توګه دې لوښو کې شراب جوړېدل. (مرقات۸/۱۱۰)

**أدم**: دا لفظ د مفرد دی. همزه او دال باندې فتحه ده. څرمن ته وايي مراد ترېنه د څرمن نه جوړه شوې مشکیزه ده. توضیحات جلد اول کتاب الایمان کې د دې حدیث تفصیل تیر شوی دی. (مرقات۸/۱۱۰)

## د لوخو باره کې یَو حکم منسوخ شو

| |
|---|
| ﴿۶﴾وَعَن بُرَيْدَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: نَهَيْتُكُمْ |
| او د حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ما تاسو په پاس ذکر شوو |

[1] رقم الحديث ۴۲۹۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۵۸۰ رقم الحديث (۴۶-۱۹۹۷)

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَنِ | الظُّرُوفِ | فَإِنَّ | ظَرْفًا |
| لوښو کې د نبیذ جوړولو نه منع کولئ. او تاسو دا ګمان کولو چې د حلت او د حرمت تعلق د لوښو سره دی. | | | |
| لَا | يُحِلُّ | شَيْئًا | وَلَا |
| حال دا چې داسې نه ده. بلکې حقیقت دا دی چې کوم شی حرام دی هغه هیڅ یو لوښی نه حلال کوي او کوم شی چې حلال | | | |
| يُحَرِّمُهُ | | وَكُلُّ | مُسْكِرٍ |
| دی هغه هیڅ یو لوښی نه حلالوي. اصل حکم خو دا دی چې کوم شی نشه پیدا کړي نو هغه حرام دی. هغه که په هر یو | | | |
| حَرَامٌ | | وَفِي | رِوَايَةٍ: |
| لوښي کې وڅښل شي. کوم چې نشه نه پیدا کوي هغه حلال دی هغه که په هر یو لوښي کې وڅښل شي. او یو بل روایت | | | |
| قَالَ: | نَهَيْتُكُمْ | عَنِ | الْأَشْرِبَةِ |
| کې داسې دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ما تاسو په ذکر شوي لوښو کې د نبيذ څښلو نه منع کړي وئ | | | |
| إِلَّا | فِي | ظُرُوفِ | الْأَدَمِ |
| بغير د څرمن د لوښو نه خو اوس هغه حکم منسوخ کولو سره په هر يو لوښي کې نبيذ د تيارولو او څښل | | | |
| فَاشْرَبُوا فِي كُلِّ وِعَاءٍ غَيْرَ أَنْ لَا تَشْرَبُوا مُسْكِرًا . رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1] | | | |
| مباح ګنم. لهذا تاسو هر قسمه لوښي کې څښلی شئ خو کوم شی چې نشه پیدا کوي نو هغه هرګز مه څښئ. | | | |

**توضیح: نهیتکم**: د اسلام په ابتداء کې چې کله په مدینه منوره کې د شرابو د حرمت ذکر راغلو نو مسلمانانو له د شرابو سره د نفرت پیدا کولو په غرض نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د لوښو د ماتولو او د نه استعمالولو حکم ورکړو. کله چې د شرابو نفرت په زړه کې کیناستلو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هر قسمه لوښو د استعمالولو اجازت ورکړو او ويې فرمايل چې لوښی هيڅ شی نه حلالوې او نه يې حراموي. اوس هر قسمه لوښي استعمالوئ خو د نشې نه ځان وساتئ. (مرقات ۱۱۲/۸)

## الفصل الثاني

### د شرابو نوم به بدل کړي او خلک به شراب څکي

| |
|---|
| ﴿۷﴾عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| د حضرت ابو مالک اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي |

[1] رقم الحديث ۴۲۹۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۸۵/۳ رقم الحديث (۶۵-۹۷۷) والترمذي في السنن ۲۶۰/۴ رقم الحديث ۱۸۶۹

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَيَشْرَبَنَّ | نَاسٌ | مِنْ | أُمَّتِي | الْخَمْرَ | يُسَمُّونَهَا |

چې داسې زمانه راتلونکې ده چې زما د امت ځینې خلک به شراب څښې او د هغې د نوم په ځای به

بِغَيْرِ اسْمِهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَةَ[1]

ورله څه بل څه نوم ورکوي. (ابو داؤد. ابن ماجه)

**توضیح** دا زمانه راغلې ده بلکې د دې نه هم مخکې راغلې ده. نن سبا خو دا حالت دی چې که په چا کې معمولې شان شرافت دی نو هغه ورله نوم بدل کړي او څښي یې. مثلاً شرابو ته به نبیذ وایي یا به ورته ماء العسل وايي. یا آب جو اور ہنزہ واٹر کہہ کر پیتیں گے، خو چې په چا کې د شرافت د نوم څه نښته دی نو او نه په د خدای د ویرې څه تصوروي، نو هغوی ورته شراب وایي او څښي یې بلکې جائزیې ګڼې. (مرقات ۸/۱۱۳)

## الفصل الثالث

﴿۸﴾عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَبِيذِ

حضرت عبد الله بن ابی اوفی رضي الله عنه فرمايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به شنه تیلی کې جوړ شوي

الْجَرِّ الْأَخْضَرِ قُلْتُ: أَنَشْرَبُ فِي الأَبْيَضِ؟

نبیذ د څښلو نه منع کړي وکړه، نو ما عرض وکړو چې آیا مونږ په سپینه تیلی کې جوړ شوی نبیذ

قَالَ: لَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2]

څښلی شو؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل نا.

**توضیح** عن نبیذ الجر الأخضر: یعنې سبز تھلیا اور خُم، د لوښي لپاره څه قید احترازی نه ؤو. بلکې د زمانې لحاظ سره دا دا قید اتفاقي ؤو. ځکه عموماً به هغه وخت د شرابو لوښي شنه او مرغن ؤو. حضرت عبد الله بن ابی اوفی رضي الله عنه دا قید احترازی ګڼلی ؤو، نو پوښتنه یې وکړه چې آیا په سپین لوښي کې جوړ شوی نبیذ څښلی شو. نبي کریم صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو چې نا. دا هغه وخت دا ټول لوښي د نبیذ وغیره لپاره منع کړی شوي ؤو، نو ځکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سپینې تیلی نه هم ممانعت کړی ؤو. بیا دا ممانعت منسوخ شو. (مرقات ۸/۱۱۴،۱۱۳)

---

([1])رقم الحديث ۴۲۹۲ أخرجه ابوداود في السنن ۹۱/۴ رقم الحديث ۳۶۸۸ وابن ماجه في ۱۳۳۳/۲ رقم الحديث ۴۰۲۰ .

([2])رقم الحديث ۴۲۹۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۸/۱۰ رقم الحديث ۵۵۹۶ وأحمد في المسند۴/۳۵۳.

# باب تغطية الأواني وغيرها

## لوښو باندې د سَر ایښودلو بیان

دې باب کې په حدیثونو کې د لوښو او د نورو شیان باندې د سر ایښودلو بیان دی. د دې نه بغیر د کور دروازه د بندلو او د شپې تورتم کیدلو وخت کې ماشومان په کور کې حصارول او د اوده کیدو په وخت کې د اور د مړ کولو وغیره د مسائلو او د فضائلو بیان دی چې امت لپاره په کې فائده ده. دا خبره دې ذهن کې وي چې دې حدیثونو کې چې د کومو اوامرو او نواهیو ذکر دی. دا اوامر او نواهي ارشادي او استحبابي دي، د ارشادي مطلب هم دغه دی چې دې کې دې امت ته لاښود نه او خیر مقصود دی.

## الفصل الاول

### د مسلمان د شپې لپاره د اسلام غوره اصول

﴿۱﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کله شپې تور والی خور شي یا یې دا و فرمایل

إِذَا كَانَ جِنْحُ اللَّيْلِ أَوْ أَمْسَيْتُمْ فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ

چې کله ماښام شي نو تاسو خپل ماشومان کور نه د راوتلو او کلي کوڅو کې د ګرځېدو نه منع کړئ،

فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِنَ اللَّيْلِ

ځکه هغه شیطان یعني پیریان ځلورو اړخونو ته خواره شي. بیا کله چې د شپې یو ساعت تېر شي، نو

فَخَلُّوهُمْ وَأَغْلِقُوا الْأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ

بیا د ماشومانو په تلو راتلو کې هیڅ باک نشته دی. او د الله نوم اخستلو سره یعني بسم الله لوستلو

فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا

سره دروازه بنده کړئ. ځکه بسم الله ویلو سره بند کړی شوې دروازې شیطان نه خلاصوي او د الله یادولو سره

وَأَوْكُوا قِرَبَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ

هغه مشکیزې د ترې چې کومو کې اوبه وي چې حشره یا پتنګ وغیره په کې ورد ننه نه شي. او د الله نوم اخستلو

وَخَمِّرُوا آنِيَتَكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ

[illegible] بندولو لپاره د څښي نه موجود نه وي چې په هغې د هغه لوښي خوله پوره نه بندېږي نو هغې باندې

وَلَوْ أَنْ تعرِضواْ عَلَيْهِ

يو د عارضي وخت لپاره لرې وغيره کېږدئ. اګر که په دې صورت کې به لوښي پوره بند نه شي، خو داسې

شَيْئًا وأطفئوا مصابيحكم

به کم نه کم کراهت خو ختم شي او د دې حکم په برکت سره به لوښي موجود خوراک او څښناک څيز د هغه ضرر او نقصان نه بچ شي

مُتَّفق عَلَيْهِ[1] وَفِي

چې هغه د بالکل د خلاص لوښي په صورت کې يقيني وي، لکه د شيطان تصرف. او د اوده کېدو وخت کې خپل

رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: قَالَ:

ډيوه بند کړئ. د بخاري په يو روايت کې داسې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل لوښو باندې سر پټوئ، د مشکيزو

خَمِّرُوا الْآنِيَةَ وَأَوْكُوا الْأَسْقِيَةَ وَأَجِيفُوا الْأَبْوَابَ

خولې تړئ، دروازې بندوئ او خپل ماشومان د خپل ځان سره کېښنوئ او اخوا ديخوا يې مه پرېږدئ

وَاكْفِتُوا صِبْيَانَكُمْ عِنْدَ الْمَسَاءِ فَإِن للجن انتشارا

چې کله ماښام شي، ځکه هغه وخت پيريان څلورو اړخونو ته خواره شي او ټونګي لګوي. او د اوده کېدو

أَو خَطْفَةً وَأَطْفِئُوا الْمَصَابِيحَ عِنْدَ الرُّقَادِ فَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا اجْتَرَّتِ الفتيلة

وخت کې ډيوې مړې کوئ، ځکه اکثر يا ځېنې وختونو کې داسې کېږي چې مږه رابنکاره شي او د

فأحرقت أهل الْبَيْت[2] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: غَطُّوا الْإِنَاءَ

او د کور والا او سوزوي او د مسلم يو روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل لوښو باندې سر پټوئ،

وَأَوْكُوا السِّقَاءَ وَأَغْلِقُوا الْأَبْوَابَ وَأَطْفِئُوا السِّرَاجَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ

د مشکيزو خلې تړئ، دروازې بندوئ او ډيوې مړې کوئ، ځکه د الله نوم اخستلو شيطان بندې کړی

لَا يَحُلُّ سِقَاءً وَلَا يَفْتَحُ بَابًا وَلَا يَكْشِفُ إِنَاءً

شوي مشکيزې نه خلاصوي او نه دروازې خلاصوي او نه پټ کړی شوؤ لوښو نه سر اوچتوي، که

---

(۱) رقم الحديث ۴۲/۹۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۵/۶ رقم الحديث ۳۳۱۶ وأبوداود في السنن ۱۱۸/۴ رقم الحديث ۳۷۳۳

(۲) رقم الحديث ۴۲۹۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۶/۶ رقم الحديث ۳۲۸۰ ومسلم في ۱۵۹۵ رقم الحديث (۹۷-۲۰۱۲)

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنْ لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا أَنْ يعرضَ على إِنائِه عوداً ويذكرَ اسمَ اللهَ | | | | | | | | | | |
| تاسو کې چاته د سرپټولو لپاره څه نه ملاوېږي خو دا چې هغه د الله نوم واخلئ نو په لوښي باندې عارضي څه لرګی کېښودلی | | | | | | | | | | |
| فَلْيَفْعَلْ فَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ | | | | | | | | | | |
| شي. نو هغه دې همدغه شان وکړي يعنې بسم الله ويلو سره په لوښي باندې څه لرګی کېږدئ او دا وده کېدو | | | | | | | | | | |
| تُضْرِمُ عَلَى أَهْلِ الْبَيْت | | | | | | | | | | |
| وخت چراغ مړ کوئ ځکه چې مږه په کور ډېوه راکاږي او د کور والا او سوځوي، يعنې مږه لړېدلې باتۍ يو داسې ځای | | | | | | | | | | |
| بَيتهمْ[1] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: | | | | | | | | | | |
| کې غوزاره کړي چې هلته يو شې ته اور ولږي او بيا ټول کور او سوځوي) او د مسلم په يو روايت کې داسې دي چې | | | | | | | | | | |
| قَالَ: لَا تُرْسِلُوا فَوَاشِيكُمْ وَصِبْيَانَكُمْ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ | | | | | | | | | | |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل کله لمر ډوب شي نو خپل څاروي او ماشومان د کور نه بهر مه پرېږدئ تر دې | | | | | | | | | | |
| حَتَّى تَذْهَبَ فَحْمَةُ الْعِشَاءِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَبْعَثُ إِذَا غَابَتِ الشَّمْسُ | | | | | | | | | | |
| چې د شپې ابتدائی برخې تورتم لاړ شي. يعنې څه شپه تيره شي ځکه د لمر ډوبيدلو نه وروسته د شپې ابتدائی | | | | | | | | | | |
| حَتَّى تذهب فَحْمَة الْعشَاء[2] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: | | | | | | | | | | |
| برخه کې تيرېدلو وخت کې شيطان يعنې پيريان خواره کېږي. او د مسلم په يو روايت کې داسې دي چې | | | | | | | | | | |
| قَالَ: غَطُّوا الْإِنَاءَ وَأَوْكُوا السِّقَاءَ فَإِنَّ فِي السَّنَةِ | | | | | | | | | | |
| نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې لوښي باندې سر ايږدئ او د مشکيزي خله تړئ ځکه ټول کال | | | | | | | | | | |
| لَيْلَةً يَنْزِلُ فِيهَا وَبَاءٌ لَا يَمُرُّ بِإِنَاءٍ | | | | | | | | | | |
| کې يوه شپه داسې راځي چې هغې کې وباء نازلېږي او کوم لوښي چې خلاص وي يا چې د کومې | | | | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۲۹۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۵۹۴ رقم الحديث (۹۶-۲۰۱۲) وأحمد في المسند۳/۳۸۶

[2] رقم الحديث ۴۲۹۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۵۹۵ رقم الحديث (۹۸-۲۰۱۳) وأحمد في المسند ۳/۳۹۵

لَيْسَ عَلَيْهِ غِطَاءٌ أَوْ سِقَاءٌ لَيْسَ عَلَيْهِ وِكَاءٌ إِلَّا نَزَلَ فِيهِ من ذَلِك الوباء[1]

مشکيزې خوله نه وي تړلی شوي نو د هغه وباء څه برخه هغې کې هم داخلېږي.

**توضيح: جنح**: د شپې ابتدائی برخه مراد ده. **اوامسيتم**: لفظ او د رواي د شک لپاره دی.

**شنتشر**: يعنې د ماښام وخت کې پيريان او شيطانان ښوريږي. هغه وخت هغوی ماشومانو ته نقصان رسوي. دغه شان ځناور ته هم نقصان رسولی شي، نو ځکه د تورتم ښورېدلو وخت کې ماشومان او ځناور د کور نه بهر مه پرېږدئ. **باباً مغلقاً**: يعنې د کومې دروازې بندولو وخت کې چې بسم الله ويلی شوې وي نو شيطان هغه نه شي خلاصولی. د هغې په خلاصولو باندې قادر نه وي.

**أوكوا**: د ايکاء نه دی، مزې باندې تړلو ته وايي. **خمروا**: لوښي باندې سر ايښودلو ته وايي.

**ان تعرضوا**: نصر د ينصر نه دی. لوښي باندې لرګی په پلنوالي باندې ايښودلو ته وايي. يعنې که د لوښي پټولو لپاره پوره سر نه ملاوېږي نو د لرګي ډکی بسم الله ويلو سره په پلنوالې کېږدئ. دا لرګی به د بسم الله نښانه وي، نو شيطان به تښتې. نژدې به نه راځي. (مرقات ۸/۱۱۴)

**اطفئوا**: چراغ وغيره مړ کړئ. **اجيفوا**: دروازه د بندولو به معنی کې دی.

**اكفتوا**: د باب افعال نه اکفات، د خپل ځان سره کېښودلو او د بندولو او خپل اړخ ته د ضم کولو په معنی کې دی.

**الجن**: پيريانو کې چې کوم د اعتدلال د حد نه زيات سرکش شي نو هغه شيطان شي. او کوم چې د اعتدلال نه زيات نرم شي هغه پرې (خاپيرئ) شي. او کوم کې چې په اعتدلال سره شرارت وي نو هغه پيری وسي. چې کوم يو هم پيری دی هغې کې شرارت خامخا وي. هغه که مسلم وي يا که کافر وي.

**الرقاد**: يعنې د اوده کېدو وخت کې. **الفويسقه**: دا د فاسقه تصغير دی. مږه مراد ده. چې د خپلې سوړې نه راوځي او ورانی کوي. **اجترت**: د اجترار نه دی. د راښکلو په معنی کې دی.

**الفتيلة**: هغه بتی ته فتيله وايي چې اور ورته لږېدلی وي.

**لايحل**: مشکيزه نه خلاصوي خو په دې شرط چې بسم الله سره بنده کړي وي.

**تضرم**: د باب افعال نه دی. اور لګولو ته اضرام وايي. **فحمة العشاء**: د شپې تورتم ته فحمة وايي.

**يبعث**: د مجهول صيغه ده. يعنې شيطانان ښواره شي. او ښواره کړی شي.

**وباء**: د وبائی مرض نه هيضه وغيره مراد ده. د دې حديث خلاصه دا راؤتله چې د الله نوم بسم الله هر

---

(۱) رقم ... ۴۲۹۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۵۹۶ رقم الحديث (۹۹-۲۰۱۴)

وخت د هر مطلب لپاره استعمالوئ. دا ستاسو د دنيوي او د اخروي مصيبتونو نه د بچ کېدو لپاره ګټوره ده. دا ټول اوامر نواهي دي. وجوبي نه دي. (مرقات۱۱۷/۸)

## کوم لوښي کې چې د خوراک څښاک شيان وي نو هغې باندې سر کېږدئ

﴿۲﴾وَعَنْهُ قَالَ: جَاءَ أَبُو حُمَيْدٍ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مِنَ النَّقِيعِ بِإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ابو حميد چې يو انصاري کس ؤ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

خدمت کې د مقام نقيع نه د شودو يو ډک لوښی راوړلو، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې هغه لوښی خلاص

أَلَّا خَمَّرْتَهُ وَلَوْ أَنْ تعرِضَ

وليدلو نو ويې فرمايل چې تا دا لوښی بند ولې نه دی. اګر که د د سر د پټول دا همدغه صورت ولې نه وی

عليهِ عوداً (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

چې تا دې باندې عارضې يو ډکی ايښی وی.

**توضيح**: مدينې منورې ته نزدې د يو ځای نوم "نقيع" دی. دا کس د همغه ځای نه راغلی ؤ.

**الاخمرته**: يعنې تا په دې سر ولې نه دی ايښی؟ دا د تخمير نه دی. د پټولو په معنی کې دی.

**عوداً**: وړوکې لرګې ته ويلی شوی دی. (مرقات۱۱۸/۸)

## دا اوده کيدو وخت کې اور مړ کړئ

﴿۳﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل

لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تنامون (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2]

کله چې تاسو اوده کېږئ نو کورونو کې اور مه پرېږدئ.

**توضيح**: د اور نه مراد داسې اور دی چې هغې نه يو شې د سوځېدلو خطر وي، لکه چراغ وغيره يا نغری کې اور يا د ګيس بل شوی سلنډر چې په زرګونو خلک پرې مړه شوي دي. د دې نه هغه اور مراد نه دی چې د بجلۍ د بلب په صورت کې وي يا د قنديل د ننه وي چې خطر په کې نه وي.

---

([1])رقم الحديث ۴۲۹۹ أخر... في صحيحه ۷۰/۱۰، قم الحديث ۵۶۰۵ ومسلم في ۱۵۹۳/۳ رقم الحديث (۹۵-۲۰۱۱)

([2]) رقم الحديث ۴۳۰۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۸۸/۱۱ رقم الحديث ۱۲۹۳ ومسلم في ۱۵۹۶/۳ رقم الحديث (۱۰۰-۲۰۱۵)

﴿۴﴾وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: احْتَرَقَ بَيْتٌ بِالْمَدِينَةِ عَلَى أَهْلِهِ مِنَ اللَّيْلِ

او حضرت ابو موسى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې شپه کې د اسې وشول چې مدينه کې د يو کس کور وسوځېدلو

فَحُدِّثَ بِشَأْنِهِ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او په کور والو باندې راولېدلو، نو د هغې باره کې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته ذکر وکړې شو، نو

قَالَ: إِنَّ هَذِهِ النَّارُ إِنَّمَا هِيَ عَدُوٌّ لَكُمْ

نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د دې نه بغير بل هيڅ نشته دى چې دا ستاسو په حق کې يو دښمن دى.

فَإِذَا نِمْتُمْ فأطفئوها عَنْكُم (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1]

چې ژوند او مال سوځوي. لهذا کله چې تاسو اوده کېږئ نو دا مړ کوئ. (او د دې د نقصان او ضرر خپل ځانونه محفوظ کړئ).

# الفصل الثاني

## د سپي او د خر اواز چې واورئ نو تعوذ وايي

﴿۵﴾عَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِذَا سَمِعْتُمْ

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې ما د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې کله تاسو شپه کې د

نُبَاحَ الْكِلَابِ وَنَهِيقَ الْحَمِيرِ مِنَ اللَّيْلِ فَتَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ

سپو د غپار او د خرو هرانګې اواز واورئ نو د شيطان رټلي شوي نه د الله پناه وغواړئ، ځکه هغه چې سپي او

فَإِنَّهُنَّ يَرَيْنَ مَا لَا تَرَوْنَ. وَأَقِلُّوا الْخُرُوجَ

خر کوم شې ويني (يعني شيطان او د اولاد د) هغه تاسو نه وينئ او کله چې د خلکو تلل راتلل بند شي نو هغه

إِذَا هَدَأَتِ الْأَرْجُلُ فَإِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يَبُثُّ مِنْ خَلْقِهِ فِي لَيْلَتِهِ

وخت تاسو هم د کور نه کم وځئ، ځکه هغه وخت شپه کې الله تعالى خپلو مخلوقاتو کې چې څوک

مَا يَشَاءُ وَأَجِيفُوا الْأَبْوَابَ

غواړي يعنې پيريان او شيطانان او ضررې ځناور وغيره هغوى خلور اړخونو ته بنواره کړي. او خپلې

وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا إِذَا أُجِيفَ

دروازې د الله نوم اخستلو يعنې بسم الله ويلو سره بندوئ ځکه کومه دروازه چې د الله نوم اخستلو سره

---

[1] رقم الحديث ۴۳۰۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۸۵/۱۱ رقم الحديث ۶۲۹۴ ومسلم في ۱۵۹۶/۳ رقم الحديث (۱۰۱-۲۰۱۶)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَذْكُرَ | اسْمُ | اللهِ | عَلَيْهِ | وَغَطُّوا | الْجِرَارَ |

بنده کړی شوي وي نو شيطان د هغې په خلاصولو باندي قادر نه وي او هغه لوښو باندي سرپټوئ چې کوم کې د خوراک او

وَأَكْفِئُوا الْآنِيَةَ وأوكوا القرب. رَوَاهُ فِي شرح السنة [1]

څښاک څه شی وی او کومو لوښو کې چې څه شی نه وي يعني هغه خالي وي نو هغه سرچپه ږدئ او د مشکيزو خلي تړئ.

**توضيح:** سپې او د خر سره د شيطان مستقيماً رابطه وي. دا چې کله شيطان اويني نو د خوشحالئ نه ټوپونه وهي او غاپې او هنګ پړي.

**هدأت الارجل:** چې قدم په سکون کې شي يعني د خلکو تګ راتګ بند شی. (مرقات ۸/۱۲۰)

## مږي د نبي کريم ﷺ په جانماز باندې د اور ډيوه غوزاره کړه

﴿۶﴾ وَعَنِ ابنِ عبَّاسٍ قَالَ: جَاءَتْ فَأْرَةٌ تَجُرُّ الْفَتِيلَةَ

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې د يو ورځې واقعه ده چې يوې مږې د چراغ بله شوې ډيوه رانښکله

فَأَلْقَتْهَا بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْخُمْرَةِ الَّتِي

او رائی وړله او هغه يې د نبي کريم ﷺ مخې ته په توشکه باندې غوزار کړو چې کوم باندې به

كَانَ قَاعِدًا عَلَيْهَا فَأَحْرَقَتْ مِنْهَا مِثْلَ مَوْضِعِ الدِّرْهَمِ

نبي کريم ﷺ کيناستلو نو هغې د يو درهم هومره توشکه اوسوځوله. نبي کريم ﷺ

فَقَالَ: إِذَا نِمْتُمْ فَأَطْفِئُوا سُرُجَكُمْ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدُلُّ

دې ليدلو سره وفرمايل چې کله تاسو اوده کېږئ نو چراغ مړ کوئ، ځکه شيطان د دې مږې پشان

مِثْلَ هَذِهِ عَلَى هَذَا فَيَحْرِقُكُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ [2]

ضررې ځناور د غه شان حرکت باندې غولوي او دې صورت کې ګويا کې شيطان تاسو سوځوي.

**توضيح:** د مږې شرارت ته وګورئ چې د نبي کريم ﷺ په توشکه باندې يې اور غوزار کړو او منډه يې کړل. د يو درهم هومره توشکه يې اوسوځوله. نبي کريم ﷺ د هغې نه وروسته خپل امت د حفاظتې تدبيرونو نه خبر کړل.

(دې باب کې دريم فصل نشته دی)

---

[1] رقم الحديث ۴۳۰۲ أخرجه ابوداود في السنن ۳۳۲/۵ رقم الحديث ۵۱۰۳ وأحمدفي المسند ۳۰۶/۳ والبغوي في شرح السنة ۳۹۲/۱۱ رقم الحديث ۳۰۶۰.

[2] رقم الحديث ۴۳۰۳ أخرجه ابوداود في السنن ۴۰۸/۵ رقم الحديث ۳۰۶۰.

# كتاب اللباس

## د لباس بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿یابنی آدم قد أنزلنا علیکم لباساً یواری سوأتکم وریشاً ولباس التقویٰ ذالك خیر﴾ (اعراف ۲۶)

وقال الله تعالیٰ: ﴿یا بنی آدم خذوا زینتکم عند كل مسجد﴾ (اعراف: ۳۱)

لباس مصدر په معنی د ملبوس دی، لکه څنګه چې کتاب د په معنی د مکتوب استعمالیږي. سمع د یسمع نه ده. د دې اصل مصدر لُبساً دی. لام باندې پیش دی. که په لام باندې زبر وویل شي نو هغه د التباس او د ګډوډ کیدلو په معنی کې دی. لباس د انساني ژوند یوه لازمي برخه ده. اسلام دا چې کامل او پوره بلکې د ژوند پوره ضابطه ده، ځکه د انساني ژوند د هر اړخ او د شعبې کفالت کوي. دا چې قرآن کې الله تعالی باحیا او مهذب انسانانو ته د باپرده لباس هدایت هغه وخت کړی دی چې کله شیطان انسانان د رسم و رواج او د عقیدې په لاره کې د لباس دشمنان کړي ؤو. تردې چې د عرب خلک به کله د عبادت لپاره بیت الله ته راتلل او طواف به یې کولو نو لباس به یې ویستلو او په لغړه به یې طواف کولو او په فخر به یې شعرونه ویل. ښځو به په خپل فرض باندې معمولي شان پټې کلکه کړه او د فخر په توګه به یې دا اشعار ویل:

الیوم یبدو بعضه او كله ❁ وما بدا منه فلا احله (ابن کثیر)

یعنې نن د بدن او د فرض څه برخه ښکاره ده یا پوره ښکاره ده. څومره چې ښکاره ده د دوزخ اور په دې باندې حرام دی. بیت الله د طواف نه بغیر د ژوند په کومه مرحله کې به چې هغوی غوښتل نو د لباس به د الف پشان پاک شول، لکه څنګه چې د اوسني جاهلیت شاعر نورو شاعرانو ته پیغور ورکړی دی.

یاد ہے جب جگر چڑھاتے تھے　　کیا الف ہو کے ہنہناتے تھے

د نن سبا جاهلیت د پخواني جاهلیت نه په دې میدان کې یو څو قدمه مخکې دی. او د فخر په توګه اعلان کوي چې مونږ اعتدلال پسند خلک یو. روشن خیاله یو، خو الله تعالی انسانانو ته د تهذیب او نرموالي تعلیم ورکوي. د الله تعالی ارشاد دی: ﴿یا بنی آدم قد انزلنا علیکم لباسا یواری سوأتکم و ریشا﴾ (سورة اعراف: ۲۶)

مطلب دا هم پرده ده او هم زیب و زینت دی. بیا د الله ارشاد دی:

﴿یا بنی آدم خذوا زینتکم عن كل مسجد﴾ (سورة اعراف. ۳۱)

يعنې د عبادت ځايونو کې او د هر عبادت دوران کې په خاص اهتمام سره لباس واغوندئ.

بيا د الله تعالی ارشاد دی: ﴿قل من حرم زينة الله التي أخرج لعباده﴾ (اعراف: ۳۲)

يعنې د کوم زيب و زينت حکم چې الله تعالی کړی دی. چا هغه حرام کړی دی؟

د دې آيتونو نه د اسلامي شرعی لباس د ترغيب ښه اندازه کېږي.

**د اسلامي لباس نقشه**: اسلام او اسلامي معاشره کې د لباس اجمالي نقشه او تصور داسې دی چې:

۱: نارينه او د زنانه په لباس کې فرق پکار دی.

۲: اندامونه د بدن پټولو کې د نارينه او زنانه په لباس کې فرق دی. لباس د نارينؤ د دې ښنګرو نه لاندې نه وي او د ښځو د دې د ښنګرو نه پاس نه وي.

۳: هر نارينه مسلمان اسلام د دې پابند کړی دی چې د هغې په لباس کې د غير مسلم قومونو د شعار سره څه خاص مشابهت نه وي.

۴: لباس د مسلمان دومره کولاؤ (ارت) پکار دی چې د بدن اعضاء په کې نه ښکاري يعنې داسې پاپرده وي چې د اغوستلو نه وروسته يې د جدا جدا اندامونو پته نه لږي.

حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله په خپل ملفوظاتو وغيره کې د لباس يو څو درجې بيان کړي دي. فرمايي چې د لباس څلور درجې دي.

۱: اولنئ درجه د ضرورت ده. دا هغه لباس دی چې د واجب په درجه کې دی. هغه دا دی چې د بدن مستوره اندام پټ کړي.

۲: درجه د اسائش. دا هغه لباس دی چې انسان د ګرمئ او يخنئ نه ساتي.

۳: درجه د ارائش او زيبائش. دا هغه درجه ده چې زيب و زينت پرې کېږي. قرآن کريم کې همدغې ته "ريشاً" ويلی شوی دی.

۴: درجه د نمائش يعنې چې په هغې کې تفاخر او رياکاري مقصود وي.

اولنئ دوه درجې خو بې ګرده او بې کلامه دي. د دريمې درجې لباس د تحديث نعمت په توګه مستحب دی. او د مسرت او لذت په توګه مباح دی او فخر او تکبر په توګه حرام دی. او د څلورمې درجې لباس مطلقاً حرام دی. كتاب اللباس کې هغه حديثونه ذکر دي چې د جائز او ناجائز لباس تعين په کې شوی دی. لباس د اغوستلو او ويستلو آداب او د کيفيت بيان دی. د دې په ضمن کې د لوښو متعلق هم څه تذکره ده.

# الفصل الاول

## يمني "حبره" څادر د نبي كريم ﷺ ډير خوښ ؤو

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن أنسٍ قَالَ: كَانَ أَحَبُّ الثِّيَابِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَهَا |
| حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې د نبي كريم ﷺ په ټولو جامو كې د اغوستلو لپاره د حبره څادر |
| الْحِبَرَةُ(مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| د ټولو نه زيات خوښ ؤو. |

**توضيح**: الحبرة: ح باندې زير دی.با باندې زبر دی. د عِنَبَةٌ په وزن باندې دی. دا يمن كې به جوړېدونكې يو خاص قِسم منقش څادر ؤو. چې هغه زمانه كې به د ټولو نه خاص څادرونو كې شمارل كېدو. ځېنو كې به سره او په ځېنو كې به شنه څادرې وې. تحبير هغه نقش و نګار ته وايي چې سليم الفطرت خلک هغه خوښوې. دا يې هم ليلکې دي چې د قطن او د سوتې تار په وجه محبوب ؤو. اوس پوښتنه دا ده چې رارواني حديث نمبر ۲۲ كې ام سلمه رضي الله عنها فرمايي چې د نبي كريم ﷺ په ټولو جامو كې قميص د ټولو نه زيات خوښ ؤو. دلته د يمنې څادر خبره ده. دا په ظاهره تعارض دی.د دې جواب دا دی چې د اچولو څادرونو په قِسمونو كې د يمن څادر ورته د ټولو نه زيات محبوب ؤو. او په اغوستونكو شيانو كې ورته ورته قميص د ټولو نه محبوب ؤو. هيڅ تعارض نشته دی. (مرقات۸/۱۲۳،۱۲۲)

## نبي كريم ﷺ د تنګ لستوڼي والا جبه واغوستله

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبِسَ جُبَّةً رُومِيَّةً |
| او د حضرت مغيره ابن شعبه رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي كريم ﷺ يو رومې جبه واغوستله |
| ضَيِّقَةَ الْكُمَّيْنِ(مُتَّفقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| چې لستوڼي يې تنګ ؤو. |

**توضيح**: سفر كې نبي كريم ﷺ د تنګ لستوڼو والا جبه اغوستې ده. او حضر كې يې د كولاو

---

([1])رقم الحديث ۴۳۰۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۷۶ رقم الحديث ۵۸۱۳ ومسلم في صحيحه ۱۶۴۸/۶ رقم الحديث (۳۲-۲۰۷۹)

([2])رقم الحديث ۴۳۰۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۷۳/۱ رقم الحديث ۳۶۳ ومسلم في ۲۲۹/۱ رقم الحديث (۷۷-۲۷۴)

لستوڼو والا استعمال کړي ده. دواړه جائز دي. د حالاتو مطابق چې کوم مناسب نه ؤو. هغه يې اغوستل. مظاهرحق والا د حديث ۲ د لاندې د حضرت عائشه رضي الله عنها يو غلط حديث نقل کړې دی. هغه حديث په باب مناقب اهل البيت مشكوة ص ۵۶۸ باندې دی. كتاب اللباس کې نشته دی. اګر که مصابيح کې دلته ذکر دی. طيبي هم نقل کړی دی. شيخ عبدالحق دې باندې پوره بحث کړی دی.

## د سفر آخرت په وخت کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم جامې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ | أَبِي | بُرْدَةَ | قَالَ: | أَخْرَجَتْ | إِلَيْنَا | عَائِشَةُ | كِسَاءً |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې يو ورځ حضرت عائشه رضي الله عنها مونږ ته د بنو دلو لپاره يو | | | | | | | |
| مُلَبَّدًا وَإِزَارًا غَلِيظًا فَقَالَتْ: قُبِضَ رُوحُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| پيوند شوی څادر او يو پيړ تهبند راويستلو او ويې فرمايل چې کله د نبي کريم صلى الله عليه وسلم روح مبارک قبض | | | | | | | |
| فِي | هٰذَيْنِ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | | |
| کړی شو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم په همغه دوه جامو کې ؤو. | | | | | | | |

**توضيح**: كساء ملبداً: د تلبيد نه دی. پيوند شوې څادر ته وايي. (مرقات۸/۱۲۸)

**ازارا غليظاً**: پيړ تهبند . د دې حديث نه امت ته دا تعليم ورکول کيږي چې د دنيا د زيب او زينت نه ځان ساتنه د ژوند برخه ده. نبي کريم صلى الله عليه وسلم چې د دنيا نه تللو وخت کې خپل امت ته کومه نمونه پريښې ده، نو امت له پکار دي چې د کم نه کم لباس په معامله کې د اسراف نه ځان وساتي. او د تقوی په بنياد نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ښه لباس اغوستلو عادت نه جوړ کړی. اګر که ځينې وخت د تحديث نعمت په توګه به يې ښه لباس اغوستی وي، نو داسې جائز دي. (مرقات۸/۱۲۸)

## د نبي کريم صلى الله عليه وسلم بستره

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ فِرَاشُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي يَنَامُ عَلَيْهِ | | | |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم تو شکه چې کوم باندې به نبي عليه السلام پرېوتلو | | | |
| أَدَمًا | حَشْوُهُ | لِيفٌ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| د څرمنې وه او هغه د مالوچو په ځای د کجورو د پوستکو نه ډک شوی ؤو. | | | |

---

([1])رقم الحديث ۴۳۰۶ اخرجه البخاري في ۲۱۲/۶ رقم الحديث ۳۱۰۸ ومسلم في ۱۶۴۸/۳ رقم الحديث (۳۴-۲۰۸۰)

([2])رقم الحديث ۴۳۰۷ اخرجه البخاري في صحيحه ۲۸۲/۱۱ رقم الحديث ۶۴۵۶ ومسلم في ۱۶۵۰/۳ رقم الحديث (۳۸-۲۰۸۲).

**توضیح** أدماً: ادیم او آدم هغه څرمن ته وایي چې رنګ کړی شوې وي.

**حشوة**: داخل او د باطن په معنی کې دی یعنې دننه ځای چې د څه ډک شوی ؤو هغه "لیف" یعنې د کجورو د پوستکول نه ډک شوی ؤو. دلته یوه پوښتنه ده. هغه دا چې په شمائل ترمذی کې د حضرت حفصه رضي الله عنها نه روایت دی چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د خورولو لپاره ټاټ ؤو. په ظاهره کې دواړو روایتونو کې تضاد دی. د دې جواب دا دی چې یو وخت کې ټاټ ؤو، نو په وخت کې هغه بل ؤو. دویم جواب دا دی چې دا د خورولو لپاره به د څرمنې توشکه وه او د کیناستلو لپاره به د کجورې پوستکي ؤو. (مرقات۸/۱۲۶)

## د نبي کریم صلی الله علیه وسلم بالخت

﴿۵﴾وَعَنْهَا قَالَتْ: كَانَ وِسَادُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي يَتَّكِئُ عَلَيْهِ

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم بالخ چې هغوی به پرې تکی وهلو د

مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهُ لِيفٌ. رَوَاهُ مُسلم[1]

څرمنې ؤو او هغه د کجورو د پوستکو نه ډک شوی ؤو.

**توضیح** دې حدیث نه د بالخ ثبوت او د هغې استعمال ثابتیږي.

## په سر باندې د څادر او د دسمال دلیل

﴿۶﴾وعنها قَالَت: بَينا نَحْنُ جُلُوسٌ فِي بَيْتِنَا فِي حَرِّ الظَّهِيرَةِ

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې د هجرت نه یو ورځ مخکې چې مونږ غرمه کې په خپل کور کې ناست

قَالَ قَائِلٌ لِأَبِي بَكْرٍ: هَذَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ؤو. او یو ویونکي ابوبکر رضي الله عنه ته وویل چې هغه وګوره نبي کریم صلی الله علیه وسلم د څادر ګوډونه په

مُقْبِلًا مُتَقَنِّعًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2]

خپل سر مبارک باندې اچولي دی او راروان دی.

**توضیح** قال قائل: یعنې ویونکې او بشارت ورکونکې وویل. (مرقات۸/۱۲۶)

**مقبلاً**: یعنې ستا اړخ ته راروان دی. (مرقات۸/۱۲۷)

---

(۱) رقم الحديث ۴۳۰۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۵۰ رقم الحديث (۳۷-۲۰۸۲) وابوداود في ۴/۳۸۱ رقم الحديث ۴۱۴۶.

(۲) رقم الحديث ۴۳۰۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۸۳ رقم الحديث ۵۸۰۷ وأبوداود في ۴/۳۴۳ رقم الحديث ۴۰۸۳

**متقنعاً:** د قناع نه دی. د څادر ګوټ ته وايي. ای مغطياً راسه بالقناع ای بطرف ردائه يعنې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څادر په ګوټ خپله مخ پټ کړی دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګرمۍ نه د بچ کېدو لپاره مخ پټ کړی ؤو. چې نن سبا د سعوديه د اوسيدونکو لپاره رومال او د څادر د استعمال لپاره زبردست دليل دی. يا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دښمن نه مخ د پټولو لپاره داسې کړي ؤو. چې د مجاهدينو لپاره دليل دی. د دواړو احتمال شته دی. (مرقات۱۲۸/۸)

## په کور کې د درېو نه زياتې بسترې ساتل منع دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ:فِرَاشٌ لِلرَّجُلِ |
| او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته وفرمايل چې يو بستره د نارينه لپاره |
| وَفِرَاشٌ لِامْرَأَتِهِ وَالثَّالِثُ للضيف وَالرَّابِع للشَّيْطَان . رَوَاهُ مُسلم[1] |
| او دويمه د هغې د ښځې لپاره او درېمه بستره د مېلمه لپاره او څلورمه بستره د شيطان لپاره وي. |

**توضيح:** فراش: بستره يو د څان لپاره، دويمه د ښځې لپاره، درېمه د مېلمه لپاره او څلورمه د شيطان لپاره وي. (مرقات۸/۱۲۸)

**لامرأته:** اصل قاعده خو همدغه ده چې خاوند او ښځه يو ځای اوده شي، خو کله د جدا اوده کېدلو ضروت کېږي، نو د ځکه د ښځې لپاره د جدا بسترې ضرورت پيښ شو. د مېلمه لپاره چې د کومې بسترې تذکره شوې ده د هغې نه دا خبره معلومېدلې شي چې که مېلمانه زيات راځي، نو د هغوی له خاطره بسترې زياتې ساتلی شي. اصل کې دلته فخر او مباهات او تکبر او غرور او د ځان ښودنې او دلوېې والې په توګه د ساتلو نه منع شوې ده. ګنې د ګنجائش جواز شته دی.

څلورمه د شيطان لپاره مطلب دا دی چې د فخر او تکبر لپاره ده. او دا چې دا ستره خالي وي نو ځکه په کې شيطان خبيث ځان ځای برابر کړي، ځکه يو مقوله ده چې جائے خالی رادیوی گیرد. (مرقات۱۴۸/۸)

## د تکبر په وجه پاجامه د ښنګرو نه لاندې ځوړندول منع دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:لَا يَنْظُرُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل الله به د قيامت په ورځ هغه کس ته د |
| إِلَى مَنْ جَرَّ إِزَاره بطرا .(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| رحمت په نظر نه ګوري چې څوک د غرور او د تکبر په وجه يعني پاجامه او تهبند د ښنګرو نه لاندې ځوړندوي. |

[1] رقم الحديث ۴۳۱۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۵۱/۳ رقم الحديث (۴۱-۲۰۸۴) وأبوداود في السنن ۲۷۹/۴ رقم الحديث ۴۱۴۲.

[2] رقم الحديث ۴۳۱۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۷/۱۰ رقم الحديث ۵۷۸۸ومسلم ۱۶۵۳/۳ رقم الحديث (۲۰۸۷-۴۸)

## پرتوګ یا پاجامه د ښنګرو نه لاندې ځوړندول حرام دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾وَعَنِ | ابْنِ | عُمَرَ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل | | | | | | | | |
| مَنْ | جَرَّ | ثَوْبَهُ | خُيَلَاءَ | لَمْ | يَنْظُرِ | اللهُ | | |
| کوم کس چې د غرور او تکبر په توګه د بدن جامې په زمکه راښکاږي نو د قیامت په ورځ به الله د | | | | | | | | |
| إِلَيْهِ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | | | |
| هغې اړخ ته د رحمت او د عنایت په نظر نه ګورې. | | | | | | | | |

**توضیح:** جرثوبه: د ثوب لفظ سره حکم کې عُموم پیدا شو. هغه که ازار بند وي یا پاجامه وي یا پتلون وي یا قمیص وي یا پرتوګ وې او یا تاو کړی شوی څادر وي.

خُيَلَاءَ: یعنې د تکبر په توګه داسې کوي. که په غلطئ سره لاندې لاړ شي او ژربې را اوچت کړي نو خیر دی، خو د دې قید مطلب دا نه دی چې که د یو پرتوګ ځوړند وي او ایې چې زه خو یې د تکبر په غرض نه کوم، نو هغې ته دې واضحه وي چې پرتوګ ځوړندول خپله تکبر او غرور دی. د صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په ټول جماعت کې صرف ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته رخصت ورکړی شوی ؤو. بل هیچاته هم اجازت نه دی ورکړی شوی. ګویا کې خیلاً قید اتفاقي دی. احترازي نه دی. مجبوري او شرعې عذر جدا شی دی. حقیقت کې د پرتوګ ځوړوندول او دا وضع او د دې کیفیت اجازت اسلام نه ورکوي. نن سبا د نارینؤ د ښنګرو د پټولو شوق دی او په ښځو کې خکارکولو شوق دی. بس مستوراتو فیصله کړې

ده چې هغوی مکشوفات شي. او مکشوفات نارینؤ فیصله کړې ده، چې هغوی مستورات شي.

*مرد مردانہ پن سے عاری ہیں جنس تبدیل ہوگئی ہوگی*

## پاجامه ځوړندونکې زمکه کې ننوتلو

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْهُ | قَالَ: | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | بَيْنَمَا | رَجُلٌ | يَجُرُّ إِزَارَهُ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کوم وخت کې یو کس د | | | | | | | | | | | |

---

(۱) رقم الحدیث ۴۳۱۲ أخرجه البخاري في صحیحه ۲۵۴/۱۰ رقم الحدیث ۵۷۸۴ ومسلم في ۱۶۵۲/۳ رقم الحدیث ۵۳۲۸.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ | الْخُيَلَاءِ | خُسِفَ | بِهِ | فَهُوَ | يَتَجَلْجَلُ | فِي الْأَرْضِ |
| غرور او تکبر په توګه خپل ازار بند یا پاجامه په زمکه راښکله نو هغه په زمکه کې ومنډلی شو. اوس | | | | | | |
| إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] | | | | | | |
| به همغه شان د قیامت تر ورځې خکته منډل کېږي. | | | | | | |

**توضیح**: جلجلة: او از سره حرکت کولو ته وایي. یعنې د یوې کندې نه بلې کندې ته حرکت کوي او روان دی. یا مطلب دا دی چې په ځنکه کې منډل کېږي. ای ینخسف فیها ویسوخ فیها ابداً. دا کس د قارون نه بغیر په مخکنې امتونو کې یو کس تیر شوی دی. (مرقات ۱۲۸/۸)

## پرتوګ د ښنګرو نه لاندې ځوړندول د دوزخ برخه ده

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ | | | | |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل از قسم یعنې ازار یعنې | | | | |
| مِنَ | الْإِزَارِ | فِي | النَّارِ. رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[2] |
| پاجامه وغیره کوم برخه چې د ښنګرو نه لاندې وي، هغه به دوزخ ته اچولی کېږي. | | | | |

**توضیح**: ما اسفل: یعنې کوم ازار بند یا پرتوګ یا پاجامه چې څومره د ښنګرو نه لاندې ځي د پښې هغه هومره برخه به دوزخ ته ځي. د دې مطلب دا نه دی چې کس به بهر وي او د پښو څه برخه دوزخ ته ځي. بلکې د دغه قسمه عبارتونو مقصد دا وي چې دا کس به جنهم ته ځي. داسې کس ته مسبل ازار هم وایي. چې د چا باره کې سخت وعیدونه وي. یو حدیث کې د دغه شان کس باره کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې لاړه او لمونځ هم بېرته وکړه او نوی اودس هم وکړه. د ښنګرو پټولو بیماري د پنجاب په عوامو او علماؤ کې ډېره زیات ده. د سرحد خلک او علماء په دې کې لږ اخته دي. د بلوچستان خلک په دې بیمارۍ کې ډېر زیات اخته دي. دغه شان د افغانستان عوام او خواص هم د دې مرض ښکار شوې دي. صوبه سندهـ خو د ټولو صوبو په خلکو مشتمله ده. دې کې هر قسمه خلک دي. د عربو خلک په اجتماعي توګه دې ګناه کې اخته دي. د مصر یو لویې عالم دې مرض کې اخته ؤو. هغه یو ورځ د کور نه دفتر ته تللو چې خپله پاجامه یې پښو کې ونخښتله او د

---

(۱) رقم الحدیث ۴۳۱۳ اخرجه البخاري في صحیحه ۵۱۵/۶ رقم الحدیث ۳۴۸۵ والنسائي ۲۰۶/۸ رقم الحدیث ۵۳۲۶.

(۲) رقم الحدیث ۴۳۱۴ أخرجه البخاري في صحیحه ۲۵۶/۱۰ رقم الحدیث ۵۷۸۷ والنسائي في ۲۰۷/۸ رقم الحدیث ۵۳۳۰.

زينې نه لاندې راوغورځېدلو او ژر مړ شو. (مرقات ۱۲۹/۸، ۱۲۸)

## اشتمال الصماء جائز نه ده

﴿۱۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ

او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع كړې ده چې يو كس

يَأْكُلَ الرَّجُلُ بِشِمَالِهِ أَوْ يمشي فِي نعل وَاحِد وَأَن يشْتَمل الصماء

په چپ لاس خوراك وكړي او يو پښه كې بوټ واچوي او لاړ شي او دا چې بدن باندې ټوټه داسې تاوه كړي

أَو يحتبي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ كَاشِفًا عَنْ فَرْجِهِ. رَوَاهُ مُسلم [1]

دواړه لاسونه يې د ټوټې دننه وي. يا بدن نه يو داسې ټوټه راتاوه كړي چې په گونډه كينې چې د هغې ستر كولاو شي.

**توضيح: فى نعل واحدة:** يعنې يو پښه كې يې بوټ شته دى او بله كې يې نشته دى، نو داسې گرځېدل منع دي، ځكه دې كې د گرځېدلو توازن هم خرابيږي او سړى پرې بې ډنگه هم ښكاري. يا چې دواړه بوټان وي يا دواړه پښې لغړې وي. (مرقات ۱۲۹/۸)

**ان يشتمل الصماء:** په عربو كې به د ځادر د اچولو طريقه داسې وه چې د سرنه تر د پښو پورې به يې بدن په ځادر كې راتاولو او كيناستل به، نو سړى د كاڼي پشان شو. هيڅ ځاى به خلاص پاتې نه وُو. د دې نه اسلام منع كړې ده. يو وجه خو دا ده چې نبي كريم ﷺ منع كړې ده. دا كافي ده. دويمه وجه دا ده چې داسې كولو سړى په لږ حركت سره غوځېږي. او چې غوځېږي نو كنين به ترېنه جوړ شي او غونډ به لېږي. چې د پوزې وغيره د ليدلو خطر هم په كې دى. دريمه وجه دا ده چې كه دا د جهاد ماحول وي او د دښمن خطر وي نو چې تر څو پورې په ځادر كې نغښتلى شوى كس بهر راوځي نو دښمن به وژلى وي. او د بچ كېدلو به هيڅ صورت نه وي، نو ځكه د **اشتمال الصماء** ممانعت راغلى دى. (مرقات ۱۳۰/۸، ۱۲۹)

**او يحتبي:** گونډه ماتولو سره كيناستلو ته احتباء وايي.

دې صورت كې د كيناستلو يو كيفيت دا وي چې مثلاً يو كس كوناټې په زمكه كېږدي او پونډۍ ودروي او دواړه لاسونه د گونډو نه څه لاندې د هغې نه راچاپير كړي او كينې، نو دا صورت ډېر قبيح او حرام دى، ځكه دې كې ټول بدن لغړ شي، نو دې كې بالكل د ستر عورت نشته دى. د احتباء دويم صورت دا وي چې سړى دغه شان په كناټو باندې كينې خو يو ټوټه د ملا او پونډو نه چاپيره وتړي نو دې صورت كې د بدن شاتنۍ برخه د ستر كولاو شي، نو ځكه منع كړى شوى دى، خو كه په بدن باندې جدا ټوټه وي نو بيا د احتباء اجازت شته دى، لكه جلسو او محفلونو كې ځينې حضرات

---

[1] رقم الحديث ۴۳۱۵ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۶۱/۳ رقم الحديث (۷۰-۲۰۹۹) ومالك في الموطا ۹۲۲/۲ رقم الحديث ۵

د تنګولو لپاره ګونډه ماته کړي او کيني او تقرير اوري. (مرقات۸/۱۳۰)

## د نارينؤ لپاره ريښم استعمالول حرام دی

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنْ عُمَرَ وَأَنَسٍ وَابْنِ الزُّبَيْرِ وَأَبِي أُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ |
| او حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت انس رضي الله عنه، حضرت ابن زبير رضي الله عنه او حضرت ابو امامه رضي الله عنه |
| عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ |
| څلور واړه صحابه کرام رضي الله عنهم د نبي عليه السلام نه نقل کوي چې نبي عليه السلام و فرمايل چې کوم کس په |
| لَبِسَ الْحَرِيرَ فِي الدُّنْيَا لَمْ يَلْبَسْهُ فِي الْآخِرَةِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| دنيا کې غير مشروع ريښم واغوستلو. هغه به په آخرت کې ريښم نه اغوندي. |

**توضيح** فى الاٰخرة: د نارينؤ لپاره د ريښمو جامې اغوستل جائز نه دي. د ښځو لپاره جائز دي. البته د څلور ګوتو په اندازه د ريشم پټۍ د جامو په غاړو وغيره کې نارينه هم استعمالولی شي. د بحث لاندې حديث کې دي کوم نارينه په دنيا کې ريښم استعمالوي نو آخرت کې به هغې ته ريښم نه ملاويږي. (مرقات۸/۱۳۰)

**پوښتنه**: ريښم خو په جنت کې ملاويږي نو آيا دا کس کافر شو چې جنت ته به کله هم نه ځي او د ريښم نه به محروم وي؟

**جواب**: که يو کس د نارينؤ لپاره د ريښمو د حرمت عقيده نه لري بلکې دا حرام حلال ګڼي نو هغه کافر کيږي. جنت ته به نه ځي، خو که يو کس د حرمت انکار نه کوي او اغوندي يې، نو هغې ته په اول ځل جنت ته د دخول وخت کې ريښم نه اچولی کيږي. بلکې دوزخ کې به سزه خوري او ريښم به استعمالوي. دريم جواب دا دی چې که دا کس جنت ته داخل شي خو د سزه په توګه به د ريښم نه داسې محرومه وي چې د دې په زړه کې به د ريښمو غوتنه نه وي. چې غوښتنه نشته نو مطالبه نشته، چې مطالبه نه وي نو ريښم به نه ورکړی کيږي، نو محرومه به شي. دا حديث د تغليظ او تشديد او د زجر او توبيخ باندې محمول دی. (مرقات۸/۱۳۰)

## بدنصيبه د آخرت په دنيا کې ريښم اغوندي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې دې کې هيڅ شک نشته |
| يَلْبَسُ الْحَرِيرَ فِي الدُّنْيَا مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| دی چې دنيا کې هغه کس ريښم اغوندي چې د هغې لپاره آخرت کې برخه نه وي. |

---

(1) رقم الحديث ۴۳۱۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۸۴رقم الحديث ۵۸۳۲ عن انس ۵۸۳۳ وعن ابن الزبير ۵۸۳۴ وعن عمر.

(2) رقم الحديث ۴۳۱۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۲۸۴رقم الحديث ۵۸۳۲ عن انس ۵۸۳۳ وعن ابن الزبير ۵۸۳۴ وعن عمر.

**توضیح**: لاخلاق: برخه او نصیب ته خلاق ویل شوي دي.

## د ریښمو ټوټه باندې کیناستل هم منع دي

﴿۱۵﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: نَهَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَشْرَبَ فِي آنِيَةِ
او حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ د دې نه منع کړي یو چې مونږ د
الْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ وَأَنْ نَأْكُلَ فِيهَا وَعَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ
سرو او سپینو زرو په لوښو کې وڅښو او دې کې وخورو. او نبي کریم ﷺ د نري ریښم او د پیړو
وَالدِّيبَاجِ وَأَنْ نَجْلِسَ عَلَيْهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]
ریښمو د یو قِسم ریښمې جامه اغوستلو او هغې باندې د کیناستلو نه منع کړې ده.

**توضیح**: الدیباج: دا د ریښمو یو قِسم دی. څه پیړ ریښمو لپاره د دیباج لفظ استعمال شوی دی.

**وان نجلس علیه**: د ریشم لباس د نارینۀ لپاره د ټولو فقهاؤ په نزد حرام دی. او که د ریښمو څادر وغیره لاندې غوړولی کیږي نو دې کې اختلاف دی. صاحبین فرمایي چې دې باندې ناسته هم حرامه ده، لکه څنګه چې د دې اغوستل حرام دي، خو امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي چې کیناستل پرې حرام نه بلکې مکروه دي. او دا حدیث په کراهت باندې محمول دی.

فتاوی قاضي خان کې لیکلي دي چې څنګه د ریښمو استعمال د نارینۀ لپاره حرم دی دغه شان وړو هلکانو لپاره هم ناجائز دی او وراغوستونکي به ګناه ګاران وي. (مرقات ۱۳۱/۸)

## ریښم ښځو ته واغوندئ

﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم حُلَّةُ
او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې یو نري ریښمې جوړه چې تهبند او
سِيَرَاءَ فَبَعَثَ بِهَا إِلَيَّ
څادر باندې مشتمله وه د هدیې په توګه ورته پیش کړی شوه، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ماته راولیږله او ما هغه
فَلَبِسْتُهَا فَعَرَفْتُ الْغَضَبَ فِي وَجْهِهِ
واغوستـ[illegible] ما ولیدل چې هغه جوړه زما بدن باندې لیدلو سره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په مخ مبارک باندې د غصې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | إِنِّي | لَمْ | أَبْعَثْ | بِهَا | إِلَيْكَ | لِتَلْبَسَهَا | |

پیدا شو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ما ته وفرمایل چې ما دا جوړه تا ته د دې لپاره نه وه درلیږلې چې ته یې واغوندې بلکې ما

إِنَّمَا بَعَثْتُ بِهَا إِلَيْكَ لِتُشَقِّقَهَا خُمُراً بَيْنَ النساءِ [1]

دا جوړه تا ته ځکه درلیږلې وه چې ته وا وشلوه او لوپټې ترینه جوړې کړه او دا لوپټې په ښځو تقسیم کړه.

**توضیح** سیرآء: سین باندې کسره ده. یا باندې زبر دی او را باندې هم زبر دی. د هغې نه وروسته الف باندې مد دی. سور ریښم ته وایي. همدغه وجه ده چې دې باندې د دیباج او د سندس اطلاق هم شوی دی.

**خمراً:** دا د خمار جمع ده څادر او لوپټې ته وایي. (مرقات ۸/۱۳۲)

## ناریتۀ لپاره د ریښم د څلورو ګوتو پټۍ جائز ده

﴿۱۷﴾ وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ

او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ریښمو د اغوستلو نه منع کړې ده بغیر د

إِلَّا هَكَذَا وَرَفَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إصبعيه:

دومره نه یعنې د دوه ګوتو برابر او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ممانعت بیانولو سره ذکر شوی مقدار د ظاهرولو لپاره خپله مینځنۍ

الْوُسْطَى والسبابة وضمهما (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [2]

او د شهادت ګوته اوچته کړه یعنې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دواړه ګوتې یو ځای کړې او وې ښودلې او وې ویل چې دومره

وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: أَنَّهُ

یعنې د دوه ګوتو برابر د ریښمو پټه که په لباس کې وي نو مباح ده. او د مسلم په یو روایت کې دي چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

خَطَبَ بِالْجَابِيَةِ فَقَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ

یو ښار جابیه کې د خطبې دوران کې وفرمایل چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ریښمي جامې اغوستلو

إِلَّا مَوْضِعَ إِصْبَعَيْنِ أَوْ ثَلَاثٍ أَوْ أَرْبَعٍ [3]

نه منع کړې ده. بغیر د دوه یا درې یا څلورو ګوتو نه.

**توضیح** جابیه: د شام د یو ښار نوم دی. د بیت المقدس د فتحې په موقع حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تشریف

---

[1] رقم الحديث ۴۳۲۲ أخرجه الترمذي في صحيحه ۲۲۹/۵ رقم الحديث ۲۶۱۴ ومسلم في ۱۶۴۴ رقم الحديث (۱۰۷-۲۰۷۱)

[2] رقم الحديث ۴۳۲۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۸۴/۱۰ رقم الحديث ۵۸۲۹ ومسلم في ۱۶۴۲/۳ رقم الحديث (۱۲-۲۰۶۹)

[3] رقم الحديث ۴۳۲۴ أخرجه في صحيحه ۱۶۴۳/۳ رقم الحديث (۱۵-۲۰۶۹) وأبوداود في السنن ۳۰۲۱/۴ رقم الحديث ۴۰۴۲

وړې ؤو. هلته جابيه کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خطبه ورکړه. د نارينؤ لپاره د ريښم د جواز ابتداء د دوه ګوتو په مقدار نه وشوه او څلور ګوتې د هغې انتهاء ده، نور حرام دي. دا خبره دې په ذهن کې وي چې د څلورو ګوتو په مقدار ريښم استعمال د نورو جامو په ضمن کې جائز دي. مستقلاً نه. (مرقات ۱۳۳/۸)

## د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُبه

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَن أسماءَ بنت أبي بكر: أَنَّهَا أَخْرَجَتْ جُبَّةَ طَيَالِسَةٍ كِسْرَوَانِيَّةٍ |
| او د حضرت اسماء بنت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغې د طيلسان کسرواني جبه راويستله. (د يو خاص |
| لَهَا لِبْنَةُ ديباجٍ وفُرجَيْها مكفوفَين بالديباج |
| قسم تور څادر) د هغې په ګريوان په دواړو طرفونو باندې د ريښمو ټوټه ګنډلی شوې وه. او د هغې |
| وَقَالَت: هَٰذِه جبَّةُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| به دواړو نستونړو باندې هم. بيا هغې وفرمايل چې دا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جبه ده چې د |
| كَانَتْ عِنْدَ عَائِشَةَ فَلَمَّا قُبِضَتْ قَبَضْتُهَا |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره وه او کله چې هغه مړه شوه نو (د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ميراث چې زما خوروه) زما په قبضه |
| وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُهَا فَنَحْنُ نَغْسِلُهَا |
| کې راغله. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا جبه (کله کله) اغوستله. مونږ به دا د مريضانو لپاره وينځو (يعنې د دې |
| لِلْمَرضى نستشفي بِهَا. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| وينځل شوې اوبه مريضانو باندې څښنو) او د دې په ذريعه هغوی ته شفاء حاصلیږي. |

**توضيح**: **طيالسة**: دا د طيلسان جمع ده او طيلسان اصل کې تالسان ؤو. عجمي لفظ دی. عربو کې طيلسان شو. طيلسان يو تور رنګی څادر ؤو. چې او وړئ نه جوړيدلو. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جبه د همغې نه جوړه شوې وه، نو ځکه د دې اړخ ته نسبت وکړی شو. د کلام نه مقصود دا ويل دي چې "جبة صوف سوداء" يعنې د وړئ نه جوړه شوې توره جبه وه. طيلسان د دې تعبير دی. (مرقات ۱۳۳/۸)

**كسروانية**: د فارس بادشاه ته به يې کسری ويلو. دا جبه دا چې د هغې د شهرته نه مشهوره شوې وه، نو ځکه هغې ته منسوب وه. يعنې د کسری د ستايل چوغه وه، لکه څنګه چې وايي چې جناح کيمپ، لياقت علی کيمپ، کسرواني جبه. (مرقات ۱۳۴/۸، ۱۳۳)

**لبنة**: لام باندې زبر دی. با ساکن ده، نون باندې زبر دی. د ريښمو هغه ټوټې ته وايي چې د قميص يا جبې د پاسه

---

(۱) رقم الحديث ۴۳۲۵ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۴۱/۳ رقم الحديث (۱۰-۲۰۶۹) وأبوداود في ۳۲۸/۴ رقم الحديث ۴۰۲۵

په لړولی کېدله. ګویا کې د ښایست لپاره به د جیب د پاسه د ریښمو یو پټئ لړولی کېدله. (مرقات ۱۳۴/۸)

**وفرجیها**: فا باند ضمه ده. فتحه هم استعمالېږي. **ای شقیها** د جبې مخې ته د سینې اړخ فراخوالی وي. دې ته ګرېوان وایي. ځینې ملکونو کې شاته هم یو ګریوان وي. چې د شا ګرېوان وي. دې حدیث کې د فرجیها نه مراد همدغه دوه شقه دي. (مرقات ۱۳۳/۸)

**مکفوفین: ای خیط فاها بالدیباج والکفة بالضم عطف الثوب.**

شیخ عبد الحق په اشعة اللمعات کې لیکي چې کفة د یو شي غاړې ته وایي. که کاف باندې پیش وی نو دا مستطیل اوږد او د پلن شیانو لپاره راځي، لکه ګرېوان وغیره. او که کفة کې کاف باندې زیر وي نو مدور او په ګول شیانو کې استعمالېږي، لکه څنګه چې د تلی چاپړی ته کفة وایي. د دې حدیث مطلب دا شو چې د دې جبه په دواړو ګرېوانو باندې د سنجاف دیباج بوټي ټک وهلی شوې وو لکه څنګه چې نن سبا جامو باندې بوټي وغیره کېږي. [اشعة اللمعات ۵۷۷/۳]

حضرت اسماء بنت ابی بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته دا جبه د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه حاصله شوې وه. او فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دا اغوستله. او مونږه یې د برکت په توګه د مریضانو د شفاء لپاره دا وینځو. او د دې اوبه په هغوی څښو. د دې نه تبرک به اثار الصالحین ثابتېږي، خو شرط دا دی چې دواړو اړخ ته خلک صالح وي چې عقیده خرابه نه شي.

## ریښم د عذر په بناء استعمالول جائز دی

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او |
| وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ فِي لبس الْحَرِير لحكة بهما |
| حضرت عبد الرحمن ابن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د ریښمو د اغوستلو اجازت ورکړی وُو، ځکه په هغوی خارښ وُو |
| وَفِي رِوَايَة لمُسلم قَالَ: إِنَّهُمَا شكوا |
| (بخاری او مسلم) او د مسلم په روایت کې دا دي چې انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان وکړو چې د دې دواړو (زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او |
| من الْقمل فَرخص لَهما فِي قمص الْحَرِير (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| عبدالرحمن) د سپګو د زیاتېدلو شکایت وکړو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته د ریښمو د اغوستلو اجازت وکړو. |

**توضیح**: **الحکة**: خارښ ته وایي. د ریښم استعمالول د شرعي ضرورت او عذر په بناء جائز دي، نو د بدن د

---

[1] رقم الحديث ۴۳۲۶ اخرجه البخاري في صحيحه ۲۹۵/۱۰ رقم الحديث ۵۸۳۹ ومسلم في ۱۶۴۶/۳ رقم الحديث (۲۵-۲۰۷۶)

خربښ لپاره یا د جهاد په میدان کې د بچ کېدو لپاره یا د سپکو د ختمولو لپاره د ضرورت په قدر جائز دی. ریښم د اصل په اعتبار سره ګرم او خوشحاله دی، نو ځکه پرې خاربښ او سپګې ختمېږي. (مرقات ۸/۱۳۵)

## کسم او سور رنګ باندې رنګ شوې جامه د نارینو لپاره منع ده

| | |
|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى ثَوْبَيْنِ | او حضرت عبد الله ابن عمرو ابن عاص رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم زه په سور رنګ باندې |
| مُعَصْفَرَيْنِ فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ من ثِيَاب الْكُفَّار | رنګ شوُو جامو کې وليدلم نو ويې فرمايل چې "دا د کافرانو لباس دی (چې نه هغوی په حلال او حرام کې فرق کوي او نه |
| فَلَا تلبسها وَفِي رِوَايَةٍ: | د نارينه او د زنانه په لباس کې فرق کوي) لهذا دا مه اغونده. او يو بل روايت کې دا سې دي چې ما |
| قلت: أغسلهما؟ قَالَ: بل احرقها . رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَائِشَةَ: | عرض وکړو چې "آيا دا ؤوينځم"؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې نا بلکې دا او سوزوه". او د |
| خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ غَدَاةٍ فِي بَابِ مَنَاقِبِ | حضرت عائشه رضي الله عنها روايت خرج النبي صلی الله علیه وسلم ذات غداة الخ کې به ان شاء الله مونږ مناقب اهل |
| أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم [1] | بيت نبوی صلی الله علیه وسلم په باب کې نقل کوؤ. |

**توضيح:** کسم د يو سور رنګ نوم دی چې د يو بوټي نه حاصلېږي. د نارينؤ لپاره منع دی. احناف دا او دغه شان هر قسمه سور رنګې توتې د نارينؤ لپاره مکروه تحريمي ګڼي. اګر که د فقهاؤ تور اقوال هم شته دی.

**احرقها:** د دې نه مراد ضايع کول دي. چاته يې تحفه کړه يا يې په بله کومه طريقه ضايع کړه. که هيڅ نه وي نو وې سوځوه خو د ځان سره يې مه وړه. (مرقات ۸/۱۳۶)

**و سنذکر حديث عائشة الخ:** د دې عبارت نه په واضحه توګه معلومه شوه چې په ابتداء صاحب مشکوة دا حديث ذکر کړی نه دی، خو مظاهر حق کې شته دی. مصابيح کې هم دی. ما په توضيحات کې نه دی ليکلی، نو ځکه مې د حديث نمبر هم بدل ليکلی دی. (مرقات ۸/۱۳۷)

---

[1] رقم الحديث ۴۳۲۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۴۷ رقم الحديث (۲۷-۲۰۷۷) والنسائي في السنن ۸/۲۰۳ رقم الحديث ۵۳۱۶.

# الفصل الثاني

## د قميص فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾عَن أم سَلمَة قَالَتْ: كَانَ أَحَبُّ الثِّيَابِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په ټولو ټوټو کې قميص د ټولو نه |
| الْقَمِيصَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد [۱] |
| زياته خوښه وه. (ترمذی ابوداؤد) |

**توضيح: القميص**: څادر د اوږو نه هر وخت غورزيږي راغورزيږي. او د مقابلې په وخت کې يا د کار په وخت کې د دې سنبالول ډير مشکل وي، نو ځکه قميص يې افضل او خوښ ګڼلی دی. چې بيشماره فايدې په کې دي. د عربو خلک چې نن سبا کوم لباس استعمالوي هغه يو قيد خانه ده. ددوی په اوږد توپ کې نه سړي منډه وهلې شي او نه په اوچت ځای ختلی شي. نه راکوزيدلی شي نو د دښمن مقابله دې کې څنګه کيدی شي. د حرمينو شريفينو امام عبدالله بن سبيل المحترم يو ځل درس کې وفرمايل چې د دنيا په لباسونو کې د ټولو نه د سهولت والا لباس د پيښنو روالا دی. پرتوګ او قميص هر لحاظ سره ارام کونکی او ښايسته لباس دی.

## د قميص حد

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾وَعَن أسماءَ بنت يزِيد قَالَتْ: كَانَ كُمُّ قَمِيصِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى |
| او حضرت اسماء بنت يزيد رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرتۍ لستوڼي به تر د |
| الرُّصْغِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ [۲] |
| پينځو پورې (هم) ؤو. (روايت کړی دی ترمذی) |

**توضيح: الرضع**: د لاس مروند ته او پينځو ته رضع وايي. کله به يې تر د ګوتو پورې هم اوږد والی ؤو. معلومه شوه چې مسنون قميص هغه دی چې د هغې لستوڼې د ګوتو نه مخې نه وي او لمن د ښنګرو نه لاندې نه وي. (مرقات ۱۳۸/۸)

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَبِسَ قَمِيصًا |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله قرتۍ اغوستله نو د ښي اړخ نه |

---

(۱)رقم الحديث ۴۳۲۸ أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۲/۴ رقم الحديث ۴۰۲۵ والترمذي في ۲۰۸/۴ رقم الحديث ۱۷۶۲

(۲)رقم الحديث ۴۳۲۹ أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۳/۴ رقم الحديث ۴۰۲۵ والترمذي في ۲۰۹/۴ رقم الحديث ۱۷۶۵.

| |
|---|
| بَدَأَ بميامنه. رَوَاهُ التِّرمِذِيّ [1] |
| به يې شروع كوه. (ترمذى) |

**توضيح**: **ميامن**: د ميمنة جمع ده. ښي اړخ ته وايي. مثلاً ښي لستوڼى دي اول واغوستلى شي، ښي پښه کې مخکې والى وشى.

۱۰ ربيع الاول ۱٤۱۸هـ

## په هره جامه کې اسبال منع دى

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې "د |
| يَقُولُ: إِزْرَةُ الْمُؤْمِنِ إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيْهِ لَا جُنَاحَ عَلَيْهِ فِيمَا بَيْنَهُ |
| يو تهبند او پاجامه د تړلو نه بهتر صورت خو دا دى چې هغه كس د نيمو پونډو پورې وي او د نيمو |
| وَبَيْنَ الْكَعْبَيْنِ مَا أَسْفَلَ |
| پونډو نه د ښنګرو پورې (په مينځ) کې کېدلو کې هيڅ باک نه کوي، خو د دې (ښنګرې) نه چې لاندې کومه |
| مِنْ ذَلِكَ فَفِي النَّارِ قَالَ |
| برخه (ځوړنده) وي هغه به د دوزخ اور ته ځي. حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې |
| ذَلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَلَا يَنْظُرُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا الفاظ درې ځله تكرار كړله او (بيا يې وفرمايل چې) الله به د قيامت په ورځ هغه كس ته |
| إِلَى مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَرًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْنُ مَاجَه [2] |
| د رحمت او د عنايت په نظر نه ګوري چې په غرور او تكبر سره تهبند او پاجامه د ښنګرو نه لاندې ځوړندوي". |

**توضيح**: **ازرة المؤمن**: دا د ازار جمع ده لنګ ته وايي. تر د نيمې پونډۍ پورې افضل دى. تر د ښنګرو پورې جائز دى. د ښنګرو نه لاندې ناجائز دى. د دې حديث نه د اسبال (زوړندول) عموم معلومېږي چې د لباس کې د شرعي حد نه تجازو چې نوم يې اسبال دى دا صرف پاجامه کې نه بلکې لنګۍ، پاجامه، د قميص لنستوڼي، د هغې د لمن عمامه، او څادر ټول په اسبال کې وي. پاجامه دې

---

(1) رقم الحديث ۴۳۳۰ أخرجه الترمذي في السنن ۳۷۹/۴ رقم الحديث ۴۱۴۱ والترمذي في ۲۰۹/۴ رقم الحديث ۱۷۶۶.

(2) رقم الحديث ۴۳۳۱ أخرجه أبوداود في السنن ۳۵۳/۴ رقم الحديث ۴۰۹۳ وابن ماجه في ۱۱۸۳/۳ رقم الحديث ۳۵۷۳

د ښنګرو نه لاندې نه وي ګڼې اسبال به وي. د قميص لمن دې هم لاندې نه وي او چې د ځلور ګوتو نه کم نه وي ګڼې اسبال به وي. او که پاجامه بې خيالۍ کې لاندې لاړه نو ژر يې اوچتول پکار دي، ګناه به نه وي. او د که د تکبر په توګه راځوړند کړې شي نو حرام دي.

**لم ينظر الله**: يعني الله به د هغې نه ناراضه شي او د قيامت کې به ورته الله د رحمت په نظر نه ګوري. ځينې خلک د ښنګرو نه لاندې پرتوګ يا پاجامه ځوړندوي او وايي چې مونږ تکبر نه کوو. حال دا چې دا خپله تکبر دی. صحابه کرامو کې هيچا ته هم اجازت نه ؤو ورکړې شوې، نو د امت د عامه خلکو څه حيثيت دی. صرف صديق يې د مجبورۍ په وجه معذور ګڼلی دی. هغه هم ګاه ګاه. (مرقات ۸/۱۴۰)
حديث نمبر ۶۰ کې پوره تفصيل را روان دی.

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾وَعَنْ سَالِم عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سالم د خپل پلار (يعني حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه) نه او هغه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي |
| قَالَ: الْإِسْبَالُ فِي الْإِزَارِ وَالْقَمِيصِ وَالْعِمَامَةِ |
| چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل "اسبال يعني ځوړندول، ازار، قرتۍ او عمامه کې دی. کوم چې |
| مَنْ جَرَّ مِنْهَا شَيْئًا خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللهُ إِلَيْهِ يَوْمَ |
| د دې جامو نه څه راځوړند کې او په تکبرا و غرور يې راښکاږي نو د قيامت په ورځ به الله د هغې |
| الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| اړخ ته (د رحمت په نظر) نه ګوري. (ابو داؤد، نسائی، ابن ماجه) |

## د صحابه کرامو خولۍ به ځنګه وي

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ قَالَ: كَانَ كِمَامُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو کبشه رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ده صحابه کرامو رضي الله عنهم خولۍ |
| بُطْحًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَر[2] |
| داسې وې چې سرونو پسې به نښتي وې. ترمذی دا روايت نقل کړی او ويلي يې دي چې دا حديث منکر دی. |

**توضيح**: **كِمَام**: دا جمع ده **كُمَّةٌ**، لکه ځنګه چې **قِبَاب قُبَّةٌ** جمع ده. دا د يو ګول قسم خولۍ نوم دی. چې د پټکې د لاندې به استعماليدله.

---

[1] رقم الحديث ۴۳۳۲ اخرجه ابوداود في السنن ۳۲۵/۴ رقم الحديث ۴۰۸۵ والنسائي في ۲۰۸/۸ رقم الحديث ۵۳۳۴ .
[2] رقم الحديث ۴۳۳۳ اخرجه الترمذي في السنن ۲۱۶/۴ رقم الحديث ۱۷۸۲

بُطحاً: ب باندې پیش دی. او طا ساکن دی. د دې مفرد بطحاء دی. هوراې ګاړجنې ځمکې ته بطحاء وايي. دلته داسې خولۍ مراد ده چې د سره سره نخښتې وي او په دې ښوره شوې وي. د حديث مطلب دا دی چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم به چې کومې خولۍ استعمالولې هغه به ګول او په سرونو پسې به نخښتې وي. تنګې او اوچتې به نه وي، لکه څنګه ترکۍ، ایرانۍ او د مصر خولۍ ګانې دي. د دې حدیث نه د جناح کیسپ او لیاقت علی کیمپ او ځینې د قبه پشان د کلف والا د ټوټې د خولۍ ګانو حوصله شکنی کېږي. دا جدا خبره ده چې دا حدیث منکر دی. ځینې حضرات د کمام جمع د کم د خولۍ ګانو په ځای د لستوڼې مراد اخستې دي. او د بطح نه يې فرامه مراد اخستی دی. مطلب دا دی چې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم لستوڼې به فراخه ؤو. اولنی مفهوم ډېر زيات راجح دی. صحابه کرامو زيات تر پټکي استعمال کړي دي. د پټکې نه بغير يې خولۍ لږه استعمال کړې ده. (مرقات ۱۴۱/۸)

## د ښځو لباس د نارينؤ د لباس نه زيات کولاؤ پکار دی

﴿۴۷﴾ وَعَن أُم سَلمَة قَالَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ ذَكَرَ الْإِزَارَ:
او د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت دی چې کوم وخت نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ازار بند (لنګ او پاجامه) حکم
فَالْمَرْأَةُ يَا رَسُولَ اللهِ؟
بيانولو (چې د دې ځوړندول منع دي) نو هغې عرض وکړو چې "يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" او د ښځو باره کې څه حکم دی؟
قَالَ: تُرْخِي شِبْرًا
نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ښځه دې خپل لنګ يا پاجامه يو لويشت لاندې ځوړندولی شي.
فَقَالَتْ: إِذًا تَنْكَشِفُ
حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا عرض وکړو چې "دې صورت کې به هم څه برخه ښکاره وي يعني که پونډۍ ډېرې اوږدې وي
عَنْهَا قَالَ: فَذِرَاعًا
وهغه... يا نيمو پونډو نه يو لويشت او تر لاندې پورې خپله پاجامه ځوړنده کړې نو بيا هم د هغې د ستر د ښکاره کېدو به احتمال وي.
لَا تَزِيدُ عَلَيْهِ.
نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل "دې صورت کې هغه خپله پاجامه وغيره دومره لاندې ځوړندولی شي چې هغه تر ځکې پورې ورسيږي.
رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُد
ي د هغې پښې پټې شي او که د لويشت نه زيات وي يا د يو ګز برابر د هغې نه وروسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د حد نه زيات د ځوړندولو

وَالنَّسَائِيّ وَابْن مَاجَه[1]

مبالغت د تاکید د بیانولو لپاره بیان کړو چې هیڅ یوه ښځه دې دیو ګز نه زیات لاندې نه خوړندوي. (ملک. ابوداؤد. نسائي.

وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ

ابن ماجه) او ترمذي او د نسائي په یو روایت کې چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دی، داسې

فَقَالَتْ: إِذًا تَنْكَشِفُ أَقْدَامُهُنَّ قَالَ:

دي چې حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا وویل چې دې صورت کې پښې کلاوې شي. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَيُرْخِينَ ذِرَاعًا لَا يزدن عَلَيْهِ[2]

وفرمایل چې هغه دې یو لاس نور هم لاندې ځوړندې کړي خو د دې نه دې پر دې نه ځوړندوي".

**توضیح**: د دې حدیث نه معلومه شوه چې د ښځو لباس د نارینو په نسبت فراخه او سست او اوږد او پلن وي، خو نن سبا ښځو ته فاسقې معاشرې د تنګ او د نیم لغړ لباس واغوستلو او د هغوی عظمت یې تار تار کړو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ازار باره کې وفرمایل چې د هغه ازار دې چې د ښځې قدم او پښې په کې ښکاره نه شي. د دې نه زیات په زمکه باندې راښکلی شوی دي. (مرقات ۸/۱۴۲)

اکبر اله آبادي د نوي دور د بې پردګۍ متلعق ویلي دي چې

بے پردہ کل جو آئیں نظر چند بیبیاں — اکبر زمین میں غیرت قومی سے گڑ گیا

پوچھا جو ان سے آپ کا پردہ کیا ہوا — کہنے لگیں کہ عقل پہ مردوں کی پڑ گیا

## د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قرطۍ ګریوان

﴿۲۸﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَهْطٍ مِنْ مُزَيْنَةَ

او حضرت معاویه بن قرة د خپل پلار نه نقل کوي چې هغې ووېل یو ورځ ما د مزینه قوم د یو جماعت

فَبَايَعُوهُ وَإِنَّهُ لَمُطْلَقُ

سره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر شو، نو د هغه جماعت خلکو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په اسلام بیعت وکړو.

الْأَزْرَارِ فَأَدْخَلْتُ يَدِي

هغه وخت نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خپلې قمیص ګنډې کولاو کړې وې. ما موقع غنیمت وګڼله او د برکت د حصول او

---

[1] رقم الحديث ۴۳۳۴ أخرجه ابوداود في السنن ۳۶۴/۴ رقم الحديث ۴۱۷ والترمذي في ۱۹۵/۴ رقم الحديث ۱۷۳۱

[2] رقم الحديث ۴۳۳۵ أخرجه ابوداود في السنن ۳۶۵/۴ رقم الحديث ۴۱۱۹ والترمذي في ۱۹۵/۴ رقم الحديث ۱۷۳۱

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي | جَيْبِ | قَمِيصِهِ | فَمَسِسْتُ | الْخَاتَمِ. | رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُد [1] |

د سعادت لپاره خپل لاس د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د قمیص په گرېوان کې وا چولو او په مهر نبوت مې لاس رانښکلو.

**توضيح**: الازرار: دا د زر جمع ده. د تڼۍ نه جوړې شوې تڼۍ ته وايي. يو شاعر وايي :

لا تعجبوا من بلا غلالته ❁ قدزر ازراره على القمر

**ترجمه**: د محبوب د بنين په شليدلو باندې تعجب مه کوه ځکه د دې تڼۍ په سپوږمۍ باندې تړلی شوې دي. يعنې بنين د ټسر او د کتان د ټوټې نه جوړ شوی دی چې د سپوږمۍ په رڼا سره شلېږي. د محبوب بدن د سپوږمۍ دی، نو ځکه بنين شليدلی دی. تعجب مه کوه. حديث کې د جيب نه مراد هغه پاکټ نه دی چې کوم کې خلک سامان او پېسې وغيره ږدي. بلکې دلته گرېوان مراد دی. اوس احتمال دا هم دی چې د شاته نه گرېوان وي او دا هم احتمال دی چې د مخې اړخ نه وي. ملاعلي قاري رحمه الله فرمايي چې دلته د گرېوان نه مراد هغه پټۍ ده چې د څټ نه راتاؤ وي. مخې ته د گرېوان تڼۍ چې کله کولاوه وي نو دې پټۍ کې سست والی پیدا شي. د همدغې نه د معاويه بن قره پلار لاس داخل کړی دی. که تڼۍ بنده وي نو لاس نه شي داخليدلی. د ځېنې قومونو په قميصونو کې مخکې او وروسته دوه گرېوانه وي، خو علمه سيوطی فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ گرېوان به مخې ته ؤو. د ځېنو خلکو دا ويل غلط ثابت شو چې وايي د مخې نه گرېوان کول بدعت دی. (په يو زمانه کې به دې ته خلکو بدعت ويله) د ځېنې قومونو گرېوان د سينې د چېنر نه د ښي اوږې اړخ ته وي. دلته هغه هم مراد نه دی. (مرقات۸/۱۴۳)

الخاتم: د مهر په معنی کې دی. مراد ترېنه ختم نبوت دی. چې د شا اړخ ته د چپې اوږې د هډوکې د لاندې د ځلور گوتې هگۍ برابر پړسېدلې غوښه وه. چې د زخي نښان پرې ؤو. چې پرې ليکلی شوې ؤو "توجه حيث شئت فانك منصور" مهر يا پيدائشي ؤو يا د نبوت د ملاوېدلو نه وروسته راغلی ؤو. د مگر دا دا ډکه برخه د ننه لاړله او ورکه شوه. (مرقات۸/۱۴۴)

## د سپينو جامو د اغوستلو فضيلت

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۹﴾وَعَن | سَمُرَةَ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ:الْبَسُوا | الثِّيَابَ |

او د حضرت سمره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل سپينې جامې اغوندئ ځکه سپينې

---

[1] رقم الحديث ۴۳۳۶ اخرجه ابوداود في السنن ۳۴۲/۴ رقم الحديث ۴۰۸۲ وابن ماجه في ۱۱۸۴/۲ رقم الحديث ۳۵۷۸

| |
|---|
| الْبِيضَ فَإِنَّهَا أَطْهَرُ وَأَطْيَبُ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1] |
| جامې ډېرې پاكې او ډيرې ښې وي. او دغه شان خپلو مړو ته هم سپينې ټوټه وركړئ. |

**توضيح**: **اطهر**: سپينه جامه ژر خيرنېږي، نو ډېره وينځل كېږي. لهذا پاكه ده او ژر پاكېږي. توره جامه ټوله مياشت نه وينځل كېږي. ګنده وي خو د ګند پته پرې نه لږي، نو استعمالېږي. (مرقات۸/۱۴۴)

**اطيه**: يعنې د هغې رنګ ګډوډ نه وي. خالص سپينه وي. لهذا د سليم الطبع خلكو په نزد دا خوښې وي. او په سپينه جامه باندې د ګرمئ اثر هم كم وي، خوب كې مړه په سپينه جامه كې مړي وليدلى شو نو دا د هغې د نجار اړخ ته اشاره ده. او كه د ژوندي انسان په بدن باندې هر وخت سپينه جامه ښكاري نو مرګ به مستحضر وي، نو تقوى به اختيار وي. ګويا كې كفن د سترګو مخامخ دى. مړې په سپينه جامه كې د خښولو مقصد همدغه دى چې د هغې به ژوند كې د سپينې ټوټې انتخاب كړى وي. بهرحال كفن كې سپينه ټوټه استعمالول افضل دي، نور رنګونه هم جائز دي. البته سور رنګ منع دى. (مرقات۸/۱۴۳)

## د پټكي تړلو آداب

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اعْتَمَّ سَدَلَ عِمَامَتَهُ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله عمامه تړله نو د هغې شمله به |
| بَيْنَ كَتِفَيْهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ[2] |
| يې د دواړو اوږو په مينځ كې اچوله. (روايت كړې دي ترمذى) |

**توضيح**: **اذا اعتم**: يعنې كله چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پټكى تړله نو د هغې شمله به يې د اوږو په مينځ اچوله. پټكى تړل په سنن زوائدو كې ده. كه يو كس يې د اتباع نبي په نيت تړې نو ثواب ملاوېږي. ګنې د قومې رسم او رواج لپاره تړلو باندې هيڅ ثواب نشته دى. په رزرګونو خلك د قومې لباس په بنياد پټكى تړي. دا عادت ديرسنت نه دى. ياده دې وي چې د سنن زوائدو لپاره ضروري دي چې دې كې د اتباع نيت وي ګنې ثواب به نه ملاوېږي. ځينې روايتونو كې د پټكي لويې فضليت راغلى دى. يو ضعيف روايت كې دي چې د پټكي تړلو سره لمونځ كول اويا (۷۰) چنده افضل دى، خو په خولئ كې هم كېږي. هيڅ منع نه ده. او نه پټكى د لمونځ لپاره لازم دى. كوم ائمه حضرات چې صرف د لمونځ كولو وخت كې پټكى استعمالوي او بيا يې په ممبر پرېږدي او لاړ

---

(۱)رقم الحديث ۴۳۳۷اخرجه الترمذي في السنن ۱۰۹/۵ رقم الحديث ۲۸۱۰ والنسائي في ۳۴/۴ رقم الحديث ۱۸۹۶

(۲)رقم الحديث ۴۳۳۸ اخرجه الترمذي في السنن ۱۹۸/۴ رقم الحديث ۱۷۳۶

شي. دا ډېره غلطه طريقه ده. پټكى خو په عام وختونو كې مسنون دى. پټكي ته د عربو تاج ويلى شوى دى. پټكي سره انساني مازغو ته سكون ملاوېږي. د مازغو حفاظت كېږي. د حادثې وخت كې د زخمي كېدو نه محفوظ وي. د هيلمټ كار كوي. انسان ته د باوقار عزت مقام وركوي. انسان د بې كاره اخلاقو نه احتراز كوى.او د ټولو نه غوره خبره دا چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پټكى استعمال كړى دى. او د دې ترغيب يې كړى دى. د پټكو په رنګو كې تور، سپين او د پيكه رنګ والا ملاوېږي. د شين رنګ پټكي تذكره لا اوسه نه ملاو شوي. بدعتيانو به د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګنبد د رنګ اخستى وي، خو كه د ګنبد رنګ بدل شوى نو بيا به بدعتيان څه كوي؟دپټكي داوږدوالي باره كې دومره خبره باندې پوهه شئ چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه قسمه پټكي ؤو. وړوكى پټكى يې اؤوه (۷) ګزه ؤو او غټ پټكى يې دولس (۱۲)ګزه ؤو. شرعي ګز يو لاس وي. د پټكي دوه شملې وي. يو وړكى او يو اوږد. او كه يو هم وي نو خير دى. اكه دواړه شملې د اوږو په مينځ كې واچولى شي نو دا هم جائز دي. او كه كله يو شمله شاته او يو ښي اړخ ته مخكې واچولى شي نو دا هم جائزدي.

د دې آدابو نه معلومه شوه چې اسلامي پټكى او سكهانو پټكي كې د ځمكې او اسمان فرق دى. د پټكي لپاره خولۍ ضروري ده. او خولۍ كولاوه اوظاهربدل پكار دي. د اهل بدعت پشان پت پناه نه وي. مشركينو به هم پټكى استعمالولو، خو هغې كې به خولۍ نه وه،لكه څنګه چې نن سبا د ايران ذاكرين بغير د خولۍ نه پټكى استعمالوي. روافض عمامه كې شمله هم نه استعمالوي. د سكهانو هم دغه عادت دى. (مرقات۸/۱۴۶)

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: عَمَّمَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَدَلَهَا |
| او حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته پټكى وتړلو، |
| بَيْنَ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِي. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| نو د هغې شمله يې زما مخې او زماشاته (دواړو اړخونو) ته ځوړند كړل. |

## خولۍ باندې عمامه تړل د مسلمانانو امتيازي علامت دى

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾وَعَنْ رُكَانَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ركانه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |

[1] رقم الحديث ۴۳۳۹ أخرجه ابوداود في السنن ۳۴۱/۴ رقم الحديث ۴۰۷۹

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرْقُ | مَا | بَيْنَنَا | وَبَيْنَ | الْمُشْرِكِينَ | الْعَمَائِمُ | عَلَى | الْقَلَانِسِ. |

زمونږ او د مشرکانو په مینځ کې یو فرق دا هم دی چې مونږ په خولئ (ټوپئ) باندې پټکی تړو.

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَإِسْنَادُه لَيْسَ بِالْقَائِم (١)

ترمذی دا روایت نقل کړی دی او ویلی یې دي چې دا حدیث غریب دی او د دې اسناد صحیح نه دي.

**توضیح**: القلانس: د دنیا د ټولو ملکونو په لښکرو باندې د خولئ استعمالول د هر ملک قانوني ضابطه ده. د دې نه معلومه شوه چې کامل نارینه هغه دی چې د هغې په سر باندې خولئ وي. د افریقیانو ملکونو کې خولئ استعمالول د اسلام علامت وي. د دې نه معلومه شوه چې د لوڅ سر ګرځېدل نه د اسلام تقاضا ده او نه د کامل انسان تقاضا ده. بلکې ځناور یاد لېوني انسان تقاضا ده. (مرقات ۸/۱۴۷)

## سره زر او ریښم د ښځو لپاره حلال دي

﴿۳۳﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: أُحِلَّ الذَّهَبُ وَالْحَرِيرُ

او د حضرت ابو موسی اشعری رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل زما د امت د

لِلْإِنَاثِ مِنْ أُمَّتِي وَحُرِّمَ عَلَى ذُكُورِهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا صَحِيحٌ(٢)

ښځو لپاره سره زر ریښم حلال کړی شوي دي او د امت په نارینو باندې حرام کړی شوي دي.

**توضیح**: د سرو زرو صرف زیورات د ښځو لپاره حلال دي. لوښي نه.

## د نوي جامه اغوستلو وخت کې دعا

﴿۳۴﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَجَدَّ ثَوْبًا

او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه فرمایي چې کله به نبي کریم صلی الله علیه وسلم نوي جامې اغوستلې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَمَّاهُ | بِاسْمِهِ | عِمَامَةً | أَوْ | قَمِيصًا | أَوْ | رِدَاءً | ثُمَّ يَقُولُ |

نو د هغې به چې کوم نوم ؤو یعنې پټکی یا کرتا او یا څادر هغه نوم به یې اخستلو او بیا به یې فرمایل.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اللّٰهُمَّ | لَكَ | الْحَمْدُ | كَمَا كسوتَنيه |

ای الله! خاص ستا لپاره تعریف دی چې تا ماته دا نوي جامه واغوستله. ای الله! زه ستا نه د دې نوي جامې

| | | |
|---|---|---|
| أَسْأَلُكَ | خَيْرَه | وخيرَ |

د خیر طلب ګاریم چې دا جامه زما په بدن په عافیت سره وي. د ته هیڅ نقصان و نه رسیږي او ستا نه د هر هغه شي خیر غواړم چې د

(١) رقم الحديث ٤٣٤٠ أخرجه ابوداود في السنن ٤/٣٤٠ رقم الحديث ٤٠٧٩ والترمذي في ٤/٢١٧ رقم الحديث ١٧٨٤

(٢) رقم الحديث ٤٣٤١ أخرجه الترمذي في السنن ٤/١٨٩ رقم الحديث ١٧٢٠، واحمد في المسند ٤/٣٩٢

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا | صُنِعَ | لَهُ | وَأَعُوذُ | بِكَ |

کوم لپاره دا جامه جوړه شوي ده يعني دا چي ما جامه واغوستله او ستا اطاعت به کوم. او زه دي جامي د بدو او د دي د

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | شَرِّهِ | وَشَرِّ | مَا | صُنِعَ | لَهُ . | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو | دَاوُدَ [1] |

بدئ چي د کوم لپاره دا جامه جوړه شوي ده ستا پناه غواړم. (يعني دا چي زه دي جامي اغوستلو سره څه گناه ونه کړم)

**توضيح**: استجد ثوباً: يعني کله به يې چې نوي جامې اغوستلي "**اى لبس ثوباً جديداً**" (مرقات)

**سماه**: يعني د شکر په توګه به يې د دعا لوستلو نه مخکې نبي کريم ﷺ د هغه جامې نوم ياد کړو چې دا قميص دييا پټکى وغيره دى. بيا به يې دعا کې د هغ تذکره داسې کوله: "**اللّٰهم لك الحمد كما كسوتنى هٰذا القميص الخ**" (مرقات۸/۱۵۰)

## د خوراک او جامه اغوستلو نه وروسته دعا سره ټول ګناهونه وبخښلى شي

﴿۳۵﴾ وَعَن معاذِ بن أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ أَكَلَ طَعَامًا

او د حضرت معاذ ابن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چي خوراک وکړي او

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | قَالَ: | الْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِي | أَطْعَمَنِي | هٰذَا | الطَّعَامَ | وَرَزَقَنِيهِ |

بيا دا او ايي يعني دا دعا ولولي. ټول تعريفونه الله لره دي چي چا ماته دا خوراک راکړو او دا خوراک

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | غَيْرِ | حَوْلٍ | مِنِّي | وَلَا | قُوَّةٍ | غُفِرَ | لَهُ | مَا | تَقَدَّمَ |

بغير زماد څه حيله او بغير زماد څه قوت او د اثر نه ماته راورسوله، نو د هغې ټول مخکني واړه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | ذَنْبِهِ". | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَزَادَ | أَبُو | دَاوُدَ: "وَمَنْ |

ګناهونه معاف شي. (ترمذى) او ابوداؤد په خپل روايت کي دا الفاظ نقل کړي دي چي کوم کس

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَبِسَ | ثَوْبًا | فَقَالَ: | الْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِي | كَسَانِي |

جامي واغوندي نو بيا دا او ايي ټول تعريفونه د هغه الله لپاره دي چي چا ماته دا جامي واغوستلي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هٰذَا | وَرَزَقَنِيهِ | مِنْ | غَيْرِ | حَوْلٍ | مِنِّي | وَلَا | قُوَّةٍ | غُفِرَ | لَهُ | مَا | تَقَدَّمَ |

او دا جامي يې بغير زماد څه حيله او بغير زماد څه اثر نه ماته راورسولي، نو د هغې ټول مخکني او وروستني

[1] رقم الحديث ۴۳۴۲ أخرجه ابوداود في السنن ۳۰۹/۴ رقم الحديث ۴۰۲۰ والترمذي في ۲۰۰/۴ رقم الحديث ۱۷۶۷ .

| |
|---|
| مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ "(۱) |
| واړه ګناهونه معاف کړی شي. |

**توضيح**: واړه ګناهونه دې دعا او په شکر ادا کولو سره معاف کېږي. او که توبه وکړي نو غټ ګناهونه هم معاف کېږي.

## زړه جامه مه ضایع کوئ

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عَائِشَةُ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته و فرمايل چې عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا |
| إِذَا أَرَدْتِ اللُّحُوقَ بِي فَلْيَكْفِكِ |
| که چېرې ته دنيا او آخرت دواړو ځايونو کې زمانه کامل اتصال او يو ځائ کيدل غواړې نو د دنيا صرف |
| مِنَ الدُّنْيَا كَزَادِ الرَّاكِبِ وَإِيَّاكِ وَمُجَالَسَةَ الْأَغْنِيَاءِ |
| په دومره شيانو باندې اکتفا کوه چې د مسافر د لارې د سامان برابر وي او د دولت مندو سره د ناستې نه ځان ساته. |
| وَلَا تَسْتَخْلِقِي ثَوْبًا حَتَّى تُرَقِّعِيهِ. |
| او جامې تر هغه وخت پورې زړې کېلو سره مه غوزا زوه چې تر څو پورې ته هغه پيوند لربولو سره د استعمال قابل کړې. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ |
| دا روايت ترمذی نقل کړی دی او ويلې يې دي چې دا حديث غريب دی او دا حديث مونږ ته د |
| صَالِحِ بْنِ حَسَّانَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: |
| صالح بن حسان منکر الحديث د روايت نه بغير په بله کومه ذريعه نه دی را رسيدلی. او محمد بن اسماعيل |
| صَالِحُ بْنُ حَسَّانَ مُنكر الحَدِيث(۲) |
| يعنې امام بخاری ويلي دي چې صالح بن حسان منکر الحديث دی يعنې د دې روايت منکر دی. |

**توضيح**: کزاد الراکب: يو توخه د سپور کس وي او يو د پيدل کس وي. سپور کس دا چې ژر منزل ته رسي نو کم خرچ ضرورت ورته وي، نو ځکه حديث کې د سپور د توخې ذکر شوی دی. يعنې ډېره کمه توخه. (مرقات۸/۱۵۳)

(۱)رقم الحديث ۴۳۴۳ أخرجه أبوداود في السنن ۳۱۰/۴ رقم الحديث ۴۰۲۳ والترمذي في ۴۷۴/۵ رقم الحديث ۳۴۵۸

(۲)رقم الحديث ۴۳۴۴ أخرجه الترمذي في السنن ۲۱۵/۴ رقم الحديث ۱۷۸۰

**مجالسه الاغنياء**: د مالدارو سره د کيناستلو سره چې نقصان کېږي نو د دې نه اندازه کېږي چې خپله به مالدرانو څه حالت وي. **ولا تستخلق**: خلق د زوړ کېدلو په معنی کې دی. دې صيغه کې سين تا حسبان لپاره دی. ينعنې هيڅ يوه جامه زړه مه کنه. (مرقات۸/۱۵۳)

**ترقعيه**: يعنې تر څو پورې چې هغې کې پيوند ونه لږی. وايي چې يو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خطبه ورکړه. کله چې وليدل شو نو د هغې په ازار کې دولس (۱۲) پيونده لږېدلې ؤو. او حال دا چې امير المؤمنين ؤو. (مرقات) بهرحال د بحث لاندې حديث امام بخاری منکر ګڼلی دی.

## په لباس کې ساده توب د ایمان علامت دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۷﴾ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ إِيَاس بن ثعلبة قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: | | | | |
| او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يعنې اياس ابن ثعلبه فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل آيا | | | | |
| أَلَا | تَسْمَعُونَ؟ | أَلَا | تَسْمَعُونَ | أَنَّ الْبَذَاذَةَ |
| تاسو نه اورئ، آيا تاسو نه اورئ يعنې اى خلكو ! په غوږونو يې واورئ د جامې خراباوالى او ساده والى | | | | |
| مِنَ | الْإِيمَانِ | أَنَّ | الْبَذَاذَةَ | |
| يعنې د جامو ساده والى اختيار كړئ او د دنيا زيب او زينت پرېښودل د ايمان د حسن علامت دی. د جامو خرابوالى | | | | |
| مِنَ | الْإِيمَانِ؟. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] | |
| او ساده والى اختيارول او د دنيا زيب او زينت پرېښودل د ايمان د حسن علامت دی. | | | | |

**توضيح**: **البذاذه**: جامو كې ساده والى اختيار كړئ. دې كې عاجزې او انكسارې خپله كړئ او د دنيا زيب او زينت نه ځان ساتل د ايمان په ښه عادتونو كې دی. او د ايمان علامت دی. زيب او زينت كې اخته كېدل او اسائش او آرائش د ښځو كار دی. د نارينه حسن د هغې ساده والى دی. بهرحال ښه جامه او ښه لباس استعمالول چې د رياكارئ نه بغير وي او د استعداد مطابق وي نو هغه منع نه دی. ساده والى بېل شى دی او ګندګي بېل شى دی. اسلام د ساده والې حكم كړی دی. د ګندګۍ حكم يې نه دی كړی. (مرقات۸/۱۵۴)

## لوړوالي لپاره د شهرت لپاره لباس اغوستل د آخرت ذلت دی

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شهرةٍ منَ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې كو كس په دنيا كې د شهرت |

---

(۱) رقم الحديث ۴۳۴۵ اخرجه ابوداود في السنن ۳۹۳/۴ رقم ۴۱۶۱، وابن ماجه في ۱۳۷۹/۲ رقم الحديث ۴۱۱۸

| |
|---|
| الدُّنْيَا أَلْبَسَهُ اللهُ ثَوْبَ مَذَلَّةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[1] |
| جامه اغوندي. د قيامت په ورځ به الله هغې ته د ذلت جامې واغوندي. (مسند احمد، ابوداؤد، ابن ماجه) |

**توضیح: شهرة:** کوم چې د تکبر او د تجبير په توګه او د فقرانو او د مسکينانو د ذليل کولو لپاره يا د ځان نه کارتهون جوړ کړي او د خلکو د خندولو لپاره عجيب او غريب شکلونه اختياروي نو د داسې کس لپاره وعيد دی. د دې نه زيات واضح مطلب دا دی چې کوم کس د شهرت لپاره د علماؤ لباس اختياروي، د صوفياء لباس او جبه او دستار اچوي او هغې باندې خپل ځان او چتول غواړي او د خپل د حصول لپاره شپه ورځې اخته وي. د داسې کس لپاره وعيد دی. (مرقات۱۵۴/۸)

## کوم کس چې د غير مسلمو تقليد کوئ هغه همغه جوړيږي

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کوم کس د کوم قوم سره |
| فَهُوَ مِنْهُمْ. رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد[2] |
| مشابهت اختياروي نو د هغې شمار به همغه قوم دی. |

**توضیح: من تشبه:** يعنې د يو غير مسلم قوم نقل کول او د هغوی تقليد اختيارول د مسلمانانو لپاره حرام دي. د کافرانو عملونه او کارونه او د هغوی طور طريقې او د هغوی فکرونه او اقتداء به پرېږدي. که کوم کس د يو قوم سره مشابهت اختياروي، د هغوی په طرز باندې خوراک کوي، د هغوی اخلاق خپلوې او د هغوی د اسيدلو طريقې او ثقافت د سينې سره لګوي نو دا کس د هغوی به ډلې ته لاړ شي. او س چې د دې کافرانو د فاسقانو او د فاجرانو په عملونو باندې هغوی ته کومه سزه ملاوېږي، همغه سزه به دې نخرو کونکې او تقليد کونکې ته هم ملاوېږي. او کوم کس چې خپل ځان د علماؤ او صالحانو او د ديندارو په نظر اچوي. د هغوی اوقوال او افعال خپلوې او د هغوی سره محبت کوي، نو هغه کس په خير د هغه سعادت مندو په ډله کې شمارل کېږي. (مرقات۱۵۵/۸) د دې حديث مفهوم ډېر فراخه دی. او دا جوامع کلم نه دی. دې کې ممانعت هم دی چې ښځې دې په وضع قطع کې د نارينؤ سره مشابهت نه اختياروي او نارينه دې د زنانؤ سره مشابهت نه اختياروې. البته دومره خبره ياد ساتل پکار ده چې د غير مسلمو سره د مشابهت نه چې کوم ممانعت شوی دی. هغه د هغوی خصوصي امتيازې شعار په خپلولو کې دی. عام حالاتو کې د انسان عمل او دخل خو د يو بل سره مشابه وي. مثلاً ږيره خرائيل، کوټ پتلون او ټائی لګول، د صليب تصوير ځای په ځای

[1] رقم الحديث ۴۳۴۶ أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۴/۴ رقم الحديث ۴۰۲۹ وابن ماجه في ۱۱۹۲/۲ رقم الحديث ۳۶۰۶

[2] رقم الحديث ۴۳۴۷ أخرجه ابوداود في السنن ۳۱۴/۴ رقم الحديث ۴۰۳۱ وأحمد في المسند ۵۰/۲ .

لګول، دا د یهود او نصاری خصوصي علامتونه دي. تندې باندې قشقه لګو وغیره د هندوانو خصوصي علامت دی، ږیره راتاوهلو او د زنې لاندې کول، پان استعمالول، دا د سکهانو خصوصي علامتونه دي. د دې نه احتراز ضروري دی. د دې نه بغیر په عام ژوند کې د یو بل سره مشابه کېدل مراد نه دي. مثلاً ټول قومونه پیاله کې چائې څښې، دا هیڅ شعار نه دی.

## کوم کس چې عاجزي کوي هغه اوچتیږي

﴿۲۰﴾ وَعَنْ سُوَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت سوید ابن وهب، د نبي کریم ﷺ د یو صحابي د ځوي نه او هغه د خپل پلار نه

عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ تَرَكَ لُبْسَ

روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل کوم کس چې د زیب او زینت لباس اغوستل پرېږدي سره د دې نه

ثَوبِ جمالٍ وَهُوَ يقدرُ عَلَيْهِ وَفِي رَاوِية:

چې د هغې د اغوستلو استعداد لري او یو روایت کې د تواضعا لفظ هم راغلی دی یعنې کوم کس چې د زهد او

تَوَاضُعًا كَسَاهُ اللهُ

تواضع او د کسر نفسي په سبب د زیب او زینت لباس اغوستل پرېږدي نو هغې ته به الله د عزت او د عظمت جامه واچوي.

حُلَّةَ الْكَرَامَةِ وَمَنْ

یعنې الله به هغې ته د جنت لباس واچوي چې د هغې د اوچتوالي او د عظمت سبب به وي. یا دا چې الله به هغې ته په دنیا او آخرت دواړو

تَزَوَّجَ لِلّٰهِ تَوَّجَهُ اللهُ

ځایونو کې عزت او عظمت ورکړي، لکه څنګه چې ویلی شوي دي چې کوم کس فروتني اختیار وي الله هغې له اوچته مرتبه ورکوي. او

تَاجَ الْمُلْكِ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

کوم کس چې د الله د خوشحالولو لپاره نکاح وکړي نو الله به هغې ته د بادشاهت تاج ورکوي. (ابوداؤد)

وَ رَوَى التِّرْمِذِيُّ مِنْهُ عَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ حَدِيثَ اللِّبَاسِ[2]

او ترمذی د دې روایت صرف هغه برخه چې د جامې ذکر په کې دی د معاذ رضي الله عنه نه نقل کړی دی.

**توضیح: تواضعاً:** د وَس لرو باجود هم د زینت پرېښودل لویې کمال دی. د دې سره سړی نه غورځیږي بلکې اوچتیږي. او چا کې چې طاقت نشته دی هغه خپله تواضع دی. (مرقات ۱۵۶/۸)

---

(۱) رقم الحدیث ۴۳۴۸ اخرجه ابوداود في السنن ۱۳۸/۵ رقم الحدیث ۴۷۷۸

(۲) رقم الحدیث ۴۳۴۹ اخرجه الترمذي في السنن ۵۶۱/۴ رقم الحدیث ۲۴۸۱

**ومن تزوج**: يعنې يو بې نومه او د ورک نوم والا جينئ ده. بې آسرې ده، نه د هغې كفو شته دى، نه يې خاندان شته دى. يو كس د دې سره صرف د دې لپاره نكاح كوي چې د دې ژوند جوړ شي او هغې ته آسره ملاو شي نو داسې كس ته به الله د عظمت تاج ورپسر كوي. (مرقات۸/۱۵۶)

## د الله تعالى د نعمتونو اظهار محمود عمل دى

| |
|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او حضرت عمرو ابن شعيب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل |
| إِنَّ اللهَ يُحِبُّ أَنْ يُرَى أَثَرَ نِعْمَتِهِ على عَبدِه . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [۱] |
| بيشكه د الله دا خبره خوښه ده چې د هغې د نعمت اثر د هغې په بنده ګانو باندې وليدلى شي. |

**توضيح: ان يرى**: يعنې چې الله دنيوي نعمت دركړى دى نو د شكر په توګه د هغې اثر هم د انسان په بدن باندې پكار دى. د دې صورت دا وي چې چرته يې وَس وي خو د ښه لباس اغوستلو په ذريعه دې د الله د نعمت عملې شكر ادا كړې. او چرته يې چې وَس نه وي نو هلته د سادا والې عملې مظاهره كول پكار ده. او چرته چې تنګې وي نو قرض اخستل او په تكلف سره د لباس مظاهره او مفاخره كول سخت منع دى. (مرقات۸/۱۵۶)

## په اسلام كې ښه خوي او صفائى محمود عمل دى

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: أَتَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَائِرًا |
| او حضرت جابر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ملاقات به غرض مونږ كره تشريف راوړو. |
| فَرَأَى رَجُلًا شَعِثًا قد تفرق شعرُه فَقَالَ: |
| هلته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګډ ود ويختانو والا يو كس وليدلو چې ويختان يې ښواره وُو. نبي عَلَيْهِ السَّلَام و فرمايل |
| مَا كَانَ يَجِدُ هَذَا مَا يُسَكِّنُ بِهِ رَأْسَهُ؟ |
| چې آيا دې كس سره هغه څيز يعنې ږمونځ وغيره نشته دى چې د هغې په ذريعه خپل ويختان صحيح كړي. |
| وَرَأَى رجلا عَلَيْهِ ثِيَابٌ وسِخَةٌ فَقَالَ: |
| يا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو كس وليدلو چې د هغې بدن باندې ګنده جامې وي، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل |

---

[۱] رقم الحديث ۴۳۵۰ اخرجه الترمذي في السنن ۱۱۴/۵ رقم الحديث ۲۸۱۹ واحمد في المسند ۱۸۲/۲

| |
|---|
| مَا كَانَ يَجِدُ هَذَا مَا يَغْسِلُ بِهِ ثَوْبَهُ؟. رَوَاهُ أَحْمد وَالنَّسَائِيُّ (۱) |
| چې آيا دې كس سره هغه څيز يعني صابون يا اوبه نشته دى چې په هغې دا خپلې جامې وينځي. |

**توضيح: مايسكن:** ما عبارت د ږمونځ نه يعني دې كس ته ږمونځ نه ملاوېږي چې د هغې په ذريعه خپل ويختان ږمونځ كړي. (مرقات۸/۱۵۷)

**مايغسل:** دلته هم د ما نه صابون وغيره د صفائې كولو سامان مراد دى. (مرقات۸/۱۵۷)

د دې حديث نه معلومه شوه چې بدن مهذب، شائسته او ښايسته ساتل د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښ ؤو. او د دې برعكس منظر د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښ نه ؤو، ځكه اسلام يو ترقې خوښونكى او مهذب او متمدن مذهب دى. دا د انسان د دنيا او د آخرت دواړو كفالت او لاربښودنه كوي. لهذا دا څيزنه بالكل د اسلام مطابق دي. چې د كوم تعليم نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وركړو. اسلام اګر كه د ساده والې تعليم وركوي خو ساده والې بېل څيز دى. او ګندګي بېل څيز دى. د الله په نظام كې تهذيب او صفائى ده او د شيطان په نظام كې نجاست او پليتې ده. د بحث د لاندې د دې تشريح نه معلومه شوه چې دې سره د هغه حديث تعارض نشته دى چې كوم كې "ان البذاذة من الايمان" ويلى شوى دى، ځكه دې حديث كې د ساده والې درس دى. نجاست او ګندګي او بد تهذيبۍ درس نه دى. (مرقات۸/۱۵۷)

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾وَعَن أَبِي الأحوصِ عَن أَبِيهِ قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو الاحوص د خپل پلار نه نقل كوي چې هغې وويل چې زه يو ورځ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت كې په |
| وَعَلَيَّ ثَوْبٌ دُونٌ فَقَالَ لِي: |
| داسې حالت كې حاضر شوم چې زما په بدن باندې خرابې او ورستې جامې وې. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې ليدلو سره ماته وفرمايل |
| أَلَكَ مَالٌ؟ قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: مِنْ أَيِّ الْمَالِ؟ قُلْتُ: |
| چې آيا تا سره مال شته دى. ما عرض وكړو چې آو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وپوښتل كوم قسم مال دى. ما عرض وكړو چې |
| مِنْ كُلِّ الْمَالِ قَدْ أَعْطَانِي اللهُ مِنَ الإِبِلِ وَالْبَقرِ وَالْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ. |
| هر قسمه مال ديرِ الله ماته اوښان، غواګانې او بزې هم راكړي دي. او آس او غلام يې هم راكړي دى. |
| قَالَ: فَإِذَا آتَاكَ اللهُ مَالًا فَلْيُرَ |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تا ته الله دومره مال دركړى دى نو د هغې تقاضا دا ده چې تا باندې د الله |

(۱) رقم الحديث ۴۳۵۱ أخرجه ابوداؤد في السنن ۴/۳۳۲ رقم الحديث ۴۰۶۲.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَثَرُ | نِعْمَةِ | اللهِ | عَلَيْكَ | وَكَرَامَتِهِ | . رَوَاهُ | أَحْمَدُ | وَالنَّسَائِيُّ |

د درکړې شوې نعمت اثر وي او تاته چې الله کوم نعمت او عظمت درکړی دی هغه ښکاره وي. (نسائی)

وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ[1]

اوشرح السنة دا روایت د مصابیح په مختلف الفاظ کې نقل کړی دی، نو د دواړو مختلف دی، خو د دواړو مضمون یو دی.

**توضیح**: ثوب دون: دون د ادون نه دی چې بیکاره او خرابو او ورستو جامو ته وایي.

## د نارینؤ لپاره سره جامه اغوستل حرامه ده

﴿۴۴﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: مَرَّ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَحْمَرَانِ

او حضرت عبدالله ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ يو كس دوه سرې جامې اغوستې وې او تير شو.

فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[2]

او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې سلام وکړو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د سلام جواب ورنکړو.

**توضیح**: فلم يرد: يعني دې کس سرې جامې اغوستې وې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د سلام جواب ور نکړو. د دې نه معلومه شوه چې سرې جامې استعمالول منع دي. د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چې د ښکاره فاسق د سلام جواب ورکول لازم نه دی. او هغې باندې اول سلام کول بطريق اولی منع دی. (مرقات۸/۱۵۹)

## د نارينؤ او د زنانؤ په خوشبوي کې فرق

﴿۴۵﴾وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا أَرْكَبُ الْأُرْجُوَانَ

او د حضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل زه ارغوانی

وَلَا أَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ وَلَا أَلْبَسُ الْقَمِيصَ

يعنې د سور رنګ رزين پوش باندې نه سپورېږم، نه زه د کسم رنګ شوې جامې اغوندم او نه زه داسې پيرهن وغيره

الْمُكَفَّفَ بِالْحَرِيرِ وَقَالَ:

کوم چې هغې باندې ريښمي سنجاف يعني ريښمي ګوټ او بيل وغيره لرېدلې وي او بيا يې وفرمايل

---

[1] رقم الحديث ۴۳۵۲ أخرجه أبوداود في السنن ۴/۳۳۳ رقم الحديث ۴۰۶۲ والنسائي ۸/۱۸۳ رقم الحديث ۵۲۳۶.

[2] رقم الحديث ۴۳۵۳ أخرجه أبوداود في السنن ۴/۳۳۶ رقم الحديث ۴۰۶۹ والترمذي في ۵/۱۰۷ رقم الحديث ۲۸۰۷

| | | |
|---|---|---|
| أَلَا | وَطِيبُ | الرِّجَالِ |

چې ياد وساتئ نارينه چې كومه خوشبوي ولګوي، هغې دې داسې وي چې هغې خوشبوي خو وي خو چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| رِيحٌ | لَا | لَوْنَ | لَهُ |

رنګ په كې نه وي لكه ګلاب او د عطرو استعمالول وغيره چې په رنګدار خوشبوي لګولو سره جامې رنګ نه شي.

| | | |
|---|---|---|
| وَطِيبُ | النِّسَاءِ | لَوْنٌ |

او ښځې چې كومه خوشبوي لګوي هغه داسې پكار ده چې رنګ خو په كې وي خو خوشبوي په كې نه وي لكه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا | رِيحَ | لَهُ. | رَوَاهُ | أَبُودَاوُد (۱) |

زعفران او نكريزي وغيره چې د هغې خوشبوي بهر وتلو سره د نارينؤ لپاره د فتنې او ازمائښت سبب نه شي.

**توضيح: الارجوان**: دا لفظ د ارغوان معرب دی. ارغواني رنګ سور وي. ملاعلي قاري فرمايي چې دا واړه شان ګدئ وي چې د ناستې لپاره په زين باندې اچول كېږي. چې زمين پوش ورته وايي. مطلب دا شو چې زه په داسې سورلۍ باندې نه سپورېږم چې د هغې زين پوش د سور رنګ وي. ځينو اهل لغت ارغوان يو داسې بوټی ګڼلی دی چې د هغې ګلان سره وي. زياتو اهل لغتو ارجوان سور رنګ ګڼلی دی. علامه خطابي فرمايي چې په نورو حديثونو كې دا د "**المياثر الحمر**" په نوم ياد كړی شوی دی. چې اصل كې د ريښم او د ديباج نه تيارېږي. بهرحال يا خو دا ممانعت خو د سور رنګ د وجې نه دی يا د ريښم په وجه دی. ملاعلي قاري سور رنګ راجح ګڼلی دی. او فرمايلي يې دي چې په سور رنګې تو ته ناسته هم منع ده، نو د دې اغوستل به څومره سخت منع وي. (مرقات۸/۱۵۹)

**المعصفر**: د دې په كسم كې رنګ شوې سره تو ته مراد ده. دا دواړه د نارينؤ لپاره منع دي. (مرقات۸/۱۵۹)

**المكفف**: يعنې چې كوم كې سنجاف او ريښمې كوټ لږېدلی وي. دې حديث كې د مكفف قميص اغوستلو نه منع راغلې ده، خو د دې نه مخكې د حضرت اسماء رضي الله عنها حديث ۱۸ كې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د جبې سره د مكفوفين الفاظ ذكر دي. دې دواړه حديثونو كې په ظاهره كې تعارض دی. د دې جواب دا دی چې تر څلور ګوتو پورې د ريښمو د پټئ اجازت شته دی. د دې نه زيات نشته دی. دلته حديث د څلور ګوتو نه د زيات ممانعت باندې محمول دی. يا د اسماء رضي الله عنها په حديث باندې فتوی محمول ده. او زير بحث حديث تقوی باندې محمول دی. (مرقات۸/۱۶۰)

---

(۱) رقم الحديث ۴۳۵۳ اخرجه أبوداود في السنن ۴/۳۲۴ رقم الحديث ۴۰۴۸ واحمدفي المسند۴/۴۴۲.

## د لسو خبرو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾وَعَن أَبِي رِيحانَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَشْرٍ: عَنِ الْوَشْرِ |
| او حضرت ابو ريحانه فرمايي چې نبي كريم ﷺ د لس (۱۰) خبرو نه منع کړې ده. غاښونه د تيره کولو نه، |
| وَالْوَشْمِ وَالنَّتْفِ وَعَنْ مُكَامَعَةِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ بِغَيْرِ شِعَارٍ |
| د بدن يو برخه د گودنې نه، ويختان و ويستلو نه، نارينه د نارينه سره د پرېوتلو نه که په مينځ کې توټه نه وي، |
| وَمُكَامَعَةِ الْمَرْأَةِ الْمَرْأَةَ بِغَيْرِ شِعَارٍ |
| ښځې د ښځې سره د اوده کېدو نه چې مينځ کې توټه حائل نه وي، او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه |
| وَأَنْ يَجْعَلَ الرَّجُلُ فِي أَسْفَلِ ثِيَابِهِ حَرِيرًا |
| منع کړې ده چې نارينه د خپلې جامې د لاندې استر ولگوي لکه څنگه يې چې عجمي خلک لگوي. يا |
| مِثْلَ الْأَعَاجِمِ أَوْ يجعل على مَنْكِبَيْه حَرِير مِثْلَ الْأَعَاجِمِ |
| د عجمي خلکو پشان په اوږو باندې ريښم لگوي او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چا مال د لوټلو نه او د |
| وَعَنِ النُّهْبَى وَعَنْ رُكُوبِ |
| پړانگ څرمن په زين باندې د اوده کېدلو نه منع کړې ده. او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع کړې ده |
| النُّمُورِ وَلُبُوسِ الْخَاتَمِ إِلَّا لِذِي سُلْطَانٍ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| چې يو کس د مهر والا گوتمه واچوي خو چې هغه د صاحب حکومت وي. |

**توضيح: العشر**: يعنې د لس بدو خصلتونو نه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده.

**الوشر**: عرب کې په بوډۍ ښځو د پيغلو جينکو په حسن کې د مشابهت لپاره بدرنگ غاښونه د غاړو نه کمولو باندې ښائسته جوړوي. د دې نه منع وشوه ځکه دې تغير خلق الله دی. (مرقات۸/۱۶۰)

**وشم**: د بدن يو برخه سورې کول او په هغې کې نيل وغيره ډکولو ته وشم وايي. دې کې هم تغير خلق الله دی، ځکه منع دی. (مرقات۸/۱۶۱)

**النتف**: لنتف ويختان ويستلو ته وايي. مثلاً يو ناريه سر يا د ږيرې سپين ويختان د زينت اختيارولو لپاره اوباسې. دا منع دي. دا بې ځايه زينت دی. دغه د ښځو لپاره د تندې واره ويختا ويستلو منع دي، ځکه دا هم بې ځايه زينت دی. او د تغير خلق الله امکان هم دی. يا د مصيبت په وخت کې

[1] رقم الحديث ۴۳۵۵ اخرجه ابوداود في السنن ۳۲۵/۴ رقم الحديث ۴۰۳۹ والنسائي في ۱۴۳/۸ رقم الحديث ۵۰۹۱

ويختان ويستل مراد دي چې منع دي. (مرقات۸/۱۶۱)

**مكامعة**: يعني بغير پردي د دوه نارينو لغړ پرېوتل منع کړی شوي دي. دغه شان ښځې هم منع کړی شوي دي. دشعار معنی د بدن سره لږېدلي توټه ده. مراد پرده دی.

**اسفل ثيابه**: يعني پاس عامه توټه وي او لاندې استر ريښم وي. د دې نه منع کړی شوې ده. دا د عجمو عادت دی. اوس د عربو شوی دی. (مرقات۸/۱۶۱)

**على منكبيه**: يعني د عجو پشان جامو کې په يو ځای د ريښم پټئ لګول منع دي. هغه که اوږه وي يا که بل ځای وي خو په دې شرط چې د څلورو ګوتو نه زيات وي. (مرقات۸/۱۶۱)

**النهبى**: لوټ مار او ډاکې ته وايي. (مرقات۸/۱۶۱)

**النمور**: د نمرة جمع ده د پړانګ څرمن ته وايي. دې باندې ناسته د عجمو عادت دی. اوس د عربو عادت دی. دې سره هم تکبر راځي. او کېدی شي چې د درندګئ اثر هم پيدا شي.

**الخاتم**: د زيب او زينت په غرض د ضرورت نه بغير ګوتمه د استعمالولو نه منع شوې ده، خو که څوک بادشاه يا قاضي وغيره حاکم وي نو د هغې لپاره د ضرورت په وجه په محدود د پيمانه جائز دي. وايي چې د عوامو لپاره سخت کراهت دی. اوس منسوخ شوی دی. اوس تر د جائز حد پورې د ټولو لپاره جائز دی. (مرقات۸/۱۶۱)

## د نارينو لپار د سروزرو ګوتمه اچول حرامه ده

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: نَهَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ وَعَنْ |
| او حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ما ته د سرو زرو ګوتمه او د قسی د اچولو نه |
| لُبْسِ الْقَسِّيِّ وَالْمَيَاثِرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ |
| د مياثر د استعمالولو نه منع کړم. (ترمذی، ابوداؤد، نسائی، ابن ماجه) او د ابو داؤد په يو روايت کې دا سې دي |
| قَالَ: نهى عَن مياثر الأرجوان[1] |
| چې حضرت علي رضي الله عنه فرمايل چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د ارغواني يعني د سور مياثر د استعمالولو نه منه کړه. |

**توضيح**: **القسى**: د مصر يو ښار د "قس" اړخ ته منسوب دی. دا توټه به د ريښم نه جوړېدله، ځکه ممانعت راغلی دی. (مرقات۸/۱۶۲)

**المياثر**: دا د ميثرة جمع ده. زين پوش ته وايي. علماؤ ليکلي دي چې دا چې دا به د ريښمو وه، نو ځکه منع کړی شوې ده. ملاعلي قاري وغيره د سور رنګ کېدو په وجه هم دې ته ممنوع وايي، نو دا د تکبر او د آرائش

---

(1) رقم الحديث ۴۳۵۶ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۲۷ رقم الحديث ۴۰۵۱ والترمذي في ۴/۱۹۸ رقم الحديث ۱۷۳۷.

په وجه ممنوع دی. بیا خو به هره سره تهوته پاس او لاندې استعمالول خلاف اولی وي. (مرقات ۱۶۲/۸)

## په ریښم او دزمري څرمن باندې کیناستل منع دي

| |
|---|
| ﴿۴۸﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَرْكَبُوا الْخَزَّ |
| او حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې تاسو د خز او د پړانګ د |
| وَلَا النِّمَارَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| څرمن په زین پوش باندې مه سپور ربږئ. |

**توضیح: الخز**: که د خز نه خالص ریښم مراد وي نو بیا به یې استعمال حرام وي او که په پخوانۍ زمانه کې د وړئ سره ګډوډ کړی شوې یوه تهوته مراد وي نو بیا په کراهت تنزیهې باندې دا حدیث محمول دی.

**النمار**: د نمرة جمع ده. د پړانګ څرمن ته وایي. د ممانعت وجه یې مخکې لیکلی شوې ده. چې کله یې شریعت منع کوي نو بیا د وجې لټول مناسب نه دي. (مرقات ۱۶۳/۸)

| |
|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[2] |
| او د حضرت براء ابن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سور زین پوش نه منع کړې ده. |

## د شین رنګ جامې جائز دي

| |
|---|
| ﴿۵۰﴾ وَعَنْ أَبِي رِمْثَةَ التيمِيِّ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو رمثه تیمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې کله زه د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم نو |
| وَعَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَخْضَرَانِ |
| هغه وخت د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بدن باندې دوه سرې جامې وې یعني نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کومې دوه جامې |
| وَلَهُ شَعَرٌ قَدْ عَلَاهُ الشَّيْبُ |
| اغوستې وې هغه خو یا خالص شین رنګې وې یا هغې کې شنې غاړې وُو. او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سر او ږیره باندې لږ ویختان د |
| وَشَيْبُهُ أَحْمَرُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ: |
| بوډوالي یعني د سپین ویختانو غلبه وه. او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام بوډه والی سور وُو. (ترمذی) او د ابوداؤد په |

---

[1] رقم الحديث ۴۳۵۷ أخرجه ابوداود في السنن ۳۷۲/۴ رقم الحديث ۴۱۲۹ وابن ماجه ۱۲۰۵/۲ رقم الحديث ۳۶۵۶

[2] رقم الحديث ۴۳۵۸ مرقاة المفاتيح ۲۲۹/۸

| |
|---|
| وَ هُوَ ذُو وَفْرَةٍ وَ بِهَا رَدْعٌ من حناء[1] |
| يو روايت کې داسې دي چې نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفره والا ؤو. او په هغه ويختانو کې د نکريزو رنګ ؤو. |

**توضيح**: اخضران: يا بالکل شنې جامې وي يا هغې کې شنې غاړې وي. دواړه جائز دي. د نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شين رنګ خوښ ؤو. (مرقات ١٦٤/٨)

**ذوفرة**: دا د سر د ويختانو يو قِسم دی. باب الترجل کې به ان شاء الله تفصيل راشي. (مرقات ١٦٥/٨)

**ردع من حناء**: حنا نکريزو ته وايي. او ردعد هغې رنګ ته ويلی شوی دی. يعنې د هغې په ويختانو کې د نکريزو رنګ ؤو. کېدی شي چې په يو ويختانو کې رنګ ؤو. دا هم امکان لري چې د عطر د استعمال په وجه ويختان سره ښکاره کېدل يا بله کومه وقتي معامله وه. د دې تاويل ضروت ځکه پېښ شو چې د نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سره او د ږيرې ويختانو کې يو شو ويختان سپين ؤو. د شليريش (٢٤) نه زيات نه ؤو. نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خضاب نه کولو. البته فقهاء خضاب ثابتوي. (مرقات ١٦٥/٨)

## د قطري څادر ذکر

| |
|---|
| ﴿٥١﴾ وَعَنْ أَنَسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ شَاكِيًا |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلې بيمارۍ زمانه کې په داسې حال کې |
| فَخَرَجَ يَتَوَكَّأُ عَلَى أُسَامَةَ وَعَلَيْهِ ثَوْبُ قِطْرٍ |
| جومات ته راغلو چې اسامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورله سهاره ورکړې وه او بدن مبارک باندې يې د قطر ټوټه وه. |
| قَدْ تَوَشَّحَ بِهِ فَصَلَّى بهم. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[2] |
| چې نبي کريم صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ځان نه چاپيره کړه. او بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ ته لمونځ ورکړو. |

**توضيح**: ثوب قطري: يو قِسم څادر ته وايي چې سرې غاړې به په کې ؤو. او په يمن کې به جوړېدله. يا قطري نسبت دی. د قطر له اړخ نه چې په بحرين کې د يو ښار نوم ؤو. نن سبا قطر د ملک نوم دی. يعنې دا څادر د هغه ځای جوړ ؤو.

**توشح**: ښايسته څادر بدن نه راتاوهلو ته توشح وايي. د وشاح پشان يې د بدن نه راتاؤ کړی ؤو. وشاح هار ته وايي. (مرقات ١٦٥/٨)

---

(١) رقم الحديث ٤٣٥٩ أخرجه ابوداود في السنن ٤١٦/٤ رقم الحديث ٤٢٠٦ والترمذي في ١١٠/٥ رقم الحديث ٢٨١٢.

(٢) رقم الحديث ٤٣٦٠ احمد في المسند ٢١٢/٣.

## د يو بدبخته يهودي معامله

﴿۵۲﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَوْبَانِ قِطْرِيَّانِ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو زمانه کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بدن مبارک باندې دوه جامې وې. هغه د قطر

غَلِيظَانِ وَكَانَ إِذَا قَعَدَ

وې. ډېر زياتې پيړې وې. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به زيات وخت پورې کيناستلو او خوله پرې راتلله. نو هغه جامې به په

فَعَرِقَ ثَقُلَا عَلَيْهِ فَقَدِمَ بَزٌّ مِنَ الشَّامِ لِفُلَانٍ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې درندې شوې چې د هغې په وجه به نبي کريم ﷺ ته تکليف وُو. آخر دا چې يو چې فلانی

الْيَهُودِيِّ. فَقُلْتُ: لَوْ

يهودي له چې نوم يې دلته نه دی ذکر کړې شوی د شام نه ټوټې راغلې وې، نو ما عرض وکړو چې که چرې تاسو

بَعَثْتَ إِلَيْهِ فَاشْتَرَيْتَ

يو کس هغه يهودي ته ولېږې چې د هغې سره بو عدهٔ فراغت يعني چې په دې وعده باندې تا ته د کوم ځای نه څه شی د کوم ځای

مِنْهُ ثَوْبَيْنِ إِلَى الْمَيْسَرَةِ

نه راځي نو د هغې قيمت به يې ادا کېږي. او دوه ټوټې به دې اخستی وې چې تاسو د دې تکليف نه بچ شې چې کوم د دې جامو په

فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ فَقَالَ:

وجه تا باندې دی. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا مشوره قبوله کړه او يو کس يې په ذکر کړې وعدې باندې د ټوټې اخستلو لپاره هغه يهودي ته ولېږلو.

قَدْ عَلِمْتُ مَا تُرِيدُ

هغه کس چې د هغه يهودي نه ټوټه وغوښتله، نو هغې ورته وويل چې ستا چې کوم اراده ده په هغې زه پوهېږم. د دې نه بغير

إِنَّمَا تُرِيدُ أَنْ تَذْهَبَ

نور هيڅ غواړې چې دا وخت ته مانه په وعده باندې ټوټه ويسې او بيا وروسته د دې د قيمت ادا کولو نه انکار وکړې. په ظاهره

بِمَالِي فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

خو د دې الفاظ مخاطب هغه کس وُو، خو حقيقت کې د هغې خطاب نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وُو. هغه کس بېرته راغلو او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته يې

كَذَبَ قَدْ عَلِمَ

د هغه يهودي قول نقل کړو. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې يهودي دروغ وويل او هغه خپله هم پوهېږي چې هغې بالکل دروغ خبره د خولې

أَنِّي مِنْ أَتْقَاهُمْ

نه ويستلې ده. حقيقت دا دی چې هغه د تورات په ذريعه ښه خبر دی چې زه د ټولو خلکو نه زيات متقي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وآداهُم | للأمانة. | رَوَاهُ | التِّرمِذِيّ | وَالنَّسَائِيّ[1] |
| او پرهیزګاره یم او د هغوی نه زیات امانت د ادا کونکی یم. | | | | |

**توضیح**: **بز من الشام**: د زم اطلاق دلته مطلق په ټوټه باندې شوی دی. یعنې د شام نه دیهودې ټوټې مدینې ته راوړلی شوی وې.

**لوبعثت**: یعنې که ته یو کس دې یهودي ته ولېږې. (مرقات۸/۱۶۶،۱۶۵)

**الی المیسرة**: ذا د یسار نه دی. مالداري ته وایي. یعنې د روپو راتلو پورې ته په قرضو د هغې نه دوه ټوټې واخلې نو ډېره به ښه وي.

**لکان حسناً**: د شرط جواب مخذوف دی. که لو شرطیه وي او که تمنیه وي نو بیا خو خبره ختمه.

**فارسل**: یعن نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کس ولېږلو. هغې په قرضو باندې د اخستلو خبره وکړه، نو بدبخته یهودي وویل چې آؤ زه خبر یم چې ته یا هغه زما قبضه کول غواړې. چې د قاصد د خبرې پته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ولېږدله نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې یهودي د عناد په وجه دروغ ویلي دي ګنې هغوی ته د تورات به ذریعه ښه معلومه ده چې زه د ټولو انسانانو زیات د الله نه وېرې دونکی یم. (مرقات۸/۱۶۶)

**واداهم**: د ټولو نه زیات ادا کونکی یم. هغه که امانت وي یا د چا قرض وي. (مرقات۸/۱۶۶)

## سرې جامې د ښځو لپاره دي د نارینوؤ لپاره حرامې دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۳﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: رَآنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |
| او حضرت عبدالله بن عمرو ابن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه د کسم په | | | | | |
| وَعَلَى | ثَوْبٌ | مَصْبُوغٌ | بِعُصْفُرٍ | مُوَرَّدًا | فَقَالَ: |
| رنګ شوې ګلابي رنګ جامه اغوستلو باندې ولیدلم، نو ویې فرمایل چې دا څه دي؟ زه په دې خبره | | | | | |
| مَا | هٰذَا؟ | فَعَرَفْتُ | مَا | كَرِهَ | فَانْطَلَقْتُ |
| باندې پوهه شوم چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما دې جامو ته د ناخوښوالي په نظر وکتلې، نو زه ژر لاړم | | | | | |
| فَأَحْرَقْتُهُ | فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او خپلې هغه جامې مې وسوزولې. بیا چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وپوښتل | | | | | |

(۱)رقم الحدیث ۴۳۶۱ أخرجه الترمذي في السنن ۵۱۸/۳ رقم الحدیث ۱۲۱۳ والنسائي في ۲۹۴/۷ رقم الحدیث ۴۶۲۸

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا | صَنَعْتَ | بِثَوْبِكَ؟ | قُلْتُ: أَحْرَقْتُهُ قَالَ: |
| چې تا به خپلو جامو څه وکړل؟ ما عرض وکړو چې هغه مې اوسوځولې. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې | | | |
| أَفَلَا كَسَوْتَهُ بَعْضَ أَهْلِكَ؟ فَإِنَّهُ لَا بَأْسَ بِهِ لِلنِّسَاءِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (١) | | | |
| هغه دې خپلې کومې زنانه ته ولې وانه غوستلې، ځکه د ښځو لپاره دغه شان جامو اغوستلو کې هيڅ باک نشته دی. | | | |

**توضيح**: **بعصفر ک**: کسم کې رنګ شوې جامه مراد ده.

**مورداً**: دا د ورد نه دی. ګلابي رنګ ته وايي. يعنې ګلابي رنګ کې رنګ کړې شوې سره ټوټه مراد وه. (مرقات۸/۱۶۶)

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۵۴﴾وَعَنْ هِلَالِ بْنِ عَامِرٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى | | | |
| او حضرت هلال ابن عامر د خپل پلار نه نقل کوي چې هغې ووېل ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په منی | | | |
| يَخْطُبُ | عَلَى | بَغْلَةٍ | وَعَلَيْهِ |
| کې په خطبه ورکولو کې ليدلی ؤو. هغه وخت نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خچر سپور ؤو. او بدن مبارک | | | |
| بُرْدٌ | أَحْمَرُ | وَعَلِيٌّ | أَمَامَهُ |
| باندې يې د سرو پټو والا څادر ؤو. او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته ولاړ ؤو. | | | |
| يُعَبِّرُ | عَنْهُ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُدَ (٢) |
| چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفاظ يې خلکو ته رسول. | | | |

**توضيح**: **برد احمر**: قاموس کې يې ليکلې دي "**البرد بالضم ثوب مخلط**" د دې نه معلومه شوه چې برد پټيدار جامو ته وايي. دلته د برد احمر نه مراد هم دغه پټيدار څادر دی. خالص سرې جامې مراد نه دي. (مرقات۸/۱۶۷)

**وعلي أمامه يعبر عنه**: دا چې د حج موسم ؤو. مجمع زيات وه. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اواز به چې تر کوم ځای پورې رسيدلو د هغې نه مخې به حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول رسولو. د دې نه د مکبر الصوت د استعمال قاعده ثابتېږي. يعنې د لاود سپيکر د استعمال جواز ملاوېږي. (مرقات۸/۱۶۷)

---

(١) رقم الحديث ۴۳۶۲ اخرجه ابوداود في السنن ۳۳۵/۴ رقم الحديث ۴۰۶۷ وابن ماجه في ۱۱۹۱/۲ رقم الحديث ۳۶۰۳.

(٢) رقم الحديث ۴۳۶۳ اخرجه ابوداود في السنن ۳۳۸/۴ رقم الحديث ۴۰۷۸ واحمد في المسند۴۷۷/۳.

## د تور څادر ذكر

| |
|---|
| ﴿۵۵﴾وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: صُنِعَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُرْدَةٌ سَوْدَاءُ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره تور څادر تيار كړى شو چې |
| فَلَبِسَهَا فَلَمَّا عَرِقَ فِيهَا وَجَدَ رِيحَ |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ استعمال كړو، خو چې د هغې په وجه پرې خوله راغله او د هغې د وړئ بوې راؤوتلو |
| الصُّوفِ فقذفها. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۱) |
| نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لطافت طبع د ناخوښئ په بناء هغه غوزار كړو. |

**توضيح**: د وړئ نه جوړ شوى تور څادر ؤو. دې عموماً خوله راځي، خوله او د اوبو لړېدلو په وجه د وړئ د ټوټې نه يو قِسم بوې ځي. د دې بو بوې په وجه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ويستلو ځكه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معاٌمله د فرښتو سره وه.

## زنګون ماتولو باندې د ناستې حكم

| |
|---|
| ﴿۵۶﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو موقع كې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې حاضر شوم، نو |
| وَهُوَ مُحْتَبٍ بِشَمْلَةٍ قَدْ وَقَعَ |
| هغه وخت نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څادر په ذريعه په ماتو زنګونانو ناست ؤو. او د هغه څادر په غاړو |
| هُدْبها على قَدَمَيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۲) |
| باندې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قدمونه پراته ؤو. |

**توضيح**: **محتب**: د احتباء صورت ذكر مخكې شوى دى. په مات زنګونانو ناسته كيناستل منع دي، خو چې د ستر انتظام او اهتمام وي نو بيا د ممانعت وجه ختمه شي. دلته همدغه شان وه. (مرقات ۱۶۷/۸)

**هدبها**: يعنې د هغې لمن قدمونو باندې راغلې وي. چې د پردې انتظام پرې كېدلو. (مرقات ۱۶۷/۸)

(۱) رقم الحديث ۴۳۶۴ أخرجه ابوداود في السنن ۳۳۹/۴ رقم الحديث ۴۰۷۴ وأحمد في المسند ۲۱۹/۶.

(۲) رقم الحديث ۴۳۶۵ أخرجه أبوداود في السنن ۳۳۹/۴ رقم الحديث ۴۰۷۵ وأحمد في المسند ۶۳/۵.

## ښځه باریکه جامه ځنګه استعمال کړي

﴿۵۷﴾وَعَن دِحيَةَ بن خليفةَ قَالَ: أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبَاطِيَّ
او حضرت دحلیه ابن خلیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره قبطي جامې راغلې.
فَأَعْطَانِي مِنهَا قُبطِيَّةً فَقَالَ: اصْدَعْهَا
نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې یو قبطي جامه ماله راکړه. او وې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا وشلوه
صَدْعَيْنِ فَاقْطَعْ أَحَدَهُمَا قَمِيصًا وَأَعْطِ الآخَرَ امْرَأَتَكَ تَخْتَمِرُ بِهِ.
او دوه ټوټې یې کړه. د یو نه قمیص جوړه کړه او بله خپلې ښځې ته ورکړه هغه به ترېنه لوپټه جوړه کړي.
فَلَمَّا أَدْبَرَ قَالَ: وَأْمُرِ امْرَأَتَكَ
بیا چې کله دحیه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یعنې زه بېرته لاړم نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې خپلې ښځې ته دا او ایه چې د دې
أَنْ تَجْعَلَ تَحْتَهُ ثَوْبًا لَا يَصِفُهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]
ټوټې نه لاندې بله جامه کېږدي ځکه د دې د نرۍ والي په وجه د هغې ویختان او بدن ښکاره نه شي.

**توضیح: قباطي:** د مصرې جامې یو قِسم دی. **اصدعها:** یعنې دا وشلوه او دوه ټوټې یې کړه.

**تختمر:** یعنې د دې نه لوپټه جوړه کړي. (مرقات ۱۶۸/۸)

**لایصفها:** یعنې د نرۍ والي په وجه د هغې د بدن حالت معلوم نشي، ښکاره نه شي، نو ځکه د نرۍ جامې د لاندې دې یو بله جامه هم واغوستلی شي چې بدن پرې پټ شي او که کوم د بدن بیان کوي نو چې وې نکړې شي. د دې نه معلومه شوه چې د ښځې لپاره دغه قِسمه باریکه جامې اغوستل منع دی. (مرقات ۱۶۹/۸، ۱۶۸)

## جامه کې اسراف کول منع دی

﴿۵۸﴾وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا
او د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې یو ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې خوا ته تشریف راوړو
وَهِيَ تَخْتَمِرُ فَقَالَ: لَيَّةً لَا لَيَّتَينِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [2]
نو هغه وخت هغې لوپټه اچولې وه. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې د لوپټې یو پلو په سر واچوه. د بل پلو ضرورت نه ؤو.

[1] رقم الحديث ۴۳۶۶ أخرجه أبوداود في السنن ۳۶۳/۴ رقم الحديث ۴۱۱۶ وأحمد في المسند ۲۰۵/۵.
[2] رقم الحديث ۴۳۶۷ أخرجه أبوداود في السنن ۳۶۳/۴ رقم الحدث ۴۱۱۵ وأحمد في المسند ۲۹۶/۶.

**توضیح**: لیة: یعنې سر باندې د لوپټې یو پلو د ستر لپاره کافي دی. بل پلو اچولو کې اسراف دی. داسې کول پکار نه ؤو. حضرت ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهَا لوپټه په سر باندې راتاو کړې وه. چې د پټکي مشابهت هم په کې ؤو. او داسې کول بې ضرورته هم ؤو، نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ منع و کړه. لیة یو پلو او لیتین دوه پلوه.

## الفصل الثالث

## د لنګ او پرتوګ تر پونډو پورې کیدل خوښ کړی شویدي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۹﴾عَن | ابنِ | عمرٍ | قَالَ: | مَرَرۡتُ | بِرَسُولِ | اللّٰهِ | صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ فرمایي چې یو ورځ زه د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ خوا کې تېر شوم. هغه وخت | | | | | | | |
| وَفِي | إِزَارِي | اسۡتِرۡخَاءٌ | فَقَالَ: يَا | عَبۡدَ | اللّٰهِ | | |
| زما لنګ زوړند ؤو. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې عبدالله خپل تهبند اوچت کړه نو ما لږ شان اوچت کړو. | | | | | | | |
| ارۡفَعۡ | إِزَارَكَ | فَرَفَعۡتُهُ | ثُمَّ | قَالَ: | | | |
| نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې لږ شان نور اوچت کړه، ما نور اوچت کړو. بیا حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ و فرمایل | | | | | | | |
| زِدۡ | فَزِدۡتُ | فَمَا | زِلۡتُ | أَتَحَرَّاهَا | بَعۡدُ | | |
| چې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ د دې حکم نه وروسته زه مسلسل دې عمل یعنې لنګ پورته کولو ته متوجي یم. | | | | | | | |
| فَقَالَ: | بَعۡضُ الۡقَوۡمِ: | إِلَى أَيۡنَ؟ | قَالَ: إِلَى أَنۡصَافِ السَّاقَيۡنِ. | رَوَاهُ مُسلم [۱] | | | |
| ځینې خلکو د هغې نه وپوښتل چې ته خپل لنګ څومره اوچت ساتې. هغې وویل چې تر نیمې پونډو پورې. | | | | | | | |

**توضیح**: استرخا: سست والی په کې ؤو. (مرقات۸/۱۶۹)

**اتحرها**: یعنې د دې مقدار ساتنه به مې کوله او خیال به مې کولو چې د دې نه لږ هم لاندې نه شي، ځکه نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ هم دغه خوښ کړی ؤو. معلومه شوه چې تر نیم ساق پورې لنګ پکار دی. آخري حد دا دی چې د ښنګرو نه لاندې نه وي. ها ضمیر فعلة د مخذوف اړخ ته راجع دی یا زیدها هو په طرز باندې دی. د ښنګرو نه لاندې ازار بند یا د پرتوګ حکم او مسئله په ابتدائی بحثونو حدیث ۹ او ۱۰ کې تفصیل سره شوی دی. (مرقات۸/۱۶۹)

---

[۱] رقم الحدیث ۴۳۶۸ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۶۵۳/۳ رقم الحدیث ۴۷-۲۰۸۶)

## د لنګ زوړندلو حرمت د تکبر په وجه دی

﴿۶۰﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ
او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمايل چې کس چې د تکبر په وجه خپل
خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.
تهبند يا پاجامه د ښنګرو نه لاندې زوړندوي نو د قيامت په ورځ به الله هغې ته د رحمت په نظر نه ګوري. دې اوريدلو
فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: يَا رَسُولَ اللهِ
سره ابوبکر رضي الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله صلی الله علیه وسلم! کله کله داسې کيږي چې زما د قصد او ارادې نه بغير زما تهبند
إِزَارِي يَسْتَرْخِي إِلَّا
زوړند شي او د ښنګرو پورې يا د ښنګرو نه لاندې زوړند شي، خو دا چې زه يې هر وخت خيال وساتم يعنی که زه ورته هر
أَنْ أَتَعَاهَدَهُ. فَقَالَ لَهُ
وخت متوجې يم نو بيا زما لنګ کله هم نه شي زوړنديدلی، خو شرعي يا طبعي ستونزو له وجې زما هر وخت متوجې کيدل
رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
امکان نه لري، نو داسې صورت کې زما لپاره څه حکم دی؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم هغې ته وفرمايل چې
إِنَّكَ لَسْتَ مِمَّنْ يَفْعَلُهُ خُيَلَاءَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]
ته په هغه خلکو کې يې چې د تکبر په وجه خپل تهبند يا پاجامه زوړندولی شي.

**توضيح: فقال ابوبکر**: لنګ د زوړندولو وعيد چې ابوبکر رضي الله عنه واوريدلو نو پريشانه شو او عرض يې وکړو چې يا رسول الله صلی الله علیه وسلم! زه د ډېر کوشش کوم چې لنګ لاندې رانشي خو د خيټې د غټوالې په وجه کله کله بې اختياره لاندې راشي، نو دې کې ګناه شته دی؟ (مرقات ۸/۱۷۰)

**خيلاء**: يعنې ته د هغه خلکو نه نه يې چې د تکبر په توګه پرتوګ زوړندوی.

**سوال**: کوم خلک چې د ښنګرو نه لاندې پرتوګ يا پتلون زوړندوي او هغه جائز ګڼې نو هغوی د دې حديث نه استدلال کوي. چې وګوره د تکبر په توګه داسې کول جائز نه دي. مونږ تکبر نه کوو. لهذا زمونږ لپاره جائز دي.

**جواب**: د هغه خلک د دې حديث نه استدلال کول غلط دی. اول دا چې د صديق اکبر رضي الله عنه خبره د مجبورۍ وه. قصد او اراده نه وه. او دا خلک قصد او اراده کوي. دويم ځکه غلط دی چې د

[1] رقم الحديث ۴۳۶۹ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۹/۷ رقم الحديث ۳۶۶۵ وابوداود في السنن ۳۴۵/۴ رقم الحديث ۴۰۸۵.

ابوبكر رضي الله عنه نه به د مجبورئ به وجه كله كله داسې عمل كېدو. او دا خلك هميشه لپاره دا جائز ګڼي. دريم دا چې حضرت صديق اكبر رضي الله عنه به دا عمل ګناه ګڼله او دا خلك يې ګناه نه ګڼي. څلورم دا چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د صحابه كرامو رضي الله عنهم په ټول جماعت كې صرف ابوبكر رضي الله عنه ته د دې اطمينان وركړى ؤو چې ستا عمل د تكبر په توګه نه دى نو ځكه ګناه نه ده. دا يو خاص اجازت ؤو. باقي نورو صحابه كرامو كې هيڅ يو كس ته اجازت نۀ ؤو ملاو شوى، ځكه دا عمل خپله د تكبر دى. دې كې كه يو كس د تكبر اراده وكړي او كه نه، دا عمل متكبرانه دى. حضرت عمر، عثمان او علي رضي الله عنهم ته خو اجازت نه ؤو ملاو شوى او نن سبا په ګناهونو كې ككړ شوى يو كس د خپل ځان لپاره جواز ګوري.

لا يقاس الملوك بالحدادين

چه نسبت خاک را با عالم پاک

## اصل كې څادر وغيره د شاته نه منع دى

| |
|---|
| ﴿۶۱﴾ وَعَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَأْتَزِرُ |
| او حضرت عكرمه فرمايي چې ما حضرت ابن عباس رضي الله عنه په داسې تهبند تړلو باندې ليدلى دى چې د |
| فَيَضَعُ حَاشِيَةَ إِزَارِهِ مِنْ مُقَدَّمِهِ عَلَى ظَهْرِ قَدَمِهِ |
| هغه تهبند مخكنۍ غاړه خو به يې د خپلو پښو پورې ساته او د هغې وروستنۍ غاړه به يې د ښنګرو نه لاندې |
| وَيَرْفَعُ مِنْ مُؤَخَّرِهِ قُلْتُ لِمَ تَأْتَزِرُ هٰذِهِ الْإِزْرَةَ؟ |
| سالته. ما دې ليدلو سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه وپوښتل چې ته (كله كله) داسې تهبند ولې تړې؟ |
| قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتَزِرُهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| هغه ووېل چې ما نبي كريم صلى الله عليه وسلم ليدلى دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به (كله كله) داسې تهبند تړلو. |

## پټكى تړل د فرښتو علامت دى

| |
|---|
| ﴿۶۲﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلَيْكُمْ بِالْعَمَائِمِ |
| او حضرت عباده رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ته پټكي تړل ضروري وګڼه ځكه عمامه تړل |
| فَإِنَّهَا سِيمَاءُ الْمَلَائِكَةِ |
| د فرښتو علامت دى. او هغه وخت چې د جنګ بدر په موقعه چې كومې فرښتې د مسلمانانو د مرستې لپاره راغلې وې هغوى |

---

[1] رقم الحديث ۴۳۷۰ أخرجه ابوداؤد في السنن ۴/۳۵۴ رقم الحديث ۴۰۹۶

و أخوها خلف ظهورکم. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ[1]

پټکي ترلي ؤو، لکه څنګه چې الله فرمايلي دي او د پټکي شملې شاته پرېږدئ ځکه فرښتې هم په دې شکل راغلې وي.

## د ښځو لپاره داسې باريکه لباس منع دی چې په کوم کې بدن ښکاري

﴿۶۳﴾وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ

او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دی چې يو ورځ حضرت اسماء بنت ابوبکر رضي الله عنها

دَخَلَتْ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهَا ثِيَابٌ رِقَاقٌ

د نبي کريم صلى الله عليه وسلم خدمت کې حاضره شوه. د هغې بدن باندې باريکه جامې وې.

فَأَعْرَضَ عَنْهُ وَقَالَ:يَا أَسْمَاءُ إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيضَ

نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ې ليدلو سره و فرمايل د هغې نه مخ واړولو او ويې فرمايل چې اى اسماء!

لَنْ يَصْلُحَ أَنْ يُرَى

ښځه چې کله د حيض ورځو ته ورسيږي يعنې کله چې هغه بالغه شي نو هرګز صحيح نه دي چې د هغې

مِنْهَا إِلَّا هَذَا وَهَذَا . وَأَشَارَ إِلَى وَجْهِهِ وَكَفَّيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

د بدن يو اندام هم وليدلى شي بغير د دې نه او د دېنه ويلو سره نبي کريم صلى الله عليه وسلم د خپل مخ او لاسونو اړخ ته اشاره وکړه.

**توضيح**: اسماء بنت ابوبکر رضي الله عنها د حضرت عائشه رضي الله عنها خور او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ښينه وه. د بلوغت نه وروسته هغې باريکې جامې واغوستلې. نبي کريم صلى الله عليه وسلم منع کړه.

**المحيض**: د دې نه مراد بلوغت دی، ځکه د حيض راتلل د بلوغت علامت دی.

د دې حديث نه معلومه شوه چې چې که کومې ښځې داسې باريکه جامې اغوستې وي د هغې نه لاندې د هغې بدن ښکاري نو هغه ښځه په حقيقت کې د بربنډې ښځې په حکم کې ده. چې د **کاسيات عريات** مصداق دی. (مرقات۱۷۱/۸)

**الا هذا وهذا**: د دې نه مراد د ښځې مخ او تلی دی. د مجبورۍ په وجه د دې کولاؤول د ښځې مجبوري ده. د دې مطلب دا نه دی چې دې اړخ ته کتل جائز دي. البته که ځای د فتنې وي نو د ښځې لپاره بغير د ضرورت نه مخ ښکاره کول منع کېږي. (مرقات۱۷۱/۸)

---

[1] رقم الحديث ۴۳۷۱ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۱۷۶/۵ رقم الحديث ۶۲۶۲.
[2] رقم الحديث ۴۳۷۲ أخرجه أبوداود في السنن ۳۵۷/۴ رقم الحديث ۴۱۰۴.

## نوي جامه اغوستلو سره كومه دعا ويل كېږي

﴿۶۴﴾وَعَنْ أَبِي مَطَرٍ قَالَ: إِنَّ عَلِيًّا اشْتَرَى ثَوْبًا بِثَلَاثَةِ دَرَاهِمَ
او حضرت ابو مطر وايي چې يو ورځ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو ټوټه په درې درهمه واخستله او كله
فَلَمَّا لَبِسَهُ قَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي رَزَقَنِي مِنَ الرِّيَاشِ
يې چې هغه واغوستله نو وې ويل چې ټول تعريفونه د الله لپاره دي. چې هغې ماته د زينت والا
مَا أَتَجَمَّلُ بِهِ فِي النَّاسِ وَأُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي
اسبابو نه هغه څيز راكړو چې د هغې په ذريعه مونږ د خلكو مخكې ارام هم كوؤ او ستر هم پټوؤ. بيا
ثُمَّ قَالَ: هٰكَذَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ. رَوَاهُ أَحْمد[1]
حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې دغه شان ما نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جامو د اغوستلو نه وروسته دا حمد او ثناء اورېدلې ده.

**توضيح**: رياش: د ريش جمع ده. د لباس په معنى كې دى. (مرقات ۱۷۱/۸)

**اتجمل**: د زينت اختيارولو په معنى كې دى. (مرقات ۱۷۱/۸)

**اواري**: د مواراة نه دى د پټولو په معنى كې دى. دلته ستر پټول معنى كې دى. (مرقات ۱۷۱/۸)

﴿۶۵﴾وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: لَبِسَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ثَوْبًا جَدِيدًا
او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جامې واغوستلې نو
فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَسَانِي مَا
نو دا دعا يې وكړه چې: ټول تعريفوه الله لره دي چې ماته يې دا جامې د اغوستلو لپاره راكړې چې
أُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي ثُمَّ قَالَ:
د هغې په ذريعه زه خپل ستر هم پټوم او خپل ژوند كې پرې د خلكو مخكې ارام هم كوم. بيا هغه وويل
سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ لَبِسَ ثَوْبًا جَدِيدًا
چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اسې اورېدلي دي چې كوم كس نوې جامې واغوندي نو دا دعا دې وغواړي. او
فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَسَانِي
ټول تعريفوه الله لره دي چې ماته يې دا جامې د اغوستلو لپاره راكړې چې د هغې په ذريعه زه خپل
مَا أُوَارِي بِهِ عَوْرَتِي وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي ثُمَّ عَمَدَ إِلَى الثَّوْبِ
ستر هم پټوم او خپل ژوند كې پرې د خلكو مخكې ارام هم كوم. بيا هغه جامې چې زړې شوې دي (يعني كومې جامې چې

[1] رقم الحديث ۴۳۷۳ أحمد في المسند ۱۵۷/۱

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِي | أَخْلَقَ | فَتَصَدَّقَ | بِهِ | كَانَ | فِي | كَنَفِ | اللهِ |

هغې د خپل بدن نه ويستلي دي) چې چا له يې د الله په نوم ورکړي نو په ژوندون کې او د مرګ نه وروسته (يعنې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَفِي | حِفْظِ | اللهِ | وَفِي | سِتْرِ | اللهِ | حَيًّا |

دنيا کې هم او به آخرت کې هم) به د الله په پناه کې وي. د الله په محافظت کې به وي. او د الله د عفو

وَمَيِّتًا ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[1]

او د مغفرت په پرده کې به وي. (احمد، ترمذی، ابن ماجه) او ترمذی ويلي دي چې دا حديث غريب دی.

**توضيح:** **كنف الله: اى فى ستره و حفظه** د دې نه وروسته کلمات د دې کلمې لپاره تاكيد او تفسير او توضيح ده. (مرقات۸/۱۷۲)

**حيا و ميتا:** يعنې په دنيا کې هم او په آخرت کې هم. (مرقات۸/۱۷۲)

## حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا باريكه ټوټه وشلوله

﴿۶۶﴾وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ أَبِي عَلْقَمَةَ عَنْ أُمِّهِ قَالَتْ: دَخَلَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ

او علقمه ابن ابو علقمه د خپل پلار نه روايت کوي چې هغې بيان کړل چې يو ورځ د عبد الرحمن ابن ابو بكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى | عَائِشَةَ | وَعَلَيْهَا | خِمَارٌ | رَقِيقٌ |

لور حفصه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته په داسې حالت کې لاړه چې هغې باريكه لوپټه اچولې وه.

فَشَقَّتْهُ عَائِشَةُ وَكَسَتْهَا خمارا كثيفا. رَوَاهُ مَالك[2]

عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا هغه باريكه ټوټه وشلوله او هغې له يې يوه پيړه لوپټه ورکړه.

**توضيح:** دا خو د باريكې لوپټې خبره وه كه هغې باريک قميص يا پرتوګ ليدلى وى نو څه به كولى؟ او كه نيمه بربنډ لباس كې يې ښځې ليدلى وى نو څه به كولى؟

## زمانه بدليدلو سره خلک څنګه بدليدل؟

﴿۶۷﴾وَعَنْ عَبْدِ الْوَاحِدِ بْنِ أَيْمَنَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ

او حضرت عبد الواحد ابن ايمن د خپل پلار نه نقل كوي چې هغې وويل يو ورځ زه د حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَعَلَيْهَا | دِرْعٌ | قِطْرِيٌّ | ثَمَنُ |

خدمت کې حاضر شوم نو هغه وخت د هغې په بدن باندې (د مصر جوړې شوې) د قطري ټوټې قرتۍ وه.

---

(۱) رقم الحديث ۴۳۷۴ أخرجه الترمذي في السنن ۵۲۱/۴ رقم الحديث ۳۵۶۰ وابن ماجه في ۱۱۷۶ رقم الحديث ۳۵۵۷ .

(۲) رقم الحديث ۴۳۷۵ أخرجه مالک في الموطا۹۱۳/۲ رقم الحديث ۶ من كتاب اللباس.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَمْسَةِ | دَرَاهِمَ | فَقَالَتْ: | ارْفَعْ | | | | | | |
| چې قیمت یې پنځه درهمه ؤو. حضرت عائشه رضي الله عنها د خبرو په دوران کې ماته وویل چې لږ زما | | | | | | | | | |
| بَصَرَكَ | إِلَى | جَارِيَتِي | انْظُرْ | إِلَيْهَا | فَإِنَّهَا | تُزْهَى | أَنْ | تَلْبَسَهُ | فِي الْبَيْتِ |
| دې وینځې ته وګوره دا څومره غرور کوي. دا کور کې دا قسمه جامې اغوستلو ته تیاره نه وه خو | | | | | | | | | |
| وَقَدْ | كَانَ | لِي | مِنْهَا | دِرْعٌ | عَلَى | عَهْدِ | رَسُولِ اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| دا چې دا واغوندي او بهر ؤوځي. حال دا چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې ماسره دغه شان | | | | | | | | | |
| فَمَا | كَانَتِ | امْرَأَةٌ | تُقَيَّنُ | بِالْمَدِينَةِ | | | | | |
| یعنې د قطري ټوټې یو قمیص وه. او مدینه کې به چې کومې ښځې خپل واده کې یا د بل د واده په | | | | | | | | | |
| إِلَّا | أَرْسَلَتْ | إِلَيَّ | تَسْتَعِيرُهُ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[1] | | | | |
| وخت کې خپل ارائش کولو نو ما پسې به یې څوک راولېږلو او عرایتاً به یې غوښتله. | | | | | | | | | |

**توضیح**: درع: قمیص ته وایي.

**قطري**: معمولې قسم قطري یمنې ټوټه وه. بحرین د علاقې د قطر جوړه شوې وه.

**ثمن خمسة دراهم**: ای ثمنه یعنې د هغې قیمت پنځه درهمه ؤو.

**وانظر الیها**: یعنې په تعجب سره دې ته وګوره.

**تُزْهٰی**: یعنې دا سپکه ګڼي او دې باندې راضي نه ده. تا باندې پیش دی. زا ساکن دی. او ها باندې فتحه ده. بیا یا باندې الف مقصوره دی. د تدعی پشان دی. تا باندې زبر هم جائز دی. (مرقات۸/۱۷۳)

**تُقَیَّنُ**: د تقیین نه د مجهول صیغه ده. تزیین په معنیٰ کې دی. یعنې کله به چې د شب زفاف لپاره به ښځې ځان سنګار کړو او خاوند له به تله نو هغه ښځې به ماته استاځی راولېږلو او دا ټوټه به یې د عاریت په توګه غوښتله. چې دې سره زینت حاصل کړي. نن زمانه کې دومره بدلون راغلی دی چې د شریفانو د لورګانو نه بغیر د یو وینځه د کور دننه دا لباس اغوستلو ته تیاره نه ده. بدلتے ہیں یہ اسمان کیسے کیسے. دې حدیث کې د عهد رسالت نه د لږوالي د خرابوالي اړخ ته اشاره ده. یو حدیث کې دي چې هرې اولنۍ ورځې نه بله ورځ خرابه راځي. شاعر ته تغیر داسې بیان کړی دی. (مرقات۸/۱۷۳)

کیسے کیسے ویسے ویسے ہو گئے ویسے ویسے کیسے کیسے ہو گئے

---

([1]) رقم الحدیث ۴۳۷۶ أخرجه البخاري في صحیحه ۵/۲۸۶ رقم الحدیث ۲۶۲۸

## ريښمي لباس د نارينؤ لپاره حرام دي

﴿٦٨﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: لَبِسَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا قَبَاءَ دِيبَاجٍ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ريښمي قبه واغوستله چې

أُهْدِيَ لَهُ ثُمَّ أَوْشَكَ أَنْ نَزَعَهُ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له د هدې په توګه وركړى شوې وه، خو ژر يې هغه قبه د بدن نه ويستله او

فَأَرْسَلَ بِهِ إِلَى عُمَرَ فَقِيلَ: قَدْ أَوْشَكَ مَا انْتَزَعْتَهُ

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې ولېږله. يو صحابي دې ليدلو سره عرض وكړو چې تاسو دا قبه دومره ژر ولې ويستله؟

يَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: نهاني عَنهُ جبريلُ

اې دالله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل زه جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې داغوستلو نه منع كړې ؤو. (د دې نه معلومه شوه

فَجَاءَ عُمَرُ يَبْكِي

چې هغه قبه د ريښمو د تو ټې د حرمت نه مخكې اغوستې وه) بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا واقعه معلومه شوه نو هغه په ژړه حاضر شو

فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ كرهتَ أَمْرًا

او عرض يې وكړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! كوم شى چې ستا نه دې خوښ (يعني د دې ريښمي قبه د اغوستلو) نو

وَأَعْطَيْتَنِيهِ فَمَا لِي؟

ماته دې راكړه. (چې زه دا واغوندم) دې صورت كې به زما څه حال وي؟ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل

فَقَالَ: إِنِّي لَمْ أُعْطِكَهُ تَلْبَسُهُ إِنَّمَا أَعْطَيْتُكَهُ تَبِيعُهُ.

"ما هغه قبه تا له د دې لپاره نه ده دركړې چې ته يې واغوندې بلكې ته دا خرڅه كړه"، نو

فَبَاعَهُ بِأَلْفَيْ دِرْهَمٍ. رَوَاهُ مُسلم[1]

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه قبه په دوه زره (۲۰۰۰) درهمه خرڅه كړه.

**توضيح**: **اوشك ان نزعه**: يعنې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډېر ژر هغه قبه د اغوستلو نه وروسته ويستله، نو پدې ترېنه چا وپوښتل چې (**قد او شك الخ**) يعنې تا دومره ژر دا قبا ولې ويستله. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې اوس اوس جبرائيل امين زه منع كړم. د حرمت نه مخكې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبه اغوستې وه. بيا د حرمت حكم راغلو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبه ويستله او حضرت

---

[1] رقم الحديث ۴۳۷۷ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۴۴/۳ رقم الحديث (۱۶-۲۰۷۰)

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې هديه كړه. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړه راغلو چې يو څيز حرام ؤو، نو آيا زه د دين نه دومره لرې يم چې حرام استعمالولې شم. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اطمينان وركړو چې د اغوستلو لپاره نه بلكې د خرڅولو لپاره مې دركړې وه. (مرقات۸/۱۷۳)

## كه د جامو تنړۍ د ريښمو وي نو د سړو د پاره جائز دي

| |
|---|
| ﴿۶۹﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: إِنَّمَا نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې دې كې هيڅ شك نشته دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع كړې ده |
| عَنْ ثَوْبِ الْمُصْمَتِ مِنَ الْحَرِيرِ فَأَمَّا الْعَلَمُ |
| د هغه جامو د اغوستلو نه چې خالص ريښم وي البته كه د ريښم كوټ يا بيل د څلور ګوتو نه زيات نه وي |
| وَسَدَى الثَّوْبِ فَلَا بَأْسَ بِهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| او هغه جامه چې د هغې لاندې حصه كې ريښم وي نو د هغې په استعمالولو كې هيڅ باك نشته دي. |

**توضيح**: **المصت**: دا هغه ټوټې ته وايي چې خالص ريښم وي يعني تنسته او اېيرن دواړه ريښم وي، خو كه تنسته د ريښم وي او اېيرن د سپنړسو وي نو هغه د سوت په حكم كې دي. چې جائز دي. د دې برعكس ناجائز دي. عربئ كې دوه لفظونه راځي يو د "سدیٰ" لفظ دی چې د جامو په اوږد والې كوم تارونه استعمالېږي. هغې ته سدیٰ (تانا) وايي. او د جامو په پلن والې كې چې كوم تار استعمالېږي هغې ته **لحمة** بانا وايي. د هرې جامې بنياد **لحمه** وي. **سدیٰ** اصل نه دی. لهذا كه **لحم** د ريښمو وي نو ټوټې ته ريښمي وايي او كه **لحمه** د سوت وي نو ټوټې ته به سوتي ويل كېږي. همدغه اشاره دې حديث كې ده. **العلم**: د جامو د پاسه ګلان او **كشيده كاري** ته علم وييي. د څلورو ګوتو برابر د ريښمو وغيره ګلان وغيره جائز دي. (مرقات۸/۱۷۴)

## شال استعمالول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۷۰﴾ وَعَنْ أَبِي رَجَاءٍ قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ |
| او حضرت ابورجاء رحمه الله (تابعي) فرمايي چې يو ورځ حضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د كور نه) راؤتلو او |
| وَعَلَيْهِ مِطْرَفٌ مِنْ خَزٍّ وَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| زمونږ خوا له راغلو. هغه وخت د هغې په بدن باندې د خز مطف (شال) ؤو. هغې وويل چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |

---

[1] رقم الحديث ۴۳۷۸ أخرجه ابوداود ى السنن ۳۲۹/۴ رقم الحديث ۴۰۵۵ واحمد في المسند ۲۱۸/۱

مَنْ أَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِ نِعْمَةً فَإِنَّ اللهَ يُحِبُّ أَنْ يَرَى أَثَرَ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ . رَوَاهُ أَحْمَد[1]

چې "كم كس له الله خپل نعمت وركړي نو الله دا خبره خوښوي چې د هغه بنده په بدن د هغه نعمت اثر وليدلى شي".

**توضيح: مطرف:** صاحب قاموس ليكلي دي "**والمطرف كمكرم رداء من خز مربع ذواعلام**" د ښه معلومه شوه چې د مطرف په ميم باندې پيش دى. طا ساكن دى. را باندې زبر دى. بيا فا ده يعنې مطرف چې د مكرم په وزن دى. د خز يو خاص قِسم دهارى دار څادر (شال) ته وايي. اوس دلته پوښتنه ده چې كله د مطرف په مفهوم كې خز (ريښم) داخل شو، نو بيا حديث كې د من خز د ذكر كولو څه ضرورت ؤو. د دې جواب شارحين دا وركوي چې دلته د خز نه مراد نه دى بلكې د خز اطلاق چې څنګه په خالص ريښم باندې كيږي هم دغه شان د دې اطلاق د ريښم او د وړئ دواړو نه جوړې شوې ټوټې باندې هم كيږي. دلته همدغه ټوټه مراد ده. او د هم دې په وجه د دې استعمال جواز راغلى دى. بهرحال دلته د مطرف نه مراد يو خاص قِسم ښايسته ګل دار شال مراد دى. چې هغې باندې په جائز مقدار پورې د ريښمو ګلان جوړ شوې وي. (مرقات۱۷۵/۸)

## ښه وخورئ وڅكئ خو اسراف مه كوئ

﴿۴۱﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: كُلْ مَا شِئْتَ وَالْبَسْ مَا شِئْتَ

او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې هغې وفرمايل (جائز او د مباح څيزونو نه) چې مو څه خوښه وي خورئ

مَا أَخْطَأَتْكَ اثْنَتَانِ: سَرَفٌ وَمَخِيلَةٌ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ[2]

او چې څه مو خوښه وي نو اغوندئ خو هغه وخت كې د دوه څيزونو يعنې د اسراف او د تكبر تاسو كې چلن ونكړي".

**توضيح: ما اخطاءتك:** يعنې چې تر څو پورې تاسو كې د خوراك او څښاك دوه خصلتونو اسراف او تكبر شامل نه وي نو تر هغه وخت پورې خوراك او څښاك مباح دى. چې اسراف راشي يا تكبر راغلو نو اوس به مباح په كراهت كې راشي، نو بيا د دې فراخوالي هيڅ ګنجائش نه وي. (مرقات۱۷۶/۸، ۱۷۵)

﴿۴۲﴾وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ:

او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيكه نه نقل كوي چې هغې وويل چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

(1) برقم الحديث ۴۳۷۹ احمد في المسند ۴۳۸/۴.

(2) برقم الحديث ۴۳۸۰ البخاري تعليقاً ۲۵۲/۱باب قول الله تعالي (قل من حرم زينة .....) كتاب اللباس.

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُوا وَاشْرَبُوا
وفرمایل د خپل ضرورت او حاجت مطابق خوراک کوئ او اغوندئ او کوم څیز چې ستاسو د ضرورت او حاجت
وَتَصَدَّقُوا وَالْبَسُوا مَا لم يُخَالِطْ إِسْرَافٌ
نه زیات وي نو هغه د الله په لاره کې خرچ کړئ. او د اغوستلو به څیزونو کې چې څه غواړئ اغوندئ
وَلَا مَخِيلَةٌ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه[1]
چې تر څو پورې هغې کې اسراف او تکبر نه وي.

## سپینو جامو کې خپل رب سره ملاقات وکړئ

﴿۴۳﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَحْسَنَ مَا زُرْتُمُ اللهَ
او حضرت ابو درداء رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل هغه بهترینه تو ته چې هغه تاسو و اغوندئ
فِي قُبُورِكُمْ وَمَسَاجِدِكُمُ الْبَيَاضُ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[2]
او تاسو خپلو قبرونو کې او خپلو جوماتونو کې د الله تعالی سره ملاقات کوئ، سپینه تو ته ده.

**توضیح: في قبورکم:** قبرونو کې سپینو تو تو سره د الله سره د ملاقات مطلب دا دی چې سړی کله مړ شي نو بهتر او ښه دا دي چې د هغې کفن سپین وي. که د مجبورۍ په وجه بل رنګ وي هم جائز دي. قبر کې د سړي ملاقات د خپل رب سره کیږي ځکه قبر د یو کندې نوم نه دی بلکې عالم برزخ مراد دی.

**ومساجدکم:** سړی چې کله د لمونځ لپاره جومات ته ځي نو لمونځ کې د الله سره ملاقات کیږي. هغه وخت کې هم سپین لباس کې ملاقات بهتر او ښه دی. د دې حدیث نه د سپین لباس فضیلت ثابتیږي چې د خپل رب سره د ملاقات لپاره د ټولو نه ښه لباس همدغه سپین لباس دی.



---

(1) رقم الحديث ۴۳۸۱ أخرجه النسائي في السنن ۷۹/۵ رقم الحديث ۲۵۵۹ وابن ماجه في ۱۱۹۲/۲

(2) رقم الحديث ۴۳۸۲ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۸۱/۲ رقم الحديث ۳۵۶۸

# باب الخاتم

## ګوتمه د اغوستلو بیان

## الفصل الاول

### د سرو زرو ګوتمه د نارینهٔ لپاره حرامه ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: اتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ |
| حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سرو زرو ګوتمه جوړه کړه. او یو |
| وَفِي رِوَايَةٍ: وَجَعَلَهُ فِي يَدِهِ الْيُمْنَى ثُمَّ أَلْقَاهُ |
| روایت کې دا الفاظ هم دي چې دا ګوتمه يې خپل ښي لاس کې واچوله و بیا يې او غورزوله. |
| ثُمَّ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنَ الْوَرِقِ نُقِشَ فِيهِ: مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ |
| بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سپینو زرو ګوتمه جوړه کړه چې هغې کې د "محمد رسول الله" الفاظ لیکلی شوي ؤو |
| وَقَالَ: لَا يَنْقُشَنَّ أَحَدٌ عَلَى نَقْشِ خَاتَمِي هَذَا . |
| او ویې فرمایل چې هیڅ یو کس دې زما د مهر پشان الفاظ په خپله ګوتمه کې نه لیکي. |
| وَكَانَ إِذَا لَبِسَهُ جَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي بَطْنَ كَفِّهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او نبي کریم صلی الله علیه وسلم به چې کله دا ګوتمه اچوله نو د هغې غمی به يې د تلي اړخ ته کولو. |

**توضیح**: **من ذهب**: نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سرو زرو ګوتمه هغه وخت جوړه کړې وه چې د نارینهٔ لپاره د سرو زور استعمال حرام نه ؤو. کله چې د سرو زرو استعمال حرام شو نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه وغورزوله. (مرقات۸/۱۷۷)

امام محمد رحمه الله په موطأ محمد کې لیکلي دي چې د نارینهٔ لپاره چې څنګه د سرو زرو ګوتمه حرامه ده. هم دغه شان د وسپنې، کانسی او د پیتل وغیره ګوتمې هم ناجائز دي. لهذا د نارینهٔ لپاره د سپینو زرو نه بغیر بل هیڅ قسمه ګوتمه جائز نه ده. د ښځو لپاره د سرو زرو ګوتمه جائز ده او د سپینو زرو مکروه ده، ځکه دې د نارینهٔ سره مشابهت دی، خو که ښځه د سپینو په ګوتمه څه د

[1] رقم الحدیث ۴۳۸۳ اخرجه البخاري في صحیحه ۱۰/۳۲۸ رقم الحدیث ۵۸۷۹ ومسلم في ۳/۱۶۵۵ رقم الحدیث (۵۳-۲۰۹۱)

سروزرو رنګ ومنبې نو دا به زيات بهتر وي. قاضي خان ليکلي دي. چې کوم خلک په اسنادو باندې مهر لګولو ته محتاج وي لکه قاضي، والي او حاکم وغيره نو د داسې خلکو لپاره د ګوتمه اچول جائز دي. د نورو لپاره افضل دا دي چې نه يې اچوي. او که څوک يې اچوي نو جائز دي. او مناسب دي چې په چپ لاس کې يې واچوي او د ګوتمې غمی د لاس تلې اړخ ته کړي. لاس کې د ګوتمې د اچولو حديثونه موجود دي، خو د ځينې علماؤ په نزد هغه د نارينؤ په حق کې منسوخ دي، خو "سفرالسعادة" کې ليکل شوي دي چې دواړه جائز دي. زما په خيال همدغه راجح ښکار دي، ځکه دواړو اړخونو ته صحيح حديثونه موجود دي. بلکې شوافع حضرات خو يې ښي لاس کې اچول افضل ګڼي، ځکه ښي لاس ته په چپ افضليت حاصل دی. علماؤ ليکلي دي چې د سپينو زرو ډېرې ګوتمې جوړول او کور کې ايښودل جائز دي، خو د استعمال لپاره صرف يوه ګوتمه جائز ده. دوه يا درې په يو ځال استعمالول جائز نه دي. بهتر دا دي چې ګوتمه کې د سپينو زرو په مقدار څلور نيمي ماشي نه کم وي. که زيات شي نو هغه هم جائز دي، خو خلاف اولی دی. نبي کريم ﷺ چې کله د صلح حديبيه نه وروسته بادشاهانو ته خطونه وليکل نو نبي کريم ﷺ ته وويل شو چې د بادشاهانو په نز دا ضابطه ده چې مهر شوی خط خپله خلاص کړې او لولي يې. د مهر نه بغير خط نه قبلوي، نو په دې نبي کريم ﷺ د سپينو زرو ګوتمه جوړه کړه او د هغې په غمي کې يې دا عبارت نقش کړو **"محمد رسول الله"** لکه څنګه چې راتلونکي حديث نمبر ۴ کې تفصيل راروان دی.

**ولا ينقش:** يعنې څوک دې زما د مهر پشان الفاظ نه نقش کوي. ظاهره خبره ده چې دا يو اصولي قاعده او ضابطه ده چې د مهر يو سرکاري حيثيت وي. که د هر کس د مهر نقش د نبي کريم ﷺ د مهر پشان وی نو دې کې به د نبي کريم ﷺ د مهر سرکاری حيثيت متاثر شوی وی او د عام بادشاهانو په نزد به د دې مهر خصوصيت شک مند شوی وی، نو ځکه نبي کريم ﷺ منع وکړه. که نبي کريم ﷺ منع نه وی کړی نو صحابؤ رضي الله عنهم به دا سنت ګڼلی وی او د نبي کريم ﷺ په عمل به يې عمل کولی. (مرقات ۱۷۸/۸)

## د نارينؤ لپاره د سروزرو ګوتمه اچول حرامه ده

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ وَالْمُعَصْفَرِ |
| او حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ د (نارينؤ) قسی جامې، د کسم رنګ شوې |

| |
|---|
| وَعَنْ تَخْتُمِ الذَّهَبِ وَعَنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي الرُّكُوعِ. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| جامې او د سروزرو ګوتمې د اچولو نه منع کړې ده. او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ رکوع کې د قرآن لوستلو نه منع کړې ده. |

**توضيح: القسي:** د ريښم خو قِسم دى. د قس اړخ ته منسوب دى چې د مصر يو ښار دى.

**تختم الذهب:** يعني د نارينؤ لپاره د سروزرو ګوتمه استعمالول حرام دي. (مرقات۸/۱۷۹)

**في الركوع:** رکوع کې قرآن لوستلو د ممانعت يو مطلب دا دى چې رکوع او سجده کې د تسبيحاتو د لوستلو په ځاى قرآن کريم مه لولئ. دا د الله تعالى عظيم کلام دير د دې د ادب تقاضا دا ده چې دا په قيام او قعود کې ولوستلى شي.

د دې ممانعت دويم مطلب دا دى چې قرآن دومره په توندۍ او بې اطمينانۍ سره مه لولئ چې څه برخه په قيام کې ولوستلى شي او قرأت د پوره کولو نه بغير ژر ژر رکوع ته لاړ شئ او څه برخه په رکوع کې ولولئ. دا مطلب راجح دى. (مرقات۸/۱۷۹)

## د نارينؤ لپاره د سرو ګوتمه د دوزخ د اور سکروټه دى

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ |
| او حضرت عبد الله ابن عباس فرمايي چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سروزرو ګوتمه وليدله، د |
| فِي يَدِ رَجُلٍ فَنَزَعَهُ فَطَرَحَهُ فَقَالَ: |
| يو کس په لاس کې نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د لاس نه ګوتمه رايوستله او غوزاره يې کړه او بيا يې وفرمايل |
| يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ إِلَى جَمْرَةٍ مِنْ نَارٍ |
| چې څومره عجيبه خبره ده چې تاسو کې يو کس د دوزخ د اور سکروټه حاصل کړي او هغه خپل لاس ته يې |
| فَيَجْعَلُهَا فِي يَدِهِ؟ |
| واچوي (يعني کوم کس چې خپلو لاسونو کې د سروزرو کوم څيز اچوي نو د هغې لاس به د دوزخ اور ته خي. د دې صورت کې: يو نارينه |
| فَقِيلَ لِلرَّجُلِ بَعْدَمَا ذَهَبَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| د سروزرو ګوتمه اچول ګويا کې خپل لاس کې د دوزخ د اور سکروټه اچول دي) بيا چې کله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لاړ نو هغه کس ته ووېل شو |

[1] رقم الحديث ۴۳۸۴ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۴۸ رقم الحديث (۲۹-۲۰۷۸) وابوداود في السنن ۴/۳۲۲ رقم الحديث ۴۰۴۴.

| | | | |
|---|---|---|---|
| خُذْ | خَاتَمَكَ | انْتَفِعْ | بِهِ. |

چې ته دا خپله ګوتمه را اوچته کړه او د دې نه فائده واخله یعني دا خرڅه کړه او که خوښه دې نو بیوي ښځې ته یې ورکړه

قَالَ: لَا وَاللهِ لَا آخُذُهُ أَبَدًا وَقَدْ طَرَحَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ مُسلِم[1]

خو هغه کس وویل چې نا په خدای قسم! زه دا کله هم نه را اچتوم چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غوزاره کړې ده.

**توضیح**: جمرة: د اور سکروټې ته جمرة وایي. (مرقات۸/۱۸۰)

**خذ خاتمك**: د کوم کس د لاس نه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سرو زرو ګوتمه غوزاره کړې وه هغې ته چا وویل چې خپله ګوتمه را اوچته کړه او څه فایده تري نه واخله مثلاً خرڅه یې کړه یا یې ښځې ته واچوه. دې وفادار عاشق رسول وویل چې کوم شی خپله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راویستلی د او غورزولی یې دی نو زه به کله هم دې ته لاس نه وروړم. د دې حدیث نه یوه خبره معلومه شوه چې د طاقت او قدرت وخت لروکې نهی عن المنکر لاس اچولو سره کول پکار دی. دویمه خبره دا معلومه شوه چې صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څومره فرمانبرداره او څومره وفاداره او څومره عاشقان ؤو. نن سبا عاشقان صرف د نمائش کدوان دي. الاماشاء الله.

## د مهر نبوي نقش

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ | أَنَسٍ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | أَرَادَ | أَنْ يَكْتُبَ |

او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې کله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د صلح حدیبیه نه بېرته مدینې ته راغلو)

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِلَى | كِسْرَى | وَقَيْصَرَ | وَالنَّجَاشِيِّ |

کسری (د فارس بادشاه) قیصر (د روم بادشاه) او نجاشي (د حبشي بادشاه) ته د اسلام دعوت د ورکولو لپاره خطونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقِيلَ: | إِنَّهُمْ | لَا | يَقْبَلُونَ كِتَابًا |

ورولېږلو اراده وکړه نو عرض وکړی شو چې (د ارئج شوي قاعدې مطابق) دا بادشاهان هغه خطونه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | بِخَاتَمٍ | فَصَاغَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ خَاتَمًا |

قبلوي (یعنې مستند یې ګڼي) چې په کوم مهر لږېدلی وي، نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سپینوزرو

[1] رقم الحديث ۴۳۸۵ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۵۵ رقم الحديث (۵۲-۲۰۹۰)

| |
|---|
| حَلْقَةَ فِضَّةٍ نُقِشَ فِيهِ: مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| حلقه والی ګوتمه جوړه کړه چې هغې کې یې "محمد رسول الله" نقش کړو. (مسلم) او د بخاري په |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ: كَانَ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلَاثَةَ |
| یو روایت کې داسې منقول دي چې چې ګوتمه کې چې کوم الفاظ نقش کړی شوې ؤو. هغه په درې |
| أَسْطُرٍ: مُحَمَّدٌ سَطْرٌ |
| کرخو کې ؤو. داسې چې په یو سطر کې (د ټولو نه لاندې ؤو) د "محمد" لفظ ؤو. یو سطر کې (په مینځ کې ؤو) |
| ورسولُ سطر وَالله سطر[1] |
| د "رسول" لفظ ؤو. او یو سطر کې (چې د ټولو نه پاس ؤو) "الله" د "الله" لفظ ؤو. |

**توضيح:** حلقة فضة: یعنې کوم بېل غمی نه ؤو. بلکې اصل کې سپین زر ۱ هغې غمی ؤو. د جدا غمې والا ذکر هم په حدیثونو کې راتلونکی دی. مهر نبوی کې چې ګوم الفاظ نقش کړی شرې ؤو. د هغې نقش داسې جوړ کړی شوی ؤو:

الله

رسول

محمد

(الله پاس بیا لاندې رسول بیا محمد) همدغه امام بخاری درې جدا سطرونه ګڼلې دي. چې محمد یو سطر دی. چې د ټولو نه لاندې دی. د هغې نه پاس دویم سطر کې د رسول لفظ دی او د هغې نه پاس د الله لفظ دی. دې کې د ادب د مرتبو لحاظ ساتلی شوی دی. (مرقات۸/۱۸۱)

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګوتمې غمی

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهُ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ خَاتَمُهُ مِنْ فِضَّةٍ |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګوتمه د سپینو زرو وه. او د |
| وَكَانَ فَصُّهُ مِنْهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] |
| هغې غمې هم د سپینو زرو ؤو. |

---

[1] رقم الحديث ۴۳۸۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۲۴/۱۰ رقم الحديث ۵۸۷۵ ومسلم في ۱۶۷۵/۳ رقم الحديث (۵۸-۲۰۹۲)

[2] رقم الحديث ۴۳۸۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۲۲/۱۰ رقم الحديث ۸۵۷۰ أبوداود في السنن ۴۲۴/۴ رقم الحديث ۴۲۱۷.

**توضیح**: **فصه منه**: فص غمي ته وايي او د منه مطلب دا دی چې غمی د بل کوم عنصر نه نهٔ وُو. بلکې د همغه د سپینو زرو یوه برخه غمی وُو. همدغې باندې پاسنی عبارت نقش کړی شوی وُو. (مرقات۱۸۲/۸)

| | |
|---|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبِسَ خَاتَمَ فِضَّةٍ | |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا هم روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سپینو زرو ګوتمه خپل | |
| فِي يَمِينِهِ فِيهِ فَصٌّ حَبَشِيٌّ كَانَ يَجْعَلُ | |
| ښي لاس کې واچوله چې غمی يې د حبشي وُو. او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ګوتمې غمی د لاس اړخ ته کولو | |
| فَصَّهُ مِمَّا يَلِي كَفه (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | |
| (يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپله ګوتمه داسې اچوله چې د هغې غمی به لاس د تلی اړخ ته وُو) | |

**توضیح**: **حبشي**: يعنې د هغه ګوتمې غمی د عقيق وُو. دا چې د عقيق غر په حبشه کې واقع دی نو ځکه د هغې اړخ ته منسوب کولو سره ورته حبشي ويلی شوی دی يا حبشي ويلو سره تور رنګ مراد اخستلی شوی دی. چې د ګوتمې غمی تور وُو. (مرقات۱۸۵/۸، ۱۸۴)

د دې روايت په ظاهره د مخکنې روايت سره تعارض دی. چې کوم کې ويل شوې دي چې غمی جدا نه وُو. او د بحث لاندې حديث کې دي چې غمی بېل جوړ شوی وُو. د دې جواب دا دی چې دا يوې ګوتمې خبره نه ده بلکې د دوو ګوتمو قصه ده. د څېنو يو ځای وُو او څېنو کې غمی د جدا عنصر وُو.

**مما يلي كفه**: يعنې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عاجزئ او د زهد او تقوی او د ترک زينت له نظره به د ګوتمې غمې د تلي اړخ ته ساتلو. (مرقات۱۸۵/۸)

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګوتمه به د چپ لاس په خنصره ګوته کې وه

| | |
|---|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْهُ قَالَ: كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذِهِ | |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې ګوته کې وه. حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې | |

---

[1] رقم الحديث ۴۳۸۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۵۸ رقم الحديث (۶۲-۲۰۹۴) وابوداود في السنن ۴۲۴/۴ رقم الحديث ۴۲۱۶.

وَأَشَارَ إِلَى الْخِنْصِرِ مِنْ يَدِهِ الْيُسْرَى. رَوَاهُ مُسلم[1]

ويلو سره د چپ لاس کچي ګوتي اړخ ته اشاره وکړه.

## کومه ګوته کې ګوتمه واچولی شي؟

۸﴿وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: نَهَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم إِن أَتَخَتَّمَ

حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه د دې نه منع کړم چې زه خپلې دې

فِي إِصْبَعِي هَذِهِ أَوْ هَذِهِ قَالَ: فَأَوْمَأَ

ته کې يا دې ګوته کې ګوتمه واچوم. راوي وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې ويلو سره مينځنۍ

إِلَى الْوُسْطَى وَالَّتِي تَلِيهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[2]

ګوته او د هغې سره نزدې ګوته يعنې د شهادت ګوتې اړخ ته اشاره وکړه.

**ضيح**: ګوتمې د اچولو مستحب طريقه دا ده چې د چپ لاس وړه ګوته کې واچولی شي. مينځنۍ او بابه(يعنې مسواکه يا وزيره ګوته) کې د اچولو نه ممانعت راغلی دی، لکه څنګه چې د بحث ندې حديث کې دي. لهذا دا مکروه تنزيهې دی، ځکه داسې اچول نه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ابت دي، نه د صحابوُ نه ثابت دي، نه د تابعينو نه ثابت دي. دغه شان په موټه ګوته کې اچول هم ابت نه دي، خو دا پابندي او ممانعت د نارينوُ لپاره دی. د ښځو لپاره ممانعت نشته دی. هغوی که دواړو لاسونو په کومه ګوته کې اچوي ټول جائز دي. (مرقات۸/۱۸۶)

## الفصل الثاني

### د نارينوُ لپاره ښي او چپ لاس کې ګوتمه اچول هم جائز ده

۹﴿عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينه.

حضرت عبد الله ابن جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ګوتمه خپل ښي لاس کې

---

[1] رقم الحديث ۴۵۸۹ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۵۹ رقم الحديث (۶۳-۲۰۹۵)

[2] رقم الحديث ۴۳۹۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۳/۱۶۵۹ رقم الحديث (۶۵-۲۰۷۸) والنسائي في ۸/۱۷۷.

رَوَاهُ ابْن مَاجه(۱) وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيّ عَن عَلِيّ(۲)

اچوله. (ابن ماجه، ابوداؤد او نسائی دعلی رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ نه نقل کړي دي)

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يتختم فِي يسَاره. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۳)

او حضرت ابن عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ به ګوتمه خپل چپ لاس کې اچوله.

## سره زر او ريښم د نارينؤ لپاره حرامه دي

﴿۱۱﴾وَعَنْ عَلِيّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ حَرِيرًا

او حضرت علي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي كريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ريښمي ټوټه را واخستله او هغه يې

فَجَعَلَهُ فِي يَمِينِهِ وَأَخَذَ ذَهَبًا فَجَعَلَهُ فِي شِمَالِهِ ثُمَّ

خپل ښي لاس کې ونيوله د غه شان سره زر يې را واخستل او هغه يې خپل چپ لاس کې ونيوله او بيا

قَالَ: إِنَّ هَذَيْنِ حَرَامٌ عَلَى ذُكُورِ أُمتِي. رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيّ(۴)

يې وفرمايل چې زما د امت نارينؤ لپاره دا دواړه شيزونه حرام دي. (مسند احمد، ابوداؤد، نسائی)

**توضيح**: يعني يو لاس کې يې ريښم ونيول او بل لاس کې يې سره زر ونيول او اعلان يې وکړو چې دا دواړه شيزونه زما په امت باندې حرام دي. (او د ښځو لپاره حلال دي) ځينې بې همته خلک د سرو زرو ګوتمه په دې بهانه اچوي چې که چرې حادثه وشي نو دا ګوتمه به خرڅه کړو او سفر کې روپۍ پکار راشي. زه وايم چې بيا يې جيب کې کېږده، اچوي يې ولې؟ او د مصيبت د راتلو نه مخکې به د دې انتظار کوي نو بيا به مصيبت راځي. عافيت ولې نه غواړې؟ (مرقات ۸/۱۸۷)

## لږ مقدار کې سره زر استعماليدلی شي

﴿۱۲﴾وَعَنْ مُعَاوِيَةَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ رُكُوبِ النُّمُورِ

او د حضرت معاويه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې د نبي كريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د پړانګ د څرمن زين باندې سوريدلو

---

(۱) رقم الحديث ۴۳۹۱ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۰۰ رقم الحديث ۱۷۴۴ والنسائي في ۸/۱۷۵ رقم الحديث ۵۲۰۴

(۲) رقم الحديث ۴۳۹۲ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۴۱ رقم الحديث ۴۲۲۶ والنسائي في ۸/۱۷۴ رقم الحديث ۵۲۰۳

(۳) رقم الحديث ۴۳۹۳ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۳۱ رقم الحديث ۴۲۲۷.

(۴) رقم الحديث ۴۳۹۵ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۳۷ رقم الحديث ۴۲۳۹ والنسائي في ۸/۱۶۱ رقم الحديث ۵۱۵۰.

وَ عَنْ لُبْسِ الذَّهَبِ إِلَّا مُقَطَّعًا . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1]

نه منع کړې ده. دغه شان نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ نارينؤ لپاره د سروزرو اچولو نه منع کړې ده، خو دا چې هغې ډېر لږ وي.

**توضيح:** الا مقعاً: د سروزرو پارچو او ټوټو باندې د مقطع اطلاق شوی دی. مراد ترېنه لږ مقدار سره زر دي، لکه څنګه چې لږ مقدار کې د سروزرو ريښم اجازت دی. دغه شان د ډېر لږ مقدار د سروزرو د استعمالولو هم اجازت دی، لکه د تورې خولۍ او موټي باندې وي. د سروزرو ميخ ورباندې ټک وهل شوي وي يا د سروزرو معمولي تار په يو څيز کې استعمال کړی شوي وي يا ګوتمه يا اسلحه وغيره ته د سرو اوبه ورکړی شوي وي يا د سات ستنې وغيره کې سروزرو څه ذرې وي، دا لږ مقدار حرام نه دی. همدغې د مقطعاً د الفاظو نه مستثنی ګڼلی شوي دي. (مرقات ۱۸۸/۸)

## د اوسپني او پيتلو ګوتمه استعمالول منع دي

﴿۱۳﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ عَلَيْهِ خَاتَمٌ

او د حضرت بريده رَضِيَ‌اللهُ‌عَنْهُ نه روايت دی چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيْهِ‌وَسَلَّمَ د يو کس نه چې د پيتلو

مِنْ شَبَهٍ: مَا لِي أَجِدُ مِنْكَ

ګوتمه يې اچولې وه وفرمايل چې په ما څه شوي دي چې ماله ستاسو نه د بوتانو بوی راځي. يعني د هغه کس مخې ته يې

رِيحَ الْأَصْنَامِ؟ فَطَرَحَهُ

دا د تعريض په توګه وويل چې په عامه توګه بوتان د پيتلو نه جوړېږي، نو هغه کس د نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ دا ناخوښي ليدلو سره

ثُمَّ جَاءَ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ

هغه ګوتمه غوزاره کړه. بيا چې دوباره هغه کس راغلو نو د وسپنې ګوتمه يې اچولې وه. نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ دې ليدلو

مِنْ حَدِيدٍ فَقَالَ:

سره وفرمايل چې په ما څه شوي دي چې په تاسو کې د دوزخيانو کالي وينم (يعني نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ دا خبره هم د تعريض

مَا لِي أَرَى عَلَيْكَ

په توګه په دې بناء وفرمايل چې کافرانو کې څه خلک چې په دنيا کې د وسپنې څيزونه اچولي يا دې ارشاد کې دې اړخ ته اشاره وه

حِلْيَةَ أَهْلِ النَّارِ؟

چې کافرانو ته چې په دوزخ کې کوم طوق او زنځيرونه اچولی کېږي هغه به د وسپنې وي نو ځکه د وسپنې ګوتمه اچول د دوزخيانو

---

(۱) رقم الحديث ۴۳۹۶ اخرجه ابوداود في السنن ۴۲۸/۴ رقم الحديث ۴۲۲۳ والترمذي في ۲۱۸/۴ رقم الحديث ۱۷۸۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَطَرَحَهُ | فَقَالَ: | يَا | رَسُولَ اللهِ |
| سره مشابهت اختیارول دي) نو هغه که دا ګوتمه هم غورزاره کړه او عرض يې وکړو چې اې د الله رسول ﷺ! | | | |
| مِنْ أَيِّ شَيْءٍ أَتَّخِذُهُ؟ قَالَ: مِنْ وَرِقٍ وَلَا | | | |
| نو بيا زه د څه څيز ګوتمه واچوم؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل "د سپينو زرو او چې هغه هم د | | | |
| تُتِمَّهُ مِثْقَالًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] وَقَالَ مُحْيِ السُّنَّةِ وَقَدْ صَحَّ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ | | | |
| سپينو زرو پوره مثقال نه وي". (روايت کړي دي ترمذي، ابوداؤد، نسائي) او محی السنة وائي چه | | | |
| فِي الصَّدَاقِ أَنَّ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | |
| د سهل ابن سعد نه صحيح روايت منقول دي نبي عليه السلام يو سړي ته وفرمايل (چه د نکاح خواهش | | | |
| قَالَ لِرَجُلٍ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ | | | |
| مند وو) چې د ښځې د مهر د پاره د مال د قسم نه يو شي تلاش کړه اګر که هغه د اوسپني ګوتمه وی | | | |

**توضیح**: شبه: پیتل ته شبه وايي. دا چې دا په سور والي کې د سرو زرو سره مشابه وي نو ځکه ورته شبه ويل شوی دی. (مرقات ۸/۱۸۸)

**ريح الاصنام**: دا چې پيتل او د تانبې نه عموماً بوتان جوړيږي، نو ځکه يې د بوتانو ذکر کړی دی. (مرقات ۸/۱۸۸)

**حديد**: د وسپنې کالي يې د ناکاره خلکو کالي ګڼلي دی، ځکه چې د دوزخ والا دا په دنيا کې استعمالوي يا دې اړخ ته اشاره ده چې ناکاره خلکو ته به دوزخ کې د وسپنې طوق اچولی کيږي. لهذا کوم خلک چې دنيا کې د وسپنې ګوتمه اچوي نو هغه د هم هغوی سره مشابهت کوي. پيتل او د کانسي ګوتمه د نارينو لپاره مکروه تحريمي ده. او د سرو زرو ګوتمه حرامه ده. (کذافی فتاوی قاضي خان) (مرقات ۸/۱۸۹)

**ورِق**: "واو" باندې زير دی. "را" باندې زير دی او سکون هم جائز دی. سپينو زرو ته وايي. (مرقات ۸/۱۸۹)

**ولا تتمه مثقالاً**: يعنې يو مثقال سره زره وي. بلکې د دې نه کم وي. (مرقات ۸/۱۸۹)

**قال محی السنة**: د شوافو حضراتو په نزد دا چې د وسپنې ګوتمه استعمالول جائز دي، نو ځکه محی السنة رحمه الله د بحث لاندې حديث لپاره د يو مقابل حديث حواله ورکړې ده. چې کوم کې د مهر په بدل کې د وسپنې ګوتمه د ورکولو ويل شوې ده. چې د هغې د دې د جواز پته لږي. احنافو د هغې جواب دا ورکوي چې حضرت سهل رضي الله عنه روايت په هغه زمانه باندې محمول دی چې د وسپنې د ګوتمې ممانعت او د حرمت حکم نه وُو راغلی. ګوياکې د بحث لاندې حديث د هغې لپاره ناسخ

---

([1]) رقم الحديث ۴۳۹۶ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۲۸ رقم الحديث ۴۲۲۱ والترمذي في ۴/۲۱۸ رقم الحديث ۱۷۸۵.

دی. یا د هغې د وسپنې گوتمه مراد نه ده. بلکې د خاتم حدیث نه شئ قلیل اړخ ته اشاره ده. چې مهر هغه که څه هم وي. کتاب النکاح کې تفصیل شته دی. (مرقات ۸/۱۸۹)

## هغه لس شیان چې نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به بد گڼل

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ عَشْرَ خِلَالٍ: الصُّفْرَةَ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به لس شیان بد گڼل یو خو زیړوالی |
| يَعْنِي الخلوق وتغييرَ الشيب وجر الأزرار |
| یعنې د خلوق استعمال یو بل ته، دویم د بوډه والي د بدلولو، دریم د ښنگرو نه لاندې تهبند یا پاجامه |
| وَالتَّخَتُّمَ بِالذَّهَبِ وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّينَةِ لِغَيْرِ مَحِلِّهَا |
| زوړندولو سره گرځېدل، څلورم د نارینو لپاره د سرو زرو گوتمه اچول، پنځم د ښځو بې ځایه د زینت |
| وَالضَّرْبَ بِالْكِعَابِ وَالرُّقَى إِلَّا بِالْمُعَوِّذَاتِ |
| ښکاره کول، شپږم د نرد (زمرى) لوبول، اووم د معوذاتو نه بغیر د دمونو کولو، اتم د کوډو او |
| وَعَقْدَ التَّمَائِمِ وَعَزْلَ الْمَاءِ لِغَيْرِ مَحِلِّهِ وَفَسَادَ الصَّبِيِّ |
| تعویذونو زړوندولو، بې ځایه عزل یعنې د ښځې د شرمگاه نه منی غوزارول، د ماشوم خرابول، اگر |
| غَيْرَ مُحَرِّمِهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| که دې ته به یې حرام نه ویل. (ابوداؤد، نسائی) |

**توضیح: الصفرة:** دا د یو زیړ رنگ عطر دی. چې د ښځو لپاره خاص دی. د نارینو لپاره نه دی. دې ته خلوق هم وایي. شاعر ساحر وایي: ـ

**خلوقية في خلوقيه سويداء من عنت الثعلب**

**وتغيير الشيب:** د دې یو مطلب دا دی چې سر او ږیره کې سپین ویختان یو یو کتل او د هغې راویستل. دا د بوډه والي د بدلو به معنی کې دی. دویم مطلب دا دی چې د سپینو ویختانو ته خضاب لگول منع دی. (مرقات ۸/۱۹۰)

**سوال:** د دې حدیث نه معلومیږي چې نکریزې لگول هم منع دي. حال دا چې حدیثونو کې د دې

---

[1] رقم الحدیث ۴۳۹۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۲۸ رقم الحدیث ۴۲۲۲ والنسائي في ۸/۱۴۱ رقم الحدیث ۵۰۸۸ .

ترغيب موجود دی؟ **جواب**: دا چې د نكريزې د خضاب تغير الشيب نه مستثنی دی. حديثونو كې د دې استثناء موجوده ده. ګوياكې په ابتداء كې د تغير الشيب مطلق ممانعت ؤو. بيا د نكريزو اجازت ملاو شو. دويم جواب ملاعلي قاري كړی دی. ډېر ښه جواب دی. فرمايي چې د بحث لاندې حديث كې چې د بوډه والي د بدلولو نه د هغې پټول مراد دی. او بوډه والی يا په تور خضاب سره پټېږي يا سپينو ويختانو ويستلو سره پټېږي، ځكه دې سره اشتباه راځي. پاتې شو د نكريزو رنګ نو دې سره هيڅ د التباس او اشتباه امكان نشته دی. دا خو د بوډه والي اظهار او اعلان دی، نو ځكه دې حديث كې د نكريزو د استعمالول بحث نه دی شوی، نو هيڅ اعتراض نشته دی. (مرقات۸/۱۹۰)

**التبرج**: زينت اختيارول او ډول او سنګار ته تبرج وايي.

**لغير محلها**: يعنې بې ځايه د زيب او زينت اظهار منع دی، لكه د نااشناؤ مخې ته. باقې په موقع او محل كې ډول او سنګار جائز دی، لكه د خاوند او د محارمو مخې ته. (مرقات۸/۱۹۰)

**بالكعاب**: دا د كعب جمع ده. زمري د ګيټګو په معنې باندې دی چې پانس□ هم ورته وايي. چې د خښې په شانه په ګوزارولو سره لوبولی كيږي. دا د جوارئ يو قِسم دی. د احنافو په نزد شطرنج كول هم منع دی. د چوسر خو خبره بله ده. (مرقات۸/۱۹۱، ۱۹۰)

**رقی**: دا د رقية جمع ده. د دې نه منتر وغيره لوستلو سره دم كول مراد دي. چې شرعاً منع دی.

**لا بامعوذات**: يعنې د قرآن په آخر كې دوه معوذتين په ذريعه كه كوم كس دم دُرخا كوي هغه جائز دی. د غه شان قرآن او حديث كې چې كوم تعوذات ذكر دی. هغه هم مراد دی. چې اجازت يې شته دی.

**والتمائم**: دا د تميمة جمع ده. عر كې د منكو (دانو) او د هډوكو يوځای كولو سره د هار جوړول او بيا د ماشومان په غاړه كې اچول رواج ؤو چې ماشومانو ته بد نظر ونه لګېږي. د اسلام پاک نظام دا منع كړل. د جاهليت همد غه رواج ته شاعر اشاره كوي او وايي(مرقات۸/۱۹۱)

**واذا المنية انشبت اظهارها ۰ الفيت كل تميم لا تنفع**

الغرض كوم تعويذونه چې مشركانه او مبتدعانه يا په غير معروف الفاظو باندې مشتمل وي هغه منتر دی او ناجائز دي، خو كوم تعويذونه كې او اوراد او ظائف چې په قرآن او حديث كې وي هغه جائز دي. دواړو كې فرق ضروري دی. د ټولو نفي مناسب نه ده. **و عزل الماء**: يعنې بې ځايه عزل كول منع دی. ي موقع عزل هغه دی چې د خپلې ښځې سره سړی په جماع كې سړی د ښځې د رضا نه بغير عزل وكړي او كه د وينځې سره سړی په جماع كې عزل كوي نو هغه برمحل دی بې محل نه دی.

**وفساد الصبي**: د دې جملې مطلب دا دی چې د مور په غېږه كې د شودو ماشوم دی. خاوند د ښځې سره جماع وكړه. چې د هغې په نتيجه كې هغه حامله شوه. چې د هغې په وجه د مور شوده د صحت لپاره مضر شول. چې شوده څښونكی ماشوم پرې خرابېدلی شي. چې داء الغيل ورته وايي. چې بيان يې په كتاب

لکه چې شوی دی. د عصا به د نبي کریم ﷺ خوښه نه وو. (مرقات ۸ ۱۹۱)

**غیر محزمة:** دا د حال په توګه واقع دی. چې منصوب دی. یعني نبي کریم ﷺ به د عصا نه ځینې وخت به یې ورته نه وو یعني د شوندو او لاس شوندو او ... په یې حرکت نه کول لکه صرف هغه نقص به نه خوښول. (مرقات ۸ ۱۹۱)

## ښځو له اواز کونکې زر اغوستل منع دي

(۴۰) وَعَنِ ابْنِ الزُّبَيْرِ: أَنَّ مَوْلَاةً لَهُمْ ذَهَبَتْ بِابْنَةِ الزُّبَيْرِ

د حضرت ابن زبیر رضي الله عنه نه روایت دی چې د هغوی آزاده شوې وینځې د حضرت زبیر رضي الله عنه لور د

إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَفِي رِجْلِهَا أَجْرَاسٌ

عمر رضي الله عنه په خدمت کې پیش کړه. هغه د ماشومې په پښو کې ګونګرې وو. حضرت عمر رضي الله عنه

فَقَطَعَهَا عُمَرُ وَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَعَ كُلِّ جَرَسٍ

هغه ګیګړې خوشې کړې او وې فرمایل چې ما د نبي کریم ﷺ نه واورېدلي دي چې هر ګیګړې سره

شَيْطَانٌ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد

شیطان وي. (ابوداؤد)

**توضیح** جرس: د ګونګرې او شپېلنکی ګیګړې ته وایي. د ښځې په زیوراتو کې که د غه شان ګونګرې وي نو د هغې استعمال هم منع دی. لکه څنګه یې ترانه او شرنګ منع دی. او ماشومانو د پښو د خولو څنړو په څېر کې ګونګرې چول منع دي. ترونکې به ګنده ګران وي. ځکه شرنګ خو شیر کنف دي. (مرقات ۸ ۱۹۲)

(۴۱) وَعَنْ بُنَانَةَ مَوْلَاةِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَيَّانَ الْأَنْصَارِيِّ

د حضرت عبد الرحمن بن حیان انصاري رضي الله عنه د آزاد شوې وینځې بنانه نه روایت دی چې هغه (یوه ورځ) د

كَانَتْ عِنْدَ عَائِشَةَ إِذْ دُخِلَتْ عَلَيْهَا بِجَارِيَةٍ

حضرت عائشه رضي الله عنها سره وه چې د حضرت عائشې رضي الله عنها په خدمت کې یوه وړه جینۍ راوستلی شوه. چې ګیګړې

وَعَلَيْهَا جَلَاجِلُ يُصَوِّتْنَ فَقَالَتْ:

ورسره وې او هغې شرنګ کولو. حضرت عائشه رضي الله عنها (د هغه جینۍ راوستونکي ښځې ته) وفرمایل چې دا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تُدْخِلْنَهَا | عَلَيَّ | إِلَّا | أَنْ | تُقَطِّعْنَ | جَلَاجِلَهَا |

جینئ تر هغه وخت پورې زما خواله مه راولئ چې تر څو پورې تربنه دا ګینګرې غوزار نه کړې شي.

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا

ځکه ما د نبي کريم ﷺ نه اوريدلي دي چې هغه کورته (د رحمت) فرښتې نه داخلېږي چې کوم کې

فِيهِ جَرَسٌ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

د باجې پشان څیز موجود وي.

**توضیح** **الجلاجل**: دا د **جلجل** جمع ده. شرنګ کونکې ګونګرو ته وايي. د دې نه مخکې حديث کې د "**جرس**" تفصيل او جلجل تفصيل يو شان دی. (مرقات۸/۱۹۳)

## د شرعي مجبورۍ په وخت کې د سروزرو استعمال جائز دی

﴿۱۷﴾وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ أَنَّ جَدَّهُ عَرفجةَ بن أسعد قُطِعَ أَنْفُهُ يَوْمَ الْكُلَابِ

د حضرت عبد الرحمن ابن طرفه نه روایت دی چې د هغې نیکه حضرت عرفجه بن سعد رضي الله عنه پوزه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاتَّخَذَ | أَنْفًا | مِنْ | وَرِقٍ | فَأَنْتَنَ | عَلَيْهِ |

د کلاب په جنګ کې غوڅه کړې شوې وه. هغې د سپينو زرو پوزه جوړه کړه، خو هغې کې بوبوې پيدا شوه.

فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَّخِذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ[2]

نو نبي کريم ﷺ هغې ته د سرو زرو پوزه د جوړولو حکم وکړو. (ترمذی، ابوداؤد، نسائی)

**توضیح** **یوم الکُلاب**: کاف باندې پيش دی. **کُلاب** د يو ځای نوم دی. د جنګ د ورځ په معنی کې دی. يعنې د کلاب په جنګ کې د دې صحابي پوزه غوڅه کړې شوې وه. هغې د سپينو زرو پوزه جوړه کړه، خو هغې کې بد بويې پيدا شوه. نبي کريم ﷺ هغې ته د سرو زرو پوزه د جوړولو حکم وکړو. سروزرو سره زخم ژر صحيح کېږي. د دې نه معلومه شوه چې د مجبورۍ په وجه د سرو زرو استعمالول جائز دي. فقهاؤ د پوزه جوړولو او غاښونو کې د سروزرو تار استعمالول جائز ليکلي دي. امام محمد رحمه الله غاښونو کې د سرو زرو تار تړل هم جائز ليکلي دي. (مرقات۸/۱۹۱)

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۹۹ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۳۳ رقم الحديث ۴۲۳۱ وأحمد في المسند۶/۲۴۲

(۲) رقم الحديث ۴۴۰۰ أخرجه ابوداود في سنن ۴/۴۳۴ رقم الحديث ۴۲۳۲ والترمذي في ۴/۲۱۱ رقم الحديث ۱۷۷۰.

## په زرو کې د زکوة ورکولو باندې سخت وعید

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ أَحَبَّ
د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "کوم کس چې خپلو خپلوانو
أَنْ يُحَلِّقَ حَبِيبَهُ حَلْقَةً مِنْ نَارٍ فَلْيُحَلِّقْهُ
(یعنې ښځې یا د اولاد وغیره ته پوزه یا غوږ کې) د اور حلقه (کړئ) اچول خوښوي نو هغې ته دې
حَلْقَةً مِنْ ذَهَبٍ وَمَنْ أَحَبَّ
د سروزرو حلقه ضرور واچوي (یعنې د سروزرو د والۍ اچولو سزا داده چې هغې ته مبدا اور والۍ اچولی کیږي) کوم کس چې د
أَنْ يُطَوِّقَ حَبِيبَهُ طَوْقًا مِنْ نَارٍ فَلْيُطَوِّقْهُ طَوْقًا مِنْ ذَهَبٍ
خپلو خپلوانو په غاړه کې د اور طوق اچول خوښوي نو هغې ته په غاړه کې د سروزرو گلوبند واچوي
وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُسَوِّرَ حَبِيبَهُ سِوَارًا مِنْ نَارٍ
او کوم کس چې خپلو خپلوانو ته په د اور بنگړي اچول خوښوي نو هغې ته د سروزرو بنگړي ضرور واچوي خو د
فَلْيُسَوِّرْهُ مِنْ ذَهَبٍ وَلَكِنْ عَلَيْكُمْ بِالْفِضَّةِ فَالْعَبُوا بِهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]
سپینو زرو د استعمال اجازت تاسو ته شته دی چې تاسو هغه استعمالولی او په تصرف کې راوستلی شئ.

**توضیح** ان یحلق حبیبه: یعنې خپلو خپلوانو مثلاً اولاد او ښځې ته د اور حلقه اوچول غواړي نو هغې ته دې د سرو حلقه او زیور واچوي. **سوال**: دې حدیث کې د سروزرو زیوراتو په استعمالولو باندې سخت وغید اورول شوی دی. دغه شان د دې حدیث نه وروسته حدیث نمبر ۱۹ او حدیث نمبر ۲۰ کې د سروزرو په مختلفو زیوراتو په استعمال باندې د سخت وعید ذکر دی. حال دا چې د دې نه مخکې ډېرو حدیثونو کې زیورات د ښځو لپاره جائز کړی شوي دي. دا واضحه تعارض دی. د دې څه حل دی؟ **جواب**: علماؤ د دې حدیثونو په تطبیق کې ډېر تاویلونه کړي دي. چې د دې پو ښتنې جواب ترینه راوتلی دی. علامه خطابی فرمایي چې یو تاویل او جواب دا دی چې د اسلام په ابتداء کې د ناریشۀ پشان د ښځو لپاره هم د سروزرو د زیوراتو استعمال منع ؤو. د بحث لاندې حدیث تعلق د هغه زمانې سره دی. بیا د ښځو لپاره د سروزرو زیورات جائز کړی شو، لکه څنګه چې د دې نه مخکې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حدیث نمبر ۱۱ کې ذکر دي. دویم جواب دا دی چې د بحث لاندې حدیث تعلق د هغه ښځو د زیوراتو سره دی چې د دې زیوراتو زکوة نه ادا کوي. زکوة اګر که د سپینو زرو په زیوراتو کې هم وي خو د سروزرو اهمیت په دې وجه ذکر کړی شوی دی. یو جواب دا

[1] رقم الحديث ۴۲۰۱ أخرجه ابوداود في السنن ۴۳۶/۴ رقم الحديث ۴۲۳۷ واحمد في المسند ۳۳۴/۲.

**توضيح**: اما لکن: آیا ستاسو لپاره دا کافي نه ده چې تاسو د سپينو زرو کالی جوړ کړئ او وا يې چوئ.

**تطهره**: يعنې د خپلو زيوراتو بې ځايه او بې محل نمائش کوي. تفاخر او تکبر کوي او نورو مسکينانو ښځو باندې خپل اچتوالی ظاهروي. د دې علت په وجه د سروزرو زيوراتو د ممانعت خبره باندې ښه پوهېدنه کېږي. او حديثونو کې هيڅ تعارض نشته دی. د ممانعت تعلق د او د تبختر سره دی. (مرقات۱۹۵/۸)

## الفصل الثالث

## جنت کې که ريښم او سره زر غواړئ نو دنيا کې ترينه ځان وساتئ

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يمنعُ أَهلَ الْحِلْيَةَ وَالْحَرِيرَ |
| د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به زيور والا او د ريښمو والا |
| وَيَقُولُ: إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ حِلْيَةَ الْجَنَّةِ |
| نه منع کوله. (يعنې د دې شيانو د اچولو نه به يې منع کوله) او فرمايل به يې چې که تاسو د جنت د |
| وَحَرِيرَهَا فَلَا تَلْبَسُوهَا فِي الدُّنْيَا. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ [1] |
| زيوراتو او د ريښمو خواهش لرئ چې جنت کې تاسو ته دا شيان ملاو شي نو دنيا کې دا شيان مه اچوئ. |

**توضيح**: **يمنع**: د نارينؤ لپاره سره زر او ريښم حرام دی. د حديث تعلق د نارينؤ سره دی. خطاب نارينؤ ته دی. ښځو ته نه دی. **اهل الحلية والحرير**: د دې نه مراد هغه خلک دي چې د سروزرو زيورات او د ريښمو لباس استعمالوي. (مرقات۱۹۶/۸)

## د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د سروزرو ګوتمه

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ خَاتَمًا فَلَبِسَهُ |
| او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم يو ګوتمه جوړه کړه او هغې يې واچوله. |
| قَالَ: شَغَلَنِي هٰذَا عَنْكُمْ |
| بيا نبي کريم صلی الله عليه وسلم (حاضرين مخاطب کړه او) ويې فرمايل چې نن ورځ دې ګوتمې زه ستاسو نه مشغول کړم |
| مُنْذُ الْيَوْمَ إِلَيْهِ نَظْرَةٌ وإليكم |
| (يعنې نن زه ستاسو اړخ ته متوجې نه شوم) ځکه کله خو دې ګوتمې ته ګورم او کله تاسو ته ګورم. او دې |

[1] رقم الحديث ۴۴۰۴ أخرجه النسائي في السنن ۱۵۶/۸ رقم الحديث ۵۱۳۶

| | | | |
|---|---|---|---|
| نظرة | ثُمَّ | أَلْقَاهُ | . رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] |

(ويلو سره) نبي كريم ﷺ نبي كريم ﷺ هغه ګوتمه را ويستله او غوزاره يې کړه.

**توضيح**: شغلتي: معلومه شوه چې د دنيا زيب او زينت سره هر کس متاثره کېدى شي، نو ځکه د هر مسلمان لپاره ترک دنيا او د ډول او سنګار نه اختراز ډېر ضروري دى. ګنې د دنيا په سمندر کې به غرق شئ.

القاها: د دې نه معلومه شوه چې دا ګوتمه د سرو زرو وه. نبي كريم ﷺ كېدى شي چې د حرمت نه مخکې د اباحت په وخت کې اچولي وه. بيا يې غوزاره کړه. (مرقات ۸/ ۱۹۶)

## ناجائزه لباس يا زر ماشومانو ته هم اچول منع دي

﴿۲۳﴾وَعَن مَالك قَالَ: أَنَا أكره ن يُلْبَسَ الْغِلْمَانُ شَيْئًا مِنَ الذَّهَبِ

د حضرت امام مالک نه روايت دى چې هغې وفرمايل زه دا بد ګڼم چې هلکانو د سروزرو کوم شى واچولى شي.

لِأَنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ځکه ما ته دا روايت رارسيدلى دى چې نبي كريم ﷺ د سروزرو ګوتمې د استعمالولو نه هم

نهى عَن التختمِ بالذهبِ

منع کړې ده. (او چې د ګوتمې پشان شى هم منع دى نو نور شيان خو به بطريق اولى منع وي) لهذا زه

فَأَنا أكره لِلرِّجَالِ الْكَبِيرِ مِنْهُمْ وَالصَّغِيرِ. رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأ[2]

د نارينؤ لپاره (سرزرو اچول) بد ګڼم. هغه که غټ وي يا که ماشومان وي.

**توضيح**: والصغير: يعنې کوم او زيورات چې د نارينؤ لپاره منع دي هغه ماشومانو ته اچول هم منع دي. مثلاً د ريښمو لباس وړو ماشومانو ته منع دى. دغه شان د سروزرو ګوتمه هم وړو هلکانو ته اچول منع ده. دغه شان د سپينو زرو تعويذونه يا نور زيورات وړو هلکانو ته اچول منع دي. که غټو ور واچول نو هغه به ګناه ګار وي. زير بحث حديث کې د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ د دې فتوى مطلب او مقصد همدغه دى.

---

(1) رقم الحديث ۴۴۰۵ أخرجه النسائي في السنن ۸/ ۱۹۴ رقم الحديث ۵۲۸۹

(2) رقم الحديث ۴۴۰۶ أخرجه مالک في الموطا ۲/ ۹۱۱ رقم الحديث ۴ من كتاب اللباس .

# باب النعال

## د پیزار بیان

**نعال**: د نعل جمع ده. نعل هغه شي ته وايي چې د هغې په ذريعي باندې ښپې د زمکې نه ساتلی کېږي، نورو الفاظو کې دې ته د پاپوش نوم ورکولی کېږي. ښپو کې استعمالېدونکی پیزار دا چې هره زمانه کې بدلېږي رابدلېږي. هر قوم کې د لباس جدا جدا رواج وي. کله چپړي کله بوټان وغیره وي، ځکه دا د جمعي عنوان سره ذکر کړی شوی دی. دې باب کې اصل کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه پیزارو د هئیت او د صفاتو بیان مقصود دی. چې کوم هغه دور کې د اهل عربو رواج ؤو.

دا چې هغه زمانه کې هم رائج شوي بوټان په مختلق قِسمونو کې ؤو، ځکه د جمع صیغه "نعال" استعمال کړی شوی ده. (مرقات۸/۱۹۹)

## الفصل الاول

### د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معیاري پیزار

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ النِّعَالَ |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کوم پیزار مبارک اغوستلو باندې |
| الَّتِي لَيسَ فِيهَا شعرٌ. رَوَاهُ البُخَارِيّ[۱] |
| لیدلی دی هغې کې ويختان نه ؤو. |

**توضیح شعر**: څرمن ته چې کله ښه کلک رنګ ورکړی شي نو پاک او اعلیٰ شي. او د هغې تور ويختان وخيجي، خو که څرمن مدبوغ او مصبوغ شوې نه وي نو هغه اوچه شي او ويختان د هغې د پاسه پاتې شي. دغه قسمه څرمت زياته ښه نه وي. د بحث لاندې حديث مطلب همدغه دی. چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پیزار باندې ويختان نه ؤو. يعنې د ښه څرمن نه جوړه شوې وه. (مرقات۸/۱۹۹)

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: إِنَّ نَعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم كَانَ لَهَا قبالان . رَوَاهُ البُخَارِيّ[۲] |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پیزار کې دوه مزي ؤو. (بخاری) |

(۱) رقم الحديث ۴۴۰۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۸/۱ رقم الحديث ۵۸۵۱ ومسلم في ۸۴۴/۲ رقم الحديث (۲۵-۱۱۸۷)

(۲) رقم الحديث ۴۴۰۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱۲/۱۰ رقم الحديث ۵۸۵۷ وابوداود في ۳۷۵/۴ رقم الحديث ۴۱۳۴.

**توضيح قبالان:** دا تثنيه ده. د دې مفرد قبال دی. د بوټ د مزی هغه برخې ته وايي چې د ګوتو په مينځ کې وي. د دې حديث مطلب دا دی چې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بوټانو کې دوه مزي ؤو. چې د مخې ته د ګوتو سره به پيوسته ؤو. يو مزی خو به د موټې ګوتې او ورسره پيوسته ګوتې په مينځ کې ؤو. چې کوم نن سبا په هوائی چپلو کې وي. او بل مزی به د قريب وسطیٰ او د هغې سره نزدې بنصر (مسواکه) ګوتې به مينځ کې ؤو. چې سره بوټ په پښو کې مضبوط وي. او دا په هغه زمانه کې رواج ؤو. نن سبا دا رواج عام نه دی. اهل سيرت د بحث لاندې کې د ذکر شوې بوټ نقشه ليکلې ده. اهل بدعتو دا عام کړې ده. (مرقات۸/۲۰۰)

## د بوټانو اهميت

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د يوې غزوې په موقع چې جنګ په کې وشو (جهاد ته د تللو |
| فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا يَقُولُ:اسْتَكْثِرُوا مِنَ النِّعَالِ فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ |
| وخت کې)مې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا واورېدل چې ډېر بوټان واخلئ ځکه چې سړې بوټان |
| رَاكِبًا مَا انتعَلَ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| په ښپو کړې وي نو سپور پشان وي. |

**توضيح: فی غزوة:** د بوټانو د اهميت له نظره په اهتمام سره دا اعلان د غزوه تبوک په موقع نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کړی ؤو. دا چې د سفر دور ؤو، پيدل هم ؤو. سخته ګرمي هم وه، نو ځکه د بوټانو ضرورت ؤو. لهذا د بوټانو د اهميت اړخ ته نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشاره وکړه چې تر څو پورې د سړې په پښه کې بوټان وي ګويا کې هغه کس د سپور پشان دی، ځکه د بوټانو سره سړی تيز مزل کوي. پښې نه زخمي کېږي. او د يخنۍ او د ګرمۍ د ټکر نه محفوظ وي. (مرقات۸/۲۰۱)

**ما انتعل:** ای ما دام الرجل لابس النعل يکون کالراکب. (مرقات۸/۲۰۱)

## د بوټ د ښپو کولو او ويستلو مسنونه طريقه

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تاسو کې کوم بوټانو اچوي |

---

([1])رقم الحديث ۴۴۰۹ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۲۰/۳ رقم - - ۶۶-۲۰۹۶) وأبوداود في السنن ۳۷۵/۴

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَلْيَبْدَأْ | بِالْيُمْنَى | وَإِذَا | نَزَعَ | فَلْيَبْدَأْ | بِالشِّمَالِ |
| نو هغې له پکار ده چې د ښي پښې نه شروع وکړي يعنې اول ښي پښه کې بوټ واچوي او چې کله بوټان وباسي نو | | | | | |
| لِتَكُنِ | الْيُمْنَى | أَوَّلَهُمَا | تُنْعَلُ | | |
| د چپې پښې نه دې شروع کوي يعنې اول د چپې پښې نه بوټ وباسې. حاصل دا چې ښي پښه د اچولو | | | | | |
| وَآخِرَهُمَا | تُنْزَعُ | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | | | |
| وخت کې مخکې کول پکار دي. او د ويستلو وخت کې وروسته کول پکار دي. | | | | | |

**توضیح:** **بالیمنی:** اسلام ښي اړخ ته اعزاز او اکرام حاصل دی. لهذا ښي پښه د چپې پښې په نسبت زیاته د احترام قابل ده. دلته د بوټ اچول د بوټ د ويستلو په نسبت زيات د اکرام او د اعزاز سبب دی. د دې قاعدې له نظره حديث کې مسلمانانو ته دا تعليم ورکړې شوی دی چې کله بوټان اچوئ نو د شروع د ښي پښې نه کوئ چې دا اعزاز قابل اندام ته اول اعزاز حاصل شي. او چې کله بوټان وباسئ نو شروع د چپې پښې نه کوئ چې د بوټانو د اچولو اعزاز تر ډېر وخت پورې ښې پښې ته حاصل وي. ګويا کې د دې اعزاز ابتداء او انتهاء کې د ښې پښې لحاظ ساتلی شوی دی. د "ان الله يحب التيامن الخ" حديث باندې ښه عمل وشو. (مرقات ۸/۲۰۱)

## يو ښپه کې بوټ او بله لغړه بې کاره عمل دی

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَمْشِي أَحَدُكُمْ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې تاسو کې هيڅ يو کس |
| فِي نعلٍ واحدةٍ ليُحفيهُما جَميعًا أَو لينعلهما جَميعًا (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| يو پښه کې بوټ اچول سره نه ګرځي. دا ضروري ده چې يا خو دواړه پښې برېنډې وي يا دواړو پښو کې بوټان وي. |

**توضیح:** **فی نعل واحدة:** شمائل ترمذی کې نعل واحد کې د ګرځېدلو روايت دی. راروان حديث نمبر ۹ کې پوره تفصيل ليکلی شوی دی. هلته يې وګورئ. دلته د حديث مطلب دا دی چې که بوټان اچوئ نو په دواړو پښو کې يې اچوئ. که نه يې اچوئ نه په دواړو کې يې مه اچوئ. يو پښه کې بوټ اچول او بل بله برېنډه ساتل مکروه تنزيهي دي، ځکه دا سې کول د تهذيب او د شائستګۍ خلاف دی. چې بې کاره ښکاري. او بل دا چې دې کې تکليف او پريشانې هم ده. چې يو پښه او چته

---

[1] رقم الحديث ۴۴۱۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱۱/۱۰ رقم الحديث ۵۸۵۶ ومسلم في ۱۶۶۰/۳ رقم الحديث (۶۷-۲۰۹۸)
[2] رقم الحديث ۴۴۱۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۹/۱۰ رقم الحديث ۵۸۵۵ ومسلم في ۱۶۶۰/۳ رقم الحديث (۶۸-۲۰۹۷)

وي او يو لاندې وي. تللو کې مشکل وي. د غورځېدلو خطر دی. (مرقات۸/۲۰۳)

**وليحفها:** دا د احفاء نه دی. يعنې په دواړو کې بوټان واچوئ يا دواړه بربنډې کړئ. (مرقات۸/۲۰۳)

## يوه موزه کې مزل کول منع دی

| |
|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا انْقَطَعَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د يو بوټ يعنې د چپلې وغيره |
| شِسْعُ نَعْلِهِ فَلَا يَمْشِ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ حَتَّى يُصْلِحَ شِسْعَهُ |
| مزی و شلېږي نو په يو بوټ کې دې نه ځې. بلکې د هغه بوټ مزی دې صحيح کړي. د غه شان يو يو |
| وَلَا يَمْشِ فِي خُفٍّ وَاحِدٍ وَلَا يَأْكُلْ بِشِمَالِهِ وَلَا يَحْتَبِي |
| مزې اغوستلو سره مه ځئ او مه په چپ لاس خوراک کوئ. د غه شان مه په يو جامه کې راغونډ شي (چې د هغې |
| بِالثَّوْبِ الْوَاحِدِ وَلَا |
| جامې يوه برخه د هغې ستر نه وي پټ کړی) او مه کومه تو ته په بدن داسې تاواوئ چې لاس هم د ننه |
| يَلْتَحِفِ الصَّمَّاءَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| وي (او د لاس راويستلو وخت کې ستر ښکاره شي) |

**توضيح:** **شسعهٔ:** د بوټ مزي ته شسع ويل شوی دی. يعنې که د بوټ مزی شليدلی وي نو صرف يو بوټ کې سفر مه کوئ. د غه شان په يوې موزه کې هم سفر مه کوئ، ځکه دا د تهذيب د شائستگی خلاف دی. احتباء او اشتمال الصماء کې تحقيق تير شوی دی.

## الفصل الثاني

### د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بوټانو مزي

| |
|---|
| ﴿۷﴾عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ لِنَعْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَالَانِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پوش مبارک کې دوه مزي ؤو. چې |

---

([1])رقم الحديث ۴۴۱۲ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۶۱/۳ رقم الحديث (۷۱-۲۰۹۹) وابوداود في السنن ۳۷۷/۴ رقم الحديث ۴۱۳۷

| |
|---|
| مُثَنًّى شِرَاكُهُمَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| د پښو ګوتمې به په کې وي. او هغه دواړو کې به هر مزی ډبل ؤو چې مزی مضبوط وي. او پښو کې خنبېږي هم نهٔ. |

**توضیح**: مثنیً شراکهما: یعني مخې ته مزي به ډبل ؤو. چې پښې زخمي نه کړي. او په ډبل والي مضبوطې هم وي. دلته دې حدیث کې صرف د دوه مزو ذکر دی. امکان لري چې د بوټانو شاته چې کوم مزي وي هغه هم مراد وي، ځکه دغه شان بوټان استعمالېږي. او د هغې مزي ډبل کړی کېږي چې مضبوط هم وي او د پلنوالي په وجه پښو کې خنبېږي هم نهٔ. (مرقات۸/۲۰۵)

## په ولاړه باندې د ځېنو بوټانو اغوستل منع دي

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ولاړه د بوټانو د اغوستلو نه منع کړې |
| قَائِمًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ[2] |
| ده. (روایت کړې دې ابوداؤد، ترمذی او ابن ماجه دابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړې دې) |

**توضیح**: قائماً: دا ممانعت هغه وخت دی چې په ولاړه د بوټانو اچول ګران وي، لکه بوټ وغیره پیزار دي. دا په اطیمنان سره د اچولو لپاره کیناستل غواړي چې مزی کلک وتړلی شي. که په ولاړه ولاړه داسې کوي نو کله به پاسیږي او کله به غورځېږي مشقت به وي.

د حدیث دا نهي ارشادي ده. او د ځېنو بوټانو لپاره ده د هر قسم بوټانو لپاره نه ده. (مرقات۸/۲۰۵)

## یو بوټ کې مزل څنګه دی؟

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنِ الْقَاسِمِ بنِ محمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: |
| او حضرت قاسم ابن محمد د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت کوي چې هغې وویل چې |
| رُبَّمَا مَشَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ځېنې وخت یو پیزار اچول سره مزل کولو. او یو روایت کې دا الفاظ دي |

[1] رقم الحديث ۴۴۱۳ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۹۴/۲ رقم الحديث ۳۶۱۴

[2] رقم الحديث ۴۴۱۴ أخرجه ابوداود في السنن ۳۷۶/۴ رقم الحديث ۴۱۳۵.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةٍ: أَنَّهَا | مَشَتْ | بِنَعْلٍ | وَاحِدَةٍ. |

چې حضرت عائشه رضي الله عنها يو پيزار واچلو او مزل يې وکړو. ترمذي دا روايت نقل کړی دی او ويلي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ: | هَذَا | أَصَحُّ (١) |

يې دي چې دا روايت د اسنادو په اعتبار سره يا مفهوم او د معنی په اعتبار سره ډېر صحيح دی.

**توضيح**: **بنعل واحدة**: يعني کله که نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو بوټ کې د مجبوری په وجه کور ته دننه تلې ؤو. (مرقات۸/۲۰۶)

**پوښتنه**: اوس پوښتنه دا ده چې دا حديث د هغه ټولو حديثونو سره معارض دی چې کوم کې يو بوټ پښو کولو سره د تللو نه منع کوي. د دي څه جواب دی؟

**جواب**: علماؤ زير بحث حديث کې تاويل کولو سره داسې جواب کړی دی. اول جواب دا دی چې دا حديث صحيح نه دی. يا که صحيح دی نو معمول به نه دی. دويم جواب دا دی چې دا حديث د جواز لپاره دی چې يو بوټ اچولو سره مزل کول حرام نه دی. دریم جواب دا دی چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا عمل په نادره درجه کې ؤو. او نادر د معدوم په حکم کې راځي "**والنادر کالمعدوم**" څلورم جواب دا دی چې د دي تعلق د کور دننه سره دی. د عام مزل سره نه دی. پنځم جواب دا دی چې دا عمل مکروه تنزيهي دي. لهذا د باقي حديثونو او د دي حديثونو مال او مرجع يو ده چې داسې کولو کې کراهت تنزيهي دی. يا نبي کريم صلى الله عليه وسلم د جواز د بيان لپاره ځينې ځل په کراهت تنزيهي باندې عمل کړی دی. چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په حق کې به مکروه نه ؤو. بلکې د امت د تعليم په بنياد باندې به د ثواب کار شو. شپږم جواب دا دی چې اصل کې دا د حضرت عائشه رضي الله عنها خپل عمل ؤو، لکه څنګه چې په نورو روايتونو کې د دي بيان دی. او ترمذي هم دغه روايت راجح ګڼلی دی. (مرقات۸/۲۰۶)

## بوټان ويستل او کيناستل د مجلس د آدابو نه دي

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ إِذَا جَلَسَ الرَّجُلُ أَنْ يَخْلَعَ نَعْلَيْهِ فَيَضَعَهُمَا

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې دا خبره د سنت نه ثابته ده چې يو کس کينې او بوټان

بِجَنْبِهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ (٢)

وباسي او هغه خپل خوا کې کېږدي.

**توضيح**: مطلب دا دی چې مجلس کې د بوټانو سره مه کينئ. دا د مجلس د آدابو نه خلاف دی. او د تهذيب او شائستګی هم خلاف دی. بوټان ويستلو سره به پښو ته راحت هم ملاو شي. او کس ته به هم

---

(١) رقم الحديث ۴۴۱۵ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۱۳ رقم الحديث ۱۷۷۵،وابن ماجه في ۲/۱۱۹۵ رقم الحديث ۳۶۱۸.

(٢) رقم الحديث ۴۴۱۶ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۱۴ رقم الحديث ۱۷۷۷-۱۷۷۸

راحت ملاو شي. او بوټان خپل چپ اړخ ته کیښودل پکار دي چې د ښي اړخ تکریم په ځای پاتې شي. او مخې ته هم مه یږدئ چې د قبلې اړخ ته کس لمونځ کوي. شاته یې هم مه یږدئ ګنې غل به وتښتوي.

## نبي کريم ﷺ لپاره د خفين هديه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّجَاشِيَّ أَهْدَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| او حضرت ابن بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل کوي چې نجاشي (د حبش بادشاه) د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت کې | | | | | | | |
| خُفَّيْنِ | أَسْوَدَيْنِ | سَاذَجَيْنِ | | | | | |
| دوه توري موزې (یعنې د تورې څرمنې موزې) د هدیه په توګه راولیږلې چې ساده غیر منقش وې، نو | | | | | | | |
| فَلَبِسَهُمَا. | رَوَاهُ | ابْنُ | مَاجَهْ. | وَزَادَ | التِّرْمِذِيُّ | عَنِ | ابْنِ بُرَيْدَةَ |
| نبي کریم ﷺ هغه د طهارت په حالت کې واچولې (ابن ماجه) او ترمذی دا روایت د ابن برید او هغې | | | | | | | |
| عَنْ | أَبِيهِ: | ثُمَّ | | | | | |
| د خپل پلار نه نقل کړی دی یعنې د ترمذی په روایت کې د عن ابن بریده په ځای عن ابی بریده دی او د هغې به روایت کې | | | | | | | |
| تَوَضَّأَ | وَمسح | عَلَيْهِمَا[1] | | | | | |
| د هغه الفاظو هم زیاتوالی دی چې نبي کریم ﷺ اودس وکړو او په هغه موزو یې مسح وکړه. | | | | | | | |

**توضیح:** نجاشی به د حبشی د بادشاه لقب ؤو. د هغې نوم "اصحمه" ؤو. او دا مسلمان شوی ؤو. د جنازې لمونځ یې نبي کریم ﷺ کړی ؤو. **خفین:** پائتابې موزې مراد دي. **اسودین:** یعنې د تورې څرمنې ته جوړې شوې تورې وې. **ساذجین:** یعنې ساده وې. دې باندې هیڅ ګل نه ؤو نقش کړی شوی. **فلبسهما:** یعنې نبي کریم ﷺ هغه قبولې کړې او هغې باندې یې مسح وکړه او د هغې سره یې لمونځ وکړو. نبي کریم ﷺ د هغه موزو باره کې دا تحقیق نه ؤو کړی چې دا د کوم قِسم حرمن نه جوړې شوې دي. آیا دا څرمن د حلال ځناور وه یا که د حرام وه؟ مدبوغ وه او که غیر مدبوغ وه؟ نبي کریم ﷺ صرف دا ولیدل چې د پاس نه پاکې دي. هیڅ نجاست پرې نه خکاري. همدې باندې نبي کریم ﷺ اکتفاء وکړه. د دې نه معلومه شوه چې بهر د غیر مسلمو د دنیا نه چې کوم څیزونه راځي هغې کې دومره کتل کافي دي چې په ظاهره پرې هیڅ نجاست نشته دی. دې باب کې فصل ثالث نشته دی. (مرقات۸/۲۰۶)

---

[1] رقم الحديث ۴۴۱۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۷۷ رقم الحديث ۴۱۳۸.

# باب الترجل

## سر د ږمنځولو بیان

ترجل: عربئ کې ترجل ږمنځي ته وايي. که په سر کې وي يا که په ږيره کې وي، خو په عامه توګه ترجل سر د ږمنځولو لپاره استعمالېږي. او که ږيره ږمنځول وي نو د هغې لپاره د تسريح لفظ بيانېږي. دا باب هم په حقيقت کې د كتاب اللباس د لاندې دي، ځکه د ږمنځي وغيره تعلق هم د بدن د ارائش و زيبائش نه دى. چې د لباس په زمره کې راځي. اسلام دا چې کامل او پوره بلکې د ژوند پوره ضابطه ده، ځکه دي کې د انساني ژوند متعلق واضحه هدايات موجود دي. دي سلسله کې کې د ږمنځولو فايدي او طريق او آداب و صفات د بيانولو لپاره د الترجل عنوان تړلى شوى دى. چې ۶۸ مختلف حديثونو کې د ږمنځولو وغيره متعلق تفصيلي احکامات راغلي دي. (مرقات۸/۲۰۷)

## الفصل الاول

### د حائضې ښځې بدن ناپاکه نه وي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ: كُنْتُ أُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سر مبارک هم ږمنځ کړې وو |
| وَأَنَا حَائِضٌ(مُتَّفقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| او د حيض په حالت کې وم |

**توضیح**: د دې حديث نه معلومه شوه چې د حائضې ښځې بدن دومره نا پاکه نه وي چې د هغې سره بالكل لاس لګول منع وي. د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا به د حيض په حالت کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سر مبارک ږمونځولو. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پاک بدن ن د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا لاس بار بار لګېدلى ؤو.

### پنځه شيان فطرت کې داخل دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْفِطْرَةُ خَمْسٌ: |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل پنځه شيزونه په فطرت کې |

[1] رقم الحديث ۴۴۱۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۳۶۸ رقم الحديث ۵۹۲۵ ومسلم في ۱/۲۴۴ رقم الحديث ۹-۲۹۷)

| | |
|---|---|
| الْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَقَصُّ | |
| داخل دي. یو خو ختنه کول، د نامه لاندې ویختان د پاکولو لپاره د وسپنې یعنې د چاړه وغیره استعمالول. | |
| الشَّارِبِ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ ونتفُ الإِبطِ " (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) | |
| دربېم شونډو ویختان واړه کول ځلورم د نوکان غوڅول او پنځم د ترخ ویختان پاکول. (بخاري مسلم) | |

**توضیح**: **الفطرة**: د فطرت نه مراد د انبیاء کرامو سنت قدیمه مراد دي. ګویا کې دا څیزونه خلقی، جلبی او پیدائشی خصلتونه دي. (مرقات۸/۲۰۸)

**ختنه کې د فقهاؤ اختلاف**: **الختان**: د شوافعو په نزد ختنه واجب ده. د احنافو په نزد سنت مؤکده ده. (مرقات۸/۲۰۸)

**دلائل**: شوافعو د استدلال په توګه وویل چې د ختنه د اسلام د شعائر نه دي. او شعار واجب وي. دویم دلیل دا دی چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د غیر ختنه شوي کس ګواهي نه قبلېږي. او نه یې امامت قبول دی. دا دلیل وجوب دی. د احنافو ائمه فرمایي چې حدیثونو کې د فطرت لفظ راغلی دی. چې د سنت په معنی کې دی. د سنن المرسلین لفظ هم راغلی دی. دغه شان په حدیث کې دي "**الختان سنة للرجل و مكرمه للنساء**" (رواه احمد) (مرقات۸/۲۰۸)

**جواب**: د شعار لفظ د وجوب لپاره یقیني نه دی. سنت کې هم کېدی شي. باقې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فتوی د هغه کس باره کې ده چې د ختنې نه انکار کوي. یا دا سپکه ګڼي.
ملاعلي قاري فرمایي چې امکان لري چې د احنافو په نزد هم ختنه واجب وي. د سنت اطلاق د دې وجې نه وي چې دا ثابت بالسنة دي. خپله واجب ده. د ملاعلي قاري کلام د قواعدو مطابق دی. چې ختنه واجب کېدل پکار دي، ځکه د ننه پورې دې باندې د استمرار سره عمل جاري دی. هیچا نه دی پرېښی. دا د وجوب دلیل دی. که کوم ماشوم مختون پیدا شي نو د ختنې ضرورت نشته دی. که ختنه یې نه وي شوې یا نوی مسلمان وي نو وروسته به ورله ختنه کېږي. اُووۀ (۷) نه تر لس کالو پورې ختنه کول پکار ده. دا د ختنې بهتر وخت دی. اګر که د پیدائش سره هم کېږي. او هغه اسانه هم ده. څوارلس (۱۴) انبیاء مختوم پیدا شوي ؤو. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت شیث عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت صالح عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت شعیب عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت سلیمان عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت حنظله بن صفوان عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت زکریا عَلَيْهِ السَّلَامُ، حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ او حضرت محمد صلی الله علیه و علی جمیع الانبیاء والمرسلین.
د ښځو ختنه په کرمو ملکونو کې کېږي. د فرج د ننه د وازګې پشان غوښه پرسېږي. ماهره ښځې دا

---

(۱) رقم الحدیث ۴۴۲۰ اخرجه في صحیحه ۱۰/۳۴۹ رقم الحدیث ۵۸۹۱ ومسلم في ۱/۲۲۲ رقم الحدیث (۵۰-۲۵۷)

غوڅوي. دا الذ للجماع ده. هیڅ ضروري نه ده. د شوافعو په نزد اوس هم په مصر وغیره کې د ښځو ختنه کېږي. دعوت په کې ورکول کېږي او متیان په کې تقسیمېږي. (مرقات۸/۲۰۸)

**الاستحداد:** حدیده د استعمالولو په معنی کې دی. د نارینؤ لپاره د وسپنه استعمالو سره د نامه لاندې ویختان لرې کول زیات بهتر او قوت باه سبب دی. (مرقات۸/۲۰۹)

**قص الشارب:** د مسئلې تفصیل او حدیث په توضیحات جلد اول ص ۵۵۶ باب السواک کې تیر شوی دی. هغې اړخ ته رجوع وکړئ. (مرقات۸/۲۰۹)

**تقلیم الظفار:** نوکان غوڅول سنت دي. د دې مستحب طریقه داسې ده چې د ښي لاس د شهادت ګوتې نه شروع وکړئ او په موټه ګوته یې ختم کړئ. او بیا د چپ لاس د وړې ګوتې نه شروع کړئ او په موټه ګوته یې ختم کړئ. پښو کې دا طریقه ده چې د ښي پښې د وړې ګوتې نه شروع وکړئ او د چپې پښې په موټه ګوته یې ختم کړئ. توضحات جلد اول صفحه ۵۵۶ باندې مزید تفصیل شته دی. (مرقات۸/۲۰۹)

**نتف الابط:** نتف ویستول او په ښنه کولو په معنی کې دی. د ترخ ویختان لرې کولو ته وایي. په ګوتو باندې د دې ویختانو ویستلو ښه وي. که استرا باندې وکړی شي نو د ویختان ځنګل به جوړ شي، خوله جمع کېدلو سره بیا د ترخ نه بدبوې خیژي. به اونۍ کې پکار دی ګنې په شلو (۲۰) ورځو کې دې وي ګنې د څلویښتو (۴۰) ورځو نه زیات پرېښودل مکروه دي. تفصیل یې تیر شوی دی. (مرقات۸/۲۰۹)

اوس دلته پوښتنه دا ده چې د بحث لاندې حدیث کې د پنځو خصلتونو ذکر دی. او په باب السواک کې د لس خصلتونو ذکر دی. دا تعارض دی؟

د دې جواب دا دی چې یو څو مهم مسائل د موقع او محل په مناسبت سره ذکر شوي دي. هیڅ حصر مقصود نه دی او نه هلته په لسو کې حصر موجود دی. بلکې د لسو نه زیات خصلتونه هم دي او نه دلته پنځو کې حصر مقصود دی. څومره چې بیان کړی شو په خپل ځای دي. د دې نه بغیر هم شته دی. چې ذکر کول یې ضروري و نه ګڼلی شو. لهذا هیڅ تعارض نشته دی.

##ږیره خریل او بریت غټول د مشرکانو کار دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ: |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل د مشرکانو خلاف وکړئ (یعنې |
| أَوْفِرُوا اللِّحَى وَأَحْفُوا |
| هغوی دا چې ږیره پست کوي او بریت غټوي نو ځکه تاسو دا وخت خپل ځان ممتاز وساتئ یاد وساتئ چې) تاسو |

الشَّوَارِبَ". وَفِي رِوَايَةٍ:أنهكوا الشَّوَارِب وأعفوا اللحی (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

ږیرې غټې کړئ بریتونه واړه کړئ. او یو روایت کې داسې چې تاسو بریت بیخې واړه کړئ او ږیره پرېږدئ.

**توضیح:** **اللحیٰ:** دا د لحیة جمع ده لحیه اصل کې د جامې هډوکې ته وایي. بیا د دې اطلاق په هغه ویختانو شو چې د جامې د پاسه دي. همدغې ته لحیه وایي. ږیره ساتل واجب ده. دې ته سنت ځکه وایي چې د سنتو نه ثابت ده او مسنون طریقه ده. یو لاکه پنځلس زره (۱۱۵۰۰۰) انبیاؤ او یو نیم لاکه (۱۵۰۰۰۰) صحابه کرامو رضي الله عنهم کې یو هم ږیره نه وه خرائیلي. ږیرې د غټولو لپاره د "اوفروا" صیغه استعمال شوي دهږ چې د وفر نه ده. او د غټولو په معنیٰ کې ده، نو ځکه د واعفوا صیغه استعمال شوي ده. یعنې ږیره معاف کړئ. دا همدغه شان پرېږدئ چې ښه غټه شي. ږیرې د غټولو حکم په حدیثونو کې ذکر ده. د دې هیڅ حد نشته دی. البته علماؤ لیکلي دي چې که که سرې مخ وړوکی وي و ږیره دومره اوږده او غټه شي چې متقي، پرهیزګاره، صالحان او علماء دا مناسب نه ګڼي نو د مخ په تناسب سره ږیره د غاړو او د اوږد والي نه کمول جائز دي. کمولو آخري د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه منقول دي چې د یو موټې د قبضې هومره کمول کېدی شي. د دې نه کمول جائز نه دي. او د فقهاؤ په دې اتفاق دی چې د دین خبره تره همدغې حده پورې ده. باقې د عقل خبره ده چې کوم د هر عقلمند خپل خپل عقل دی. هغه دین نه دی. توضیحات جلد اول ۵۵۶ کې تفصیل ذکر دی. (مرقات۲۱۱/۸)

بهرحال د بحث د لاندې حدیث تعلیم دا دی چې ږیره غټول او بریت واړه کول د مؤمن مسلمان کار دی. چې د رحمان قانون دی او ږیره غوڅول او بریت غټول د کافر او مشرک کار دی. چې د شیطان قانون دی.

## د زیر ناف ویختانو د صفا کولو آخري موده

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَن أَنَس قَالَ: وُقِّتَ لَنَا فِي قَصِّ الشَّارِبِ وَتَقْلِيمِ الْأَظْفَارِ وَنَتْفِ الْإِبِطِ وَحَلْقِ | | | | |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي بریت واړه کول، نوکان غوڅول، د ترخ ویختان پاکول او نامه لاندې | | | | |
| الْعَانَةِ | أَنْ | لَا | تُتْرَكَ | أَكْثَر |
| ویختان د غوڅولو باره کې زمونږ لپاره کومه موده مقرره کړی شوې ده هغه دا ده چې مونږ دا د | | | | |
| مِن أَرْبَعِينَ لَيْلَة. رَوَاهُ مُسلم[2] | | | | |
| څلوېښتو ورځو نه زیاته پرېږدو. | | | | |

[1] رقم الحدیث ۴۴۲۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۱/۱۰ رقم الحدیث ۵۸۹۳ ومسلم في ۲۲۲/۱ رقم الحدیث (۵۲-۲۵۹)

[2] رقم الحدیث ۴۴۲۲ أخرجه مسلم في صحيحه ۲۲۲/۱ رقم الحدیث (۵۱-۲۵۸) والترمذي في ۸۶/۵ رقم الحدیث ۲۷۵۹.

**توضيح**: اربعين ليلة: د دې روايت نه خو همدغه مفهوم کېږي چې د پاکوالي دا ټول کارونه په څلويښتو (۴۰) ورځو کې دننه لرې کول پکار دي. د دې نه زياته د موده به د ګناه سبب وي، خو په نورو روايتونو کې څه نور تفصيل ذکر دی. د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه يو روايت منقول دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به نوکان او شونډې هره جمعه تراشلې. د نامه لاندې ويختان به يې شل (۲۰) ورځې پس پاکول او د ترخ ويختان به يې څلويښت (۴۰) ورځې پس پاکول. د فقهې په يو کتاب قنيه کې لکيل شوي دي چې افضله دا ده چې د پاکوالي دا ټول کارونه په اونۍ کې وشي. که په اونۍ کې امکان نه لري نو پنځلس ورځو کې دې وکړی شي. که په دې باندې هم عمل ونه کړی شو نو آخري حد څلويښت ورځې دی. د دې نه وروسته مکروه او وعيد دی. ځينې علماؤ ليکلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ترخ او د نامه لاندې ويختان په څلويښتو (۴۰) ورځو کې پاکول. او د ځينې روايتونو مطابق يې ديرش ورځو کې پاکول. ملاعلي قاري فرمايي. ترخ او د نامه لاندې ويختان په يوه اونۍ کې نه خرائيل کېږي، نو ځکه دا دومره ژر نه غځېږي. د دې لپاره د ديرشو (۳۰) ورځو موده معتدل قول دی. د ملاعلي قاري دا فيصله ډېره ښه ده. باقې پاتې شو نوکان او بريت نو هغه په هره اونۍ کې پاکېدلی شي. (مرقات ۸/۲۱۲)

## ويختانو کې د تور خضاب تفصيلي مسئله

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى |
| او د حضرت ابوهرير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل يهوديان او عيسايان |
| لَا يَصبِغون فخالفوهم» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| خضاب نه لګوي. نو تاسو د هغوی خلاف کوئ. |

**توضيح** لايصبغون: يعنې يهود او نصارى د ډېرې په سپينو ويختانو کې خضاب او بل هيڅ قسمه رنګ نه لګوي، نو تاسو د هغوی په مخالفت کې ډېره کې خضاب کوئ. د ټولو نه اول دا خبره د پوهېدلو ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اصباغ او رنګ او د خضاب به حوالي سره د نکريو زيات اهميت ورکړی دی. د زيړ اجازت يې هم کړی دی. البته د تور رنګ نه يې سخته منع کړې ده. د لاندې حديث "واجتنبو السواد" جمله موجود ده. چې امام مسلم نقل کړې ده. کوم کس چې د مسلم روايت ته موضوع وايي هغه به بدعتي وي، ځکه بخاری او د مسلم حديثونو صحت د امت په اجماع شوی

---

[1] رقم الحديث ۴۴۲۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۳۵۴ رقم الحديث ۵۸۹۹ ومسلم في ۳/۱۶۶۳ رقم الحديث (۸۰-۲۱۰۳)

دی. امام احمد بن حنبل رحمه الله خپل سند کې دا حدیث نقل کړي دی "**غیرو الشیب ولاتقربوا السواد**" (رواه احمد)

ملاعلي قاري د نوی په حواله نقل کړي دي چې د خضاب باره کې یو څو اقوال دي. صیحیح قول دا دی چې ویختانو کې هر قِسمه رنګ او خضاب کول مستحب دي. هغه که نارینه وي یا که ښځه وي. البته د تور رنګ خضاب حَرام دی. (مرقات۸/۲۱۴)

امام محمد رحمه الله په موطأ کې داسې لیکي: "**لانریٰ بالخضاب بالوسمة والحناء والصفرم باساً وان ترکه ابیض فلا بأس کل ذٰلك حسن**" (مرقات۸/۲۱۴)

شرحه شرعة الاسلام کې لیکلی شوي دي چې: **الخضاب سنة ثبت قولاً وفعلاً اما قولاً فلحدیث ابی هریرة السابق واما فعلاً فلما قال ابن عمران ان النبي ﷺ کان یصفر لحیته بالورس والرعفران**". (مرقات۸/۲۱۴)

**وفی مجمع الفتاویٰ اختلف الروایة فی ان النبي ﷺ هل فعل الخضاب فی عمره؟ والاصح انه لم یفعل الخضاب فی لحیتم لعدم الحاجة الیه وامر خضاب رأسه بالحناء فهو مشهور وقیل کان فعله غیر مرة لدفع الصداع والحرارة قلت یؤیده ماورد فی الاختضاب من الاحادیث**".

**منها: اختضبوا بالحناء فانه یزید فی شبابکم وجمالکم ونکاحکم.** (رواه البزار) (مرقات۸/۲۱۴)

**ومنها: اختضبوا بالحناء فانه طیب الریح ویسکن الروع.** (رواه ابو یعلی والحاکم)

**ومنها: اختضبوا وافرقوا وخالفوا الیهود.** (رواه ابن عدی)

**قال الغزالی فی الاحیاء الخضاب بالسواد خضاب الکفار ویقال اول من خضب بالسواد فرعونه لعنه الله.** (مرقات)

**وعن ابن الدرداء فعه قال علیه السلام من خضب بالسواد سود الله وجهه یوم القسامة.** (رواه الطبرانی)

د دې ټولو روایتونو نه دا ثابتول مقصود دي چې اسلام کې د خضاب کول جائز او مستحب دي. البته د تور رنګ استعمالول منع دي. اوس دلته دا پوښتنه پیدا کېږي چې خضاب دومره ضروري ده او د یهودو او د نصاریٰ د مخالتف ذریعه ده نو د دې نه دا ثابته شوه چې د خضاب نه بغیر سپینه ږیره سپینه پرېښودل منع دي. حال دا چې زیاتره مسلمانان یې نه رنګوي بلکې طبعي حالت باندې یې سپینه ساتې. د دې اعتراض جواب دا دی چې د حدیث مطلب دا دی چې یهود هیڅ یو رنګ او خضاب جائز نه ګڼي. تاسو خضاب ناجائزه مه ګڼئ. بلکې د یهودو مخالفت وکړئ او جائز کېدلو عقیده وساتئ. بیا خضاب وکړئ نو هم جائز او ښه دي. او که خضاب ونه کړئ بلکې ږیره په طبعي حالت پرېږدئ نو دا هم جائز او ښه دي، لکه څنګه چې د امام محمد رحمه الله فتوی مخکې لیکلی شوې ده. چې "**وان ترکه ابیض فلا بأس به**" اوس دلته دا خبره پاتې شوه چې د فقهاؤ په نزد د تور خضاب د استعمالولو څه حکم دی.

دې سلسله کې علامه نؤوی د مسلم په شرح ص ۱۹۹ باندې داسې لیکی: زمونږ د شوافعو د مسلک مطابق د سپینو ویختانو خضاب مستحب دی. او د نارینؤ او د زنانؤ لپاره د تور رنګ نه بغیر هر رنګ مستحب دی. د تور رنګ خضاب د ځینو په نزد مکروه دی، خو مختار او صحیح قول دا دی چې تور خضاب حرام دی او هدغه زمونږ مسلک دی. قاضي عیاض مالکي فرمایي چې د سلف صالحینو خو اول کې په دې باندې اختلاف ؤو. چې آیا د ویختانو د بل رنګ په یو رنګ خضاب افضل دی او یا که سپین ساتل افضل دي. ځینو سلفو د خضاب پرینښودل افضل ګڼلي دي، ځکه یو حدیث کې د خضاب کولو نه منع راغلې ده. او نبي کریم ﷺ خپله خضاب نه دی استعمال کړی. حضرت علي رضی الله عنه، حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه مسلک همدغه دی. د سلفو صالحینو د یو بلې ډلې مسلک دا دی چې خضاب کول افضل دي. د صحابه کرامو د یو لویې ډلې رائې همدغه ده، ځکه په ډېرو حدیثونو کې د خضاب ترغیب وارد دی. د دې نه وروسته د دې سلفو دې کې اختلاف دی. چې آیا د خضاب استعمالول جائز دي او که نه؟ د صحابه کرامو یو لویې جماعت د عدم جواز قائل دي، خو یو څو صحابه او تابعین داسې هم دی چې هغوی تور خضاب استعمال کړی دی. دې حضراتو کې حضرت عثمان بن عفان، حضرت حسین بن علی او د حضرت حسن بصری نومونه مشهور دي. قاضي عیاض فرمایي چې دواړه روایتونه صحیح دي، خو دې کې هیڅ تعارض نشته دی. بلکې مطلب دا دی چې د شارحین د حدیثونو تور خضاب استعمالول په یو څو مجبورو باندې حمل کړی دی، نو ملاعلي قاري لیکلي "**وروی ان عثمان والحسن والحسین خضبوا لحاهم بالسواد للمهابة**" (مرقات ۲۱۳/۸)

علامه شامي لیکي **قوله علیه السلام غیر واهذا لشیب واجتبنو السواد قال الحموری وهذا فی حق غیر الغزاة ولا یحرم فی حقهم للارهاب ولعله محمل من فعل ذلك من الصحابة**". (فتاوی شامی ج ۶ ص ۷۵۶)

د دې روایتونو نه معلومه شوه چې د تور خضاب د احنافو په نزد مکروه تحریمې دی. د بذل المجهود په شرح ابوداؤد کې د دې حدیث د لاندې لیکلی شوي دي. چې **وفی الحدیث تهدید شدید فی خضاب الشعر بالسواد وهو مکروه کراهیة التحریم**. (بذل المجهود ج ۵ ص ۸۲)

د دې روایتونو او د فقهې عبارتونو نه معلومه شوه چې تور خضاب د احنافو په نزد مکروه تحریمې دی. او د شوافعو په نزد مطلق حرام دی. د شریعت له نظره د دې د حرمت اصل منشاء دا ده چې بوډا او ځوان کې التباس را نه شي. او څوک چاله دهوکه ورنکړی شي، ځکه بوډا به د ډیر عمر سړی هم وي خو د خضاب په وجه به خپل ځان ځوان ظاهره وي. دا دهوکه ده چې صرف په تور خضاب سره کېږي نو ځکه منع کړی شو. د نورو رنګونو نه یې هر کس پیژندلی شي چې بوډه دی، ځکه یې نکریزې ایښي دي، نو التباس به نه وي. او په تور خضاب کې تغیر خلق الله هم دی. بهرحال د دې کس لپاره په حدیثونو کې سخت وعید دی چې تور خضاب استعمالوي، خو د مجاهد لپاره

گنجائش شته دی. چې په دښمن باندې رعب وي. یا د داسې کس لپاره چې واده یې د پیغلې جینۍ سره شوی وی. او د خپلې ښځې له نظره داسې کوي، نو باوجود د خلاف اولی به هم جائز وي. یا یو کس په داسې علاقه کې اوسیږي چې هلته د هغه کس نه ډېره کرکه کیږي. چې کوم تور خضاب نه استعمالوي، نو د دې مجبورو په وجه د مجبورۍ په درجه تور خضاب استعمالول مجبوري ده. ګنې تور خضاب استعمالول څرته ضروري دی. چې ملا کږه شي نو ولې په خضاب به سیدها شي څه؟

بابا سعدی یو بوډا هغۍ ښځ ولیدله چې د سر سپین ویختانو ته یې خضاب ورکړی ؤو، نو وې فرمایل.

موئے بتلبیس ساہ کردہ گیر          راست نہ خواہد شد ای پشت کوز

یعنې فرض کړه تا تورو ویختانو ته تور خضاب ورکړو. اوس ځوانه ښکاري، خو دا کږه ملا به دې څنګه سیدها کیږي؟

تور خضاب د ممانعت باره کې راتلونکې حدیث نمبر ۶ او حدیث نمبر ۳۴ کتنه هم وکړئ.

بهرحال د تعجب خبره ده هغه علماؤ باندې چې د دې واضحه ممانعت باندې د پوهېدلو باوجود هم د کوم شرعي عذر په بناء تور خضاب ته جائز وايي. او دې باندې کتابونه لیکي: انا لله وانا الیه راجعون.

فان کنت لا تدري فتلک مصیبة          وان کنت تدري فالمصیبة اعظم

## د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پلار ویختان د خضاب حکم

﴿۱﴾ وَعَن جَابِر قَالَ: أُتِيَ بِأَبِي قُحَافَةَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پلار ابو قحافه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د مکې د فتحې

وَرَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ كَالثَّغَامَةِ

په ورځ راوستلی شو او په همغه ورځ هغې اسلام قبول کړو. د هغې د سر او د ږیرې ویختان ګویا کې ثغامه ؤو

بَيَاضًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

یعنې بالکل سپین ؤو. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته و فرمایل چې د دې ویختانو سپین والی په څه

غَيِّرُوا هٰذَا بِشَيْءٍ وَاجْتَنِبُوا السَّوَاد. رَوَاهُ مُسلم[1]

ذریعه بدل کړه، خو د تور رنګ نه ځان وساته یعنې تور خضاب مه استعمالوه.

**توضیح:** حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د پلار نوم عثمان ؤو. اب قحافه د هغې کنیت ؤو. د مکې د فتحې په ورځ ډېر د بوډه والي عمر کې مسلمان شو. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې دا خضاب کړئ خو د تور خضاب نه یې بچ کړئ. تور خضاب استعمالول مکروه تحریمي دي یا حرام دي.

[1] رقم الحدیث ۴۴۲۴ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۶۳/۳ رقم الحدیث (۷۹-۲۱۰۲) وابوداود في السنن ۴۱۵/۴ رقم الحدیث ۴۲۰۴

**الثغامة**: دا یو بوټی دی. چې ګلان ډېر زیات سپین وي. د هغې سره د سر د ویښتانو تشبیه کړی شوې ده. (مرقات ۸/۲۱۳)

## د یهودو په خلاف د سر په مینځ کې لار ویستل سنت دي

| |
|---|
| ﴿۷﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به کومه معامله کې د الله له اړخه |
| مُوَافَقَةَ أَهْلِ الْكِتَابِ فِيمَا لَمْ يُؤْمَرْ فِيهِ وَكَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ |
| حکم نه ؤو ملاو شوی. هغې کې به نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اهل کتابو موافقت خوښولو، نو اهل کتابو به |
| يَسْدُلُونَ أَشْعَارَهُمْ وَكَانَ الْمُشْرِكُونَ يَفْرِقُونَ رؤوسهم |
| د خپله سر ویښتان همدغه شان پرېښودل (یعني هغوی به په مینځ ویښتان نه اړول بلکې خپل ویښتان به یې همدغه شان |
| فَسَدَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| غځېږ پرېښودل) خو مشرکانو به د خپل سرونو مینځ کې لاره ویستله، نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د اهل کتابو د |
| نَاصِيَتَهُ ثُمَّ فرق بعدُ(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] |
| طریقې مطابق) د خپل تندي ویښتان همدغه شان پرېښې ؤو، خو وروسته به یې سر په مینځ لاره ویستله. |

**توضیح: موافقه اهل الکتاب**: دا چې د اهل کتابو سره اسماني کتاب او اسماني مذهب ؤو، نو ځکه به چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې تر څو پورې د شریعت محمدیه مطابق حکم نه ؤو راغلی نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د اهل کتابو طور طریقو ته د اهل مکې د مشرکانو په طور طریقو باندې ترجیح ورکوله. د مکې والو سره د حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ څه وران شوي آثار ؤو. د هغه قاعدې مطابق نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سدل او د فرق په معامله کې د اهل کتابو د سدل طریقې ته ترجیح ورکړه. بیا د وحي نه معلومه شوه چې د حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ طریقه د سدل نه وه بلکې د فرق او د مینځ لاره وه. د سر ویښتان د سر څلورو واړو اړخونو کې د ځوړنډولو نوم سدل دی. او د سر ویښتان په دوه برخو کې تقسیمول او ښي او چپ اړخ ته په مینځ کې دلاره ویستلو نوم فرق دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اول سدل اختیار کړو. بیا یې د یهودو طریقه پرېښوده او دا صرف دې واقعه کې نه ده شوې بلکې ډېر واقعات داسې دي چې هغې کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یهودو موافقت په ځای مخالفت اختیار کړی دی. مثلاً اول یې سدل وکړو. بیا یې مخالفت وکړو او سدل یې اختیار کړو.

---

[1] رقم الحدیث ۴۴۲۵ أخرجه البخاري في صحیحه ۱۰/۳۶۱ رقم الحدیث ۵۹۱۷ ومسلم في ۴/۱۸۱۷ رقم الحدیث (۹۰-۲۳۳۶)

اول يې ويختان سپين و ساتل بيا يې د خضاب حکم وکړو. اول يې د عاشورې روژه ونيوله او بيا يې د هغې سره د يوې بلې روژې د نيولو حکم وکړو. اول يې د بيت المقدس اړخ ته لمونځ وکړو. بيا يې مخالفت وکړو او د کعبې اړخ ته يې لمونځ کول شروع کړو. اول يې د حائضه ښځې نه بالکل بائيکاټ وکړو بيا يې د جماع نه بغير د اختلاط حکم وکړو. اول يې د جمعې د ورځې د روژې حکم وکړو او بيا يې ځان له د جمعې د روژې نه منع وکړه. اول يې د جنازې د قيام لپاره حکم وکړو بيا يې د يهودو په مخالفت کې پريښودل. اول يې د شنبې او د يک شنبې د ورځې د روژې نيولو نه منع وکړه. بيا يې د يهود او د نصارى په مخالفت کې روژه نيول شروع کړل چې د هغوى اختر نو مونږ به روژه نيسو. (مرقات ۸/۲۱۴)

د دې نه معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ خپل امت د يهود او د نصارى د طور طريقې د خپلولو نه څومره لرې ساتل غوښتل. او نن سبا مسلمان حکمران په هر يو څيز کې څنګه يهود او نصارى ته غاړې ورکوي. يهود او نصارى د دوى اړخ ته نه دې راغلي بلکې دا خلک او نا اهله حکمرانان د هغوى اړخ ته تلي دي. (فإلى الله المشتكى)

## د سر په ويختانو کې قزع کول منع دي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنِ الْقَزَعِ. | | | | |
| او حضرت نافع د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت کوي چې هغې وفرمايل ما نبي عليه السلام د قزع نه په منع | | | | |
| قِيلَ | لِنَافِعٍ: | مَا | الْقَزَعُ؟ | قَالَ: |
| کولو باندې اورېدلی دی. حضرت نافع وپوښتل چې قزع څه څيز دی؟ نو هغې ووېل چې قزع دې ته وايي چې د | | | | |
| يُحْلَقُ بعضُ رَأْس الصبيّ وَيتْرك البعضُ | | | | |
| سر د ويختانو څه برخه و خرائيل شي او ځينې برخه پرېښودلی شي. (بخاري او مسلم) او ځينې راويانو وضاحت | | | | |
| وَالْحق بَعضهم التَّفْسِير بِالْحَدِيثِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | | | |
| د حديث سره تړلی دی. (يعنې د هغې راوي مطابق د قزع دا معنې نبي کريم ﷺ بيان کړې ده) | | | | |

**توضيح: القزع:** د سر ځينې ويختان خرائيل او ځينې پرېښودلو ته قزع وايي. "قال النووي القزع حلق بعض الرأس مطلقاً"

**قيل لنافع:** يعنې د حديث راوي نه چا وپوښتل چې قزع څه شی دی، نو هغې جواب کې د قزع

---

(۱) رقم الحديث ۴۴۲۶ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۳۶۳ رقم الحديث ۵۹۲۰ ومسلم في ۳/۱۶۷۵ رقم الحديث ۲۱۲۰/۱۱۳

تعريف وکړو. هغې کې راوي قزع د ماشوم سره خاص کړې دی. دا قيد د رواج په وجه دی، ځکه په عامه توګه قزع د ماشومانو په سر کې کېږي. ګنې د ممانعت په اعتبار سره چې څنګه قزع د ماشومانو لپاره مکروه ده، همدغه شان د غټو لپاره هم مکروه ده. د قزع بې شماره صورتونه دي. ځينې خلک د حج او عمره په دوران کې د حلق په غرض ايک چوتهائى سر يو عمره کې وخرائي. بيا دوه خله، درې ځله داسې کوي. څه ويختان وخرائي او څه پرېږدي. د قزع دا مکروه ترين صورت دير ځينې خلک د نظرئ نه د بچ کېدلو لپاره د ماشومانو په سر کې لارې جوړوي. مخې او د شانه او ښي اړخ نه چپ اوخ ته ويختان واړه کړې او کرښې په کې جوړوي. دا هم بد ترينه قزع ده. ځينې خلک د ماشومانو د سر ويختان واړه کړې او د تندې نه تر تالو پورې ويختان پرېږدي. او هغې ته ځوندی وايي. دا هم قزع ده. داسې انګرېزي ويختان هم په قزع کې راځي لکه فوجې کټ، سدهير کټ، سنتوش کټ، وغيره وغيره. د دې لپاره ضابطه دا ده چې که د سر ويختان برابر غوڅ کړی شو او پريښودلی شو نو دا قزع نه ده، خو که ځينې ويختان واړه او ځينې لويې واړه واړه کړی شي نو دا ټول قزع دي. چې مکروه دي. هغه که غټ کوي او ماشومان يې کوي. د مذهبي شعار په توګه هندوان چې په سر باندې کومه چوټئه ساتي هغه هم بدترينه قزع ده. که يو مسلمان د هندوانو پشان چوټئه ساتي نو کافر به شي. (مرقات ۲۱۶/۸)

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى صَبِيًّا قَدْ حُلِقَ |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو داسې هلک وليدلو چې |
| بَعْضُ رَأْسِهِ وَتُرِكَ بَعْضُهُ فَنَهَاهُمْ عَنْ ذَلِكَ |
| د سر څه برخه يې خرائيل شوې وه، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه ماشوم د ساتونکو نه منع کړه او |
| وَقَالَ: احْلِقُوا كُلَّهُ أَوِ اتْرُكُوا كُلَّهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| ويې فرمايل چې ټول سره ورله خرائېوئ يا ورله ټول سر پرېږدئ. |

**توضيح**: احلقوا کله: دې حديث کې هم د قزع نه ممانعت بيان دی، ځکه د ټولو ويختانو د غوڅولو يا د ټولو ويختانو د پريښودلو طلب همدغه دی چې ځېن پريښودلی او ځينې غوڅول منع دي. چې قزع ده. (مرقات ۲۱۶/۸)

## هيجړا او مخنث جوړېدل حرام دي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: لعن اللهُ الْمُخَنَّثِينَ مِنَ الرِّجَالِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخنث نارينؤ باندې لعنت ويلی دی. |

(۱)رقم الحديث ۴۴۲۷ اخرجه ابوداود في السنن ۴۱۱/۴ رقم الحديث ۴۱۹۵ والنسائي في ۱۳۰/۸ رقم الحديث ۵۰۴۸.

| | | |
|---|---|---|
| وَالْمُتَرَجِّلَاتِ | مِنَ | النِّسَاءِ |
| او په هغه ښځو باندې یې هم لعنت ویلی دی چې د نارینؤ سره مشابهت اختیاروي. او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | |
| وَقَالَ: أخرجوهم من بُيُوتكُمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] | | |
| و فرمایل چې مخنث د خپلو کورونو نه وباسئ. | | |

**توضیح**: المخنثین: د مخنث د باب تفعیل نه دی او مجرد کې سمع د یسمع نه د نرم کېدو، ماتېدلو او پستیدلو په معنی کې دی. چې د کومو حرکان او سکنات قول او فعل د ښځو پشان وي لباس د ښځو پشان خپلوي، اواز او چال چلن کې د ښځو پشان انداز لرې دا مخنث دی. دې ته هیجړه هم وایي. که مخنث خلقي او طبعي پیدا شوی وي نو هغې باندې هیڅ شرعې نېوکه نشته دی. هغه په قدرتې مصیبت کې اخته دی. معذور او مجبوره دی، خو صحیح سړی وي او هغه حرکاتو او سکناتو کې د ښځو د طرز زندګۍ او وضع او قطع اختیاروي. تردې چې جنسي آلہ بدله کړي، نو دا مجرم دی. او دې قِسمه باندې لعنت ویلی شوی دی. نکریزي لړول د ښځو لپاره مسنون دي او د نارینؤ لپاره د ضرورت نه بغیر مکروه دي. د مخنث په مقابله کې دلته هغه ښځه باندې هم لعنت ویلی شوی دی چې په ژوند پ طرز کې او په کرکاتو او سکناتو او اقوالو او افعالو کې د نارینؤ چال چلن خپلوي، خو په رائی ورکولو او علم کې د نارینؤ سره مشابهت اختیارول کې قباحت نشته دی. (مرقات ۲۱۷/۸، ۲۱۶)

**اخرجوهم**: دا چې دا مخنث د کړو وړو په اعتبار سره د نارینؤ په زمره کې راځي نو ځکه وفرمایلی شو چې دوی د کور نه بهر وباسئ چې د ښځو په کړو وړو کې شریک نه شي. (مرقات ۲۱۷/۸)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَعَنَ اللهُ الْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ | | | | |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم نارینه چې د ښځو مشابهت | | | | |
| والمتشبِّهات | من | النِّساء | بِالرِّجَالِ. | رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[2] |
| اختیاروي او کومه ښځه چې د نارینه مشابهت اختیاروي نو په هغوی د الله لعنت وي. | | | | |

**توضیح**: نارینؤ او د زنانؤ لباس او د اوسیدلو او بودوباش جدا جدا طرقې دي. خپلې خپلې طریقې باندې تلل پکار دي چې مشابهت را نه شي.

---

(۱) رقم الحدیث ۴۴۲۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۳/۱۰ رقم الحدیث ۵۸۸۶ والترمذي في السنن ۹۸/۵ رقم الحدیث ۲۷۸۵.

(۲) رقم الحدیث ۴۴۲۹ اخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۲/۱۰ رقم الحدیث ۲۶۴۹ واحمد في المسند ۲۲۵/۱.

## د سر په ویختانو کې د مصنوعی ویختانو لګولو حکم

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنِ | ابْنِ | عُمَرَ | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل کومه ښځه چې په | | | | | | | | |
| لَعَنَ | | اللهُ | | الْوَاصِلَةَ | | | وَالْمُسْتَوْصِلَةَ | |
| خپلو ویختانو کې د بلې ښځې د ویختانو جوړ لګوي او کومه ښځه چې د بلې ښځې په ویختانو کې د ویختانو | | | | | | | | |
| والواشمة | | والمستوشمة | | (مُتَّفَق | | عَلَيْهِ) | (۱) | |
| جوړ ولګوي او کومه ښځه چې خال لګوي او خال جوړونکې ښځه، دې ټولو باندې د الله لعنت دی. | | | | | | | | |

**توضیح**: **الواصلة**: دا ضرب یضرب نه د مؤنث اسم فاعل صیغه ده. چې ترجمه ملاؤول او یو ځای کول دي. دلته د بل انسان ویختان د خپلو ویختانو سره د یو ځای کولو په معنی کې دی. مطلب دا چې یوه ښځه د خپل حسن لپاره د بلې ښځې د چونټې ویختان د خپلو ویختانو سره یو ځای کړي. دې ښځې ته واصله وایي. او دا کار د لعنت سبب دی، ځکه دې کې تغیر خلق الله هم دی. او د بل انسان د بدن اندامونو نه د شرعي ضابطې نه بغیر فائده اخستل هم دي چې ناجائز دي. او دې کې دهوکه او دروغ هم دي. علامه طیبي د واصله مفهوم داسې بیانوي.

"**الواصلة التي تَصل شعرها بشعر آخر زُوراً**" (طیبي ج ۸ ص ۲۵۰)(مرقات ۲۱۷/۸، الکاشف: ۲۶۸/۸)

**والمستوصله**: دا د باب استفعال نه دی. او تا د طلب لپاره دی. یعنې کومه ښځه چې د بلې کومې ښځې نه مطالبه کوي چې زما په سر کې دا ویختان ولګوه. علامه طیبي داسې وضاحت کوي.

**والمستوصلة التي تأمر من يفعل بها ذلك**(مرقات ۲۱۷/۸، الکاشف : ۲۶۸/۸)

شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله د خپلې فارسئ شرح اشعة اللمعات کې د دواړو لفظونو مطلب داسې بیانوي چې *واصلہ زنے کہ پیوندمی کند مو یہائے خودرا بمو یہائے دیگر تابسیار شودوزیادہ گردو.*

*ومتوصلہ آنکہ بفرماید دیگرے راکہ پیوند کند بمویہائے وے مو یہائے دیگر.* (اشعة اللمعات ج ۳ ص ۶۱۲)

**ترجمه**: واصله هغه ښځې ته وایي چې خپل ویختان د نورو د ویختانو سره پیوند کوي چې د هغې ویختان ګڼ او اوږد شي او مستوصله هغه ښځې ته وایي چې د بلې ښځې نه مطالبه کوي چې زما د ویختانو سره د بلې ښځې ویختان ولګوه.

دې دواړو صورتونو کې ښځه یوه ده او د خپلو ویختانو د غټولو په چکر کې ده. دا مطلب نه دی چې

---

(۱)رقم الحدیث ۴۴۳۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۷۴/۱۰ رقم الحدیث ۵۹۳۷ ومسلم في ۱۶۷۷/۳ رقم الحدیث ۲۱۲۴/۱۱۹ .

واصله هغه ده چې خپل ويختان د بل په سر کې ولګوي. هغه صورت هم اګر که منع دى، خو د حديث مطلب ده نه دى. ما دومره زور دلته ځکه ولګولو چې مظاهر حق وغيره کې د ځينو شارحينو نه دا سهو شوې ده. اوس مسئله دا ده چې که د انسان ويختان ښځه خپلو ويختانو سره لګوي نو دا مطلقاً حرام دي، خو که د ويختانو په ځاى وړئ يا نور تارونه لګوي، د دې څه حکم دى؟ نو د امام مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد هغه هم جائز نه دي. فتاوى عالمګيري کې ليکل شوي دي چې د سر په ويختانو کې د انسان ويختان شاملول حرام دي، خو د وړئ وغيره تار لګول جائز دي. اوس که يوه ښځه د يو ځناور ويختان مثلاً د خچر يا د آس د لکئ ويختان د خپلو ويختانو سره شامل کړي نو د دې څه حکم دى؟ نو امام مالک او د نورو اکثرو علماؤ مطلقاً د يختانو يو ځاى کول ناجائز وايي، ځکه د حديث ممانعت عام دى. همدغه راجح دي. البته ځينې علماؤ څه خاص حالت کې د ځناور ويختانو لګولو ته ناجائز ګڼلي دي. نن سبا بازارونو کې د زروګنو د سر د ويختان د خول سره ملاوېږي. ښځې يې اخلي او د لعنت مستحق کېږي. (مرقات ۲۱۸/۸)

الواشمة: وشم د بدن ګودنې ته وايي. د دې طريقه دا ده چې سنت يا نور کوم د تېرې څوکې والا آله بدن کې منډل کېږي. کله چې زخم ولګې او وينه رواته شي تو هغه زخم کې رانجه يا نيل وغيره اچولو سره ډک کړى شي. کله چې ويختان يو ځاى شي او زخم صحيح شي، نو لاندې نيله نشان او خال خکاري. چې د هميشه لپاره وي. واشمه هغه ښځې ته وايي چې دا عمل په خپل بدن باندې کوي. او مستوشمه هغه ښځې ته وايي چې دا عمل خپله نه کوي په بلې کومې ښځې باندې يې کوي. د عبارت ترجمه داسې ده. خال لګونکې او خال جوړونکې ښځه. (مرقات ۲۱۸/۸)
دې تغير خلق الله دى، ځکه حرام دى. علماؤ ليکلي دي چې که پلېته ماده د ځرمن د لاندې خښه پاتې شوه نو يا په هغې باندې او دس او غسل او لمونځ نه صحيح کېږي، ځکه هغه ځاى نجس پاتې کېږي. والله اعلم. مصر او ليبيا او افغانستان کې د وشم دا عمل ډېر زيات دى. الله دې هدايت ورکړي.

## خلق الله کې تغير حرام دى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ | | | | |
| او حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې خال لګونکې او خال جوړونکې ښځې، د خولې نه ويختان | | | | |
| وَالْمُتَفَلِّجَاتِ | | لِلْحُسْنِ | | الْمُغَيِّرَاتِ |
| راويستونکې ښځې، د حسن لپاره غاښونه په سوان سوان کونکې ښځې، دې ټولو باندې چې د الله په جوړ کړى | | | | |
| خَلْقَ | اللهِ | فَجَاءَتْهُ | امْرَأَةٌ | فَقَالَتْ: |
| شوې څيزونو کې بدلون کوي الله لعنت فرمايلى دى. نو يوه ښځه ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه ورغله او وې ويل | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُ | بَلَغَنِي | أَنَّكَ | لَعَنْتَ | كَيْتَ | وَكَيْتَ فَقَالَ: |

چي ماته دا خبره را رسیدلې ده چي ته په داسي ښځو باندي لعنت وايي؟ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وفرمایل

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | لِي | لَا | أَلْعَنُ | مَنْ | لَعَنَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

چي زما لپاره څه ستونزه ده چي زه هغې باندي لعنت ونه وایم. چي په چا نبي کریم صلی الله علیه وسلم لعنت ویلی دی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | هُوَ | فِي | كِتَابِ | اللهِ | فَقَالَتْ: | لَقَدْ قَرَأْتُ |

او چي څوک د الله په کتاب کي لعنتي ګڼلی شوی دی. ښځي وویل چي ما هم دا شی ویلی دی چي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | بَيْنَ | اللَّوْحَيْنِ | فَمَا | وجدت | فِيهِ | مَا تقُول |

د دوه قایو په مینځ کي دی (یعني ما هم پوره قرآن کریم لوستلی دی) خو هغې کي ماته دا خبره چي ته یې وایې

| | | |
|---|---|---|
| قَالَ: | لَئِنْ | كُنْتِ قَرَأْتِيهِ |

(صریح الفاظو کي) چرته نه ملاو شوي؟ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وفرمایل چي که ته قرآن کریم په غور او فکر

| | | |
|---|---|---|
| لَقَدْ | وَجَدْتِيهِ | أَمَا قَرَأْتِ: |

سره او پوهي سره ولولې نو دې کي به درته یقیناً دا حکم ملاو شوی وی. آیا تا دا آیت نه دی ویلی

| | | | |
|---|---|---|---|
| (مَا | آتَاكُمُ | الرَّسُولُ | فَخُذُوهُ وَمَا |

یعني نبي کریم صلی الله علیه وسلم چي څه تاسو ته درکوي هغه اخلئ او هغې باندي عمل کوئ. او د کوم شي نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نَهَاكُمْ | عَنْهُ | فَانْتَهُوا) | ؟ | قَالَتْ: | بلى قَالَ: |

چي تاسو منع کوي د هغې نه منع شئ. هغه ښځي وویل چي آو دا آیت خو ما ویلی دی. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وفرمایل

| | | | |
|---|---|---|---|
| فإنه | قد | نهى | عَنْهُ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |

چي پس دا هغه څیز دی چي د کوم نه نبي کریم صلی الله علیه وسلم منع کړې ده.

**توضیح**: الْمُتَنَمِّصَاتِ: مُتَفَعِّلَاتٌ په وزن دی. میم ثاني باندي شد دی **منماص ای المنقاش** راویستلو ته وایي. د مخ نه واړه واړه ویختان چي کومې آلې سره راویستل کېږي. هغې ته منماص وایي. دغه شان عمل کونکې ښځې ته نامصه وایي. چي ذکر یې په حدیث کې دی. دلته د متنمصه ذکر دی. هغه دا ښځه ده چي د په نورو کار کوي. یعني په نور باندي ویختان راویستونکې ښځه. (مرقات ۲۱۸/۸)

---

([1]) رقم الحديث ۳۴۳۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۶۹/۸ رقم الحديث ۴۸۸۶ ومسلم في ۱۶۷۸ رقم الحديث (۱۲۰–۲۱۲۵)

المتفلجات: دا د فلج نه دی. د دوه غاښونو مینځ کې فاصله او کړکۍ ته وايي. جاهلیت کې د حسن زیاتولو لپاره سوان او د لور په ذریعه غاښونه برابروي چې غاښونه یو شان شي. یا به یې په مینځ کې فاصله جوړه کړه او غاښونو کې به یې د کړکۍ پشان سوری جوړ کړو چې ښایسته ښکاري. داد خلق الله بدلون دی، نو ځکه منع او د لعنت سبب دی. اله: یعنې شان دا دی. (مرقات ۲۱۸/۸)

**کیت وکیت:** یعنې واشمات او د هغې نه وروستنۍ ښځو باندې نبي کریم ﷺ لعنت کړی دی.

**ومن هو فی کتاب الله:** ای ومن هو ملعون فی کتاب الله. (مرقات ۲۱۹/۸)

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دې کلام باندې د هغه ښځې باندې اشتباه راغله چې قرآن کې چرته ذکر دي، نو ځکه یې وویل چې ما ټول قرآن اول نه تر آخر پورې لوستلی دی. دا حکم هلته نشته دی.

**اللوحین:** ای الدفتین یعنې د دواړو اړخ نه مې اول نه تر آخر پورې لوستلی دی. د لوحین نه ټول قرآن مراد اخستلی شوی دی. (مرقات ۲۱۹/۸)

**قرأتیه وجدتیه:** دواړو ځایونو کې اشباع ده. یعنې که رښتیا په پوهې سره لوستلی وی! نو دا حکم به دې ضرور موندلی وی!!!. (مرقات ۲۱۹/۸)

**فانه:** یعنې نبي کریم ﷺ منع کړې ده. ګویا کې قرآن منع کړې ده. (مرقات ۲۱۹/۸)

## بد نظري یو حقیقت دی

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:الْعَيْنُ حَقٌّ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ فرمایي چې بد نظري حق دی. او |
| وَنَهَى عَنِ الوشم. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| نبي کریم ﷺ د خال لګولو نه منع کړې ده. |

**توضیح:** **العین حق:** یعنې بد نظري یو حقیقت دی. هیڅ او وهم ادهام نه دی. معتزله وغیره او روښان خیاله خلک بد نظري نه مني. هغوی وايي چې دا صرف وهم دی، لکه څنګه چې پل باندې بیروندکی تربړي او خیال د غورځېدونکی ګنې. دغه شان دا کس هم په وهم کې اخته دی. چې ما باندې د فلانې نظر لږېدلی دی. اهل سنت فرمایي چې بد نظري یو حقیقت دی چې دا هیڅ وهم نه دی. د قرآن او حدیث ډېر نصوص دې باندې دلالت کوي. معتزله خپله په وهم کې دی. (مرقات ۲۲۰/۸)
د بدنظرۍ د لږېدلو حقیقت علماؤ داسې بیان کړی دی چې عائن (نظر باز) او ناظر په قوت واهمه

(۱)رقم الحدیث ۴۴۳۲ اخرجه البخاري في صحیحه ۳۶۰/۱ رقم الحدیث ۵۹۱۴ ومسلم في ۸۴۲/۲ رقم الحدیث (۲۱-۱۱۸۴)

باندې اثر کوي، نو هغه متاثره شي. یا د عاین او ناظر په نظر کې باقاعده جراثیم وي او په منظور باندې اثر کوي. د الله مشیت او په حکم سره ناظر په نظر کې دا تاثیر پیدا شي. او س دلته پوښتنه دا ده چې وشم او بد نظرې ولې یو ځای اېښودلی شوي دي. حال دا چې د بدنظرۍ بېل باب بیان راروان دي. دلته یې څه کار دی؟

د دې جواب دا دی چې په اهل وشم کې د اکثرو دا خیال وي چې د وشم په وجه بدنظرۍ ختمېږي. د دې په جواب کې وفرمایل چې وشم نه کوئ. بد نظرې یو حقیقت دی. کله چې لرې نو وشم دا نه شي منع کولی. (مرقات ۲۲۰/۸)

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُلَبِّدًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ملبد لیدلی دی. (بخاری) |

**توضیح** ملبداً: د دې مطلب دا دی چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د حج په موقع گوند وغیره باندې خپل ویختان راغونډ کړي ؤ وچې ما ولیدل. نبي کریم صلی الله علیه وسلم د گرد او دوړو نه د بچ کېدلو لپاره داسې کړې ؤ یا به یې بل مقصد ؤ. د احرام په حالت کې داسې کول جائز دي، خو ویختانو پټول جائز نه دي. (مرقات ۲۲۰/۸)

## د نارینه لپاره د زعفرانو استعمالول منع دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دې نه منع کړې ده چې یو نارینه خپل |
| أَنْ يَتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| بدن باندې یا په جامو باندې زعفران ومښي. |

**توضیح**: ان یتزعفر الرجل: تزعفر د زعفران نه جوړ شوی دی. مطلب دا دی چې نارینه نه په جامو کې زعفران استعمالوی شي او د نه د زعفران خوشبوې خپل بدن مښلی شي. ځکه زعفران مښل د ښځو سره مخصوص دي. باقې که کوم صحابه کرامو زعفران استعمال کړې دي یا یې خلوق استعمال کړی دی چې زعفرانو دویم نوم دی، نو د دې جواب دا دی چې کېدی شي دا ممانعت مخکښې واقعه وي. دویم جواب دا دی چې یا یې په ډېر کم مقدار کې استعمال کړی وي. د ممانعت د زیات مقدار دی. (مرقات ۲۲۱/۸)

---

(1) رقم الحديث ۴۴۳۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۴/۱۰ رقم الحديث ۲۶۸۳ واحمد في المسند ۱۲۱/۲

(2) رقم الحديث ۴۴۳۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۰۴/۱۰ رقم الحديث ۵۸۴۶ ومسلم في ۱۶۶۳/۳ رقم الحديث (۷۷-۲۱۰۱)

## نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعلی خوشبو استعمال کړه

﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أُطَيِّبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَطْيَبِ مَا نَجِدُ
او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې کله به ما له بهترینه خوشبوي راغله نو هغه به ما نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له لګوله
حَتَّى أَجِدَ وَبِيصَ الطِّيبِ فِي رَأْسِهِ ولحيته (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]
تر دې چې د هغې خوشبوۍ پرق به ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سر اوږیره کې ښکاره کېدو.

## د مخلوط او غیر مخلوط خوشبويي ذکر

﴿۱۸﴾ وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا اسْتَجْمَرَ
او حضرت نافع فرمایي چې کله به حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خوشبوئ اخستله نو کله به یې چې کله صرف خوشبويي
اسْتَجْمَرَ بِالْأَلُوَّةِ غَيْرِ مُطَرَّاةٍ وَبِكَافُورٍ
اخستله چې هغې کې به مشک وغیره مخلوط نه وُو. او کله به یې د کافور خوشبويي اخستله چې دا به یې د اګربتئ سره
يَطْرَحُهُ مَعَ الْأَلُوَّةِ ثُمَّ قَالَ:
(یعني دواړه یو ځای کړی شي او) په اور کې واچولی شي. او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې
هَكَذَا كَانَ يَسْتَجْمِرُ
نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هم داسې خوشبويي اخستله. کله به یې صرف د اګربتئ خوشبويي اخستله
رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . رَوَاهُ مُسلم[2]
او کله به یې کافور او د اګربتئ دواړه به یې ګډوه نو د هغې خوشبوئ به یې اخستله. (مسلم)

**توضیح: استجمر**: د استجمار ډېرې معنې دي دلته په سکروټو کې خوشبوئ اچول او د هغې خوشبويي اخستلو ته استجمار ویل شوي دي. مراد ترېنه د خوشبوئ ده. (مرقات ۲۲۱/۸)

**بالألوة**: باجاره دی. همزه باندې زبر دی. پیش هم جائز دی. لام باندې پیش دی. واؤ باندې شد او زبر دی. آخر کې ګول تا ده.

**وهي عود يتبخر به**: یعني الوة عود ته وایي. عود یو اعلیٰ قِسم لرګی دی. چې سوځولو سره ترېنه

[1] برقم الحديث ۴۴۳۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۶۶/۱۰ رقم الحديث ۵۹۲۳ ومسلم في ۸۴۷/۲ رقم الحديث (۳۸-۱۱۸۹)
[2] برقم الحديث ۴۴۳۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۶۶/۴ رقم الحديث (۲۱-۲۲۵۴) والنسائي في ۱۵۶/۸ رقم الحديث ۵۱۳۵

خوشبوې حاصلیږي. حرمین شریفین کې مجمع کې دننه یا کله د مطاف دننه یې د عرب خلک سوځوې. خلک منډې وهې او دهونې ترېنه اخلې. دې ته اګر هم وایي. نن سبا په جوماتو کې اګربتی سوځولې کیږي. (مرقات ۲۲۲/۸)

**غیر مطراة:** ای غیر مخلوطة بغیرها من الطیب کالمسک والعنبر یعنې الوة اور عود کله مشک او عنبر نه بغیر سوځولی کېدلی او کله به د دې سره کافور ګډوډولو سره سوځول کېدلو یعنې یو ځله به د عود دهونی اخستله او بل ځل به یې د کافور وغیره مشک اوَ عنبر ګډوډ دهونی اخستله.

طیرحه: د غوزارولو په معنی کې دی. ګډول مراد دی.

**غیر مطراة:** نه غیر ګډ ود مراد دی. (مرقات ۲۲۲/۸)

## الفصل الثاني

## بریت واړه کول پخوانی سنت دی

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُصُّ أَوْ يَأْخُذُ مِنْ شَارِبِهِ |
| حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم خپلې شونډ وړې کولي یا به یې اخستلې. |
| وَكَانَ إِبْرَاهِيمُ خَلِيلُ الرَّحْمَنِ صَلَوَاتُ الرَّحْمَنِ عَلَيْهِ يَفْعَلُه. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| او ابراهیم علیه السلام چې د خدای دوست وُو هغې به داسې کوم یعنې هغې به هوم خپلې شونډې وړېب کولې. |

## د بریت غټونکو لپاره وعید

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ |
| او د حضرت زید ابن ارقم نه رضي الله عنه روایت دی چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم وفرمایل کوم کس چې |
| لَمْ يَأْخُذْ شَارِبِهِ فَلَيْسَ مِنَّا. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ[2] |
| شونډې نه غوځوي هغه زمونږ نه نهٔ دی. (احمد، ترمذی، نسائی) |

**توضیح: فلیس منا:** یعنې دې شعبه کې زمونږ په طریقه نه دی. باقې دین کې دی. یا زمونږ سره د هغې هیڅ تعلق نشته دی. دا یې بطور اسلوب حکیم وفرمایل چې هغه پریشانه شي او توبه وباسې. دا تشدید او تغلیظ او تهدید او توبیخ دی. (مرقات ۲۲۲/۸)

---

(1) رقم الحديث ۴۴۳۷ أخرجه الترمذي في سننه ۸۶/۵ رقم الحديث ۲۷۶۰ واحمد في المسند ۳۰۱/۱.

(2) رقم الحديث ۴۴۳۸ أخرجه الترمذي في السنن ۸۷/۵ رقم الحديث ۲۷۶۱ والنسائي في ۱۵/۱ رقم الحديث ۱۳.

## د غاړو اړخ نه د ږيرې برابرولو حکم

﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْخُذُ
او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مِنْ لِحْيَتِهِ مِنْ عَرْضِهَا وَطُولِهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (۱)
به خپله ږيره مبارکه پلنوالې او اوږد والې کې (يعنې د لاندې نه هم او ښي او چپ اړخ نه هم) کموله.

**توضيح: يأخذ من اطراف لحيته:** د دې نه مراد هغه غټ ويختان دي چې د نورو ويختانو نه غټ شي. چې د ږيرې هوار والي کې فرق راولي، نو ځکه به هغه زياتې ږيره غوڅولې کېږي. د ښه د ږيرې د ورې کولو جواز نه ملاوېږي، لکه څنګه چې د مودودي منونکې خشخشي ږيره ساتې. البته تر د يو موټې پورې ږيره وره کول جائز دي. يو قبضه کمول د جواز آخري حد دی. ګوياکې صحابي د آخري حد حد ويلی دی. (مرقات ۸/۲۲۳)

## د نارينه لپاره د خلوق عطر استعمالول جائز نه دي

﴿۲۲﴾ وَعَن يعلى بن مرة أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عَلَيْهِ
او د حضرت يعلى ابن مره نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يعلى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په جامو باندې د
خَلُوقًا فَقَالَ: أَلَكَ امْرَأَةٌ؟ قَالَ: لَا
زعفرانو مرکب خوشبويي خلوق وليد له، نو ويې فرمايل چې آيا ته د ښځې والا يې؟ هغې وويل نا.
قَالَ: فَاغْسِلْهُ ثُمَّ اغْسِلْهُ ثُمَّ اغْسِلْهُ ثُمَّ لَا تعد. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ (۲)
نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نو بيا دا اووينځه بيا يې اووينځه بيا يې اووينځه او بيا کله هم داسې مه کوه.

**توضيح:** خلوق يو قسم عطر دي چې ښځې يې استعمالوي. د زعفرانو نه خلوق جوړېږي. چې د نارينو چې زعفران منع دی نو خلوق هم منع دی.
الک امرأة: نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ځکه وپوښتل چې که د ښځې والا وي نو کېدی شي چې د هغې بدن نه لږېدلي وي چې معاف دی، خو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته معلومه شوه چې هغې په مستقله توګه استعمال کړی دی نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې ځل يې وفرمايل چې چې لاړ شه او دا وينځه بلکې درې ځل يې وينځه. (مرقات ۸/۲۲۴)

(۱) رقم الحديث ۴۴۳۹ اخرجه الترمذي في السنن ۵/۸۷ رقم الحديث ۲۷۶۲.
(۲) رقم الحديث ۴۴۴۰ اخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۱۲ رقم الحديث ۲۸۱۶ والنسائي ۸/۱۵۲ رقم الحديث ۵۱۲۱

﴿۲۳﴾وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَقْبَلُ اللهُ صَلَاةَ رَجُلٍ فِي جَسَدِهِ شَيْءٌ مِنْ خَلُوقٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل الله د هغه كس لمونځ نه قبولوي چې په بدن يې لږ شان خلوق هم لږېدلي وي.

**توضيح**: خلوق: يعنې دا كس به لمونځ كوي خو د ښځو سره د مشابهت به وجه به يې لمونځ نه قبلېږي، ځكه خلق د ښځو خوشبوې ده. دې مشابهت اختيار كړى دى خو ابن مالك فرمايي چې دلته د خلوق په استعمالولو باندې دا سخت وعيد راغلى دى. چې زجر او توبيخ او تشديد او تغليظ باندې محمول دى. (مرقات ۸/۲۲۴)

﴿۲۴﴾وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ: قَدِمْتُ عَلَى أَهْلِي مِنْ سَفَرٍ وَقَدْ تَشَقَّقَتْ يَدَايَ فَخَلَّقُونِي بِزَعْفَرَانٍ فَغَدَوْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ وَقَالَ: اذْهَبْ فَاغْسِلْ هَذَا عَنْكَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[2]

او حضرت عمار ابن ياسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل زه د سفر نه بېرته خپل كور والو ته په داسې حال كې راغلم چې ځما دواړه لاسونه چاودلي وُو، نو زما كوروالو (د علاج په توګه) زما په لاسونو د دې خوشبوئ ومښله چې زعفران په كې ګډوډ كړى شوى دى. بيا چې كله سحر زه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې حاضر شوم او نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته مې سلام وكړو نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما د سلام وجواب ونه كړو بلكې ويې فرمايل چې لاړ شه او د دې خوشبويې وينځه.

**توضيح**: **فلم يرد علي**: يعنې د خلوق د استعمالول په وجه نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته د سلام جواب رانه كړو. كېدى شي چې د عمار د عذر علم نه وُو شوى. ګنې معذوره او مجبوره وُو. د دوا په توګه يې استعمال كړى وُو. (مرقات ۸/۲۲۴)

---

([1]) رقم الحديث ۴۴۴۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۴/۴۰۳ رقم الحديث ۴۱۷۸ واحمد في المسند ۴/۴۰۳ .

([2]) رقم الحديث ۴۴۴۲ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۰۲ رقم الحديث ۴۱۷۶ واحمد في المسند ۴/۳۲۰.

# د نارينؤ او زنانؤ په عطرو کې فرق

| |
|---|
| ﴿٢٥﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: طِيبُ الرِّجَالِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د نارينؤ خوشبوې هغه ده چې |
| مَا ظَهَرَ رِيحُهُ وَخَفِيَ لَوْنُهُ وَطِيبُ النِّسَاءِ |
| د بويي ظاهر خو وي خو د هغې رنګ ظاهر نه وي، لکه مشک او عنبر او عطر وغيره او د ښځو خوشبو هغه ده |
| مَا ظَهَرَ لَوْنُهُ وَخَفِيَ رِيحُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ [1] |
| چې رنګ خو يي ظاهر وي خو د هغې بوې ښوره نه شي لکه د نکريزو او زعفران وغيره. (ترمذي، نسائي) |

**توضيح**: ښځه باپرده شى دى نو د دې تقاضا دا ده چې د هغې د بدن نه خوشبوې په کوم نارينه باندې ونه لږي. البته د کور د ښځې زينت د ښځې لپاره ضروري دى، نو ځکه دې د ښځې په خوشبوې کې زينت زيات وي، خوشبوې کمه وي او د نارينه پرده نشته دى نو ځکه دې تيزه خوشبوې ولګوي خو زيبائش او زينت د نارينه د نارينتوپ خلاف دى، نو د هغې په عطرو کوشبوې تيزه او زينت کم وي.

| |
|---|
| ﴿٢٦﴾وَعَنْ .أنس قَالَ: كَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُكَّةٌ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره سکه وه. د يو مرکب خوشبوې نوم، |
| يَتَطَيَّبُ مِنْهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ [2] |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغې نه لګوله. |

**توضيح**: **سكة**: سين باندې پيش دى. ک باندې شد سره زبر دى. آخر کې ګول تا ده. اکثر شارحينو د سکة ترجمه او مفهوم داسې بيان کړى دى چې دا يو مخلوط مرکب دى، خو دا خبره په زړه نه لګي ځکه "**يتطيب منها**" لفظ د دې پوره موافق نه دى. مرقات کې ملاق علي قاری د ډېرو اقوالو نه وروسته فرمايي "**وقيل الظاهر ان المراد بها ظرف فيها طيب**" علامه جزوى فرمايي چې "**ويحتمل ان يكون وعاء**". علامه ميرک د کلام نه هم معلومېږي چې دا لوښى کېدى شي. بهرحال د عطرو ډېر اخستل ډېر ښه دي. بيا د هغې د ننه ګډوډ يا غير ګډوډ وي هيڅ فرق نه کوي. (مرقات ٨/٢٢٦،٢٢٥)

---

[1]) رقم الحديث ٤٤٤٣ أخرجه الترمذي في السنن ٥/٩٩ رقم الحديث ٢٧٨٧ والنسائي في ٨/١٥١ رقم الحديث ٥١١٧.

[2]) رقم الحديث ٤٤٤٤ أخرجه ابوداود في السنن ٤/٣٩٤ رقم الحديث ٤١٦٢.

## نبي كريم صلى الله عليه وسلم به اكثر په سر تيل موږل

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾وَعَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يُكْثِر دهن رَأْسه |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به خپل سر مبارك كې زيات تيل استعمالول. |
| وتسريحَ لحيته وَيُكْثِرُ الْقِنَاعَ كَأَنَّ ثَوْبَهُ |
| ږيره به يې زياته استعمالوله او اكثر به يې سر مبارك باندې يو ټوټه ږده چې داسې به ښكاره كېدله |
| ثَوْبُ زَيَّاتٍ. رَوَاهُ فِي شرح السنة[1] |
| چې د بوجئ ټوټه ده. (شرح السنة) |

**توضيح: يكثر دهن:** دلته پوښتنه دا ده چې تيل خو به نبي كريم صلى الله عليه وسلم زيات استعمالول خو د زيات ږمونځولو نه خو نبي كريم صلى الله عليه وسلم منع كړې ده. دلته د كثرت ذكر ولې دى؟

د دې جواب دا دى چې د كثرت نه نبي كريم صلى الله عليه وسلم منع كړې ده هغه په خپل ځاى صحيح دى. دلته د كثرت مطلب دا دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فى نفسه ږمونځه زياته استعمالوله. دا مطلب نه دى چې د منع حد پورې په يې ږمونځه استعمالوله. سر كې د ږمونځې لپاره ترجل او ږيره كې د ږمونځې لپاره د تسريح لفظ استعمال شوى دى. (مرقات ۸/۲۲۶)

**ويكثر القناع:** د پټكي وغيره لاندې چې كومه نرمه ټوټه استعمالېږي هغې ته قناع وايي. دا چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به سر كې تيل زيات استعمالول نو ځكه د تيلو منلو نه وروسته به يې دا نرمه ټوټه د پټكي لاندې اېښودله چې پټكي پسې تيل ونه خښلې. (مرقات ۸/۲۲۷)

**كأن ثوبه:** ثوبه كې چې كوم ضمير دى دا د هغه قناع ثوب اړخ ته راجع دى. يعنې نرمه ټوټه به نبي كريم صلى الله عليه وسلم د پټكي لاندې استعمالوله. هغه ټوټه به په تيلو كې داسې نونده شوه چې داسې غوړنه به شوه لكه څنګه چې د تيل خورڅونكې كس جامې وي. د تيلو خرڅونكي والا جامې هم غوړنې وي. او په خاصه توګه د هغې لاس كې يوه ټوټه وي چې هغه پرې لاسونه پاكوي. هغه په تيلو كې غوړه وي.

بهرحال دا ضمير د نبي كريم صلى الله عليه وسلم بدن مبارك باندې د اغوستلى شوې جامو اړخ ته نه دى ځكه نبي كريم صلى الله عليه وسلم به پاكوالي كې انظف الناس ؤو. ملاعلي قاري څه روايتونه هم نقل كړي دي چې وضاحت او تصريح سره دا ضمير همغه د قناع اړخ ته راجع دى. (مرقات ۸/۲۲۷)

---

(۱) رقم الحديث ۴۲۲۵ اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۲/۱۸۲ رقم الحديث ۳۱۶۴

## د نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوڅۍ مبارکي

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَن أُم هَانِئٍ قَالَتْ: قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْنَا بِمَكَّةَ قَدْمَةً |
| او حضرت ام هانی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې يو ځل د مکې د فتحې په ورځ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ کره تشريف |
| وَلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهُ [1] |
| راوړو نو هغه د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څلور کوڅۍ وي يعني دوه نبي اړخ ته وُو او دوه چپ اړخ ته. |

**توضیح قدمة:** دا د قدم لپاره مفعول مطلق دیږ. قاف باندې زبر دی. دال ساکن دی. میم باندې زبر دی. "ای مرة واحدة" يعني د دې راتګ نه د فتح مکې راتګ مراد دی. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څلور ځله مکې ته تشريف راوړی دی. عمرة القضاء کې بيا د مکې د فتحې په ورځ بيا د طائف د جعرانه نه راغلو او آخري ځل حجة الوداع کې راغلو.

غدائر: دا د غديرة جمع ده. اصل کې ګډې ته وايي خو دلته هغه مراد نه دی بلکې مطلب دا دی چې د حفاظت له نظره د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويختان څلورو برخو کې شوي وُو. (مرقات ۲۲۸/۸)

## د نبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دويختانو مينځ کې د لارې ذکر

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَن عَائِشَةَ قَالَتْ: إِذَا فَرَقْتُ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ صَدَعْتُ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې کله به نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سر کې لاره ويستله نو د تندي |
| فَرْقَهُ عَنْ يَافُوخِهِ وَأَرْسَلْتُ نَاصِيَتَهُ |
| نه به يې د سر د ويختانو دوه برخې کولو سره جدا کولې او د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تندي ويختان د |
| بَيْنَ عَيْنَيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ [2] |
| دواړو سترګو مينځ کې پرېښودل. |

**توضیح فرقت:** فرق: د سر ويختانو مينځ کې لارې ته وايي او فرقت لاره ويستلو ته وايي.

**رأسه:** يعني د سره په ويختانو کې به يې مانګ ويستلو. (مرقات ۲۲۸/۸)

**صدعت:** صدع د څېرولو په معنی کې دی. لاره ويستلو لپاره ويختان په دوه برخو کې تقسيمول مراد دي. (مرقات ۲۲۸،۲۲۹/۸)

---

[1] رقم الحديث ۴۴۴۶ أخرجه ابوداود في السنن ۴۰۹/۴ رقم الحديث ۴۱۹۱ والترمذي في ۲۱۶/۴ رقم الحديث ۱۷۸۱.

[2] رقم الحديث ۴۴۴۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴۰۸/۴ رقم الحديث ۴۱۸۹ وابن ماجه في ۱۱۹۹/۲ رقم الحديث ۳۶۳۳.

یأفوخه: یافوخ د سر هغه مینځئ برخې ته وایي چرته چې تالو وي. وړوکوالي دا ځای پړقېږي.

**بین عینه**: حضرت عائشه رضي الله عنها د لاره ویستلو دا صورت وایي چې د هغې یو سر به د تالو سره وه او دویم به یې د دواړو سترګو مینځ کې د تندي د پاسه ؤو، خو دا د لارې ویستلو صورت شو. د تندې د ویختانو کیفیت داسې بیانوي چې د نیم ویختې د کرښې ښي اړخ ته ؤو او نیم وختې ته به د کرښې چپ اړخ ته ؤو. د حدیث همدغه مفهوم دی خو د الفاظو تنګي ده. وضاحت پوره نه دی.

علامه طیبي فرمایي **"بین عین یکون نصف شعر ناصیته من جانب یمین ذاك الفرق والنصف الأخر من جانب یسار ذلك الفرق اه"** ملاعلي قاري د الفاظو تنګي او د باریک فرق ته اړخ ته اشاره کولو سره فرمایي **"وتأمل فیما بین القوسین من الفرق فانه فرق دقیق وبالتأمل حقیق لمن له توفیق"** (مرقات)

## هره ورځ د سر د ږمنځولو نه ممانعت

| |
|---|
| **﴿۳۰﴾وَعَن عبد الله بن مغفل قَالَ: نَهَی رَسُولُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّرَجُّلِ** |
| او حضرت عبدالله ابن مغفل رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ږمونځولو نه منع کړې ده |
| **إِلَّا غِبًّا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ**[1] |
| خو روزانه دا چې یو ورځ پس ږومنځ کړی شي. |

**توضیح** الاغباً: قاضي عیاض رحمه الله فرمایي چې "غب" لفظ د هر هغه کار لپاره استعمالېږي چې کوم یو ورځ وکړی شي او بله ورځ پرېښودلی شي. د ومونځ باره کې همدغه مطلب دی. چې سر او ږېره هره ورځ مه ږمونځوئ حکه مسلمان د دې ارائش او زیبائش نه دی پیدا شوی او دا تکلفات د هغې د ژوند برخه ده چې هر وخت خامخا ږمونځې پسې نښتې وي. د دې نه معلومه شوه چې کوم خلک د هر اودس نه وروسته ږېره ږمونځوي او دا سنت ګڼي. دا غلطه ده. (مرقات ۲۲۹/۸)

امام غزالي په احیاء العلوم کې یو حدیث نقل کړی دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به هره ورځ دوه ځل سره ږمونځولو. علماؤ لیکلي دي چې د دې حدیث هیڅ ثبوت نشته دی. البته د ښځو حکم جدا دی. علماؤ لیکلي دي چې ښځه هره ورځ سر ږمونځولی شي، ځکه د دې کار په ږمونځه چوټه جوړول دي. بهرحال دا د اولی او د غیر اولی مسئله ده. د څه فرض یا حرام مسئله نه ده، خو نن سبا نارینه او زنانه دومره بې حیا شوي دي چې په روانه او په ناسته یې لاس کې ږمونځه وي. داسې بې حیاء ښځې هم په نظر کې راشي چې د سرک په غاړه په سرعام سر ږمونځوي.

---

[1] [illegible] السنن ۳۹۲/۴ رقم الحدیث ۴۱۵۹ والترمذي في ۲۰۵/۴ رقم الحدیث ۱۸۵۶.

## ډیر د عیش ژوند پریږدئ او کله لغړي ښپې هم ګرځئ

﴿۳۱﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَجُلٌ لِفَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ:
حضرت عبدالله ابن بریده رضي الله عنه فرمايي چې یو ورځ حضرت فضاله ابن عبید رضي الله عنه د یو کس نه وپوښتل چې
مَا لِي أَرَاكَ شَعِثًا؟ قَالَ:
څه خبره ده چې زه تا په ګډوډ ویختانو (یعني ستا ویختان ږمونځ شوي نه) وینم؟ هغې وفرمایل چې د
إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْهَانَا عَنْ كَثِيرٍ مِنَ الإِرْفَاهِ
نبي کريم صلی الله علیه وسلم د عیش او ارام شیزونه د زیات اختیارولو نه به مونږ منع کولو. (او ږمونځولو او د تیل
قَالَ: مَا لِي لَا أَرَى عَلَيْكَ حِذَاءً؟ قَالَ:
استعمال هم په دې کې دی) هغه بیا وپوښتل چې څه خبره ده چې زه ستا پښو کې بوټان نه وینم؟ هغې جواب
كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا أَنْ نحتفي أَحْيَانًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]
ورکړو چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به مونږ ته دا حکم کولو چې مونږ کله کله بربنډې پښې شو ...

**توضیح: شعثاً:** ګډوډ ویختانو ته وايي. دې ډېر د ږمونځولو وهلو او د تیل نه ورکولو او د عیش د ژوند پریښودلو علامت ؤو، نو ځکه یې په جواب کې "**کثیر من الارفاه**" الفاظ راغلي دي. چې مفهوم یې د عیش او د ارام ژوند دی چې خوراک د پاسه خوراک وي، لباس د پاسه لباس وي "**الارفاه التنعم وما ظاهرة الطعام على الطعام واللباس على اللباس**" (مرقات ۸/۲۳۰)

**ان نحتفي:** بربنډو پښو باندې تللو ته احتفا وايي. دې سره جفا کشي راځي. پښې مضبوطېږي. عاجزي او انکساري راځي او بربنډو پښو سره طاقت پیدا کېږي. چې د مجبورۍ په وخت کې پکار راشي. او خاروه باندې بربنډو پښو باندې ګرځېدلو سره سړی د تې بې د مرض نه محفوظ وي.

**احیاناً:** یعني کله کله معمول وي همیشه نه وي. (مرقات ۸/۲۳۰)
بهرحال هر حال کې اعتدال بهترین حال دی.

اپنی مٹی پہ تو چلنے کا سلیقہ سیکھو سنگ مرمر پہ چلو تو پھسل جاؤ گے

## که ویختان غټ کړئ نو اکرام یې کوئ

﴿۳۲﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د کوم کس په سر چې ویختان وي

[1] رقم الحديث ۴۲۲۹ اخرجه ابوداود في السنن ۳۹۳/۴ رقم الحديث ۴۱۶۰ واحمد في المسند ۲۲/۶.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ: | مَنْ | كَانَ | لَهُ | شعرٌ |
| نو هغې له پکار ده چې خپل ويختان ښه وساتي (يعنې دا وينځي او تيل ورکوي يا يې ږمونځوي او د لېونې پشان يې | | | | |
| فليُكرمه | . رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُد | [1] |
| ګډوډ نه وي ځکه نفاست او صفائي خو خوش بويې يو خوښ کړی شوی او محبوب شيز دی) | | | | |

**توضيح**: د ويختانو اکرام دا دی چې دې له تيل ورکړی شي، ږمونځ کړی شي او دا جوړ کړی شي. اسلام شائستګی او د تهذيب حکم ورکوي. او هر شيز ته د هغې جائز مقام ورکوي او د هر شيز کې د افراط تفريط نه د پاک اعتدال تعليم ورکوي. ويختان دې داسې هم نه وي چې هر وخت په کې سړی لږېدلی وي، نو سړې باندې لازم ي چې د دې خيال وساتې چې معاشره کې او سيدلو قابل شي. (مرقات۸/۲۳۰)

## بهترين خضاب کوم يو دی؟

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَحْسَنَ مَا غُيِّرَ بِهِ | | | | | | | | |
| او حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د کوم شيزونو په ذريعه د | | | | | | | | |
| الشَّيْبُ | الْحِنَّاءُ | وَالْكَتَمُ | . رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَأَبُو | دَاوُد | وَالنَّسَائِيّ | [2] |
| بوډه والي يعنې د ويختانو سپين والی بدل کېدی دی هغې کې بهترين شی نکريزې او وسمه ده. | | | | | | | | |

**توضيح**: الحناء والكتم: کتم د يو قسمه واښو نوم دی. چې د وسمې سره ګډوډ کړی شي او بيا په خضاب کې کارول کېږي. ځينې حضرات وايي چې کتم خپله وسمې ته وايي. اوس د بحث لاندې حديث لپاره دا کتل غواړي چې آيا نکريزې او وسمه دواړه ملاو کړی شي او خضاب ترطنه جوړ کړی شي يا د حديث مطلب دا دی چې صرف نکريزې يا صرف وسمه جدا جدا خضاب کړی شي.
علامه ابن اثير جزری په نهايه کې څه ليکلي دي. د هغې نه په ظاره معلومېږي چې حديث کې صرف نکريزې يا صرف په کتم باندې خضاب کول مراد دی. هغې د دليل په توګه دا ويلي دي چې که د نکريزو سره کتم ملاو کړی شي نو د دې نه تور خضاب جوړېږي او د تور خضاب استعمالول د ډېرو صحيح حديثونو په وجه منع دی. لهذا دلته "الحناء والكتم" کې واؤ په معنیٰ د او دی. چې د تنويع لپاره دی او د تنويع لپاره واو راځي. اوس به د حديث مطلب دا شي چې خضاب اختيار کړی شوی دی چې هغه په نکريزو خضاب وکړي يا د کتم خضاب استعمال کړي. د نکريزو خضاب سور وي او د صرف د کتم

---

[1] رقم الحديث ۴۴۵۰ اخرجه ابوداود في السنن ۳۹۴/۴ رقم الحديث ۴۱۶۳

[2] رقم الحديث ۴۴۵۱ اخرجه ابوداود في السنن ۴۱۶/۴ رقم الحديث ۴۲۰۵ والترمذي في السنن ۲۰۴/۴ رقم الحديث ۱۷۵۳.

خضاب شین وي. د علامه ابن اثیر دا تحقیق خو ډېر ښه دی، خو ملاعلي قاري وغیره شارحین فرمايي چې د حدیث په ټولو روایتونو کې واو ذکر دی. دا ټول اسانید خلاف ظاهر باندې حمل کول ګران دی، ځکه د ځېنو شارحینو تحقیق دا دی چې دې حدیث کې واؤ په معنیٰ د مع دی او حناء او کتم ملاو لو سره تور رنګ نه جوړیږي بلکې سور بخني سیاهي رنګ پیدا کیږي چې نسواري هم ورته ویلی شي. زما په خیال اصل کې تشویش د دلته نه پیدا کیږي چې شارحینو حضراتو د کتم باره کې هیڅ متفقه بیصله نه ده کړې. ځېنې حضراتو کتم ته وسمه ویلې ده چې تور رنګ دی. ځېنو دا داسې وابنه ګڼلې دي چې شین رنګ ترېنه پیدا کیږي. اوس حدیث د لفظ نکرزو سره سره کوم شارح رنګ ملاو کړی دی هغه همغه شان فیصله کړې ده. د ملاعلي قاري په خیال کې د کتم نه پیدا کېدونکی رنګ تور وي. بیا هغې یو جامع کلام پیښ کړی دی چې د ټولو حضراتو په کلام کې اتفاق راځي. چې زیاته صحیح خبره دا ده چې د کتم او نکرزو په ګډوډ والي سره د خضاب مختلف قسمونه شي. که د کتم اجزاء په نکریو زیات وي یا کتم او نکریزي دواړه برابر وي نو خضاب تور وي چې ناجائز دی، لکه څنګه چې ابن اثیر په نهایه کې دا ګډوډ ګڼلو سره ناجائزه ګڼلې دی. اؤو بیا یې واؤ د او تنویع په معنی کې اخستی دی اؤو که نکریو اجزاء به کتم باندې غالب وي نو د خضاب رنګ سور راؤځي چې جائز دی، لکه څنګه چې نورو شارحینو اخستی دی او واؤ یې په خپل اصل معنیٰ کې اخستی دی. چې په معنی د مع دی.

## تور خضاب کونکي لپاره وعید

| |
|---|
| ﴿۳۴﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: يَكُونُ قَوْمٌ فِي آخِرِ الزَّمَانِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبی عَلَيْهِ السَّلَام وفرمایل چې آخري زمانه کې |
| يَخْضِبُونَ بِهَذَا السَّوَادِ كَحَوَاصِلِ الْحَمَامِ |
| به څه داسې خلک پیدا شي چې د کوترې د پوټ پشان به د سیاهي په ذریعه خضاب کوي (یعني هغوی چې کوم خضاب |
| لَا يَجِدُونَ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ (۱) |
| استعمالوي هغه هم د غه شان تور وي لکه څنګه چې د کوترې پوټ تور وي) داسې خلکو باندې به د جنت بوي هم نه لږي. |

**توضیح:** **بهذا السواد:** معلومه شوه چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه یو خاص تور خضاب ؤو. د هغې اړخ ته یې اشاره کړې ده. یا مراد جنس سواد دی.

**کحواصل:** دا د حوصلة جمع ده. د مرغۍ د غاړې او ځټ د لاندې چې کومه سینه وي. هغې ته حوصله وایي. چرته چې ابتداء کې خوراک جمع کیږي. ځېنې کوترو کې داسې وي چې دا برخه توره وي.

(۱) رقم الحدیث ۴۴۵۲ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۱۸ رقم الحدیث ۴۲۱۲ في ۸/۱۳۸ رقم الحدیث ۵۰۷۵.

عامو کې داسې نه وي. البته تور او سپين ګډوډ رنګ په اکثره کوترو کې وي. کېدی شي د هغې سره تشبيه وي، ځکه د تور رنګ باوجود هم څه ويختان سپين پاتې شي.

دې حديث کې د هغه خلکو لپاره سخت وعيد دی چې په ږيره کې تور خضاب لګوي. دغه شان مسئله د ښځو د سر د ويختانو هم ده. تعجب په هغه علماؤ چې د دې وعيد باوجود د تور خضاب ترغيب ورکوي. او دعوت کوي او د حديث مطلب دا بيانوي چې سور جائز نه دی او تور خضاب کوئ او دا زړه ورتيا هم کوي چې د مسلم شريف په روايت کې "اجتنبوا السواد" جمله صحيح نه ده.

لايجدونه رائحة الجنة: که دا جائز ګڼې نو دعوت ورکوي نو د جنت خوشبوې حرامه او که صرف دې باندې عمل کوي نو د حشر په ميدان کې به د جنت خوشبوې ورکول سره د مسلمانانو ته رسيږي. دا خلک به محرومه وي يا تشديد او تهديد او تاليظ باندې محمول دی. بهرحال د تور حضاب حرام کېدل د دې حديث نه واضحه کېږي. (مرقات۸/۲۳۲)

## زيړ خضاب کول جائز دي

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَاللهُعَنهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّم د دباغت نه بغير او ويختانو نه |
| يَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ وَيُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالْوَرْسِ |
| بغير به يې د څرمن پيزار اغوستلو او په خپلې ږيرې مبارکې باندې به يې د ورس (يو قسمه وابنه چې د يمن |
| وَالزَّعْفَرَانِ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ |
| په علاقه کې به ؤو) او د زعفرانو په ذريعه به يې زيړ رنګ ورکولو. او حضرت ابن عمر رَضِيَاللهُعَنهُ به هم |
| يَفْعَلُ ذَلِكَ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] |
| داسې کول (يعنې ذکر شوی پيزار به يې اغوستلو او ذکر شوی خضاب به يې کول) |
| ﴿۳۶﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَاللهُعَنهُ فرمايي چې يو ورځ د نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّم مخې ته يو کس تېر شو |
| قَدْ خَضَبَ بِالْحِنَّاءِ فَقَالَ: مَا أَحْسَنَ هَذَا. |
| چې د نکريزو خضاب يې لګولی ؤو. نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّم وفرمايل چې د دې خضاب څومره ښکلی دی. |

[1] رقم الحديث ۴۴۵۳ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۱۷ رقم الحديث ۴۲۱۰ والنسائي في ۸/۱۸۶ رقم الحديث ۵۲۴۳.

قَالَ: فَمَرَّ آخَرُ قَدْ خَضَبَ بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ

بیا یو بل کس تېر شو چې د نکریزو او د وسمې خضاب یې لګولی ؤو چې خالص تور نه ؤو.

فَقَالَ: هَذَا أَحْسَنُ مِنْ هَذَا ثُمَّ

نبي کریم ﷺ هغې لیدلو سره وفرمایل چې دا خضاب د هغه اولنې هم ښکلی دی. د هغې نه

مَرَّ آخَرُ قَدْ خَضَبَ بِالصُّفْرَةِ

وروسته یو بل کس تېر شو چې زیړ خضاب یې لګولی ؤو. نبي کریم ﷺ هغې لیدلو سره

فَقَالَ: هَذَا أَحْسَنُ مِنْ هَذَا كُله. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]

وفرمایل چې دا د دې ټولو نه ښکلی دی. (ابو داؤد)

**توضیح: بالحناء والكتم:** د دې حدیث نه معلومه شوه چې والکتم کې واو د مع په معنی کې دی، لکه څنګه چې مخکې دا هم راجح ګڼلی شوی دی. (مرقات ۸/۲۳۴)

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: غَيِّرُوا الشَّيْبَ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل بوډه والی یعنې د ویختانو

وَلَا تشبَّهوا باليهودِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [2] وَرَوَاهُ النَّسَائِيّ عَن ابْن عمر [3] وَالزُّبَيْر [4]

سپینوالی د خضاب به ذریعه بدل کړئ او د یهودو سره مشابهت مه اختیاروئ چې خضاب نه کوي.

## سپین ویختان د مؤمن د نورانیت سبب دي

﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او حضرت عمرو ابن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل

لَا تَنْتِفُوا الشَّيْبَ فَإِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ

سپین ویختان مه وباسئ ځکه بوډه والی (یعنې د ویختانو سپینډل) د مسلمانانو لپاره د نورانیت سبب دی.

---

[1] رقم الحديث ۴۴۵۴ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۱۷ رقم الحديث ۴۲۱۱ وابن ماجه في ۲/۱۱۹۸ رقم الحديث ۳۶۳۷

[2] رقم الحديث ۴۴۵۵ اخرجه الترمذي في السنن ۴/۲۰۳ رقم الحديث ۱۷۵۲ واحمد في المسند ۲/۴۹۹

[3] رقم الحديث ۴۴۵۶ اخرجه النسائي في السنن ۸/۱۳۷ رقم الحديث ۵۰۷۳

[4] رقم الحديث ۴۴۵۷ اخرجه النسائي في السنن ۸/۱۳۷ رقم الحديث ۵۰۷۴ واحمد في المسند ۱/۱۶۵

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْإِسْلَامِ | فِي | شَيْبَةً | شَابَ | مَنْ |

کوم کس چې د اسلام په حالت کې د بوډه والي ارخ ته قدم اخلي (يعني د کوم مسلمان چې يو ويختې سپين شي)

كَتَبَ اللهُ لَهُ بِهَا حَسَنَةً وَكَفَّرَ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً وَرَفَعَهُ بِهَا دَرَجَةً . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ [1]

نو د هغې په وجه الله د هغې لپاره يو نيکی ليکي او د هغې يو ه خطا معاف کوي او د هغې يو ه درجه اوچته کړي.

**توضيح**: لاتنتفوا: د سپين ويختانو د ويستلو ممانعت دی ځکه دا نور الهی مظهر دی. او د مومن وقار دی، نو د ې زيا تبدل ښه دي. ويستل يې ښه نه دي. د قيامت په ورځ کې کله تورتم شي د هغه سپيني ږيري ويختان به د ډېوي، تارچ او د رڼا کار کوي. (مرقات۸/۲۳۵)

﴿ ۳۹﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ

او حضرت کعب ابن مره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کوم کس

شَابَ شَيْبَةً فِي الْإِسْلَامِ كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيامَةِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ [2]

د اسلام په حالت کې بوډه شي، نو د هغې بوډه والی به د قيامت په ورځ د رڼا په صورت کې ظاهرېږي.

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جمه، لمه او وفره ويختان

﴿ ۴۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي ما او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په يو لوښي کې لامبل (يعني د اوبو نه ډک په يو

وَكَانَ لَهُ شَعْرٌ فَوْقَ الْجُمَّةِ وَدُونَ الوفرة. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَالنَّسَائِيّ [3]

لوښي به زمونږ په مينځ کې پروت ؤو) او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر ويختان به د جمه د پاسه او د وفره د لاندې ؤو.

**توضيح**: من اناء واحد: ملاعلي قاري فرمايي چې د يو لوښی به يې جدا جدا غسل کولو يو ځای مراد نه دی. او که داسې مراد واخستلی شي نو په مينځ کې به پرده وه، لکه څادر يې ځوړند کړو نو يو اړخ ته نارينه او بل اړخ ته زنانه او په مينځ کې لوخي، يا د شپې وخت کې تورتم وي هغه وخت مراد دی. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايلي دي چې ما په ژوند کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستر نه دی ليدلی، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو د هغې نه هم زيات حيادار ؤو. (مرقات۸/۲۳۷)

---

([1]) رقم الحديث ۴۴۵۸ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۱۴ رقم الحديث ۴۲۰۲ والترمذي في ۵/۱۱۵.

([2]) رقم الحديث ۴۴۵۹ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۱۴۷ رقم الحديث ۱۶۳۴ والنسائي في ۶/۲۶ رقم الحديث ۳۱۴۲.

([3]) رقم الحديث ۴۴۶۰ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۰۷ رقم الحديث ۴۱۸۷ والترمذي في ۴/۲۰۵ رقم الحديث ۱۷۵۵.

له شعرفوق الجمة: د نبي کريم ﷺ ويختان به په مختلف وختونو کې په مختلف انداز کې ؤو. حديثونو کې د نبي کريم ﷺ د ويختان لپاره درې الفاظ استعمال شوي دي. اول لفظ جمة دی. جيم باندې پيش دی. ميم باندې شد دی. دا د ټولو نه اوږده وي. چې اوږو ته رسيږي. د هغې نه وروسته بل لفظ لِمّة دی. لام باندې زير دی. ميم مشدد دی. دا مينځنۍ ويختان ؤو. چې د اوږو سره په نزدې ؤو. د دې نه وروسته په دريم نمبر لفظ د وفره دی. واو باندې زبر دی، فا ساکن دی. را باندې زبر دی. دا د ټولو نه وړو ويختانو ته وايي. چې د غوږونو د پوسقو ته رسي. د دطٰ مجموعې لپاره د "جلو" لفظ ساتل پکار دی. يعنې جمهٔ لمه، وفره، د اعلی نه ادنی اړخ ته ترقي ده.

علامه طيبی فرمايي "الوفرة الشعرة الى شحمة الاذن والجمة الى المنكب واللمة التي المت بالمنكبين" (طيبي ج ۸ ص ۲۵۹)(مرقات۸/۲۳۹ ،الکاشف : ۸/۲۸۱،۲۸۰)

شيخ عبدالحق محدث دهلوی اشعة اللمعات کې فرمايي: بدانکه موئے سر سه نام دارد ۱: جمه ۲: ؤوفره ۳: لمه، جمه موئے تادو، ؤوفره تا نرمه گوش ولمه بين بين اصح در تفسير اين الفاظ اين است الخ. (ج ۳ ص ۶۲۰)

حديث باندې اسانه بانې د پوهېدلو لپاره داسې وګڼئ چې جمه د ټولو نه اوږده وي او وفره د ټولو نه واړه وي او لمه درميانه وي. د فوق الجمه مطلب دا دی چې دا د پوره جمه نه څه د پاسه ؤو. د جمه د حد پورې نه ؤو راغلي. او "دون الوفرة" کې د دون د ادون په معنیٰ کې دی. يعنې د وفره نه څه لږ لاندې ؤو، نو د اوږو نه څه پاس او د غوږونو د پوسقو نه څه لږ لاندې په متوسطه درجه کې ؤو. چې لمه ورته ويل کېږي. او همدغه بيانول مقصود دي. د ابوداؤد شريف په حديث کې د دون الحجمه فوق الوفرة الفاظ راغلي دي چې دا پاسني واضحه کوي. چې د جمه نه کم او د وفره نه زيات چې د لمه درجه ده د شيخ عبدالحق د عبارت نه معلومېږي چې د دې الفاظو نور مطلبونه هم بيانېږي، خو صحيح تفسير همدغه دی. هسې د جمه لفظ مطلق د ويختانو لپاره هم ويل کېږي، لکه څنګه چې لاندې د خريم په روايت کې دي.

## د نارينؤ لپاره ډير اوږده ويختان ښه نه دي

| |
|---|
| ﴿۴۱﴾ وَعَنِ ابنِ الحنظليَّةِ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن حنظلية رضي الله عنه چې د نبي کريم ﷺ په صحابه کرامو کې يو کس دی روايت کوي |
| قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نِعْمَ الرَّجُلُ خُرَيْمٌ الْأَسَدِيُّ لَوْلَا |
| چې يو ورځ نبي کريم ﷺ يو کس ته ورفرمايل چې خريم اسدی ښه سړی دی. که د هغې ويختان |
| طُولُ جُمَّتِه وإسبال إزراه فَبَلَغَ ذَلِكَ خُرَيْمًا |
| اوږده نه وي او د هغې لنګ زوړند نه وي. چې کله خريم ﷺ ته د نبي کريم ﷺ د دې خبرې علم وشو |

فَأَخَذَ شَفْرَةً فَقَطَعَ بِهَا جمته إِلَى أُذُنَيْهِ وَرفع إزراه

نو هغې یو چاړه راواخستله او ویختان یې د غوږونو د پوسقو پورې غوڅ کړل او خپل لنګ یې د

إِلَى أَنْصَافِ سَاقَيهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]

پونډو د نیمې پورې کړل.

**توضیح:** الاسدی: همزه باندې زبر دی او سین ساکن دی. دا لفظ حقیقت کې ازدی دی. او د ازدی نه مراد ازد شنءة دی. ازد بن غوث د یمن د یوط قبیلې د نیکه نوم دی. قاموس کې لیکلي دي چې د ازد د لفظ نه د اسد لفظ زیات واضحه دی. د مدینې اکثر انصاری د همدغه کس ازد بن غوث یا د اسد بن غوث د نسل نه ؤو. دې لفظ نه د اسد قبیله مراد نه ده. نبي کریم ﷺ د خریم تعریف هم وکړو او په یو نقص خبر هم کړو. هغې هغه نقص ژر لرې کړو. د تعلیم ورکونکي به د روکولو څه اوایو او د تعلیم اخستونکي به څه اوایو د هغې ویختان د ضرورت نه زیات اوږده ؤو؟(مرقات۸/۲۴۰)

حج او عمره کې سر خرائیل بهتر دي. د هغې نه بغیرې ساتل افضل دي، خو په دې شرط چې نمائش او زیبائش مقصود نه وي. مسلمان هر وخت مجاهد وي او مجاهد د سر ویختان نه شي خرائیلی، جنګ ګران شي. او د ویختانو نه کافران وېرېږي. د تبلیغیانو یو بزرګ محمد احمد په بیانونو کې وایي چې اوږده ویختان خلک څکه ساتې چې د قیامت په ورځ فرښتو د هغې نېول او دوزخ ته غوزارول اساني وي. دا کس د مجاهدینو او د جهاد دښمن دی. نبي کریم ﷺ همیشه ویختان ساتلي دي. ټول عمر کې یې څلور یا پنځه ځل خرائیلي دي. قیامت کې به د فرښتو د نېولو لپاره صرف ویختان وي. ولي لاس، پښې، څټ او ملا او نور اندامونه نه وي. ګه صرف ویختان وی نو بیا دېره هم پاکه کړه.

## د برکت ویختان

﴿۴۲﴾وَعَن أَنسٍ قَالَ: كَانَتْ لِي ذُؤَابَةٌ فَقَالَتْ لِي أُمِّي: لَا

حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې زما په سر اوږده ویختان ؤو. زما مور ماته وویل چې زه ستا نه دا

أَجُزُّهَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمُدُّهَا

ویختان غوڅوم او رسول الله ﷺ به هغه ویختان رابښکل او نېول به یې. لهذا ما د برکت حاصلولو

وَيَأْخُذُهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [2]

لپاره هغه ویختان همغه شان پرېښودل.

(۱)رقم الحديث ۴۴۶۱ اخرجه ابوداود في السنن ۳۴۸/۴ رقم الحديث ۴۰۸۹ واحمد في المسند ۱۸۰/۴ .

(۲)رقم الحديث ۴۴۶۲ اخرجه ابوداود في السنن ۴۱۱/۴ رقم الحديث ۴۱۹۶

**توضيح** ذوابة: زلفو ته وايي.

**لااجزها: اى لا اقطعها**: زه تا نه غوځوم، ځکه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس مبارک په دې لګېدلي دي، نو دا د برکت والا ويختان دي. همدغه شان د حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سر باندې هم نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طائف په موقع باندې لاس رابنکلى ؤو. هغې ټول ژوند هغه وساتل. د حضرت شيخ الاسلام سيد حسين احمد مدنى لاس د حضرت احمد علي مدنى لاهوري د ږيرې په ويختانو لګېدلي ؤو. هغې ټول ژوند د ږيرې ويختان په قينچې باندې واړه نه کړل. کله چې کيناستلو نو ږيره به يې نامه ته رسيدله. دا د برکت والا ويختانوي: اسلام سر د ويختانو ساتلو ممانعت نشته دى. بلکې ويختان د نه ساتلو عقيده د خوارجو ويل شوي ده. د تبليغي جماعت يو بزرګ محمد احمد صاحب د ويختان د ساتلو خلاف نن سبا بيانونه ورکوي. د دې کس د جهاد او مجاهدينو سره دښمنې ده. کېدى شي د دښمنانو په اشاره يې بيړه اوچته کړې ده.

## د ضرورت په بناء د سر ويختان خريل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾ وَعَن عبدِ الله بن جَعْفَرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْهَلَ آلَ جَعْفَرٍ |
| او د حضرت عبدالله ابن جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولاد ته |
| ثَلَاثًا ثُمَّ أَتَاهُمْ |
| درې ورځې مهلت ورکړى ؤو (د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شهادت خبر سره يې د درېو ورځو پورې د زړه د غم اجازت ورکړى ؤو) او دې |
| فَقَالَ: لَا تَبْكُوا عَلَى |
| موده کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغوى ته تشريف نه ؤو راوړى. بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اطمينان او د دلاسه کولو لپاره هغوى له راغلو او ويې فرمايل |
| أَخِي بَعْدَ الْيَوْمِ ثُمَّ قَالَ: |
| بس د نن نه پس زما ورو جعفر پسې به نه ژړئ او بيا يې وفرمايل چې زما وراړونه (يعني عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، |
| ادْعُوا لِي بَنِي أَخِي. |
| عون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د جعفر هلکان دي) ماله راولئ، نو مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت |
| فَجِيءَ بِنَا كَأَنَّا أَفْرُخٌ |
| کې راوستلى شو او هغه وخت مونږ د چرګوټو پشان (يعني ډېر کم عمري) ؤو. د هغې نه وروسته |
| فَقَالَ: ادْعُوا لِي الْحَلَّاقَ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل نائي زما خواله راولئ. (کله چې نيا راغله) نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَمَرَهُ | فَحَلَقَ | رؤوسنا. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد | وَالنَّسَائِيُّ[1] |
| هغې ته زمونږ د ویختانو د خرائیلو حکم وکړو او هغې زمونږ سرونه وخرائیل. | | | | | |

**توضیح**: حضرت جعفر رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه ورور او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم محبوب د تره ځوي ؤو. غزوه موته کې شهید شو. او د اسماء بنت عمیس خاوند ؤو. د هغې واړه واړه بچې یتیمانان پاتې شول. د یو نوم عبدالله ؤو. د دویم نوم عون او د دریم نوم محمد ؤو. د هغوی د سر خرائیلو لپاره نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغوی نیا راوغوښتله او د هغوی ویختان یې پر وخرائیل. د صفائی په غرض داسې معلومه شوه چې ویختان ساتل هم جائز دي او د ضرورت په بناء خرائیل هم جائز دي. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې مړې باندې د درې ورځو نه زیات غم کول جائز نه دي. د زړه غم جدا شی دی. دې باندې پاپندې نه شي کېدی. ملاعلی قاري لیکلي دي چې د درې ورځو نه وروسته تعزیت کول جائز نه دی. (مرقات۸/۲۴۲،۲۴۱)

## د جینکو ختنه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۴﴾وَعَن | أُمِّ | عطيَّةَ | الأنصاريَّةِ: | أَنَّ | امْرَأَةً | كَانَت | تختن | بِالْمَدِينَةِ. |
| او حضرت ام عطیه انصاری رضي الله عنها فرمایي چې مدینه کې یوه ښځه وه چې د ښځو ختنه به یې کوله، | | | | | | | | |
| فَقَالَ | لَهُ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | | |
| لکه څنګه چې هغه زمانه کې د ښځو ختنه هم رواج ؤو. نبي کریم صلی الله علیه وسلم یو ورځ هغه ښځې ته وفرمایل چې | | | | | | | | |
| لَا | تُنْهِكِي | فَإِنَّ | ذَلِكَ | أَحْظَى | لِلْمَرْأَةِ | | | |
| ته زیات مه غوڅوه بلکې لږ یې پاس غوڅوه ځکه دا یعنې زیات نه غوڅول د ښځو لپاره هم ډېر خوندوروي. | | | | | | | | |
| وَأَحَبُّ | إِلَى | الْبَعْلِ. | رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُدَ | | | |
| او د نارینه هم ډېر خوښ وي. یعنې که زیات غوڅ کړی شي نو جماع نه ښځې له خوند ورکوي او نه سړی له. | | | | | | | | |
| وَقَالَ: | هَذَا | الْحَدِيثُ | ضَعِيفٌ | وَرَاوِيه | مَجْهُول[2] | | | |
| ابوداؤد دا روایت نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث ضعیف دی او د دې راوي مجهول دی. | | | | | | | | |

**توضیح**: لا تنهکی: یعنې ختنه کې مبالغه مه کوه بلکې ضروري برخه لږه شان غوڅوه. دا لږ غوڅول د دواړو لپاره په جماع کې د خوند معاون وي. زیات نه. د عربو ملکونو دا چې ګرم ؤو. د ښځو په

---

[1] رقم الحديث ۴۴۶۳ اخرجه ابواود في السنن ۴/۴۰۹ رقم الحديث ۴۱۹۲ والنسائي في ۸/۹۲ رقم الحديث ۵۲۲۷.

[2] رقم الحديث ۴۴۶۴ اخرجه ابوداود في السنن ۵/۴۲۱ رقم الحديث ۵۲۷۱

اندام نهاني کې د وازګې پشان غوښه پيدا کېږي هغه به يې غوڅوله. همدغه د جينکو ختنه وه. د اذا جاوزا لختان الختان حديث نه هم د دې ختنې اړخ ته اشاره کېږي. د اُحد په ميدان کې حضرت حمزه رضي الله عنه يو کافر باندې حمله کولو وخت کې وفرمايل "يا ابن مقطعة البظور" اې د ختنه کاروبار کونکي ښځې ځويه. د دې روايتونو نه د ښځو د ختنې ثبوت ملاويږي، خو دا د ګرم ملکونو مسئله ده. زمونږ ملک کې دا مسئله بيانول پکار نه دي. اهل بدعت به پروپيګنډه کوي او تماشا به جوړه کړي. دلته د دې هيڅ ماهر هم نشته دی. او دا کوم شرعي کار او حکم هم نه دی. ګرم ملکونو کې شوافع دا کار کوي. بس دا کافي ده. هغوی متهايان او دعوت هم ورکوي، خو اهل بدعت چې اهل حق په دې وجه بدناموي هغوی ډېر ظلم کوي. کوم عالم خو دا د خپل اړخ نه نۀ دی ايجاد کړې. حديثونو کې دې اړخ ته اشاره ده. که کوم عالم د دې متلعق يو تحقيق بيان کړي نو څه جرم دی؟(مرقات۸/۲۴۲)

## ښځو ته ويختانو کې نکريزي لګول جائز دي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۵﴾وَعَنْ | كَرِيمَةَ | بِنْتِ | هَمَّامٍ: | أَنَّ | امْرَأَةً | سَأَلَتْ | عَائِشَةَ |
| او د حضرت کريمه بنت همام نه روايت دی چې يوې ښځې د حضرت عائشه رضي الله عنها نه د سر په ويختانو کې | | | | | | | |
| عَنْ | خِضَابِ | الْحِنَّاءِ | فَقَالَتْ: | لَا | بَأْسَ | وَلَكِنِّي | أَكْرَهُهُ |
| د نکريزو د خضاب باره کې وپوښتل نو هغې وفرمايل چې دې کې هيڅ باک نشته دی، خو زه دا ښه | | | | | | | |
| كَانَ | حَبِيبِي | يَكْرَهُ | رِيحَهُ. | رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُد | وَالنَّسَائِيُّ (۱) |
| نه ګڼم خو زما محبوب يعنې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د دې بوې نه خوښولو. (ابوداؤد، نسائی) | | | | | | | |

**توضيح: يکره ريحه:** دا به د سر د ويختانو خبره وه ګنې په لاس باندې نکريزې لګول خو نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ښځو لپاره خوښ کړي هم وُو، لکه مخکې به راشي. دې حديث کې حضرت عائشه رضي الله عنها د عامو ښځو لپاره د سر په ويختانو کې نکريزې لګول جائز ګڼې. لهذا که ښځې د سر په ويختانو کې خضاب لګول غواړي نو جائز دي. البته تور خضاب جائز نه دی. (مرقات۸/۲۴۳)

## ښځو ته په لاسونو باندې نکريزي لګول مستحب دي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۶﴾وَعَن | عَائِشَةَ | أَنَّ | هِنْدًا | بِنْتَ | عُتْبَةَ | قَالَتْ: | يَا | نَبِيَّ | اللهِ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د عتبه لور هنده رضي الله عنها چې کله دا وويل چې اې د الله نبي صلى الله عليه وسلم! | | | | | | | | | |

(۱) رقم الحديث ۴۴۶۵ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۹۵ رقم الحديث ۴۱۶۴ والنسائي ۸/۱۴۲ رقم الحديث ۵۰۹۰

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَايِعْنِي | فَقَالَ: لَا | أُبَايِعُكِ | حَتَّى | تُغَيِّرِي |

ما سره بیعت وکړه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ترکومې پورې ته خپل دواړه لاسونه باندې نکریزې لګولو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَفَّيْكِ | فَكَأَنَّهُمَا | كَفَّا | سَبُعٍ. | رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُد | (۱) |

سره دې رنګ بدل نه کړې نو زه تا سره د خبرو بیعت نه کوم. ستا لاسونه د نکریزو نه بغیر داسې دي لکه د درنده لاس چې وي.

**توضیح** ابن هند: هنده بن عتبه د حضرت ابو سفیان رضی الله عنه ښځه او د حضرت معاویه رضی الله عنه مور ده. د احد په جنګ کې د حضرت حمزه رضی الله عنه د شهادت اصل محرکه همدغه وه. بیا یې د مکې د فتحې دوران کې اسلام راوړو او په مختلف جنګونو کې یې برخه واخستله. دا بیعت کېدی شي چې د اسلام د بیعت نه بغیر بل کوم بیعت ؤو. د دې حدیث نه معلومه شوه چې د ښځو له خپل لاس باندې نکریزې لګول مستحب دي. او د دې پروینښودل مکروه دي، ځکه دې کې هم د نارینؤ سره یو مشابهت راځي. اسلام کورنی نظام مضبوط لیدل غواړي، نو ځکه ښځې ته د هر قسم اختیارولو حکم کوي. شیطان او د هغې ثانګه این جي اوز د مسلمانانو کورنی نظام تباه کول غواړي او د ښځې نه نارینه جوړ کړي او د خاوند مقابله کې یې ودروي. (مرقات ۸/۲۴۳)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۷﴾ وَعَنْهَا | قَالَتْ: | أَوْمَتْ | امْرَأَةٌ | مِنْ | وَرَاءِ | سِتْرٍ |

او حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي چې يو ورځ يوې ښځې د پردې شاته د خپل لاس په ذريعې اشاره وکړه چې هغې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِيَدِهَا | كِتَابٌ | إِلَى | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

پرچه وه چې کوم کس نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته راليږلې وه. يعني هغه ښځې د پردې د شانه لاس راويستلو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَبَضَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَدَهُ |

او هغه پرچه يې نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته ورکول غوښتل. نبي کريم صلی الله علیه وسلم خپل لاس رانښکلو

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | مَا | أَدْرِي | أَيَدُ | رَجُلٍ | أَمْ | يَدُ | امْرَأَةٍ | ؟ | قَالَتْ: |

او ويې فرمايل چې ماته پته نشته دی چې دا د نارينه لاس دی يا که د ښځې؟ هغه ښځې عرض وکړو

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بَلْ | يَدُ | امْرَأَةٍ | قَالَ: لَوْ | كُنْتِ | امْرَأَةً | لَغَيَّرْتِ | أَظْفَارَكِ |

چې د ښځې لاس دی. نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمایل! که ته ښځه وی نو د نوکانو رنګ به د ضرور د

(۱) رقم الحدیث ۴۴۶۶ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۹۵ رقم الحدیث ۴۱۶۵

| |
|---|
| يَعْنِي الْحِنَّاء. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ(۱) |
| نکريزو په رنګ بدل کړي وی. |

**توضیح:** **اومت امرلة:** دا لفظ اصل کې د ماده به اعتبار سره او مأت دی. د تخفیف په غرض بل همزه حذف کړی شوی دی. د اشاره په معنی کې دی.

**بیدها کتاب:** دا جمله د امرأة لپاره صفت واقع دی. یعنې د هغه ښځې په لاس کې یوه لیکلی شوي پرچه وه. کېدی شي کومه مسئله یې معلومول ه.

**فقبض النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** یعنې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس د مخکې کولو نه وروسته رانښکلو. د دې حدیث نه چې مخکې کوم تیر شوی دی د هغې نه او د بحث د لاندې حدیثونو نه داسې معلومېږي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به بیعت وغیره کې د ښځو سره لاس ملاول. حال دا چې د ډېرو حدیثونو او په صریح روایتونو کې حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سختئ سره د دې نه نفي کړې ده. لهذا د بحث لاندې حدیثونو کې به دا تأویل کېږي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اول اراده وکړه چې په لاس بیعت وکړي. بیا یې صرف په ژبه بیعت وکړو. یا یې د لاس لستوڼی رانغښتلو سره داسې کړي وي چې ښځو ته برکت حاصل شي. نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امت د ښځو لپاره د پلار په ذرجه کې ؤو، لکه څنګه چې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په قرأت کې دي ﴿ النَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ وهو ابوهم﴾ خو د دې باوجود هم نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوره احتراز کړی دی. او د غیر محرم ښځو نه یې پرده کړې ده. او د هیڅ یوې ښځې د لاس سره یې لاس نه دی ملاو کړی. (مرقات۸/۲۴۴)

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾وَعَن ابنِ عبَّاسٍ قَالَ: لُعِنَتِ الْوَاصِلَةُ وَالْمُسْتَوْصِلَةُ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایلي دي چې یو ځائ کونکي ښځه او یو ځائ کولو والا ښځه یعنې خپل |
| وَالنَّامِصَةُ وَالْمُتَنَمِّصَةُ وَالْوَاشِمَةُ |
| ویختان کې د د انساني ویختانو جوړ لګونکي ښځه او لګولو والا ښځه او ویختان څنونکي ښځه او چن |
| والمشتوشمة من غير دَاء. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۲) |
| کونکي ښځه بغیر د څه مرض نه خال لګونکي ښځه او لګولو والا ښځه دا ټولي ښځي ملعوني ګرځولی شویدي |

(۱) الحديث ۴۴۲۱ أخرجه ابو داود في السنن ۴/۳۹۶ رقم الحديث ۴۱۶۶ والنسائي في ۸/۱۴۰ رقم الحديث ۵۰۸۹

(۲) الحديث ۴۴۶۸ أخرجه ابو داود في السنن ۴/۳۹۹ رقم الحديث ۴۱۷۰ وأحمد في المسند ۱/۲۵۱

**توضيح**: يعني دا کارونه د مجبورئ په درجه يا د علاج په توګه جائز دي. ګنې د تغير خلق الله په وجه ناجائز دي. د الفاظ تشريح تېره شوي ده. (مرقات۸/۲۴۵)

## د نارينؤ او د زنانؤ په لباس کې يو شان والى د لعنت سبب دى

| |
|---|
| ﴿۴۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه نارينه باندې لعنت ويلى دى چې |
| الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| د زنانؤ لباس اچوي او دغه شان يې په هغه ښځه هم لعنت كړى دى چې د نارينؤ لباس اچوي. (ابو داؤد) |

**توضيح**: لعن: نارينؤ د لباس جدا رنګ وي او د ښځو جدا رنګ او ډيزائن وي. كه نارينؤ د ښځو سور لباس واچولو نو د هغوى لپاره دا د لعنت سبب دى. يا ښځو د نارينؤ مثلاً سپين لباس اچوي نو دا د هغې لپاره د لعنت سبب دى. دغه شان د نارينؤ د خولئ او واسكټ د ښځو لپاره جائز نه دى. هغه كه د يونيفارم په وجه مجبوره وي يا د شوق او ذوق نه مجبوره وي. هغه ښځه ده هغې له د مردانه وضع قطع نه احتراز كول پكار دي. دغه شان نارينؤ له هم د ښځو د وضع قطع نه احتزار كول پكار دي. ګنې د الله تعالى د رحمت نه به ؤوځي او د لعنت مستحق به شئ.

| |
|---|
| ﴿۵۰﴾ وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ: قِيلَ لِعَائِشَةَ: إِنَّ امْرَأَةً تَلْبَسُ النَّعْلَ |
| او حضرت ابو مليكه فرمايي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وويل شو چې يوې ښځې د نارينؤ بوټان اچولي |
| قَالَتْ: لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [2] |
| دي نو هغې وفرمايل چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ښځه باندې لعنت كړى دى چې د نارينؤ سره مشابهت اختيار وي. |

**توضيح**: الرجلة: رجل مذكر دى رجُلة مؤنث دى. د دې نه مراد هغه ښځه ده چې خبرو اتر، رنګ روغن، وضع قطع او په اسيدلو كې د نارينؤ سره مشابهت اختيار وي. دا مذموم حركت دى چې د لعنت سبب دى، خو كومه ښځه چې علم و دانش او عقل او رائى او حكم او هوښيارئ كې د نارينؤ سره مشابه صفات لري هغه مشابه مذموم نه دى، لكه ويل شوي دي **"كانت عائشة رجلة الرأى"** يعنې د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا رائى او عقل د نارينؤ پشان ؤو. رجُلة كې جيم باندې پيش دى.

---

(۱) رقم الحديث ۴۴۶۹ اخرجه ابوداود في السنن ۳۹۹/۴ رقم الحديث ۴۱۷۰ واحمد في المسند ۲۵۱/۱

(۲) رقم الحديث ۴۴۷۰ اخرجه ابوداود في السنن ۴ ۳۵۵ رقم الحديث ۴۰۹۹

## نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل اهل بيتو لپاره سده ژوند خوښ كړو

﴿۵۱﴾وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ

او حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله سفر ته روانېدلو نو خپل اهل و عيال كې به د ټولو نه آخرى

كَانَ آخِرُ عَهْدِهِ

وخت حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورکولو او كله به چې د سفر نه بېرته راغلو نو د ټولو نه اول به فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورتللو يعنې

بِإِنْسَانٍ مِنْ أَهْلِهِ فَاطِمَةَ

سفر ته د تلل وخت كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اول د نورو اهل بيتو سره الوداعي ملاقات كولو، بيا به چې د هغوى ټولو نه فارغ شو

وَأَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ

نو آخر كې به د حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خوا ته ورتللو او هغې ته به يې څه ويل او وربدل نو او به يې ويل او وار به يې وربدل او چې

عَلَيْهَا فَاطِمَةَ فَقَدِمَ

كوم نصيحت او وصيت به يې كولو نو او به يې كړو او خداي پاماني ويل سره روان شو او بيا به چې د سفر نه بېرته راغلو نو د ټولو نه

مِنْ غَزَاةٍ وَقَدْ

اول به حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغلو او د ټولو نه اول به يې د هغې سره ملاقات كولو. يو ځل د جهاد د يو سفر نه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

عَلَّقَتْ مِسْحًا أَوْ

بېرته راغلو نو هغه وخت حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خپل كور په دروازه باندې د ټاټ پرده روړنده كړې وه. په ظاهره خو

سِتْرًا عَلَى بَابِهَا

داسې معلومېدله چې هغې هغه پرده د ارائش لپاره زوړنده كړې وه ځكه كه د ضرورت په خاطر يې زوړنده كړې وه

وَحَلَّتِ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ

نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هيڅ باك نه وي ګڼلى. او هغې خپلو دواړو ځامنو حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته

قُلْبَيْنِ مِنْ فِضَّةٍ

د سپينو زرو دوه كړې اچولې وې. يعنې هغوى كې هر يو ته يو يو كړا يا يو دوه دوه كړې اچولې وې. كله چې د خپل معمول مطابق

فَقَدِمَ فَلَمْ يَدْخُلْ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سفر نه بېرته راتللو وخت كې د ټولو نه اول د حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ملاقات لپاره د هغې كور ته لاړو

فَظَنَّتْ أَنَّ مَا

او څيز ونه يې وكتل نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته داخل نه شو. حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا پوهه شوه چې كوم څيز

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَنَعَهُ | أَنْ | يَدْخُلَ | مَا رَأَى. |

نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما کور ته د راننوتلو نه منع کړی دی هغه دا دی چې کوم نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لیدلی

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَهَتَكَتِ | السِّتْرَ | وَفَكَّتِ | الْقُلْبَيْنِ |

دی یعنې دروازه باندې د پردې زوړندول او د حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د حسین رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په لاس کې کړې، نو فاطمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَنِ | الصَّبِيَّيْنِ | وَقَطَعَتْهُ | مِنْهُمَا |

ژر هغه پرده او شلوله او د دواړو ځامنو د لاسونو نه یې دواړه کړې وینستلې او هغه یې ماتې کړې. بیا یې دواړو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَانْطَلَقَا | إِلَى | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

زامنو هغه دواړه ماتې کړې راواخستلې او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت کې حاضر شول. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کړې د هغه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَبْكِيَانِ | فَأَخَذَهُ | مِنْهُمَا | فَقَالَ: يَا | ثَوْبَانُ |

دواړو نه واخستلې او بیا یې ماته وفرمایل چې ثوبان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا کړې ویسه او فلانې کوروالو ته یې ورکړه او راشه یعنې

| | | |
|---|---|---|
| اذْهَبْ | بِهَذَا | إِلَى |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپلو خپلوانو کې د چا نوم واخستلو چې د هغوی کوروالو ته یې ورکړه ځکه هغوی محتاج او ضرورت مند وو دا چې

| | | |
|---|---|---|
| فُلَانٍ | إِنَّ | هَؤُلَاءِ |

دا دواړه ماشومان زما د اهل بیتو نه دي نو ځکه زه دا نه غواړم چې دوی په دنیوي ژوند کې بهترین خوراکونه وکړي یعنې زما په

| | | |
|---|---|---|
| أَهْلِي | أَكْرَهُ | أَنْ يَأْكُلُوا |

نزد دا ماته خوښ نه دي زما دا بچې بهترین خوراکونه او ښه لباس او د اسبابو نه خوند او فائده واخلي یا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د بهترین خوراکونو

| | | |
|---|---|---|
| طَيِّبَاتِهِمْ | فِي | حَيَاتِهِمُ |

نه د عیش او ارام ژوند اختیارول او دنیا خوندونه حاصلول مراد واخستل. او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې ارشاد په ذریعه ګویا کې دا واضحه

| | | |
|---|---|---|
| الدُّنْيَا. | يَا | ثَوْبَانُ |

کړل چې زه د خپلو اهل بیتو باره کې هغه څیز اختیاروم چې هغوی دې دنیا کې د فقر، زهد، سخت او د مشقت ژوند تېر کړي. چې اخرت

| | | |
|---|---|---|
| اشْتَرِ | لِفَاطِمَةَ | قِلَادَةً |

کې یې درجې او چتې وي. او د هغوی شمار په هغه خلکو کې نه وي چې د هغوی باره کې الله تعالی فرمایي چې خود دې سره

| | | |
|---|---|---|
| مِنْ | عَصَبٍ | وَسُوَارَيْنِ |

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل خیال کې د خپل لخت جګر فاطمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د زړه خفګان ته هم کتل نو ځکه یې هغې سره د شفقت او د محبت

مِنْ عَاجٍ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُد[1]

داظهار لپاره دا هم وفرمایل چې ثوبان رضي الله عنه د فاطمه رضي الله عنها لپاره د عصب یو امیل د دواړو ماشومانو لپاره[2]

**توضیح: اخر عهده بانسانٍ فاطمه رضي الله عنها:** یعنې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به چې کله کوم سفر ته تللو نو د ټول اهل بیت د ښځو سره به یې الوداعی ملاقات نه آخر کې د حضرت فاطمه رضي الله عنها سره ملاقات کولو او بیا به سفر ته روان شو. او بېرته راتلو کې به د ټولو نه اول د حضرت فاطمه رضي الله عنها سره ملاقات کولو. دا یې د فقط د ښځو معامله بیان کړې ده. د نارینؤ نه ده. (مرقات۸/۲۴۶)

**من غزاة:** اصل ماده غزوة ده. واؤ د الف بدل کړی شوی دی. (مرقات۸/۲۴۶)

**علقت:** دا د تعلیق نه دی. د ځوړندولو په معنی کې دی. (مرقات۸/۲۴۶)

**مسحاً:** ټاټ ته وایی. (مرقات۸/۲۴۶)

**اوستراً:** او د شک لپاره دی، ""ستر" پردې ته وایي.

**وَحَلَّتُ:** دا هم د باب تفعیل د زیوراتو د اچولو په معنی کې دی. (مرقات۸/۲۴۷)

**قلبین:** قاف باندې ضمه ده. لام ساکن دی. با باندې زبر دی. قلب مفرد دی. ای سوارین یعنې د سپینو زرو دوه کړې یې اچولي وې. (مرقات۸/۲۴۷)

**فکت:** د جدا کولو او د ماتولو په معنی کې دی. (مرقات۸/۲۴۷)

**وقطعته منهما:** دا جمله د مخکنۍ جملې لپاره د عطف تفسیر په توګه دی. یعنې دواړه کړې یې د هغوی د بدن نه راویستلي او دواړه یې ماتې یې کړي. (مرقات۸/۲۴۷)

**فأخذ منهما:** یعنې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا منظر ولیدلو نو د هغوی دواړو په حالت یې پرې رحم راغلو. یعنې په دواړو یې زړه خوږ شو یا یې پرې مینه او رحمت راغلو. دا ترجمه ډېره ښه ده، خو ملاعلي قاري فرمایي چې دا ترجمه مناسب نه ده. بلکې دا ترجمه ده چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغوی دواړو نه هغه دواړه ماتې کړې واخستلي او حضرت ثوبان رضي الله عنه ته یې ورکړي.

**الی فلان:** یعنې هغوی غریبانان خلک دي، هغوی ته یې ورکړه.

**اکره:** دا جمله د تعلیل د محل لپاره هم کېدی شي. تو عبارت به داسې شي "ای لانی اکره یأکلو" یا

[1] رقم الحدیث ۴۴۷۱ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۱۹ رقم الحدیث ۴۲۱۳ واحمد في المسند ۵/۲۷۵

[2] دحدیث پاتې ترجمه: هاتې (پیل) د غاښ دوه کړې واخله چې د حضرت فاطمه رضي الله عنها زړه ساتنه هم وشي او د ماشومانو او ښکې هم بندې شي.

دا د استيناف په موقع كې دى. عبارت به داسې شي "ان هٰؤلا اى الحسن والحيسن وعلياً وفاطمة اهل بيتى و اكره ياكلوا" يعنې دا ښه شيان صدقه كړه او دا درهم واخله او د بازار نه د عصب امبيل راوړه چې دا دلاسه شي او د حسنين لپاره د پيل د غاښ دوه كړې راوړه چې د دوى زړه غلې شي. دا سې معلومېږي چې دا كړې د حضرت فاطمه رضي الله عنها وي. هغې حسنين ته اچولي وي.

**عصب:** يعنې د عصب قلاده واخله. شارحينو د دې حديث باره كې سخت تشويش كړى دى چې د عصب نه څه شيز مراد دى چې قلاده ترېنه جوړېږي. ځېنې علماؤ ويلې دي چې دا يمن جوړېدنكې يوه ټوټه ده چې د څه اجزاؤ نه يې امبيل جوړېږي، خو شارحين ليكي چې د ټوټې نه امبيل جوړول، دې باندې نۀ پوهېږي. لهذا علامه خطابى فرمايي چې ما د يمن والو نه اورېدلي دي چې عصب د يو دريابې ځناور غاښونه دي. چې بهترين سپين امبيل ترېنه جوړېږي. هغه ځناور ته فرس فرعون وايي. (مرقات۸/۲۴۸)

ما په تېر ۲۰۰۵ء كې په زامبيا د لوساكا (ښار) كې د كفوئې په درياب كې بشماره فرس فرعون وليدل. دې ته جاموس البحر هم وايي. او خنزيرالبحر هم وايي. دا مېښې پشان وي، خوله يې اَس پشان وي او نو بدن يې د خنزير پشان دى. ډېر لويې دى. شپږ (۶) منتهو پورې په اوبو كې غپه كېږي. او كله چې سر رابهر كړي نو يو تيز مكروه اواز راوباسي. د عصب امبيل به كېدى شي د دې غاښونو نه جوړېدل.

**عاج:** د هاتي (فيل) د غاښونو نه كړې جوړېږي. د دې استعمال د احنافو په نزد جائز دى. د عاج دا مشهوره معنى پرېښودل او غير مشهوره معنى اخستلو ته هيڅ ضرورت نشته دى. نبي كريم صلى الله عليه وسلم د اهل بيتو لپاره د دنيا سخت ژوند خوښ كړو د دې لپاره چې د آخرت ټول راحتونه او نعمتونه محفوظ پاتې شي. او د اذهبتم طيبٰاتكم فى حياتكم الدنيا د وعيد نه بچ شي. (مرقات۸/۲۴۸)

## رانجه لګول مسنون طريقه او د اثمد فايدي

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اكْتَحِلُوا بِالْإِثْمِدِ |
| او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل اصفهانى رانجه هر وخت مښئ |
| فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ. |
| ځكه رانجه بينائى زياتوي او ويختان يعنې باڼه غټوي. چې د سترګو د ښايست او د حفاظت ذمه وار دي. |
| وَزَعَمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ لَهُ مُكْحُلَةٌ يَكْتَحِلُ بِهَا |
| ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم يو اوړده د رانجو كڅوړه وه. چې د هغې نه به |

| | | | |
|---|---|---|---|
| كُلَّ | لَيْلَةٍ | ثَلَاثَةً | فِي هٰذِهِ |
| نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هره شپه دري ځله دې سترګه او دري ځله دې سترګه کي رانجه مښل. يعني | | | |
| وَثَلَاثَةً | فِي | هٰذِهِ. | رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| مسلسل دري سلائي ښي سترګه کي او دري په چپه سترګه کي مښل. | | | |

**توضيح**: **اثمد**: د ځېنو حضراتو خيال دی چې د اثمد مطلق رانجو ته وايي خو د حديثونو له نظره زياته صحيح دا ده چې **اثمد** يو مخصوص معدني رانجو ته وايي. د ځېنې حضراتو خيال دی چې اثمد يو مخصوص قسم اصفهاني رانجه دي چې د سترګو نه رواني اوبه اودروي. او د سترګي د زخم لپاره ګټوري دي. او د سترګي سوځې لري کوي. او د سترګو د رڼا والا رګونو ته طاقت ورکوي. ورو ماشومانو او د بوډه ګانو لپاره په خاصه توګه ګټور دي. د بحث لاندي حديث کي د دي دوه فايدي ذکر دي. يو دا چې د سترګو بانه غټوي چې د سترګي حفاظت هم پري کېږي او ښايست هم پري پيدا کېږي. دويم د چې د اثمد رانجه د سترګو نظر تېزوي. د رانجو يوه طريقه په حديث کي ده چې دري سلائي په سترګه کي وکړی شي او دري په بله کي، د شپي وخت ځکه انتخاب کړی شوی دی چې دي کي تر ډېر وخت پوري رانجه پاتي کېږي.

**مكحلة**: د رانجو اوږدي کځوړي ته وايي. يعني د رنجو لوخی. (مرقات ۲۴۹/۸)

## د يو څو مفيد دواګانو ذکر

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۳﴾ وَعَنْهُ | قَالَ: | كَانَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | يَكْتَحِلُ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د شپي د اوده کېدو نه مخکي هره | | | | | | | |
| قَبْلَ | أَنْ | يَنَامَ | بِالْإِثْمِدِ | ثَلَاثًا | فِي كُلِّ | عَيْنٍ | قَالَ: وَقَالَ: |
| سترګه کي د اصفهاني رانجو دري سلائي اچولي. او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل | | | | | | | |
| إِنَّ | خَيْرَ | مَا | تَدَاوَيْتُمْ | بِهِ | اللَّدُودُ | | |
| چې تاسو د علاج لپاره کوم څيزونه اختياروئ هغي بهترين شيان څلور دي. يو خو لدود، دويم | | | | | | | |
| وَالسَّعُوطُ | وَالْحِجَامَةُ | وَالْمَشِيُّ | وَخَيْرَ | مَا | اكْتَحَلْتُمْ | بِهِ الْإِثْمِدُ | فَإِنَّهُ |
| سعوط، دريم حجامة او څلورم مشی. د سترګو لګولو څيزونو کي بهترين څيز اصفهاني رانجه دي. | | | | | | | |
| يَجْلُو | الْبَصَرَ | وَيُنْبِتُ | الشَّعْرَ | وَإِنَّ | خَيْرَ | مَا | تَحْتَجِمُونَ فِيهِ |
| چې بينائی زياتوي او د بانو ويختان تازه کوي. او د غوره ډک خکر لګولو لپاره د سپوګمۍ | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۴۷۲ أخرجه ابوداود في السنن ۳۳۲/۴ رقم الحديث ۴۰۶۱ والترمذي في ۲۰۶/۴ رقم الحديث ۱۷۵۳

| |
|---|
| يَوْمُ سَبْعَ عَشْرَةَ وَيَوْمُ تِسْعَ عَشْرَةَ وَيَوْمُ إِحْدَى وَعِشْرِينَ |
| اؤولسمه (۱۷)، نورلسمه (۱۹) او یویشتمه (۲۱) تاریخ بهترینې ورځې دي. حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا |
| وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ عُرِجَ بِهِ مَا مَرَّ عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ |
| هم بیان کړه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم کله معراج ته لاړو نو د فرښتو هیڅ یو داسې جماعت نه ؤو چې د |
| إِلَّا قَالُوا: عَلَيْكَ بِالْحِجَامَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ [1] |
| هغې په خوا نبي کریم صلی الله علیه وسلم تېرېدلو او هغوی دا نه وي ویلي چې د ښکر لګول ستا لپاره ضروري ده. |

**توضیح**: **ان خیر ما تداویتم**: یعنې بهترین او فائده مند دوایانې څلور دي. ۱: **لدود**: دا هر هغه دوائی ده چې د مریض خوله کې ورڅښولې شي. ۲: **سعوط**: دا هغه دوائی ده چې د مریض په پوزه کې اچولې کېږي. ۳: **حجامه**: د ستنو د غاړو په ذریعه ښکر لګولو ته وائی یعنې وینه ویستل. ۴: **المشی**: دا هر هغه دست راستونکي دوا ته وایي چې د استعمال نه وروسته یې دست جاري وي. د سړي خیټه هم روانه شي. او خپله سړی هم بار بار تشناب ته منډې وهي. دې وجې نه دې ته المشی ویل شي دي.

**وان خیر ما**: یعنې د ښکر لګولو بهترینې ورځې د هرې میاشتې اؤولسم، نورلسم او یویشتم تاریخ دی. دا معتدلې ورځې دي چې وینه په اعتدال کې وي. کتاب الطب کې به مزید وضاحت راشي. ان شاء الله. (مرقات ۸/۲۵۲)

## د حمام د استعمالولو ذکر

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى الرِّجَالَ وَالنِّسَاءَ عَنْ دُخُولِ الْحَمَّامَاتِ |
| او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم نارینه او زنانه حمام ته د تللو نه منع کړي ؤو. |
| ثُمَّ رَخَّصَ لِلرِّجَالِ أَنْ يَدْخُلُوا بِالْمَيَازِرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد [2] |
| وروسته بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم په داسې صورت کې نارینؤ ته د تلل اجازت ورکړو چې د هغوی په بدن باندې تهبند وي. |

**توضیح**: **الحمامات**: هره زمانه کې د حمامونو جدا جدا انتظام وي. مخکې زمانه کې به یو کور کې په یو ځای د غسل خانې انتظام ؤو. هغې کې به ګرمې اوبه وي نارینؤ او زنانؤ به په یو ځای لامبل، نو ځکه په ابتداء کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم نارینه او زنانه دې ته د تللو نه منع کړل. د هغې نه وروسته یې نارینؤ ته اجازت ورکړو، خو په زنانؤ همغه شان پابندي وه، ځکه که ښځې ځان له حمام ته لاړې شي نو بیا هم ښځې د یو بل نه پرده نه کوي. نارینؤ ته داسې حمامونو ته د غسل لپاره د تللو دا شرط

---

([1]) رقم الحدیث ۴۴۷۳ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۴۰ رقم الحدیث ۲۰۴۸.

([2]) رقم الحدیث ۴۴۷۴ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۰۰ رقم الحدیث ۴۰۰۹ والترمذي في ۵/۱۰۵ رقم الحدیث ۲۸۰۲.

اینبودلی شوی دی چې هغوی د نامه نه تر ګونډو پورې لنګ دې تړلی وساتي. نن سبا سوئمنګ پول او نور د اوبو حوضونه او په نهرونو کې مشرکه توګه بانې بربنډه غسل کول د پخوانې حمام یو نوی شکل دی. بلکې د هغې نه هم زیات بې حیا او بداخلاقه دي، ځکه دا سوئمنګ پول غسل لپاره نه بلکې د څه نورو مقصدونو لپاره تیار کړی شوې دي. (مرقات۸/۲۵۳،۲۵۲)

## ښځې دې مشترکه حمامونو ته نه ځي

| |
|---|
| (۵۵) وَعَنْ أَبِي الْمَلِيحِ قَالَ: قَدِمَ عَلَى عَائِشَةَ نِسْوَةٌ مِنْ أَهْلِ حِمْصٍ |
| او د ابوملیح فرمایي چې یو ځل د حضرت عائشه رضي الله عنها په خدمت کې د شام د ښار حمص نه څه ښځې راغلې. |
| فَقَالَتْ: مَنْ أَيْنَ أَنْتُنَّ؟ قُلْنَ: مِن الشَّامِ |
| عائشه رضي الله عنها د هغوی نه وپوښتل چې تاسو چرته او سیږئ؟ هغوی وویل چې د شام ملک کې، |
| فَلَعَلَّكُنَّ مِنَ الْكُورَةِ الَّتِي تَدْخُلُ نِسَاؤُهَا الْحَمَّامَاتِ؟ |
| عائشه رضي الله عنها فرمایل چې کیدی شي تاسو د هغه علاقو او سیدونکې وئ چرته ښځې حمام ته ځي؟ |
| قُلْنَ: بَلَى قَالَتْ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| هغوی وویل چې آؤ، نو هلته ورته حضرت عائشه رضي الله عنها وفرمایل چې ما نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اورېدلي |
| يَقُولُ: لَا تَخْلَعُ امْرَأَةٌ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا هَتَكَتِ السِّتْرَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ |
| دي چې کومه ښځه هم د خپل خاوند د کور نه بغیر بل کوم ځای جامې اوباسي نو ګویا کې هغه هغه پرده |
| رَبِّهَا. وَفِي رِوَايَةٍ: فِي غَيْرِ بَيْتِهَا إِلا هتكت سترها بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد [1] |
| اخوا کوي چې د هغې او د الله په مینځ کې ده. یعنې دې روایت کې د في بیت غیر زوجها په في بیتها الفاظ دي. |

**توضیح: الکورة:** کوره کاف باندې پیش دی. ښار، غاړه اؤو علاقې په معنی کې دی. (مرقات۸/۲۵۴)

**لاتخلع:** جامې د ویستلو په معنی کې دی. (مرقات۸/۲۵۴)

**هتکت الستر:** پرده د لرېکولو په معنی کې دی. مراد ادب او د حیا پرده اخوا کول دي. "ای حجاب الحیاء و جلباب الاد"(مرقات۸/۲۵۴)

**وبین ربها:** ځکه د الله له اړخه د دې پابنده ده چې هغه پرده وکړي او غیر محرم هغې ته ونه کتلی شي. بلکې د ښځې دا هم نه دې مناسب چې هغه د ښځې نه بغیر په تش ځای کې خپل بدن لغړ کړې.

[1] رقم الحدیث ۴۴۷۵ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۰۱ رقم الحدیث ۴۰۱۰ والترمذي في ۵/۱۰۵ رقم الحدیث ۲۸۰۳ .

﴿۵۶﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

او د حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نزدې چې تاسو به

"سَتُفْتَحُ لَكُمْ أَرْضُ الْعَجَمِ وَسَتَجِدُونَ فِيهَا بُيُوتًا يُقَالُ

د عجمو په ځمکه باندې فتح حاصله کړئ او تاسو ته به داسې کورونه ملاو شي چې د هغوی کورته

لَهَا: الْحَمَّامَاتُ فَلَا يَدْخُلَنَّهَا الرِّجَالُ إِلَّا بِالْأُزُرِ

به حمام ویل کېږي. لهذا خبردار! هغې ته نارینه د لنګ نه بغیر داخل نشئ. او ښځې خو هغې ته بالکل

وَامْنَعُوهَا النِّسَاءَ إِلَّا مَرِيضَةً أَوْ نُفَسَاءَ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

د هغې نه منع کړئ، خو دا که یوه ښځه مریضه وي یا د نفاس په حالت کې وي.

**توضیح**: النساء: یعني نارینؤ ته اجازت شته دی چې هغوی ازار بند وتړي او حمام کې غسل وکړي خو ښځو ته سره د ازار بند هم مشترکه حمامونو ته د تللو اجازت نشته دی، ځکه د هغې ټول بدن پرده دی. خو که کوم شرعي عذر او اخلاقي مجبوري وي چې ښځه بیماره وي او د حمام په استعمالول باندې علاج کېږي، یا د نفاست په حالت کې وي او د غسل ضرورت دی نو دا صورتونه مستثنی دي. د ماشوم د پیدائش نه وروسته تر څلویښتو (۴۰) ورځو پورې ښځه په نفاست کې وي. (مرقات۸/۲۵۴)

## کوم کس چې ایمان لري هغه دي مشترکه حمام ته نه ځي

﴿۵۷﴾وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ

او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم کس چې الله او د

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَدْخُلِ الْحَمَّامَ بِغَيْرِ إِزَارٍ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

قیامت په ورځ ایمان لري نو هغه دې د تهبند نه بغیر حمام ته نه ځي. کوم کس چې الله او د قیامت په ورځ ایمان لري

فَلَا يُدْخِلْ حَلِيلَتَهُ الْحَمَّامَ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

نو هغه دې خپله ښځه حمام ته داخلیدلو ته نه پرېږدي. او کوم کس چې الله او د قیامت په ورځ ایمان لري

فَلَا يَجْلِسْ عَلَى مَائِدَةٍ تُدَارُ عَلَيْهَا الْخمر. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ[2]

نو هغه دې په هغه دسترخوان نه کینې کوم باندې چې د شرابو کاروان وي. (ترمذی، نسائی)

---

([1]) رقم الحدیث ۴۴۷۶ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۰۱ رقم الحدیث ۴۰۱۱ وابن ماجه في ۲/۱۲۳۳ رقم الحدیث ۳۷۴۸.

([2]) رقم الحدیث ۴۴۷۷ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۰۴ رقم الحدیث ۲۸۰۱ والنسائي في ۱/۱۹۸ رقم الحدیث ۴۰۱

**توضیح**: **بغیر ازاربند**: یعني د ازار بند سره تلل جائز دي، خو بربنډ تلل منع دي. دغه شان ښځه حمام ته بوتلل منع دي. دا خبره یاد وساتئ چې نن سبا د ښځو داسې حمامونه جوړ شوي دي چې هلته یوه وړه کمره کې جدا د تشناب ځای وي. هلته ښځه بربنډه تللی شي، ځکه هلته نارینه نه وي. او نه ښځې وي. هغه مشترکه حمامونه دي. حدیث کې د مشترکه حمامونو ذکر دی.

**یدار**: یعني داسې دسترخوان وي چې هغې باندې د شرابو کار روان وي. هلته کیناستل حرام دي. (مرقات ۲۵۶/۸)

## الفصل الثالث

## نبي کریم صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ کله هم په سر مبارک کې خضاب نه دی لګولی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۸﴾ عَنْ ثَابِتٍ قَالَ: سُئِلَ أَنَسٌ عَنْ خِضَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: | | | | | |
| د حضرت ثابت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د ابن مالک نه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه د خضاب کولو | | | | | |
| لَوْ | شِئْتُ | أَنْ | أَعُدَّ | شَمَطَاتٍ | |
| یا د نه کولو باره کې وپوښتل، نو هغې وویلل چې که ما د نبي کریم صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ په سر کې سپین | | | | | |
| كُنَّ | فِي | رَأْسِهِ | فَعَلْتُ | | |
| ویختان شمارل غوښتلی نو یقیناً ما به شمارلی وی. یعني د نبي کریم صَلَّىٰاللّٰهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ په سر مبارک کې یو د شمار سپین ویختان | | | | | |
| قَالَ: | وَلَمْ | يَخْتَضِبْ | زَادَ | | |
| ؤو. دې صورت کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته د خضاب کولو څه ضرورت ؤو، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام کله هم خضاب نه دی کړی. | | | | | |
| فِي | رِوَايَةٍ: وَقَدِ | اخْتَضَبَ | أَبُو | بَكْرٍ | |
| یو بل روایت کې حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ یا د حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه ثابت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا عبارت مزید نقل کړی دی چې | | | | | |
| بِالْحِنَّاءِ | وَالْكَتَمِ | وَاخْتَضَبَ | عُمَرُ | بِالْحِنَّاءِ بحتا | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نکریزو او د وسمې خضاب استعمال کړی دی او حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ صرف نکریزي استعمال کړي دی. | | | | | |

**توضیح**: **شمطات**: د شمطط جمع ده. د سپین او تور ویختانو سره د سپین ګډون ته شمطط وایي. "ای بیاض شعر الرأس یخالطه سواد". (مرقات ۲۵۶/۸)

---

[1] رقم الحدیث ۴۴۷۸ أخرجه البخاري في صحیحه ۳۵۱/۱۰ رقم الحدیث ۵۸۹۵ ومسلم في ۱۸۲۱/۴ رقم الحدیث (۱۰۰-۲۳۴۱)

**الحناء والكتم**: يعني ګډوډ خضاب يې استعمال کړو. (مرقات۸/۲۵۶)

**بحتاً**: يعني يعنې خالص د نکريزو خضاب يې کړی، ګډوډ يې نه دی استعمال کړی. (مرقات۸/۲۵۶)

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيړ خضاب استعمال کړيدی

| |
|---|
| ﴿۵۹﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يُصَفِّرُ لِحْيَتَهُ بِالصُّفْرَةِ |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې روايت دی چې هغې به خپلې ږيره کې زيړ خضاب کولو. چې د هغې په وجه |
| حَتَّى تَمْتَلِئَ ثِيَابُهُ مِنَ الصُّفْرَةِ فَقِيلَ لَهُ: لِمَ تُصْبِغُ بِالصُّفْرَةِ؟ |
| به د هغې جامې زيړې وې. کله چې د هغې نه پوښتنه وشوه چې ته زيړ خضاب ولې استعمالوې؟ نو. |
| قَالَ: أَنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْبُغُ بِهَا |
| هغې وفرمايل چې ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله ږيره مبارکه باندې زيړ خضاب لګولو باندې ليدلی دی. |
| وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْهَا |
| او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نزد ږيره باندې زيړ خضاب نه بغير بل هيڅ يو خوښ څيز نه ؤو. او د |
| وَقد كَانَ يصبغ ثِيَابَهُ كُلَّهَا حَتَّى عِمَامَتَهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ [1] |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټولې جامې تردې چې پټکی له به يې هم زيړ رنګ ورکولو. (ابوداؤد، نسائی) |

**توضيح**: د زيړ خضاب نه د ورس په ذريعه خضاب کول مراد دی. دا د زعفرانو مشابه رنګ دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ږيره مبارکه کې استعمال کړيدی. جامو کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيړ رنګ نه دی استعمال کړی. نهايه کې ليکلی شوي دي چې د مختار قول دا دی چې کله کله نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ويختان رنګ کړي دي. اکثر يې نه دې رنګ کړي. او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خضاب به لږ ؤو، نو که غواړي نو دا اوايه چې خضاب يې نه دی کړی يعنې زيات يې نه دی کړی او. که غواړي اوايه چې خضاب يې کړی يعنې لږ يې کړی.

**ثيابه**: قصداً او عمداً نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جامو او پټکو ته کله هم زيړ نه دی ورکړی، لکه څنګه چې په حديثونو کې دي، خو که بغير د قصدا او اراده پټکی او قميص باندې زيړ رنګ لږېدلی وي نو هغه جدا خبره ده. (مرقات۸/۲۵۶)

---

[1] رقم الحديث ۴۴۷۹ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۳۳۳ رقم الحديث ۴۰۶۴ والنسائي في ۸/۱۴۰ رقم الحديث ۵۰۸۵

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويختان

﴿۶۰﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ
او حضرت عثمان ابن عبد الله ابن موهب وايي چې يو ورځ زه د ام المؤمنين حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت
فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا شَعْرًا مِنْ شَعْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخضوباً. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [1]
کې حاضر شوم نو هغې وويل نو هغې مونږ ته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ويخته مبارک راويستل چې رنګين ؤو.

**توضيح**: مخضوباً: يعنې هغه يو ويخته خضاب شوی رنګين ؤو. دا همدغه لږ خضاب باندې محمول دی. چې د هغې وجه دا ويخته رنګين و. يا د عطرو په شيشه کې زيات وخت ايښودلو سره ويخته رنګين شوی ؤو. يا رنګين معلومېدل. (مرقات ۲۵۷/۸)

## يو مخنث نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښار نه وشړلو

﴿۶۱﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمُخَنَّثٍ
او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د ورځ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې يو مخنث راوستلی شو.
قَدْ خَضَبَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ بِالْحِنَّاءِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
چې د ښځو پشان يې لاس او پښو باندې نکريزي ايښې وي، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ليدلو سره وفرمايل چې په
مَا بَالُ هَذَا؟ قَالُوا: يَتَشَبَّهُ بِالنِّسَاءِ
دې څه شوي دي؟ صحابه کرامو عرض وکړو چې دا کس خپل او سيدلو، خبرو اترو او طور طريقو کې د ښځو سره مشابهت
فَأَمَرَ بِهِ فَنُفِيَ إِلَى النَّقِيعِ. فَقِيلَ:
کوي، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه د ښار نه ويستلو. او هغه يې د مديني يو ځای نقيع ته ولېږلو. بيا صحابه کرامو عرض
يَا رَسُولَ اللهِ أَلَا تَقْتُلُهُ؟
وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! آيا مونږ دا مړ نکړو يعنې دا چې فسق او فساد او د بدئ ګندګي
فَقَالَ: إِنِّي نُهِيتُ عَنْ
تر ټنه ښور پږي نو ته صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړه نو دا به مړې کړې شي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

---

([1]) رقم الحديث ۴۴۸۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۲/۱۰ رقم الحديث ۵۸۹۷.

| |
|---|
| قَتْلِ الْمُصَلِّينَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[۱] |
| چې د لمونځ کونکو د وژلو نه منع کړی شوی یم. |

**توضیح**: النقیع: عوالی مدینه کې د یو ځای نوم دی. مخنث یې هغه ښار ته وشړلو. هغې په تکلف سره ځان د نارینۀ سره مشابه کولو. او داسې کوم حرام دي. (مرقات۸/۲۵۹)

**الا نقتُله**: یعني صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ داسې وګڼل چې دې دومره لوی جرم کړی دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښار نه ویستلو نو دې تقاضا دا ده چې دا اوژلی شي، نو ځکه هغوی د وژلو باره کې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړل او وجه یې ورته دا وویله چې دا مسلمان دی. لمونځ کوي او زه د لمونځ ګوزاره د وژلو نه منع کړی شوی یم. (مرقات۸/۲۵۹)

## د نارینۀ لپاره خلوق استعمالول منع دي

| |
|---|
| ﴿۶۲﴾ وَعَنِ الوليدِ بن عقبةَ قَالَ: لَمَّا فَتَحَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ |
| او حضرت ولید ابن عقبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې کله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مکه فتح کړه او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| جَعَلَ أَهْلُ مَكَّةَ يَأْتُونَهُ بصبيانهم |
| د مکې ښار ته دننه شو نو د مکې والو خپل ماشومان د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت را وستل شروع کړل، |
| فيدعو لَهُم بِالْبَرَكَةِ وَيَمْسَح رؤوسهم |
| نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغه ماشومانو لپاره د برکت دعاء کوله او په شفقت سره به یې د هغوی په سرونو لاس راښکلو، |
| فَجِيءَ بِي إِلَيْهِ وَأَنَا مُخَلَّقٌ |
| نو دې موقع باندې زه هم د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې راوستلی شوم خو دا چې زما بدن باندې د زعفران وغیره |
| فَلَمْ يَمَسَّنِي من أجل الخلوق. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۲] |
| جوړه شوې خوشبوې خلوق لړېدلې وه نو ځکه د خلوق په وجه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما نه لاس و نه لګولو. |

**توضیح**: خلوق دا چې د ښځو لپاره مخصوص دي او د نارینۀ لپاره جائز نه دي نو ځکه ورسره نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس و نه لګولو.

---

(۱) رقم الحدیث ۴۴۸۱ أخرجه ابوداود في السنن ۵/۲۲۴ رقم الحدیث ۴۹۲۸.

(۲) رقم الحدیث ۴۴۸۲ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۰۴ رقم الحدیث ۴۱۸۱ وأحمد في المسند ۴/۳۲.

## که د چا ویښتان وي نو حفاظت کول یې ضروري دي

﴿۶۳﴾وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّهُ قَالَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِي جُمَّةً

د حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روایت دی چې هغې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو چې زما د سر ویښتان داوږو

أَفَأُرَجِّلُهَا؟ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَعَمْ وَأَكْرِمْهَا

پورې دي. آیا زه دا ږمونځ کړم؟ نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل آؤ او د هغې عزت هم کوه. یعنې هغې کې تیل وغیره

قَالَ: فَكَانَ أَبُو قَتَادَةَ رُبَّمَا دَهَنَهَا

لګوله او ښه ساتنه یې کوه. راوي وایي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې ارشاد چې آؤ او د دې

فِي الْيَوْمِ مَرَّتَيْنِ مِنْ أَجْلِ قَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَعَمْ وَأَكْرِمْهَا. رَوَاهُ مَالِكٌ[1]

عزت کوه باندې عمل کولو لپاره به حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنهُ اکثر ورځ کې دوه ځل د سرخ ویښتانو کې تیل لګول.

**توضیح:** واکرمها: یعنې د خپلو ویښتانو اکرام کوه. د دې جملې نه حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنهُ استفاده وکړه او د ویښتانو ښه ستانه یې شروع کړه تردې چې ورځ کې به یې دوه ځل ږمونځول. دا د زیب او زینت لپاره نه ؤو او نه یې ذاتې خواهش ؤو بلکې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم پوره کولو لپاره به یې داسې کولو. (مرقات۸/۲۵۶)

## د غیر مسلمو وضع قطع خپلول منع دي

﴿۶۴﴾وَعَنِ الْحجاج بْنِ حَسَّانَ قَالَ دَخَلْنَا

او حضرت حجاج ابن حسان رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې یو ورځ مونږ یعنې زه او زما د کور څه کسان د

عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَحَدَّثَتْنِي

انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خدمت کې حاضر شو. دا واقعه زما خور ماته بیان کړه چې نوم یې مغیره دی. یعنې هغه وخت زه

أُخْتِي الْمُغِيرَةُ قَالَتْ:

ماشوم ؤوم. ماته هغه ورځ د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خدمت کې حاضریدل خو یاد دي چې هغه ورځو کې زه ماشوم ؤوم خو د

وَأَنْتَ يَوْمَئِذٍ غُلَامٌ وَلَكَ قَرْنَانِ

حاضرئ کیفیت او هلته چې کوم احوال پیښ شوي ؤو، د هغې تفصیل راته یاد نه دي، نو زما خور ماته وویل چې هغه ورځو کې ته

---

[1] رقم الحديث ۴۴۸۳ اخرجه مالک في المؤطا ۲/۹۴۹ رقم الحديث ۶ من كتاب الشعر.

| | | | |
|---|---|---|---|
| رَأْسَكَ | فَمَسَحَ | قُصَّتَانِ | أَوْ |

ماشوم وي او ستا په سر د ببري کوڅۍ يا خکري وي. حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا په سر لاس راښکلو او ستا

وَبَرَّكَ عَلَيْكَ وَقَالَ: احْلِقُوا هَذَيْنِ أَوْ قُصُّوهُمَا فَإِنَّ هَذَا زِيُّ الْيَهُودِ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]

په حق کې يې د برکت دعا وکړه او ويې فرمايل چې دا دواړه وخرائيوه ځکه دا د يهودو وضع ده.

**توضيح: فحدثتني:** حجا بن حسان د خپل ماشوم توب قيصه اوروي چې مونږ د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کره داخل شو نو هلته څه وشو او د دې قصه زما خور ماته وکړه ځکه زه وړوکى ؤوم: خو د نورو احوال پتنه راته نه وه. هغه زما خور ماته بيان کړل، خور راته وويل چې هغه وخت ته وړوکى وې. ستا په ويختانو کې د ويختانو دوه ببري کوڅۍ وې يا دو خکري وي. دا راوي ته شک شوى دى. (مرقات۸/۲۶۰)

**قصتان:** د تندې د پاسه ويختانو ته وايي. (مرقات۸/۲۶۰)

## ښځې ته د سر ويختان خريل حرام دي

﴿۶۵﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ [2]

او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع کړې ده چې هيڅ ښځه خپل سر وخرائيوي.

**توضيح:** د ښځو لپاره د ويختانو همغه حيثيت دى کوم چې د نارينؤ لپاره دى، لکه څنګه چې د نارينؤ لپاره ږېره خرائيل حرام ده نو د ښځو لپاره د سر ويختان خرائيل حرام دي. حکيم الامت حضرت تهانوي رحمه الله ليکلي دي چې يورپ کې ښځو سر خرائيل شروع کړل. ډاکټرانو هم ورله ملګرتيا وکړه. څه لږه موده پس د ښځو ږېرې راوښتلې، نو هلته ډاکټرانو وويل چې غلطي شوې ده چې د فطرت خلاف فيصله يې وکړه. دا چې د ښځو د بدن ټول قوت غريزي زور د سر ويختانو باندې ډريږي. چې په هغې يې ويختان اوږده کېږي. او ګرموالى ترينه خارج کېږي، نو چې د ښځو ويختان يې ورائيل نو د بدن ګرمائش يې مخ ته متوجې شو نو ږېرې يې راؤتلې. (مرقات۸/۲۶۱)

## د سر او ږيرې ويختان که خواره وي نو دا د تهذيب خلاف دي

﴿۶۶﴾ وَعَنْ عطاءِ بن يسارٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ

او حضرت عطاء ابن يسار رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مسجد نبوي کې ناست ؤ.

---

[1] رقم الحديث ۴۴۸۴ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۴۱۲ رقم الحديث ۴۱۹۷

[2] رقم الحديث ۴۴۸۵ أخرجه الترمذي في السنن ۳/۲۵۷ رقم الحديث ۹۱۴ والنسائي ۸/۱۳۰ رقم الحديث ۵۰۴۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَدَخَلَ | رَجُلٌ | ثَائِرُ | الرَّأْسِ | وَاللِّحْيَةِ |

چې يو کس راغلو چې سر او د ږيرې ويختان يې ګډوډ وو. يعنې ښواره واره او نښتي وو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَشَارَ | إِلَيْهِ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ بِيَدِهِ |

نبي کريم ﷺ دې ليدلو سره د هغې سر او ږيرې اړخ ته په خپل لاس مبارک باندې دې انداز سره اشاره وکړه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَأَنَّهُ | يَأْمُرُهُ | بِإِصْلَاحِ | شَعْرِهِ | وَلِحْيَتِهِ |

لکه نبي کريم ﷺ چې هغې ته حکم کوي چې هغه د خپل سر او ږيرې ويختان صحيح کړي،

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَفَعَلَ | ثُمَّ | رَجَعَ | فَقَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |

نو هغه کس د سر او ږيرې ويختان صحيح کړل او بيا بېرته راغلو نو نبي کريم ﷺ وفرمايل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَيْسَ | هَذَا | خَيْرًا | مِنْ | أَنْ | يَأْتِيَ | أَحَدُكُمْ |

چې آيا دا د هغې نه بهتر نه دې چې تاسو کې يو کس داسې حالت کې راشي چې د هغې د سر ويختان ګډوډ وي

| | | |
|---|---|---|
| وَهُوَ | ثَائِرُ | الرَّأْسِ |

او داسې ښکاري لکه شيطان يا پيرى وي يعنې هغې خپل شکل او صورت داسې جوړ کړى وي لکه

| | | |
|---|---|---|
| كَأَنَّهُ | شَيْطَانٌ. | رَوَاهُ مَالِكٌ[1] |

خنګه چې يو پيرې ويختان ښواره واره او بدهئيت کې شکل او صورت ساتي.

**توضيح: ثائر الرأس:** ګډوډ ويختان چې ږمونځ په کې نه وي وهل شوي، نه تيل وي نه څه او نه څه.

**كانه شيطان:** معلومه شوه چې شيطان لويې غير مهذب، بدتهذيبه او هر ګناه ګونکی دی. (مرقات ۲۶۲/۸)

## د کور دالان صفا ساتئ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنِ | ابْنِ | الْمُسَيِّبِ | سَمِعَ | يَقُولُ: | " إِنَّ | اللهَ | طَيِّبٌ |

او حضرت ابن مسيب (تابعی) نه روايت دی چې د هغې نه دا اوريدلی شوي دي چې الله تعالی پاک دی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يُحِبُّ | الطَّيِّبَ | نَظِيفٌ | يُحِبُّ | النَّظَافَةَ | كَرِيمٌ | يُحِبُّ |

پاکوالی خوښوي. الله تعالی ډېر پاک دی او پاکي خوښوي. الله کرم کونکی دی. کرم خوښوي. الله ډېر

[1] رقم الحديث ۴۴۸۶ اخرجه مالک في الموطا ۹۴۹/۲ رقم الحديث ۷ من کتاب الشعر.

# باب التصاویر

## د تصویرونو بیان

تصاویر د تصویر جمع ده. د یو شي صورت جوړولو ته تصویر وایي. هغه که د مجسمي په شکل کې وي یا په لاس جوړ شوي یا د کیمري او مشین او د شعاگانو په ذریعي وي ټولو ته تصویر ویل کیدی شي. دي باب کې چې د کومو تصویرونو بیان دی. د هغې د زنده سرو تصویرونه مراد دي، ځکه شریعت د جائز او ناجائز بحث کوي. او تصویران ناجائزه دي. چې د زنده سرو وي. د غیر زنده سرو شیانو تصویران په اسلام کې منع نه دي.

دي باب کې چې د کومو زنده سرو د تصویرونو بیان شوی دی. هغې کې په پردو باندې د تصویرونو د ممانعت تذکره ده، چې ترینه معلومیږي چې د تصویرونو ممانعت فقط د مجسمو سره نه دی بلکې د زنده سري هر قِسمه ځناور تصویرونه حرام دي. هغه که په لاس جوړ کړی شوي وي او یا که بله کومه ذریعه استعمال کړی شوي وي. زنده سرو د تصویرونو د حرمت دوه درجې دي. ۱: د حرمت یوه وجه خو دا ده چې د زنده سرو په تصویرونو کې د خدای د تخلق سره مشابهت دی. ۲: دویمه وجه دا ده چې د تصویرونو په لاره همیشه شرک راغلی دی. او آئنده به هم راځي. نن سبا خلک د آغا خان د تصویر عبادت کوي. د خمیني د تصویر عبادت کیږي. د الطاف حسین د تصویرونو غوښتونکې ورته سجده کوي. که یو کَس دا غواړي چې زه شرک نه کوم نو کوم خلک چې د تصویرنو په وجه شرک کې اخته شوي دي. د هغوی ذمه واري په چا ده؟

*بت پرستی دین احمد میں ابھی آئی نہیں*

*اس لئے تصویر جاناں ہم نے کھچوائی نہیں*

### الفصل الاول

### د رحمت فرښتي هلته نه ځي چرته چې شوقي سپي یا تصویرونه وي

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن أَبِي طَلْحَة قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا |
| حضرت ابو طلحه رضی الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هغه کور ته فرښتي نه داخلیږي |
| فِيهِ كَلْبٌ وَلَا تصاوير (مُتَّفق عَلَيْهِ)[۱] |
| چې کوم کې عکس وي او نه هغه کور ته داخلیږي چې کوم کې سپی وی. (بخاری ومسلم) |

---

(۱) رقم الحدیث ۴۴۸۹ اخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۰/۱۰ رقم الحديث ۵۹۴۹ ومسلم في ۱۶۶۵/۳ رقم الحديث (۸۳-۲۱۰۶)

**توضيح**: **الملائكة**: د دې نه مراد د رحمت فرښتې دي. چې کورونو کې وي. او دعاګانې کوي او د خداى د رحمت سبب جوړېږي چې پرې کورونو ته برکتونه راځې. د ملائکه نه دلته مراد هغه فرښتې نه دي چې د انسان په حفاظت باندې مامور وي. يا اعمال نامه ليکلو باندې مامور وي. يا روح قبض کونکي فرښتې دي. هغه خو هر حال کې راځي.

**کلب**: د دې سپي نه مراد شوقې سپى دى. شريعت چې د کومو سپو کور د ساتلو اجازت کړى دى هغه سپي مراد نه دي مثلاً د کور د حفاظت سپى يا ښکاري سپى يا د رمې او د پټې د حفاظت سپى، نو داسې سپي مراد نه دي. د ځينو حضراتو خيال دى چې د حيث کې چې کوم حکم دى. دې کې عموم دى. چې کور کې مطلق سپى ساتل منع دى. هغه که شوقيه وي يا که د ضرورت وي. دواړو صورتونو کې د رحمت فرښتې کور ته نۀ راځې. (**كذا قال النؤوى**) خو دا قول شاذ دى.

**ولا تصاوير**: دا عطف دى. د کا ب لفظ د پاسه او دا چې د کلب جمله د نفې د لاندې ده نو د لاتصاوير عطف د د اعاده عامل سره صحيح شي. اصل عبارت داسې شو "**لاتدخل الملائكة بيتاً فيه كلب و لا تدخل الملائكة بيتاً فى تصاوير**". ملاعلي قاري فرمايي "**و اعادة لا كاعادة الفعل**" يعني لاتصاوير کې دلااعاده همدغه شان ده. ګوياکې **لاتدخل الملائكة** کې د فعل اعاده وشوه. "**فليتدبر فانه دقيق**"

ګوياکې د دې حديث مطلب او د مسند احمد د حديث مطلب يو دى.د هغې عبارت داسې دى. "**ان الملائكة لا تدخل بيتاً فيه تماثيل اوصورة**" بهرحال د حديث تعليم دا دى چې چې د زنده سري تصوير جوړول او کور کې ساتل حرام دي. او دا د کبيره ګناهونو نه دي. دا تصوير که په توټه جوړ شوى وي يا نقود او نوټونو او سکو باندې جوړ شوي وي. دا خو د جوړولو او د ويستلو خبره ده. باقې کور چې د ساتلو تر کوم ځاى پورې تعلق دى نو که اعزاز او د احترام په توګه د کور په ديوالونو باندې يا په پټکي او په څادر او کوټ او بنين باندې وي نو دا ټول حرام دي، خو کوم تصوير چې معزز او مکرم نه وي بلکې سپک او ذليله وي چې لاندې غوړول شوي فرش يا بالخ باندې وي او د هغې تذليل کېږي نو هغه کور کې ساتل حرام نه دي. (مرقات۸/۲۶۵)

دې تفصيل سره دا خبره په ذهن کې راشي چې د اخبارونو تصويران چې د اهانت په توګه زمکه باندې پراته وي د هغې حرمت سخت نشي کېدى. ماهره علماؤ اړخ ته رجوع ضروري ده. والله اعلم. زمونږ ملک د سرکارې اعزاز په توګه د بانئ پاکستان محمد جناح تصويرونه ځوړندول حرام دي. د هغوى په دفترونو کې به د رحمت فرښتې نه راځي، نوټو باندې چې کوم تصويرونه دي دا د ايوب خان په زمانه کې شروع شوي ؤو. د دې ګناه په حکومت باندې ده، ځکه عام خلک يې د اعزاز په توګه نه ساتي مجبوري ده.

## د غير ضروري او شوقيه سپو وژل ضروري دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ ابنِ عبَّاسٍ عَنْ مَيْمُونَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ام المؤمنين حضرت ميمون رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت کوي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| أَصبحَ يَوْمًا واجماً |
| يو ورځ د سحر وخت کې ډېر خفا ښکاره شو او د خفګان سبب يې نو لو سره د حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه يا يا د بل کومې |
| وَقَالَ: إِنَّ جِبْرِيلَ كَانَ |
| زوجه مطره نه يا خپل زړه کې دا تعجب او د حيرانتيا په توګه خپله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| وَعَدَنِي أَنْ يَلْقَانِيَ اللَّيْلَةَ فَلَمْ يَلْقَنِي أَمَ وَاللهِ |
| نن شپه ماته د راتللو وعده کړې وه خو هغه ماله رانغلو. قسم په خدای دا سې کله نه دي شوي چې هغې |
| مَا أَخْلَفَنِي. ثُمَّ وَقَعَ فِي نَفْسِهِ جِرْوُ كَلْبٍ |
| وعده خلافي کړې وي. بيا ناڅاپه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ذهن کې کوترې ته خيال راغلو چې د |
| تَحْتَ فُسْطَاطٍ لَهُ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خيمه کې يعنې د کوم تخت يا د ټاټ وغيره لاندې پرته وه، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پوهه شو چې |
| فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ |
| جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې کوترې په وجې زما خواله نه دې راغلی او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه کوترې د ويستلو حکم وکړو. |
| ثُمَّ أَخَذَ بِيدِهِ مَاء فنضحَ مَكَانَهُ فَلَمَّا أَمْسَى لقيه جِبْرِيلَ |
| چې هغه پله د هغه ځای ويستلې شوه نو حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خوا له راغلو او |
| فَقَالَ: لَقَدْ كُنْتَ وَعَدْتَنِي أَنْ تَلْقَانِي الْبَارِحَةَ. قَالَ: |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې نه وپوښتل چې تا خو تېره شپه ما سره د ملاوېدلو وعده کړې وه؟ حضرت جبرائيل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وفرمايل |
| أَجَلْ وَلَكِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا صُورَةٌ فَأَصْبَحَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ |
| چې آؤ خو مونږ هغه کور ته نه داخلېږو چې کوم کې سپی يا تصوير وي. د هغې نه بله ورځ |
| فَأَمَرَ بِقَتْلِ الْكلاب حَتَّى إِنه يَأْمر بقتل الْكَلْب الْحَائِطِ الصَّغِيرِ |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د د سپو د وژلو حکم وکړو چې تردې چې د وړو باغونو سپو د وژلو حکم يې هم وکړو او |

| |
|---|
| وَ يَتْرُكُ كَلْبَ الْحَائِطِ الْكَبِيرِ. رَوَاهُ مُسلم (١) |
| د لويې باغونو د سپو پرېښودل حکم يې وکړو ځکه د هغه باغونو د حفاظت لپاره د سپو ساتل ضروري ؤو. |

**توضیح**: د عربو معاشره کې هم د شوقي سپو ساتلو رواج ؤو، لکه څنګه چې په نوره دنيا کې ؤو. د اسلام په ابتداء کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سپو د وژلو مطلقاً حکم کړی ؤو. کله چې د خلکو په زړونو کې نفرت کيناستلو نو بيا د ضرورت له نظره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو څو سپو د ساتلو اجازت وکړو. د بحث لاندې حديث د همغه ابتدائی دور نقشه ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عامو سپو د وژلو حکم کړی ؤو، خو د لويې باغونو د حفاظت کونکي سپو د ضرورت له نظره اجازت کړی ؤو. دا وه دويمه مرحله. ګنې د دې نه مخکې خو د هيڅ يو سپي د ساتلو اجازت نه ؤو. د سپو د فاسدونو نن سبا اندازه کېږي. او د يورپ په اکثر کورونو کې ښځې سپي د خاوند په درجه کې ساتي. او د هغې د خاوند کار اخلي. اوس يو څو مياشتې مخکې هندوستان کې يوې ښځې په اعلانيه توګه د سپي سره واده وکړو او نکاح يې ولوستلې شوه.

**جرو کلب**: د سپي وړوکې بچې ته جرو وايي. چې ترجمه يې پِلا ده. (ګوکری).

**فسطاط**: د دې ترجمه خيمه ده، خو اصل د واقعې په اعتبار سره دا څه تاټ يا کټ يا کوم يو تخت ؤو. چې د لاندې يې ګوکری پټ شوی ؤو. (مرقات ۸/۲۶۷)

**الحائط**: کجورو او د انګورو وغيره غټ باغ ته وايي. (مرقات ۸/۲۶۷)

## نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د تصوير والا شی ماتولو

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَتْرُكُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به خپل کور کې هيڅ يو داسې څيز نه پرېښوستلو |
| فِيهِ تَصَالِيبُ إِلَّا نَقَضَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ (٢) |
| چې په کوم به تصوير ؤو او هغه به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماتولو. |

**توضیح**: **تصاليب**: د دې مفرد تصليب دی. چې معنې يې د صليب تصوير جوړول دي. چې د عيسايانو مقدس علامت دی، خو دلته د تصاليب نه مراد مطلق د زنده سرې تصوير وي. چې منع دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې داسې تصوير ليدلو نو ژر به يې ماتولو، ځکه.

بت پرستی دین احمد صلی اللہ علیہ وسلم میں ابھی آئی نہیں
اس لئے تصویر جاناں ہم نے کھچوائی نہیں

---

(١) رقم الحديث ۴۴۹۰ اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۶۶۴ رقم الحديث (۸۲-۵-۲۱۰۵) وابوداود في السنن ۴/۳۸۷ رقم الحديث ۴۱۵۷

(٢) رقم الحديث ۴۴۹۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۳۸۵ رقم الحديث ۵۹۵۲ وابوداود في السنن ۴/۳۸۳ رقم الحديث ۴۱۵۱.

## چیرته چې تصویر ؤو هلته نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داخل نشو

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْهَا أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ |
| او د حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه روایت دی چې هغې یو ځل داسې بالخت واخستلو چې هغې باندې تصویرونه ؤو. |
| فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| نو نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا حجرې ته داخلیدلو وخت کې چې هغه تصویر ولیدلو نو |
| قَامَ عَلَى الْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْ فَعَرَفْتُ |
| په دروازه کې او دریدلو او حجرې ته داخل نه شو. حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د ې تصویر والا بالخ په وجه |
| فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ قَالَتْ: |
| د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخ باندې د خفان اثرات محسوس کړل. حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمایي |
| فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَتُوبُ إِلَى اللّٰهِ وإِلَى رَسُوله |
| چې ما عرض وکړو چې یارسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ما نافرماي پرېږدم او الله او د هغې د رسول رضا ارخ ته متوجې کېږم. |
| مَا أذنبتُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| ما کومه داسې ګناه کړې ده چې تاسو زما حجرې ته نۀ راداخلېږې؟ نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل |
| مَا بَالُ هَذِهِ النُّمْرُقَةِ؟ قُلْتُ: |
| چې دا څنګه بالخ دی او تا دا د کوم ځای نه راوړی دی؟ حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمایي چې ما جواب ورکړو |
| اشْتَرَيْتُهَا لَكَ لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا |
| ما دا بالخ ستاسو لپاره اخستی دی چې تاسو کله هم وغواړې نو د ې په مُرسته کینې او چې کوم وخت وغواړې نو |
| وَتَوَسَّدَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ أَصْحَابَ هَذِهِ الصُّوَرِ |
| دا سر لاندې کېږدې. نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې اوریدلو سره و فرمایل چې یاد و ساته تصویر جوړونکو ته |
| يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيُقَالُ لَهُمْ: أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ". |
| به د قیامت په ورځ عذاب ورکول کېږي او هغې ته به ویل کېږي چې کوم تصویران تا جوړ کړې دي دي |
| وَقَالَ: إِنَّ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ الصُّورَةُ |
| کې ساواچوه او دا ژوندي کړه او نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کوم کور کې تصویران وي هغې |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَا | تدخله | الْمَلَائِكَة | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |

ته فرښتې نه داخلیږي. همدغه شان انبیاء او اولیاء لپاره هم دا مناسب نه دي چې هغوی د تصویر والا کور ته داخل شی.

**توضیح: نمرقة**: نون باندې پیش دی. میم ساکن دی. را باندې پیش دی. وړو کې بالخ ته وايي. علامه نؤوی لیکلي دي چې ځینې علماء وايي چې د دې نه پرده مراد ه. که پرده مراد واخستلی شي نو د حدیثونو باندې پوهېدل به اسان شي او دا خبره خو ثابت شوه چې تصویرونه که په کیمره مشین وي یا په لاس جوړ کړی شوي وي ټول ناجائز دي. هغه که د مجسمې په شکل کې وي یا غیر مجسمه وي. وګورئ چې دلته په پرده باندې کوم تصویران ؤو دا څه مجسمې خو نه وي. بلکې د نن سبا د کاغذ ورقو پشان او د ټوټو پشان تصویرونه ؤو.

**احیوا ماخلقتم**: یعنې تا چې د کوم حیوان تصویر جوړ کړی دی هغې کې سا واچوه ګنې عذاب خوره. دا تعلیق بالمحال او تعجیز دی. (مرقات۸/۲۷۰)

## نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تصویران وران کړل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾وعنها | أَنَّهَا | كَانَت | عَلَى | سَهْوَةٍ | لَهَا | سِتْرًا |

او د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې یو ځل هغې خپل څپر باندې یو داسې پرده ولیدله چې هغې

| | | |
|---|---|---|
| فِيهِ | تَمَاثِيلُ | فَهَتَكَهُ |

باندې تصویران ؤو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ولیدله او ویشلوله. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د هغه شلیدلې پردې دا

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَاتَّخَذَتْ | مِنْهُ | نُمْرُقتين |

مصرف راویستلو چې د هغې نه یې دوه بالختونه جوړې کړې. او هغه دواړه بالختونه یې کور کې کیخوستل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فكانتا | فِي | الْبَيْت | يجلسُ | عَلَيْهِم | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] |

او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغې باندې تکې وهلو او پرې کیناستلو به.

**توضیح: سهوة**: سین باندې زبر دی. ها ساکن دی. واؤ باندې زبر دی. د کور دننه وړه څپر او د ناستې ځائ ته وايي. یعنې د ناستې هغه وړوکی شان ځای چرته چې ښځې خپل سامان بږدې یا دیوال کې هغه طاق ته سهوة وايي چې ښځې یې د خزانې، بکس او د صندوق په توګه استعمالوي. چې مخې ته یې پردوه ځوړنده وي. (مرقات۸/۲۷۰)

---

(۱) رقم الحدیث ۴۴۹۲ اخرجه البخاري في صحیحه ۳۹۳/۱۰ رقم الحدیث ۵۹۶۱ ومسلم في ۱۶۶۹/۳ رقم الحدیث (۹۶-۲۱۰۷)

(۲) رقم الحدیث ۴۴۹۳ اخرجه البخاري في صحیحه ۳۸۶/۱۰ رقم الحدیث ۵۹۵۴ ومسلم في ۱۶۶۸/۳ رقم الحدیث (۹۴-۲۱۰۷)

تماثیل: تصویر مراد دی، ځکه نرمه پرده باندې مجسمه نه جوړیږي. (مرقات۸/۲۷۰)

**فهتکه:** نبي کریم ﷺ هغه پرده وشلوله، یوه وجه بې ځایه اسراف او د ارائش او زیبائش ؤو. او د دویمه وجه د زنده سرې ناجائز تصویر ؤو. (مرقات۸/۲۷۰)

**نمرقتین:** حضرت عائشه رضي الله عنها د هغه دوه ټکړو نه بالختونه جوړ کړل، ځکه شلولو سره هغه تصویران ورن شول.

**پوښتنه:** د دې مخکنې د حضرت عائشه رضي الله عنها حدیث کې دي چې نبي کریم ﷺ بالخ باندې د جوړو شوي تصویر په وجه کورته را نغلو. حال دا چې دلته د تصویر والا ټوټې نه دوه بالختونه د نبي کریم ﷺ د استعمال لپاره ایښود لې شوې ؤو. دا تعارض دی. د دې څه جواب دی؟

**جواب:** د بحث لاندې حدیث کې د هتکه لفظ راغلی دی چې نبي کریم ﷺ پرده وشلوله. هغې سره د تصویر حیثیت ختم شو. لهذا تعارض نشته دی. دا جواب هم روکړی شوی دی چې نبي کریم ﷺ د ډول سنګار او د بې ځایه اسراف په وجه دا پرده شلولې وه، لکه څنګه چې په بل حدیث نمبر ۶ کې تفصیل موجود دی. دې حدیث کې پرده باندې د زنده سرې تصویر نه ؤو. اګر که دې باندې د تماثیل اطلاق شوی دی. دا تاویل کمزوری شان دی. اولنی جواب ښه دی. د دې حدیث نه معلومه شوه چې د مجسمې نه بغیر ټوټې یا کاغذ باندې هم تصویر جوړول منع دی. (مرقات۸/۲۷۰)

## بې ضرورته دیوال ته پردې مه ځوړندوئ

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْهَا | أَنَّ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | خَرَجَ | فِي | غَزَاةٍ |

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې یو ځل نبي کریم ﷺ د جهاد لپاره سفر کې لاړو، نو د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَخَذْتُ | نَمَطًا | فَسَتَرْتُهُ | عَلَى | الْبَابِ | فَلَمَّا | |

نبي کریم ﷺ د تلو نه وروسته ما یو ټوټه حاصله کړه او د هغې پرده مې په دروازې زوړنده کړه.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَدِمَ | فَرَأَى | النَّمَطَ | فَجَذَبَهُ | حَتَّى | هَتَكَهُ |

نبي کریم ﷺ چې کله بېرته د جهاد د سفر نه راغلو او هغه پرده یې ولیدله نو هغه یې رابنکله او وې یې شلوله

ثُمَّ قَالَ: إِنَّ اللهَ لَمْ يَأْمُرْنَا أَنْ نَكْسُوَ الْحِجَارَةَ وَالطِّينَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

او ویې فرمایل چې الله مونږ ته د دې حکم نه دی کړی چې د خاورې او کاڼي نه ټوټه جوړه کړو.

**توضیح: نمطاً:** یو ښه قسمه نرمي دری ته وایي. ٥ودج هم اچولی کېږي. کېدی شي دا نمده د معرب نه وي. نبي کریم ﷺ دا ځکه وشلوله چې دې باندې د آس تصویر جوړ شوی ؤو. ګنې

---

[1] رقم الحدیث ۴۴۹۴ اخرجه البخاري في صحیحه ۱۰/۳۸۶ رقم الحدیث ۹۵۵۴ ومسلم في ۳/۱۶۶۶(۹۲-۲۱۰۷)

دروازه باندې ټوټه اچول او پرده کول خو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم عمل دی. دا احتمال هم شته دی چې دا پرده غير ضروري، ارائشي او زيبائشي وه، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وشلوله. د حديث آخري الفاظ د دې تائيد کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناخوښوالې وجه دا ويلې ده چې مونږ الله د دې پابند کړي نه يو چې مونږ د خاورې او د کاڼې نه ټوټې جوړې کړو. (مرقات ۸/۲۷۱)

## قيامت کې به تصوير ويستونکې ته د ټول نه زيات عذاب وي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يُضَاهُونَ بِخلق الله (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [۱] |
| د قيامت په ورځ به د ټولو نه سخت عذاب هغه خلکو ته وي چې په تخليق د الله سره مشابهت اختيار وي. |

**توضيح: يضاهون:** د مضاهات نه دی. چې د مشابهت په معنی کې دی. ځينو نسخو کې همزه هم دی. هغه هم يو لغت دی. د شکل جوړول د الله کار او د الله صفت دی ﴿**ويصوركم في الارحام كيف يشاء**﴾ (آل عمران: ۶) لهذا کوم کس چې تصوير جوړوي نو حقيقت کې هغه خپل فعل د الله د فعل سره مشابه کوي. چې لويې ګناه ده. د دې حديث نه معلومه شوه چې د تصوير ويستلو د ممانعت يو وجه د خدای د تخليق سره مشابهت دی. (مرقات ۸/۲۷۱)

اشد الناس عذاباً: که تصوير جوړونکې شرک او د بوتانو د عبادت په غرض تصوير جوړوي، نو دا کفر دی، ځکه به وره د قيامت په ورځ د ټولو نه سخت عذاب ورکړی کېږي. که د بت پرستۍ په غرض نه وي بلکې د خدای د تخليق سره د مشابهت په غرض جوړوي نو دا هم کفر دی، ځکه به ورته سخت عذاب ورکول کېږي. او که تصوير صرف د زيب او زينت او د شوق او ذوق په غرض وي نو دا فسق او فجور او ګناه ده. سړی د ګناه کبيره مستحق شي. بيا دا حديث د تشديد او تغليظ او تهديد او توبيخ باندې محمول دی. (مرقات ۸/۲۷۲) چا څه ويلې دي

بت پرستی دین احمد صلی اللہ علیہ وسلم میں ابھی آئی نہیں
اس لئے تصویر جاناں ہم نے کھنچوائی نہیں

الناس: ابن ملک رحمه الله فرمايي چې که د مصور کار د دې عقيدې د لاندې وي (چې هغه د خدای د تخليق سره مشابهت کونکی وي) نو هغه کافر کېږي. هغه صورت کې به د حديث مطلب دا وي چې دې قبيح کفر باندې به هغه کس د نورو کافرانو په نسبت زيات سخت عذاب وي. (هغه صورت کې به

د الناس نه مراد کافران وي او کلام به په حقیقت باندې محمول شي) او که داسې عقیده نه لري نو بیا د هغه کس په حق کې به دا حدیث په تغلیظ او تهدید باندې محمول وي الخ. (هغه صورت کې به د الناس نه مسلمانان مراد وي. کلام به په زجر او توبیخ او تهدید او تشدید باندې حمل کېږي).
بهرحال د تصویر نه مراد د زنده سري تصویر مراد دی. علماء فرمایي چې د حدیث د دې سخت وعید نه هغه تصویریان خارج دي چې هغه دومره وړوکی او نرې وي چې که په ځمکه واچولی شي نو ولاړ سړي ته صفا نهٔ ښکاري. یا داسې تصویر وي چې د هغې سره داسې اندام نه وي چې د هغې نه بغیر سړی ژوندی نشي پاتې کېدلی، لکه څنګه چې نیم تصویر وي. داسې تصویرونه د مجبورۍ په وجه حج او عمره یا تذکره وغیره ضروري اسنادونو کې کېدی شي حرام نه وي. داسې واړه تصویرونه او دغه شان هغه تصویرونه چې د اکرام په توګه نه وي بلکې مهان وي نو د هغې کور کې ساتلو باندې کېدی وعید هم نه وي. اګر که ځینې علماء دې کې هم احتیاط کوي.

## که مصور کې همت وي نو میږی دې پیدا کړي

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " | | | |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوریدلي دي فرمائیل ئې چې | | | |
| قَالَ اللهُ تَعَالَى: | وَمَنْ | أَظْلَمُ | مِمَّنْ |
| الله فرمایي چې د هغه کس نه زیات ظالم څوک دی چې څوک زما د پیدا کولو پشان پیدا کول کوي یعنې لکه څنګه | | | |
| ذَهَبَ | بِخلق | | كخلقي |
| صورت چې زه جوړوم هغه شان صورت هغه هم جوړوي. اګر که په حقیقت کې هغه د هغه مادې نه شکل نشي جوړولی چې د کومې | | | |
| فلْيخلقوا | ذَرَّةً | أَوْ | لِيَخْلُقُوا |
| مادې نه د الله جوړ شوي شکلونه دي، خو بیا هم هغه یو شکل جوړوي او دا ګمان کوي چې دا شکل ما جوړ کړی دی. که تصویر | | | |
| حَبَّةً أَوْ شَعِيرَةً " (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | | |
| او مجسمه جوړونکي په رښتیا د تخلیق دعوی کوي نو لږ یو میږی خو دې جوړ کړي یا خو دې د جوارو یوه دانه پیدا کړي. | | | |

**توضیح**: یعنې جوړولو سره د خدای د تخلیق مشابهت اختیارول وي نو بیا کولاو میدان ته راشه او یو میږی خو پیدا کړه یا په هوا کې الوتکونکې یوه ذره خو پیدا کړه یا د جوارو دانه پیدا کړه. دې حدیث کې د امر صیغه د تعجیز لپاره ده. بهرحال د ټولې دنیا بادشاهان او خلک کې راجمع شي نو یوه چڼاکۍ خاوره هم نشي پیدا کولی. چرګۍ د چرګوټو په زړه رابښکونکي تصویرونو کې مشابهت

---

([1]) رقم الحديث ۴۴۹۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۵/۱۰ رقم الحديث ۵۹۵۳ ومسلم في ۱۶۷۱/۳ رقم الحديث (۱۰۱-۲۱۱۱)

اختياروي خو د ټولي دنيا بادشاهان او خلک که راجمع شي نو يوه هګئ نه شي پيدا کولی. لږ يوه هګئ خو اوښايئ. که نه شئ کولی نو بيا د بل په تخليق کې بې ځايه ماتوالی ولې کوئ؟ سره د بې وسئ نه قادر جوړېدلو کوشش کول ځومره لويې ظلم دی.

## د الله په نزد به مصور ته د ټولو نه زيات عذاب وي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي د |
| أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللهِ المصوّرون (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| خدای په نزد د ټولو نه د سخت عذاب حقدار مصور دی. |

**توضيح**: **المصورون**: اصطلاحي توګه باندې د زنده سرو تصوير جوړونکي ته مصور وايي. د غير زنده سرو تصوير جوړونکي ته نقاش وايي. دلته د زندسرې تصوير مراد دی. دې حديث او تېر شوي حديث نمبر ۷ کې توضيح او تشريح يو شان ده. هلته تفصيل وګورئ.

## چې ځومره تصويران جوړ کړي هماغومره عذاب به ګټې

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: كُلُّ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې هر |
| مُصَوِّرٍ فِي النَّارِ يُجْعَلُ لَهُ بِكُلِّ صُورَةٍ صَوَّرَهَا نَفْسًا |
| مصور به دوزخ ته ځي. او د هغې د جوړ شوي هر تصوير په بدل کې به يو کس پيدا کېږي چې تصوير جوړونکي |
| فَيُعَذِّبُهُ فِي جَهَنَّمَ. قَالَ ابْن عَبَّاس: فَإِن كنت لابد فَاعِلًا |
| ته به د دوزخ عذاب ورکوي. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې که تاسو ته د تصوير ضرورت وي |
| فَاصْنَعِ الشَّجَرَ وَمَا لَا رُوحَ فِيهِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| نو د بوټو او د غير ذي روح تصوير جوړ کړئ. |

**توضيح**: **نَفْسًا**: ځومره تصويران چې دنيا کې مصور جوړ کړي دي. هغه ټول تصويرونو ته به قيامت کې د يو زند سرې شکل ورکړی شي او د دوزخ د اور په شکل کې به هغه زنده سری د عذاب په صورت کې دې مصور باندې مسلط شي.

---

(1) رقم الحديث ۴۴۹۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۲/۱۰ رقم الحديث ۵۹۵۰ ومسلم في ۱۶۷۰/۳ رقم الحديث (۹۸-۲۱۰۹)

(2) رقم الحديث ۴۴۹۸ أخرجه البخاري ۴۱۶/۴ رقم الحديث ۲۲۲۵ ومسلم في ۱۶۷۰/۳ رقم الحديث (۹۹-۲۱۱۰)

**فیعذبه**: که د مذکر صیغه ده نو ضمیر د فاعل لفظ الله لره دی. او که د مؤنث صیغه ده نو د ضمیر فاعل د نفس لپاره دی. بهرحال هر مصور له سوچ کول پکار دی چې هغه څومره تصویرونه جوړوي هغه هومره به ورته عذاب زیاتېږي. (مرقات ۲۷۴/۸)

## درې لوی گناهونه او عجیبه سزا

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې کوم کس د |
| تَحَلَّمَ بِحُلْمٍ لَمْ يَرَهُ كُلِّفَ |
| داسې خوب د لیدلو دعوی کوي چې هغې نه وي کتلي یعنې د دروغو خوب بیان کړي نو د قیامت په ورځ به هغه |
| أَنْ يَعْقِدَ بَيْنَ شَعِيرَتَيْنِ وَلَنْ يَفْعَلَ وَمَنِ |
| دوه جوارو ته غوټه ورکولو باندې مجبور کړی شي چې هغه به یې هرگز نه شي کولی. او کوم کس |
| اسْتَمَعَ إِلَى حَدِيثِ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ |
| چې د څه خلکو خبرو اترو اړخ ته خپل غوږ نژدې کوي او دا چې هغه خلک د دې اورېدل نه خوښي |
| أَوْ يَفِرُّونَ مِنْهُ صُبَّ فِي أُذُنَيْهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ |
| او د هغې نه وتښتي نو د قیامت په ورځ به د دې کس په غوږ کې سیسه واچولی شي او کوم کس چې |
| صَوَّرَ صُورَةً عُذِّبَ وَكُلِّفَ |
| تصویر جوړوي. هغې ته به د قیامت په ورځ عذاب ورکول کېږي. او هغه به دې خبره باندې مجبوره کول کېږي |
| أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا وَلَيْسَ بِنَافِخٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| چې دې تصویر کې روح واچوي حال دا چې هغه به هرگز هغې کې روح نه شي اچولی. |

**توضیح**: **تحلم**: یعنې داسې خوب یې بیان کړو چې هغه یې نه وُو لیدلی. بلکې دروغ یې جوړ کړل او بیان یې کړل. نو د هغې سزه به دا وي چې د جوارو دوه دانو ته غوټه ورکولو باندې به مجبوره کړی شي. چې غوټه نه شي ورکولی نو عذاب کې به اخته وي، ځکه دا تعلیق بالمحال دی. د دروغو خوب بیانول د عامو دروغو ویلو نه ځکه زیات سخت دی چې په دروغ جن خوب کې دا کس په عالم غیب باندې دروغ وایي. او خوب د نبوت د اجزاؤ نه یو جز دی، نو گویا کې دې کس د نبوت به یو جز کې دروغ وویل چې لویې جرم دی. مثلاً دا کس اوایي چې ما خوب لیدلی دی چې ماته د فلانې

---

(1) رقم الحدیث ۴۴۹۹ أخرجه البخاري في صحیحه ۴۲۷/۱۲ رقم الحدیث ۳۹۱۶ وأبوداود في السنن ۲۸۵/۴ رقم الحدیث ۵۰۲۴

ولایت رتبه راکړی شوي ده. یا د فلانې کس مغفرت شوی دی. یا ما حج کړی دی یا ما نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوب کې لیدلی دی یا ماته د جنت پروانه ملاو شوي ده. دغه شان د دروغو خوب بیانول د عذاب سبب دی. (مرقات۲۷۵/۸)

**استمع:** یعنې د څه خلکو پټو خبرو اوربدلو ته غوږ ږدي او خبرې اورې او بیا یې ښوروي. او فساد ښوروي نو دا حرام دي. (مرقات۲۷۵/۸)

**صب:** یعنې ورغوزار به کړی شي. (مرقات۲۷۵/۸)

**الانك:** داقلعي او تانبې ته وایي.

**ولیس بنافخ:** یعنې کوم کس چې د زنده سرې تصویر جوړ کړو نو د قیامت په ورځ به هغه مجبوره کول کېږي چې اوس په دې سا واچوه. هغه کس به دې کې سا نه شي اچولی نو دې باندې به هغې ته سزه ورکول کېږي. او دا سزه به د همیشه لپاره وي. دا هم تعلیق بالمحال دی. چې دې کې روح واچوه ګنې په عذاب کې اوسه. چې روح نه شي اچولی نو عذاب کې به پروت وي. (مرقات۲۷۶/۸)

## د نرد شیر لوبې کولو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ |
| او د حضرت بریده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې کوم د نرد شیر په |
| فَكَأَنَّمَا صَبَغَ يَدَهُ فِي لَحْمِ خِنْزِيرٍ وَدَمِهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1] |
| ذریعه سره لوبه وکړه ،هغه ګویا کې د خنزیر غوښه او وینه کې خپل لاس ومنډلو. |

**توضیح** **نردشیر:** د ګیټکو په قسم کې یوه لوبه ده. دا لوبه د ټولو نه اول د فارس بادشاه شاه پور بن اردشیر بن بابک نوی راویستلې (ایجاد) وه. کوم کس چې دا لوبه کوي ګویاکې هغه مجوسي رسم ژوندی کوي. چې ګناه په کې ده. یو بله لوبه ده چې شطرنج ورته وایي. چې تذکره یې مخکې راروانه ده. د احنافو په نزد دا دواړه لوبې مکروه تحریمي دي، خو د شوافعو په نزد که وخت نه ضایع کوي، لمونځ نه قضا کوي. صرف د ذهن تازه کولو په نیت وي نو مباح او جائز دی. د احنافو ائمؤ وعیدونه لیدلي دي. د وعید مخې ته تشحیذ اذهان هیڅ اهمیت او حیثیت نشته دی. د امام شافعي رحمه الله یو قول دی چې شطرنج مکروه دی. دې قسمه لوبه کې به تصویرونه استعمالیدل، نو ځکه دا د تصویرونو په باب کې ذکر کړی شو. د خنزیر غوښه او د هغې وینه حرام کېدلو سره د طبیعت د زیاتي نفرت سبب وي، نو ځکه د نفرت پیدا کولو لپاره دا ذکر کړی شوی دی. (مرقات۲۷۶/۸)

---

[1] رقم الحدیث ۴۵۰۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۷۰/۴ رقم الحديث (۱۰-۲۲۶۰) وابوداود في السنن ۲۳۰/۵ رقم الحديث ۴۹۳۹.

# الفصل الثاني

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَانِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ماله حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام راغلی ؤو |
| قَالَ: أَتَيْتُكَ الْبَارِحَةَ فَلَمْ يَمْنَعْنِي |
| او فرمايلي يې چې زه تېره شپه تاله راغلی ؤم خو کور ته د راتلو نه چې کوم څيز منع کړی ؤوم هغه دا ؤو |
| أَنْ أَكُونَ دَخَلْتُ إِلَّا أَنَّهُ كَانَ عَلَى الْبَابِ تَمَاثِيلُ |
| چې د دروازې په پرده باندې تصويرونه ؤو. همغه وخت کې چې کور کې کومه رنګينه نقش کړی شوې |
| وَكَانَ فِي الْبَيْتِ قِرَامُ سِتْرٍ فِيهِ تَمَاثِيلُ وَكَانَ فِي الْبَيْتِ كَلْبٌ |
| تږپه وه د هغې نه پرده جوړه کړی شوې وه او په هغې باندې هم تصويرونه ؤو. او په کور کې سپی هم موجود ؤو. |
| فَمُرْ بِرَأْسِ التِّمْثَالِ الَّذِي عَلَى بَابِ الْبَيْتِ |
| لهذا تاسو د دوی د سرونو د غوڅولو حکم وکړه کوم چې د دروازې په پرده دي او د هغه تصويرونو |
| فَيُقْطَعُ فَيَصِيرُ كَهَيْئَةِ الشَّجَرَةِ وَمُرْ بِالسِّتْرِ فَلْيُقْطَعْ |
| سرونه غوڅ کړه چې ددې شکل او هيئت بدل شي. او د بوټو په شکل شي او بيا هغه پرده غوڅه کړه او |
| فَلْيُجْعَلْ وِسَادَتَيْنِ مَنْبُوذَتَيْنِ |
| د هغې نه د دوه بالختونو جوړولو حکم وکړه او تکې ورته ؤوهه او د اوده کېدو لپاره په فرش |
| تُوطَآنِ وَمُرْ بِالْكَلْبِ فَلْيُخْرَجْ". |
| باندې پرېوځه او هغه د پښو لاندې کوه. او د سپي هم د کور نه د بهر ويستلو حکم وکړه، |
| فَفَعَلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد [1] |
| نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدغه شان وکړل لکه څنګه چې ورته جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام ويلي ؤو. |

**توضیح**: **فيقطع**: د کومو تصويرونو سرونه چې غوڅ کړی شوي وي د هغې ممانعت نشته دی، لکه څنګه چې ددې حديث کې دي او کوم تصويران چې واړه وي نو د هغې ممانعت هم نشته دی. د وړو تصويرونو معيار دا دی چې هغه دومره نرې وي چې ولاړ سړی يې کله په ځمکه کېږدي نو د هغې اندامونه جدا جدا نه معلومېږي. او په کومو تصويرونو کې چې داسې اندامونه نۀ وي چې د هغې نه بغير انسان ژوندی نه شي پاتې کېدی، لکه خيټه نه وي، د نامه نه لاندې نه وي نو هغې کې هم کېدی

---

([1]) رقم الحديث ۴۵۰۱ أخرجه ابوداود في السنن ۳۸۸/۴ رقم الحديث ۴۱۵۸ والترمذي في السنن ۲۸۰۶.

شي وعید نه وي. که تصویران غټ وي نو فتاوی قاضي خان لیکل شوي دي چې که لمونځ کونکي په داسې حالت کې لمونځ کوي چې تصویرونه د هغې د جانماز مخې ته وي یا پاس په دیوالونو باندې دي. او که دا تصویران په درئ او فرش باندې د مُهان په درجه کې وي نو راجح قول دا دی چې که د بنې او چپ اړخ ته څوړند وي یا په اچول شوؤ جامو باندې وي نو داسې حالت کې لمونځ کول مکروه سجدې په ځای باندې نه وي نو لمونځ نه مکروه کیږي. دا تفصیل د هغه تصویرانو باره کې دی چې غټ وي. وړو تصویرانو کې د کراهت نشته دی. (کذا فی فتاوی الخانیة) (مرقات۸/۲۷۸،۲۷۷)

**قرام:** نرمي پردې ته وايي. معلومه شوه چې د مجسمې نه بغیر تصویران هم ناجائز دي، ځکه دلته مجسمه مراد نه ده. بلکې سپکي او نرمي باندې تصویرن مراد دي.

**وسادتین:** یعنې چې د دې تصویران سرونه مات کړی شي یا پرده وشلولی شي نو اوس دا تصویران نه پاتې نشول لهذا بالخ جوړول ترینه جائز شو.

## مصورینو په ښټ باندې به په محشر کې د دوزخ اور مسلط وي

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَخْرُجُ عُنُقٌ مِنَ النَّارِ |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل د دوزخ نه به یو ښټ راؤوځي |
| يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَهَا عَيْنَانِ |
| د قیامت په ورځ یعنې د اور یوه لمبه به اوږد ښټ شکل راؤوځي. د هغې به ښټ کې به دوه د کتونکي |
| تُبْصِرَانِ وَأُذُنَانِ تَسْمَعَانِ وَلِسَانٌ يَنْطِقُ يَقُولُ: |
| سترګې وي، د اورېدونکې غوږونه به وي، خبرې کونکي ژبه وي، هغه ښټ به وايي چې زه په |
| إِنِّي وُكِّلْتُ بِثَلَاثَةٍ: |
| درې قسمه خلکو باندې مسلط کړی شي یم. چې دا درې قسمه خلک دوزخ ته رابنکاږم او د خلکو مخکې یې ذلیل او رسوا کړم |
| بِكُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ |
| او په عذاب کې یې اخته کړم. هغې کې خو به یو هغه قسمه خلک وي چې د حق سره یې د تکبر او د عناد سلوک وکړو. |
| وَكُلِّ مَنْ دَعَا مَعَ اللهِ |
| یعنې دنیا کې هغوی ته حق ظاهر شو خو هغوی قبول نه کړو. دویم قسمه خلکو کې هر هغه کس شامل دی |
| إِلَهًا آخَرَ وَبِالْمُصَوِّرِينَ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| چې د الله سره یې بل معبود رابللی دی او دریم قسم خلک به هغه وي چې تصویرونه یې جوړ کړي دي. |

[1] رقم الحديث ۴۵۰۲ أخرجه الترمذي في السنن ۶۰۴/۴ رقم الحديث ۲۵۷۴ وأحمد في المسند ۳۳۶/۲ .

## شراب، جواري او کوبه حرام دي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل |
| "إِنَّ اللهَ تَعَالَى حَرَّمَ الْخَمْرَ وَالْمَيْسِرَ وَالْكُوبَةَ وَقَالَ: |
| بيشکه الله تعالى شراب، جواري او کوبه غړولېي د نبوت په ژبه حرام کړې دي. او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل |
| كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ". قِيلَ: الْكُوبَةُ الطَّبْلُ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان[1] |
| چې هر نشه کونکې شی حرام دی. او بيان کړې شوي دي چې "کوبه" چمبې ته وايي. |

**توضيح**: **الكوبة**: د کوبه په معنی او په مصداق کې یې درې اقوال دي. اول قول دا دی چې د دې نه مراد نرد دی. دويم قول دا دی چې د دې نه بربط مراد دی. دريم قول دا دی چې د دې نه مراد چمبه ده. د دې چمبې نه د غازي چمبه مستثنی ده. دا حديث کېدی شي چې د نرد په وجه دلته ذکر کړې شوي وي. چې تصويرونه په کې وي. (مرقات۲۷۹/۸)

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَالْكُوبَةِ |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شراب، جواري، چمبه او د |
| والغبيراء. الغبيراء: شَرَابٌ يَعْمَلُهُ الْحَبَشَةُ مِنَ الذُّرَةِ يُقَالُ لَهُ: السكركة. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| غبيرا نه منع کړې ده. او غبيرا يو قسم شراب وي چې د حبش خلک د جوارو نه جوړوي. او هغې ته سکرکه وايي. |

**توضيح**: **الذرة**: جوارو ته ذره ويل شوي دي. شياه فام خلک د ټولو نه زيات جوار استعمالوي. د دې نه هم شراب جوړوي. د چمبې په وجه دا حديث په باب التصاوير کې راغلی دی.

**غبيرا**: د دې شرابو دويم نوم سکرکه هم ده. (مرقات۲۸۰/۸)

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ |
| او د حضرت ابو موسى اشعرى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه رو[illegible] چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کوم |
| لَعِبَ بِالنَّرْدِ فَقَدْ عَصَى اللهَ وَرَسُولَهُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُد[3] |
| کس د نرد لوبه وکړه د حقيقت کې هغې الله او د هغې د رسول نافرماني وکړه. (احمد، ابوداؤد) |

[1] رقم الحديث ۴۵۰۳ اخرجه ابوداود في السنن ۹۶/۴ رقم الحديث ۳۶۹۶ وأحمد في المسند ۲۸۹/۱.

[2] رقم الحديث ۴۵۰۲ أخرجه ابوداود في السنن ۸۹/۴ رقم الحديث ۳۶۸۵ وأحمد في المسند ۱۸۵/۲

[3] رقم الحديث ۴۵۰۵ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۰/۵ رقم الحديث ۴۹۳۸ وابن ماجه في ۱۲۳۷/۲ رقم الحديث ۳۷۶۲.

## د کوترو ساتنه ناجائزه ده

| |
|---|
| ﴿١٨﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا |
| او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو كس وليدلو چې |
| يَتْبَعُ حَمَامَةً فَقَالَ: |
| كوترانو پسې شوى ؤو، يعني د هغې سره لهو و لعب او په الوځولو كې مشغول ؤو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل |
| شَيْطَانٌ يَتْبَعُ شَيْطَانَةً. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[1] |
| چې دا شيطان دی او شيطان پسې شوى دی. (احمد، ابو داؤد، ابن ماجه، بيهقى فى شعب الايمان) |

**توضيح**: شيطان يتبع شيطانة: د کوترو ساتنه ناجائزه ده، ځکه دې کې ډېرې خرابيانې دي. مثلاً دې سره وخت ضايع کېږي. سړی د لمونځونو نه غافل شي. د الله د ذکر نه غفلت پيدا شي. کوترې اولوځونکی د کور په چهت باندې وخېجي او د بې حيائی او د بې پردګئ مرتکب شي. دغه شان دا سړی د فسق او فجور ښکار شي، نو ښه صحيح شيطان ترېنه جوړ شي. که د کوترو په الوځولو کې کومه جوارې هم کوي نو بيا خو يې په شيطان کېدلو کې هيڅ شک نشته دی. او بله دا چې کوترې ته ځکه شيطان ويلی شوی دی چې هغه د سړي د دې بربادئ سبب او ذريعه جوړه شوه. او د دې ټولو فسادونو مرکز جوړ شو. که کوم کس د نسل د زياتولو په غرض دا ساتې او د دې ساتنه کوي نو بيا اګرکه ساتنه يې جائز ده خو دا خارجې فسادونه ناجائز دي.

## الفصل الثالث

## د ژونده سرو تصوير ويستلو کاروبار ناجائز دی

| |
|---|
| ﴿١٩﴾عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ |
| او حضرت ابو سعيد ابن ابو الحسن تابعي فرمايي چې يو ورځ زه د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې |
| إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ إِنِّي رَجُلٌ إِنَّمَا |
| حاضر شوم چې ناګهانه يو کس هغې له راغلو او وې ويل چې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما د معاشې ژوند متکيا زما |
| مَعِيشَتِي مِنْ صَنْعَةِ يَدِي |
| د لاسونو په مزدورۍ باندې ده. چې د هغې په ذريعه زه تصويران جوړوم. اوس پوښتنه دا ده چې ولې شريعت دا |

[1] رقم الحديث ٤٥٠٦ اخرجه ابوداود في السنن ٢٣١/٥ رقم الحديث ٤٩٤٠ وابن ماجه في ١٢٣٨/٢ رقم الحديث ٣٧٦٥.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَإِنِّي | أَصْنَعُ | هٰذِهِ | التَّصَاوِيرَ |

حرام کړی دی. بله کوم کسب ماله نه راځي چې د هغې په ذريعه د خپل رزق انتظام وکړم، نو آیا د مجبورۍ په وجه دا کسب

| | | |
|---|---|---|
| فَقَالَ | ابْنُ | عَبَّاسٍ: |

زما لپاره جائز دی یا نا؟ حضرت ابن عباس رضي الله عنه چې ولیدل چې د تصویر جوړولو سره د دې کس تعلق د سخت نوعیت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا | أُحَدِّثُكَ | إِلَّا | مَا | سَمِعْتُ |

دی. کېدی شي چې زما په منع کولو باندې منع نه شي، نو هغې د هغې مخې ته د نبي عليه السلام حديث بيان کړو چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

هغه وفرمايل چې زه ستا مخې ته د دې نه بغير بله هيڅ خبره نه بيانوم چې کومه ما د نبي عليه السلام نه اورېدلې ده،

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سَمِعْتُهُ | يَقُولُ: | مَنْ | صَوَّرَ | صُورَةً |

نو ته يې په غور واوره چې ما د نبي عليه السلام نه دا اورېدلي دي چې کوم کس تصويران جوړوي نو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّ | اللهَ | مُعَذِّبُهُ | حَتَّى | يَنْفُخَ | فِيهِ الرُّوحَ |

الله تعالى به يې په عذاب کې اخته کړي. تر دې چې هغه په دې کې روح واچوي. او حال دا چې هغې کې به

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَيْسَ | بِنَافِخٍ | فِيهَا | أَبَدًا. | فَرَبَا | الرَّجُلُ | رَبْوَةً | شَدِيدَةً | وَاصْفَرَّ وَجْهُهُ |

هر ګز روح نه شي اچولی. هغه کس دې وعيد اورېدلو سره غټه ساه واخستله او د ويرې په وجه يې مخ پيکه شو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | وَيْحَكَ | إِنْ | أَبَيْتَ |

حضرت ابن عباس رضي الله عنه د هغې دا حالت وليدلو نو ويې فرمايل چې په تا باندې افسوس دی چې که ته دې تصوير ويستلو د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | أَنْ | تَصْنَعَ | فَعَلَيْكَ | بِهٰذَا | الشَّجَرِ | وَكُلِّ شَيْءٍ |

کسب نه بغير بل کسب قبلولو نه انکار کوي نو داسې وکړه چې د دې بوټو او د هغه څيزونو تصويران

لَيْسَ فِيهِ رُوحٌ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [1]

جوړوه چې غير زنده سري دي.

**توضيح: فربا الرجل:** ربا د يربو نه دی يعنې يوه يخه او اوږده ساه يې واخستله او د خدای د ويرې نه يې رنګ پيکا شو. اَس چې کله منده وهي نو ستړی کېدلو سره اوږده ساه اخلي نو هغې ته ربا الفرس وايي. کاش که کوم شارح د دې ترجمه په رپېدلو سره کړې وی نو ربوة شديدة باندې به هم صحيح

(1) رقم الحديث ۴۵۰۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۴/۴۱۶ رقم الحديث ۲۲۲۵ واحمد في المسند ۱/۳۶۰.

پوهه شوی وی او په واصفر وجهه باندې به هم پوهه شوی وی، خو چا دا ترجمه نه ده کړې. بس د سا اخستلو او د یخ او اوږدې سا د راښکلو ترجمه یې کړې ده. د دې حدیث نه دا خبره واضحه شوه چې د زنده سرې نه بغیر د هر شي تصویر جوړول جائز دی. (مرقات ۲۸۱/۸)

## د تصویر ویستلو په وجه شرک راغلی او راځي به

| | |
|---|---|
| (۲۰) وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: لَمَّا اشْتَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې کله نبي کريم صلی الله عليه وسلم بيمار شو نو د نبي عليه السلام په ازواجو کې ځينو د کنيسه |
| ذَكَرَ بَعْضُ نِسَائِهِ | ذکر وکړو چې ماريه بمور ته ويل کېدله. کنيسه د يهودو او د عيسايانو د عبادت ځای ته وايي. چې کنشت معرب دی. د دې باره کې |
| كَنِيسَةً يُقَالُ لَهَا: | حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د نبي عليه السلام په بيمارۍ کې زه د نبي عليه السلام سره ناسته ووم. بيبياني د نبي عليه السلام د زړه |
| مَارِيَةُ وَكَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ | ساتې لپاره خبرو کې مشغوله وې چې ځينو ازواج مطهرات يعني ام سلمه او ام حبيبه د کنيسه ذکر وکړو چې هغوی د حبشه په ملک |
| وَأُمُّ حَبِيبَةَ أَتَتَا أَرْضَ الْحَبَشَةِ | کې ليدلې وو چې د نبي عليه السلام هغه ازواج مطهرات حبشه ته تلې وې. چې خلک يې د عيسائيت پېرو کاروو، نو هغې دواړو |
| فَذَكَرْنَا مِنْ حُسْنِهَا وَتَصَاوِيرَ فِيهَا | د کنيسې د ښايست او هغې کې د جوړ شوؤ تصويران ذکر وکړو. نبي عليه السلام دې تذکره اورېدلو |
| فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ: أُولَئِكَ | سره خپل سر مبارک را اوچت کړو او ويې فرمايل چې هغه خلک يعني حبشي والا يا نصاری داسې کوي |
| إِذَا مَاتَ فِيهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ بَنَوْا عَلَى قَبْرِهِ | چې کله هغوی کې کوم نيک سړی مړ شي نو هغوی د هغې په قبر باندې د عبادت ځای جوړوي. |
| مَسْجِدًا ثُمَّ صَوَّرُوا فِيهِ تِلْكَ الصُّوَرَ | چې کنيسه ورته وايي. او په هغه کنيسه کې د خپل نيک او صالحه خلکو دا تصويرونه جوړوي. |

| |
|---|
| أُولَئِكَ شرار خلق الله (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| هغه خلک حقیقت کې د خدای بدتره مخلوق دی. |

**توضیح** کنیسة: د یهود او نصاری عبادت ګاهونو ته کنیسه وایي.

**وتصاویر فیها: ای ذکرتا حسن تصاویرها:** د ګرجې د ښایست او د هغې د تصویرونو ښایست یې د تعجب په توګه بیان کړو. (مرقات ۲۸۲/۸)

**علی قبره مسجداً:** یعنې قبر نه د عباد خانه جوړوله. او بیا د هغې به نوم کنیسه جوړوله. او بیا به یې هغې کې د هغه نیکانو تصویرونه د زړه د اطمینان لپاره جوړول. چې بوډه ګان به مړه شول نو نوي نسل ته به یې شیطانان ویل چې ستاسو مشرانو د دې تصویرانو او د نیکانو د دې مجسمو عبادت کولو، نو نوی نسل به د بوتانو په عبادت کې اخته شو، لکه څنګه چې د حضرت نوح علیه السلام په زمانه کې هم د شرک ابتداء همدغه شان شوي وه. معلومه شوه چې د تصویرانو په ذریعه د شرک ابتداء هم وشوه او بیا به هم شرک په دې لاره راځي. تر ننه پورې د قبر پرست بریلیان حضرات دي. چې بدعتیان هم دي۔او شرک کې هم اخته دي.

شرار خلق الله: یعنې تصویر ویستونکي او بیا په قبرونو باندې د عبادت ځایونه جوړونکي بدترین مخلوق دی، ځکه خپله هم ګمراه شول او نور یې هم ګمراه کړل (مرقات ۲۸۲/۸)۔

زندگی اس کی ہے ملت کے لئے پیغام موت
کر رہا ہو جو بجائے کعبہ قبروں کا طواف
بت پرستی دین احمد میں ابھی آئی نہیں
اس لئے تصویر جاناں ہم نے کھچوائی نہیں

## پنځه قسمه خلګو ته به قیامت کې سخت ترین عذاب وي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل چې د قیامت په ورځ به د |
| عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ قَتَلَ نَبِيًّا أَوْ قَتَلَهُ نَبِيٌّ أَوْ |
| ټولو نه سخت عذاب هغه کس باندې وي چې نبي اوژني یا د جهاد کې هغه نبي اوژني یا چې په مور |

---

([1]) رقم الحدیث ۴۵۰۸ اخرجه البخاري في صحیحه ۱۸۷/۷ رقم الحدیث ۳۸۷۳ ومسلم في ۳۷۵/۱ رقم الحدیث (۱۶-۵۲۸)

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَتَلَ | أَحَدَ | وَالِدَيْهِ | وَالْمُصَوِّرُونَ |
| او پلار کې يو اوژني او کوم کس چې تصوير جوړ کړي يا چې کوم عالم د علم نه فائده وانخلي يعنې د | | | |
| وعالم | لم | ينتفع | بعلمه[1] |
| خپل علم مطابق عمل ونه کړي دې باندې به هم سخت عذاب وي. | | | |

**توضيح**: دې حديث د پنځه قسمه خلکو بيان دی. چې قيامت کې به ورته د ټولو نه سخت عذاب ورکول کېږي. ۱: چاچې نبي شهيد کړو ۲: ځوک چې ميدانِ جهاد کې نبي اوژلو، نه دا چې په قصاص ۳: کوم بدبخته چې مور او پلار کې کوم يو کس اوژلو ۴: د زنده سرو تصوير ويستونکی ۵۵: هغه عالم چې د علم حق ادا نه کړي، نه د دې دعوت وکړي او نه په دې باندې عمل وکړي. (مرقات۸/۲۸۳)

## د شطرنج غندنه

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: الشطرنج هُوَ ميسر الْأَعَاجِم[2] |
| او د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دی چې هغې به فرمايل شطرنج د عجمو خلکو يعنې د غير مسلمو جوارې ده. |

**توضيح**: **ميسر الاعاجم**: يعنې عجم او د فارس د خلکو د مجوسيانو جوارې ده. لهذا د دې مجوسيانو مشابهت اختيارول جائز نه دی، ځکه د هغوی خاصه لوبه نرد، چوسر او د شطرنج کول جائز نه دي.

د احنافو په نزد دا شيان مکروه تحريمي دي. امام شافعي رحمه الله فرمايي چې د تشحيذ اذهان لباره شطرنج کول جائز دي. د هغې نه هم يو قول منقول دی چې شطرنج مکروه دی. مخکې حديث نمبر ۱۲ کې تفصيل شوی دی.

## خطاکار سړی شطرنج لوبوي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۳﴾ | وَعَنِ | ابْنِ | شِهَابٍ | أَنَّ | أَبَا | مُوسَى | الْأَشْعَرِيَّ | قَالَ: لَا يَلْعَبُ |
| او د حضرت ابن شهاب نه روايت دی چې حضرت ابو موسی اشعری رضي الله عنه وفرمايل چې شطرنج | | | | | | | | |
| بالشطرنج | إِلَّا | خاطئ[3] | | | | | | |
| صرف هغه کس کوي چې خطا کار وي. | | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۵۰۹ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۱۹۷/۶ رقم الحديث ۷۸۸۸

[2] رقم الحديث ۴۵۱۰ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲۴۱/۵ رقم الحديث ۶۵۱۸

[3] رقم الحديث ۴۵۱۱ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲۴۱/۵ رقم الحديث ۶۵۱۹

## شطرنج يوه باطله لوبه ده

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾وعنهُ أَن سُئِلَ عَنْ لَعِبِ الشَّطْرَنْجِ فَقَالَ: هِيَ مِنَ الْبَاطِلِ |
| او د حضرت ابن شهاب نه روايت دي چې د هغې نه د شطرنج باره کې وپوښتلې شو، نو هغې ووېل چې دا لوبه يو باطل |
| وَلَا يُحِبُّ اللهُ الْبَاطِلَ. رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ [1] |
| څيز دي او الله باطل نه خوښوي. پاس ذکر شوي څلور روايتونه بهيهقي په شعب الايمان کې نقل کړي دي. |

**توضيح**: هدايه کې ليکلي شوي دي چې د حديثونو د وعيد له نظره شطرنج او نردشير کول مکروه تحريمي دي. جامع صغير کې يو روايت ذکر دی چې شطرنج کولو والا ملعون دی.

"**نساب الاحساب**" کتاب کې اما غزالی رحمه الله ليکلي دي چې د امام شافعي رحمه الله په نزد شطرنج کول مکروه دی. کېدی شي چې د امام شافعي رحمه الله نه دوه اقوال منقول وي. يو کې مباح او بل کې شطرنج مکروه دی. درمختار کې ليکل شوي دي چې دا قِسمه ټولي لوبي مکروه دي.

## په سپي او پیشو کې فرق

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي دَارَ قَوْمٍ مِنَ الْأَنْصَارِ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د ځينو انصارو کورته تللو. حال دا چې د هغې کورسره |
| وَدُونَهُمْ دَارٌ فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَيْهِمْ |
| د نورو خلکو کورونه هم ؤو، خو نبي عليه السلام به هلته نه تللو. د هغه خلکو دا خبره خوښه نه شوه چې نبي عليه السلام زمونږ په کاونډ کې |
| فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| د نورو خلکو کورته ځي او زمونږ کورونو ته نه راځي، نو هغه خلکو عرض وکړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! |
| تَأْتِي دَارَ فُلَانٍ وَلَا تَأْتِي دَارَنَا. |
| تاسو د فلاني کورته ځي خو مونږ کره نه راځي. زمونږ څه قصور دی چې زمونږ کور د ستاسو د راتللو د سعادت نه محرومه دی. |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لِأَنَّ فِي دَارِكُمْ كَلْبًا. |
| نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ستاسو کورته ځکه نه درځم چې تاسو کورونو کې سپي ساتلي شوي دي. |

---

[1] رقم الحديث ۴۵۱۲ اخرجه البيهقي في شعب الايمان ۲۴۱/۵ رقم الحديث ۶۵۱۸

قَالُوا: إِنَّ فِي دَارِهِمْ سِنَّوْرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: السِّنَّوْرُ سَبُعٌ. رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ[1]

هغوی عرض وکړو چې هغوی په کورونو کې پیشوګان ساتلي دي. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل پیشو درنده دی.

**توضیح**: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د انصارو ځینو کورونو ته تللو. لاره کې څه کورونه د انصارو حضراتو هم ؤو. د هغې نه مخکې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تګ په هغوی ګرانه شوه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولې مونږ کره نه راځي. چې مونږ ته دا لویې اعزاز حاصل شي. چا څه ښه ویلي دي.

*کُلا گوشۂ دهقان به آفتاب رسید چوں سایه بر سرش انداخت چوں تُو سلطانے*

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته معذرت وکړو چې تاسو په محله کې سپی ساتلی دی نو ځکه ستاسو محلې ته نهٔ راځم. هغه حضراتو وویل چې ته چې چرته ځې نو هغه خلکو خو په کورونو او محله کې پیشو دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جواب کې وفرمایل چې پشو درنده دی. دا د سپی پشان نه دی. سپی شیطان دی او د شیطان د فرښتو سره دښمني ده. پیشو شیطان نه دی نو دا په سپو باندې نه شي قیاس کېدلی.



---

[1] رقم الحدیث ۴۵۱۳ اخرجه الدارقطني في السنن ۶۳/۱ رقم الحدیث ۵ من کتاب الطهارة.

# کتاب الطب و الرقی
# د طب او د دَمو لو بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿کلوا واشربوا ولا تسرفوا﴾(سورة الاعراف: ۳۱)

وقال الله تعالیٰ: ﴿رب اعوذبك من همزات الشیاطین واعوذبك رب ان یحضرون﴾(المؤمنون: ۹۸،۹۷)

الطب: طا باندې کسره ده. علامه سیوطی رحمه الله فرمایي چې طا باندې زبرزیر او پیش درې واړه حرکات لوستل کېدی شي. "الطب هو علاج الامراض" یعنې د بیمارۍ علاج ته طب وایي. شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله په اشعة اللمعات کې لیکي "طب برحکات ثلاث ه علاج کردن" د همدې نه طبیب دی. چې معالج ته وایي. *وطَبٌّ طاطبیب وہر حاذِق درکار خو، ومتطبب علم طب خوانندہ وعمل کنندہ بدان کہ ہنوز حاذق نشدہ باشد وطب بکسرہ بمعنی سحر نیز آمدہ ومطبوب مسحور،* یعنې طب د زبر سره طبیب ته هم وایي او خپل کار کې هر ماهر ته وایي. متطبب د علم طب لوستونکی نو آزموده ته طبیب وایي. او طب د جادو په معنی کې هم راځي. فلان مطبوب یعنې فلانی باندې جادو شوی دی.
علامه طیبي رحمه الله د دې مادې متعلق یو شعر لیکلی دی.

**لکل داء دواء سیتطب بها — الا الحماقة اعیت من یداویها**

د طب دوه قسمونه دي:۱: طب جسماني ۲: طب روحاني.صحت د حفاظت او د مرض لرې کولو په غرض علاَج ته طب جسماني وایي. چې تعلق یې د ظاهري بدن سره دی او باطنې او روحانې مرضونه لکه کینهو حسد، حرص، لالچ، تکبر، غرور او بد اخلاق او عادتونه او د بد عملونو د لرې کولو لپاره چې کوم علاج کېږي. هغې ته طب روحانې وایي.نبي کریم ﷺ د بعثت اصل مقصد اکر که طلب روحانې ؤو خو دا چې د نبي کریم ﷺ راوړلی شوی شریعت کامل او پوره بلکې د ژوند اکمله ضابطه ده، نو ځکه نبي کریم ﷺ د طب جسمانې متعلق ډېر واضح انداز کې کافي مقدار پورې اصول او قواعد او بنیادې ضابطې د امت مخې ته ایښې دي.د دې تفصیل له نظره علماؤ لیکلي دي چې د طب د فن دوه مأخذ دي. یو مأخذ وحي الهې دی چې د وحي په ذریعه ځینې ځل نبي کریم ﷺ ته وویل شو چې د فلانې مرض علاج د فلانې څیز نه دی.د علم دویم مأخذ تجربه او مشاهده ده چې د په تجربې باندې کومه دوا د یو مرض لپاره ګټوره وي. حیات الحیوان کې لیکل شوي دي چې حضرت سلیمان علیه السلام به د کوم بوټې یا ونې خوا کې لمونځ وکړو نو بیا به یې د هغې نه وپوښتل چې ستا څه نوم دی نو هغې ورته نوم وویله. بیا به ترې نه هغې وپوښتل چې د کوم مرض لپاره دوا یې. هغې به ورته وویله، نو سلیمان علیه السلام به هغه لیکله. دغه شان طب عام شو. الخ.د جمهور امت په دې اتفاق دی چې د علاج په جواز باندې ډېرو دلائلو له نظره علاج کول

مستحب او جائز دی. ځېنې د اوچ قسمه صوفیان د علاج نه انکار کوي. او وایي چې د مرض راتلل په تقدیر کې لیکلی شوي دي. څوک چې د مرض علاج کوي ګویا کې هغه د تقدیر مقابله کوي. او د تقدیر مقابله جائز نه ده. لهذا علاج جائز نه دی. (مرقات ۲۸۷/۸)

د دې حضراتو د دې مفروضو لره هیڅ اعتبار نشته دی. او د دې جواب دا دی چې العلاج والدواء من قدر الله یعنې څنګه چې مرض په تقدیر کې لیکلی شوی دی، نو د هغې علاج او دوا هم په تقدیر کې لیکلی شوي دي البته که کوم کس د مضبوط توکل مالک وي او علاج کول نه غواړي نو علاج خو څه فرض نه دی. صرف مستحب امر دی. که کوي نو ودې کړي او نه یې کوي نو نه دې کړي، خو دې ته ناجائز ویل جائز نه دي. باقې په طب نبوی او د خلکو په طب کې دا فرق دی چې د طب نبوی نسخه د ښودلی شوي اصولو مطابق استعمال کړی شي و د هغې علاج یقیني شي او د نورو په طب کې علاج کې یقین نه وي. همدا هغه څیز دی چې ځېنې طبیبان په شک کې اچوي چې طب نبوی کې یوه نسخه د یو مرض لپاره ویل شوي وي خو هغه د طبیبانو په نزد د مرض بالکل برعکس وي. بلکې د مرض لپاره مضر وي. مثلاً شهدو سره دستونو سره راځي. اوس د دستونو د ختمولو لپاره د علاج په توګه شهد ورکول د عام فهم نه بالاتر دی، خو طب نبوی کې دا ویل شوي دي چې دا علاج دی. او ربښتیا هم دا علاج دی، ځکه دستونه د یوې فاسدې مادې په وجه راځي. او هغه فاسده ماده د شهدو په وجه لرې کېږي، لکه راروان حدیث ۸ کې دا قصه په تفصیل سره راروانه ده. طب نبوی کې په خاصه توګه دا قاعده په نظر کې ساتل پکار ده چې کله یوه دوا د یو مرض لپاره په خاصه توګه ویل کېږي، خو د هغې استعمال د نورو مرکباتو سره ملاؤول مقصود وي. کله کله د مفرد په حیثیت هم کار کوي، خو په عامه توګه د طب نبوی ښودلی شوي نسخه د نورو مرکباتو سره ملاؤول مقصود وي. البته د طب نبوی ښودلی شوی جزء د ټول معجون مرکب لپاره بنیاد او غټ جزوي. طب نبوی کې دا خیال هم ساتل پکار دي نبي کریم ﷺ چې د کوم مرض ذکر کړی دی. مرض همغه وي مثلاً د تبې لباره نبي کریم ﷺ غسل فائده مند ګڼلی دی، نو د هرې تبې لپاره ده نه دی. بلکې د خاص حجازي تبې لپاره دی. بهرحال مسلمان حکیمانو له دې موضوع باندې په بصیرت سره لیکل پکار دي چې طب نبوی باندې ملحدین اعتراض ونه کړی شي. د ډېر صدیوں نه چې انګریزان څنګه د مسلمانانو نورې اسلامي شعبې بدنامې کړي دي، نو دې ظالم دښمن د طب نبوی باندې حمله وکړه او د دې مقابله کې یې خپل د انګریزي طرز علاج راویستلو. او طب نبوی یې شکمن کړو. نن مسلمان ډاکټرانو خپل اسلامي تشخیص هېر کړی دی. هغوی هم د کافرانو سره یو ځای شي او په طب نبوی باندې اعتراضونه کوي. شیخ الفسیر مولانا احمد علی لاهوری رحمه الله په ملفوظات کې لیکلي دي چې د نوي عصری تعلیم په وجه انګریزانو زمونږ تاج پټ کړو، زمونږ دین یې پټ کړو او مونږه یې په دین باندې اعتراض کونکي پریښودلو. الخ.

دلته آخر کې دا خبره د هم د یادولو وړ ده چې علاج کولو کې ضروري دي چې خپل علاج کونکي په علاج باندې پوره اعتماد او یقین کول پکار دی. که په علاج کونکي باندې شک شو او یقین پرې نه ؤو نو علاج به هیڅ فائده نه کوي. بالکل همدغه شان په طب نبوی باندې هم پوره یقین او اعتماد ضروري دی. ګنې فائده به ونه کړي. وګورئ قرآن عظیم ته الله شفا ویلي ده. شهد یې شفا ګڼلي دي. زمزم شفا ده، خو د نیت

اخلاص او پوره اعتماد دلته هم ضروري دی ګنې هیڅ فائده به ونه کړي. یقین کونکو ته ژر فائده رسیږي.
بهرحال د بدن صحت په درې شیانو باندې قائم دی. ۱: د مضر صحت شیانو نه احتراز ۲: د صحت د اصولو مطابق د صحت خیال ساتنه ۳: د فاسد ګډون نه بدن پاک ساتل.

والرقی: د د رقیة جمع ده. دمونه کولو ته وایي. او منتر جنتر ته وایي. که دمونه کول د قرآن او حدیث د نصوصو او د هغې د وظائفو نه وی نو دې کې دا تفصیل دی چې که چرې د هغه کلام معنی معلومه نه وي نو په هغې دمونه کول جائز نه دی. او که د کلام معنی معلومه وي خو هغې کې شرکیه الفاظ وي نو دا هم ناجائز دي. او که د هغه کلام معنیٰ معلومه وي او د شریعت د تعلیماتو موافق وي او هیڅ د شرک او بدعت لفظ په کې نه وي نو په هغې دمونه کول جائز دي. باقي چې کومو حدیثونو کې د دمونه کول ممانعت راغلی دی نو د هغې نه ناجائزه دمونه کول مراد ی. معتزله د دمونه کول قائل نه دی. دې سلسله کې د یوې قصې کتنه وکړئ.
ما د خپل استاذانو نه یوه قصه اورېدلې ده. چې د الله والا یو سړی ؤ. چې نوم یې ابوالخیری ؤ. یو ورځ یې یو مریض دمولو چې یو روښانه خیال والا معتزلي هلته راغلو. او په ابوالخیری باندې یې اعتراض وکړو چې "اذا ترفض فتلا ش" یعنې دې دَم باندې به څه فائده وشي. دا خو یو پوکی دی. چې تا وکړو نو د هوا سره ګډوډ شو او ختم شو. د دې وجود پاتې نه شو، نو اثر به څه وکړي؟
هغه د الله والا دَم ودرولو او هغه معتزلي ته ډېر سخت بد الفاظ وویل. د متعزلي سترګې سرې شوې، د غوسې نه یې رګونه وپړسیدل او حالت یې ګډوډ شو، نو ابوالخیری ورته وویل چې څه وشول؟ هغه ورته وویل چې پوښتنه هم اوس کوې چې څه وشو. دومره کنځلې دې راته وکړې چې بدن کې مې اور ولېږېدلو. ابو الخیری ورته وویل چې دا خو یو پوکی دی. "اذا ترفض فتلاشی" هغې ورته وویل چې ماته سخت تکلیف راورسیدلو. هغه د الله والا ورته وویل چې زما په کلام کې دومره تاثیر دی، نو د الله په کلام کې به څومره تاثیر وي؟

## الفصل الاول.

## الله تعالی د هر مرض علاج پیدا کړی دی

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَنْزَلَ اللهُ | | |
| حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل الله تعالی نه ده راکوزه کړې | | |
| دَاءً | إِلَّا | أَنْزَلَ |
| او نه ده پیدا کړې، هیڅ یو داسې بیماري چې د هغې لپاره یې شفا نه وي رانازله کړې یعنې الله د هر مرض سره د | | |

لَهُ دَوَاء. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ (۱)

هغې علاج هم پیدا کړی دی. چې که هغه مرض ولړي نو د دې په ذریعه یې ورته شفا ورکړی شي.

## دوا فقط ظاهري سبب دی شفا الله ور کوي

﴿۲﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءٌ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د هرې بیمارۍ دوا شته دی.

فَإِذَا أُصِيبَ دَوَاءٌ الدَّاءَ بَرَأَ بِإِذْنِ اللهِ. رَوَاهُ مُسلم (۲)

لهذا کله چې دوا د بیمارۍ موافق شي نو بیماري د خدای په حکم یعني د هغې به مشیت او ارادې سره ښه شي.

**توضیح: برأ باذن الله:** د بیمارۍ نه روغېدلو ته برأ وايي.

د دې حدیث نه او د دې نه مخکښې حدیث نه دا خبره په واضح توګه معلومه شوه چې کله څوک بیمار شي نو علاج کول او دوا استعمالول مستحب دي، لکه څنګه چې د مریض کېدل د الله د تقدیر تابع دي نو دغه شان دوائي او د مرض ختمېدل هره جائزه ذریعه هم د الله د تقدیر تابع وي.

د دې حدیث نه دویمه دا خبره ثابته شوه چې د دوا استعمالولو نه وروسته اثر اچونکی او شفا ورکونکی د الله ذات او د هغې حکم دی. دوا صرف یو سبب او ذریعه ده. مؤثر حقیقي نه دی. همدا هغه څیز دی چې د هریو علاج او دم کولو لپاره د اصل په توګه او د قاعدې لحاظ ساتنه ضروري ده. د هیڅ یو دوا او دم مؤثر بالذات ګڼل صحیح نه دي. مؤثر حقیقي صرف او صرف د الله تعالی ذات دی. د هغې له اړخه دوا وغیره مستقل حکم کېږي، نو هله دوا اثر کوي. همدغه نظریه د عقائدو په کتابونو کې بیان کړی شوي ده. چې اشاعره او د ما تریدیه متکلمین وايي چې د خوراک او څښاک نه وروسته د الله تعالی مستقل حکم وي چې دا خوراک د هغه خوړونکي خېټه مړه کړي او اوبه د دې او به څښونکي تنده ختمه کړي. او که یو کس اور کې اوغورځېږي نو د غورځېدلو نه وروسته د الله له اړخه حکم راځي چې دا اوسوځوه ګنې اور به اثر نه کوي، لکه حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې اور اثر نه وُو کړی.

ملاعلي قاري رحمه الله د حمیدی په حواله یو روایت نقل کړی دی. چې خلاصه یې دا ده چې کله یو سړی بیمار شي نو الله یوه فرښته راولېږي. چې د هغې په لاس کې یوه پرده وي. فرښته د دې مرض او د دوا په مینځ کې حائل کړي. د هغې نتیجه دا راوځي چې بیمار کومه دوا هم استعمالوي هغه مرض ته نه لړي (شفا نه حاصلیږي) کله چې د الله مشیت وي چې بیمار ښه شي نو هغه فرښتې ته حکم کوي چې د مرض او دوا له مینځه پرده اوچته کړه. د هغې نه ورسته چې بیمار دوا استعمالوي

(۱) رقم الحدیث ۴۵۱۴ اخرجه البخاري في صحیحه ۱۰/۱۳۴ رقم الحدیث ۵۶۷۸ وابن ماجه في السنن ۲/۱۱۳۸ رقم الحدیث ۳۴۳۹.

(۲) رقم الحدیث اخرجه مسلم في صحیحه ۱۷۲۹ رقم الحدیث (۶۹-۲۲۰۴) واحمد في المسند ۳/۳۳۵.

نو الله د دې دوا په ذریعه شفا ورکړي. د دې ددوا ړو حدیثونو نه دا خبره معلومه شوه چې الله انسان چرته پیدا کړی دی نو په همغه ځای کې یې ورته د خوراک څښناک او د دوا انتظام کړی دی. چې په جړي بوټي او مېوؤ کې پټ دي. (مرقات۸/۲۸۷)

## درې شیانو کې شفاء ده

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الشِّفَاءُ فِي ثَلَاثٍ: |
| او حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل شفا په درې څیزونو کې ده. |
| فِي شَرْطَةِ مِحْجَمٍ أَوْ شَرْبَةِ عَسَلٍ |
| وینه ایستونکي خکر لګولو کې، یا شهد څښلو کې (هغه که خالص شهد وڅښلی شي یا په اوبو وغیره |
| أَوْ كَيَّةٍ بِنَارٍ وَأَنَا أَنْهَى أُمَّتِي عَنِ الْكَيِّ ". رَوَاهُ الْبُخَارِيّ [1] |
| کې ملاو کړی شي) او اور باندې داغولو سره، خو زه خپل امت د داغولو نه منع کوم. (بخاری) |

**توضیح: شرطة محجم**: شرطه د فعلته په وزن نشتر وهلو ته وایي، خو دلته صرف د ویشتلو لپاره استعمال کړی شوی دی. د نشتر مفهوم دې کې نشته دی، ځکه مخکې د محجم لفظ دی. چې د نائی د وسپني هغه آله ترینه مراد ده چې د هغې په ذریعه نائی بدن کې زخم کوي او وینه راوباسي. د ټولې جملې ترجمه شیخ عبدالحق په فارسۍ کې داسې کړې ده. "شفا درسه جیز است یکی درخون کشیدن است".

اردو کې د دې ترجمه داسې شوې ده. وینه ایستونکي خکر کې، ملاعلي قاري عربۍ کې د دې ترجمه داسې کړې ده. "**وهو الضرب علی موضع الحجامة لیخرج الدم منه**"(مرقات۸/۲۹۰)

**اوکیة بنار**: دریم څیز چې کوم کې شفا ده. هغه په اور باندې داغول دي. یعنې د داغ کولو والا آله یې ګرمه کړه. په هغې بیمار وداغلو یا یې مالوچ او اسپند ته اور ولګولو او داغ یې ورکړو. نن سبا هم د دې ماهرین دا کار کوي. او علاج کامیاب شي. (مرقات۸/۲۹۰)

**سوال**: د اور داغولو باندې علاج کولو نه په ځینې حدیثونو کې ممانعت راغلی دی، لکه د بحث لاندې حدیث کې دي، خو د ځینو روایتونو نه معلومېږي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم خپله د داغ په عمل باندې د ځینو صحابه کرامو رضی الله عنهم علاج کړی دی. د صحابه کرامو په معمولاتو کې هم د داغ عمل موندلی کېږي. دې روایتونو کې په ظاهره تعارض دی. د دې څه جواب دی؟

**جواب**: اصل حقیقت داسې دی چې د داغولو عمل د جائز علاجونو نه یو علاج دی، خو د دې نه د

[1] رقم الحدیث ۴۵۱۶ اخرجه البخاري في صحیحه ۱۰/۱۳۶ رقم الحدیث ۵۶۸۰ وابن ماجه في السنن ۲/۱۱۵۵ رقم الحدیث ۳۴۳۱

منع کولو څه خارجي وجوهات دي. اولنۍ وجه دا ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت باندې د رحمت او د شفقت په توګه د داغولو نه امت منع کړی دی چې ترڅو پورې بل علاج ممکن وي نو داغولو عمل اړخ ته تلل نه دي پکار، ځکه اور سخت څيز دی، خو چې بله کومه اسانه طريقه نه وي نو بيا په مجبورۍ کې معذورې ده.د ممانعت دويمه وجه دا ده چې د اغولو عمل عرب مؤثر بالذات ګڼې نو د دې غلطې عقيدې په وجه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داغول منع کړل. مطلق ممانعت نه دی.
درېيمه وجه دا ده چې زياته مبالغه او کيّ فاحش نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړی دی. د حاجت په قدر اجازت اول هم ؤو او اوس هم دی. لهذا حديثونو کې هيڅ تعارض نشته دی. (مرقات۸/۲۹۰)

## حديثو کې د داغولو ذکر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾وَعَن | جَابِرٍ | قَالَ: | رُمِيَ | أُبِي | يَوْمَ | الْأَحْزَابِ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې غزوه احزاب کې (چې غزوه خندق هم ورته وايي) په ورځ د ابی بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | |
| عَلَى | أَكْحَلِهِ | فَكَوَاهُ | | | | |
| په اندام باندې تير ولېږدلو چې وينه ترې نه رارونه شوه، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې له داغ ورکړو يعنې | | | | | | |
| رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ .رَوَاهُ مُسلم[1] | | | | | | |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زخم خولې د داغولو حکم ورکړو. يا يې په خپل لاس مبارک وداغلو چې وينه بنده شي. | | | | | | |

**توضيح**: الاحزاب: غزوه خندق او غزوه احزاب د يوې غزوې دوه نومونه دي. په څلورمه هجرۍ دا غزوه شوې وه. لس زره (۱۰۰۰۰) کافرانو مدينه منوره تر يوې مياشتې پورې محاصره کړې وه. د جانبي نو له اړخ د دوه په دوه جنګ نوبت د خندق په وجه نه ؤو راغلی. البته تير ويتشنه به کېدله. دې ډېر صحابه کرم زخميان شوي ؤو. حضرت ابی بن کعب په اکحل يعنې د څنګل په رګ لږېدلی ؤو. او حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم په تير لږېدلی ؤو. وينه نه بندېدله، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دواړو له داغ ورکړو. که دا د څټ سره وي نو د هغه نوم راخيژي. چې څنګل ته دا رګ راشي نو د دې نوم اکحل شي. او دا رګ چې کله ورون او پونډۍ ته راشي نو د دې نوم النساء شي چې د عرق النساء په نوم مشهور دی. (مرقات۸/۲۹۱)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْهُ | قَالَ: | رُمِيَ | سَعْدُ | بْنُ | مُعَاذٍ | فِي | أكحله |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د حضرت سعد ابن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هفت اندام رګ باندې غشی ولګيدلو (چې وينه | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۵۱۷ اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۷۳۰ رقم الحديث (۷۴-۲۲۰۷) واحمد في المسند۳/۳۰۳

فحسمه النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ بِمِشْقَصٍ

ترینه جاري شوه، نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل لاس مبارک باندې د غشي په څوکه په ذریعه

ثُمَّ ورمت فحسمه الثَّانِيَة. رَوَاهُ مُسلم[1]

(زخم له) داغ ورکړو. بیا چې د هغې په لاس زخم راغلو نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیا و داغلو. (مسلم)

﴿٦﴾ وَعَنْهُ قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أُبَيِّ بن كَعْب طَبِيباً

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابی ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یو طبیب ولېږلو.

فَقَطَعَ مِنْهُ عِرْقًا ثُمَّ كَوَاهُ عَلَيْهِ. رَوَاهُ مُسلم[2]

طبیب د هغې یو رګ غوڅ کړو او هغه (زخم) باندې یې داغ ورکړو.

## د کلونجي خاصیت

﴿٧﴾ وَعَن أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:

او د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې

فِي الْحَبَّةِ السَّوْدَاءِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ إِلَّا السَّامَ. قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: السَّامُ: الْمَوْتُ

توره دانه د سام نه بغیر د هرې بیمارۍ لپاره شفا ده. ابن شهاب بیان وکړو چې د سام نه مرګ مراد دی.

وَالْحَبَّةُ السَّوْدَاءُ: الشُّونِيزُ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[3]

او د تورې دانې نه کلونجي مراد ده.

**توضیح**: **الحبة السوداء**: د تورې دانې نه کلونجي مراد ده. دا د یو بوټي تخم دی. د دې وزن او رنګ روغن او خوند بالکل د پیازو د تخم پشان دی. شک پرې کېږي چې همدغه کلونجې ده خو دا کلونجي نه ده. بلکې کلونجي د پنجاب په علاقو کې پیدا کېږي. دا باقاعده ریبل کېږي. د دې بوټی وړوکی شان وي. (مرقات۸/۲۹۲) **السام**: مرګ ته وايي. (مرقات۸/۲۹۲)

**الشونیز**: دا د کلونجي د بوټي اصل نوم دی. د علامه طیبي رحمه الله خیال دی چې د کلونجي صرف د هغه مرضونو علاج دی چې د رطوبت او د بلغم د مرضونو نه پیدا کېږي، ځکه د کلونجي

---

۴۵۸۲ والترمذي في السنن ۱۲۲/۴ رقم الحديث ۱۵۸۲. رقم الحديث (۷۵-۲۲۰۷)
(۱) رقم الحديث ۴۵۱۸ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۳۱/۴ رقم الحديث (۷۵-۲۲۰۷) وابوداود في السنن ۱۰۷/۴ رقم الحديث ۳۸۶۴.
(۲) رقم الحديث ۴۵۱۹ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۳۰ رقم الحديث (۷۳-۲۲۰۷)
(۳) رقم الحديث ۴۵۸۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴۳/۱۰ رقم الحديث (۵۶۸۸) ومسلم في ۱۷۳۵/۴ رقم الحديث (۸۸-۲۲۱۵)

مزاج اوچ او ګرم دی، نو طبائع مرطوبه بلغمیه لپاره مفید دی. عام نه دی، خو د علامه طیبي رحمه الله نه بغیر نو ټول شارحین دا په عموم باندې حمل کوي او وايي چې ربښتیا کلونجي د مرګ نه بغیر د هرې بیمارۍ لپاره شفا ده، خو هغه توګه شفا ده چې نورې دوايانې د دې سره ملاو شي او د کلونجي جزء هغې مهم او ډېروي. علامه کرماني فرمايي چې دا حدیث په عموم کې دی، نو ځکه عامه معنی اخستل زیاته بهتره ده. کلونجي باندې خلکو مستقل کتابونه لیکلي دي. د بیشماره مریضتیاګانو لپاره د دې خاص خاص نسخې تجویز کړې شوي دی. (مرقات۸/۲۹۲)

## شهدو کې شفاء ده

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| او حضرت ابو سعید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ورځ د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ په خدمت کې یو کس حاضر شو او | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | أَخِي | اسْتَطْلَقَ | بَطْنُهُ | فَقَالَ | رَسُولُ اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| وې ویل چې زما د ورو خیټه سوځي یعنې باندې دستونه دي. نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل چې هغه | | | | | | | | |
| اسقيه | عسلاً | فَسَقَاهُ | ثُمَّ | جَاءَ | | | | |
| باندې شهد وڅښنه. هغه کس (لاړو او) په خپل ورور یې شهد وڅښل (لږ ساعت وروسته) بیا راغلو | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | سَقَيْتُهُ | فَلَمْ | يَزِدْهُ | | | | | |
| او وې ویل چې ما پرې شهد وڅښل خو شهدو د دې نه بغیر نور هیڅ کار ونه کړو چې د هغې په خیټه کې بهیدل او زیاتوالی وکړو. | | | | | | | | |
| إِلَّا | اسْتِطْلَاقًا | فَقَالَ | لَهُ | | | | | |
| یعنې شهد د څښلو نه وروسته پرې دستونه نور هم زیات شول. نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ هغه کس ته | | | | | | | | |
| ثَلَاثَ | مَرَّاتٍ. | ثُمَّ | جَاءَ | الرَّابِعَةَ | | | | |
| درې ځل دا حکم وکړو تردې چې هغه په څلورم ځل راغلو او وې ویل چې د هغې دستونه زیات شوي دي، | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | اسْقِهِ | عَسَلًا | فَقَالَ: | | | | | |
| نو نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ورته بیا وفرمایل چې هغه باندې شهد وڅښنه. هغې عرض وکړو چې ما | | | | | | | | |
| لَقَدْ | سَقَيْتُهُ | فَلَمْ | يَزِدْهُ | إِلَّا | اسْتِطْلَاقًا | | | |
| پرې شهد وڅښل خو شهدو د دې نه بغیر بل هیڅ کار نه دی کړی. چې د هغې په خیټه بهیدل یې نور زیات کړي دی، | | | | | | | | |
| فَقَالَ | رَسُولُ اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: | صَدَقَ اللهُ | وَكَذَبَ | بَطْنُ | أَخِيكَ. |
| نو نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې الله خو ربښتیا ویلي دي خو ستا د ورور خیټه دروغ جنه ده. آخر دا چې هغه کس | | | | | | | | |

| |
|---|
| فَسَقَاهُ فَبَرَأَ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| بيا خپل ورور باندې شهد وڅښل (خالص يا يې او اوبو کې ملاو کړل او پرې وې څښل) نو هغه شه شو. |

**توضيح**: **غسلاً**: خلکو او د عامو طبيبانو خيال ؤو. چې شهد خپله مسهل دی. دستونو والا مريض لپاره ښه نه دې، خو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شهدو باندې زور کولو. او د طبيبانو ظاهري مشاهده يې رد کوله. چې علاج پرې وشو نو بيا طب او طبيبانو ؤمنله چې د خيټې د دستونو اصل علت کولمو کې يوه فاسده ماده وي. چې ترڅو پورې هغه نه وي ختمه شوې، بيماري نه ختمېږي. شهد سره دستونو پسې دستونه کېدلو سره آخر کې هغه فاسده ماده ختمه شي نو هلته علاج پوره شي. دا حقيقت به طبيبانو نۀ پېژندلو. حال دا چې دا علاج بالمثل دی. او د طبيبانو په نزد دا يو پوره حقيقت دی. د کتاب الطب په ابتداء کې دې باندې کلام شوی دی. (مرقات۸/۲۹۳)

کلونجي او شهدو په برکت باندې يقين کولو سره شفا هم حاصلېږي. صحابه کرامو د مختلفو مرضونو لپاره کلونجي استعمال کړې ده. بلکې ظاهري بدن باندې د شهدو منبلو سره به يې علاج کولو. زخم باندې د شهدو پټئ عجيب الاثر دی، خو په دې شرط چې شهد خالص وي. خالص شهد دا وخت په کراچۍ په اته سوه (۸۰۰) روپئ يوه کلو ده. (مرقات۸/۲۹۳)

## د قسط فائدې

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَمْثَلَ مَا تَدَاوَيْتُمْ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم څيزونه چې تاسو د دوا په |
| بِهِ الْحِجَامَةُ وَالْقُسْطُ الْبَحْرِي (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| توګه اختيار وئ هغې کې بهترين څيز ښکر لګول او د بحري قسط استعمالول دي. (بخاري ومسلم) |

**توضيح**: **القسط**: دا د يو جړې نوم دی. چې "ګوټ" هم ورته وايي. کېدی شي چې کوټ عربي قسط وي. دا د يو دوا نوم دی. چې په لرې لرې ځنګلونو کې وي. وړوکې شان بوټی دی. د هغې جړله ده. د کشمير په علاقو کې زياته وي. خاص کر کيل او د ذواريه په ځنګلونو کې ډېر دي. د انګريزانو په زمانه کې د دې په راويستلو باندې سخته پابندي وه. د ۳۰۲ کيس به پرې ؤو. د طبيبانو په نزد د قسط بيشماره فايدې دي. د دې دوه قسمونه دي. يو قسط بحري دی. چې سپين رنګ کې وي. دويم قسط هندی دی چې رنګ يې تور سور رنګی وي. قسط بحري زيات مفيد دی. د بحث لاندې حديث کې قسط بحري په بهترين دواګانو کې شمارل شوی دی. (مرقات۸/۲۹۵)

---

(1) رقم الحديث ۴۵۲۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۹/۱۰ رقم الحديث ۵۶۸۴ ومسلم في ۱۷۳۶/۴ رقم الحديث (۹۱-۲۲۱۷)

[illegible] ۱۸۰/۱۰ رقم الحديث ۵۶۹۶ ومسلم في ۱۲۰۴/۳ رقم الحديث (۶۳-۱۵۷۷)

## "كوټ" سره د ماشومانو د مخصوصي ناروغئ "عذره" علاج

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُعَذِّبُوا صِبْيَانَكُمْ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل تاسو د خپلو ماشومانو بيماري په لاس |
| بِالْغَمْزِ مِنَ الْعُذْرَةِ عَلَيْكُمْ بِالْقُسْطِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [1] |
| يا په تو تې سره زور كولو باندې د عذره نه هغوى ته سزا مه وركوئ، تاسو لره د قسط استعمال پكار دى. |

**توضيح: الغمز:** لاس باندې زور وركولو ته غمز وايي. (مرقات ۸/۲۹۶)

**العذرة:** عين باندې پيش دى. ذال ساكن دى. را باندې زبر دى. د شودو ماشومانو په تالو او مرئ كې يوه بيماري وي. عذره د هغې نوم دى. د هغې سبب د وينې هيجان وي. د ماشومانو مورګانې د ماشومانو په تالو كې ګوته اومنډي او تالو له زور وركوي. چې د پورې په لاره ترېنه توره وينه راؤوځي. دې عمل باندې سره ماشومانو ته ډېر تكليف وي. نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې علاج په ځاى اسان علاج وښودلو چې قسط حل كړئ او د هغې اوبه حاصلې كړئ او د ماشوم په پوزه كې يې وڅځوئ. دا اوبه د جمع شوي وينې ځاى ته ورسيږي، نو اوچې شي. ماشوم ته شفا حاصله شي.

دلته هم طبيبان حيران شو چې قسط خو سخت ګرم دى. او دا بيماري هم د ګرمئ نه پيدا كېږي. د دې لپاره يې قسط څنګه تجويز كړو. د دې جواب دا وركړى شوى دى چې دا وينه او د دې هيجان اصل كې د بلغم په وجه كېږي. ګوياكې د دې بيمارۍ اصل فاسده ماده بلغم دى. او قسط سره بلغم ختمېږي. لهذا دا د دې بهترين او اسان علاج دى. (مرقات ۸/۲۹۶)

## "كوټ" باندې د ذات الجنب علاج

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أُمِّ قَيْسٍ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: عَلَى مَا تَدْغَرْنَ أَوْلَادَكُنَّ |
| او حضرت ام قيس فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو د خپلو ماشومانو علاج ولې |
| بِهَذَا الْعِلَاقِ؟ عَلَيْكُنَّ |
| داسې په زرو وركولو باندې كوئ. بلكې تاسو له د دې علاج په عود هندي يعنې د كوټ ذريعه |
| بِهَذَا الْعُودِ الْهِنْدِيِّ فَإِنَّ فِيهِ سَبْعَةَ أَشْفِيَةٍ مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ |
| كول پكار دى، ځكه عود هندى كې د اؤوه (۷) مرضونو شفا ده. چې هغې كې يو ذات الجنب دى. |

---

[1] رقم الحديث ۴۵۲۳ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۵۰ رقم الحديث ۵۶۹۶ ومسلم في ۳/۱۲۰۴ رقم الحديث (۶۳-۱۵۷۷)

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُسْعَطُ | مِنَ | الْعُذْرَةِ | وَيُلَدُّ |
| عذره په صورت کې لوګۍ وکړې شي او ذات الجنب په صورت دې لدود کړې شي (يعنې د | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | ذَاتِ | الْجنب | (مُتَّفق | عَلَيْهِ) | [1] |
| ذات الجنب بيماري لري کولو لپاره عود هندي په اوبو کې حل کولو باندې د زخم اړخ ته خوله کې وڅڅوئ). | | | | | |

**توضيح: تدغرن**: د تفعلن په وزن باندې دی. دا د دغر نه دی. منډلو يا د زور ورکولو په معنی کې دی، لکه څنګه چې د غمز لفظ مخکې تېر شوی دی. (مرقات۸/۲۹۶)

العلاق: دې عين باندې درې واړه حرکات رائحي. د زبيښلو په معنی کې دی. دا هم د دغر په معنیٰ کې دی. زور ورکول يا د زبيښل مراد دی. يعنې تاسو ښځې ولې او په کومه وجه د خبلو ماشومانو په تالو کې ګوته ور دننه کړئ او زور ورکوئ او دوی په سخت تکليف کې اخته کوئ. تاسو عود هندی ولې نه استعمالوي چې د دې بيمارۍ نه بغير په کې د نورو بيمارياںو علاج هم په کې دی. عود هندی د همدغه قسط او د کوټ نوم دی. (مرقات۸/۲۹۷)

**ذات الجنب**: دا بيماري په دوه قسمه ده. يو دا چې سينه کې دننه د عضلاتو په وجه ورم راشي. دا خطرې صورت دی. او مهلک مرض دی. دويم قسم دا چې په اړخ کې باد جمع شي او درد پيدا شي. عود هندی او قسط هندی د دې دويم قسم ذات الجنب لپاره مفيد دی، ځکه عود هندی د رياحی مرضونو لپاره دوا ده. د ذات الجنب د علاج لپاره عود هندی په اوبو کې حل کولو سره په دورمه باندې په خوله کې وڅڅولی شي. (مرقات۸/۲۹۷)

**سبعة اشفية**: يعنې د اؤوه مرضونو علاج په قسط کې موجود دی. د دوؤ (۲) ذکر نبي کريم ﷺ وکړو. د پاتې پنځو نوم يې نه دی اخستی. کېدی شي چې په خلکو کې هغه مرضونه مشهور ؤو. او دا ياد وساتئ چې د قسط دوا صرف د هغه اؤوه مرضونو په علانج کې منحصر نه دی. نبي کريم ﷺ تذکره د اوؤ (۷) کړې ده. د نورو يې نفې کړې ده، ځکه قسط په څلورمه ورځ باندې د تبې لپاره مفيد دی. د مازغو د قوت لپاره مفيده ده. اعضائې رئيسه لپاره مفيد دی. فالج، لقوه، رعشه لپاره مفيد دی. د خيتې چنجو لپاره مفيد دی. د نارينه قوت لپاره مفيد دی. د رياحی مرضونو لپاره مفيد دی. وبائی امراض لپاره مفيد دی. د مخ چاودلو لپاره مفيد دی. (مرقات۸/۲۹۷، مظاهر حق جديد)

---

[1] رقم الحديث ۴۵۲۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۶۶ رقم الحديث ۵۷۱۳ ومسلم في ۴/۱۷۳۴ رقم الحديث (۸۶-۲۲۱۴)

## په اوبو باندې د تبې علاج

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا او حضرت ابن خديج رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې

قَالَ: الْحمى من فيح جهنم فَأَبْرِدُوهَا بِالْمَاءِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل تبه د جهنم د ګرموالي نه ده. لهذا تاسو دا په اوبه يخوئ.

**توضيح**: من فيح جهنم: يعنې تبه د دوزخ د اور د ګرموالي نمونه ده. دې كلام كې تشبيه بيانول مقصود دې چې د تبې حرارت او ګرموالى د دوزخ د حرارت او د ګرموالي پشان دى. د دې حرارت د ماتولو لپاره بهترين علاج اوبه دي، ځكه د اوبو په طبيعت كې برودت دى. دا برودت دغه حرارت ماتوي.
دا خبره ياد وساتئ چې د تبې ډېر قسمونه دي. د ځينې تبې لپاره اوبه فائده مندې ثابت شي. ما يو ځل سخته تبه كې غسل وكړو. اوس لا د غسل نه فارغ شوى نه ؤوم چې تبه ختمه شوه، خو د ځينې تبې لپاره اوبه او غسل ډېر زيات نقصاني وي. لهذا دې ارشاد نبوى لپاره ضروري دي چې سړى اول هغه تبه معلومه كړي چې د كومې لپاره غسل فائده مند وي. حجاز مقدس كې به حجازي تبه وه. د هغې لپاره اوبه مفيد وي. هسې په عامو تبو كې د يخو اوبه پټۍ او بدن باندې واوره مښل مفيد وي.

## بدنظرۍ لپاره د دم په ذريعه سره د علاج اجازت

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرُّقْيَةِ مِنَ الْعَيْنِ وَالْحُمَةِ

او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دم په ذريعه د بد نظرۍ، چيچلي شوي و

وَالنَّمْلَةِ. رَوَاهُ مُسلم[2]

ميرانو علاج كولو اجازت كړى دى.

**توضيح**: رخص: د اجازت وركولو په معنى كې دى. او د دم كولو ممانعت ؤو چې چرته د جاهليت الفاظ دې كې را نشي. چې دا خطره پاتې نه شوه نو اجازت ملاو شو. رخص د ممانعت نه وروسته اجازت ته وايي.

**فى الرقية**: يعنې د دم كولو اجازت يې وكړو. (مرقات ۳۰۱/۸)

**العين**: بدنظرۍ ته وايي. د ځينو خلكو سترګو كې په قدرتي توګه د بدنظرۍ داسې جراثيم وي. چې د نظر لږېدلو سره په نظر لږېدونكي باندې پرېوځي، نو هغه متاثره شي. د ځينو جراثيم ډېر تيز او سخت وي، نو د هغې بد نظرې زيات مضر وي. عربو كې د بنو اسد خلك دې ډېر مشهور ؤو. هغوى كې

---

[1] رقم الحديث ۴۵۲۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۰/۶ رقم الحديث ۳۲۶۳ ومسلم في ۱۷۳۲/۴ رقم الحديث (۸۱-۲۲۱۰)

[2] رقم الحديث ۴۵۲۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۲۵/۴ رقم الحديث (۵۸-۲۱۹۶) والترمذي في ۳۲۴/۴ رقم الحديث ۲۰۵۶

ځینې داسې ؤو چې کور کې به یې ښځې ته وویل چې په نغري باندې پتلیه کېږده او اوس غوښه راوړم. دې ویلو سره به بهر اوؤتلو او په کوم ځناور به یې نظر ولړولو نو هغه ځناور به مړ شو، نو خلکو به د هغې غوښه تقسیم کړه. هره علاقه کې داسې خلک وي. زمونږ ځای کې هم یو داسې کس ؤو. هغې یو ښایسته ګول کانی ولیدلو او وي ویل چې دا څومره ښایسته کانی دی. کانی په جومات کې ایښودلی شوی ؤو. د عامو خلکو مخکې هغه کانی ژر مات شو او دوه ټوټې شو. (مرقات۸/۳۰۲)

**الحمة**: اصل کې زهرو ته وایي. بیا د دې اطلاق د لړم په ټک وهلی شوي باندې وشو ځکه هغې کې هم زهر وي. (مرقات۸/۳۰۲)

النملة: اصل کې میږي ته وایي. دلته د بدن په غاړو باندې وړو دانو لپاره ویل شوی دی، ځکه دا دانې هم د میږانو پشان بدن باندې ښوریږي. کله د پولۍ او دانو په شکل کې راځي. راتلونکي حدیث نمبر ۴۷ کې د دې تفصیل موجود دی. (مرقات۸/۳۰۲)

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَن عَائِشَة قَالَتْ: أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَرْقِيَ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم حکم وکړو چې مونږ د بد نظرۍ د اثر |
| مِنَ الْعَيْنِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| لرې کولو لپاره دم وکړۍ. |
| ﴿۱۵﴾وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي بَيْتِهَا جَارِيَةً |
| او د حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دی چې یو نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغې په کور کې یوه جینۍ ولیدله |
| فِي وجهها سفعة يَعْنِي صُفْرَةً فَقَالَ |
| چې په مخ یې زیړې زوانکي وي، نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې دې باندې دم اوایه. یعني |
| اسْتَرْقُوا لَهَا فَإِنَّ بِهَا النَّظْرَةَ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2]: |
| اس د دې دم وکړه، ځکه دا نظره شوې ده. |

**توضیح**: سفعة: د مخ زیړوالي ته سفعة وایي. سی باندې زبر دی او "فا" ساکن دی. عین باندې زبر دی. سین باندې پیش هم ویل شوی دی. د دې ترجمه د علامة الشیطان نه هم شوې ده. او ضربة وحدة یعني د شیطان د څپړې وهلو نه هم شوې ده. راوي په زیړ زنګ سره ترجمه کړې ده. شیخ عبدالحق د مخ د توروالي سره هم ترجمه کړې ده. مراد ترینه د شیطان بد نظرې ده. او د پیریانو

---

([1])رقم الحدیث ۴۵۲۷ أخرجه البخاري في صحیحه ۱۹۹/۱۰ رقم الحدیث ۵۷۳۸ ومسلم في ۱۷۲۵/۴ رقم الحدیث (۵۹-۲۱۹۵)

([2])رقم الحدیث ۴۵۲۸ أخرجه البخاري في صحیحه ۱۹۹/۱۰ رقم الحدیث ۵۷۳۹ ومسلم في ۱۷۲۵/۴ رقم الحدیث (۵۹-۲۱۹۷)

بدنظرې د انسانانو د بد نظرې نه بدتره وي. د لغت کتابونو کې د سفعة اطلاق د مخ په تورو دانو باندې کېږي. مشهوره همدغه ده. (مرقات۸/۳۰۳)

## هغه دم کول جائز دي چې په هغې کې خلاف شرع الفاظ نه وي

﴿۱۶﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرُّقَى

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دم ويل او دم كولو نه منع كړې ده، نو

فَجَاءَ آلُ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ فَقَالُوا:

عمرو ابن حزم خاندان خلک چې د عامو دمونو په ذريعه به يې دم کولو حاضر شول او عرض يې وكړو

يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُ كَانَتْ عِنْدَنَا رُقْيَةٌ نَرْقِي بِهَا مِنَ الْعَقْرَبِ

چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! مونږ سره يو دم دی چې مونږ يې د لړم په چيچلو باندې وايو.

وَأَنْتَ نَهَيْتَ عَنِ الرُّقَى فَعَرَضُوهَا عَلَيْهِ

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه دمونو نه منع كړل. د هغې نه وروسته هغوی دم وويله او نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې واورولو

فَقَالَ: مَا أَرَى بِهَا بَأْسًا

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (منتر اوريدلو سره) وفرمايل چې دې منتر کې هيڅ باک نشته دی. تاسو کې

مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَنْفَعَ

چې كوم يو كس خپل ورور ته فائده رسولی شي نو هغه ورته ضرور فائده ور رسوئ (هغه که د دم

أَخَاهُ فَلْيَنْفَعْهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1]

کولو په ذريعه او که په بله کومه طريقه وي خو په دې شرط چې د شريعت خلاف خبره نه وي).

**توضيح**: ابتدائی بحثونو کې داسې حديث باندې پوره کلام شويدی چې کوم دم جائز دی او کوم دم ناجائز دی. د دم کولو لپاره يوه ضابطه ليکلې شوې ده.

## د بدنظرئ علاج د شفاء په شپږو آيتونو

﴿۱۷﴾وَعَن عوفِ بن مَالك الْأَشْجَعِيّ قَالَ: كُنَّا نَرْقِي فِي الْجَاهِلِيَّةِ

او حضرت عوف ابن مالک اشجعی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ به د جاهليت زمانه کې (د دم په ذريعه

[1] رقم الحديث ۴۵۲۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۹/۱۰ رقم الحديث ۵۷۳۹ ومسلم في ۱۷۲۵/۴ رقم الحديث (۵۹-۲۱۹۷)

| |
|---|
| فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ تَرَى |
| دم لوستلو. بيا چې كله اسلام راغلو نو مونږ عرض وكړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! تاسو د دمونو باره كې څه حكم |
| فِي ذَلِكَ؟ فَقَالَ: اعْرِضُوا عَلَيَّ رُقَاكُمْ لَا بَأْسَ بِالرُّقَى مَا لم يكن فِيهِ شرك. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| كوى؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې تاسو هغه دم ماته او ايئ چې كوم كې شرك نه وي نو زه يې هيڅ باك نه كنم. |

**توضيح** مالم يكن فيه شرك: ابتدائي بحثونو كې تفصيل ليكلى شوى دى چې كوم يو دم جائز دى او كوم يو ناجائز دى. او د دې ضابطه څه ده. دلته همغه ضابطې ته اشاره ده چې كوم دم كې شركيه كلمات نه وي نو هغه جائز دي كنې ناجائز دي.

**حكايت**: شيخ عبدالحق محدث دهلوى په اشعة اللمعات كې د د حديث د لاندې يوه قصه ليكلې ده. چې شيخ ابو القاسم قشيرى رحمه الله بيان كړى دى چې يو ځل زما ماشوم ډېر زيات بيمار شو تردې چې مونږ د هغې د ژوند نه نااميده شو. دې دوران كې ما نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوب كې وليدلو. ما ورته د ماشوم د بيمارۍ شكايت وكړو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ته د شفا د آيتونو ولې غافل يې؟ زه چې راويښ شوم نو ما قرآن كې د شفا آيتونه ولټول چې ټول شپږ (۶) آيتونه راته ملاو شول. ما هغه په كاغذ وليكل او اومې وينځل او اوبه مې په ماشوم وڅښلې. ماشوم ژر داسې اودرېدلو. چې ګوياكې د هغې د پښو بند كولاو شو. هغه شپږ آيتونه دا دي. چې د نيم آيت په شكل كې دي: ١: **ويشف صدور قوم مؤمنين** (سورة التوبه: ١۴) ٢: **وشفاء لما في الصدور** (سورة يونس: ۵٧) ٣: **يخرج من بطونها شراب مختلف الوانه فيه شفاء للناس** (سورة نحل: ۶٩) ۴: **وننزل من القرآن ما هوا شفاء ورحمة للمؤمنين** (سورة بني اسرائيل: ٨٢) ۵: **واذا مرضت فهوا يشفين** (سورة الشعراء: ٨٠) ۶: **قل هوا للذين آمنوا هدى و شفاء** (سورة حم سجدة: ۴۴)

## نظره كيدل يو حقيقت دى

| |
|---|
| ﴿١٨﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| الْعَيْنُ حَقٌّ فَلَوْ كَانَ شَيْءٌ سَابَقَ الْقَدَرَ |
| چې بد نظرې حق دى (يعنې نظر لږېدل يو حقيقت دى) كه تقدير باندې مخكې كېدونكى يو څيزوى |

---

[1] رقم الحديث ۴۵۳۰ اخرجه مسلم في صحيحه ۴/١٧٢٧ رقم الحديث (۶۴-٢٢٠٠) وابوداود في السنن ۴/٢١۴ رقم الحديث ٣٨٨۶.

سَبَقَتْهُ الْعَيْنُ وَ إِذَا اسْتُغْسِلْتُمْ فَاغْسِلُوا . رَوَاهُ مُسْلِم[1]

نو هغه به نظر وی او چې تاسو نه د وينځلو مطالبه وکړی شي نو تاسو يې وينځئ. (مسلم)

**توضیح: العین حق:** يعنې بد نظرې لږېدل يو حق او يو حقيقت دی. دا هيڅ وهم او توهم نه دی. چې د کتونکي به سترګو کې يو څيز بنه ولري نو د هغې اثر د کتل شوي څيز ته ورسيږي. او هغه متاثر شي. ګويا کې د سترګو نه د وائرس په شکل يو مسموم زهرجنه ماده وځي او د جراثيمو په شکل کې لاړ شي او د کتل شوي بدن سره پيوسته شي او اثر کوي، لکه څنګه چې د ځېنو مارانو په سترګو کې الله دا تاثير ايښى دی چې هغه په نظر باندې د ليدل شوي اړخ ته زهر انتقال کړي، لکه څنګه چې به تېر شوي بابونو کې د ځېنو مارانو باره کې حديثونو کې ذکر شوی دی. دلته که د وائرس او جراثيم مخې ته کوم شي موجود شي نو د هغې اثر ليدلی شوي ته رسي. مثلاً که د ليدلی شوي څيز سره د نظر تعويد وي يا بله کومه وظيفه وي. معتزله وايي چې بد نظرې هيڅ حقيقت نه لري. دا صرف انسانې وهم دی، ځکه په تقدير کې څه ليکلی شوي دي همغه به کېږي. د بدنظرۍ دخل په تقدير کې نه شي کېدلی. علماء حق فرمايي چې د معتزلو خيال غلط دی. او د نظر لږېدل د قرآن نه ثابت دي او حديثونو کې د ډېر وضاحت دی، نور د بدنظرۍ او تقدير په مينځ کې هيڅ تضاد نشته دی. بلکې خپله دا بد نظرې د الله د مقدراتو نه دی. (مرقات ۸/۳۰۵)

**سابق القدر:** يعنې دې کائنات کې هر څه دي. هغه ټول د الله د تقدير په دائره کې دي. هيڅ يو شی د تقدير د ګرفت نه بهر نه دی. باالفرض که کوم داسې يو شی وی چې هغه د تقدير دائره ماته کړي او مخکي تلی شوی نو هغه به بدنظرې وی خو د تقدير د دائرې نه بهر هيڅ يو شی نشته دی. لهذا بدنظرې هم د تقدير د دائرې دننه دی. (مرقات ۸/۳۰۵)

**واذا استغسلتم:** يعنې که يو کس داسې دی چې د هغې نظر لږېږي او خلکو کې معروف او مشهور دی او د هغې نظر په چا ولږېدلو نو د نور ډېرو علاجو نه بغير نبي کريم ﷺ يو علاج ښودلی دی چې د عاين نه دي مطالبه وکړی شي چې ته غسل وکړه او اوبه په تَش وغيره کې محفوظ کړه او بيا يې نظره کړی شوي ته ورکړه. هغه به دې اوبو باندې غسل وکړي نو صحيح به شي. په راتلونکي حديث نمبر ۴۸ کې د دې تفصيلي واقعه راروانه ده. (مرقات ۸/۳۰۵)

: زير بحث حديث مطلب همدغه دی چې کوم کس نظره شي او که هغه د نظر لږېدونکي نه دا مطالبه کړي چې ته غسل وکړه او اوبه ماته راکړه نو هغې له ژر داسې کول پکار دي او دا جهالت کول پکار دی چې دې کې زما بې عزتې ده. د اسلام نه مخکې به د عرب خلکو همدغه شان کول. اسلام

---

[1] رقم الحديث ۴۵۳۱ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۱۹/۴ رقم الحديث (۴۲-۲۱۸۸) والترمذي في السنن ۳۴۷/۴ رقم الحديث ۲۰۶۲.

هم دا عمل جاري وساتلو. دې کې به تاثير وي ګڼې کم نه کم دا فائده خو به کېږي چې د نظره شوي وهم به لرې شي چې اوس به په ما نظر اثر نه کوي.

## الفصل الثاني

### د بوډاوالي نه بغير د هر مرض علاج شته

| | |
|---|---|
| ﴿۱۹﴾عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ: قَالُوا: يَا رَسُول الله | حضرت اسامه ابن شريک رضي الله عنه فرمايي چې څېنو صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض وکړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! |
| أفنتداوى؟ قَالَ: نعم يَا عبد اللهِ تَدَاوَوْا | آيا مونږ بيمارۍ کې دوا او علاج وکړو. نبي عليه السلام وفرمايل چې ای د الله بنده ګانو علاج وکړئ ځکه دا سې هيڅ |
| فَإِنَّ اللهَ لَمْ يَضَعْ دَاءً إِلَّا وَضَعَ لَهُ شِفَاءً غَيْرَ دَاءٍ وَاحِدٍ الْهَرَم . رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[1] | بيماري نه ده پيدا کړې چې د هغې لپاره يې شفا نه وي پيدا کړې. بغير د يوې بيمارۍ نه چې هغه بوډه والی دی. |

**توضيح**: افنتداوی: آيا مونږ دوا استعمال کړو. صحابه رضي الله عنهم دا پوښتنه ځکه وکړو چې د هغوی دا سوچ ؤو کې چې کېدی شي چې دوائی استعمالول د الله د تقدير منافي وي يا د اعلی توکل خلاف وي. نبي کريم صلى الله عليه وسلم په جواب کې وفرمايل چې علاج کوئ، دا د الله له اړخه ده. الله د هرې بيمارۍ لپاره دوائی رانازله کړې ده. دا خپله د تقدير يوه برخه ده، خو بوډه والی يو داسې مرض دی چې هيڅ علاج يې نشته دی.

### په مريض باندې په زوره خوراک مه کوئ

| | |
|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُكْرِهُوا مَرْضَاكُمْ | او حضرت عقبه ابن عامر رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل خپلو مريضانو باندې |
| عَلَى الطَّعَامِ فَإِنَّ اللهَ يُطْعِمُهُمْ وَيَسْقِيهِمْ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيث غَرِيب[2] | په زوره خوراک مه کوئ ځکه هغوی باندې د الله خورې او څښې. (ترمذی، ابن ماجه) |

**توضيح**: د انساني ژوند د بقاء لپاره صرف خوراک نه دی، نو په ظاهري اسبابو کې يو سبب دی. الله چې کله وغواړي نو د هيڅ يو غيبې ذريعې باندې انسان ژوندی کولی شي. مثلاً مريض دی. هغه که ظاهري خوراک نه شي کولی نو هغه مه مجبوره کوئ. الله د هغې د غيبې خوراک انتظام کړي

[1] رقم الحديث ۴۵۳۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۹۲/۴ رقم الحديث ۳۸۵۵ والترمذي في السنن ۳۳۵/۴ رقم الحديث ۲۰۳۸.

[2] رقم الحديث ۴۵۳۳ أخرجه الترمذي في السنن ۳۳۶/۴ رقم الحديث ۲۰۴۰ وابن ماجه في ۱۱۴۰/۲ رقم الحديث ۳۴۴۴.

دی. هغه داسې چې د مريض د بدن رطوبت بنواره شي او د مريض د خوراک کار کوي نو الله هغې باندې د غیبو نه خورې او ځښبي. تاسو هغه مه مجبوروئ، ګنې نقصان به وشي. (مرقات۸/۳۰۸)

## د سرخ باده علاج

﴿۲۱﴾وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَوَى أَسْعَدَ بْنَ زُرَارَةَ مِنَ الشَّوْكَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيث غَرِيب[1]

او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د سعد بن زراه رضي الله عنه بدن باندې سوروالی (د علاج لپاره) داغ ورکړو. (روايت کړې دې ترمذی) امام ترمذی وائی دا حديث غريب دې

**توضيح:** الشوکة: **وهی حمرة تعلو الوجه والجسد** (مرقات) يعنې شوکه د هغه سوروالي نوم دی چې په مخ او بدن باندې مسلط وي. دې ته طبيبان سره مخه وايي. د بدن د يو ځای نه يې ابتداء کيږي. بيا پوره بدن کې بنوره شي. دې ته سره مخه وايي. کېدی شي پښتو کې دې ته لمبه وايي. ډېره سخته بيماري ده. (مرقات۸/۳۰۸)

## د ذات الجنب علاج

﴿۲۲﴾ وَعَن زيد بن أرقم قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَتَدَاوَى مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ بِالْقُسْطِ البحريِّ وَالزَّيْت. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[2]

او حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم مونږ ته هدايت وکړو چې مونږ د ذات الجنب بيمارۍ په قسط بحری او د زيتون په تيلو علاج وکړو.

﴿۲۳﴾وَعَنْهُ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْعَتُ الزَّيْتَ وَالْوَرْسَ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[3]

او حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به د ذات الجنب د علاج لپاره د زيتون د تيلو او د ورس تعريف کولو. (ترمذی)

**توضيح:** د زيتونو تيلو ته زيت وايي.

**ورس:** يو قسمه وابنه دي. چې رنګ يې سور اوزيړ وي. د دې ريشي د زعفرانو پشان وي. ډېرو دوايانو کې استعماليږي.

---

[1] رقم الحديث ۴۵۳۴ أخرجه الترمذي في السنن ۳۴۱/۴ رقم الحديث ۲۰۵۰
[2] رقم الحديث ۴۵۳۵ أخرجه الترمذي في السنن ۳۵۵/۴ رقم الحديث ۲۰۷۹ وأحمد في المسند ۳۶۹/۴.
[3] رقم الحديث ۴۵۳۶ أخرجه الترمذي في السنن ۳۵۵/۴ رقم الحديث ۲۰۷۸ وابن ماجه في ۱۱۴۸/۲ رقم الحديث ۳۴۶۸.

## سنا بهترينه دوايي ده

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾وَعَن أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَهَا: |
| او د حضرت اسماء بنت عميس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې نه وپوښتل چې |
| بِمَ تستَمْشِينَ؟ قَالَت: بالشُّبْرمِ قَالَ: |
| ته د څه شي نه جلاب (مسهل) اخلې. هغې ووېل چې د شبرم نه. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| حارٌّ حارٌّ. قَالَتْ: ثُمَّ اسْتَمْشَيْتُ بِالسَّنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| چې شبرم خو ګرم دی. اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې بيا ما په سنا سره جلاب وكړل او نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| لَوْ أَنَّ شَيْئًا كَانَ فِيهِ الشِّفَاءُ مِنَ الْمَوْتِ لَكَانَ فِي السَّنَا. |
| چې که په کوم شي د مرګ شفا کېدلی يعنې که د مرګ علاج په کومې دوا کې وی نو هغه به سنا وی. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيث حسن غَرِيب [1] |
| (روايت كړې دې ترمذي او ابن ماجه) امام ترمذی رحمه الله وائی چه دا حديث حسن غريب دې |

**توضيح**: **ام عميس**: د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زوجه محترمه وه. د هغې د شهادت نه وروسته د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نکاح کې وه. (مرقات ۳۰۹/۸)

**نستمشين**: استمشاء طلب **مشئ** ته وايي او د **مشئ** نه مراد اسهال او دست دی. يعنې د کوم شي نه جلاب اخلې چې اسهال وشي؟ (مرقات ۳۰۹/۸)

**بالشبرم**: دا د يو واښو نوم دی. د هغې بوټي دانې مراد دي. دې کې وړې وړې دانې وي. چې د مسور برابر وي. دا دانې دستونه لګوي. دا اوبو کې جوش کېږي او بيا د دې اوبه څښلی کېږي چې بيا ترېنه جلاب كېږي. (مرقات ۳۰۹/۸)

**حار حار**: يعنې شبرم ګرم دی. د لفظ د تاکيد په توګه مکرر راوړلی شوی دی. ځينې نسخو کې د حا نه وروسته "جار" د جيم سره دی. هغه صرف د وزن جوړولو لپاره د الفاظ مهمله نه دی، لکه کتع بتع يا پاني شاني. طبيبان وايي چې شبرم د څلورمې درجې کې د ګرمو دوايانو نه دی. ډېر زيات دست راولي، ځکه دې کې احتياط شرط دی. (مرقات ۳۰۹/۸)

**في السنا**: د قصر سره دی. ځينو د مد سره هم ويلې دی. يو بوټی دی. د دې پاڼو ته سنا وايي. نكريزو د پاڼو سره مشابه وي. د دې ښه قِسم سنا مکی دی. دا مېده کول کېږي. اوبيا يې استعمالوي. ډېر پيکه دي. په

---

[1] رقم الحديث ۴۵۳۷ أخرجه الترمذي في السنن ۳۵۶/۴ رقم الحديث ۲۰۸۱ وابن ماجه في ۱۱۴۵/۲ رقم الحديث ۳۴۶۱.

اوله درجه کې گرم دی. معتدل دی. دې کې د هیڅ نقصان خطر نشته دی. صفرا غوځوي. بلغم د اسهال او تنقیه لپاره ډېر زیات مفید دی. د زړه خول مضبوطوي. دې د سودائې وسوسو خاصیت په خاصه توګه موجود دی. خلاصه دا ده چې د مرګ نه بغیر د ټولو علاجونو لپاره مفید دی. (مرقات ۳۱۰/۸)

## په حرام شیانو باندې علاج مه کوئ

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ أَنْزَلَ الدَّاءَ وَالدَّوَاءَ |
| او حضرت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل الله بیماري هم رالېږلې ده او دوا یې هم. |
| وَجَعَلَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءً فَتَدَاوُوا وَلَا تَدَاوَوْا بِحَرَامٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| او د هرې بیمارۍ لپاره یې دوا مقرره کړې ده. لهذا په دوا باندې علاج کوئ خو په حرام څیز علاج مه کوئ. |

**توضیح**: بالحرام: د حرام څیز نه مراد د خنزیر اجزاء او شراب وغیره شیان دي. د ایرې غوښه او د شیر وغیره د ځناورو اجزاء باندې علاج کول حرام دی. ډېرو حدیثونو کې په حرام شیانو باندې علاج کول منع کړې شوي دي. ګویا کې دې کې شفا نشته دی، نو استعمال یې فضول دي. د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په یو روایت کې دي چې الله کوم شیان حرام کړي دي، نو هغې کې یې ستاسو لپاره شفا هم نه ده ایښې. یو صحابي حضرت طارق جعفی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په شرابو باندې د علاج کولو اجازت وغوښتلو، نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې شراب دوا نه ده بلکې درد او مرض دی. یو حدیث کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه مریضانو لپاره عدم شفا لپاره ښېرې کړي دي چې په حرامو باندې دوا کوي. وي فرمایيل **"من تداوىٰ بالحرام فلا شفاه الله"** (کذافی اشعة اللمعات ۶۴۹/۳ والمرقات ۳۱۰/۸)

ملاعلي قاري وغیره شارحینو لیکلي دي چې که یو حاذق او ماهر او دیندار او پرهزګاره طبیب یو مریض ته وایي چې ستا علاج د شرابو نه بغیر بله هیڅ یوې دوائی کې نشته دی، نو د علاج په توګ به د هغې استعمال جائز وي. دا خبره په خپل ځای صحیح ده خو د متحقق محال دی. مثلاً ټول طبیبان په دې باندې څنګه اتفاق کولی شي چې د ې مرض علاج د شرابو نه بغیر هیڅ څیز کې نشته دی. دغه شان د حاذق او ماهر طبیبانو وجود هم ډېر نادر دی. ګویا کې د دې قیدونو سره شرابو د استعمال جواز تعلیل بالمحال دی.

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدَّوَاءِ الْخَبِيثِ. رَوَاهُ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خبیثې دوا نه منع کړې ده. (روایت |

[1] رقم الحدیث ۴۵۳۸ اخرجه ابوداود في السنن ۲۰۶/۴ رقم الحدیث ۳۸۷۴.

أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ[1]

کړې دي احمد ،ابو داؤد ،ترمذی ،ابن ماجه )

**توضیح**: الخبیث: د دې نه مراد حرامه دوه ده. چې تفصیل یې پاس لیکلی شوی دی. یا د دې نه مراد هغه دوا ده چې طبیعت ترېنه نفې کوي. علماؤ او طبیبانو لیکلي دي چې طبیعت چې د کومې دوا نه کرکه کوي هغې کې عموماً علاج او شفا نه وي. هغه صورت کې به دا نهې په کراهت باندې محمول وي. (مرقات۳۱۱/۸)

## په نکریزو باندې د درد علاج

﴿۲۷﴾وَعَنْ سَلْمَى خَادِمَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ: مَا كَانَ أَحَدٌ

او حضرت سلمی رضی الله عنها چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم خادمه وه. وایي چې مونږ کې به کوم کس

يَشْتَكِي إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعًا فِي رَأْسِهِ إِلَّا

نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د سر د (داسې) بیمارۍ شکایت کولو (چې تعلق به یې د وینې د زیاتوالي د دباؤ سره ؤ)

قَالَ: احْتَجِمْ وَلَا وَجَعًا فِي رِجْلَيْهِ

نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم به وفرمایل چې خکر ولګوه. او کوم کس به چې د پښو شکایت کولو (یعني داسې

إِلَّا قَالَ: اخْتَضِبْهُمَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ ([2])

درد چې د ګرمۍ او حرارت نه به ؤ) نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم به وفرمایل چې په پښو باندې نکریزي ولګوه.

**توضیح** اختضبهما: د دې خضاب نه مراد نکریزي لګول دي. یعنې چرته چې پښو یا په سر درد وي هلته دې نکریزې ولږولی شي نو درد ختمېږي. د بحث لاندې حدیث کې د سر د درد لپاره د خکر کولو حکم دی. نارنؤ له پکار دي چې په نوکانو باندې نکریزي ونه لګوي چې د ښځو سره مشابهت ونه شي. (مرقات۳۱۲/۸)

## په نکریزو باندې د زخم او د دانو علاج

﴿۲۸﴾ وعنها قَالَت: مَا كَانَ يَكُونُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرْحَةٌ

او حضرت سلمی رضی الله عنها فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم (د بدن په کومه برخه به چې) کله زخم راغلو (هغه که په

---

[1] رقم الحدیث ۴۵۳۹ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۶/۴ رقم الحدیث ۳۸۷۰ والترمذي في ۳۳۹/۴ رقم الحدیث ۲۰۴۵.

[2] رقم الحدیث ۴۵۲۰ أخرجه ابوداود في السنن ۱۹۴/۴ رقم الحدیث ۳۸۵۸ واحمد في المسند۶/۴۶۲ .

| | | |
|---|---|---|
| وَلَا | نَكْبَةٌ | إِلَّا أَمَرَنِي |

توره، چاړه او يا د بل کوم يو داسې څيز د غوځېدلو په صورت کې ؤو) يا په کاڼي او ازغي باندې به

أَنْ أَضَعَ عَلَيْهَا الْحِنَّاءَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زخمي شو نو ماته به يې حکم وکړو چې دې باندې د نکريزي کېږده. (ترمذی)

**توضيح**: **قرحة**: د بدن دانو او د دانو لپاره هم ويل کېږي. او د چاړه يا چاقو په زخم باندې د دې اطلاق کېږي. دواړه معنې اخستل کېدی شي، خو د دانو معنی به زياته بهتره وي چې حديث کې عموم راشي، ځکه د زخم ذکر وروسته خپله موجود دی. (مرقات ۳۱۲/۸)

**نکبة**: مطبق زخم ته هم وايي، خو که د **قرحة** نه د زخم اخستلو په صورت کې فرق کول مقصود وي نو نکبة د کاڼي يا ازغې وغيره په زخم باندې به حمل کېږي. (مرقات ۳۱۲/۸)

## د ښکر لګولو ذکر

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يحتجم

او حضرت ابو کبشه انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل سر مبارک باندې او

على هامته وَبَيْنَ كفيه وَهُوَ يَقُولُ: مَنْ أَهْرَاقَ مِنْ هَذِهِ الدِّمَاءِ

خپلو دواړو اوږو به مينځ کې به يې خکر لګولو. چې کوم کس د دې وينو نه څه را وباسي او بيا هغه

فَلَا يَضُرُّهُ أَنْ لَا يَتَدَاوَى بِشَيْءٍ لِشَيْءٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[2]

د کوم مرض علاج ونه کړي نو هغې ته هيڅ نقصان او ضرر نه رسيږي.

**توضيح**: **على هامته**: سر او کوپړۍ ته هامه وايي. **كتفيه**: يعنې د اوږو په مينځ کې به کله ډک خکر لګولو. او کله به يې د مونډو د مينځ نه وينه ويستله.

**اهراق**: زيات مقدار کې د وينې ويستلو لپاره دا لفظ استعمالېږي يعنې خکر لګولو نه وروسته به د بل کوم علاج ضرورت نه وي. (مرقات ۳۱۲/۸)

﴿۳۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ عَلَى وَرِكِهِ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپل ورون باندې خکر ولګولو ځکه د

---

[1] رقم الحديث ۴۵۴۱ أخرجه الترمذي في السنن ۳۴۳/۴ رقم الحديث ۲۰۵۴ وابن ماجه في ۱۱۵۸/۲ رقم الحديث ۳۵۰۲.

[2] رقم الحديث ۴۵۴۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۹۵/۴ رقم الحديث ۳۸۵۹ وابن ماجه في ۱۱۵۲/۲ رقم الحديث ۳۴۸۴.

| |
|---|
| مِنْ وَثْاءٍ كَانَ بِهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په پښو مبارکو باندې پولئ راغلي وي. |

**توضیح:** ورك: ورون او پیږ پتون ته وايي.

**من وثأ:** ملاعلي قاري او علامه طیبي لیکي چې دا لفظ د واؤ زبر او د ثا د سکون او آخر کې د همزه سره دی. پښو کې د موچ راتلو یا په غوښه کې زخم کېدلو ته وایي. **وفي القاموس الوثء وجع يصيب اللحم لا يبلغ العظم او وجع في العظم بلا كسر او هو الفك.** همدې **فک** ته موچ راتلل وايي. لغت کې زیاتر دا لفظ د همدې موچ راتلو لپاره ویل کېږي، خو حدیث کې موچ د راتلو ترجمه اختستل لرې معلومېږي. باقې دوه مطلبه زیات واضح دي، ځکه د خکر لګولو فائده دې کې ظاهرېږي. (مرقات۳۱۳/۸)

## د ښکر لګولو اهمیت

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَن ابنِ مَسْعُود قَالَ: حَدَّثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ علن لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ: |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معراج واقعات بیانولو کې دا هم وفرمایل |
| أَنَّهُ لَمْ يَمُرَّ عَلَى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا أَمَرُوهُ: |
| چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د فرښتو د کوم جماعت نه تېر شوی دی. هغوی (د الله له اړخ نه) دا |
| مُرْ أُمَّتَكَ بِالْحِجَامَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيث حسن غَرِيب[2] |
| حکم ورکړو چې ته خپل امت ته د خکر لګولو حکم ورکړه. (روایت کړې دې ترمذی، ابن ماجه) |

**توضیح:** **مر امتك:** د دې حدیث نه د وینه ایستلو او د خکر لګولو اندازه کېږي. د دې اهمیت وجه دا ده چې د امراض دموی د وینې د فساد نه پیدا کېږي، ځکه د وینې فساد د ټولو مرضونو جرړه ده. چې امراض دموی ورته وایي. د وینې فشار او فساد نه بلډ پریشر وي. چې شوګر ترېنه پیدا کېږي. او شوګر یو قِسم له مرګ دی. د امراض دموی د ټولو نه لویې علاج وینه ویستل دي. چې حجامه ده.

**فصد:** د دې نسبت ښکر کې زیاته فائده ځکه ده چې د دې نه د څرمن د هرې برخې نه وینه راښکل کېږي. د **فصد** نه خو صرف د یو رګ نه وینه راوځي. (مرقات۳۱۳/۸)

---

(1) رقم الحديث ۴۵۴۳ أخرجه ابوداود فى السنن ۱۹۷/۴ رقم الحديث ۳۸۶۳ والـ... م الحديث ۲۸۴۸.

(2) رقم الحديث ۴۵۴۴ أخرجه الترمذي ... ۳۲۴/۴ رقم الحديث ۲۰۲۵.

امتك: د دې نه مراد ټول امت دی. چاته چې د دې علاج ضرورت شي. دا عام مفهوم دی. او د امت نه صرف عرب هم مراد کېدی شي، ځکه هغوی له په خاصه توګه مفيد او ګټور دی. ځکه د هغوی ملک سخت ګرم دی. عام مفهوم زيات واضح دی. اغيارو کافرانو د مسلمانانو دا طريقه پټه کړې ده. اوس هغوی دې شيانو ته د فائده مند په ځای مضر وايي. او مسلمانان حکمرانان ورته صرف ګوري.

## د چونګښي دوا د جوړولو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ: إِنَّ طَبِيبًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ضِفْدَعٍ |
| او د حضرت عبدالرحمن ابن عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يو طبيب د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه چيند خه (باټا) په دوا کې |
| يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ فَنَهَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| شاملولو باره کې وپوښتل (چې آيا دا صحيح دي يا نا؟) نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه د باټا د وژلو نه منع کړو. |

**توضيح**: عن ضفدع: طبيب دا پوښتنه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ځکه وکړه چې د دې نه مخکې په طبيبانو کې دا رواج ؤو چې دوا کې به يې چونګښه شاملوله. د اسلام نظر په بناء طبيب دا پوښتنه وکړه نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چونګښي د وژلو او هغه په دوا کې د شاملول نه منع کړو. جامع صغير کې دي. چې "**نهی عن قتل الضفدع للدوا**" ملاعلي قاري فرمايي "**ولم يکن النهی عن قتلها ابقاء عليها و مکرمة لها بل لانه لم ير التداوی بها لرجسها وقذارتها**" يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چونګښي و وژلو ممانعت هغې باندې د خوانبوږئ يا د هغې د تقدس په وجه نه دی فرمايلی بلکې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې د وژلو منع ځکه کړې ده چې په چونګښه کې د هغې نجاست او د طبع د کراهت په بنياد باندې علاج نشته دی. زما په خيال کې دا حديث د علامات نبوت نه يوه علامت او معجزه ده، ځکه ټوله دنيا کې طبي تجربې په چونګښه باندې کېږي په کروړونو چونګښي بې مقصده وژلی کېږي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع وکړه چې دې کې فائده کمه او نقصان زيات ؤو. نجس هم ؤو او **استقذار** طبع هم ؤو. (مرقات ۸/۳۱۴)

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښکر لګولو بيان

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَجِمُ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د څټ په دوارو رګونو کې د اوږو په |

[1] رقم الحديث ۴۵۴۵ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۰۳ رقم الحديث ۲۸۷۱ والنسائي في ۷/۲۱۰ رقم الحديث ۴۳۵۵.

فِي الْأَخْدَعَيْنِ وَالْكَاهِلِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَزَادَ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ:
مينځ کې ډک خکر لګولو. (ابوداؤد) ترمذی او ابن ماجه دا عبارت هم نقل کړی دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وَكَانَ يحتجمُ سبعَ عشرَة وتسع عشرَة وَإِحْدَى وَعشْرين[1]
به په اؤولسم (۱۷)، نورلسم (۱۹) او يؤويشتم (۲۱) تاريخ باندې به يې خکر لګولو.

**توضيح:** اخدعين: د څټ دواړو اړخونو ته چې کوم دوه رګونه دي هغې ته اخدعين وايي. (مرقات۸/۳۱۵)

**الکاهل:** د اوږو په مينځ کې برخې ته کاهل وايي. بلکې د څټ د لاندې شا باندې په شپږ مهرونو باندې مشتمل ټولي برخې ته کاهل ويل کېږي. (مرقات۸/۳۱۵)

## د خکر لګولو ورځ او تاريخ

﴿۳۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْتَحِبُّ الْحِجَامَةَ
او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اؤولسم، نورلسم
لِسَبْعَ عَشْرَةَ وَتِسْعَ عَشْرَةَ وَإِحْدَى وَعِشْرِينَ. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[2]
او يؤويشتم تاريخ باندې خکر لګول خوښولو. (روايت کړې دې شرح السنة)

**توضيح:** دې ورځو او تاريخونو کې د وينې ويستل يا د نه ويستلو مفوض الى علم الشارع دی. دې کې هيڅ يو کس دخل نه شي کولی. البته ځينې روايتونو کې د څه ورځو د خاصيت اړخ ته اشاره کړې شوې ده، نو چې څومره اشاره ده هغه هومره اشاره باندې پوهه کېدل پکار دي. تاريخونو کې د طبيبانو خيال دی چې د سپوږمۍ په حساب سره د انسان د بدن وينه هم کمېږي او زياتېږي. د سپوږمې د پنځلسم تاريخ ته تر د يؤويشتم پورې د وينې جوش ډېر زيات وي، نو ځکه دې تاريخونو کې د وينې ويستل زيات ضروري او د اصلاح قابل دي.

﴿۳۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنِ احْتَجَمَ
او ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس
لِسَبْعَ عَشْرَةَ وَتِسْعَ عَشْرَةَ وَإِحْدَى وَعِشْرِينَ كَانَ شِفَاءً لَهُ مِنْ كُلِّ دَاءٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[3]
چې به اؤولسم، نورلسم او يؤويشتم تاريخ باندې به خکر لګوي. هغې ته د بيمارۍ نه شفا حاصلېږي.

---

([1]) رقم الحديث ۴۵۴۵ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۹۵ رقم الحديث ۳۸۶۰ والترمذي في ۴/۳۴۱ رقم الحديث ۲۰۵۱.

([2]) رقم الحديث ۴۵۴۷ أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۲/۱۵۰ رقم الحديث ۳۲۲۵

([3]) رقم الحديث ۴۵۴۸ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۱۹۶ رقم الحديث ۳۸۶۱.

﴿۳۶﴾ وَعَن كبشةَ بنت أبِي بكرة: أَنَّ أَبَاهَا كَانَ يَنْهى أَهْلَهُ عَنِ الْحِجَامَةِ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ
او د حضرت كبشه بنت ابي بكره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دى چې د هغې پلار به خپل كوروالو ته د سه شنبې په ورځ
وَيَزْعُمُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ
د ښكر لګولو نه منع كول. او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه به يې نقل كول چې سه شنبې د ورځې وينه (د غلبې) ورځ ده
يَوْمُ الدَّمِ وَفِيهِ سَاعَةٌ
او دې ورځ كې يو داسې ساعت دى چې وينه نه بندېږي (لهذا دې ورځ كې د وينې ويستلو صورت كې دا كېدى
لَا يَرْقَأُ. رَوَاهُ أَبُودَاوُد[1]
شي چې همغه ساعت راشي او وينه د او دريدلو نوم و انخلي چې هلاكت هم ترېنه واقع كېدى شي).

**توضيح**: د حديث كې د سه شنبې و ورځې وينې د ويستلو نه منع كړې ده. او وجه يې ويل شوي ده چې دې كې يو وخت دى چې كه چرې په هغې وينه راويستلى شي نو كله به هم بنده نه شي او سړى به مړ شي. او كېدى شي چې د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام ځوي د هابيل وينه قابيل په همدغه ورځ تويه كړې وه. لهذا دا وينې ورځ ده. د يزعم لفظ د شك لپاره استعمالېږي، نو دا حديث دا مرفوع په ځاى مقوف كېدى شي.

﴿۳۷﴾ وَعَنِ الزُّهْرِيِّ مُرْسَلًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:
او حضرت زهري تابعي د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د ارسال په طريقه نقل كوي چې
مَنِ احْتَجَمَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ أَوْ يَوْمَ السَّبْتِ
(نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل) كوم كس چې د شنبې په ورځ يا د چهار شنبې په ورځ ښكر لګوي او بيا
فَأَصَابَهُ وَضَحٌ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: وَقَدْ أُسْنِد وَلَا يَصِح[2]
هغې ته د كوړ (برګى) بيمارى اولګى نو هغه دې خپل ځان ملامته كړي. (روايت كړې دې احمد، ابوداؤد)

**توضيح**: دې حديث كې د شنبې او چهار شنبې په ورځ د وينې د ويستلو نه منع كړې ده.

**وَضَحٌ**: دا د رڼا او د وضاحت نه اخستلى شوى دى چې دې ورځو كې به وينه ډېره زياته وغورځېږي چې سړى د برص په بيمارۍ اخته شي. وضح برګي ته وايي. يعنې د بدن سپينېدل. (مرقات ۳۱۴/۸)

**فلايلومن**: يعنې هيڅ قانون او هيڅ ضابطې باندې دې الزام (تور) نه لګوي. شريعت خو هغې ته لاربنود نه كړې ده. چې دې پرې عمل ونه كړو نو اوس دې خپل ځان ملامته كړي. (مرقات ۳۱۴/۸)

[1] رقم الحديث ۴۵۴۹ أخرجه ابوداود في السنن ۱۹۶/۴ رقم الحديث ۳۸۶۲.
[2] رقم الحديث ۴۵۵۰ أخرجه البغوي في شرح السنة تعليق ۱۵۱/۱۲

﴿۳۸﴾ وَعَنْهُ مُرْسَلًا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ احْتَجَمَ
او حضرت زهری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د طريق په ارسال فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم کس چې
أَوِ اطَّلَى يَوْمَ السَّبْتِ أَوِ الْأَرْبِعَاءِ فَلَا يَلُومَنَّ
د شنبې يا د چهار شنبې په ورځ ډک خکر ولګولو يا (د خپل بدن په کوم اندام باندې) اخيړ وکړي
إِلَّا نَفْسَهُ فِي الْوَضَحِ. رَوَاهُ فِي شرح السّنة[1]
نو هغه دې د برګی مرض د اخته کېدو په صورت کې خپل ځان ملامته کړي.

۲۰ ربيع الاول ۱٤۱۸هـ

## شيطان څنګه انسان په غلط منتر جنتر باندې مجبور کړي

﴿۳۹﴾ وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ عَبْدَ اللهِ رَأَى فِي عُنُقِي
او د حضرت عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښځه فرمايي چې يو ورځ عبدالله زما په څټ کې تار ځوړند وليدلو نو
خَيْطًا فَقَالَ: مَا هَذَا؟ فَقُلْتُ: خَيْطٌ رُقِيَ لِي فِيهِ قَالَتْ:
وې پوښتل چې دا څه دي؟ ما وويل چې دا تار دی. چې ماله پرې منتر ويلی شوی دی. زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې
فَأَخَذَهُ فَقَطَعَهُ ثُمَّ قَالَ:
عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (دې اوربدلو سره) هغه تار د زما د څټ نه راويستلو او ټوټې ټوټې يې کړو او بيا يې وويل چې
أَنْتُمْ آلَ عَبْدِ اللهِ لَأَغْنِيَاءُ عَنِ الشِّرْكِ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:
د عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کور والو ته د شرک نه بې پروا شه. ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوربدلي دي
إِنَّ الرُّقَى وَالتَّمَائِمَ وَالتِّوَلَةَ شِرْكٌ فَقُلْتُ: لِمَ تَقُولُ هَكَذَا؟ لَقَدْ
چې بيشکه دم کوډې او تعويذ کې شرک دی. ما وويل چې ته دا څنګه وايې. چې ما ته د منتر نه ډېره
كَانَتْ عَيْنِي تُقْذَفُ وَكُنْتُ أَخْتَلِفُ إِلَى فُلَانٍ
فائده شوې ده. زما سترګه (د درد له وجې) بهر راوتلې وه او زه به فلانئ يهودئ ته تلم راتلم. هغه
الْيَهُودِيِّ فَإِذَا رَقَاهَا سَكَنَتْ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ:
يهودئ چې کله منتر باندې زما سترګه دم کړه نو د سترګې خاربښ لاړو. حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې

---

(1) رقم الحديث ٤٥٥١ أخرج البغوي في شرح السنة ١٥١/١٢ رقم الحديث ٣٢٣٥.

إِنَّمَا ذَلِكِ عَمَلُ الشَّيْطَانِ
(دا ستا ناداني او غفلت دی) او د هغه درد بنه کېدل د منتر په وجه نهٔو بلکې حقیقت کې هغه د شیطان کارؤو.

كَانَ يَنْخَسُهَا بِيَدِهِ فَإِذَا رُقِيَ
چې ستا سترګه یې خاربنتوله (چې تا ته به پرې درد محسوسیدلو) یا چې کله یې دم وویل شو نو دا چې د شیطان کارؤو

كُفَّ عَنْهَا إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكِ أَنْ تَقُولِي كَمَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:
نو ځکه شیطان خاربنتول پرېښودل. ستا لپاره هغه دعا بالکل کافي وه کومه به چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لوستله.

أَذْهِبِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي
چې ترجمه دا ده (یعني ای د خلکو پروردګاره نو بیماري لرې کړه او شفا ورکړه ځکه ته شفا ورکونکی یې.

لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سقما. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1]
ستا د شفا نه بغیر بله شفا نشته دی. داسې شفا چې بیماري پرېږ نه دي. (روایت کړی دي ابو داؤد)

**توضيح**: رقی لی فیه: یعني دا تار دی چې زما لپاره پرې منتر ویل شوی دی.

**الرقى**: یعني هغه دم کوم چې د یو بت یا د شیطان یا د فرعون او هامان نوم وي یا بله کومه شرکیه کلمه وي یا چې د کوم معنی معلومه نه وي نو داسې دم کول منع دی. (مرقات ۳۱۸/۸)

**والتمائم**: د تمیمة جمع ده. تعویذ ته وایي. د عرب خلکو به څه هډوکي مهري وغیره کې واچول او د هغې نه به یې امبیل جوړ کړو. او بیا به یې د ماشومانو غاړه یا پښو کې تړلو. د هغوی خیال ؤو چې په دې به بدنظرئ وغیره د مصیبتونو نه بچ شي. اصل حقیقت د تمائم همدغه دی. بیا دې کې فراخي راغله او د دې اطلاق په عامو تعویذونو باندې هم کېدلو. لهذا کومو تعویذونو کې چې د الله نوم وي، ادعیه ماثوره وي، صالح وظائف وي نو د دې ممانعت نشته دی. دا فرق پیژندل ډېر ضروري دی. شرکې تعویذونه منع دي. شرعي تعویذونه جائز دي. (مرقات ۳۱۸/۸)

**واذا المنية أَنْشَبَتْ اظفارها الفيت كل تميمة لاتنفع**

**التولة**: تا باندې زیر دی. وا، او لام باندې زبر دی. د جادو کوډي ته وایي چې تار باندې د جادو کوډي وویل شي او ښځه په نارینه او نارینه په ښځه باندې عاشق کړي. چې پښتو کې ورته "کوډي" وایي. دې کې عموماً جادو او د شرک عمل وي. دا تول ناجائز دي، نو ځکه نبي کریم ﷺ وفرمایل

---

[1] رقم الحديث ۴۵۵۲ أخرجه ابوداود في السنن ۲۱۲/۴ رقم الحديث ۳۸۸۳ وابن ماجه في ۱۱۶۶/۲ رقم الحديث ۳۸۱/۱

چې دا ټول شرک دی یعنې بیشکه منتر او کوډې شرک دی. (مرقات۸/۳۱۸)
حزب الله او د جماعت المسلیمن ګمراه خلک د دې حدیث تشریح صحیح نه کوي او عوامو ته وایي چې مطلق تعویذونه منع دي. حال دا چې د هغوی دا وینا غلطه ده. تعویذونه جوړول ثابت دي. البته دا کاروبار جوړول یا غلط انداز اختیارول غلط دي، نو د غلط خلکو غلط کار ته دي غلط وویل شي نه دا چې مطلق تعویذ ته غلط وویل شي.

**لم تقول هکذا:** یعنې ته ولې منع کوي حال دا چې مونږ ته په تجربې معلومه شوې ده چې دم کې فائده شته دی. (مرقات۸/۳۱۸)

**تقذف:** یعنې سترګې خوږېدلې ګویا کې هغې کې کیکې غوزار کړی ؤو. د مجهول صیغه ده. (مرقات۸/۳۱۹)

**اختلف الی:** یعنې د دم لپاره فلانئ یهودئ له به تلمه را تلمه. (مرقات۸/۳۱۹)

**رقاها:** هغې به دم کوله. **سکنت:** په ارامه به شوه.

**عمل الشیطان:** یعنې د شیطان یوه منظمه منصوبه ده. هغه د عقیدو او د عملونو د خرابولو لپاره دا سازش کوي چې اول یو ځای ته زور ورکړي او بیمارېږي کړي. کله چې بیا انسان ناجائز دم کوي یا مزارونو ته حاضرېږي او څادرې پرې غوړوي یا د غیر الله په نوم نذر و نیاز او ذبح کوي، نو شیطان د هغې نه ګوته لرې کړي، نو سړی صحیح شي او د هغې عقیده په هغه غلط دمونو او کوډو باندې پخه شي.

**ینخسها:** یعنې زور ور کړي. وهې را وهې یې.

**کف:** یعنې دا یهودې ملحد چې کله دم وکړي نو شیطان هغه ځای پرېږدي. بیمار داسې وګڼې چې دا کمال د یهودې په دم کې دی. تا له پکار دي چې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ارشاد مطابق دا وظائف ولولې. (مرقات۸/۳۱۹)

## نشره د شیطان کار دی

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النُّشْرَةِ فَقَالَ: |
| او د جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د نشره باره کې وپوښتلی شو، نو ویې فرمایل |
| هُوَ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| چې هغه شیطاني کار دی. (ابوداؤد) |

**توضیح: النشرة:** نو باندې پیش دی. شین ساکن دی. را باندې زبر دی. دا یو قِسم سفلی عم دی.

---

[1] رقم الحدیث ۴۵۵۳ اخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۰۱ رقم الحدیث ۳۸۶۸ واحمد في المسند ۳/۲۹۴،

چې د مصیبت د لرېکولو لپاره کېږي.

علامه طیب لیکي چې نشره یو رقیه او منتر دی چې د هغې به ذریعه د لېوني علاج کېږي. دې ته نشره ځکه وایي چې د عربو خیال ؤو چې پیریان دا مرض د لېونو نه واخلې او اخوا دیخوا یې بنوروي. جیریر شاعر وایي ؎

ادعوك دعوة ملهوف كأن به مسّاً من الجن اوريحاً من النشر (الكاشف: ۳۲۸/۸)

حدیث کې چې د کوم نشره ذکر دی نو داسې معلومېږي چې د دې نه د جادو عمل مراد دی. او د دې نه تعویذونه او د منترجنتر عمل مراد دی، خو بیا د تعویذونو او دم نه د جاهلیت شکریه تعویذونه مراد دې او غلطمونه به مراد وي، ځکه جائز تعویذونه جائز دي.

## غاړه کې د ګنډو زوړندولو مذمت

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: |
| او حضرت عبد الله ابن عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اورېدلي دي چې |
| مَا أُبَالِي مَا أَتَيْتُ إِنْ أَنَا شَرِبْتُ تِرْيَاقًا أَوْ تَعَلَّقْتُ تَمِيمَةً أَوْ قُلْتُ |
| چې زه به د هر عمل نه بې پرواه شم که زه تریاق وڅښم یا غاړه کې ګنډه واچوم او یا د زړه او یا په |
| الشِّعْرَ مِنْ قِبَلِ نَفْسِي. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| قصد او اراده شعر ولیکم. (ابوداؤد) |

**توضیح**: **وعن عبدالله بن عمر**: دلته کاتب په غلطئ سره د مشکوة په نسخو کې عبدالله بن عمر لیکلی دی. دا عبدالله بن عمرو بن العاص دی. عبدالله بن عمرم بن خطاب نه دی. (مرقات۳۲۱/۸)

**ماابالي**: یعني زما هیڅ باک او پرواه نه وي چې زه د یو جائز او ناجائز کار ارتکاب وکړو. که زه په دې درې شیانو کې د یو شي ارتکاب وکړم.

**ماابالي**: اولنی ما نافیه دی. دویم موصوله دی. د حدیث مطلب دا دی چې که زه په درې شیانو کې د یو شي ارتکار وکړم نو زما به هیڅ پرواه نه وي چې زه که د جائز یا د ناجائز کار ارتکاب کوم. بیا خو به هر غیر شرعي کار ارتکاب به هم جائز شي که د دې ناجائزه شیانو ارتکاب زه وکړم. چې زه د یو ناجائزه کار ارتکاب نه کوم نو د دې درې شیانو ارتکاب به هم نه کوم، نو ناجائز خو د تریاق استعمال دی. چې کله دې کې د شراب یا د مار غوښه ملاو کړی شي نو زما لپاره او زما د ټول امت لپاره دا حرام دي. یا زه شرکیه کونجکي او ګنډي غاړه کې واچوم. دا شرکیه ګنډي زما لپاره هم او

[1] رقم الحديث ۴۵۵۴ اخرجه ابوداود في السنن ۲۰۱/۴ رقم الحديث ۳۸۶۹ واحمد في المسند ۱۶۷/۲.

زما د امت لپاره هم حرام دي. او يا زه شعر اوايم دا زما لپاره حرام دی. البته زما د امت لپاره حرام نه دی، ځکه شعر خو يو کلام دی. "حسنه حسن و قبيحه قبيح" خو د نبوت د شان دا منافي دي چې زه شعرونه اوايم. شاعر شم او شعرونه چوړ کړم، خو د بل يو نيم شعر کله کله ويل دا منع نه دي. هغه زمانه کې به ترياق کې شراب يا د مار غوښه ملاويدله او بيا به پرې د زهرو علاج کېدلو. که دا ناجائز ه شيان په ترياق کې نه وي نو في نفسه ترياق خو د يو جائز مرکب نوم دی. چې منع نه دی. همدغه شرکيه ګندي که نه وي نو صالح تعويذونه وي نو د امت لباره هغه هم منع نه دي او شعر خو صرف د نبي کريم ﷺ لپاره منع دی. (مرقات ۸/۳۲۱)

## غلط دمونه منع دي

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ اكْتَوَى أَوِ اسْتَرْقَى |
| او حضرت مغيره ابن شعبه رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ و فرمايل کوم کس چې داغ ولګولو |
| فَقَدْ بَرِئَ مِنَ التَّوَكُّلِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيّ وَابْن مَاجَه[1] |
| يا يې منتر ولوستلو نو هغه د توکل نه بې شو. (احمد، ترمذی، ابن ماجه) |

**توضيح**: اکتوی: دم، علاج او داغ وغيره چې څوک مؤثر بالذات ګڼې نو دا په اتفاق سره ناجائز دي. او که د اسباب او د ذرايعو په درجه کې مباح ګڼې نو دا د اسبابو استعمال دی. اسبابو باندې توکل او يقين ناجائز دی. د دې استعمال خو جائز دی. او س د بحث لاندې حديث باندې د اسې پوهه شئ:
چې که يو کس دم کوي او علاج کوي نو دا جائز او مباح دي، خو که يو کس د دې مباح نه هم ځان ساتې او د توکل اوچت مقام ته رسيدل غواړي نو دم او علاج څه فرض خو نه دی، ځکه د اسبابو اړخ ته زياته توجو کولو او هغې ته کامل رغبت کول د الله نه د غافله کېدو دليل دی، لکه څنګه چې په لاندې روايت کې دي. ګوياکې د دې حديث تعلق د اعلیٰ قسم متوکلينو سره دی. چې د مباح شيانو نه هم ځان ساتې. يا د دې حديث تعلق د جاهليت د زمانې هغه دم سره دی چې کوم کې شرک وي او د داغ ورکولو نه هغه داغ مراد دی چې مؤثر بالذات وګڼلی شي. ورسرته لاندې حديث باندې هم دغه شان پوهه شئ. (مرقات ۸/۳۲۳)

| |
|---|
| ﴿۴۳﴾ وَعَنْ عِيسَى بْنِ حَمْزَةَ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عبدِ الله بن عُكَيم |
| او حضرت عيسى ابن حمزه رضي الله عنه فرمايي چې يو ورځ زه حضرت عبدالله بن عکيم ته لاړم نو (او مې ليدل چې) |
| وَبِهِ حُمْرَةٌ فَقُلْتُ: أَلَا تُعَلِّقُ تَمِيمَةً؟ فَقَالَ: |
| د هغې بدن د لمبه مرض کې اخته شوی ؤو. ما ؤول چې ته تعويذ ولې نه تړې؟ هغې وويل چې زه د |

[1] رقم الحديث ۴۵۵۵ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۴۴ رقم الحديث ۲۰۵۵ وابن ماجه في ۲/۱۱۵۴ رقم الحديث ۳۴۸۹.

نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَعَلَّقَ شَيْئًا
دي کار نه د خدای پناه غواړوم. (ځکه) نبي کریم ﷺ و فرمایل چې کوم کس یو شی زوړندوي
وُكِلَ إِلَيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]
یا (یې تړي نو همغه شي ته حواله کیږي).

## هغه مرضونه چې د هغې لپاره دم کول ډير غوره دي

﴿۴۴﴾ وَعَن عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا رُقْيَةَ
او د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم ﷺ و فرمایل منتر یعني
إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ. رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ[2] وَأَبُو دَاوُد وَرَوَاهُ ابْن مَاجَه عَن بُرَيْدَةَ[3]
د دم اثر خو بس نظر یا د زهرو والا ځناور (لکه لړم وغیره) د چیچلو لپاره وي. (احمد، ترمذی، ابوداؤد)

**توضیح**: **عین**: بد نظرئ ته وایي. **او حمة**: د زهرجن ځناور زهرجن چیچلو ته حمة وایي. د دې حدیث مطلب دا دی چې دم خو حقیقت کې د دې دوه بیمارو لپاره دی. اګر که د نورو مرضونو لپاره هم وي، خو د نظر او د زهرجن چیچلو لپاره دم د تیر په څوکه دوا او علاج دی. ګویا کې د بل کوم یو شي لپاره دم دومره مفید نه دی. دې سره د دم نفي مقصود نه ده، ځکه د مشکوة جلد اول ص ۲۱۷ باندې د جائز تعویذونو او دمونو واضح ثبوت شته دی. بلکې د دې دوه شیانو لپاره د دم د خصوصي فایدې ذکر دی. (مرقات ۸/۳۲۵)

﴿۴۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ دَمٍ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[4]
او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې دم خو بس د نظر یا د زهریله چیچلو او وینې باندې اثر کوي.

**توضیح**: ادم: د دې نه مراد د نکسیر وینه ده. د دې لپاره دم ډیر مفید دی.

﴿۴۶﴾ وَعَن أَسمَاء بنت عُمَيْس قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ
او د حضرت اسماء بنت عمیس رضي الله عنها نه روایت دی چې هغې عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ!

---

(1) رقم الحديث ۴۵۵۶ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۵۲ رقم الحديث ۲۰۷۲ وأحمد في المسند ۴/۳۱۰
(2) رقم الحديث ۴۵۵۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۱۳ رقم الحديث ۳۸۸۴ والترمذي في ۴/۳۴۵ رقم الحديث ۲۰۵۷.
(3) رقم الحديث ۴۵۵۸ أخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۱۶۱ رقم الحديث ۳۵۱۳
(4) رقم الحديث ۴۵۵۹ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۱۶ رقم الحديث ۳۸۸۹

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | وَلَدَ | جَعْفَرٍ | تُسْرِعُ | إِلَيْهِمُ | الْعَيْنُ | أَفَأَسْتَرْقِي | لَهُمْ؟ |

د جعفر طيار اولاد (ښايسته او د ښه سيرت والا دي نو ځکه نظر ورته ژر لږي، نو د دوی لپاره دم اوايو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: نَعَمْ | فَإِنَّهُ | لَوْ | كَانَ | شَيْءٌ | سَابِقُ | الْقَدَرِ |

نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې آؤ، ځکه که کوم څيز په تقدير مخکې کېدی شوی نو هغه به نظر

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَسَبَقَتْهُ | الْعَيْنُ. | رَوَاهُ | أَحْمد | وَالتِّرْمِذِيُّ | وَابْن | مَاجَه | [1] |

وی (يعنې د نظر اثر يقيناً يو سخت ترين شی دی. لهذا د دې د لرې کولو لپاره دم کول جائز دي).

**توضيح**: العين: کله د عاين نظر منظور اليه کې کار کوي. دا د هغوی د نظر دننه يو جراثيمي ماده وي، خو کله منظور اليه کې د کشش په وجه د کتونکي نظر يې راښکي. دلته د همدې صورت ذکر دی چې د جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولاد دومره ښايسته او زړه راښکونکی دی چې څوک هم دوی ته ګورې نو نظره ورته لږي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د دې د لرې کولو او د ماتولو لپاره دم استعمالوئ، ځکه د بد نظر لږېدل يو حقيقت دی. (مرقات۸/۳۲۶)

## ښځو ته ليکل خودل څنګه دي؟

﴿۴۷﴾ وَعَنِ الشِّفَاءِ بِنْتِ عبد الله قَالَتْ: دَخَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عِنْدَ حَفْصَةَ

او حضرت شفاء بنت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې (يو روځ) زه د ام المؤمنين حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره ناسته

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | أَلَا | تُعَلِّمِينَ | هَذِهِ |

ؤوم چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دننه راغلو او ماته يې (ليدلو سره وفرمايل چې آيا ته دې ته يعنې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رُقْيَةَ | النَّمْلَةِ | كَمَا | عَلَّمْتِيهَا | الْكِتَابَةَ؟ | رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُد | [2] |

حفصه ته د نمله دم نه زده کوي لکه څنګه چې تا دې ته ليکل زده کړي دي؟ (روايت کړي دي ابوداؤد)

**توضيح**: رقية النملة: د نملة باره کې اول هم حديث نمبر ۱۳ د لاندې ليکل شو دی. نمله هغه پولو ته وايي چې د انسان پښتی باندې راخيژي او تکليف رسوي. کوم کس چې دې پولو کې اخته شي نو هغې ته داسې لږې ګويا کې د هغې په بدن باندې ميږان روان دي. کېدی شي په همدې وجه پولو ته نمله (ميږی) وايي.

---

(۱) رقم الحديث ۴۵۶۰ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۴۶ رقم الحديث ۲۰۵۹ وابن ماجه في ۲/۱۱۶۰ رقم الحديث ۳۵۱۰.

(۲) رقم الحديث ۴۵۶۱ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۱۵ رقم الحديث ۳۸۸۷ واحمدفي المسند ۶/۳۷۲.

حضرت شفاء مکه مکرمه کې د دې نملهٔ د دې ختمولو لپاره یو منتر ویول او دم به یې کولو. کله چې حضرت شفاء اسلام قبول کړو او هجرت یې وکړو نو دا خپل منتر یې نبي کریم ﷺ ته پیش کړو. نبي کریم ﷺ ورته اجازت وکړو او ویې فرمایل چې څنګه ته حفصه ته خط و کتابت زده کړو نو دا منتر دې ورته ولې ونه ښودلو؟ د نبي کریم ﷺ اشاره دې منتر اړخ ته وه. چې د عرب ښځو به د یو کلمات د جهاړ پهونک په وخت کې ویله. هغه کلمات دا دي.

**العروس تنتعل و تختضب و تكتحل و كل شئ تفتعل غير انها لا تعصى الرجل**

یعنې ناوې به بوټان واچوي او نکریزي او رانجه به اومښي. ټول هر څه به کوي خو د خاوند نافرمانې به نه کوي. نبي کریم ﷺ په خاصه توګه دا نتر حضرت حفصه رضی الله عنها ته د ښودلو ځکه حکم وکړو چې دې کې د لاتعصى الرجل الفاظ دي. دې حې حضرت حفصه رضی الله عنها باندې تعریض دی چې هغې د شرب په واقعه کې د نبي کریم ﷺ راز ښکاره کړی ؤو. چې نافرمانې وه او وفاداره ښځه د خاوند نافرمانې نه کوي.

**الكتابة:** لکه څنګه چې تا حفصه ته خط زده کړی ؤو. یو حدیث کې دي چې

**لا تعلموهن الكتابة:** ښځو ته خط مه زده کوئ. دې دواړو حدیثونو کې تعارض دی؟

د دې جواب دا دی چې د خط او کتابت ممانعت وروسته راغلی دی. دا قصه مخکنۍ دهړ لهذا د خط زده کولو حکم منسوخ شوی دی.

دویم جواب دا دی چې د خط او کتابت کې ازواج مطهراتو ته په خاصه توګه اجازت ؤو. د نورو عامو ښځو لپاره ممانعت ؤو. دریم جواب دا دی چې په ابتداء کې اجازت ؤو. وروسته د ښځو لپاره د زمانې د فساد په وجه ممانعت راغلو، لکه څنګه چې په ابتداء کې به جومات کې په جمع د لمونځ کولو اجازت ؤو، خو اوس نشته دی. (مرقات۸/۳۲۷)

## د بد نظرئ یوه عجیبه واقعه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۴۸﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ: رَأَى عَامِرُ بْنُ رَبِيعَةَ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ | | | |
| او حضرت ابو امامه ابن سهل ابن حنیف رضی الله عنه فرمایي چې (یو ورځ) عامر ابن ربیعه رضی الله عنه (زما پلار) سهل | | | |
| يَغْتَسِلُ | فَقَالَ: | وَاللهِ | |
| ابن حنیف لامبولو باندې ولیدلو نو وې ویل چې قسم په خدای (د سهل د بدن او د هغې د رنګ او صورت | | | |
| مَا | رَأَيْتُ | كَالْيَوْمِ | وَلَا جِلْدَ |
| به څه او یو) ما د نن ورځ پشان (هیڅ ښایسته بدن کله هم) نه ؤو لیدلی. او د پرده نشیني (ښایسته ښځې | | | |
| مُخَبَّأَةٍ | قَالَ: | فَلُبِطَ | سَهْلٌ |
| څرمن پشان (نازک او ښایسته رنګ والا) کله هم نه ؤو لیدلی. ابو امامه رضی الله عنه فرمایي چې (د عامر) دا وینا وه | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَتَى | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

چي داسي محسوسه شوه (لکه) سهل چي راغوزار کړی شوی وي، نو هغه را او چت کړی شو او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خدمت ته

فَقِيلَ لَهُ: يَا رَسُولَ اللهِ هَلْ لَكَ فِي سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ؟

راوړلی شو او عرض وکړی شو چي یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! تاسو د سهل د علاج لپاره څه وايي.

وَاللهِ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ

قسم په خدای دا خو د خپل سر د اوچتول طاقت هم نه لري. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د (سهل حالت لیدلو

فَقَالَ: هَلْ تَتَّهِمُونَ لَهُ أَحَدًا؟ فَقَالُوا:

سره) وفرمایل چي آیا د کوم کس باره کي ستا خیال شته دی چي هغي دا نظره کړی دی؟ خلکو عرض وکړو چي

نَتَّهِمُ عَامِرَ بْنَ رَبِيعَةَ

آؤ. د عامر ابن ربیعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کي زمونږ ګمان دی چي هغي نظره کړی دی. راوي وايي چي

قَالَ: فَدَعَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامِرًا فَتَغَلَّظَ عَلَيْهِ وَقَالَ:

نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دي اوریدلو سره) عامر را وغوښتلو کله او نرمه یي ورته وویل او ویي فرمایل

عَلَامَ يَقْتُلُ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ؟ أَلَا بَرَّكْتَ؟

چي ته ولي د خپل ورور مرګ پسي لیږیدلی یي. تا سهل ته د برکت دعا ولي نه کوله چي هغه نظره شوی نه وی.

اغْتَسِلْ لَهُ. فَغَسَلَ عَامِرٌ

بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عامر ته حکم وکړو چي ته د سهل لپاره (خپل اندامونه) وینځه او وبه یي

وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ وَمِرْفَقَيْهِ وَرُكْبَتَيْهِ

په دي ورواچوه، نو عامر یو لوخي کي خپله خوله، لاس، څنګلي، د دواړو پښو د ګوتو پوري او د نامه لاندي

وَأَطْرَافَ رِجْلَيْهِ وَدَاخِلَةَ إِزَارِهِ

بدن (یعني ستر، ورون او کوناتي) یي وینځلو او بیا یي هغه اوبه (چي عامر پري دا ټول اندامونه ویځلي ؤو)

فِي قَدَحٍ ثُمَّ صُبَّ عَلَيْهِ فَرَاحَ مَعَ النَّاسِ

سهل باندي واچولي (د دي اثر دا وشو چي) سهل ژر صحیح شو او پاڅیدلو او د خلکو سره داسي روان شوي لکه په دي

لَيْسَ لَهُ بَأْس. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَرَوَاهُ مَالِكٌ وَفِي رِوَايَتِهِ:

چي څه شوي نه ؤو. (شرح السنة، موطا امام مالک) او د مالک یو روایت دا منقول دی چي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (رېتونکي والاته)

قَالَ : إِنَّ الْعَيْنَ حَقٌّ تَوَضَّأْ لَهُ[1]

وفرمايل چې بد نظري حق دی نه د نظره شوي كس لپاره اودس كوه، نو هغې د نظره شوي كس لپاره اودس وكړو.

**توضيح: ولا جلد مخبأة:** يعنې عامر د سهل متعلق وويل چې د هغې څرمن داسې نرمه او نازكه او ښايسته ده چې تر ننه پورې مې داسې ښايسته شى نه دی ليدلى. بلكې د پرده نشين جينئ څرمن هم دغه شان د ښايسته رنګ والا به نه وي ليدلي. (مرقات۳۲۸/۸)

**فلبط:** علامه طيبي دا صيغه د باب تفعيل نه د معروف صيغه اخستې ده. او سهل د دې فاعل دی.

**لبط منه** په ځمكه د پړ مخې پرېوتلو په معنى كې دی.

ملاعلي قاري د صيغه د ضرب او د نصر نه د مجهول صيغه ګڼلې ده. ګوياكې داسې محسوسه شوه چې سهل پړ مخې په ځمكه راپرېوتلو. (مرقات۳۲۸/۸ الكاشف : ۳۳۲/۸)

**فتغلظ:** يعنې نبي كريم ﷺ عامر په سختو الفاظ سره ياد كړو او ښه يې ورټلو.

**الابركت:** يعنې ترڅو چې تاته آسانه بدن ويلي شوي وي، نو د هغې د هغې لپاره د بركت دعا ولې ونه كړه؟ چې بارك الله عليک به دې ويلى وي. (مرقات۳۲۹/۸)

**اغتسل له:** يعنې اوس هغې ته د خپلو اندامونو د دهون اوبه وركړه. علماؤ ليكلى دي چې عاين او ناظر كې غړغړه او اودس وكړي، ګونډې او د نامه لاندې علاقه دې وينځي او يو تش كې دې اوبه جمع كړي. او بيا دې د نظره شوي كس د شا نه په سرباني اوبه واچوي. دا د شريعت حكم دی چائز او مفيد دی. كه څوک پرې پوهېږي او كه نا، دې كې د خپل عقل دخل بې فائده دی.

علامه مارزي رحمه الله فرمايي چې د نظره كونكي غسل كولو او اوبه نظره شوي كس ته وركول دې باندې واجب دي. لهذا كه هغه د دې نه انكار وكړي نو هغه مجبوره كول كېدی شي بلكې قيدي كول كېدلى هم شي. يو مړ كېږي او بل د اندامونو دهون نهيں دے رہے ر ۱۵. دا كوم انصاف دی؟

قاضي عياض مالكى فرمايي چې كوم كس بدنظرئ كې مشهور وي نو د هغې نه ځان ساتل او د هغې مخې ته نه راتلل او احتياط كولو لازم دي. او حاكم باندې لازم دي چې د داسې كس د خلكو د ناسي پاستې او د اختلاط نه منع كړي او هغوى په دې پابند كړي چې هغه صرف كوركې كينې او بهر ته دې د راوتلو كوشش نه كوي. كه هغوى غريبانان وي نو د هغې د خوراک او څښاک انتظام دې د بيت المال نه وكړي، خو دوى ته دې د بهر راتلو اجازت نه كوي. (مرقات۳۳۰/۸، ۳۲۹)

---

(1) رقم الحديث ۴۵۶۲ أخرجه مالک في الموطا ۹۳۹/۲ رقم الحديث ۲ من كتاب العين وابن ماجه ۱۱۶۰/۲ رقم الحديث ۳۵۱۱.

## په معوذتینو سره د نظر بد علاج

﴿۴۹﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ مِنَ الْجَانِّ

او حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د پيريانو او د انسانانو د بد

وَعَيْنِ الْإِنْسَانِ حَتَّى نَزَلَتِ الْمُعَوِّذَتَانِ

نظرئ نه پناه غوښتله تردې چې معوذتين نازل شو. کله چې دا سورتونه نازل شو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د

فَلَمَّا نزلت أخذ بهما وترك سِوَاهُمَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حسن غَرِيبٌ[1]

دې سورتونو په ذريعه دعا غوښتله او د هغې نه بغير يې د نورڅيزونو نه پناه پرېښودله.

## د مُغَرِّبُونَ څه مطلب دی؟

﴿۵۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَلْ رُئِيَ فِيكُمْ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمايل چې آيا ستا دننه (يعني

الْمُغَرِّبُونَ؟ قُلْتُ: وَمَا الْمُغَرِّبُونَ؟ قَالَ: الَّذِينَ يَشْتَرِكُ

انسانانو کې) مغربون څکاري. ما عرض وکړو مغربون څوک دي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

فِيهِمُ الْجِنُّ. [2] رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وذُكر حديثُ ابن عباسٍ: خيرَ مَا تداويتم فِي بَاب التَّرَجُّل[3]

چې مغربون هغه خلک دي چې د هغې سره پيريان (شيطانان) شريک وي. (ابو داؤد)

**توضيح: هل رئى:** يعنې آيا په انسانانو کې مغربون څکماري؟ دلته استفهام، تنبه او د استيقاظ لپاره دی. او هل په معنی د قد دی. **المغربون:** د باب تفعيل نه د اسم فاعل صيغه ده. لرې کولو او د وړاندې کولو په معنیٰ کې راځي. د دې د مفهوم په تعين کې دا چې اشتباه وه نو ځکه حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وپوښتل چې "**وما المغربون**" يعنې دا کوم خلک دي. د دې څه حقيقت دی.، د کوم جنس او د کومې ډلې سره يې تعلق دی؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جواب کې وفرمايل چې مغربون هغه خلک او طبقه ده چې د هغې د هغوی سره د پيريانو اشتراک عمل دی. (مرقات ۸/۳۳۱، ۳۳۰)

---

([1])رقم الحديث ۴۵۶۳ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۴۵ رقم الحديث ۲۰۵۸ والنسائي في ۸/۲۷۱ رقم الحديث ۵۴۹۴

([2])رقم الحديث ۴۵۶۴ أخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۳۳ رقم الحديث ۵۱۰۷

([3])رقم الحديث ۴۵۶۵ أخرجه الترمذي في ۴/۳۴۲ رقم الحديث ۲۰۵۳.

**سوال:** دا دی چې د مغربون پېژنده دې حدیث کې صرف دومره وشوه چې دا هغه خلک دي چې د هغوی سره د شیطانانو او د پیریانو مشترک عمل دی. د دط الفاظو مفهوم خپله متعین نه دی چې د پیریانو د اشتراک عمل څه مطلب دی؟

**د جواب اولنی مفهوم:** د مغربون ترجمه لرې کېدل او وړاندې کول دي. او د دې لفظ یو بل مفهوم او مطلب دا دی چې مغربون هغه خلک دي چې د جماع په وخت کې د الله د ذکر نه لرې اوسي. یعنې د جماع کولو نه مخکې بسم الله نه وایي او دا دعا نه وایي **"اللهم جنبنا الشیطان وجنب الشیطان ما رزقتنا"** دا خلک چې کله خپل ځان د الله د ذکر نه او د دې دعا نه لرې ساتي نو شیطان نزدې راشي او د جماع کونکي کس د ذکر نه خپل ذکر راتاؤ کړي او په جماع کې د دې کس سره شریک شي. د دې په نتیجه کې چې کوم اولاد پیدا شي هغه د خیر او نیکئ نه لرې شي او د شیطان هغې باندې پوره غلبه وي. چې ځینې ورته مزاحې خلک وایي. دا کس بې بسم الله پیدا شوی دی. (مرقات۸/۳۳۱) شارحین لکیي چې نن سبا د نوي نسل د وران والي یوه لویه ذریعه همدغه غلطي ده. قرآن عظیم کې د ﴿وشارکهم فی الاموال والاولاد﴾ والا آیت کې همدې حقیقت اړخ ته اشاره کړې شوې ده.

**دویم مفهوم:** دا دی چې د مغربون نه مراد زناکار نارینه او ښځې دي. چې د زنا په ذریعه حسب او نسب غائب کړي او خراب یې کړي. بل لرې نسب په خپل نسب کې شامل کړي. یا خپل نزدې نسب د بل لرې نسب کې شامل کړي او دا ټول کار د شیطان د اشتراک عمل نه کېږي. په زنا باندې آماده کول د شیطان عمل او د هغې کار دی لکه ﴿یأمرهم بالحشاء والمنکر﴾ خو الله فرمایي ﴿ولا تقربوا الزنا انه کان فاحشة وساء سبیلا﴾(سورة بنی اسرائیل:۳۲)

**دریم مفهوم:** د مغربون او د هغې د اشتراک عمل دریم مفهوم دا دی چې د دې نه مراد د پیریانو هغه نارینه دي چې د انسانانو د ښځو ورسره ناجائزه تعلقات قائم وي او هغوی د هغه ښځو سره زنا کوي او د هغې په نتیجه کې د هغه ښځو اولاد پیدا شي. دغه شان دپیریان د انسانانو شره شریک شول. انسان چې کله د خپل دین نه وړاندې شي نو پیری هغې باندې سپور شي ځکه د حفاظت بوَج ختم شي او حصار مات شی.

## الفصل الثالث

### د صحت او بیمارئ مرکز معده ده

| |
|---|
| ﴿۵۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْمَعِدَةُ حَوْضُ الْبَدَنِ |
| او حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل سرې معده د بدن حوض |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْعُرُوقُ | إِلَيْهَا | وَارِدَةٌ | فَإِذَا |
| دی. او د خیټې رګونه (چې د بانداندامونو سره پیوسته وي) د معدې ارخ ته (اوبو څښونکي پشان) راځي. | | | |
| صَحَّتِ | الْمَعِدَةُ | صَدَرَتِ | الْعُرُوقُ |
| کله چې معده صحیح وي نو دا رګونه د معدې صحت ورکونکي رطوبات سره د اندامونو ارخ ته ځي. | | | |
| بِالصِّحَّةِ | وَإِذَا | فَسَدَتِ | الْمَعِدَةُ |
| چې تربنه بدن ته طاقت حاصلیږي او کله چې معده خرابه وي نو دا رګونه فاسد رطوبات د اندامونو | | | |
| صَدَرَتِ | الْعُرُوقُ | بِالسقمِ [1] | |
| ارخ ته ځي. چې بدن ته بیماري او کمزور پیدا شي. | | | |

**توضیح**: حوض البدن: یعنې د انسان د بدن او د هغې د معدې په مینځ کې چې کوم نسبت، رشته او تعلق دی. هغه همغه نسبت دی چې د اوبو د حوض او د بوټو او د فصل په مینځ کط دی، نو د کومو اوبو او د تالاب په غاړه کې ولاړ بوټي د خپلو جړلو په ذریعه د اوبو نه د خپلې بقا لپاره حیاتیاتی رطوبات حاصلوي. همدغه شان انساني بدن د مختلفو رګونو په ذریعه د خپلې معدې نه صحت او د طاقت رطوبات حاصلوي. نو که په حوض کې اوبه پاکې او صحت بخش وي نو هغه د بوټې د تازه والي سبب جوړوېږي. او که زیګ او د مضر صحت وي نو هغه د بوټې د اوچوالي او د تباهۍ ذریعه جوړیږي. دا خو د دې حدیث مفهوم او مطلب دی. مخکې د نظام هضم باره کې څه لیکل چې نور وضاحت وشي. (مرقات ۳۳۲/۸)

**د هاضمي عجیبه قدرتی نظام**: الله تعالی د انسان په بدن کې عجیبه قدرتي نظام هضم پیدا کړی دی. چې ټول کال چلیږي. او انسان ته پته هم نه وي چې شکر ادا کړي، خوذاک چې کله معدې ته ورسیږي نو د معدي مشنرې تیزه شي او دغه شان عمل شروع شي چې معده د خوراک څه اجزاء د ګند په صورت لاندې غورزیږي. چې د مقعد په لاره خارج کیږي. او د خوراک ښه اجزاء ځګر ته ورسیږیږي. دا د نظام هضم اولنۍ مرحله ده. د دغې نه وروسته ځګر کې صفراﺋ، سوداﺋ، وینه او اوبه جمع شي. ځګر صفراء ترخي ته واچوي. دا پیکه ترخې اوبه دي. د دې یو څاڅکی ترخی معده کې اچوي چې نوي خوراک د هضمېدلو سره حل شي. همدغه څاڅکی که معدې ته غوزار نه شي بلکې بهرښی نو پول بدن کې د صفرا نه د یرقان بیماري ښوره شي. ځګر سوداء کوتلی کې اچوي او

[1] رقم الحديث ۴۵۶۶ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۶۶/۵ رقم الحديث ۵۷۹۶.

تلی تازه وي. ځګر او به ګردو ته ورسوي او د ګردو د لارو نه تېرېدلو سره فضله او به مثانه کې جمع کړي او د متيازو صورت اختيار کړي. او متيازې د نالۍ نه خارج شي.
ځيګر وينه زړه ته رسوي او زړه کې د پمپنګ دفاعې نظام دی چې دا وينه بدن کې ټولو رګونو او شريانونو کې ښورهولو سره متحرک ساتې. همدغه حرکت که د پنځه منټو لپاره بند شي نو انسان مړ شي. د نبض حرکت د همدغې نظام برخه ده. همدغه وينه چې د خزينه ځناور د تڼينو ته ورسي نو هلته د تې په غوشه کې الله داسې د فلټر سستم قائم کړی دی چې همدغه وينه صاف او پاک شو دو کې بد شي. چې بيا يې انسان په مزو سره څښي. "**فتبارك الله احسن الخالقين**" د بحث لاندې حديث کې همدغه عجيب او غريب نظام هضم او نظامِ قدرت اړخ ته نبي کريم ﷺ اشاره کړې ده چې "**المعدة حوض البدن**" او د همدغه عجيب نظام اړخ ته الله اشاره کړې ده چې عيسى عَلَيۡهِ السَّلَامُ او د هغې مور (بي بي) خدا نه ؤو بلکې د خدای بنده ګان ؤو. "كانا يأكلان الطعام" هغې دواړو به خوراک کولو. او دې اوږد نظام هضم نه به هغوی تېرېدل. د دې د شکر ادا کولو اړخ ته بابا سعدی اشاره کې ويلي دي

ابر و باد و مه و خورشيد فلک در کار اند     تا تو نانے بکف آرے و بغفلت نخوری

## د لړم د خوړلو علاج

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾ وَعَن عَلِيٍّ قَالَ: بَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ يُصَلِّي فَوَضَعَ يَدَهُ |
| او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ شپه کې نبي کريم ﷺ لمونځ کولو کې خپل لاس |
| عَلَى الْأَرْضِ فَلَدَغَتْهُ عَقْرَبٌ فَنَاوَلَهَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَعْلِهِ |
| په زمکه ايښی ؤو چې دې (لاس) په ګوته لړم وچيچلو. نبي کريم ﷺ د خپل پاپوش مبارک |
| فَقَتَلَهَا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: لَعَنَ اللهُ الْعَقْرَبَ |
| په ذريعه هغه لړم اوژلو او کله چې د لمونځ نه فارغ شو نو ويې فرمايل چې لړم باندې د خدای لعنت وي، |
| مَا تَدَعُ مُصَلِّيًا وَلَا غَيْرَهُ أَوْ نَبِيًّا وَغَيْرَهُ |
| نه لمونځ کونکی پرېږدي او نه غير لمونځ کونکي. يا يې دا و فرمايل چې نه نبي پرېږدي او نه غير نبي. |
| ثُمَّ دَعَا بِملحٍ وماءٍ فَجعله فِي إِنَاءٍ |
| د هغې نه وروسته نبي کريم ﷺ مالګه او اوبه راوغوښتل او دواړه يې په يو لوښي کې حل کړل |
| ثُمَّ جَعَلَ يَصُبُّهُ عَلَى أُصْبُعِهِ |
| او بيا به نبي کريم ﷺ دا اوبه او مالګه د ګوتې په هغه برخه باندې وا چول چې په کوم ځای |

حَيْثُ لَدَغَتْهُ وَيَمْسَحُهَا وَيُعَوِّذُهَا بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ.
لړم خوړلی ؤو او ګوته به یې مښله. او قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس لوستلو. دا
رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[1]
دواړه روایتونه بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړي دي.

## دنبي کريم صلى الله عليه وسلم ويخته مبارک

﴿۵۳﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ: أَرْسَلَنِي أَهْلِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ بِقَدَحٍ مِنْ مَاءٍ
او حضرت عثمان ابن عبد الله ابن موهب فرمايي (يو ورځ) زما کور والو ماته د اوبو يوه پياله او راکړه او
وَكَانَ إِذَا أَصَابَ الْإِنْسَانَ عَيْنٌ
ام المؤمنين حضرت ام سلمة رضي الله عنها ته يې ولېږلم. معمول دا ؤو چې کله به څوک نظره شو يا به بله کومه
أَوْ شَيْءٌ بَعَثَ إِلَيْهَا مِخْضَبَهُ فَأَخْرَجَتْ مِنْ شَعْرِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
بيماري وه نو ام سلمه ته به يې يوه پياله لېږله او ام سلمه رضي الله عنها به د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ويخته مبارک راويستل
وَكَانَتْ تُمْسِكُهُ فِي جُلْجُلٍ مِنْ فِضَّةٍ فَخَضْخَضَتْهُ لَهُ
چې هغې به د سپينو زرو په يو لوښي کې اېښودل او ويخته مبارک به يې اوبو کې اچولو سره ښوروول او
فَشَرِبَ مِنْهُ قَالَ: فَاطَّلَعْتُ فِي الْجُلْجُلِ
بيا به مريض هغه اوبه څښلې (چې د هغې په برکت سره به الله هغې ته شفا ورکوله) راوي وايي چې
فَرَأَيْتُ شَعَرَاتٍ حُمْرَاءَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2]
ما د سپينو زرو لوښي ته وکتل نو ماته د (نبي کريم صلى الله عليه وسلم) د ېر سره ويختان ښکاره شول.

**توضيح**: **بقدح**: ماته پياله راکولو سره زما د کور والو زه د حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته ولېږلم.

**وكان**: يعنې هغه وخت دا معمول ؤو چې څوک به بيمار شو نو هغې به خپل لوښی ام سلمه ته ولېږل او ام سلمه سره به د نبي کريم ﷺ ويخته مبارک د سپينو زرو په يو لوښي کې اېښي ؤو. حضرت ام سلمه به د هغې نه يو يا زيات ويختان راويستلو سره د هغه کس په پياله کې اچولو سره ښوځولو چې د ويخته مبارک برکت اوبو کې راشي. هغه کس به د خپلې پيالې نه همدغه مبارکې اوبه ورلې او

---

([1])رقم الحديث ۴۵۶۷ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۵۱۸/۲ رقم الحديث ۲۵۷۵

([2])رقم الحديث ۴۵۶۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۵۲/۲۰ رقم الحديث ۵۸۹۶

خپل مریض ته به یې د شفا په غرض ورکول.

**مخضبه:** میم باندې زیر دی او خ ساکن دی. ض باندې زبر دی او د ب نه وروسته ضمیر دی چې انسان ته راجع کیږي. مخضب ټب، ترمای، لګن، تهال او تغاری ته وایي. مراد ترینه لوښی دی چې اوبه په کې ایښودل کیږي.

**فاخرجت:** یعنې د حضرت ام سلمه رضي الله عنها عادت ؤو چې د هغه ویختانو نه به یې ځینې ویختان راویستل چې په ابو کې یې واچوي. (مرقات ۸/۳۳۴)

**جلجل:** یعنې دا ویختان حضرت ام سلمه رضي الله عنها د سپینو زرو په یو ډبې او لوښي کې محفوظ کړي ؤو. جلجل اګر که جرس او شرنګنې ته وایي خو دلته د شرنګنې پشان ډبی مراد دی. چې د سپینو زرو نه جوړ شوی ؤو او د دې مقصد لپاره سپین زر استعمالیدل، لکه څنګه چې کعبې ته رینم اغوستلی کیږي او سره زر پرې لګوي.

**فخضخضته:** د مضمضته پشان دی لفظاً او معنی. یعنې ام سلمه د نبي کریم ﷺ ویختان د هغه کس په لوښي کې واچول او وې ښوځول چې اوبو کې برکت راشي. دا مطلب زیات واضح دی. خکه د دې نه مخکې حدیث کې تصریح موجود ده چې ام سلمه به راویستل چې د سپینو زرو په ډبو کې به یې ایښودل، خو ملاعلي قاري دلته دا ضمیر د جلجل اړخ ته راجع کړی دی. هغه فرمایي "ای حرکت الجیجل فی الماء" دبی به یې اوبو کې کیښدلو سره حرکت ورکولو. شیخ عبدالحق اشعة اللمعات کې صراحت سره لیکلي دي چې حضرت ام سلمه رضي الله عنها ویښته مبارک د هغه کس په لوښي کې اوبو کې اچولو سره حرکت ورکولو چې دې کې برکت راشي، نو یو ځای کې لیکي "**فاخرجت من شعر**" *پس بیرون می آورد ام سلم بعضے از مویہائے پیغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و دران ظرف می انداخت.*

**فخضخضته: پس می جنبانید ام سلمه مخضب را که دروی آب بؤوی و مو یهائے شریف رادروی انداخق.** یعنې حضرت ام سلمه رضي الله عنها به چې کوم موئې مبارک په کوم لوښي کې اچولي، هغه لوښی به یې ښوځولو. دې حدیث په پوهه کېدلو کې ماته همیشه قلق ؤو. نن **الحمد لله** دا حدیث حل شو او زړه خوشحاله شو. (مرقات ۸/۳۳۴، اشعة اللمعات)

## د خرېږي خواص

| |
|---|
| ﴿۵۲﴾وَعَنْ أَبِي هريرةَ إِنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا |
| او د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو رضي الله عنهم کې ډېرو |
| لرسولِ الله: الْكَمْأَةُ جُدَرِيُّ الْأَرْضِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| صحابؤ عرض وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! خرېږي د زمکې داني دي؟ نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْكَمْأَةُ | مِنَ | الْمَنِّ | وَمَاؤُهَا | شِفَاءٌ | لِلْعَيْنِ | وَالْعَجْوَةُ |

نا (بلکي) خرېړې د من د قسم نه دي او د دې اوبه د سترګو لپاره شفا ده او عجوه چې د کجورو د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ | الْجَنَّةِ | وَهِيَ | شِفَاءٌ | مِنَ | السُّمِّ. | قَالَ | أَبُو هُرَيْرَةَ: |

ټولو نه اعلی او ښه قسم دی. د جنت کجوره ده. او دې کې د زهرو نه د شفا خاصيت دی. ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَخَذْتُ | ثَلَاثَةَ | أَكْمُؤٍ | أَوْ | خَمْسًا | أَوْ سَبْعًا |

چې (نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) دا ارشاد اورېدلو سره ما درې يا پنځه ځل يا اؤوه (۷) ځل خرېړې واخستل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَعَصَرْتُهُنَّ | وَجَعَلْتُ | مَاءَهُنَّ | فِي | قَارُورَةٍ | وَكَحَلْتُ | بِهِ |

او هغه مې وزبېښل او د دې اوبو نه مې شيشه ډکه کړه او بيا مې دا اوبه مې د يوې چندهي وينځې

جَارِيَةً لِي عَمْشَاءَ فَبَرَأَتْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حسن[1]

په سترګو کې واچولې نو هغه پرې ښه شوه. (روايت کړي دي ترمذی)

**توضيح: الكماة**: غريزو علاقو کې باراني په مياشتو کې ځمکه او په ځمکه باندې پرتو لړرو کې يو شيز پيدا کېږي چې ډېر قسمونه يې دي. ځينې د بال د ګلانو پشان وي، ځينې د چترو پشان وي چې د پاس نه تورنګې وي او د لاندې سپين وي. چې باريکه نالئ په کې وي. کوم چې دا شيز ډکرې کوی. د دې خوند د غوښې وي. دا ساګ يا د غوښې پشان پخول کېږي. ډېر خوندور وي. پښتو کې ورته "خرېړې" وايي. د افريقې ملک زامبيا کې يې غريب خلک په شکرو کې ډک ډک د سرک غاړې ته راوړي او خرڅوي يې. (مرقات۸/۳۳۵)

**جدري الارض**: دا د خرېړې يو قسم دی. چې ګويا کې ځمکې باندې د بدن د دانې پشان وي. چې د دانو پشان وي. په دې وجه صحابه کرامو وپوښتل چې آيا دا د زمکې دانو دی؟(مرقات۸/۳۳۵،۳۳۴)

**من المن**: يعنې لکه څنګه د نعمت په توګه الله د بنی اسرائيلو ته من او سلوی ورکړې وه. دا خرېړې مونږ لپاره د من په ځای دی. دا دانې نه دی بلکې نعمت دی. چې د محنت نه بغير يې الله ورکوي. صحابه کرامو هم د خرېړې چې غندنې اراده وکړه. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوی خيال رد کول سره دا نعمت وګڼلو. خرېړې ته مار چترئ هم وايي.

**وماء ها شفاء**: يعنې د سترګو د بيمارو او د نظر لپاره شفاء ده. چې د دې د اصلي طبعي زبېښلو سره حاصل کړی شي او بيا د دې څاڅکې په سترګو کې واچولی شي. دا انفرادي توګه باندې هم علاج

---

(۱)رقم الحديث ۴۵۶۹ أخرجه الترمذي في السنن ۳۵۱/۴ رقم الحديث ۱۲۰۶۸ وابن ماجه في السنن ۱۱۴۳/۲ رقم الحديث ۳۴۵۵

دی. او امکان لري چې د نورو دوايانو سره ملاؤولو سره پرې علاج کېږي. د دې حديث په آخري برخه کې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله تجربه نقل کړې ده. چې ترېنه معلومېږي چې دا انفرادي توګه باندې علاج دی. (مرقات ۳۳۵/۸)

**عمشا:** داسې جينئ د کومې سترګې چې بريخی. (مرقات ۳۳۵/۸)

## د هرې مياشتې اولنئ درې ورځو کې شهد څټولو سره شفاء

| |
|---|
| ﴿۵۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَعِقَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کوم کس چې هره مياشت کې |
| الْعَسَلَ ثَلَاثَ غَدَوَاتٍ فِي كُلِّ شَهرٍ لم يصبهُ عَظِيم الْبَلَاء[1] |
| درې ورځې د سحر وخت کې شهد څټې نو هغه به هيڅ لويې مصيبت کې نه اخته کېږي. |

**توضيح: ثلاث:** حديث کې د هرې مياشتې درې ورځې ويل شوي دي. هغه که هرې درې ورځې وي، خو د مياشتې ابتدائی درې ورځې دې مقررې کړی شي، نو د نظم و ضبط په اعتبار سره بهتر وي. البته په نهره د څټلو اړخ ته د غدوات لفظ نه اشاره کېدی شي. لهذا په نهره اوبو کې ملاوېدلو سره سره څښل پکار دي. يا دې هسې وڅټلی شي، خو شرط دا دی چې شهد خالص وي، د فارم نه وي، نه د شکر نه جوړ شوي وي. طبيبان ليکي چې د په نهر خوله د شهدو څټل بلغم څټې. معده صفا کوي. د دې لزوجت او فضلات لرې کوي. معده په اعتدال سره ګرمه وي. د بدن بندونه پرانېزي. د دې نه بغير شهد د بدن استرخاء او هر قسمه رياح ختموي. متيازې، حيض او د ښځې شوده روانوي. مثانه او ګردو کې کاڼي ماتوي. د بدن بيکاره مواد خارجوي.

## د شفاء دوه غټې ذريعې

| |
|---|
| ﴿۵۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عَلَيْكُمْ |
| او حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د شفا ورکونکي |
| بِالشِّفَاءَيْنِ: الْعَسَلِ وَالْقُرْآنِ". رَوَاهُمَا ابْنُ مَاجَهْ |
| دوه شيان په خپل ځان باندې لازم کړئ. يو خو شهد دی او بل قرآن. دا دواړو روايتونه ابن ماجه او |
| وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَقَالَ: وَالصَّحِيحُ |
| بهيقی په شعب الايمان کې نقل کړي دي. او بيهقي ويلي دي چې دا صحيح دي. بل حديث (يعني |

[1] رقم الحديث ۴۵۷۰ اخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۴۲/۲ رقم الحديث ۳۴۵۰ والبيهقي في شعب الايمان ۹۷/۵ رقم الحديث ۵۹۳۰.

| |
|---|
| أَنَّ الْأَخِيرَ مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ مَسْعُودٍ[1] |
| عليكم بالشفائين) مرفوع نه دی بلکي ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې موقوف دی. |

## بغیر ضرورت نه ښکر لګول نقصان ورکونکی دی

| |
|---|
| ﴿۵۷﴾ وَعَن أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ |
| او حضرت ابو کبشه انماری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه بيمارۍ په سبب چې |
| عَلَى هَامَتِهِ مِنَ الشَّاةِ الْمَسْمُومَةِ |
| د بزې د زهرو ډکه غوښه خوړلو په وجه لړېدلې وه، په خپل سر يې ښکر ولګولو. (د حديث يو راوي) |
| قَالَ مَعْمَرٌ: فَاحْتَجَمْتُ أَنَا مِنْ غَيْرِ سُمٍّ كَذَلِكَ فِي يَافُوخِي |
| د معمر بيان دی چې ما د هيڅ يو زهر جن شي د خوړلو نه بغير د غه شان ښکر يې په سر ولګولو نو زه د |
| فَذَهَبَ حُسْنُ الْحِفْظِ عَنِّي حَتَّى كُنْتُ أُلَقَّنُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ فِي الصَّلَاةِ. رَوَاهُ رزين[2] |
| خپلې حافظې د خوبۍ نه محرومه شوم. ترديږې چې لمونځ کې به د الحمد د زده کولو ضرورت پيښ شو. |

**توضيح: يافوخي**: يعنې د ضرورت نه بغير يا د تجربې نه بغير مې د سر کې تالو باندې ښکر اولګولې شي. دې سره مې د حافظې قوت ختم شو. د دې نه معلومه شوه چې د ضرورت نه بغير نه خو آپريشن (عمليات) کول پکار دي او نه وينه ويستل پکار دي. که ضرورت هم وي نو بيا هم د تجربې د لاندې کول پکار ده (مرقات ۳۳۸/۸).

نیم حکیم خطرۂ جان    نیم ملا خطرۂ ایمان

## د ښکر لګولو ورځ

| |
|---|
| ﴿۵۸﴾ وَعَن نَافِعٍ قَالَ: قَالَ ابْنُ عُمَرَ: يَا نَافِعُ يَنْبَغُ بِيَ الدَّمُ |
| او حضرت نافع فرمايي: (يوه ورځ) حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې نافع زما بدن کې وينه جوش وهي. ته |
| فَأْتِنِي بِحَجَّامٍ وَاجْعَلْهُ شَابًّا وَلَا تَجْعَلْهُ شَيْخًا |
| راله د ښکر لګونکی راوغواړه خو ځوان سړی راوله. بوډا يا ماشوم مه راوله. (ځکه مضبوط کس به ښکر |
| وَلَا صَبِيًّا. وَقَالَ ابْنِ عُمَرُ: |
| لګوي) نافع وايي چې د هغې نه وروسته حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه |

---

[1] رقم الحديث ۴۵۷۱ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۴۲/۲ رقم الحديث ۳۴۵۲ والبيهقي في شعب الايمان ۵۱۹/۲ رقم الحديث ۲۵۸۱.

[2] رقم الحديث ۴۵۷۲ رواه رزين مرقاة المفاتيح ۳۸۸/۸

سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: الْحِجَامَةُ عَلَى الرِّيقِ أَمْثَلُ وَهِيَ تَزِيدُ فِي الْعَقْلِ

اوريدلي دي ډک خکر په نهره ويستل زيات بهتر دي. دي سره عقل زياتيږي (چې د چا حافظه کمزوري

وَتَزِيدُ فِي الْحِفْظِ وَتَزِيدُ الْحَافِظَ حِفْظًا فَمَنْ

وي) د هغې حافظه تيزه شي. او (د چا چې حافظه تيزه وي د هغې) حافظه زياته شي. لهذا کوم کس

كَانَ مُحْتَجِمًا فَيَوْمَ الْخَمِيسِ عَلَى اسْمِ اللهِ تَعَالَى وَاجْتَنِبُوا الْحِجَامَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

چې خکر لګول غواړي نو هغه دې د الله نوم اخستلو سره د پنجشنبې په ورځ خکر ولګوي او د جمعې،

وَيَوْمَ السَّبْتِ وَيَوْمَ الْأَحَدِ فَاحْتَجِمُوا يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الثُّلَاثَاءِ

شنبې او د يکشنبې په ورځ د خکر لګولو نه ځان وساتئ. بيا د دوشنبې او سه شنبې په ورځ ولګوئ

وَاجْتَنِبُوا الْحِجَامَةَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ فَإِنَّهُ الْيَوْمُ الَّذِي أُصِيبَ بِهِ أَيُّوبُ

او د چهارشنبې په ورځ د خکر لګولو نه ځان وساتئ، ځکه د چهارشنبې ورځ هغه ورځ ده چې ايوب عَلَيْهِ السَّلَامُ په

فِي الْبَلَاءِ. وَمَا يَبْدُو جُذَامٌ وَلَا بَرَصٌ إِلَّا فِي يَوْمِ الْأَرْبِعَاءِ أَوْ لَيْلَةِ الْأَرْبِعَاءِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه[1]

امتحان کې اخته شوی ؤو او د جذام يا د برګې بيماری د چهارشنبې په ورځ يا د چهارشنبې په شپه ظاهريږي.

**توضیح**: الثلثاء: فصل ثانی کې حديث نمبر ۳۶ کې ذکر دي چې د سه شنبې په ورځ خکر مه لګوه او دلته حديث کې د دې ورځې اجازت هم ملاو شوی دی او فضيلت هم دی. دا تضاد دی. د دې جواب دا دی د حضرت کبشه چې کوم حديث تير شوی دی هغې باندې کلام دی. دويم جواب دا دی چې د فضيلت او د اجازت د هغه سه شنبې باره کې دی چې د هرې مياشتې په اؤولسم (۱۷) تاريخ کې راځي. د هرې سه شنبې فضيلت او اجازت نشته دی. د دې حديث په آخر کې چې د کوم مصيبتونو ذکر شوی دی دا اغلبي امور دي. هيڅ حصر نه دی. (مرقات۸/۳۳۸)

## خکر وي اؤولسم تاريخ وي او د سه شنبې ورځ وي

﴿۵۹﴾ وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْحِجَامَةُ يَوْمُ الثُّلَاثَاءِ

او حضرت معقل ابن يسار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د سه شنبې په ورځ

(1) رقم الحديث ۴۵۷۳ اخرجه ابن ماجه في السنن ۱۱۵۳/۲ رقم الحديث ۳۴۸۷

| |
|---|
| لِسَبْعَ عَشْرَةَ مِنَ الشَّهْرِ دَوَاءٌ لِدَاءِ السَّنَةِ . رَوَاهُ حَرْبُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْكِرْمَانِيُّ |
| اؤولسم تاریخ خکر لګول د ټول کال د بیماریو علاج دی. دا روایت حرب ابن اسماعیل د کرماني نه نقل کړی دی |
| صَاحِبُ أَحْمَدَ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ |
| چې د امام احمد بن حنبل مصاحب دی. او د روایت اسناد داسې (قوي) نه دي چې دې باندې اعتماد |
| بِذَاكَ هٰكَذَا فِي الْمُنْتَقى |
| وکړی شي (د ابن جارود کتاب) ملتقی کې هم دغه شان منقول دي. او د غه شان روایت رزین هم د |
| وروى رزين نحوه عَن أَبِي هُرَيْرَةَ[1] |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت کړی دی. |

**توضیح**: دې حدیث کې د سه شنبې په ورځ د خکر لګولو او د جواز ذکر دی، خو د دې نه مخکې د حضرت کبشه په حدیث نمبر ۳۶ کې د سه شنبې دخکر لګولو د ممانعت ذکر دی، نو د دې یو جواب دا دی چې حضرت کبشه په روایت باندې کلام دی. هغه د دې مقابله نه شي کولی. دویم جواب دا دی چې د ممانعت د سه شنبې د ورځې دی، خو که د سه شنبې ورځ د میاشتې به اؤولسم تاریخ راشي نو د دې هم اجازت شته دی. او فائده هم ده. خلاصه دا چې خکر لګوي نو اؤولسم تاریخ وي او د سه شنبې ورځ وي نو اجاز اجازت دی. لهذا تضاد نشته دی.



(1) رقم الحدیث ۴۵۷۴ مرقاة المفاتیح ۸/۳۹۰

# باب الفال والطيرة
# فال او د سپيروالي بيان

**كتنه**: الحمدلله دا سطور په ۲۹ د شعبان ۱۴۲۶هـ په بيت الله الحرم مكه مكرمه كې ليكم.
لفظ فال د همزه نه بغير استعماليږي. اردو كې هم دې ته فال وايي او شگون هم ورته وايي. اصل كې فال مطلق شگون كې استعماليږي، خو د دې غالب استعمال په ښو او بدو كې استعماليږي. د ښه فال او بد شگون مطلب دا دى چې سړي په يو خاص حالت كې ښه كلمې اورېدلي وي يا يې يو ښه شى ليدلى وي نو هغه يې د خپل ښو او د كميابۍ راز وگڼلو. مثلاً يو كس مريض دى. د مرگ په كشمكش كې اخته دى. هغې د چانه واورېدل چې ويل يې يا سالم يا يو كس د تجارت په سفر باندې وتلى وي چې هغې چاته دا وويل چې سنا يا ناجح يا فائز يا راشد يا يو كس د دشمن مقابلې له ميدان ته وتلى وي چې هغې يو كس وليدلو چې نوم يې ظفر علي خان يا فتح علي خان ؤو. چې د فتحې اړخ ته په كې اشاره ده. يا يو كس بل وطن كې يو ښار ته داخليدلو چې مخې ته يو كس ورغلو چې نوم يې بُريد ؤو. چې د يخ او ښه حالت اړخ ته په كې اشاره كيدله يا يو كس د خپل ورك شوي شي پسې ؤوتلو چې گوري نو مخې ته يو كس راروان ؤو او چاته يې ويل يا واجد. د دې الفاظو د خپل مقصد لپاره ښۀ گڼل فال دى. شرعي اعتبار سره نيک فال او نيک مقصد اخستل او په هغې باندې د ښو اندازه كول جائز ده. فال كله په بدۍ كې هم استعماليږي. چې بد فالي يا بد شگوني ورته وايي. شرعاً د بد فالي اخستل او بد فالۍ اجازت نشته دى.

**الطيرة**: دا مصدر دى چې تطير د باب تفعل نه په خاصه توگه راځي. عام مصدرونه داسې نه وي. الطيرة فقط د بدفالي په معنى كې راځي. د دې لفظ په مفهوم كې طير او طيران پروت دى. چې د الوتلو په معنى كې دى. عربو كې دا رواج ؤو چې هغوى كې به يو سفر ته تللو نو د مرغانو جالې يا داسې نور ځايونو نه به يې د مرغو د پاڅولو كوشش كولو، د دې لپاره چې نيک فال ونيسي. كه چرې مرغۍ به ښي اړخ ته والوته نو دا به عربو مباركه گڼله. او دې ته به يې ايمن ويله. او سفر به جاري ساتلو. او كه چرته مرغۍ به چپ اړخ ته والوتله نو هغه به يې نامباكره گڼله او هغې ته به يې اشأم ويله يعنې منحوس او سفر به يې بيا نه كولو. د ايمن ترجمه ده مبارک او د اشأم ترجمه ده منحوس او نامبارک؟
عربو به د خپل رسم د لاندې مرغۍ ته سانح او بارح هم ويله. (مرقات۸/۳۴۱)
سانح به يې هغې ته ويل چې ښي اړخ ته به الوتله او بارح به يې هغې ته ويل چې چپ اړخ ته به الوتله.

دا چې د ټول د جاهلیت ادهام ؤو، ځکه اسلام دا منع کړل، ځکه هر مسلمان باندې لازم دي چې د دې وهمونو نه ځان وساتي چې صحیح مسلمان پاتې شي. د هر قوم او د دریې علاقې جدا جدا ادهام او رسمونه دي. حدیثونو کې د دې ادهام بیان دی چې په عربو کې یې رواج ؤو، خو د شریعت حکم عام دی. چرته او چې په کومه اندازه کې هم وي نو شریعت د دې ادهام رد کوي.

# الفصل الاول

## بدفالی نېول منع دي

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ:لَا طِيَرَةَ وَخَيْرُهَا |
| حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایي چې ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دا اورېدلي دي چې بدفالي حقیقت دی. |
| الْفَأْلُ قَالُوا: وَمَا الْفَأْلُ؟ قَالَ: |
| د دې نه بهتر خو (ښه فال دی) صحابؤ عرض وکړو چې او فال څه شی دی؟ نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل |
| الْكَلِمَةُ الصَّالِحَةُ يَسْمَعُهَا أَحَدُكُم (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| چې هغه ښه کلمه ده چې تاسو کې یې کوم واورې او د هغې نه د ښه امید پیدا کوي. |

**توضیح**: لاطیرة: یعنې د بد فالئ هیڅ حقیقت نشته دی. د نفع او نقصان حقیقي مالک خو د الله ذات دی. د ضرر لرې کولو کې د بدفالئ هیڅ دخل نشته دی. لهذا د دې اړخ ته نسبت کول او دا حقیقي ګڼل شرک دی. د بد فالئ د ذکر کولو نه وروسته نبي کریم صلی الله علیه وسلم د نیک فال تعریف کړی دی. او ویې فرمایل "**وخیرها الفال**" یعنې د دې بدفالئ نه بهتر خو فال ښه دی. د فال او طیرة متعلق مخکې تفصیل تېر شوی دی. (مرقات۳۴۲/۸)

**پوښتنه**: اوس دلته دا پوښتنه پیدا کېږي. هغه دا ده چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د فال باره کې وفرمایل چې دا د طیرة نه ډېر ښه دی. د دې نه معلومې ږي چې طیره هم څه نه څه ښه دی. حال دا چې طیره کې هیڅ ښه نشته دی؟

**جواب**: د دې ظاهري پوښتنې جواب دا دی چې دلته د خیر لفظ د اسم تفضییل معنیٰ کې نه دی استعمال شوی. بلکې خپل اصل معنیٰ کې استعمال شوی دی. "**الصیف احر من الشتاء**" دلته شتاء کې د حرارت تصور نشته دی او حال دا چې د صیف حرارت د دې نه زیات وي بلکې دومره ویل

---

[1] رقم الحدیث ۴۵۷۶ أخرجه البخاري في صحیحه ۲۱۲/۱۰ رقم الحدیث ۵۷۵۴ ومسلم في ۱۷۴۵/۴ رقم الحدیث (۱۱۰-۲۲۲۳)

دي چې د يخنئ موسم ګرم وي. دغه شان د "**وهواهون**" صيغه د هين په معنى کې ده، **واصحاب الجنة خير** خپل اصل معنى کې استعمال شوى دي يا لکه "**الاخص والاعم**" خپل اصل معنىٰ کې دى يا "**العسل احلى من الحنظل**" کې **احلىٰ** اصل فعل کې استعمال شوى دى نو د "**خيرا لفال**" هم دغه شان دى. (مرقات ۳۴۲/۸)

## يو څو بې اصله وهمونه او د هغې بطلان

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د بيمارۍ يو بل ته لېږدل |
| وَلَا هَامَةَ وَلَا صفر وفر مِنَ الْمَجْذُومِ |
| او بدفالي بامه او صفر دا ټول څيزونه بې حقيقت دي. (البته) تاسو د جذام نه داسې تښتئ لکه |
| كَمَا تَفِرُّ مِنَ الْأَسَدِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| څنګه چې د زمرې نه تښتئ. (بخاري) |

**توضيح**: **لاعدوى**: يعنې د بيمارۍ کې د ذات پات فلسفه غلطه ده او د عوامو دا خيال صحيح نه دى چې بيماري د يو نه بل ته لګيږي. د عام طبيبانو خيال دى چې اوهٔ (۷) قسمه بيمارۍ داسې دي چې يو بل ته لګي: ۱: برګى ۲: چيچک ۳: خارښ ۴: دانې او د بدن تنګى ۵: ګنده تنکى ۶: رمد يعنې د سترګو خوږېدل. ۷: وبائي مرضونه. د طبيبانو دا خبره او د هغوى تجربې په خپل ځاى خو حديثونو مقدسؤ او د شريعت دا تعليم دى چې د يو بل د بيمارۍ د لګېدو عقيده ساتل او دا ګڼل چې صرف او صرف د دې بيمارۍ په وجه زه بيمار شوم نو دا وهم پرستيَ ده. بيماري د الله په حکم راځي او د هغه د قدرت په نظام خورېږي. که د لږ ساعت لپاره دا اومنل شي چې دا بيماري د يو کس نه بل کس ته لږې نو پوښتنه دا ده چې هغه اول کس ته څنګه راغله؟ ظاهر خبره ده چې د الله د حکم مطابق راغلې ده، نو څنګه چې اولني کس د الله په حکم بيماري راځي نو دغه شان بل کس ته هم د الله په مستقل حکم راځي. د طبيبان وخيال او د هغوى د تجربو دا توجيه کېدى شي چې دې حضراتو د بيمارۍ ظاهري سبب او علت ليدلى دى او شريعت د بيمارۍ اصلي او حقيقي علت بيان کړى دى. دواړو کې هيڅ تضاد نشته دى. د انبياء کرامو تعليم او د هغوى مؤثر نظر حقيقي په الله باندې وي. لهذا د ظاهري اسبابو ذکر نه کوي، خو طبيبان او عوام ظاهري اسبابو ته ګوري نو د هغې ذکر کوي.

---

(۱) رقم الحديث ۴۵۷۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵۸/۱۰ رقم الحديث ۵۷۰۷ واحمد في المسند ۴۴۳/۲.

لا طيرة: د دې تشريح د دې نه مخکې حديث نمبر ۱ کې شوي ده.

ولاهام: د عربۍ لغت په اعتبار سره د هامه د سر کوپړۍ ته وايي، خو دلته د دې لفظ مختلف مفهومونه بيان کړی شوي دي: ۱: ځينې علماؤ دا مفهوم بيان کړی دی چې د هامه نه مراد هغه مرغۍ ده چې د مړې د کوپړۍ نه پيدا کېږي. د جاهليت په زمانه کې د عربو دا خيال ؤو چې کله سړی مړ شي نو د هغې د کوپړۍ نه يوه مرغۍ پيدا شي. هغه د مړې کور ته راځي چې د هغه کور لپاره د نحوست علامت وي. اسلام دا عقيده رد کړه چې داسې قصه نه ده. دا خو وهم پرستي ده.

۲: ځينې علماؤ د هامه دا مفهوم بيان کړی دی چې د هامه نه مراد ګونګی (مراد ترېنه نه هغه مارغه دی چې اکثر د شپې الوځي) د عربو عقيده وه چې کله يو کس بل کس مړ کړي نو د وژل شوي کوپړۍ او سر نه ګونګي په شکل يو مرغۍ پيدا کېږي. دا ګونګی چغې وهي چې ماله اوبه راکړئ يعنې زما انتقام واخلئ. چې د وژلی شوي وراثان د هغې قصاص او بدله نه اخلي نو دا مرغه فرياد کوي. د جاهليت د عرب شاعرانو دا عقيده په خپلو شعرونو کې ښه مشهوره کړې ده. يو حماسې شاعر د خپلو دوستانو په قبرونو باندې دا شعر وايي (مرقات ۳۴۴/۸).

اقيم على قبريكما لست بارحاً طوال الليالى او يجيبصدا اكما (حماسه ص: ۱۵۰)

دا چې د "صدا" دی. دا همدې عقيدې اړخ ته اشاره ده. اسلام د جاهليت دا عقيده راطله کړې ده.

۲: ځينې علماؤ د هامه دا مفهوم بيان کړی دی چې هامه د بوم او د بومه نه همدغه متعارف ګونګی مراد اخستی دی. د ګونګي متعلق د عربو خيال ؤو چې چرته دا په يو ځای وغيره باندې کېني نو هغه ځای وران او تباه شي. ګويا که د ګونګي جاله وران ځای دی. د اردو شاعر وايي:

بلبلوں نے کر لیا گلشن میں جا بوم ویرانے میں ٹکراتا رہا

عربو نه بغير د عجمو ځينې وهم پرست نا پوهه خلک هم د ګونګي متعلق همدغه خيال کوي. شريعت دا وهمونه رد کړي دی. (مرقات ۳۴۴/۸)

ولاصفر: شارحين د دې لفظ دوه مفهومه بيانوي. اولنی مطلب دا دی چې د جاهليت په زمانه کې د عربو عقيده وه چې کله د صفرا لمضفر مياشت راشي نو هغه د ځان سره مختلف مصيبتونه راولي. دا منحوسه مياشت ده. لهذا دې کې واده کول پکار نه دی. زمونږ علاقوم کې وهم پرستې ښځې د خپلو سرونو نه ټوټې تاو کړي او په لاس کې لرګی راواخلي او د کور ګوټونه او ستنې وهلې او په خوله لګيا وي "سپيرې بال اوزه سپيرې بال اوه." يعنې د صفر بال زمونږ د کور نه اوه اوزه. شريتع دې ته وهم پرستي وايي. او حکم يې وکړو چې لاصفر يعنې صفر کې هيڅ نحوست نشته دی.

د لا صفر دويم مفهوم شارحين داسې بيانوي چې د ځينې وهم پرستو خلک خيال ؤو چې د د خيټې دننه د يو چينجي نوم صفر دی. دا وړی کېږي نو خيټه کې دننه کولمې خوري چې سړی ترېنه مړ شي. شريعت دا وهم رد کړو. ځينو د دې لفظ دريم مفهوم داسې بيان کړی دی چې دې کې د نسيئ اړخ ته

اشاره ده. چې صفر په محرم او محرم په صفر کې بدلول جائز نه دي، لکه څنګه چې به عربو د خپلو ضرورتونو، غرضونو او مقصدونو لپاره د میاشتو او کلونو کې رد و بدل کولو، چې تفصیل یې د دې نه مخکې په کتاب الحج کې تېر شوی دی. (مرقات ۸/۳۴۴)
لاندې روایت نمبر ۴ کې د "ولانو" الفاظ هم راغلي دي. د دې مطلب دا دی چې باران د الله په حکم کېږي. د کوم برج یا د ستوري په وجه نه کېږي لکه څنګه چې د عربو خیال ؤو چې نوء ستوری او د برج په وجه بارانونه نه کېږي او د عجمو خلک د سُهیل او سُهیلئې او ګُپ او ګُپ ارخ ته باران منسوبوي.
**وفر من المجذوم**: جذام یو خطري بیماري ده چې اعضاء پرې غیرمتوازن کېدلو سره مات شي.
**پوښتنه**: د جذام والا متعلق مختلف حدیثونه راغلي دي. د بحث لاندې حدیث کې دي چې د جذام والا کس نه داسې تښتئ لکه تاسو چې زمري خطرې ګڼئ او ترېنه تښتئ. دویم حدیث کې دي چې یو د جذام مرض والا کس د نبي کریم ﷺ سره د بیعت کولو اراده وکړه. نبي کریم ﷺ پیغام ورولېږلو چې ته بېرته لاړ شه او مونږ بیعت وکړو، لکه په حدیث نمبر ۶ کې راروان دي. د دې نه وروسته حدیث نمبر ۲۰ کې ذکر دي چې د نبي کریم ﷺ د جذام والا د یو کس لاس ونېولو او د ځان سره یې خوراک ته کېنولو او ویې فرمایل چې د الله په یقین او توکل یې خوره.
اوس دې حدیثونو کې خپل مینځ کې هم تعارض دی او د بحث لاندې حدیث کې په دوه جملو کې هم تعارض دی، ځکه یو دا دی چې "لاعدوی" یعنې بیماري یو بل ته نه ځي او په همدې کې دې چې د جذام والا کس نه تښتئ نو د دې تعارضونو څه جواب دی؟
**جواب ۱**: د دې تعارضونو د جواب د حل کولو لپاره علماؤ درې جوابونه کړي دي. اولنی جواب دا دی چې د جذامي کس نه چې د احتراز او ځان ساتلو کوم حدیثونه دي هغه "سداً للذرائع" دي. مطلب دا دی چې حقیقت کې بیماري الله راولي خو خلکو ته هسې وهم او وسوسه راځي او شک ورته وي چې کېدی شي دا بیماري د هغې سره د ناستې پاستې له وجې وي. د دغه شان خلکو عقیدې به خرابې شي، نو خلک په دغه غلطو عقیدو کې پرېوتلو نه د بچ کېدو لپاره ؤفرمایل: د جذام والا نه تښتئ چې په دې وهم او وسوسه کې پرېنه ځئ. دې عارض په وجه نبي کریم ﷺ دا وفرمایل، ګنې اصل حکم همغه دی چې بیماري د الله په حکم راځي او د یو بل ته لګېدو هیڅ حیثیت نشته دی. دا خو د لاعدویٰ سره تعارض ختم شو.
**جواب ۲**: د دې تعارض دویم جواب دا دی چې د "لاعدویٰ" عام حکم سره صرف د جذام بیماري مستثنی شوې ده چې دې کې زیاتوالی دی، نورو کې نشته دی.
**جواب ۳**: د دې تعارض د حل لپاره دریم جواب دا دی چې د جذام والا کس نه بښتېدلو حکم د ظاهري اسبابو په بنیاد دی. د حقیقت په اعتبار سره نه دی. د دې تفصیل دا دی چې د جذام والا کس په دې

بیمارۍ کې یو بُو وي. د عام اختلاط نه دا بُو په بل کې اثر کوي. دا اثر صرف د ظاهري اسبابو تر حده وي. حقیقت کې بیماري د الله په حکم راځي، نو د جذامي نه د عدم اختلاط حکم صرف د صحت د حفاظت د اصولو د لاندې دی. عدوی او یو بل ته د لګیدو د اصولو د لاندې نه دی.

باقې دا چې د نبي کریم صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ پوره یقین ؤو او په الله یې پوره اعتماد ؤو او حقیقي علت یې صحیح پېژندلو نو ځکه یې د جذام والا کس د ځان کېنولو او یو ځای د خوراک وکړو او نور یې وېرول. (مرقات۸/۳۴۵،۳۴۴)

## د یو بیمارئ متعدي کیدل بې حقیقتهٔ خبره ده

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا عَدْوَى |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَاللهُعَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمایل یوې بیمارۍ د یو نه بل ته |
| وَلَا هَامَةَ وَلَا صفر. فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ: يَا رَسُول |
| لېږېدل د هامه او د صفر د ټولو هیڅ حقیقت نشته دی. یو بانډه چې عرض وکړو چې یا رسول الله صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ! |
| فَمَا بَالُ الْإِبِلِ تَكُونُ فِي الرَّمْلِ |
| نو بیا د دې اوښانو باره کې څه ویل کېږي (چې خپله تندرستي او خپلې څرمنې صافۍ په اعتبار سره) |
| لَكَأَنَّهَا الظباء فيخالها الْبَعِير |
| هوسۍ په ریګستان کې منډې وهي. خو چې کله یو خارښتې اوښ دوی سره شریک شي نو نور هم خارښتیان کړي؟ |
| الأجرب فيجر بِهَا؟ فَقَالَ |
| نبي کریم صَلَّىٰاللهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ ورته وفرمایل چې ښادا راته او وایه چې دا اولنی اوښ چا خارښتي کړو؟ یعنې د خارښت پیدا کېدلو لپاره |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| دا ضروري نه ده چې هغه ورته د بل نه ولګي. لهذا څنګه چې دې تندروسته اوښانو کې د شریک کیدونکي خارښتي اوښ کې د |
| فَمن أعدى الأول. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ [1] |
| خارښت پیدا کېدل د الله په تقدیر کېږي همدا شان د نورو اوښانو خارښتي کیدل هم د الله د حکم او د قدرت د نظام مطابق کېږي. |

**توضیح**: **الرمل**: ریګستان او صحرا ترېنه مراد ده. دد ښه بانډه چې د صحت منه ماحول اړخ ته اشاره وکړه. (مرقات۸/۳۴۵)

**الظبا**: د ظبي جمع ده. هوسۍ ته وایي، یعنې د تندروستې هوسۍ پشان پرقېدلی ښکاري. (مرقات۸/۳۴۵)

---

[1] رقم الحدیث ۴۵۷۸ اخرجه البخاري في صحیحه ۲۴۱/۱۰ رقم الحدیث ۵۷۷۰ ومسلم في ۱۲۴۲/۴ رقم الحدیث (۱۰۱-۲۲۲۰)

**يخالط**: ملاوېدلو او د شريک کېدلو په معنى کې دى.

**الاجرب**: خارښتې اوښ ته وايي. (مرقات۸/۳۴۵)

**فيجربها**: يعنې دا ټول تندروسته اوښان دا يو خارښتې اوښ خارښتيان کړي، نو دا خو چهوت چهات اثر دى او د يو نه د بيمارۍ د نورو اړخ ته تجاوز او ر متعدى کېدو دليل دى. (مرقات۸/۳۴۵)

**الاول**: يعنې د ټولو نه اول چې کوم اوښ ته بيماري ولږېدله هغه پرې چا راوستله؟ هغه د الله په حکم او د هغې د قدرت په وجه راغله، نو ځکه د چهوت چهات او د بيمارۍ د تجاوز او متعدى کېدلو عقيده غلطه ده. دا بې حقيقته او بې اصله خبره ده.

د دې قسمه حديثونو خلاصه دا ده چې د نبي کريم ﷺ نظر به حقيقي علت او حقيقي سبب باندې ؤو. د ابنياء کرامو د ظاهري اسبابو په ځاى د اصل حقيقت خبره د تعليم په توګه وړاندې کوي او د عوامو او د طبيبانو او د تجربه کارو خلکو نظرونه په ظاهري اسبابو باندې وي، نو ځکه هغوى ظاهري سبب ته نسبت کوي لکه څنګه چې په ابتداء کې ليکلى شوي دى. (مرقات۸/۳۴۵)

## ستورو او د پړاؤنو هيڅ حيثيت نشته

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:لَا عَدْوَى |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ و فرمايل يو بل ته بيماري لږېدل د |
| وَلَا هَامَةَ وَلَا نَوْءَ وَلَا صفر . رَوَاهُ مُسلم[1] |
| هامه، ستوري او د صفر هيڅ حقيقت نشته دى. |

**توضيح**: **نوء**: د نوء جمع انواء ده. يو تور ستورى يا يو برج مراد دى. شاعر ساحر وايي

**جمد القطار و لورئته کماترى بهتت کماتکبجس الانواءُ**

د نوء يو مطلب خو دا دى چې د يو ستورې راښتل او د بل ډوبيدل دي او د ربيع په موسم کې دا بدلون راځي. د عربو عقيده وه چې د دې ستورو د راښتلو او په ډوبيدلو سره بارانونه کېږي. شريعت دا رد کړه او وې ويل چې باران د الله به حکم کېږي، د ستورو نه نخ کېږي.

نهايه کې ليکل شوي دي چې د نوء جمع انواء ده چې معنى يې سپوږمۍ او د هغې هغې منزلونه دي. چې منزل ورته وايي. قمر او سپوږمۍ اتويش (۲۸) منزلونه دي، لکه قرآن دې اړخ ته داسې اشاره ده ﴿والقمر قدناه منازل﴾

د جاهليت خلکو به د همدغه منزلونو او نچهترو اړخ ته منسوب کولو او دا منزلونه به يې د باران

(۱)رقم الحديث ۴۵۷۹ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۴۴ رقم الحديث (۱۰۶-۲۲۲۰) وابوداود في السنن ۲۳۲/۴ رقم الحديث ۳۹۱۲.

لپاره مؤثر حقيقي ګڼي، نو په جاهليت کې د عربو خيال ؤو چې سپوګمئ يا يو ستورى چې د فلانط منزل نه فلانې منزل ته راکوزېږي نو باران کېږي. دا عقيده شريعت شرک وګڼله. د عجم خلک هم ښنط بارانونه دغه قسمه ستورو اړخ ته منسوب کوي. مثلاً کله چې د س ہيل ستورى راوخيجې نو وايي چې دا د سهيل باران دى يا دا د س ہليئے باران دى. دا ګپ ژئی٘ باران دى. دا ټول شرکيه عقيدې دي. (مرقات ۸/۳۴۶)

## غول او شيشکي نقصان نشي ور کولی

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: لَا عَدْوَى |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې يو بل ته |
| وَلَا صَفَرَ وَلَا غُولَ. رَوَاهُ مُسلم[1] |
| بيماري لېږدل د صفر او د غول هيڅ حقيقت نشته دی. |

**توضيح**: ولاغول: د غول جمع اغوال او غيلان دى. دا د پيريانو او د شيطانانو يو جنس او قسم دى. چې شيشکه ورته وايي. د عربو خيال ؤو چې په ځنګلونو کې دغه قسمه پيريان او شيطانان دي. چې خپل رنګ روغن او شکل او صورت بدلوي او خلک هلاک کوي. او د لارو نه يې بې لارې کوي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا عقيده رد کړه او ويې فرمايل چې د الله د حکم نه بغير غول او شيطانان هيڅ نه شي کولی. تاسو د دې بې حقيقته خطرې نه خطر مه محسوسوئ او د دوی د مشرانو نه پناه مه غواړئ. د غول اصل حقيقت چړيل دى. چې پښتو کې ورته "ګډيرچ" يعنی شيشکه وايي. دا د پيرانو يو قسم دى. چې شکل او صورت بدلولو باندې خلک وېروي. دېنه چې ځوک وېرېدلو نو هغه مړ شو، ځکه دا چړيل د شپې مخې ته راځي. کله د اَس به شکل کې راشي نو لږ ساعت وروسته د ۔پي په شکل کې راښکاره شي، لږ ساعت وروسته د وېرونکي چړيل په شان ښځې په شکل کې راښکاره شي. څ ساعت وروسته د يو لويې ديو په شکل کې راشي. کله چرګه د خپلو چرګوټو سره کوړک کوړک کولو سره مخې ته راشي. لېدونکي وېرېږي. ځوک چې ترېنه وېرېدلو نو هغه مړ شو. او که ترېنه ونه يرېدلو نه هيڅ نه شي کولی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د همدې حقيقت اړخ ته اشاره کړې ده چې د هلاک کولو طاقت د هغې به لاس کې نشته دى. غول او چړيل صرف وېرول کوي، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د "لا غول" ويلو سره د غول د وجود نه نفې وکړه بلکې د غول د دې کرتبونو د ضرر او نقصان نفې يې وکړه چې وېرېږئ مه، دا هيڅ نقصان نه شي رسولی او نه په دې کې دومره طاقت شته دی چې ځوک بې لارې کړي. کوم خلک چې صحرائی او قبائلی نظام نه پيژني نو د دې

---

[1] رقم الحديث ۴۸۷۰ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۴۴/۴ رقم الحديث (۱۰۷-۲۲۲۲) وابوداود في السنن ۲۳۳/۴ رقم الحديث ۳۹۱۳.

حدیث په مفهوم باندې اساني سره نه پوهېږي. (مرقات ۸/۳۴۶)

## د جذامي نه منع

﴿۶﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: كَانَ فِي وَفْدِ ثَقِيفٍ

او حضرت عمرو ابن شرید د خپل پلار نه نقل کوي چې هغې بیان وکړو چې د بنو ثقیف د خلکو چې کوم وفد راغلې ؤو. هغې

رَجُلٌ مَجْذُومٌ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

کې یو جذماي کس هم ؤو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام یو سړی هغې ته ورولېږلو او ورته وې ویل چې مونږ ستا نه (شفاهي) بیعت اخستي

إِنَّا قد بايعناك فارجع. رَوَاهُ مُسلم[1]

دی. لهذا ته لاړ شه (ګویا کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه روا و نه غوښتلو چې حاضرین مجلس کراهت محسوس نه کړي).

**توضیح:** د دې حدیث تفصیل مخکې لیکل شوی دی.

## الفصل الثاني

## نیک فال نیول جائز دی

﴿۷﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَفَاءَلُ وَلَا يَتَطَيَّرُ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ښه فال نېولو. او بد فال به یې نه نېولو.

وَكَانَ يُحِبُّ الِاسْمَ الْحَسَنَ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السّنة[2]

او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ښه نومونو په ذریعه فال نېول خوښول.

## مرغۍ پاسول، د هغې نوم او د اواز نه فال نیول شرک دی

﴿۸﴾ وَعَن قَطن بن قَبيصة عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: الْعِيَافَةُ

او حضرت قطن ابن قبیصه د خپل پلار نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: عیافه او

وَالطَّرْقُ وَالطِّيَرَةُ مِنَ الْجِبْتِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[3]

طرق او بد فالي نېول دا ټول څیزونه د جبت نه دي.

**توضیح: العیافه:** عیافه داني د عربو په نزد یو فن ګڼلی کېږي. او د دې نه د فال راویستلو عام رواج ؤو.

---

(1) رقم الحديث ۴۵۸۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۵۲ رقم الحديث (۱۲۶-۲۲۳۱) والنسائي في ۱۵۰/۷ رقم الحديث ۴۱۸۲.

(2) رقم الحديث ۴۵۸۲ اخرجه احمد في المسند ۲۵۷/۱

(3) رقم الحديث ۴۵۸۳ اخرجه ابوداود في السنن ۲۲۸/۴ رقم الحديث ۳۹۰۷ وأحمد في المسند ۴۷۷/۳.

د دې صورت به دا ؤو چې وی کس به مرغۍ والوځوله يا به خپله والوتله، نو دې کس به ورته کتل چې د دې مرغۍ نوم څه دی. د دې اوزا څنګه دی. او کوم اړخ ته په کوم انداز الوځي. د دې ټولو شیانو به عربو فال نېول. زیاتره به يې د مرغۍ د نوم او د هغې د اواز فال نېولو. مثلاً که وړونکي مرغۍ نوم به بازؤو نو د دې د انجام نه به يې فال اخستلو. او که کارغه به ؤو نو د دې نه به يې د غريب الوطن او د سفر بدفالي نېوله. او که نوم به يې ملاچرچک ؤو نو د هغې نه به يې هدايت او راهنمائي مراد اخستله. عيافه او طيره کې دومره فرق د چې طيره عام دی، هغه که مرغۍ وي يا ځناور وي او که انسان وي د دوی نه بدفالي نېولو ته طيره وايي، خو عيافه د مارغانو د نومونو او د اوازونو سره خاص دی. نن سبا هم داسې وهم پرست خلک موجود دې چې دې مرض کې اخته دي. (مرقات۸/۳۴۸)

**الطرق:** د دې يو مطلب دا دی چې طرق کاڼو ويشتلو ته وايي. د عربو په نزد به د فال نېولو دا هم يوه صورت ؤو. هغه خلکو به د خپل مطلب معلومولو لپاره هوا کې کاڼي ويشتل او خاوره يا ايره به يې شيندله. چې کوم اړخ ته به ايره يا خاوره زياته وشيندل شوه نو دې خلک به همغه اړخ ته سفر کولو. او بل اړخ به يې منحوس ګڼلو. زمونږ علاقه کې به هم يو يو ښکارې سرې مړه شان بوچۍ د ايرو نه ډکوله او بيا به يې په ګوته د هغې مينځ وهلو، نو کوم اړخ ته به چې ايره زياته لاړه نو هغه کس به همغه اړخ ته د ښکار لپاره تللو. شريعت دا منع کړل چې دا صرف وهم پرستي ده.

د طرق دويم مفهوم دا دی چې د عرب خلکو به په شګه وغيره باندې مختلفې هندسې ليکلې. دغه شان خطونه راښکلو سره به زائچې جوړولې او د هغې نه به يې خپل مطلب راويستلو، لکه څنګه چې رمل او جفر وي. دا هم شريعت منع کړې دې.

**الجبت:** د لفظ جبت نه يا جادو او کهانت مراد دی، نو مطلب دا به دا وي چې د مارغانو د تېرېدلو نه او د هغې د اوازونو او د نومونو نه او د کاڼو ويشتلو او د خاورو شيندلو نه بدفالي اخستل او د هغې نه فال راويستل يا رمل او زائچه په ذريعه حالات معلومول ټول د سحر او د کهانت په حکم کې دي. چې د شرک کارونه دي.

يا د جبت نه مراد شيطان دی، نو د حديث مطلب به دا شي چې دا ټول کارونه شيطانې دي. شيطان دا خوښوي او خلک دې اړخ ته اماده کوي. (مرقات۸/۳۴۹)

## وهم پرستئ نه د بچ کيدلو علاج توکل دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل |
| اَلطِّيَرَةُ شِرْكٌ قَالَهُ ثَلَاثًا |
| بدفالي نېول شرک دی. نبي کريم صلى الله عليه وسلم د اهميت ظاهرولو لپاره دا خبره درې ځله وفرمايل او |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا | مِنَّا | إِلَّا | وَلَكِنَّ | اللهَ | يُذْهِبُهُ | بِالتَّوَكُّلِ. | |
| مونږ کې هر چا لره الله په خپل یقین توکل چلوي (یعني د ایمان تقاضا دا ده چې د یو کار او د سفر د | | | | | | | |
| رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُدَ | وَالتِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ: | سَمِعْتُ | مُحَمَّدَ | بْنَ إِسْمَاعِيلَ |
| قصد او ارادې په وخت کې یو داسې شي ظاهر شي چې هغې سره انساني تقاضې زړه او ماغزو کې | | | | | | | |
| يَقُولُ: كَانَ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ يَقُولُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: وَمَا مِنَّا إِلَّا وَلَكِنَّ اللهَ | | | | | | | |
| یو وهم او تردد پیدا شي نو دغه وهم او تردد باندې هیڅ یقین مه کوئ بلکې الله باندې توکل او | | | | | | | |
| يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ. هَذَا عِنْدِي قَوْلُ ابْنِ مَسْعُودٍ[1] | | | | | | | |
| یقین کولو سره هغه کار وکړئ یا هغه سفر ته لاړ شئ. | | | | | | | |

**توضیح: الطیرة شرك:** که د بدفالئ پخه عقیده ثوک لري او بدفالي قطعي او یقیني امر ګڼې نو دا شرک جلی دی چې حرام دی. او که د عام عادت مطابق د دستور او د رواج په توګه بدفالئ کوي نو دا شرک خفي دی. د شرک خفي مطلب به دا وي چې دا د مشرکینو په طریقو او د هغوی د عادتونو نه دي. (مرقات ۸/۳۴۹)

**بالتوکل:** یعني د وهم پرستو نه د بچ کېدو علاج دا دی چې سړی په هر معامله کې په الله باندې یقین وکړي او شکوک او شبهات یې رد کړل او دا عقیده وساته چې کائنا چې څه بدلون او تصرف کې ږي. هغه صرف او صرف د الله په لاس کې دي. د ورځو، وختونو او د انسانانو د هغوی د حالات د دې سره تعلق نشته دی. زمونږ نظام د الله به کارونو باندې اثر نه کوي بلکې د الله نظام زمونږ کارونو باندې اثر کوي. د دې روایت په آخر کې امام ترمذی فرمایي چې ما د امام بخاری نه واورېدل چې هغه فرمایي چې "وما منا" تر آخر پورې دا کلام د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل کلام دی. مرفوع حدیث نه دی. (مرقات ۸/۳۵۰)

## نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جذامی سره ډوډئ وخوړله

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ | جَابِرٍ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | أَخَذَ | بِيَدِ مَجْذُومٍ |
| او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې (یو ورځ) نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو جذامي لاس ونیولو او | | | | | | | | | | |
| فَوَضَعَهَا | مَعَهُ | فِي | الْقَصْعَةِ | وَقَالَ: كُلْ | ثِقَةً | بِاللهِ | | | | |
| هغه یې د خوراک پیاله کې د ځان سره شریک کړو او ویې فرمایل چې خوره، زما په الله باندې اعتماد دی | | | | | | | | | | |

[1] رقم الحدیث ۴۵۸۴ أخرجه ابوداود في السنن ۴/۲۳۰ رقم الحدیث ۳۹۱ والترمذي في ۴/۱۳۷ رقم الحدیث ۱۶۱۴.

وَتَوَكُّلًا عَلَيْهِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه(۱)

او زه د هغې په ذات باندې توکل کوم.

## بدفالي هيڅ شی نه دی

﴿۱۱﴾ وَعَنْ سعدِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا هَامَةَ

او د حضرت سعد ابن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل نه هامه څه شی دی

وَلَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَإِنْ تَكُنِ الطِّيَرَةُ فِي شَيْءٍ فَفِي الدَّارِ

او نه ديو بل نه بيماري لږېدل څه حقيقت لري او نه بدفالۍ کې څه حقيقت شته دی. که په کوم شي کې بدفالي وی نو کور

وَالْفرس وَالْمَرْأَة. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد(۲)

کې، آس کې او ښځه کې به وی.

**توضيح**: ففي الدار: د دې حديث تشريح او توضيح د دې نه مخکې شوې ده، خو دلته د دې بحث اصل مقام دی، نو ځکه څه اشاره کول ضروري ده. بدفالي او د نحوست په سلسله کې مختلف حديثونه منقول دي. ځينې حديثونو کې مطلباً هر قِسم شيانو نه د بد فالۍ نهې او ممانعت ذکر دی او ځينې حديثونو کې د آس، کور او د ښځې وغيره ځينې شيانو کې د نحوست ثبوت اړخ ته اشاره موندلی کېږي، لکه څنګه د بحث لاندې حديث کې دي. لهذا دې مختلف حديثونو کې تطبيق کول او مناسبت او موافقت پيدا کول ضروري دي، نو علماؤ او شارحين د حديثو مختلف توجيهات بيان کړي دي. (مرقات۳۵۲/۸)

**توجيه (۱)**: اولنۍ توجيه دا ده چې زير بحث حديث کې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام د فرض او د شرط په توګه دی. چې فرض کړه که دنيا کې کوم شي کې نحوست وی نو دې درې شيانو کې به وی، خو دا چې د نحوست عقيده صحيح نه ده. لهذا دې درې شيانو کې هم نحوست نشته دی. قاضي عياض هم دغه توجيه کړې ده. چې که په کوم شي کې نحوست وی نو د دې درې ځيزونو کې به د دې موقع، محل او امکان وی، خو چې دې کې نشته دی نو په هيڅ ځيز کې نشته دی.

**توجيه ۲**: دويمه توجيه حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث راوي خپله کړې ده. هغه فرمايي چې کور کې د نحوست مطلب دا دی چې دا تنګ ؤو، آس کې نحوست دا دی چې هغه سرکش وي او ښځه کې

---

(۱)رقم الحديث ۴۵۸۵ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۹/۴ رقم الحديث ۳۹۲۵ والترمذي في ۳۲۴/۴ رقم الحديث ۱۸۱۷.

(۲)رقم الحديث ۴۵۸۶ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۶/۴ رقم الحديث ۳۹۲۱، واحمد في المسند۱۸۱/۱ .

نحوست دا ده چې بدزبانه او بد اخلاقه وي.

**توجيه ۳:** دريمه توجيه دا ده چې د ظاهري اسبابو په اعتبار سره درې ځيزونو کې نحوست د عامو حديثونو نه مستثنی ګڼلی شوي دي چې په طبعي توګه دې ځيزونو کې د نحوست دخل دی. مؤثر حقيقي صرف د الله ذات دی. (مرقات۸/۲۵۲.۳۵۲.۲۵۲)

## نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به نيک فال نيول خوښول

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعْجِبُهُ |
| او د حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د يو حاجت لپاره بهر راوتلو نو |
| إِذَا خَرَجَ لِحَاجَةٍ أَنْ يَسْمَعَ: يَا رَاشِدُ |
| نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به دا ته به خوښه وه چې د چا ژبې نه داسې واوري : **ياراشد يانجيح** يعنې يو |
| يَا نَجِيحُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[۱] |
| کار ته د تللو په وخت کې داسې نومونه اوريدل نيک فال دی. |
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَتَطَيَّرُ مِنْ شَيْءٍ |
| او د حضرت بريده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هيڅ شي بد فالي نه اخستله |
| فَإِذَا بَعَثَ عَامِلًا سَأَلَ عَنِ اسْمِهِ فَإِذَا أَعْجَبَهُ |
| او کله چې ورته يو عامل (کارکن ته چرته) ليږلو نو د هغې نوم به يې پوښتلو، نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خوشحاله شو |
| اسْمُه فَرِحَ بِهِ وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ عَلَى وَجْهِهِ وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهُ |
| او خوشحالي به د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ مبارک باندې ظاهره شوه او که د هغې نوم به بد معلوم شو |
| رُئِيَ كَرَاهِيَةُ ذَلِكَ عَلَى وَجْهِهِ وَإِذَا دَخَلَ قَرْيَةً |
| نو د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخ مبارک به خفګان ظاهر شو (تردې چې د هغې نوم به يې په نوم کې بدل کړو) |
| سَأَلَ عَنِ اسْمِهَا فَإِنْ أَعْجَبَهُ اسْمُهَا |
| دغه شان کله به چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو ښار ته لاړو نو د ښار د نوم پوښتنه به يې کوله، نو که د هغې نوم به |
| فَرِحَ بِهِ وَرُئِيَ بِشْرُ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ وَإِنْ كَرِهَ اسْمَهَا |
| ښه معلوم شو نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خوشحاله شو او په مخ مبارک به يې خوشحالي ظاهره شوه او نوم به يې بد ؤو |

[۱] رقم الحديث ۴۵۸۷ اخرجه الترمذي في السنن ۱۳۸/۴ رقم الحديث ۱۶۱۶

رُئِيَ كَرَاهِيَةَ ذَلِكَ فِي وَجهه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[١]

نو د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خفګان به د هغې په مخ مبارک ظاهر شو.

## کور کې د بې برکتئ ذکر

﴿۱۴﴾ وَعَن أَنس قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ

او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې مايو وړځ نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

إِنَّا كُنَّا فِي دَارٍ كَثُرَ فِيهَا عَدَدُنَا

(مخکې) به مونږ کورونو کې اوسيدلو. زمونږ د کسانو شمير به په کې هم زيات ؤو او مونږ سره ښه

وَأَمْوَالُنَا فَتَحَوَّلْنَا إِلَى دَارٍ قَلَّ فِيهَا عَدَدُنَا وَأَمْوَالُنَا.

مال هم ؤو. بيا يو بل کور ته انتقال شو نو هغې کې زمونږ د کسانو شمير هم کم شو او زمونږ مال کم شو.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ذروها ذميمة. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[٢]

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دې او رېدلو سره) وفرمايل چې هغه کور پرېږدئ چې کوم بد دی.

**توضيح**: ذروها: يعنې چې تاته کور بد ښکاري نو هغه پرېږده. دلته پوښتنه دا پيدا کېږي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کور نحوست څنګه تسليم کړو حال دا چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په الطيرة شرک کې د دې نفي کړې ده؟ د دې يو يوې کرښې جواب خو دا دی چې نحوست کې درې شيان مستثنی کړی شوي دي. هغې کې کور هم دی. دا همغې اړه ته اشاره ده.

د دې پوښتنې جواب بهترين جواب علامه خطابي کړی دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله وليدل چې دې خلکو ته وهم پيدا شوی دی چې د دې کور په وجه زمونږ مالونو او کسانو کې کموالی راغلی دی او مونږ ته د دې کور په وجه نقصان رارسيږي نو نبي کريم ﷺ هغوی ته د کور د پرېښودلو حکم ورکړو چې عقيده يې خرابه نه شي او د وهم د هغوی د عقيدې برخه جوړه نه شي، نو څکه نبي کريم ﷺ دې کې مصلحت وليدلو او د دې وهم جرړه يې غوڅه کړی شي او د دې وهم په ګرد کې د ښکې ليدلو نه او په شرک خفي کې د اخته کېدلو نه بچ کړی شي او د کور د پرېښودلو ورته وويل شي. "دا د اسلوب حکيم په توګه ؤو". (مرقات ۳۵۵/۸)

---

(١) رقم الحديث ۴۵۸۸ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۶/۴ رقم الحديث ۳۹۲۰ وأحمد في المسند ۳۴۷/۵.

(٢) رقم الحديث ۴۵۸۹ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۸/۴ رقم الحديث ۳۹۲۴

## وباء وهلي علاقې نه د تختیدلو مسئله

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ بَحِيرٍ قَالَ: أَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ فَرْوَةَ بْنَ مُسَيْكٍ |
| او حضرت یحی ابن عبد الله ابن بحیر فرمایي چې ماته هغه چا بیان وکړو چا چې د حضرت فروه ابن مسیک نه |
| يَقُولُ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| روایت اوریدلی دی چې هغې (یعني فروه وویل) چې ما عرض وکړو چې یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! |
| عِنْدَنَا أَرْضٌ يُقَالُ لَهَا أَبْيَنُ وَهِيَ أَرْضُ رِيفِنَا |
| مونږ سره یو زمکه ده چې "ابین" ورته وایي او زمونږ د زراعت او غلې زمکه ده (یعنې هغه سبزي منډیې دا چرته |
| وَمِيرَتِنَا وَإِنَّ وَبَاءَهَا شَدِيدٌ. |
| چې د نورو ځایونو نه غله را جمع کېږي او نور ښارونو ته لیږل کېږي) خو د دې زمکې وبا سخته ده. (یعنې وبائی |
| فَقَالَ: دَعْهَا عَنْكَ |
| مرضونه په کې زیات دي) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (دې او ریدلو سره) وفرمایل چې دا پریږدئ (یعنې او سیدل او |
| فَإِنَّ من القَرَف التَّلف. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (۱) |
| تګ و راتګ پرېږدئ ځکه هغه د طاعون اثر کړی شوي ابادئ په حکم کې ده) او وبا هلاکت او د هلاکت سبب دی. |

**توضیح**: ابین: دا د هغه ځمکې او علاقې نوم وُو چې د کوم باره کې صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسئله پوښتلې وه.

**ریفنا**: ریف زراعت ته وایي. **ومیرتنا**: میرة غلې ته وایي. **دعها**: یعنې دا پریږده. (مرقات۸/۳۵۶)

**الرف**: وبائي مرض ته قرف ویل شوی دی. د قرف اصل ترجمه نزدېوالی دی.

**التلف**: دا د هلاکت په معنی دی. مطلب دا دی چې د وبائي مرضونو نزدېوالی او راتللو سره هلاکت واقع کېږي. لهذا تاسو دا ځکه پرېږدئ او بل ځای ته لاړ شئ.

**پوښتنه**: دلته دا پوښتنه ذهن کې پیدا کېږي چې د وبائي مرضونو د ځای نه د تښتیدلو نه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړې ده. ډېرو صحیح حدیثونو کې د دې ثبوت شته دی، نو بیا نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې حدیث کې خلکو ته وبائي زمکې نه د تښتېدلو اجازت څنګه ورکړو؟

**جواب**: د دې پوښتنې یو جواب علامه طیبي کړی دی. چې خلاصه یې داده چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عدوی او ذات پات باندې د عمل کولو اجازت نه دی کړی. او نه دا اجازت د عدوی له نقطهٔ نظره دی بلکې د اصول طب او د حفظان صحت په بنیاد باندې دا حکم وُو، ځکه د هغه ځای

(۱) رقم الحدیث ۴۵۹۰ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۸/۴ رقم الحدیث ۳۹۲۳ وأحمد في المسند ۴۵۳/۳

اوبه او هوا د هغه خلکو د طبیعتونو موافق نه ؤو. ګویا کې د دې حدیث تعلق د وبائی مرضونو سره نه دی. بلکې د حفظ ما تقدم په بنیاد د حفظان صحت سره د دې تعلق دی چې کله د علاقې اوبه او هوا ستاسو موافق نه وي نو هغه علاقه پرېږدئ او لاړ شئ.

د دې پوښتنې دویم جواب دا دی چې نبي کریم ﷺ هغه خلکو د ځای بدلولو حکم د هغوی د عقیدې ت تحفظ په بنیاد ورکړی ؤو، ځکه هغوی په وهم کې ؤو. چې کېدی شي دا ځای زمونږ موافق نه وي. او په همدې وجه مصیبتونه مونږ ته متوجې وي. ممکنه وه چې د هغوی دا وهم به عقیده کې بدل شوی وی او بد فالئ په بده عقیده کې اخته شوی وی، نو ځکه د دې د ختمولو لپاره نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مصلحت په خاطر هغوی ته د تللو حکم وکړو. د دې حدیث نه دا استدلال کول صحیح نه دی چې د وبائې ځایونو نه تښتېدل جائز دي. مسئله دا چې د وباء ښورېدلو نه مخکې د هغې ځای نه تلل جائز دي. د هغې نه وروسته د مرګ د وېرې نه تښتېدل جائز نه دي، خو د شریعت دا هم حکم دی چې د بهر نه راتلل او د وبائی مرضونو په علاقه کې داخلیدل هم منع دی. سیلاب او طوفان او اور د زلزلې نه تښتېدل او محفوظ مقام ته تلل جائز دي. دا په وبائي مرض باندې قیاس کول کېدی نه شي. (مرقات ۳۵۲/۸)

## الفصل الثالث

## بد فالئ نه د بچ کیدلو دعا

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾عَن عُرْوَة بن عَامر قَالَ: ذُكِرَتِ الطِّيَرَةُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عروه بن عامر (تابعی) فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته د بد فالئ ذکر وشو |
| فَقَالَ:" أَحْسَنُهَا الْفَأْلُ وَلَا تَرُدُّ |
| نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د دې بهترين صورت (ښه فال) دی. او (ياد و ساتئ) هيڅ |
| مُسْلِمًا فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يَكْرَهُ |
| مسلمان لره دې يو بد فال منع نه کړي او تاسو کې چې کوم يو کس دا سې څيز اويني چې هغه يې نه خوښوي |
| فَلْيَقُلْ: اللهُمَّ لَا يَأْتِي بِالْحَسَنَاتِ إِلَّا أَنْتَ |
| نو هغې له پکار دي چې دا دعا اوايي "اللهم لا ياتي الخ" ای الله د ښو او بدو راوستلو والا صرف ته يې او صرف |
| وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَاتِ إِلَّا أَنْتَ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| ته بدئ او خرابوالی لري کونکی يې او د بدو نه مخ اړول او د نيکو اړخ ته د تللو توفيق او طاقت د الله له اړخه دی. |

---

[1] رقم الحديث ۴۵۹۱ أخرجه ابوداود في السنن ۲۳۵/۴ رقم الحديث ۳۹۱۹.

# باب الکهانة

## د کاهنانو بيان

د لغت کتاب په صراح کې ليکلی شوي دي چې کهانت فال نيولو ته وايي او فال نيول کاروبار ته هم کهانت وايي. د دې کاروبار کونکې ته کاهن وايي. علامه طيبي فرمايي چې کاهن هغه کس ته وايي چې د راتلونکې واقعاتو او د حادثاتو خبر ورکوي او د راروان وخت د علم غيب او معرفت او رازونو دعوی هم کوي. يعنې د نښانو او علامتونو نه معلومولو باره کې چې کوم کس د علم غيب پشيگويي کوي نو داسې کس ته به عربو کاهن هم ويله او عراف به يې هم ورته ويله. د ستورو حالتو کتلو سره نجومي او لاس کتلو سره فال راويستونکی يا د طوطي په ذريعه يا د رمل جفر او د ابجد وغيره هندسو په ذريعه د مستقبل خبر ورکول ټول د کهانت په دې کاروبار کې داخل دي. (مرقات۸/۳۵۷ الکاشف : ۸/۳۵۴)

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پيدائش او د بعثت نه مخکې د عربو په معاشره کې د کهانت ډير شهرت وه. تردې چېد عدالت فيصلي او لوی لوی جگړې به يې د کاهنانو په ذريعه ختمولې.

د بنو زهره يوې کاهنې ښځې چې کله د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والده محترمه آمنه ليدلې وه نو وې ويل "دا ښځه به يا شنډه وي يا به د دې د خيټې نه نذير پيدا کيږي" د بنو زهره دې ښځې د سردار عبدالله د حلالکې په بدل کې سل (۱۰۰) اوښان مقرر کړي ؤو.

## د عربو په معاشره کې د کاهنانو مختلف قسمونه ؤو

۱: د ځينې کاهنانو به مستقيماً د پيريانو او د شيطانانو سره روابط ؤو. شيطانان به اسمان ته نژدې لاړل او د فرښتو نه به يې د راتلونکې واقعې والا خبره واورېدله او کاهنانو ته به يې رسوله. کاهنانو به د يوې خبرې سل دروغ وتړل او خپل کاروبار به يې روان کړی ؤو او خلکو نه به يې بيوقوفه جوړ کړي ؤو. د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بعثت نه وروسته دا سلسله ختمه شوه او د پيريانو او د شيطانانو د اسمان نه شهاب ثاقب باندې د ويشتلو سلسله شروع شوه.

۲: ځينې کاهنان به په روحاني اعتبار سره خبيثان ؤو. لهذا د هغوی سره به د خبيث روحونو روابط ؤو او هغه کاهنانو به د ارواح خبيث نه استفاده کوله او د خدای مخلوق به يې بې لارې کولو.

۳: ځينو کاهنانو به د زمکې او اسمان د علامات سماوي او د علامات ارضی او د خلک شخصي علامات ته په کتلو به يې بې سره او بې ښپې خبرې کولې او خپله دنده به يې روانه کړې وه. اسلام دا ټولې اني بانې حرام کړې او په دې باندې ټوله ترلاسه کړي شوي گټه يې حرامه کړه. لهذا د کاهن دا عمل حرام دی او هغې له شيريني وغيره ورکول هم حرام دي.

# الفصل الاول

## کهانت او رمل ناجائز دی

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن مُعَاوِيَة بن الحكم قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أُمُوْرًا |
| حضرت معاويه ابن حکم فرمايي چې ما عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ! داسې ډير شيان دي چې |
| كُنَّا نَصْنَعُهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ كُنَّا نَأْتِي الْكُهَّانَ |
| مونږ به د جاهليت زمانه کې کول. هغې کې خو يو دا دي چې مونږ به کاهنانو له تللو او د هغوی نه |
| قَالَ: فَلَا تَأْتُوا الْكُهَّانَ |
| به مو د غيبو خبرو باره کې پوښتنې کول. نبي کريم ﷺ وفرمايل چې تا کاهنانو له مه ځئ. |
| قَالَ: قُلْتُ: كُنَّا نَتَطَيَّرُ |
| حضرت معاويه رضی الله عنه فرمايي چې ما عرض وکړو چې يو دا ځيز هم دی چې مونږ بد فالي نيوله. |
| قَالَ: ذَلِكَ شَيْءٌ يَجِدُهُ أَحَدُكُمْ |
| نبي علیه السلام وفرمايل چې دا يو داسې شی دی چې تاسو يې خپل زړه کې محسوسولی شئ خو چې دا تا د څه کار نه ايسار نه |
| فِي نَفْسِهِ فَلَا يَصُدَّنَّكُمْ. |
| کړي يعنې که تاسو د انسان په تقاضا بدفالي وُوم کړي نو د دې نه په متاثره کېدلو سره خپل قصد او اراده مه پرېږدئ، ځکه بد فالي |
| قَالَ: قُلْتُ: وَمِنَّا رِجَالٌ |
| د وهم نه بغير بل هيڅ حقيقت نه لري. حضرت معاويه رضی الله عنه فرمايي چې ما عرض وکړو يو بل ځيز هم دی چې زمونږ نه |
| يَخُطُّونَ قَالَ: كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ |
| بعضو به څه کرښې ايستلې او خطونه به مو راښکل. نبي علیه السلام وفرمايل چې انبياؤ کې يو نبي تير |
| يَخُطُّ فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ. رَوَاهُ مُسلم [1] |
| شوی دی چې کرښې او خطونه به يې راښکل. لهذا د چا خط چې د هغې موافق وي نو هغه به مباح وي. |

**توضیح: فلایصدنکم**: يعنې ستاسو دا وهمونه به ستاسو کار ونه کړي. د الله په يقين کار کوئ. (مرقات ۳۵۸/۸)

**يخطون**: يعنې کرښې به يې ويستلې او څه خانې (جدول) به يې جوړولې. دا د علم رمل او حفر اړخ ته اشاره

---

(۱)رقم الحديث ۴۵۹۲ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۴۸/۴ رقم الحديث (۱۲۱-۵۳۷) وأبوداود في السنن ۲۲۹/۴ رقم الحديث ۳۹۰۹

ده. چې د خطونو او د زائچو د حساب په ذريعه به خلکو مستقل معلومات حاصلول. (مرقات۸/۳۵۸)

**نبي من الانبياء**: شارحين ليکي چې د هغه نبي نه يا حضرت دانيال عَلَيْهِ السَّلَام يا حضرت ادريس عَلَيْهِ السَّلَام مراد دی. الله هغې ته د معجزې په توګه د رمل او جفر علم ورکړی ؤو. دا چې د رمل او د جفر علم نسبت يو نبي ته ؤو، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ډېر حيمانه انداز سره دا امت د دې علم نه منع کړو او د مخکنې نبي د هغې په عمل يې اعتراض هم ونه کړو. او ويې فرمايل چې يو نبي به داسې عمل کولو خو دا چې مأمون او محفوظ او معصوم ؤو او د مجزې به توګه به يې داسې کولو نو ځکه د هغې عمل صحيح ؤو. اوس که ستاسو دا عمل د هغه نبي د عمل سره بالکل موافق شي نو صحيح به وي او که موافق نه شي نو صحيح به نه وي. اوس تاسو خپله فيصله وکړئ چې کله تاسو معلومه هم نه ده چې ستاسو عمل د هغه نبي د عمل سره موافق دی يا نا نو تاسو دا فيصله نه شئ کولی، نو بيا د د دې عمل هيڅ حيثيت نه پاتېږي. لهذا تاسو د دې نه ځان وساتئ ځکه دا علم او د دنيا نه اخستل شوی دی. دغه حکيمانه جواب سره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه عمل هم منع نه کړو او په هيڅ يو نبي باندې اعتراض هم ونه شو. (مرقات۸/۳۵۹)

## د کهانت بنياد څنګه دی؟

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَن عَائِشَة قَالَتْ: سَأَلَ أُنَاسٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْكُهَّانِ |
| او د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دی چې خلکو د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د کاهنانو باره کې پوښتنه وکړه |
| فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّهُمْ |
| نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته وفرمايل چې هغه هيڅ نه دي يعني هغوی چې د کومو خبرو دعوی کوي |
| لَيْسُوا بِشَيْءٍ قَالُوا: |
| هغه بې بنياده دي، نو ځکه د هغې په ويلی شوؤ خبرو باندې يقين مه کوئ. خلکو عرض وکړو چې |
| يَا رَسُولَ اللهِ فَإِنَّهُمْ يُحَدِّثُونَ أَحْيَانًا بِالشَّيْءِ يَكُونُ حَقًّا |
| يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ځينې ځل هغوی داسې خبره وکړي يا يو داسې خبر راکړي چې رښتيا وي. |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې هغه خبره رښتيا وي چې کوم هغوی (يعني شيطانان) معلومې کړي. |
| فَيَقُرُّهَا فِي أُذُنِ وَلِيِّهِ قَرَّ الدَّجَاجَةِ |
| او خپل ملګري (کاهن) ته يې غوږونو کې داسې واچوي څنګه چې يو چرګه بله چرګه د دانو لپاره راغواړي |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَخْلِطُوْنَ | فِيهَا | أَكْثَرَ | مِنْ | مِائَةِ | كذبة | (مُتَّفق | عَلَيْهِ)[1] |

نو بیا هغه کاهن د دې خبرې سره سل (۱۰۰) خبرې د دروغو یو ځای کړي (بخاري ومسلم)

**توضیح: یکون حقاً:** یعنې کله کله د هغه کاهنانو ویل شوې خبره صحیح ثابت شي. د دې څه وجه ده

**یخطفها:** نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وویل چې د کاهنانو یوه نیمه خبره چې صحیح ثابت شي د هغې اصل حقیقت دا دی چې اسمانونو ته د الله یو حکم راشي. د اسمان د لاندې د اوریځو د لاندې فرښتې خپلو کې د دې حکم متعلق خبرې کوي. پیرانو کې سرکشه قِسمه شیطانان د اسمان د لاندې اوریځو کې پټ پټ ورځي او د فرښتو نه یوه خبره واوري او زمکي ته یې راوړي. (مرقات ۳۵۹/۸)

**فیقر:** د چرګې کوړک کوړک اواز ته وایي. یعنې چرګه چې کله بله چرګې ته د دانو لپاره راولي او د کوړک کوړک آواز کوي. دغه شان دا پیرې د خپل کاهن ملګري او د کاهن (ترویتي) په غوږونو کې د پاس خبره واچوي او هغه د دې سره سل دروغ یو ځای کړي. راروان حدیث نمبر ۹ کې د شیطانانو د ښتلو طریقه ویل شوي ده. وېرندونکی شیطان د ټولو نه لاندې زمکه باندې وي د هغې په اوږه بل ودرېږي او دغه شان د ټولو نه زړه ور د پاس اسمان اوریځو ته ورسېږي. د پاس نه هغه به شهاب ثاقب ویشتلی کېږي. که په څوک پرې ولږېږي نو هغه مړ کېږي یا بیخې لېونی شي، خو د دې ټولو کوشش دا وي چې اورېدلې شوې خبرې ځمکې پورې راشي او د هغوی د بې لارې کولو کار جاري شي. (مرقات ۳۵۹/۸)

## یو رښتیا سره سل دروغ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " إِنَّ الْمَلَائِكَةَ | | | | | | | |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې د فرښتو یو جماعت | | | | | | | |
| تَنْزِلُ | فِي | الْعَنَانِ | وَهُوَ | السَّحَابُ | فَتَذْكُرُ | الْأَمْرَ | |
| چې کله عنان یعنې اوریځو کې کوز شي او (خپل مینځ کې) د هغه خبرو او کارونو تذکره کوي چې | | | | | | | |
| قُضِيَ | فِي | السَّمَاءِ | فتسترق | الشياطينُ | السمعَ | | |
| کوم اسمان ته نژدې وي (او دنیا کې واقع کېدونکې دي) نو شیطانان په پټه دغه خبرو اورېدلو ته غوږ | | | | | | | |

---

(1) رقم الحديث ۴۵۹۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۹۵/۱۰ رقم الحديث ۶۲۱۳ ومسلم في ۱۷۵۰/۴ رقم الحديث (۱۲۳-۲۲۲۸)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَتُوحِيهِ | إِلَى | الكُهَّانِ | فَيَكْذِبُونَ | مَعَهَا |

ونیسي او کله چې هغوی کومه واوري نو هغه کاهنانو ته وررسوي او هغه کاهنان د شیطانانو نه د

مِائَةَ كَذْبَةٍ من عِنْدِ أنفسهم. رَوَاهُ البُخَارِيُّ[1]

اوریدلې شوۍ خبرو سره سل دروغ یو ځای کړي.

## نجومیانو ته د تلونکو څلوښت ورځې لمونځ مردود

﴿۴﴾ وَعَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَتَى عَرَّافًا

او حضرت حفصه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم کس چې نجومي یا کاهن ته ورغلو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَسَأَلَهُ | عَنْ | شَيْءٍ | لم | تقبل |

او د هغې نه یې څه وپوښتل (یعنې د غیب خبرې معلومې کړي) نو د هغې څلویښت (۴۰)

صَلَاةُ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً. رَوَاهُ مُسلم[2]

ورځو پورې لمونځ نۀ قبلیږي. (مسلم)

**توضیح:** صلوة اربعین لیلة: یعنې د شپې او د ورځې لمونځ یې نه قبلیږي یا یې د تهجد لمونځ نه قبلیږي. دا سزه د هغه کس ده چې د نجومي تصدیق یې وکړو. دا څومره د محرومۍ خبره ده چې انسان د خپل مهم عبادت د لمونځ نه محرومه شي او دا څومره سخت جرم دی. چې تر د څلویښتو (۴۰) ورځو پورې لمونځ پاتې شي. حال دا چې د نجومې سره هیڅ یقیني علم نه وي. بلکې ټولې اټکل هوکې دي. (مرقات ۳۶۲/۸) بابا سعدی په ګلستان کې یوه قصه لیکلې ده چې د یو نجومې په کور کې د هغې د ښځې سره یو نااشنا سړی ننوتلی ؤو او مزې یې کولې او نجومې بازار کې خلکو ته د اسمان خبرې کولې، نو سعدی بابا ورته وفرمایل.

بر اوج فلک چه دانی چیست　　　چوں نه دانی که در سرائے تو کیست

یعنې ته به د اسمان د اوچتوالي کومه یوه خبره معلومه کړې او حال دا دی چې تاته دا پته هم نشته دی چې ستا په کور کې څه کیږي؟

علامه اقبال د نجوم د فن متعلق ویلې.

تیری تقدیر کو انجم شناس کیا جانے　　　تو خاک زندہ ہے تو تابع ستارہ نہیں

---

([1]) رقم الحدیث ۴۵۹۵ اخرجه البخاري في صحیحه ۳۰۴/۶ رقم الحدیث ۳۲۱۰.

([2]) رقم الحدیث ۴۵۹۵ اخرجه مسلم في صحیحه ۱۷۳۱/۴ رقم الحدیث (۱۵-۲۲۳۰) راحمد في المسند ۶۸/۴.

## ستوري دباران سبب ګڼل کفر دي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ: صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الصُّبْحِ |
| او حضرت زید ابن خالد جهنمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته سحر كې لمونځ وكړو |
| بِالْحُدَيْبِيَةِ عَلَى أَثَرِ سَمَاءٍ كَانَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَلَمَّا انْصَرَفَ |
| په مقام حديبيه كې، او د شپې باران شوى ؤو. كله چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لمونځ نه فارغ شو |
| أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ: هَلْ تَدْرُونَ مَاذَا قَالَ رَبُّكُم؟ |
| او متوجې كېدلو سره يې وفرمايل چې آيا تاسو پوهېږئ ستاسو پروردګار دا وخت څه فرمايلي دي. |
| قَالُوا: الله وَرَسُوله أعلم قَالَ: |
| صحابه كرامو عرض وكړو چې الله او د هغې رسول ښه پوهېږي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| أَصْبَحَ مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنٌ بِي وَكَافِرٌ |
| الله فرمايلي دي چې زما بنده ګانو (نن) دې حال كې شپه كړه چې ځېنو په ما ايمان راوړو او ځېنو كفرو كړو، |
| فَأَمَّا مَنْ قَالَ: مُطِرْنَا بِفَضْلِ اللهِ وَرَحْمَتِهِ فَذَلِكَ مُؤْمِنٌ بِي |
| نو چا چې دا وويل چې مونږ باندې د الله فضل او د هغې په رحمت باران شوى دى نو هغې ما باندې ايمان راوړو |
| كَافِرٌ بِالْكَوْكَبِ وَأَمَّا مَنْ قَالَ: |
| او په ستورو يې كفرو كړو (يعنې د ستورو د اثر منكر دي) او كوم چې وويل چې د فلانې ستورې په راښتلو |
| مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وَكَذَا فَذَلِكَ كَافِرٌ بِي وَمُؤمن بالكوكب "(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [۱] |
| او د فلانې ستوړې په ډوبيدلو په وجه مونږ باندې باران وشو نو هغه په ما كفر وكړو. (بخاري ومسلم) |

**توضيح**: كافر بي: كه څوك د باران په وربدلو كې د يو ستوري مثلاً سهيل، ګپ اور مشتري مؤثر حقيقي ګڼې نو دا سړى كافر كېږي. او كه د هغه عقيده دا وي چې باران فقط الله وروي. دا ستوري ظاهري اسباب دي نو دا كفر نه دى خو دا عقيده ساتل مكروه ده. د حديث د الفاظو نه مطلق حرمت معلومېږي. (مرقات ۸/۳۶۴)

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَا أَنْزَلَ اللهُ مِنَ السَّمَاءِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې كله هم الله د اسمان |

---

(۱) رقم الحديث ۴۵۹۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۲/۳۳۳ رقم الحديث ۸۴۶ ومسلم في ۱/۸۳ رقم الحديث (۱۲۵-۷۱)

مِنْ بَرَكَةٍ إِلَّا أَصْبَحَ فَرِيقٌ مِنَ النَّاسِ بِهَا كَافِرِينَ

کوم برکت رانازلوي نو د انسانانو یو نایو جماعت د هغې په ذریعه کفر کې اخته کېږي. (یعني څه نه څه خلک ضرور داسې

يُنْزِلُ اللهُ الْغَيْثَ

وي چې دا برکت الله ته د منسوبول په ځای نورو اسبابو او ذرائعو ته منسوبوي، لکه الله باران اوروي

فَيَقُولُونَ: بِكَوْكَبِ كَذَا وَكَذَا". رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

نو ځینې خلک وایي چې د فلانې ستورې په اثر باران وشو.

## الفصل الثاني

### علم نجوم او سحر او جادو یو شی دی

﴿۷﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ اقْتَبَسَ عِلْمًا مِنَ النُّجُومِ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: څوک چې د علم نجوم یوه برخه زده

اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ

کوي نو ګویا کې د علم سحر یوه برخه زده کوي. همدغه شان هغه هغه هو مره د سحر علم زده کوي

زَادَ مَا زَادَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه[2]

څو مره چې هغه د نجوم علم زده کوي.

### د نجومیانو تصدیق کول حرام دي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَتَى كَاهِنًا

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې څوک کاهن ته لاړ شي

فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ أَوْ أَتَى امْرَأَتَهُ حَائِضًا

او د هغه ویلې شوي خبرې رښتیا وګڼي یا چې څوک د حیض په حالت کې د خپلې ښځې سره هم بستري وکړي

أَوْ أَتَى امْرَأَتَه من دُبُرِهَا فَقَدْ بَرِئَ مِمَّا

یا چې څوک د خپلې ښځې سره د شا نه بد فعلي وکړي نو دا د هغه څیز (یعني قرآن او سنت) نه بیزاره شو

---

(1) رقم الحدیث ۴۵۹۷ أخرجه مسلم في صحیحه ۸۴/۱ رقم الحدیث (۱۲۶-۷۲) والنسائي في السنن ۱۱۴/۴ رقم الحدیث ۱۵۲۴

(2) رقم الحدیث ۴۵۹۸ أخرجه ابوداود في السنن ۲۲۶/۴ رقم الحدیث ۳۹۰۵ وابن ماجه في ۱۲۲۸/۲ رقم الحدیث ۳۷۲۶.

| |
|---|
| أُنْزِلَ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ. رَوَاهُ أَحْمَد وَأَبُو دَاوُد[1] |
| چې كوم په محمد ﷺ باندې نازل شوي دي. |

**توضيح** برئ: كه د نجومي تصديق يې هم وكړو او دا حرام كاريې حلال وګڼلو نو دې صورت كې دا كس يقيني كافر شو او كه دې كار ته يې حلال ونه ويله بلكې د معصيت په درجه كې ګناه وكړه نو بيا دا حديث د تشديد او تهديد او توبيخ او تغليظ باندې حمل كېږي. (مرقات۸/۳۶۶)

## الفصل الثالث

### كاهنانو ته د غيبو خبره څنګه رسي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا قَضَى اللهُ |
| د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چې نبي كريم ﷺ وفرمايل: څه وخت چې الله |
| الْأَمْرَ فِي السَّمَاءِ ضَرَبَتِ الْمَلَائِكَةُ بِأَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا |
| اسمان كې د يو څه حكم كوي نو فرښتې د الله حكم او رېدلو سره په وړې او عاجزى سره خپلې څنګلې او پرقوي |
| لِقَوْلِهِ كَأَنَّهُ سِلْسِلَةٌ عَلَىٰ صَفْوَانٍ فَإِذَا |
| او الله د حكم اواز د هغه زنځير په شان وي چې كوم په پاك كاڼي باندې راښكل شي. بيا چې كله د |
| فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ قَالُوا: مَاذَا |
| فرښتو د زړونو نه وېره لرې شي او هغه فرښتې د هغه نزدې فرښتو نه پوښتنه كوي چې ستاسو |
| قَالَ رَبُّكُمْ؟ قَالُوا: لِلَّذِي |
| پروردګار څه حكم كړى دى. مقربې فرښتې ورته هغه حكم ؤوايي، كوم چې الله جاري كړى دى |
| قَالَ الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ فَسَمِعَهَا |
| حق دي او د الله ذات اوچت، او د اوچتې مرتبې والا دى، نو دا خبرې د چې د فرښتو په مېنځ كې كېږي، |
| مُسْتَرِقُوا السَّمْعِ وَمُسْتَرِقُوا السَّمْعِ |
| په پټه اورېدونكي (يعنې پيريان او شيطانا) يې واورې او هغوى په پټه سره د اورېدونكو هيئت د |

[1] رقم الحديث ۳۵۹۹ أخرجه ابوداود ۱. السنن ۴/۲۰۲۵ رقم الحديث ۳۹۰۴ والترمذي في ۱/۲۴۳ رقم الحديث ۱۳۵

هَكَذَا بَعْضُهُ فَوْقَ بَعْضٍ وَوَصَفَ سُفْيَانُ بِكَفِّهِ فَحَرَّفَهَا وَبَدَّدَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ

خپل لاس (د ګوتو) په ذریعه بیان کړي، نو هغوی لاس کوږ کړو او د ګوتو به مینځ کې یې جدا والی وکړو

فَيَسْمَعُ الْكَلِمَةَ فَيُلْقِيهَا إِلَى مَنْ تَحْتَهُ ثُمَّ يُلْقِيهَا الْآخَرُ

او د پاس والا چې د کومو فرښتو خبرې پټې اوري او لاندې پیریانو ته یې رسوي او هغه یې لاندې

إِلَى مَنْ تَحْتَهُ حَتَّى يُلْقِيهَا عَلَى لِسَانِ

پیرې ته رسوي تر دې چې هغه آخري پیریی (چې د ټولو نه لاندې وي) دا خبره ساحر یا د کاهن ژبې

السَّاحِرِ أَوِ الْكَاهِنِ. فَرُبَّمَا أَدْرَكَ

ته ورسوي. دلته (د هغه پیریانو او شیطانانو ویشتونکي او په منډه کولو لپاره د اسمان نه شعلې راغوزاروي نو) کله

الشِّهَابُ قَبْلَ أَنْ يُلْقِيَهَا

دا شعلې ساحر یا کاهن ته د رسولو نه مخکې پټ او رېدونکې (پیری) راونیسي. او کله داسې کېږي چې هغه پیری

وَرُبَّمَا أَلْقَاهَا قَبْلَ أَنْ يُدْرِكَهُ

د دې شعلې د رسیدلو نه مخکې ساحر یا کاهن هغه خبره روسي نو هغه دې سره سل دروغ یو ځای

فكذب مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ

کړي (او د خلکو مخې ته د دې دروغو خبرو به مینځ کې هغه خبره هم بیان کړي چې کوم ورته د دې پیریانو او د شیطانانو په

فَيُقَالُ: أَلَيْسَ قَدْ

ذریعه رسیږي) نو کله چې څوک دا کاهن د دې په ویلو شوي خبرو کې د دروغو خبرو په ذریعه دروغژن کړي

قَالَ لَنَا يَوْمَ كَذَا

(یعنې دا ورته ویل کېږي چې دې چې کومه فلانۍ فلانۍ خبره کړې وه هغه دروغژنه ثابته شوه، نو د دغه بې لارې

وَكَذَا: كَذَا وَكَذَا؟

خلکو له اړخه نه چې د کوم کاهن خبرې رښتیا ګڼي د دروغژن کونکي مخې) ته دا وایي چې آیا دا

فَيُصَدَّقُ بِتِلْكَ الْكَلِمَةِ الَّتِي

حقیقت نه دی او آیا ته پوهېږې چې دې کاهن په فلانۍ فلانۍ ورځې دا خبره کړې وه او دغه شان د

| |
|---|
| سُمِعَتْ مِنَ السَّمَاءِ". رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| دي کاهن د ربنتياؤ تصديق په دې خبره وشي چې دې ته د (پيريانو په ذريعه) د اسمان نه رارسيدله. |

**توضیح**: **خضعاناً**: عاجزي او تواضع او وېري په توګه د ځنګلو پړقولو ته وايي.

**صفوان**: مضبوط غټ کاڼي ته وايي. **فزع**: يعنې کله چې د فرښتو د زړونو نه وېره لرې شي.

**ماذا قال ربکم**: د لاندې اسمان والا فرښتې د مقربو فرښتو نه پوښتنه کوي چې د الله څه حکم دی؟ (مرقات۸/۳۶۷)

الحق: يعنې مقربي فرښتې ورته وايي چې کوم حکم د الله راغلی دی هغه حق دی.

فحرفها: يعنې سفيان ثوری د شيطات د باس بنتلو کيفيت وويله. هغې خپل لاس کاږه کړل او ګوتې يې د پاس نه کينبودلو سره په مينځ کې فرق وکړو. حديث نمبر ۲ کې د کيفيت تفصيل ليکلی شوی دی چې کوم د تهولو نه وپړدونکی دی هغه به ځمکه باندې کينې. د هغې د پاسه بل کينې. او دا سلسله تر پاس پورې ورسيږي. (مرقات۸/۳۶۸)

## د شهاب ثاقب حقیقت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: أَخْبَرَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په صحابه کرامو کې يو |
| مِنَ الْأَنْصَارِ:أَنَّهُمْ بَيْنَا جُلُوسٌ لَيْلَةً مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| صحابي ماته بيان وکړو چې يو ځل د شپې وخت کې صحابه کرام رضي الله عنهم د نبي کريم صلی الله علیه وسلم سره ناست ؤو |
| رُمِيَ بِنَجْمٍ وَاسْتَنَارَ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| چې يو ستوري باندې ويشتل وشو او د هغې رڼا تيزئ سره ښوره شوه (دي ليدلو سره) نبي کريم صلی الله علیه وسلم |
| مَا كُنْتُمْ تَقُولُونَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذَا رُمِيَ بِمِثْلِ هَذَا؟ |
| صحابه کرامو ته وفرمايل چې تاسو به د جاهليت په زمانه کې داسې د ستورو ويشتلو ته څه ويل؟ |
| قَالُوا: اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ كُنَّا نَقُولُ: |
| صحابه کرامو عرض وکړو چې د حقيقت حال باندې الله او د هغې رسول ښه پوهيږي. مونږ خو به ويل |

[1] رقم الحديث ۴۶۰۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۵۳۷/۸ رقم الحديث ۴۸۰۰ والترمذي في ۳۳۷/۵ رقم الحديث ۳۲۲۳

وُلِدَ اللَّيْلَةَ رَجُلٌ عَظِيمٌ وَمَاتَ رَجُلٌ عَظِيمٌ

چي نن شپه څوک غټ سړی پيدا شوی دی او (کله به مو داويل چي) نن شپه کوم لويې سړی مړ شوی دی.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَإِنَّهَا لَا يُرْمَى بِهَا لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ستوری نه د چا په مرګ سره نه ويشتلی کيږي او نه د چا په پيدائش باندي ويشتلی کيږي.

وَلَكِنَّ رَبَّنَا تَبَارَكَ اسْمُهُ إِذَا قَضَى أَمر

بلکي حقيقت دا دی چي زمونږ رب چي نوم يې د برکت والا دی. کله چي کوم حکم جاري کوي نو د

سَبَّحَ حَمَلَةُ الْعَرْشِ ثُمَّ سَبَّحَ

الله د عرش او چتونکي فرښتې تسبيح (يعني سبحان الله، سبحان الله ذکر شروع کړي) بيا (د هغوی د تسبيح اواز اورېدلو

أَهْلُ السَّمَاءِ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ حَتَّى

سره) د اسمان فرښتې تسبيح وايي چي د عرش او چتونکو والا فرښتو سره نژدې دي. تر دې چي د

يَبْلُغَ التَّسْبِيحُ أَهْلَ هَذِهِ السَّمَاءِ الدُّنْيَا ثُمَّ

هغوی د تسبيح اواز (د يو بل اسمان نه تېرېدلو سره) د دنيا د اسمان والا فرښتو ته ورسيږي. بيا

قَالَ الَّذِي يَلُونَ حَمَلَةَ الْعَرْشِ لِحَمَلَةِ الْعَرْشِ: مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ؟

هغه فرښتې چي د الله عرش ته نژدې وي د عرش د او چتونکو فرښتو نه تپوس کوي چي ستاسو پروردګار څه فرمايلي دي؟

فَيُخْبِرُونَهُمْ مَا قَالَ: فَيَسْتَخْبِرُ بَعْضُ أَهْلِ السَّمَاوَاتِ

هغه فرښتې هغوی ته خبره وکړي چي کومه پروردګار کړې ده. بيا هغه خبره نوري فرښتې هم معلومه کړي

بَعْضًا حَتَّى يَبْلُغَ هَذِهِ السَّمَاءَ الدُّنْيَا

او د هغوی نه نوري فرښتې تر دې چي دا سلسله د اسمان والا دنيا باندې او سيدونکو ته ورسيږي.

فَيَخْطَفُ الْجِنُّ السَّمْعَ

بيا د هغوی اورېدلې شوي خبره پېريان يوسي يعني هغوی غوږ ايخی وي او د داسې خبرو په انتظار کي وي او کله چي

فَيَقْذِفُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ

هغوی په پټه کومه خبره واوري نو هغه د هغه ځای نه ويسې او خپلو ملګرو ته يعني کاهنانو ته يې ورسوي، نو د هغه

وَيُرْمَوْنَ فَمَا جَاؤوا بِهِ

پېريانو د ويشتلو لپاره ستوري ويشتلی کېږي د غه شان که کاهن چي خبره، کومه چي د اسمان نه اورېدلی

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَى | وَجْهِهِ | فَهُوَ | حَقٌّ |

شوي ده او د پیریانو په ذریعه هغې ته را رسیږي همغه شان بیان کړي نو هغه یقیناً صحیح ثابت شي، خو هغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَكِنَّهُمْ | يَقْرِفُونَ | فِيهِ | وَيَزِيدُونَ". | رَوَاهُ | مُسلم | (١) |

کاهن داسې نه کوي بلکې د هغې سره د دروغو خبرې یو ځاى کړي او د یوې خبرې نه ډېرې خبرې جوړې کړي.

## ستوري د کوم مقصد لپاره پیدا کړی شوي دي؟

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَن | قتادةَ | قَالَ: | خلقَ | اللهُ | تَعَالَى | هَذِهِ | النجومَ | لثلاثٍ |

او حضرت قتاده رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې الله ستوري د درې خبرو لپاره پیدا کړي دي. یو خو دا چې دا یې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| جَعَلَهَا | زِينَةً | لِلسَّمَاءِ | وَرُجُومًا | لِلشَّيَاطِينِ |

د اسمان د ښایست لپاره پیدا کړي دي او دویم دا چې د شیطانانو او د پیریانو د ویشتلو لپاره او

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَعَلَامَاتٍ | بِهَا | يُهْتَدَى | فَمن |

درېم د علاماتو لپاره چې خلک د هغې په ذریعه (ځنګل او سمندر کې) خپله لاره معلومه کړي شي. لهذا څوک چې دې (ستورو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تأوَّلَ | فِيهَا | بِغَيْرِ | ذَلِكَ | أَخْطَأَ | وَأَضَاعَ |

کې د دې خبرو نه بغیر بل کوم غرض بیان کړو نو هغې خطا وکړه، خپله برخه یې ضایع کړه او یا په هغه څیز کې څه تکلیف چې

| | | |
|---|---|---|
| نَصِيبَهُ | وَتَكَلَّفَ | مَا |

په هغې هغه نه پوهیږي (یعنې د اسمان د شیانو باره کې چې کوم حقوق دي د هغې علم د قرآن او سنت نه بغیر په بله کومه طریقه

| | | | |
|---|---|---|---|
| لا | يَعْلَمُ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ |

حاصلول امکان نه لري او چې په قرآن او سنت کې د ستورو غرض د دې درې خبرو نه بغیر بل کوم بیان نشته دی نو د ذکر خبرو

| | | |
|---|---|---|
| تَعْلِيقًا | وَفِي | رِوَايَةِ | رَزِينٍ: |

نه بغیر بل یو غرض بیانول، د داسې خبرې بیانول دي چې معلومېدل هیڅ خیلا کې نه وي) دا روایت بخاري بغیر د سند نه نقل

| | | | |
|---|---|---|---|
| تكلَّف | مَا | لا | يعنيه |

کړی دی او د رزین په روایت کې دا الفاظ دي چې د هغه څیز تکلیف به څه وي (یعنې د هغه څیز باندې د پوهه کېدو دعوی باندې

وَمالا عِلْمَ لَهُ بِهِ وَمَا عَجَزَ عَنْ عِلْمِهِ الْأَنْبِيَاء وَالْمَلَائِكَة وَعَن الربيع مِثْلُهُ

څه) چې د کوم علم هغې ته نشته دی او چې د علم نه یې ابنیاء او فرښتې عاجزه دي. ربیع هم دغه شان

---

(١) رقم الحدیث ۴۶۰۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۵۰/۴ رقم الحدیث (۱۲۴-۲۲۲۹) والترمذي في السنن ۳۳۷/۵ رقم الحدیث ۳۲۲۴.

| |
|---|
| وَزَادَ: وَاللهِ مَا جَعَلَ اللهُ فِي نَجْمٍ حَيَاةَ أَحَدٍ وَلَا رِزْقَهُ |
| نقل کړي دي چې قسم په خدای د الله په ستورو کې نه خو د چا ژوند (یعني پیدائش) مقرر دی. او |
| وَلَا مَوْتَهُ وَإِنَّمَا يَفْتَرُونَ عَلَى اللهِ الْكَذِبَ وَيَتَعَلَّلُونَ بِالنُّجُومِ |
| نه د چا رزق (یعني مال او عزت وغیره) او نه د چا مرګ. د دې نه بغیر نور هیڅ نه دي ځکه کاهن په |
| وَلَا مَوْتَهُ وَإِنَّمَا يَفْتَرُونَ عَلَى اللهِ الْكَذِبَ وَيَتَعَلَّلُونَ بِالنُّجُومِ [1] |
| الله باندې د ځان نه دروغ تړي او د ستورو د راختلو او ډوبېدل د څه نا څه واقعې او حادثې علت ګڼي. |

**توضیح: لثلاث:** د شهاب ثاقب باره کې د ځینو علماؤ خیال دی چې دا عام ستوري نه دي بلکې د پیریانو د ویشتلو لپاره د مستقلې لمبې او راکټې دي. په ظاهره دا د اسمان ستوري ښکاري. اګر که ستوري هم دي خو اسما کې مرکوز ستوري نه دي. **والله اعلم.**

اسلام نه مخکې د خلکو خیال ؤو چې د یو لویې سړي په پیدائش یا د هغې د مرګ د حادثې په وخت کې ستوري ماتېږي. نبي کریم ﷺ د اسمان د ستورو درې مقصدونه بیان کړل.

۱: د دینا د اسمان زینت لپاره دي، ځکه اسمان د انسانانو لپاره د چهت په منزل دی. او چهت کې د رڼا او زینت لپاره خلک مختلف شیان جوړوي. الله په خپل جوړ شوي چهت کې د زینت او د رڼا لپاره لمر او سپوږمۍ او ستوري جوړ کړي دي. ﴿ولقد زینا السماء الدینا بمصابیح و جعلناها رجوما للشیاطین﴾(سورة ملک :۵)

۲: د ستورو دویم مقصد د شیطانانو ویشتل دي. چې کوم باس خیژې. هغوی باندې ستوري رالېږي.

۳: د ستور د پیدا کولو دریم مقصد د دنیا خلکو ته رهنمائی کول دي. که سمندر وی یا دشته او شاړه او که صحرا وي. دې ایتمې دورر کې هم انسانان د ستورو نه رهنمائی حاصلوي. او د دې نه بې پروا کېدی نه شي. (مرقات۸/۳۷۲،۳۷۱)

**اضاع نصيبه:** یعني د عمر یوه برخه شي ضایع کړه او د ستورو اصل مقصد یې په نظر کې ونه ساتلو.

**ویتعللون بالنجوم:** یعني ستوري د یوې حادثې او واقعې لپاره د علت په توګه پیش کوي او وایي چې په فلانې ستورې دا وشو او په فلانې ستورې هغه وشو. د فضول اندازو او اټکلونو کې پول یې جوړ کړی وي. (مرقات۸/۳۷۲)

---

[1] رقم الحديث ۴۶۰۲ أخرجه البخاري تعليقًا ۶/۲۹۵ باب (۳) من كتاب بدء الخلق

## نجومي ساحر دی او ساحر کافر دی

| | |
|---|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنِ اقْتَبَسَ | |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: چا چې د علم نجوم کومه | |
| بَابًا مِنْ عِلْمِ النُّجُومِ لِغَيْرِ مَا ذَكَرَ اللهُ | |
| برخه زده کړه او د زده کولو په غرض يې د دې درې څيزونو نه بغير د بل څه سره متعلق وي چې کوم الله په قرآن کې بيان | |
| فَقَدِ اقْتَبَسَ شُعْبَةً مِنَ السِّحْرِ | |
| کړي دي، نو بيشکه هغه د سحر د علم نه يوه برخه زده کړه (او سحر علم يو بد علم دی ځکه د دې ځينې قسم په فسق | |
| اَلْمُنَجِّمُ كَاهِنٌ والكاهنُ | |
| کې داخل دی او ځينې قسم موجب کفر دی) او ياد وساتئ منجم د کاهن به حکم کې وي او کاهن د ساحر په حکم کې دی. او کوم | |
| ساحرٌ والساحرُ كافرٌ. رَوَاهُ رزين[1] | |
| کس چې د سحر او د هغې د جائز لرلو عقيده وي هغه کافر شي (د غه شان منجم او کاهن هم د خپلې بدې عقيدې به وجه کافر شي). | |

**توضيح**: المنجم: نجومې ته ځکه کاهن ويل شوي دي ځکه دواړه د يو جنس خلک دي. يو ميدان دی او هم يو کار دی، ځکه نجومې هم د غيب په خبرو کې د کاهن پشان نبغې او کږې خبرې جوړوي او بيا يې وايي.

**والكاهن ساحر**: کاهن ته ځکه ساحر ويلی شوی دی چې کوم نقصان انسانانو ته جادوګر رسوي. هغه نقصان کاهن هم رسوي. لهذا ضرر او نقصان کې دواړه يو شان دي، نو کاهن ساحر دی.

"**والساحر كافر**" يعنې جادوګر کافر دی. (مرقات ۸/۳۷۴)

**د سحر تعريف: د سحر او جادو يو تعريف دی** "السحر هوا خراج الباطن فی صورة الحق"

دويم تعريف داسې دی. "**كل ما ذق ولطف مأ خذهٔ هوا سحر**" يعنې هر باريک او بهتر انداز سره حاصل شوی شی سحر او جادو دی. ګويا کې د لاس صفائی او د لطيفو فنون اعلی مظاهره د سحر او جادو دی. دلته د يو څو خارق عادت او ما فوق الفطرة څيزونو بيان کول هم مناسب معلومېږي. اګر که جلد اول ص ۲۴۸ کې د دې بيان شوی دی، نو خارق عادت او ما فوق العادة څيزونه اوّوه

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۰۳ رواه رزين

(۷) دي: ۱: خارق عادت شیانو کې اولنی شی "ارهاص" دی. که د نبي لاس د نبوت نه مخکې د خارق عادت شي نه ظاهر شي نو دې ته ارهاص وايي. ګويا کې د شی د نبي د راتلو اعلان دی. لکه د نبوت نه مخکې به نبي کريم ﷺ ته کاڼو سلام کولو. ۲: **معجزات:** که مدعی نبوت په لاس باندې د هغې د نبوت تصديق لپاره يو خارق عادت امر ظاهر شي نو هغې ته معجزه وايي.

۳: **کرامت:** که د يو متبع سنت صاحب ايمان کس په لاس باندې يو خارق عادت امر ظاهر شي نو هغې ته کرامت وايي. پيغمبر ته د خپلې معجزې علم هم وشي او د هغې ظاهرېدلو مقصد هم وشي خو د ولي په کرامت کې دا شرط نشته دی. ۴: **معونات:** دا هغه خارق عادت امور دي چې د يو متبع سنت کس د مرستې لباره ظاهر شي لکه د ولږې په حالت کې خوراک څښناک ملاو شي.

۵: **استدراج:** دا داسې خارق عادت امور دي چې د يو کافر د خدای د دښمن په لاس باندې د هغې د مقصد موافق ظاهر شي لکه د دجال په لاس به ظاهرېږي. ۶: **اهانت:** دا داسې خارق عادت امور دي چې د يو کافر د خدای د دښمن په لاس د هغې د مقصد خلاف ظاهر شي چې هغه ذليل او خوار شي لکه مسليمه کذاب او سترګې په سترګه باندې لاس راښکلو نو بله سترګه يې هم ضايع شوه. باغ کې د بوټو جړلو کې غرغنده کولو سره اوبه غوزارې کړې نو ټول بوټې اوچ شو. د يو ماشوم په سر يې لاس راښکلو نو د هغې حافظه ختمه شوه. ۷: **السحر:** خارق عادت کې اؤوم څيز جادو دی. دا يو داسې خارق عادت امور دي چې د انسان په لاس د منتر جنتر او د جادو په ذريعه ظاهرېږي.

د معتزلؤ په نزد جادو يو وهم دی. د دې هيڅ حيثيت نشته دی، خو د جمهورو په نز سحر او جادو يو حقيقت دی. او د دې تعريف دا دی **"اخراج الباطل فی صورة الحق" يا "کل ما لطف ودق مأخذ فهو سحر"** د امام مالک او د امام احمد بن حنبل په نزد ساحر کافر دی. لهذا واجب القتل دی.

ائمه احناف فرمايي چې که د جادو په عمل کې د دين د ضرورياتو نه انکار دی نو دا کفر دی. او که د جادو په عمل کې صرف د شرکيه کلمات دي نو دا شرک دی. او که په دې کې داسې کلمات وي چې د اعمال حسنه منافي دي نو دا معصيت او ګناه کبيره دی. او که په دې کې داسې کلمات دي چې صحيح دي او د صحيح مقصد لپاره استعمالېږي نو دا مباح او جائز دی. لک د ښځې او خاوند په مينځ کې اصلاح مقصود وي، د احنافو دا تفصيل ډېر ښکلی دی، خو کتل دا دي چې د دغه شان مسلمانې جادو په دنيا کې وجود شته هم دی يا که صرف يو خيال دی؟ ځکه د جادو بنياد په خبيث اعمالو او افعالو او خبيث اقوالو باندې قائم دی.

## کار الله کوي او نسبت يې غیر الله ته کېږي

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ أَمْسَكَ اللهُ |
| او حضرت ابو سعید رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل که الله تر د پنځه کالو پورې |
| الْقَطْرَ عَنْ عِبَادِهِ خَمْسَ سِنِينَ ثُمَّ أَرْسَلَهُ لَأَصْبَحَتْ طَائِفَةٌ مِنَ النَّاسِ |
| خپل بنده ګان د باران نه محرومه وساتي او بيا پرې باران وکړي نو د خلکو يو جماعت به هم په هغه |
| كَافِرِينَ يَقُولُونَ: سُقِينَا بِنَوْءِ الْمِجْدَحِ". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ (۱) |
| صورت کې کفر کوي او وايي به چې مجدح يعنې د سپوږمۍ د منزل په سبب مونږ باندې باران وشي. |

**توضیح**: بنوء المجدح: مجدح کې میم د کسري سره دی. جیم ساکن دی او دال باندې زبر دی. د سپوږمۍ په منزلونو کې د يو منزل نوم دی. د جاهليت په زمانه کې د عربو خيال ؤو چې کله دې منزل ته سپوږمۍ داخل شي نو زيات بارانونه کېږي. نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا عقيده باطله کړه او د دليل په توګه يې وفرمايل چې مثلاً د پنځه کالو پورې باران ولاړ ؤو، نو د مجدح منزله چرته ؤو. هغې باران ولې ونه کړو. که باران د مجدح منزل باندې کېدو نو دا موجود ؤو او باران نه ؤو. اوس چې الله باران وکړو نو خلکو د مجدح اړخ ته نسبت وکړو. دا د افسوس خبره ده.

دې حديث کې چې د کوم علت اړخ ته اشاره شوې ده دا حقيقت يو ضابطه ده چې کائنات کوم کوم امورو کې خلک د مزارونو او پيرانو او فقيرانو اړخ ته منسوب کوي. هغه کارونه د الله به حکم سره کېږي، خو د دې نسبت د غير الله اړخ ته کوي. دا ډېر زياتي او ظلم دی چې کار خو وکړي الله جل و على او نسبت او د تعريف سهرا د بل به سر وتړي (مرقات ۸/۳۷۴)



---

(۱) رقم الحديث ۴۶۰۴ رواه رزين

# کتاب الرؤیا
## د خوبونو بیان

**قال الله تعالیٰ: ﴿لقد صدق الله رسوله الرؤیا بالحق لتدخلن المسجدالحرام ان شاء الله اٰمنین محلقین رؤسکم و مقصرین لا تخافون﴾(سورة الحجرات :۲۷)**

رؤیا د باب فتح بفتح نه راځي، خو د مصدر بدلیدلو سره یې معنی بدلیږي. که چرې مصدر رؤیة راشي نو په سترګو باندې د کتلو په معنی کې دی. که مصدر رأیاً راشي نو د رائی قائمولو په معنیٰ کې دی. که مصدر رئة راشي نو دې ته رؤیت پرپوسی وایي. یعنې د چاچې پرپوس خراب شي او که مصدر رؤیآ راشي نو د خوب د لیدلو په معنی وي. کتاب کې همدغه مراد دی.
الله تعالی د انسان په زړه او مازغو کې د خوب په حالت کې هم داسې علوم اچولي دي لکه څنګه یې چې د بیدارئ په حالت کې اچولي دي. د خوب په حالت کې چې انسان څه ویني هغې ته خوب وایي.
د خوب درې قسمونه دي : ۱: خوب اول قسم خو فقط خیال دی. بیا انسان چې ګرځي راګرځي او په سترګو باندې مختلف شیان ویني. د شپې بیا همغه شیان ورته متشکل شي ځکه زړه او مازغو باندې د همغه شیانو نقشه پرته وي.۲: دویم قسم د خوب اضغاث او احلام دی. دا هغه ویرونکی، هیبتي او پراګنده خوب وي. چې د شیطاني اثراتو عکاسي وي.۳: دریم قسم د خوب هغه خوب وي چې د الله له اړخ نه وي او بشارت او خیر او نیکئ ظاهره وي. دغه قسمه خوب ته رؤیا صالحه وایي.
د دې حقیقت دا دی چې الله تعالیٰ د دې بنده په زړه او مازغو کې علم او معرفت یو نُور پیدا کړي، ځکه هغه په خوب کې د دې شیانو درک لګوي. چې لکه څنګه یې په بیدارئ کې درک کوي. دا اصل د راتلونکې وخت واقعاتو اړخ ته اشاره وي. کله دا اشاره ډیره خفي وي چې فقط ماهرین د دې په تعبیر باندې پوهیږي. او کله دومره واضحه وي چې ګس و ناګس پرې پوهیږي. (مرقات۸/۳۸۴)

د خوبونو لوی امام خو حضرت یوسف علیه السلام تیر شوی دی، خو امت محمدیه علی صاحبهما الف الف تحیتة کې د خوبونو د تعبیر لوی امام علامه محمد ابن سیرین رحمه الله تیر شوی دی.

د خوب تعبیر "**علی رجل الطائر**" وي یعنې چا چې وویله د همغې تعبیر به واقع کیږي، خو د دې باوجود د تعبیراتو څه اصول هم دي. ابن سیرین رحمه الله ته منسوب کتاب د تعبیر الرؤیا په ابتداء کې د اصولو اړخ ته اشاره شوي ده. د هغې خلاصه دا ده :۱: یو اصل او قاعده دا ده چې د شریعت د قواعدو او ضوابطو د لاندې د شریعت په رڼا کې د دې د خوب تعبیر ؤو لټولی شي او بیا دې تعبیر راویستلی شي.۲: دویم اصل دا دی چې د قرآن یو آیت یا حدیث ته دې وکتلی شي او د هغې په رڼا

کې دي تعبير وکړې شي. ۳: دريم اصل دا دی چې د عربي لغت په مرستي سره دي د خوب تعبير راويستلی شي. همدغه وجه ده چې د خوب تعبير د داسې کَس نه معلومول پکار دي چې د خوب ليدونکې خواخوږی هم وي او د تعبير په قواعدو کې هم ماهر وي. شرعي حيثيت د خوب دا دی چې د انبياء کرام خوب د وحي خفي درجه لري او د نورو صالحينو خوب که چرې د شريعت سره په ټکر کې نه وي نو داسې خوب فقط اطمينان وي. د هغې نه هيڅ شرعي ضابطه نه جوړيږي. حديثونو کې کې ښه خوبونه په مبشراتو سره ياد کړی شوي دي.

## الفصل الاول

## ريښتني خوبونه مبشرات دي

| |
|---|
| ﴿ ۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَمْ يَبْقَ مِنَ النُّبُوَّةِ |
| حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د نبوت په اثارو کې هيڅ پاتې نه دي. |
| إِلَّا الْمُبَشِّرَاتُ قَالُوا: وَمَا الْمُبَشِّرَاتُ؟ قَالَ: |
| بغير د مبشراتو نه، صحابوُ (دې اوريدلو سره) عرض وکړو چې مبشرات نه څه مراد دی؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل |
| الرُّؤْيَا الصالحةُ . رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] وَزَادَ مَالِكٌ بِرِوَايَةِ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ: يَرَاهَا الرجل |
| ښه خوب. (بخاری) او د امام مالک په روايت کې دا اضافه دي چې مسلمان سړی خپله خوب ويني يا |
| الْمُسلم أَو ترى لَهُ[2] |
| د هغې باره کې وليدلی شي. |

**توضيح**: **المبشرات**: دا د بشارت نه دی. د خوشخبرئ په معنی کې دی. يعني د نبوت دروازه بنده شوي ده. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته بل نبي راتلونکی نشته دی. لهذا د اسماني وحي نزول ختم شوی دی. اوس د خوب په صورت کې صرف بشارتونه پاتې شو، خوب کې دا چې غالب عنصر د بشارت وي، نو ځکه د غلبې په توګه د دې فالب حيثيت مطلقاً مبشرات ګڼلی شوي دي. ګنې خوبونه ربنتای وي خو دې کې د بشارت په ځای يرونه وي. يعنې د غم خبر وي. په همدغه وجه علماؤ ويلي دي چې د مبشراتو نه مطلق خبر مراد دی. هغې کې بشارت وي يا که يرونه وي. (مرقات ۸،۳۷۵/ ۳۷۶)

---

([1]) رقم الحديث ۴۶۰۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۷۵/۱۲ رقم الحديث ۶۹۹۰ وأبوداود في السنن ۲۸۰/۵ رقم الحديث ۵۰۱۷

([2]) رقم الحديث ۴۶۰۷ أخرجه الترمذي في السنن ۴۱۲/۴ رقم الحديث ۲۲۷۳ ومالک في الموطا ۹۵۷/۲ رقم الحديث ۳ من كتاب الرؤيا.

## ریښتنی خوب د نبوت څلویښتمه برخه ده

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ |
| او حضرت انس رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل شه خوب د نبوت څلويښت |
| وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| (۴۰) برخو کې يوه برخه ده. (بخاري و مسلم) |

**توضيح**: جزء من ستة: يعنې ريښتنې خوب د نبوت څلويښتمه برخه ده.

**سوال**: ځېنې روايتونو کې زير بحث روايت ۴۶ ذکر دی خو په ځېنو نورو روايتونو کې ۲۶ ذکر دی په ځېنو کې د ۲۴ او په ځېنو کې د ۷۶ ذکر دی چې په ظاهره تضاد دی. د دې تضاد څه جواب دی؟

**جواب**: د دې پوښتنې يو جواب خو هغه مشهور جواب دی چې په شمير کې تضاد نه وي ځکه عدد اقل د عدد اکثر دننه وي. دويم جواب دا دی. دويم جواب دا دی چې دلته په يو عدد کې حصر بيانول او تعين او تحديد بيانول مقصود نه دي. بلکې صرف زياتوالی بيانول مقصود دی. باقې د خاص خاص اعدادو ذکر کول دا د شريعت د اسرار نه دي. مونږ د دې وجه بيانولو باندې مکلف نه يو. البته علماؤ د څلويښت عدد يو حکمت بيان کړی دی. هغه دا دی چې د ټول نبوت زمانه ۲۳ کاله ده او ۶ مياشتې دې کې هغه زمانه ده چې کوم کې هغې ته صرف ريښتنې خوبونه راغلي دي. د دې اعتبار سره ۲۳ کاله د څلويښتمه برخه جوړيږي. د دې وجه نه ويل شويد چې د ريښتنې خوب د نبوت څلويښتمه برخه ده. (مرقات۸/۳۷۷،۳۷۶)

**پوښتنه**: دلته يوه بله پوښتنه او يو اشکال دی. چې قاديانيان خلک يې هم پيش کوي. اشکال دا دی چې د يو شيز جزء د هغې د کل برخه وي. د هغې نه جدا نه شمارل کېږي. لهذا چې نبوت ختم شو نو د هغې يو بل جزء او يو برخه څنګه پاتې شوه؟ معلومه شوه چې د نبوت سلسله جاري ده.

**جواب**: د دې جواب دا دی چې يو نبوت دی او يو علم نبوت دی، نو نبوت اګر که ختم شوی دی خو علم نبوت باقې دی. ريښتنې خوب خپله نبوت نه دی بلکې د علم نبوت متعلق دی. قادياني دجال دی. (مرقات۸/۳۷۶)

## نبي کريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ په خوب کې ليدلو تحقيق

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسلم قَالَ: من |
| او د حضرت ابو هريره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کوم کس چې زه |

[1] رقم الحديث ۴۶۰۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۶۱/۱۲ رقم الحديث ۶۹۸۳ ومسلم في ۱۷۷۴/۴ رقم الحديث ۲۲۶۴/۷)

| |
|---|
| رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَآنِي فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَمَثَّلُ فِي صُورَتِي (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| خوب کې ولیدلم، هغې په حقیقت کې زه ولیدلم، ځکه شیطان زما په صورت کې نه شي جوړېدلی. |

**توضیح**: فقد رأنی: یعنې چاچې خوب کې زه ولیدلم نو هغې په رښتیا زه ولیدلم. د دې کس دا خوب د اضغاث احلام نه نهٔ دی بلکې په حقیقت باندې بناء دی، ځکه شیطان خپل ځان زما په شکل کې نه شي اچولی. د دې وجه دا ده چې نبي د هدایت محضه ده او شیطان د ضلالت محضه ده. دواړو کې واضح فرق او واضح تضاد دی. که شیطان داسې کولو باندې قادر شي نو بیا شریعت کې د خل اندازئ کولو خطر هم پیدا کېدی شي.

نن سبا حزب الله او د جماعة المسلمین خلک د نبي کریم ﷺ خوب کې د لیدلو نه انکار کوي. او د دلیل په توګه وايي چې نبي کریم ﷺ د صحابه کرامو نه بغیر بل هیچا نه دی لیدلی، خوب کې هغه شی ښکاري چې سسړي مخکې لیدلی وي. د دې مهمل پوښتنې جواب دا دی چې کله صحیح حدیث موجود دی نو ستا د دې منطق هیڅ حیثیت نشته دی. دویم جواب دا دی چې همغه حق دی او هغه سړي نبي کریم ﷺ لیدلی دی، خو سړی د خپلو اعمالو په اعتبار سره د نبي کریم ﷺ زیارت کوي. که اعمال ښه وي نو نبي کریم ﷺ په ښه صورت ویني او که اعمال خراب دي نو نبي کریم ﷺ په همغه رڼا کې ویني. درېم جواب دا دی چې حدیثونو کې د نبي کریم ﷺ شکل مبارک په پوره توګه شمائل کې ذکر دی. د دې نه د لیدلو اندازه کېږي. بهرحال دا خصائص نبوي او د اعجاز نبوي نه دی چې د نبي کریم ﷺ شکل او صورت کې شیطان نه شي راتلی. (مرقات۸/۳۷۶)

## چاچې زه په خوب کې ولیدلم هغه هم زه ولیدلم

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ رَآنِي | | |
| او حضرت ابو قتاده رضي الله عنه فرمايي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل چې چا زه خپل خوب کې | | |
| فَقَدْ | رَأَى | الْحَقَّ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] |
| ولیدلم نو هغې حق ولیدلو یعنې د هغې خوب رښتیا دی چې هغې زه ولیدلم. | | |

**توضیح**: الحق: یعنې هغه کس هم زه لیدلی یم. دا حق دی. دروغ نه دي. دې باره کې د دروغو خیالات او د شیطان دخل نه شي کېدی. دا اعزاز د نبي کریم ﷺ د خصائص نه دی. چې د اعجاز نبوي برخه ده. هر سړی نبي کریم ﷺ د خپلو عملونو په آئینه کې ویني. (مرقات۸/۳۸۲)

---

([1])رقم الحديث ۴۶۰۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۰۲/۱ رقم الحديث ۱۱۰ ومسلم في صحيحه ۱۷۷۴/۴ رقم الحديث (۱۰-۲۲۶۶)

([2])رقم الحديث ۴۶۱۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۸۳/۱۲ رقم الحديث ۶۹۹۶ ومسلم في ۱۷۷۶/۴ رقم الحديث ۲۵۷.

## نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوب كې د ليدلو فضيلت

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: مَن رَآنِي فِي الْمَنَامِ
او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل كوم كس چې زه په خوب كې وليدلم
فيسراني فِي الْيَقَظَةِ وَلَا يَتَمَثَّلُ الشَّيْطَانُ بِي (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) [۱]
هغه به ژر ما د بيدارئ په حالتويني او شيطان زما په صورت كې نه شي جوړيدلی. (بخاري ومسلم)

**توضيح**: فسيراني في اليقظة: يعنې كوم كس چې زه په خوب كې وليدلم نو نزدې ده چې هغه كس به ما د بيدارئ په حالت كې دنيا كې اويني. دې صورت كې د دې حديث تعلق د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژوند مبارك سره دی. د دې حديث دويم مطلب دا دی چې كوم كس ما په خوب اويني نو هغه به ما په عالم آخرت كې به بيدارئويني. ګويا كې د هغه كس انجام به ښه وي او د ايمان سره به د دنيا نه ځي. (مرقات۸/۳۸۲)

## ښه او د بد خوب ليدلو وخت كې سړی څه وكړي؟

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ مِنَ اللهِ
او حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ښه خوب د الله تعالى له
وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ
اړخه دی او بد خوب د شيطان له اړخه دی. لهذا چې تاسو كې څوک داسې خوب اويني چې د كوم
مَا يُحِبُّ فَلَا يُحَدِّثُ
نه هغه خوشحاله وي، نو پكار ده چې دا خوب دې صرف هغه چا ته بيان كړي چې هغه يې خپل دوست او خير خواه ګڼي (لكه
بِهِ إِلَّا مَنْ يُحِبُّ
علماء، صلحاء او خپلوان او دې خوب بانـدې د الله شكر ادا كړي او د هغې حمد او تعريف وكړي لكه د بخاري او د مسلم په يو
وَإِذَا رَأَى مَا يَكْرَهُ
بل روايت كې منقول دي) او چې يو داسې خوب اويني چې هغه يې نه خوښوي نو پكار ده چې د دې خوب بد والي
فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنْ شَرِّهَا وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَلْيَتْفُلْ ثَلَاثًا
او د شيطان د شر نه د الله نه پناه وغواړي او د شيطان د لرې كولو په قصد دې ځله لاړې توک كړي او

---

([۱]) رقم الحديث ۴۶۱۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۳۸۳ رقم الحديث ۶۹۹۳ ومسلم ۴/۱۷۷۵ رقم الحديث (۱۱/۲۲۶۶)

وَلَا يُحَدِّثْ بِهَا أحدا فَإِنَّهَا لن تضره (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

دا خوب دې د چا مخې ته بيان نه كړي (هغه كه دوست وي او د ښمن) او دا خوب به هغې ته نقصان نه رسوي.

**توضيح**: د هر قسم خوب اصل قدرت خو د الله په لاس كې دى، خو ښه ليدلو سره د الله له اړخه بنده ته يو بشارت حاصليږي. چې بنده پرې د الله شكر ادا كوي، نو الله خوشحاله كيږي، نو دې اعتبار سره دا خوب د الله له اړخه دى، خو بد خوب باندې سړى غمجن او پريشانه شي او په قسمه قسمه وسوسو كې اخته شي. چې شيطان پرې ډېر خوشحاله شي، نو ځكه ويلې شوي دي چې داسې خوب د شيطان له اړخه دي يعنې شيطان په دې خوشحالېږي. د هغې د خوارولو لپاره شريعت حكم كړى دى چې داسې حالت كې چپ اړخ ته لاړې غوزارې كړي چې شيطان په ذلالت سره وتښتې او د داسې خوب دې چاته تذكره نه كوي. الغرض ښه خوب باندې د الله شكر ادا كړئ او بد خوب باندې د شيطان نه د كركې اظهار وكړئ. مخكې روايت كې دي چې درې خله چپ اړخ ته لاړې غوزارې كړي او اعوذ بالله ولولئ او اړخ دې بدله كړي. (مرقات ۳۸۴،۳۸۳/۸)

﴿۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا رَأَى أَحَدُكُمُ الرُّؤْيَا

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې تاسو كې څوك داسې خوب اويني

يَكْرَهُهَا فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا وَلْيَسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ ثَلَاثًا

چې هغه يې نه خوښوي نو هغې له پكار ده چې چپ اړخ ته درې ځله لاړې توک كړي او درې ځله د

وَلْيَتَحَوَّلْ عَنْ جَنْبِهِ الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ. رَوَاهُ مُسلم[2]

شيطان نه د الله پناه وغواړي او خپل اړخ بدل كړي چې د خوب ليدلو وخت (كې اوده شوى) ؤو.

## خوبونو لپاره اصولي ضابطه

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: هغه وخت چې زمانه به

لَمْ يَكَدْ يَكْذِبُ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ وَرُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ

نزدې وي نو د مؤمن خوب به دروغژن نه وي او د مؤمن خوب به د نبوت د شلويښتو جزونو نه يو جزء دى.

---

[1] رقم الحديث ۴۶۱۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۳۸/۶ رقم الحديث ۳۲۹۲ ومسلم في ۱۷۷۲/۴ رقم الحديث (۴-۲۲۶۱)

[2] رقم الحديث ۴۶۱۳ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۷۲/۴ رقم الحديث (۲۲۶۲ وابوداود في السنن ۲۸۴/۵ رقم الحديث ۵۰۲۲.

وَمَا كَانَ مِنَ النُّبُوَّةِ فَإِنَّهُ لَا يَكْذِبُ . قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ: وَأَنَا أَقُولُ:

او کوم شی چې د نبوت د جزونو نه وي هغه دروغ جن نه شي کېدی. حضرت محمد ابن سیرین فرمايي چې زه وايم

الرُّؤْيَا ثَلَاثٌ: حَدِيثُ النَّفْسِ وَتَخْوِيفُ الشَّيْطَانِ وَبُشْرَى مِنَ اللهِ فَمَنْ

چې خوب په دري قسمه دي. يو خو د نفس خيال، دويم د شيطان وېرول او دريم د خدای له اړخه بشارت پس څوک چې

رَأَى شَيْئًا يَكْرَهُهُ فَلَا يَقُصَّهُ عَلَى أَحَدٍ وَلْيَقُمْ فَلْيُصَلِّ قَالَ:

يو بد خوب اويني نو هغه د چا مخې ته مه بيانوئ او پاڅېږئ او لمونځ وکړئ. او ابن سيرين فرمايي چې

وَكَانَ يُكْرَهُ الْغُلُّ فِي النَّوْمِ وَيُعْجِبُهُمُ الْقَيْدُ

نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوب کې د طوق ليدل بنه نه ګڼي او د قيد ليدل به يې خوښول، نو ويلی کېږي چې

وَيُقَالُ: الْقَيْدُ ثَبَاتٌ فِي الدِّينِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [1]) قَالَ الْبُخَارِيُّ:

د قيد مطلب دين باندې ثابت قدمي ده. دا پوره روايت بخاری او مسلم نقل کړی دی. امام بخاری فرمايي چې دا

رَوَاهُ قَتَادَةُ وَيُونُس وَهِشَام وَأَبُو هِلَالٍ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ

حديث قتاده، يونس هشام او ابو هلال د محمد ابن سيرين نه او هغې د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی او

وَقَالَ يُونُسُ: لَا أَحْسَبُهُ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يونس ويلي دي چې زما ګمان دی چې د حديث هغه جز چې کوم کې ابن سيرين د قيد ذکر کړی دی يعنی دا

فِي الْقَيْدِ .وَقَالَ مُسْلِمٌ:

االفاظ ﴿يعجبهم القيد والقيد ثبات في الدين﴾ د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول ندی. بلکې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ارشاد دی او امام مسلم

لَا أَدْرِي هُوَ فِي الْحَدِيثِ

دا ويلي دي چې ماته معلومه نه ده چې هغه جزء چې کوم کې د قيد الفاظ دي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ الفاظ دي يا د

أَمْ قَالَهُ ابْنُ سِيرِينَ؟

ابن سيرين خپل قول دی. د مسلم په يو بل روايت کې همدغه شان الفاظ دي. او مسلم دا هم ويلي دي چې ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

وَفِي رِوَايَةٍ نَحْوَهُ

يا محمد ابن سيرين په حديث کې ادراج کړی دی همدغه رنګ هغه ويل چې زه طوق ليدل بنه ګڼم..... الخ (ګويا

[1] رقم الحديث ۴۶۱۶ أخرجه البخاري ۴۰۴/۱۲ ومسلم في ۱۷۷۳/۴ رقم الحديث (۲-۲۶۹) وابوداود في السنن ۲۸۲/۵ رقم ۵۰۱۹

| | | |
|---|---|---|
| وَأُدْرَجَ | فِي | الْحَدِيثِ |
| كې د مسلم د قول مطلب دا دی چې د حديث پوره آخري جزء چې د طوق او ذکر باندې مشتمل دی. د نبي عَلَيْهِ السَّلَام | | |
| قَوْلَهُ: | وَأَكْرَهُ | الْغُلَّ... |
| ارشاد نه دی. بلکې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا د محمد ابن سيرين خپل قول دی. او بخاري او مسلم د دې اقوالو په رڼا | | |
| إِلَى | تَمَامِ | الْكَلَامِ[1] |
| کې د قال وکان يكره الخ د ضميرونو حقيقت حال هم منکشف کېږي چې دا ضميرونه د چا اړخ ته راجع کېدل پکار دي. | | |

**توضيح**: اذا اقترب الزمان: د دې يو مطلب دا دی چې کله د قيامت نزدې زمانه راشي نو مسلمانان به کثرت سره ښه خوبونه وينې. دا چې دا به غيب نه پردا او چتونکی وي نو خوبونه به يې هم رښتاى وي. دويم مطلب دا دی چې کله د سړې د مرګ زمانه نژدې شي نو د هغه خوبونه به رښتيا وي. دریم مطلب دا دی چې کله زمانه کې ورځ او د شپې وخت برابر شي او زمانه کې اعتدال راشي چې هغه سره به د خلکو په مزاج کې هم اعتدال راشي نو هغه وخت به خوبونه راشي لکه څنګه چې د سحر د وخت خوب رښتيا وي. همدغه شان د هغه معتدل زماني خوب به هم رښتيا وي. د دط حديث د عمومي الفاظو نه دا سې معلومېږي چې د مؤمن ټول خوبونه به رښتاى وي. د دې باره کې ابن سيرن ښه وضاحت فرمايلی دی چې رښتني خوب هغه دی چې د الله له اړخه وي. هر خوب رښتيا هم نه وي او دروغ جن هم نه وي. بيا هغې د خوبونو درې قسمه بيان کړل.

**قال**: دې کې د فاعل ضمير ابن سيرن اړخ ته ګرځي او (مرقات ۳۸۷/۸) **وكان يكره** کې ضمائر نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ګرځي.

**الغل**: غين باندې پيش او لام باندې شد دی. طوق غل ته وايي.

**القيد**: په زنځيرونو بند ته قيد وايي. (مرقات ۳۸۷/۸)

## دويرونكي او مهمل خوبونو د تعبير پوښتنه مه كوه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾وَعَن | جَابِر | قَالَ: | جَاءَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ته يو بانده چې راغلو او عرض يې وکړو | | | | | | | | |
| رَأَيْتُ | فِي الْمَنَامِ | كَأَنَّ | رَأْسِي | قُطِعَ | قَالَ: | فَضَحِكَ | النَّبِيُّ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې ما خوب ليدلی چې ګويا کې زما سر غوڅ کړی شوی دی. جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وخندل | | | | | | | | |

[1] رقم الحديث ۴۶۱۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۰۴/۱۲ رقم الحديث ۷۰۱۷ ومسلم في ۱۷۷۳/۴ رقم الحديث (۲۲۶۱/۴)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ: إِذَا | لَعِبَ | الشَّيْطَانُ | بِأَحَدِكُمْ | فِي | مَنَامِهِ |
| او ویې فرمایل چې تاسو کې د یو کس خوب د هغې سره شیطان تماشه وکړي نو هغه دې هغه خوب | | | | | |
| فَلَا يُحَدِّثْ بِهِ النَّاسَ. رَوَاهُ مُسلِم[1] | | | | | |
| د خلکو مخکې نه بیانوي. (مسلم) | | | | | |

**توضیح**: اذا العب: یعنې شیطان انسان ته وېرېدونکی خوب ښائې او د لوبو ټوقو او د خلکو لپاره تماشا جوړوي، نو ځکه نبي کریم ﷺ خپل امت ته دا تعلیم وکړو چې د شیطان داسې وېرېدونکي خوبونه اثر مه اخلئ او مه دې ته اهمیت ورکوئ. چې د دې تعبیر پسې ځای په ځای ګرځئ. دا م ٥مل خوب دی. د دې اظهار چاته مه کوئ.

## د خوب د تعبیر یوه ضابطه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿١٠﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: رَأَيْتُ ذَاتَ لَيْلَةٍ فِيمَا يَرَى النَّائِمُ | | | | | |
| او حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل ما د شپې هغه شیانو کې چې د خوب والا | | | | | |
| كَأَنَّا | فِي | دَارِ | عُقْبَةَ | بْنِ | رَافِعٍ |
| یې ویني (یعنې خوب کې مې) ولیدل ګویا کې زه او زما صحابه د عقبه ابن رافع کور کې ناست یو | | | | | |
| فَأُتِينَا | بِرُطَبٍ | مِنْ | رُطَبِ | ابْنِ | طَابٍ | فَأَوَّلْتُ |
| او ماته تازه کجوري راوړلی شوي چې رطب ابن طاب ورته وایي، نو د دې خوب دا تعبیر وکړو چې | | | | | |
| أَنَّ الرِّفْعَةَ لَنَا فِي الدُّنْيَا وَالْعَاقِبَةَ فِي الْآخِرَةِ وَأَنَّ دِينَنَا قَدْ طَابَ. رَوَاهُ مُسلِم[2] | | | | | |
| زمونږ لپاره دنیا رفعت او سربلندی ده. او آخرت کې نیک انجام یعنې ښه جزا د انعام ده او زمونږ دین ښه دی. | | | | | |

**توضیح**: ان الرفعة لنا: د دې حدیث نه د خوب د تعبیر یو اصل او ظابطه معلومېږي. ابتدائي بحث کې د تعبیر په درې اصولو کې یو اصول دا ؤو چې کله د عربي لغت په بنیاد تعبیر راویستلی کېږي. زیربحث حدیث کې نبي کریم ﷺ د درې نومونو د لغت نه تعبیر راویستلی دی. د عقبه د لفظ نه نبي کریم ﷺ عاقبت او د آخري انجام د خیر تعبیر راویستلو او د رافع د لفظ نه نبي کریم ﷺ د دنیا او آخرت اوچتوالي تعبیر راویستلو او د طاب د لفظ نه نبي کریم ﷺ د دین اسلام د طیب او ښه کېدو تعبیر اخستی. (مرقات ۳۹۱/۸)

---

([1]) رقم الحدیث ۴۶۱۶ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۷۷۷/۴ رقم الحدیث (۱۶-۲۲۶۸) وابن ماجه في السنن ۱۲۸۷/۲ رقم الحدیث ۳۹۱۲

([2]) رقم الحدیث ۴۶۱۷ أخرجه مسلم في صحیحه ۱۷۷۹/۴ رقم الحدیث (۱۸-۲۲۷۰)

## د هجرت متعلق د نبي كريم ﷺ يو خوب

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ | أَبِي | مُوسَى | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو موسى اشعرى رضي الله عنه فرمايي چې هغه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبي عليه السلام وفرمايل د | | | | | | | | |
| "رَأَيْتُ | فِي | الْمَنَامِ | أَنِّي | أُهَاجِرُ | مِنْ | مَكَّةَ | إِلَى | أَرْضٍ بِهَا |
| هجرت نه مخكې ما يو ورځ په مدينه كې دا خوب وليدلو چې زه د مكې نه هجرت كوم او يو داسې ځاى ته روان | | | | | | | | |
| نَخْلٌ | فَذَهَبَ | وَهْلِي | إِلَى | أَنَّهَا | | | | |
| يم چې د كجورو بوټي په كې دي، نو د هغه خوب په تعبير كې زما دا خيال شو چې هغه ښار (چرته به چې زه | | | | | | | | |
| الْيَمَامَةُ | أَوْ | هَجَرُ | فَإِذَا | هِيَ | الْمَدِينَةُ | يَثْرِبُ | وَرَأَيْتُ | |
| هجرت كوم، يمامه به وي يا به هجر خو هغه مدينه شوه. چې پخواني نوم يې يثرب دى او ما په خپل هغه خوب | | | | | | | | |
| فِي | رُؤْيَايَ | هَذِهِ: | أَنِّي | هَزَزْتُ | سَيْفًا | | | |
| كې دا هم ليدلي ؤو چې ما خپله توره اخوځوله او هغه د پاس نه ماته شوه. د تورې د ماتېدلو تعبير د جنګ | | | | | | | | |
| فَانْقَطَعَ | صَدْرُهُ | فَإِذَا | هُوَ | مَا | أُصِيبَ | مِنَ | الْمُؤْمِنِينَ | يَوْمَ أُحُدٍ |
| أحد د پرېشانو او د مصيبتونو په صورت كې ظاهر شو چې مسلمانان ترېنه په تكليف كې شول. بيا ما په خوب | | | | | | | | |
| ثُمَّ | هَزَزْتُهُ | أُخْرَى | فعادَ | أحسنَ | مَا | كَانَ | | |
| كې توره په دويم ځل او خوځول نو نه هغه صرف صحيح شوه بلكې د مخكني نه هم بهتره شوه، نو د تورې | | | | | | | | |
| فَإِذَا | هُوَ | جَاءَ | اللهُ | بِهِ | مِنَ | الْفَتْحِ | | |
| د صحيح كېدلو تعبير (د جنګ أحد په موقع يا د فتح مكې يا د صلح حديبيه په وخت) كې د الله له | | | | | | | | |
| وَ اجْتِمَاعِ الْمُؤْمِنِينَ " (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] | | | | | | | | |
| اړخه راكړى شوي فتح او د مسلمانانو اجتماعيت په صورت كې ظاهره شوه. (بخارى و مسلم) | | | | | | | | |

**توضيح**: **يمامه**: اوله زمانه كې به يمامه ډېره شنه علاقه او د حجاز په ښارونو كې يو مركزي ښار ؤو. هجر هم ډېر زيات شين ؤو. او دواړو ښارونو كې د كجورو ډېر زيات باغونه ؤو. د نبي كريم ﷺ همغه اړخ ته لاړو چې كېدى شي خوب كې د همغه اړخ ته د هجرت اشاره كېږي. نن سبا يمامه د سعودي عرب پايه تخت د رياض سره نزدې يو وړوكى شان كلي پاتې شوى دى او د هجر هم دغه حالت دى.

---

[1] رقم الحديث ۴۶۱۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۲۷ رقم الحديث ۳۶۲۲ ومسلم في ۲/۱۷۷۹ رقم الحديث ۱۷۷۹/۴۰

**يثرب:** د مدينې منورې زوړ نوم يثرب ؤو. نبي كريم ﷺ هغه بدل كړو او مدينه نوم يې ورله كيښودلو. مدينه كې به ډېر زيات د كجورو باغونه ؤو، نو ځكه د دې نوم نخله هم دی. د مدينې منورې اسلامي نومونه سلو (۱۰۰) ته نژدې دي. ما به توضيحات ځلورم كتاب الحج ص ۴۱۰ كې ټول ذكر كړي دي. (مرقات۳۹۸/۸)

**ورئيت:** دا د يو بل خوب بيان دی چې د هجرت نه وروسته نبي كريم ﷺ ليدلی ؤو، لكه د نورو روايتونو نه معلومېږي او امكان لري چې د خوب دا برخه هم د هجرت نه مخكې ليدلی شوي وي چې كوم د دې حديث د ظاهر نه معلومېږي. اګر كه دا لرې ښكاري.

**هززته:** توره خوځولو ته وايي. د تورې ماتېدل ګوياكې د شكست اړخ ته اشاره وه او بيا جوړېدل د مسلمانانو دوباره راجمع كېدل او فتح حاصلولو اړخ ته اشاره وه. يا د تورې دوباره جوړېدل د نورو فتوحاتو مثلاً د مكې فتح، صلح حديبيه او د خيبر فتحې اړخ ته اشاره وه. (مرقات۳۹۲/۸)

## د نبي كريم ﷺ د يو بل خوب تعبير

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل (يو ورځ) زه اوده ؤم چې |
| بِخَزَائِنِ الْأَرْضِ فَوُضِعَ فِي كَفَّيَّ سِوَارَانِ مِنْ ذَهَبٍ |
| (خوب كې) د زمكې خزانې زما مخې ته راوړلې شوې. بيا زما په لاس د سروزرو دوه ټوټې كيښودلې شوې |
| فَكَبُرَا عَلَيَّ فَأُوحِيَ إِلَيَّ |
| چې په ما بوج شوې. د هغې نه وروسته په ما وحي راغله (يعني خوب كې د الهام په توګه زما په زړه كې الله دا خبره واچوله) |
| أَنِ انْفُخْهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَذَهَبَا فَأَوَّلْتُهُمَا الْكَذَّابَيْنِ |
| چې دې كړو ته پوكې وكړه، نو ما پوكې وركړو او هغه كړې والوتلې. ما د هغه دواړو كړو نه هغه دواړو |
| اللَّذَيْنِ أَنَا بَيْنَهُمَا |
| دروغو باره كې تعبير واخستلو (د استوګنې د علاقې په اعتبار سره) چې د هغې په مينځ كې زه يم. يعني يو خو |
| صَاحِبَ صَنْعَاءَ وَصَاحِبَ الْيَمَامَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِي رِوَايَةٍ: |
| د يمامې والا او بل د صنعاء والا، بخاري او د مسلم په يو بل روايت كې (چې ترمذي نقل كړی دی) داسې دي چې نبي عليه السلام |
| يُقَالُ لِأَحَدِهِمَا مُسَيْلِمَةُ صَاحِبُ الْيَمَامَةِ |
| د هغه دواړو دروغو وضاحت داسې وكړو چې) هغې كې خو يو ته مسليمه بن كذاب ويل كېږي چې د يمامه |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْعَنْسِيُّ | صَاحِبُ | صَنْعَاءَ | لَمْ | أَجِدْ | هٰذِهِ | الرِّوَايَةَ |
| او سيدونكى دى او بل اسود عنسى د چې د صنعاء او سيدونكى دى (ليكونكى د مشكوة شريف وايي چې) | | | | | | |
| فِي (الصَّحِيحَيْنِ) | وَذكرهَا | صَاحب | الْجَامِعِ | عَنِ | التِّرْمِذِيِّ [1] | |
| ما دا روايت په بخاري او مسلم کې نه دى موندلى او دا صاحب جامع الاصول د ترمذى نه نقل کړى دى. | | | | | | |

**توضيح**: سوارين: نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سرو زرو دوه کړي د خپل لاس په تلي کې وليدلي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوښې نه کړي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هغې ته د پوکې کولو حکم وکړى شو، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته پوکى وکړو چې هغه پرې هغه علاقو اړخ ته لاړې چرته چې دوه دروغ جن نبي يان ظاهرېدونکي ؤو. يو خو د صنعاء يمن كذاب اسود عنسى ؤو چې په اسلام يې لويې مصيبت اچولى ؤو خو د هغه د علاقې مسلمان لكه د غر پشان او درېدل او فيروز ديلمى هغه اوژلو. د هغې کېدى شي دوه ورځې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مړ شو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابؤ ته وويل "**فيروز فازفيروز**" چې فيروز كامياب شو ماته جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ وويل چې فيرو اسود عنسى اوژلو. دويم مسليمه كذاب يمامه کې اودرېدلو. حضرت ابو بكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غر پشان د هغې مقابلې ته وردې دلو. آخر دا چې د اسلام دروند لښکر د حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مشرئ کې په حديقة الموت کې دې خبيث باندې حمله وکړه او وحشى بن حرب او حضرت ابو دجانه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مشتركه كاروائي سره مسليمه كذاب جهنم ته داخل شو. (مرقات ۳۹۳،۳۹۴/۸)

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ | أُمِّ | الْعَلَاءِ | الْأَنْصَارِيَّةِ | قَالَتْ: | رَأَيْتُ | لِعُثْمَانَ | بْنِ مَظْعُونٍ | فِي النَّوْمِ |
| او حضرت ام العلاء انصاريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې ما خوب وليدلو چې عثمان ابن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره | | | | | | | | |
| عَيْنًا | تَجْرِي | فَقَصَصْتُهَا | عَلَى | رَسُولِ اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَ: |
| (داوبو) يوه چينه جاري ده. كله چې ما خوب نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بيان کړو نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل | | | | | | | | |
| ذٰلِكِ | عَمَلُهُ | يُجْرٰى | لَهُ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ [2] | | | |
| چې دا د هغې د عمل ثواب دى چې د هغې لپاره جاري کړى شوى دى. (روايت کړې دې بخارى) | | | | | | | | |

**توضيح**: عينا تجرى: د عين نه مراد سترګه نه بلکې د دې نه د اوبو چينه ده. حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شان والا صحابي دى او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعي ورور او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ محبوب ؤو. مدينه منوره کې دا اولنى كس دى چې په بقيع الغرقد کې خښ کړى شو. د

---

(1) رقم الحديث ۴۶۱۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۸۹/۸ رقم الحديث ۴۳۷۵ ومسلم في ۱۷۸۱/۴ رقم الحديث (۲۲-۲۲۷۴)

(2) رقم الحديث ۴۶۲۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۱۰/۱۲ رقم الحديث ۷۰۱۸.

جاري چینې نه د هغې د عمل مسلسل د جاري کېدو اړخ ته اشاره ده. دا چې صحابي مرابط ؤو او د مرابط عمل همیشه جاري وي نو ځکه د هغې عمل دا سې ښکاره شو. (مرقات ۸/۳۹۵)

## عالم برزخ ته د تللو متعلق یو خوب

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَن سُمرةَ بنِ جُندب قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سمره ابن جندب رَضِيَاللهُعَنهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ دا معمول ؤو چې کله به |
| إِذَا صَلَّى أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ |
| نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ (د سحر د) لمونځ نه فارغ شو نو خپل مخ مبارک به یې مونږ ته متوجې کړو |
| فَقَالَ: مَنْ رَأَى مِنْكُمُ اللَّيْلَةَ رُؤْيَا؟ قَالَ: |
| او پوښتنه به یې کوله چې نن شپه تاسو کې چا خوب لیدلی دی؟ حضرت سمره رَضِيَاللهُعَنهُ فرمايي چې |
| فَإِنْ رَأَى أَحَدٌ قَصَّهَا فَيَقُولُ: |
| که مونږ کې چا خوب لیدلی ؤو نو هغې به بیانولو او نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ به د هغې هغه تعبیر کولو کوم به چې ورته |
| مَا شَاءَ اللهُ فَسَأَلَنَا يَوْمًا فَقَالَ: |
| الله الهام کولو، نو (د خپل معمول مطابق) وی ورځ نبي عَلَيهِالسَّلَامُ مونږ نه همغه پوښتنه وکړه او وي وفرمايل چې |
| هَلْ رَأَى مِنْكُمْ أَحَدٌ رُؤْيَا؟ قُلْنَا: لَا قَالَ: " لَكِنِّي رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ |
| آیا تاسو کې چا خوب لیدلی دی؟ مونږ عرض وکړو چې نا. نبي کريم صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ وفرمايل خو ما نن شپه خوب لیدلی دی (او |
| رَجُلَيْنِ أَتَيَانِي فَأَخَذَا بِيَدَيَّ فَأَخْرَجَانِي إِلَى أَرْضٍ مُقَدَّسَةٍ |
| هغه دا چې دوه کسان ماله راغلل او زما لاسونه یې ونیولو سره زه د مقدسې ځمکې نه د شام اړخ ته بوتلم. |
| فَإِذَا رَجُلٌ جَالِسٌ وَرَجُلٌ قَائِمٌ بِيَدِهِ كَلُّوبٌ مِنْ حَدِيدٍ |
| پس یو ځای ته رسیدلو سره زه څه وینم چې یو کس ناستی دی او بل کس ولاړ دی په لاس کې د وسپنې تېره کړه نیولې ده |
| يُدْخِلُهُ فِي شِدْقِهِ فَيَشُقُّهُ حَتَّى يَبْلُغَ قَفَاهُ |
| او ولاړ کس هغه د تېره کړه د ناست کس په وخکې کې اچوي او هغه دا څېروي تردې چې د هغې د څټ پورې یې وڅېري. |
| ثُمَّ يَفْعَلُ بِشِدْقِهِ الْآخَرِ مِثْلَ ذَلِكَ وَيَلْتَئِمُ شِدْقُهُ هَذَا فَيَعُودُ |
| بیا هغه د بل وخکې سره دا سې کوي. (یعنې هغه هم څټ پورې وڅېري) چې کله هغه وخکې خپل اصلي حالت ته راشي |
| فَيَصْنَعُ مِثْلَهُ. قُلْتُ: |
| نو د اول پشان همغه عمل کوي. نبي عَلَيهِالسَّلَامُ دا فرمايي چې ما (دې لیدلو سره) د هغه دواړو کسانو نه وپوښتل (چې |

مَا هَذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ

زه يې ځان سره راوستلی ؤوم) چې دا څه کېږي؟ هغه دواړو وويل چې راځه راسره (يعني دا پوښتنه مه کوه چې څه کېږي

فَانْطَلَقْنَا حَتَّى أَتَيْنَا

بلکې مخکې راځه اوس لا ډېر عجائبات کتل دي. د دې تعبير به معلوم شي) نو مونږ مخکې لاړو تردې چې يو داسې ځای

عَلَى رَجُلٍ مُضْطَجِعٍ عَلَى قَفَاهُ

راغلو چې هلته يو سړی پر مخې پروت ؤو او يو سړی دير غټ کاڼی په لاس د هغه سر ته ولاړ ؤو چې لاس

وَرَجُلٌ قَائِمٌ عَلَى رَأْسِهِ بِفِهْرٍ أَوْ صَخْرَةٍ

لاس پرې د کېږي او هغې باندې يې د هغه پروت سړي سر چټولو. کله به چې هغه کاڼی (رابنکلو او) د هغې سر

يَشْدَخُ بِهَا رَأْسَهُ فَإِذَا ضَرَبَهُ تَدَهْدَهَ الْحَجَرُ

به يې پرې ؤوهلو نو کاڼي به (سر چټ کړو او) راتمبيدلو سره به لرې لاړو (هغه به بيا د وهلو لپاره) هغه کاڼی

فَانْطَلَقَ إِلَيْهِ لِيَأْخُذَهُ فَلَا يَرْجِعُ إِلَى هَذَا حَتَّى يَلْتَئِمَ رَأْسُهُ

را اوچتولو لپاره لاړو نو چې بېرته به راغلو نو د هغې رارسيدلو سره به د هغه سړي سر بېرته صحيح شو او بيا

وَعَادَ رَأْسُهُ كَمَا كَانَ فَعَادَ إِلَيْهِ فَضَرَبَهُ

به يې په هغه کاڼي ؤوهلو او دغه شان دا سلسله روانه وه (چې د هغې سر به صحيح کېدلو) او هغې به پرې ووهلو.

فَقُلْتُ: مَا هَذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتَّى

ما (دې ليدلو سره) وپوښتل چې دا څه کېږي؟ هغې دواړو جواب راکړو چې راځه راځه نو مونږ مخکې لاړو تردې

أَتَيْنَا إِلَى ثَقْبٍ مِثْلِ التَّنُّورِ أَعْلَاهُ ضَيِّقٌ وَأَسْفَلُهُ

چې يو داسې کندې ته ورسيدلو چې د تنور پشان وه چې د پاسنۍ برخه يې تنګه وه او لاندېنۍ برخه يې فراخه وه

وَاسِعٌ تَتَوَقَّدُ تَحْتَهُ نَارٌ فَإِذَا ارْتَفَعَتْ

او د هغې دننه اور لمبې وهلې. کله به چې اور د پاس اړخ لمبه شو نو څه خلک په کې دننه ؤو (د لمبو سره به) پاس

ارْتَفَعُوا حَتَّى كَادَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا وَإِذَا خَمَدَتْ رَجَعُوا فِيهَا

راغلل تردې چې د کندې نه به راوتلو ته نژدې شول او کله به چې د اور لمبه کمه شوه نو هغوی به بيا دننه شول

وَفِيهَا رِجَالٌ وَنِسَاءٌ عُرَاةٌ فَقُلْتُ:

(ما وليدل چې) دې اور کې ډېر نارينه ؤو او ډېرې ښځې وې او ټول برېنډ ؤو. ما (دې ليدلو سره) پوښتنه وکړه چې

مَا هَذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتَّى أَتَيْنَا عَلَى نَهَرٍ
دا څه کېږي؟ نو هغې دواړو ووېل چې راځه راځه نو مونږ مخکې لاړو تردې چې یو داسې نهر ته ورسیدلو چې (د

مِنْ دَمٍ فِيهِ رَجُلٌ قَائِمٌ عَلَى وَسْطِ النَّهَرِ وَعَلَى شَطِّ النَّهَرِ رَجُلٌ
اوبو په ځای په کې) د وینو نه ډک شوی ؤو. د نهر په مینځ کې یو سړی ولاړ ؤو او بل سړی د هغې غاړې ته ولاړ

بَيْنَ يَدَيْهِ حِجَارَةٌ فَأَقْبَلَ الرَّجُلُ الَّذِي فِي النَّهَرِ
ؤو چې مخې ته یې کانړي اینښودلی شوي ؤو. کله چې هغه سړي چې د نهر په مینځ کې ؤو مخکې (غاړې ته) راغلو او

فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ رَمَى الرَّجُلُ بِحَجَرٍ فِي فِيهِ
غوښتل یې چې بهر راشي نو هغه سړي چې په غاړه ؤو د هغې خله په کانړي ویشتله چې هغه پرې خپل ځای ته

فَرَدَّهُ حَيْثُ كَانَ فَجَعَلَ كُلَّمَا جَاءَ لِيَخْرُجَ
بېرته لاړو او بیا دا سلسله همدغه شان جاري وه چې د نهر دننه نه به چې سړي د بهر راتلو! راده کوله نو د

رَمَى فِي فِيهِ بِحَجَرٍ فَيَرْجِعُ كَمَا كَانَ
غاړې والا سړي به هغه په خله ویشتلو او هغه به یې خپل ځای ته بېرته ورسولو (ما دې لیدلو سره) پوښتنه وکړه

فَقُلْتُ مَا هَذَا؟ قَالَا: انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا حَتَّى انْتَهَيْنَا إِلَى رَوْضَةٍ خَضْرَاءَ
چې دا څه کېږي؟ نو هغې دواړو ووېل چې رازه رازه، نو مونږ مخکې لاړو تردې چې یو شین باغ ته ورسیدلو. هغه

فِيهَا شَجَرَةٌ عَظِيمَةٌ وَفِي أَصْلِهَا شَيْخٌ وَصِبْيَانٌ
باغ کې یو غټ بوټی ؤو او د هغې په جړله یو بوډه او څه هلکان (ناستي) ؤو. بیا څه وینم چې هغه بوټي سره یو

وَإِذَا رَجُلٌ قَرِيبٌ مِنَ الشجرةِ بَيْنَ يَدَيْهِ نَارٌ يُوقِدُهَا
بل سړی هم دی. چې مخې ته یې اور بلېږي. او هغه (سړی) دا اور لمبه کوي. بیا هغه دواړو زه د ځان سره هغه

فَصَعِدَا بِي الشَّجَرَةَ فَأَدخلاني دَار أَوسط الشَّجَرَةِ
بوټي ته وخیژولم او زه یې یو داسې کور ته داخل کړم چې بالکل د بوټو به مینځ کې ؤو. (او دا کور دومره ښایسته

لَمْ أَرَ قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهَا ، فِيهَا رِجَالٌ شُيُوخٌ وَشَبَابٌ
ؤو چې) ما کله هم داسې ښایسته کور نه ؤو لیدلی. په دې کور کې څو مره ښایسته ځوانان او بوډاګان ؤو، څو مره

وَنِسَاءٌ وَصِبْيَانٌ ثُمَّ أَخْرَجَانِي مِنْهَا فصعدا
په دې کې ښځې او ماشومان ؤو. د هغې نه وروسته هغه دواړو زه د هغه کور نه ویستلم او د بوټو نه پاس یې

بِي الشَّجَرَةَ فَأَدخلاني دَار هِيَ أَحْسَنُ وَأَفْضَلُ مِنْهَا

بوتلم او زه یې یو داسې کور ته داخل کړم چې د هغه مخکښې کور نه ډېر ښایسته او افضل ؤو. هغې کې بوډاګان

فِيهَا شُيُوخٌ وَشَبَابٌ فَقُلْتُ لَهُمَا: إِنَّكُمَا قَدْ طَوَّفْتُمَانِي اللَّيْلَةَ

او ځوانان موجود ؤو. او س ما هغه دواړو کسانو ته وویل چې نن شپه زه تاسو ښه وګرځولم، خو ما چې څه ولیدل

فَأَخْبِرَانِي عَمَّا رَأَيْتُ قَالَا: نَعَمْ

د دې د حقیقت نه ما خبر کړئ؟ هغې دواړو وویل چې ښه! مونږه یې تا ته وایو. (بیا هغوی بیانول شروع کړل چې)

أَمَّا الرَّجُلُ الَّذِي رَأَيْتَهُ يُشَقُّ شِدْقُهُ فَكَذَّابٌ

کوم سړی چې تاسو ولیدلو چې د هغې وخکی څېرول کېدلې، هغه داسې سړی ؤو چې دروغجن ؤو، دروغ به یې ویل او

يُحَدِّثُ بِالْكَذْبَةِ فَتُحْمَلُ عَنْهُ حَتَّى تَبْلُغَ الْآفَاقَ

د هغې دروغ خبرې به نقل کېدلې او بیانېدلې به چې دنیا کې به څلورو واړو اړخونو ته خپرې شوې، نو د هغې

فَيُصْنَعُ بِهِ مَا تَرَى إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَالَّذِي

سره دا سلوک کېږي. کوم سړی چې تاسو ولیدلو او د هغې سلسله به تر قیامته پورې روانه وي او هغه سړی چې

رَأَيْتَهُ يُشْدَخُ رَأْسُهُ فَرَجُلٌ عَلَّمَهُ اللهُ الْقُرْآنَ

تا ولیدلو چې د هغې سر چتول کېدو، هغه داسې سړی دی چې د الله تعالی قرآن کې یاد کړی ؤو (یعني هغې ته

فَنَامَ عَنْهُ بِاللَّيْلِ

د قرآني علومو د زده کولو توفیق ورکړی شوی ؤو) خو هغه سړی د دې (قرآن نه) بې پروا شو او شپه ئې اوده شو

وَلَمْ يَعْمَلْ بِمَا فِيهِ بِالنَّهَارِ يُفْعَلُ بِهِ مَا رَأَيْتَ

او د ورځې به یې د قرآن مطابق عمل نه کولو نو د هغې سره دا سلوک کېږي. کوم چې تاسو ولیدلو او د هغې

إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَالَّذِي رَأَيْتَهُ فِي الثَّقْبِ فَهُمُ الزُّنَاةُ وَالَّذِي

سلسله به د قیامت پورې روانه وي او کوم خلک چې تا په تنور کې ولیدل، هغه زناکار دي او هغه سړی چې

رَأَيْتَهُ فِي النَّهَرِ آكِلُ الرِّبَا

تاسو په نهر کې ولیدلو هغه سود خور دی (هغه تهولو ته هم د خپلو خپلو کړو سزه ملاوېږي او تر قیامت پورې

وَالشَّيْخُ الَّذِي رَأَيْتَهُ فِي أَصْلِ الشَّجَرَةِ إِبْرَاهِيمُ

به ورته ملاوېږي) او کوم بوډه کس چې تاسو د بوټې جرلې سره ناست ولیدلو، هغه حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالصِّبْيَانُ | حَوْلَهُ | فَأَوْلَادُ | النَّاسِ | وَالَّذِي | يُوقِدُ | النَّارَ |

او د هغې سره چې کوم ماشومانۇو هغه د سړو اولاد دی او هغه سړی چې د بوټي نه څه فاصله کې اور لګوي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَالِكٌ | خَازِنُ | النَّارِ | وَالدَّارُ | الْأُولَى | الَّتِي دَخَلْتَ |

هغه د دوزخ داروغه ده او د بوټي د پاسه اولنی کور چې تاسو په کې داخل شوی وي، هغه (جنت کې د عام)

دَارُ عَامَّةِ الْمُؤْمِنِينَ وَأَمَّا هَذِهِ الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَاءِ وَأَنَا جِبْرِيلُ وَهَذَا

مؤمنانو کور دی او دا کور (چې د اولني کور نه د پاسه واقع دی) د شهیدانو کور دی. زه جبرائیل یم او دا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِيكَائِيلُ | فَارْفَعْ | رَأْسَكَ | فَرَفَعْتُ | رَأْسِي | فَإِذَا فَوْقِي |

(چې ما سره دی) میکائیل دی. او لړ اوس تاسو سر او چت کړه (نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې) ما خپل سر او چت

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِثْلُ | السَّحَابِ | وَفِي | رِوَايَةٍ |

کړو نو څه وینم چې زما د پاسه (ډېر او چتوالي کې) د اوريځې پشان يو څيز دی او يو روايت کې دا الفاظ دي چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِثْلُ | الرَّبَابَةِ | الْبَيْضَاءِ | قَالَا: |

لاندې باندې د اوريځې پشان يو څيز دی. هغه دواړو وويل چې زه به خپل کور ته الړ شم او هغه دواړو وويل چې

ذَلِكَ مَنْزِلُكَ قُلْتُ: دَعَانِي أَدْخُلُ مَنْزِلِي قَالَا: إِنَّهُ بَقِيَ لَكَ عُمُرٌ لَمْ تَسْتَكْمِلْهُ فَلَوِ اسْتَكْمَلْتَهُ أَتَيْتَ

اوس لا ستاسو عمر پاتې دی چې تاسو به يې پوره کوي. چې کله تاسو خپل عمر پوره کړي نو خپل کور ته

مَنْزِلَكَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَذَكَرَ حَدِيثَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ فِي رُؤْيَا النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

به لاړ شي (بخاری) او د حضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه روايت چې د مدينه کې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خوب

فِي الْمَدِينَةِ فِي بَابِ حرم الْمَدِينَةِ "[1]

متعلق دی، هغه د حرم مدينه په باب کې نقل کړی شوی دی.

**توضیح**: **فاخرجاني**: نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خوب ډېر معراجونه شوي دي. دا معراج د همغه معراجونو نه يو دی، خو د ليلة الاسرى والاد معراج واقعه نه ده بلکې هغه د جسد عنصری سره د بيداري به حالت کې شوی دی. (مرقات ۸/۳۹۶)

**کلوب**: د وسپنې قينچي ته وايي. چې اردو کې ورته "آنکڑا" وايي. (مرقات ۸/۳۹۶)

**شدقة**: وخکي ته شدق وايي. چې باچه هم ورته وايي. (مرقات ۸/۳۹۶)

---

([1]) رقم الحديث ۴۶۲۱ اخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۱/۳ رقم الحديث ۱۳۸۶ واحمد في المسند ۱۴/۵.

**يلتئم**: اتئام يو ځاې كيدلو په معنى دى. (مرقات۸/۳۹۶)

**بفهر**: غټ كاڼې ته وايي. چې د وسپنې پشان مضبوط وي چې نورو الفاظ كې ورته سخت كاڼى وايي. **شيدخ**: د سر ځتولو لپاره د **شدخ** لفظ استعمالېږي. (مرقات۸/۳۹۷)

**تدهر**: د كاڼي راتمبېدلو لپاره دا لفظ ويل كېږي. (مرقات۸/۳۹۷)

**خمدت**: اور مړ كولو او د هغېد لمبو لاندې تللو لپاره دا لفظ ويل كېږي. (مرقات۸/۳۹۸)

# الفصل الثاني

## د تعبير لپاره خوب د دوست يا عقل مند مخې ته كيږده

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ عَن أَبِي رزين العقيلِيّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ |
| حضرت ابو رزين عقلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د مومن خوب د نبوت د |
| مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ وَهِيَ عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ |
| څلويښتو برخو نه يوه برخه ده او خوب چې ترڅو پورې بيان نه كړى شي نو هغه د مرغۍ په پښو كې وي |
| مَا لَمْ يُحَدِّثْ بِهَا فَإِذَا حَدَّثَ بِهَا وَقَعَتْ. وَأَحْسِبُهُ |
| او دا چې كله د چا مخې ته بيان كړى شي نو هغه واقع شي (رواي وايي چې زما خيال دى چې |
| قَالَ: لَا تُحَدِّثْ إِلَّا حَبِيبًا أَوْ لَبِيبًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (دا هم وفرمايل) هوښيار او د ملګري نه بغير د بل چا مخكې خوب مه بيانوئ (ترمذى) |
| وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ قَالَ: الرُّؤْيَا |
| او د ابوداؤد په روايت كې دا دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د ترڅو پورې د خوب تعبير بيان نه كړى شي |
| عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ مَا لَمْ تُعْبَرْ فَإِذَا عُبِرَتْ وَقَعَتْ. وَأَحْسِبُهُ |
| نو هغه د مرغۍ په پښو باندې وي او كله چې د دې تعبير بيان كړى شي نو هغه واقع شي او زما خيال دى |
| قَالَ: وَلَا تَقُصَّهَا إِلَّا عَلَى وَادٍّ أَوْ ذِي رَأْيٍ[1] |
| چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا (هم) وفرمايل چې او ملګري او د عقلمند نه بغير د بل چا مخكې خوب مه بيانوئ. |

**توضيح**: **على رجل طائر**: بې ثباتى او بې قرارى او جلد ختمولو لپاره د عربو په نزد به دا محاوره استعمالېږي

[1] رقم الحديث ۴۶۲۲ أخرجه ابوداود في السنن ۲۸۳/۵ رقم الحديث ۵۰۲۰ والترمذي في ۴۱۴/۴ رقم الحديث ۲۲۷۸.

چې دا ځیزونه خو د مرغۍ د پښو او پنجې د لاندې رازوړند وي. د مرغۍ پښو لره قرار وي. څنګه چې هغه حرکت وکړي نو هغه ځیز وغورځیږي. همدغه شان د خوب معامله ده چې تر کومې پورې چاته ظاهر نه کړی شي نو قائم وي خو فایده یې ظاهره نه وي او کله چې چاته بیان شي نو زر ضایع شي او د خپل تعبیر اړخ ته لاړ شي. ګویا کې خوب د تعبیر راویستلو په انتظار کې وي. څنګه چې تعبیر راویستلی شي نو خوب ختم شي، نو ځکه د حبیب یعنې د خیرخواه مخې ته یې بیانوي. هغه به د ښه تعبیر خیال کوي. یا لبیب یعنې عاقل او ماهر ته خوب بیانوئ، هغه به ښه تعبیر وکړي. (مرقات۸/۴۰۳)

## ورقه بن نوفل په کامیابۍ سره مړ شوی دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَن وَرَقَةَ. |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې (یو ځل) د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه ورقه بن نوفل باره کې وپوښتلی شو |
| فَقَالَتْ لَهُ خَدِيجَةُ: إِنَّهُ كَانَ قَدْ صَدَّقَكَ |
| (چې هغه مومن ؤ و یا نا؟) او حضرت خدیجه رضي الله عنها د هغې مخې ته بیان وکړو چې هغه د |
| وَلَكِنْ مَاتَ قَبْلَ أَنْ تَظْهَرَ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| نبي کریم صلی الله علیه وسلم تصدیق کولو خو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د تصدیق نه مخکې مړ شو، نو |
| أُرِيتُهُ فِي الْمَنَامِ وَعَلَيْهِ |
| نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ماته په خوب کې ورقه بن نوفل په داسې حالت کې وښودلی شو |
| ثِيَابٌ بِيضٌ وَلَوْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَكَانَ عَلَيْهِ لِبَاسٌ غَيْرُ ذَلِكَ . رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ[1] |
| چې هغې باندې سپینې جامې وې او که هغه دوزخي وی نو د هغې په بدن به بل قسمه جامې وی. (احمد، ترمذی) |

## که امکان لري نو خوب باندې په ویښه عمل وکړئ

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ عَمِّهِ أَبِي خُزَيْمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ |
| او حضرت خزیمه ابن ثابت د خپل تره (حضرت ابو خزیمه رضي الله عنه) نه نقل کوي چې هغې په هغه |
| أَنَّهُ رَأَى فِيمَا يَرَى النَّائِمُ أَنَّهُ سَجَدَ |
| حالت کې چې په کوم حالت کې اوده کېدونکی وي یعنې په خوب کې ولیدل چې هغې د |
| عَلَى جَبْهَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ |
| نبي کریم صلی الله علیه وسلم په تندي باندې سجده وکړه. بیا هغې دا خوب نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته بیان کړو، |

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۲۳ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۶۸ رقم الحديث ۲۲۸۸ واحمد في المسند ۶/۶۵.

فَاضْطَجَعَ لَهُ وَقَالَ: صَدِّقْ
نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (هغه خوب اوريدلو سره) د ابو خزيمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رخ ته پرېوتلو (چې هغه په تندي مبارك باندې
رُؤْيَاكَ فَسَجَدَ عَلَى
سجده وكړي) او وې وفرمايل چې خپل خوب رښتيا كړه يعني د خپل خوب مطابق عمل وكړه، نو
جَبْهَتِهِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي بَكْرَةَ:
هغې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تندي باندې سجده وكړه (شرح السنة) او ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا روايت
كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ فِي بَابِ مَنَاقِبِ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا[1]
"كأن ميزانا نزل من السمآء" به د مناقت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باب كې نقل كېږي.

**توضيح: على جبهته:** يعنې ابو خزيمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوب وليدلو چې هغه خوب كې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تندې باندې سجده كوي. سحر هغې دا خوب نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بيان كړو، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرېوتلو او ويې فرمايل چې خپل خوب رښتيا كړه او زما په تندې باندې سجده وكړه. د دې حديث نه معلومه شوه چې تر څو پورې په كوم باندې په بيدارئ كې عمل كول ممكن وي نو خوب لېدونكې له هغې باندې عمل كوى پكار دى. او په توګه چې د عباداتو معامله وي. چې خوب كې يو خاص جومات كې لمونځ وكړو يا په خاص ورځ كې روژه ونيوله يا يې د خاص بزرګ زيات وكړو، نو بيدارئ كې په دغه افعالو باندې عمل كول پكار دى. (مرقات۸/۴۰۶،۴۰۵)

## الفصل الثالث

﴿۱۸﴾ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ
حضرت سمره بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اكثر پوښتنه كوله د خپلو
لِأَصْحَابِهِ: هَلْ رَأَى أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنْ رُؤْيَا؟
صحابه كرامو نه چې آيا تاسو كې چا خوب ليدلى دى؟ نو الله به چې چاته (خوب ورخودلى او خوب به يې ليدلى ؤو
فَيَقُصُّ عَلَيْهِ مَنْ شَاءَ اللهُ أَنْ يَقُصَّ وَإِنَّهُ قَالَ لَنَا
نو هغې به خپل خوب نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بيان كړو. يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته بيان كړو

---

[1] رقم الحديث ۴۶۲۴ أخرجه احمد في المسند۵/۲۱۵

ذَاتَ غَدَاةٍ: " إِنَّهُ أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتِيَانِ وَإِنَّهُمَا ابْتَعَثَانِي وَإِنَّهُمَا قَالَا لِي: انْطَلِقْ وَإِنِّي

چې نن شپه (ما خوب وليدلو چې) دو كسان ماله راغلل او زه يې راپاڅولم چې مونږ سره راشه نو زه

انْطَلَقْتُ مَعَهُمَا ". وَذَكَرَ مِثْلَ الْحَدِيثِ الْمَذْكُورِ

د هغوى سره لاړم. د هغې نه وروسته د حديث راوي سمره رضي الله عنه همغه اوږد حديث بيان كړو چې (د

فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ بِطُولِهِ وَفِيهِ زِيَادَةٌ لَيْسَتْ فِي الْحَدِيثِ الْمَذْكُورِ وَهِيَ قَوْلُهُ: "

دې خوب متعلق ؤو) اول فصل كې تير شوى دى، خو دې حديث كې د اول حديث نه دوه خبرې زياتې دي

فَأَتَيْنَا عَلَى رَوْضَةٍ مُعْتِمَةٍ فِيهَا مِنْ كُلِّ

او هغه دا دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل پس مونږ يو داسې باغ ته ورسيدلو (چې هلته د زيات بوټي

نَوْرِ الرَّبِيعِ وَإِذَا بَيْنَ

او هغې كې د شينوالي ډېروالي ؤو) تورتم خورؤو. باغ كې هر اړخ ته پسرلى پسرلى ؤو او هر قسمه غوټۍ كولاوې وې.

ظَهْرَيِ الرَّوْضَةِ رَجُلٌ طَوِيلٌ لَا أَكَادُ أَرَى رَأْسَهُ

بيا ناڅاپه څه وينم چې د باغ په ښخې مينځ كې يو سړى ولاړ دى. هغه ډېر اوږد ؤو. چې سر سړې هم ماته نه ښكار كېدلو،

طُولًا فِي السَّمَاءِ وَإِذَا حَوْلَ الرَّجُلِ مِنْ أَكْثَرِ وِلْدَانٍ

ځكه لوړ والي يې د اسمان سره خبرې كولې. بيا ماته دا ښكاره شو چې د هغې نه ګير چاپيره هلكان ؤو

رَأَيْتُهُمْ قَطُّ قُلْتُ لَهُمَا: مَا هَذَا مَا هَؤُلَاءِ؟

چې ما كله هم نه ؤو ليدلي. ما د هغه دواړو نه وپوښتل چې دا اوږد سړى څوك دى او دا هلكان څوك دي؟

"قَالَ: قَالَا لِيَ: انْطَلِقْ فَانْطَلَقْنَا

نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې هغه دواړو (زما د خبرې جواب راكولو په ځاي) ماته وويل چې رازه رازه.

فَانْتَهَيْنَا إِلَى رَوْضَةٍ عَظِيمَةٍ لَمْ أَرَ رَوْضَةً قَطُّ أَعْظَمَ مِنْهَا وَلَا أَحْسَنَ".

نو مونږ مخكې لاړو او يو لويې باغ ته ورسيدلو چې د هغې نه لويې او د هغې نه بل هيڅ ښه باغ ما كله هم نه ؤو ليدلى.

قَالَ:" قَالَا لِيَ: ارْقَ فِيهَا ".قَالَ:

نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمال چې (هلته رسيدلو سره) هغه دواړو ماته وويل چې د دننه لاړ شه يا د دې

فَارْتَقَيْنَا فِيهَا فَانْتَهَيْنَا إِلَى مَدِينَةٍ مَبْنِيَّةٍ بِلَبِنِ ذَهَبٍ وَلَبِنِ فِضَّةٍ

په بوټو وخيژه نو مونږ وختلو او د يو يو ښار ته نزدې لاړو چې د سرو او د سپينو زرو د خښتو نه جوړ شوي ؤو.

فَأَتَيْنَا بَابَ الْمَدِينَةِ فَاسْتَفْتَحْنَا فَفُتِحَ لَنَا

بیا مونږ د هغه ښار په دروازه راغلو او هغه مو کولاوه کړه او کله چې هغه دروازه زمونږ لپاره کولاوه کړې شوه

فَدَخَلْنَاهَا فَتَلَقَّانَا فِيهَا رِجَالٌ شَطْرٌ مِنْ خَلْقِهِمْ

نو دننه دخل شو او هغه ښار کې مونږ د داسې څو مره خلکو سره ملاو شو هغې کې د هريو په بدن باندې

كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ وَشَطْرٌ مِنْهُمْ

نيمه برخه د هغې نه هم ښايسته وه چې کومه به تا ليدله او نيمه به د هغې نه هم بدتره وه او نيمه ډېره زياته ښايسته او تندرسته وه.

كَأَقْبَحِ مَا أَنْتَ رَاءٍ. قَالَ:" قَالَا لَهُمْ:

او نيمه برخه ډېره بد رنګه و خرابه وه. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دې دواړو هغې ټولو ته وويل چې

اذْهَبُوا فَقَعُوا فِي ذَلِكَ النَّهَرِ " قَالَ: وَإِذَا

لاړ شئ او دې نهر کې غوپه او هئ. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې کله دې دواړو دا خبره وکړه نو) زه څه وينم

نَهَرٌ مُعْتَرِضٌ يَجْرِي كَأَنَّ مَاءَهُ الْمَحْضُ فِي الْبَيَاضِ فَذَهَبُوا

چې هلته عرضا يو نهر بهېږي چې او به د خالص شودو پشان سپيني دي، نو هغه خلک د نهر خوا له لاړل

فَوَقَعُوا فِيهِ ثُمَّ رَجَعُوا إِلَيْنَا قَدْ ذَهَبَ ذَلِكَ السُّوءُ عَنْهُمْ

او هغې کې غپا شول. بيا چې کله هغوی (غپا اوله) مونږ له راغلل نو د هغوی د بدن نه هغه خرابوالی او بدوالی لرې شوی ؤو.

فَصَارُوا فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ وَذَكَرَ

او د هغوی شکل په بهترين شکل او صورت کې بدل شوی ؤو. د هغې نه وروسته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د

فِي تَفْسِيرِ هَذِهِ الزِّيَادَةِ: وَأَمَّا الرجلُ الطويلُ الَّذِي فِي الرَّوْضَةِ فَإِنَّهُ إِبْرَاهِيمُ

دې حديث په زيات وضاحت کې وفرمايل چې هغه اوږد کس چې په باغ کې ؤو. حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ؤو،

وَ أَمَّا الْوِلْدَانُ الَّذِينَ حَوْلَهُ فَكُلُّ مَوْلُودٍ مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ

او د نه ګير چاپيره چې کوم هلکان ؤو هغه داسې ماشومان ؤو چې فطرت باندې مړه شوي دي (يعنې کوم ماشومان

قَالَ: فَقَالَ بَعْضُ الْمُسْلِمِينَ:

چې نابالغه عمر کې مړه شي هغه د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ سره وي) روای دا وايي چې ځينې صحابه کرامو وفرمايل چې

يَا رَسُولَ اللهِ وَأَوْلَادُ الْمُشْرِكِينَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَأَوْلَادُ الْمُشْرِكِينَ

يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د مشرکانو ماشومان؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د مشرکانو نابالغه هلکان هم

وَأَمَّا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَانُوا شطرٌ مِنْهُم حسن وَشطر مِنْهُمْ حَسَنٌ وَشَطْرٌ مِنْهُمْ قَبِيحٌ
د حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ سره وي او هغه خلک چې نیم بدن یې ښه او نیم بد ؤو. هغه داسې خلک ؤو چې عملونه یې
فَإِنَّهُمْ قَوْمٌ قَدْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا تَجَاوَزَ اللهُ عَنْهُم. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]
یو شان ؤو. دا چې هغوی څه عملونه کړي ؤو او څه یې بد کړي ؤو. بیا الله هغوی معاف کړل.

## دروغ جن خوب بیانول غټ دروغ دي

﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مِنْ أَفْرَى الْفِرَى
او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ربهتانونو کې یو لویې بهتان
أَنْ يُرِيَ الرَّجُلُ عَيْنَيْهِ مَا لم تريا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2]
دا دی چې یو په خپلو سترګو هغه څیز وښایې چې حقیقت کې سترګو نه دی لیدلی. (بخاری)

**توضیح**: افری الفری: یعنې د ټولو نه غټ دروغ دا دي چې سړی په سترګو باندې هغه څیز او ښاې چې سترګو نه وي لیدلی یعنې د درغو خوب بیانول په لویې بهتانونو کې یو بهتان دی. د دې وجه دا ده چې د خوب تعلق د وحې سره دی او د نظام وحې د نظام غیب باندې بهتان او دروغ تړل د عامو دروغو پشان نه بلکې ډېر سخت دي. (مرقات۸/۴۱۱)

## د سحر خوب ریښتني وي

﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:
او حضرت ابو سعید خدی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل
أَصْدَقُ الرُّؤْيَا بِالْأَسْحَارِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ والدارمي[3]
د شپې د وروستی برخې خوب ډېر ریښتیا وي. (ترمذی، دارمی)

**توضیح**: الاسحار: دا چې د شپې آخري برخه کې خیټه خالې شي او د هغې ګډوډ بخارت ختم شي او سړی د بشري ښایستونو نه لرې کېدلو سره په ملکوتي صفاتو کې راشي، نو ځکه هغه وخت خوب د ټولو نه زات ریښتیا او پاخه وي. (مرقات۸/۴۱۱)

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۲۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۴۳۸ رقم الحديث ۷۰۴۷ وأحمد في المسند۵/۹
(۲) رقم الحديث ۴۶۲۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۲/۴۲۷ رقم الحديث ۷۰۴۳ واحمد في المسند۲/۶
(۳) رقم الحديث ۴۶۲۷ أخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۶۳ رقم الحديث ۲۲۷۴ والدارمي في ۲/۱۶۹ رقم الحديث ۲۱۰۰.

# كتاب الآداب

## د آدابو بيان

آداب جمع ده. د دې مفرد ادب دی. ادب د هر هغه قول او فعل نوم دی. چې ښه او د ستايلو قابل وګڼلی شي. ځينو د ادب تعريف داسې کړی دی. "**الادب هواعطاء كل شئ حقه ؤوضع كل شئ موضعه**" يعنې د موقي او ځای له نظره هر شي ته د هغې جائز مقام ورکولو ته ادب وايي. ځينو ويلي دي چې د غټو احترام کول او په وړو باندې د شفقت کولو نوم ادب دی. د ادب مفهوم دا چې ډير وسيع دی ځکه دا انساني ژوند او د انساني تهذيب په اړخ کې شامل دی. همدغه وجه ده چې د ادب په ضمن کې د ژوند سره تعلق لرونکی مختلف حديثونه به راځي.

د ادب په ضمن کې د سلام باب هم دی. د دېنه وروسته د استيذان باب هم دی. بيا د مصافحي او د معانقې باب دی. بيا د القيام دی. د دې نه وروسته د عطاس او د تناؤب باب دی. د دې نه وروسته باب الضحک دی. بيا باب الاسامي او د هغې نه وروسته باب البيان دی والشعر دی. غرض دا چې د کتاب الرقاق پورې ټول بابونه د کتاب الآداب د لاندې دي. د ټولو نه چې اول کوم باب راځي هغه باب السلام دی.

## باب السلام

## د سلام بيان

سلام د الله تعالی په نومونو کې يو نوم دی. چې ترجمه يې داسې ده. يعنې هغه الله چې د هر عيب او د هر نقص او کمزورئ نه پاک او محفوظ دی. (مرقات۸/۴۱۲)

په ابتداء د اسلام کې د سلام ابتدء وشوه. هغه وخت دا چې په مسلمان او غير مسلمان کې د پيژندې ضرورت ؤو، نو يو مسلمان به بل مسلمان ته ويل السلام عليکم يعنې زماله اړخه به تا ته هيڅ تکليف نه رسېږي. هغې به په جواب کې ويل وعليکم السلام يعنې زماله اړخه به هم تا ته هيڅ تکليف نه در رسېږي. ګويا کې په ابتداء د اسلام کې به سلام د شفر په توګه استعمال شو. شريعت د د سلام کولو لپاره مشروع کړو. اوس د اسلام پوره مفهو داسې دی چې السلام عليکم ويلو والا بله ته وايي چې الله دې تا په دنيا او آخرت کې د هر قسم ظاهري او باطنی مصيبتونو نه محفوظ وساتي. جواب ورکونکې هم په وعليکم السلام ويلَ سره همدغه مفهوم ادا کوي. وس د دواړو له اړخه يو بل ته ضمانت هم ورکړی شو او عام هم شو. د همدغي نظر په خاطر به چې مخکې زمانه کې به حاکمانو کله يو مجرم ته سزه ورکوله نو د سلام په جواب کې به يې ويل لاسلام ولا کلام يعنې زه تا ته د سلامئ ضمانت نه درکوم. دا چې نن سبا حاکمان جاهلان دي ځکه وعليکم السلام هم وايي. او بيا کنځلو کولو سره سره سزه هم ورکوي. دا خلک د سلام د مفهوم نه جاهله دي او جاهل حيوان خو بس لا يعقل وي. سلام کول سنت دی خو جواب ورکول يې واجب دی. اګر که د دې واجب نه سنت افضل دی.

فاسق و فاجر ته سلام کولو کې مخکې والی پکار نه دی، خو د سلام جواب ورکول یې واجب دی.
همدغه شان د غیر مسلم معامله هم ده چې هغې له جواب ورکول پکار دی، خو په سلام کې اولیت پکار نه دی. بیا د سلام په اصولو کې ځینې اصول داسې دي. چې لږو خلکو له پکار ده چې چې زیاتو خلکو ته په سلام کې مخکې والی وکړي. دغه شان ورو له پکار ده چې غټو ته مخکې سلام وکړي. ولاړو خلکو له پکار ده چې ناستو خلکو ته سلام وکړي. دغه شان موټر وغیره کې ناستو خلکو ته پکار ده چې پیاده کس ته سلام وکړي. هر راتلونکې کس ته پکار ده چې د مقامي مجلس خلکو ته سلام کولو کې اولیت وکړي.
کوم خلک چې خوراک کولو کې مشغول وي هغوی ته سلام کول پکار نه دی، ځکه سلام کونکی د خپل سلام د جواب په انتظار کې شي او کیدی شي چې ډوډۍ خوړونکی د خوراک په وجه په سلام کې نارستي وکړي، نو دا کس به ناراضه شي، خو که سلام کونکی وږی وي نو هغه سلام کولی شي. د هغې د سلام مطلب به دا وي چې دا هغوی سره په ډوډۍ کې شریک کیدل غواړي.
میتازو یا د تشناب کې یا به جهري ګناه کې اخته کس ته سلام کول پکار نه دی. دغه شان تلاوت یا ذکرو اذکار کې مشغوله کس ته هم سلام کول پکار نه دی، چرته چې سلام کول جائز نه دی. هتله سلام اورېدونکو باندې جواب ورکول هم لازم نه دی. فقهاء کرامو د اشعارو په اوږده قصیده کې د دې ټول مواضعو ذکر کړی دی، چرته چې سلام کول پکار نه دی. د فقې په کتابونو شامي وغیره کې هغه قصیده کتل پکار ده.

## الفصل الاول

### د آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ تخلیق او فرښتو ته سلام

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَلَقَ اللهُ آدَمَ
حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل الله تعالی آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ په خپل
علی صورته طوله ذِرَاعًا فَلَمَّا خَلَقَهُ قَالَ
صورت پیدا کړو. د هغې اوږد والی شپېته (۶۰) ګزه وُو. کله چې خدای هغه پیدا کړو نو هغې ته یې وفرمایل
اذْهَبْ فَسَلِّمْ عَلَى أُولَئِكَ النَّفَرِ وَهُمْ نَفَرٌ مِنَ الْمَلَائِكَةِ جُلُوسٌ
لاړ شه او دې جماعت ته سلام وکړه او هغه د فرښتو جماعت وُو چې کوم هلته ناست وُو. بیا واوره
فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّونَكَ فَإِنَّهَا تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ
چې هغوی تا ته څه جواب درکوي. هغوی به (جواب درکوي) همغه ستا او ستا د اولاد جواب دی،
فَذَهَبَ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ
نو حضرت آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ (د خدای د دې حکم د پوره کولو لپاره د فرښتو هغه جماعت ته لاړو او وې ویل "السلام علیکم"

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالُوا: | السَّلَامُ | عَلَيْكَ | وَرَحْمَةُ | اللهِ" قَالَ: |

فرښتو جواب ورکړو السلام علیک ورحمة الله نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې (ګویا کې) د آدم علیه السلام د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَزَادُوهُ | وَرَحْمَةُ | اللهِ. | قَالَ: | فَكُلُّ | مَنْ |

سلام په جواب کې د ورحمة الله لفظ فرښتو زیات کړو (بیا) نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې پس کوم کس

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَدْخُلُ | الْجَنَّةَ | عَلَى | صُورَةِ | آدَمَ | وَطُولُهُ | سِتُّونَ | ذِرَاعًا |

جنت ته داخلېږي نو هغه به د آدم علیه السلام په صورت کې وي. هغه شان د هغې اوږد والی به شپېته (۶۰) ګزه وي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمْ | يَزَلِ | الْخَلْقُ | يَنْقُصُ | بعدَه | حَتَّى | الْآن | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |

بیا د حضرت آدم علیه السلام نه وروسته د خلکو بد مسلسل کمېدلو تردې چې موجوده مقدار ته راورسیدلو.

**توضیح: علی صورته:** یعنې الله حضرت آدم علیه السلام په خپل صورت باندې پیدا کړو. دې حدیث باندې د پوهه کېدلو باره کې یو څو اقوال دي.

۱: اول قول دا دی چې دا حدیث د متشابهاتو نه دی. لهذا د چا د تاویل ضرورت نشته دی. بلکې د سلف صالحینو په طرز به ویل کېږي "ما يليق بشانه" یعنې د الله د شان سره چې کوم شان برابر وي مونږ هغه منو.

۲: ځینې علماؤ د دې حدیث په مفهوم کې دا تاویل کړی دی چې د صورة نه مراد د الله هغه صفات دي چې په کوم باندې یې حضرت آدم علیه السلام پیدا کړو لکه "حی، عالم، کریم، بصیر، متکلم" ګویا کې انسان د الله د صفاتو مظهر دی. دې توجیه کې د "بصورته" ضمیر د الله اړخ ته راجع کېږي او د صورت نه به صفت مراد وي.

۳: ځینې علماؤ د دې حدیث مفهوم داسې بیان کړی دی ې حضرت آدم علیه السلام الله د حضرت آدم علیه السلام په صورت جوړ کړو یعنې کوم صورت باندې یې چې حضرت آدم علیه السلام جوړ کړو همغه د حضرت آدم علیه السلام به قسمت کې ؤو. بې مثاله ؤو. د بل هیڅ یو صورت نمونه نه وه، لکه څنګه چې ځینې بچې نه د پلار په شکل کې وي او نه د مور په شکل کې وي، نو مورګانې وایي چې دا په خپل شکل باندې پیدا شوی دی. د دې تاویل له نظره بصورته کې شمیر د حضرت آدم علیه السلام اړخ ته ګرځي او مطلب به همغه وي چې حضرت آدم علیه السلام ډیر مثاله ؤو.

۴: د دې حدیث مفهوم ځینې علماؤ داسې بیان کړی دی چې حضرت آدم علیه السلام الله د صورت او د مجسمې په شکل کې پیدا کړو یعنې مرحله واریې پیدا نه کړو چې اول نطفه وي بیا مضعه وي بیا عظام

---

[1] رقم الحدیث ۴۶۲۸ اخرجه البخاري في صحيحه ۳/۱۱ رقم الحديث ۶۲۲۷ ومسلم في ۲۱۸۳/۴ رقم الحديث ۲۸۴۱.

وي يا لحم وي او يا تخليق وي. داسې نه ؤو بلکې د پيدائش د ابتداء نه يې مکمل صورت ؤو، چې د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام شپېته(۶۰) گزه قد ؤو. **"فتبارك الله احسن الخالقين"** د هغې نه وروسته انسان په کمېدو شو. اوس دوه نيم يا درې گزه پاتې شو. بيا چې کله انسان جنت ته داخلېږي نو ۶۰ گزه په پوره وي. بهرحال حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام فرښتو ته سلام وکړو. فرښتو جواب ورکړو. همغه طريقه په د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام په اولاد کې راغله چېکومه اوس وخت کې د مسلمانانو سره ده. باقي انسان درندگانو او مارغانو کې شامل شول. ياده دې وي چې شرعي گز کم و زيات دو ليشته وي. (مرقات۸/۴۱۳،۴۱۲)

## سلام کول بهترين عمل دى

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو: أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او د حضرت عبد الله ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې يو کس د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل |
| أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ؟ قَالَ: تُطْعِمُ الطَّعَامَ |
| چې د اسلام والو کوم يو خصلت بهتر دى؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې خوراک ورکول او |
| وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لم تعرف (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] |
| هر اشنا او نااشنا ته سلام کول. (روايت کړي دي بخاري و مسلم) |

## يو مسلمان باندې دبل مسلمان شپږ حقوق دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لِلْمُؤْمِنِ عَلَى الْمُؤْمِنِ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د مسلمان په مسلمان باندې |
| سِتُّ خِصَالٍ: يَعُودُهُ إِذَا مَرِضَ وَيَشْهَدُهُ إِذَا مَاتَ |
| شپږ حقوق دي. کله(کوم) مسلمان بيمار وي نو بل مسلمان د هغې بيمارپرسې وکړي، چې يو مسلمان مړ شي نو د هغې په |
| وَيُجِيبُهُ إِذَا دَعَاهُ |
| جنازه کې شريک شي، چې يو مسلمان يې خوراک ته راوغواړي نو د هغې دعوت قبول کړي، چې |
| وَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ إِذَا لَقِيَهُ وَيُشَمِّتُهُ إِذَا عَطَسَ |
| ملاوېږي نو هغې ته سلام وکړي، چې پرنچې وکړي نو د هغې جواب ورکړي او شپږدا چې (يو مسلمان د بل |
| وَيَنْصَحُ لَهُ إِذَا غَابَ أَوْ شَهِدَ لَمْ أَجِدْهُ |
| مسلمان په هر حالت کې) خير خواهي وکړي هغه که حاضر وي يا غائب او د مشکوة مؤلف وايي چې دا حديث نه خو |

[1] رقم الحديث ۴۶۲۹ اخرجه البخاري في صحيحه ۲۱/۱۱ رقم الحديث ۶۲۳۶ ومسلم في ۶۵/۱ وأبوداود في السنن ۳۷۹/۵ رقم :۵۱۹۴

| |
|---|
| فِي الصَّحِيحَيْنِ وَلَا فِي كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَلَكِنْ ذَكَرَهُ صَاحِبُ الْجَامِعِ " بِرِوَايَةِ النَّسَائِيِّ[1] |
| په صحیحین کې موندلی دی او نه د حمیدی په کتاب کې البته دا صاحب جامع الاصول نقل کړی دی. |

**توضیح**: خلاصه دا چې ۱: بیمار پرسې کول ۲: جنازه کول ۳: دعوت قبولو ۴: د ملاقات وخت کې سلام کول ۵: پرنجې کولو باندې جواب ورکول ۶: هرحال کې د هغې خیرخواهې کول.

## خپل مینځ کې سلام کول د محبت د زیاتېدو ذریعه ده

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې تر څو پورې ایمان را نوړئ جنت ته به داخل |
| حَتَّى تُؤْمِنُوا وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى |
| نه شئ او ستاو ایمان تر هغه وخت پورې کامل کېدی نه شي چې تر څو پورې تا (د الله د رضا او خوشحالئ لپاره) د دوستئ |
| تَحَابُّوا أَو لَا أُدلكم على شَيْءٍ |
| تعلقات قائم نه کړئ او نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمایل او آیا زه تاسو ته یو داسې ذریعه نه وایم چې تاسو یې اختیار کړئ نو خپل مینځ |
| إذا فعلتموه تحاببتم؟ أفشوا السَّلَام بَيْنَكُم رَوَاهُ مُسلم[2] |
| کې مو د دوستئ تعلق قائم شي او هغه ذریعه دا ده چې تاسو سلام عام کړئ یعني هر اشنا او نا اشنا ته سلام کوئ. |

## څوک چاته سلام وکړي؟

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل: څوک چې په سورلۍ وي هغه دې پیدل |
| وَالْمَاشِي عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيلُ |
| تلونکي والا ته سلام وکړي، پیدل تلونکی دې په ناست کس باندې سلام وکړي او لږ کسان دې په |
| عَلَى الْكَثِيرِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[3] |
| زیاتو کسانو ته سلام وکړي. |
| ﴿۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل وړوکی دې لویي ته، او |

---

([1])رقم الحديث ۴۶۳۰ أخرجه «مسلم بلفظ حق المسلم علي المسلم ست» في صحيحه ۱۷۰۵/۴ رقم الحديث (۵-۲۱۶۲)

([2])رقم الحديث ۴۶۳۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۷۴/۱ رقم الحديث (۹۳-۵۴) وأبوداود في السنن ۳۷۸/۵ رقم الحديث ۵۱۹۳.

([3])رقم الحديث ۴۶۳۲ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۵/۱۱ رقم الحديث ۶۲۳۲ ومسلم في ۱۷۰۳/۴ رقم الحديث (۱-۲۱۶۰)

وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ وَ الْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ (رَوَاهُ الْبُخَارِيّ)

تېرېدونکی دې ناست ته او د کم تعداد والا دې زيات تعداد والو ته سلام وکړي. (روايت کړی دې بخاري

## نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماشومانو ته سلام کړی دی

﴿۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم مَرَّ عَلَى غِلْمَانٍ

او انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هلکانو باندې تېرېدلو نو

فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[۲]

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته سلام وکړو.

**توضيح**: اګر که په اصولې توګه وړو له پکار دې چې هغوی مشرانو ته اول سلام وکړي خو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عاجزئ او د شفقت په توګه اول ماشومانو ته سلام کړی دی. چې د دې نه جواز معلومېږي او ماشومان هم ډير ؤو، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته سلام وکړو. نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تېرېدونکی هم ؤو، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سلام وکړو. او ماشومانو ته تعليم ورکول هم ؤو.

## غير مسلمو ته د سلام کولو مسئله

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: لَا تَبْدَؤُوا الْيَهُودَ وَلَا النَّصَارَى بِالسَّلَامِ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل يهودو او عيسايانو ته سلام کولو کې ابتداء مه

وَإِذَا لَقِيتُمْ أَحَدَهُمْ فِي طَرِيقٍ فَاضْطَرُّوهُ إِلَى أَضْيَقِهِ (رواه مسلم)[۳]

کوئ او کله چې تاسو لاره کې هغوی کې د يو سره ملاو شئ نو د دوی لو نه تنګې لارې باندې تللو ته مجبوره کړئ.

**توضيح**: لاتبدؤا: يعنې يهود او نصارى ته په سلام کې ابتداء مه کوئ. د دې حديث نه معلومه شوه چې غير مسلمو ته په سلام کې ابتداء کول حرام دي، خو که سخته مجبوري وي نو په سلام کې ابتداء کول جائز دي. که په نا اشناې کې کافر ته سلام وکړی شو نو دا سې واپس کول پکار دي چې "**استرجعت سلامي**" زه خپل سلام بېرته اخلم. که غير مسلم په سلام کې ابتداء وکړه نو صرف جواب ورکول جائز دي. مبتدع ته هم په ابتداء کې سلام کول پکار نه دي، خو که مجبوري وي نو صحيح ده. دې حديث کې يو حکم دا بيان شوی دی چې که کوم يهودې يا عيسائ درسره لاره کې مالو شيې نو هغه تنګه لاره

---

([۱])رقم الحديث ۴۶۳۳ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۴/۱۱ رقم الحديث ۶۲۳۱، وابوداود في السنن ۳۸۰/۵ رقم الحديث ۵۱۹۸.

([۲])رقم الحديث ۴۶۳۴ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۲/۱۱ رقم الحديث ۶۲۴۷ ومسلم في ۱۷۰۸/۴ رقم الحديث (۱۵-۲۱۶۸)

([۳])رقم الحديث ۴۶۳۵ أخرجه مسلم في ۱۷۰۷/۴ رقم الحديث (۱۳-۲۱۶۷)وابوداود في السنن ۳۸۳/۲ رقم الحديث ۵۲۰۵

باندې تللو ته مجبوره کړه. د مسئلې وضاحت داسې دي چې که په اهل کتابو کې کوم يو ذمي وي نو د هغې په فراخه لاره باندې د تللو حق نشته دی. دغه شان که يو مسلمان او اهل کتاب په يوه لاره روان وي او لاره د مسلمانانو لپاره تنګېږي نو يهود او نصاراؤ له په فراخه لار د تللو حق نشته دی نو ځکه به هغوی ته په لاره د تللو حکم ورکړی کېږي. او که هغوی پرې عمل نه کوي نو ديکه ورکولو باندې به هغه مجبوره کول کېږي، خو افسوس هغه هم يو دورؤو چې مسلمانانو به يهود او نصاراؤ ته دکې ورکولي، خو کله چې د مسلمانانو حکمرانانو نا اهل شول نو نن يهود او نصارئ مسلمانان تنګ او د تورتم مقام ارخ ته ديکه کوي. د غير مسلملمو په جواب کې د **هداك الله** الفاظو سره جواب ورکول پکار دي. (مرقات ۴۲۰/۸، ۴۱۹)

## مسلمانانو سره د يهودو عداوت و شرارت

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمُ الْيَهُودُ | | | |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کله چې تاته يهودي سلام و کړي | | | |
| فَإِنَّمَا | يَقُولُ | أَحَدُهُمْ: | السَّامُ عَلَيْكَ. |
| نو د دې نه بغير نور هيڅ نشته دی چې خلک داسې وايي "**السام عليك**" (يعني تالره دې مرګ وي) | | | |
| فَقُلْ: | وَعَلَيْكَ" | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1] | |
| لهذا ته د هغې په جواب کې داسې وايه "**وعليك**" (يعني تاله دې مرګ راشي) | | | |
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَهْلُ الْكِتَابِ | | | |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل کله چې اهل کتاب يعني يهود او نصارئ تاته | | | |
| فَقُولُوا: | وَعَلَيْكُم" | (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[2] | |
| سلام و کړي نو ته د هغې په جواب کې وايه وعليکم. | | | |

**توضيح**: د يهودو د شرارت او د خباثت اندازه د دې نه لږول کېږي چې دا خبيث د يو مسلمان د ملاوېدلو په وخت کې هم نه معاف کوي بلکې د سلام په صورت کې د دعا په ځای ښېره کوي. کله به يې چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته سلام کولو نو د السلام عليکم په ځای به يې ژبه تاوه کړه او السام عليکم به يې ويل. چې ترجمه يې مرګ او هلاکت دی، نو په دې وجه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې تاسو په جواب کې هغوی ته وعليکم وايئ يعنې تالره دې مرګ او هلاکت وي. ځې روايتونو کې صرف د عليکم لفظ دی.

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۳۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۲/۱۱ رقم الحديث ۶۲۵۷ ومسلم في ۱۷۰۶/۴ رقم الحديث (۸-۲۱۶۴)

(۲) رقم الحديث

هغه زیات بهتر دی ځکه وعلیکم کې د تشریک خطر دی، ځکه مطلب دا کېدی شي چې زمونږ د هلاکت او د مرګ سره دې په تا هم مرګ او هلاکت وي. کومو روایتونو کې چې وعلیکم دی نو هغې که به واؤ د استثناء په معنی کې اخستلی کېږي. چې مطلب به یې دا وي چې مرګ او هلاکت دې صرف تا لره وي "ای وعلیکم ما تستحقون" بهرحال دواړه الفاظ جائز دي. (مرقات۸/۴۲۲،۴۲۱)

## د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حلم او صبر

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عائشةَ قَالَتْ: اسْتَأْذَنَ رَهْطٌ مِنَ الْيَهُودِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د يهودو يو جماعت د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې د حاضرېدلو اجازت |
| فَقَالُوا السَّامُ عَلَيْكُمْ. |
| وغوښتلو نو اجازت ورکړی شو او کله چې هغوی نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته راغلل نو وي ويل چې په تا دې مرګ وي، |
| فَقُلْتُ: بَلْ عَلَيْكُمُ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ. فَقَالَ: |
| نو ما وويل "بلکې تاسو لره دې مرګ راشي او په تاسو دې لعنت وي" نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل |
| يَا عَائِشَةُ إِنَّ اللهَ رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الْأَمْرِ كُلِّهِ قُلْتُ: |
| عائشه رضي الله عنها الله د محبت او نرمۍ والا دی او هر کار کې محبت او نرمي خوښوي. ما عرض وکړو |
| أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا؟ قَالَ: قَدْ |
| چې تاسو وا نه ورېدل چې دوی څه وويل؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل بيشکه ما واورېدل او ما |
| قُلْتُ وَعَلَيْكُمْ . وَفِي رِوَايَةٍ: عَلَيْكُمْ وَلم يذكر الْوَاوَ |
| (د هغوی په جواب کې) وويل چې وعليكم. او يو بل روايت کې عليکم دی. يعنې د واؤ ذکر نشته دی. (بخاري او مسلم) |
| وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ. قَالَتْ: إِنَّ الْيَهُودَ أَتَوُا النَّبِيَّ صلى الله عَلَيْهِ وَسلم |
| او د بخاري په روايت کې دا سې دي چې عائشه رضي الله عنها وفرمايل څه يهوديان نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته راغلل |
| فَقَالُوا: السَّام عَلَيْكَ. قَالَ: وَعَلَيْكُمْ |
| او هغوی د (السلام عليکم) ويلو په ځای دا وويل چې السام عليک نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې وعليکم. |
| فَقَالَتْ عَائِشَةُ: السَّامُ عَلَيْكُمْ |
| عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د يهودو دا بد اخلاقي ما برداشت نه کړه او ما په جواب کې وويل چې تاسو لره دې مرګ راشي |
| وَلَعَنَكُمُ اللهُ وَغَضِبَ عَلَيْكُمْ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| او تاسو باندې دې د الله لعنت وي او په تاسو دې د الله غضب وي. نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَهلًا | يَا | عَائِشَةُ | عليكِ | بالرِّفق | وإِياك | والعنفَ والفُحْشَ. |

چې عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا لږه شه، تا لره نرمي اختيارول پکار دي. او د سختي وينا او بدو خبرو نه ځان ساتل پکار دي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَت: | أَو | لم | تسمع | مَا | قَالُوا؟ قَالَ: |

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وفرمايل چې تا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وا نه وريدل چې دوی څه وويله؟ نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَو | لم | تَسْمَعِي | مَا | . قُلْتُ | رَدَدْتُ عَلَيْهِمْ |

او آيا تا وا نوريدل چې هغوی څه ويلي دي ما په هغې څه جواب ورکړو؟ (تا ته معلومېدل پکار دي چې)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيُسْتَجَابُ | لِي | فِيهِمْ | وَلَا | يُسْتَجَابُ | لَهُمْ فِيَّ |

د هغوی په حق کې زما دعا (يا ښېره) خو قبلېږي، خو زما په حق کې د هغوی دعا (يا ښېره) نه قبلېږي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَفِي | رِوَايَةٍ | لِمُسْلِمٍ. | قَالَ: لَا | تَكُونِي | فَاحِشَةً |

او د مسلم په يو روايت کې داسې دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ته د بدو خبرو والا مه جوړېږه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّ | اللهَ | لَا | يُحِبُّ | الفُحْشَ | والتفحُّش | (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |

ځکه الله د بدو خبرو والا په تکلف سره بدې خبرو جوړول نه خوښوي. (روايان دي بخاري و مسلم)

**توضيح**: د يهودو د ښمنې او خباثت تر دې حده پورې زيات شوی ؤ چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به يې هم به سلام کې د ښېرې کولو کوشش کولو. "السام عليکم" به يې ويله. چې معنی يې دا وه چې تا لره دې مرګ او هلاکت راشي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اوريدل خو صرف وعليکم سره به يې جواب ورکولو. يو ځل حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا واوريدل نو ښه جواب يې ورکړو. چې په هغې ورته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ای عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا! نرمي کول الله خوښوي. ته د نرمۍ نه کار واخله. حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا وفرمايل چې آيا ته دې يهوديانو خبرې نه اورې چې به سلام کې ښېرې کوي؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې زه يې اورم او جواب هم ورکوم. د دوی ښېرې زما په حق کې نه قبلېږي او زما ښېرې د دوی په حق کې قبلېږي. دې حديث کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حکم او د صبر برداشت کولو لويه نمونه موجوده ده. (مرقات ۴۲۳/۸)

**الفحش**: يعنې کمزورې او د وقار خلاف الله نه خوښوي. **التفحش**: يعنې تکلف کولو د فحش خبره الله نه خوښوي.

---

[1] رقم الحديث ۶۴۳۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۹۹/۱ رقم الحديث ۴۶۰۱ وفي ۴۵۲/۱۰ رقم الحديث ۶۰۳۰

## مسلم او د غير مسلم په ګډ مجلس کې د سلام طريقه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أُسامة بن زيد: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَجْلِسٍ فِيهِ أَخْلَاطٌ |
| او حضرت اسامه بن زيد فرمايي چې نبي كريم ﷺ د يو داسې مجلس په خوا تېرېدلو چې |
| مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ وَالْيَهُودِ |
| مسلمانان او مشركان په كې يو ځاى ناست ؤو. او په مشركانو كې بت پرست ؤو. او يهوديان هم، نو |
| فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| نبي كريم ﷺ د مجلس والو ته سلام وكړو. |

**توضيح**: اخلاط: يعنې په هم يو مجلس كې مسلمانان او غير مسلم چې كله ناست وي نو د هغوى ته د سلام كولو طريقه دا ده چې د مسلمان نيت كولو سره سرې سلام وكړي. دغه شان كه فاسق مجاهر او حالق لحية يعنې ږېره خرائيونكى د نيكانو خلكو سره ناست وي نو د نيكانو په نيت سلام كول پكار دى. ږېره خرائيونكى او د فاسق مجاهر ته سلام كولو كې لومړى والى پكار نه دى. (مرقات۸/۴۲۵)

## لارو او څېړونو كې كيناستل كله جائز كېږي؟

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ نه نقل كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل |
| إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ. فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ |
| تاسو لارو كې ناستې نه منع شئ. ځينو صحابه كرامو رضي الله عنهم وفرمايل يا رسول الله ﷺ! |
| مَا لَنَا مِنْ مَجَالِسِنَا بُدٌّ نَتَحَدَّثُ فِيهَا. قَالَ: |
| زمونږ په لارو كې د ناستو نه بغير بله چاره نشته دى چرته چې مونږ خبرې كوؤ. نبي كريم ﷺ وفرمايل |
| فَإِذَا أَبَيْتُمْ إِلَّا الْمَجْلِسَ فَأَعْطُوا الطَّرِيقَ حَقَّهُ. |
| كله چې تاسو (د مجبورى په بناء) د ناستې نه بغير د بل صورت نه انكار كوئ نو لارې ته د هغې حق ادا كړئ. |
| قَالُوا: وَمَا حَقُّ الطَّرِيقِ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: |
| صحابه كرامو عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ! د لارې څه حق دى؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل سترګې |

(۱) رقم الحديث ۴۶۳۹ أخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۸ رقم الحديث ۶۲۵۴ ومسلم في ۳/۱۴۲۲ .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| غَضُّ | الْبَصَرِ | وَ | كَفُّ | الْأَذٰى |

بندي کړئ يعني حرامو شيانو ته مه ګورئ، ضرر رسولو نه لري اوسئ يعني لاره تنګولو نه يا بل کوم تېرېدونکي ته ضرر مه

وَرَدُّ السَّلَامِ وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنكَرِ (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)[1]

روسئ، د سلام جواب ورکوئ او خلکو ته د ښو خبرو حکم کوئ او بد خبرو نه منع شئ. (بخاري و مسلم)

**توضیح:** د دې نه معلومه شوه چې لارو او سړونو باندې کيناستلو سره او ازونه کول او ګپ لګول منع دی، خو که د مجبورۍ په خاطر کيناستل وي نو بيا د هغې د جواز لپاره شرط دا دی چې تېرېدونکو ته د سلام ښه جواب ورکړئ او که هغه نااشنا وي نو هغوی ته لار اوښايئ. د نيکو حکم کوئ، نظرونه ښکته ساتئ.

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هٰذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ:

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه د نبي علیه السلام د دې مضمون په سلسله کې نقل کې چې نبي علیه السلام (دا هم وفرمايل چې) د

وَإِرْشَادُ السَّبِيلِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

کوم کس نه لاره هېره شي يا چې کوم کس لاره نه پېژني نو هغې ته لاره ښودل. دا روايت ابو داؤد د ابو سعيد خدري رضي الله عنه

عَقِيبَ حَدِيثِ الْخُدْرِيِّ هٰكَذَا[2]

د روايت نه وروسته همدغه شان نقل کړی ځکه چې صاحب مصابيح او د هغه په اتباع کې صاحب مشکوة دلته نقل کړی دی.

﴿۱۵﴾ وَعَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هٰذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ:

او حضرت عمر رضي الله عنه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه د دې مضمون په سلسله کې نقل کوي چې نبي علیه السلام دا هم وفرمايل

وَتُغِيثُوا الْمَلْهُوفَ وَتَهْدُوا الضَّالَّ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ

چې د مظلوم فرياد دې واورېدلی شي او لادري هېرونکي ته دې لاره وښودلی شي. دا روايت ابو داؤد د ابو هريره رضي الله عنه

عقيب حَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ هٰكَذَا وَلم أجدهما فِي الصَّحِيحَيْنِ[3]

د روايت نه وروسته همدغه شان نقل کړی دی او ما دا دواړه حديثونه په صحيحينو کې نه دي موندلي.

**توضیح:** ملهوف: په مصيبت کې د ښملی شوي فرياد ته وايي. د هغې سره مرسته کول او د لارې

---

[1] رقم الحديث ۴۶۴۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۸/۱۱ رقم الحديث ۶۲۲۹ ومسلم في ۱۶۷۵/۳ رقم الحديث (۱۱۴-۲۱۲۱)

[2] رقم الحديث ۴۶۴۱ ابوداود في السنن ۱۶۰/۵ رقم الحديث ۴۸۱۶

[3] رقم الحديث ۴۶۴۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۰/۵ رقم الحديث ۴۸۱۷.

هېرونکې صحيح رهنمائي کول دا د اسې کارونه دي چې د دې په وجه لاره کې کيناستل جائز کېږي، ځکه دا په نېکې ارادې سره ناسته ده. (مرقات۸/۴۲۶)

# الفصل الثاني

## اسلامي معاشره کې شپږ خپل مينځي حقوق

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لِلْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ | | | | | |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د مسلمان په مسلمان باندې | | | | | |
| سِتٌّ | بِالْمَعْرُوفِ: | يُسَلِّمُ | عَلَيْهِ | | |
| شپږ حقوق دي چې د ښه ښوئي متعلق دي. چې يو مسلمان د رسره ملاو شي نو هغې ته سلام کول، | | | | | |
| إِذَا | لَقِيَهُ | وَيُجِيبُهُ | إِذَا | دَعَاهُ | وَيُشَمِّتُهُ |
| چې کوم مسلمان (د خوراک يا د بل کوم غرض مو راولي) نو هغه قبلول، چې يو مسلمان پرنجې وکړي | | | | | |
| إِذَا | عَطَسَ | وَيَعُودُهُ | إِذَا | مَرِضَ | وَيَتْبَعُ جِنَازَتَهُ |
| نو هغې باندې يرحمک الله ويل، چې کوم مسلمان بيمار وي نو د هغې بيمارپرسې کول، چې يو مسلمان مړ شي | | | | | |
| إِذَا مَاتَ | وَيُحِبُّ | لَهُ | مَا | يُحِبُّ لِنَفْسِهِ " | رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ والدارمي [1] |
| نو د هغې د جنازې سره تلل او د مسلمان لپاره هغه څيز خوښول چې کوم د ځان لپاره خوښوي. | | | | | |

**توضيح**: **بالمعروف**: شارحين ليکي چې بالمعروف کې د با متعلق مخذوف دی. اصل عبارت داسې دی. **"للمسلم على المسلم خصال ستة متلبسة بالمعروف"** يعني دا شپږ خصلتونه په نيک او ښه طريقې سره پوره کول پکار دي. د دستور مطابق د دې حق ادا کول پکار دي. امربالمعروف او نهي عن المنکر مراد نه دی.

کوم شپږ خصلتونه چې د دستور موافق او د حسن سلوک او په خوش اخلاقئ سره پوره کول پکار دي، هغه دا دي. ۱: د ملاقات په وخت کې سلام کول ۲: د خوراک دعوت قبولو ۳: د پرنجې جواب ورکول ۴: د بيمار پرسئ لپاره مريض ته تلل ۵: په مرګ د هغې جنازه کول ۶: د جنازې سره تلل. اوس دلته پوښتنه دا ده چې ذکر شوي خصلتونه پنځه دي او حال دا چې حکم د شپږو (۶) دی. د دې جواب شيخ عبد الحق دا کړی دی چې د جنازې سره تلل، دا د جنازې نه وروسته شوی دی. لهذا د جنازې ذکر په ضمن کښې راغلو. په مستقله توګه نه دی ذکر کړی شوی. (مرقات۸/۴۲۷، ۴۲۶)

(۱) رقم الحديث ۴۶۴۳ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۷۵ رقم الحديث ۲۷۳۶ وابن ماجه في ۱/۴۱۱ رقم الحديث ۱۴۳۳.

## سلام چې څومره كامل وي ثواب به هم كامل ملاويږي

﴿۱۷﴾ وعن عمران بن حُصَيْن أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:
او حضرت عمران ابن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مجلس ته يو سړى راغلو او وي ويل

السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَرَدَّ عَلَيْهِ ثُمَّ جَلَسَ.
السلام عليكم نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته د سلام جواب وركړو. بيا هغه كس كيناستلو.

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: عشر. ثُمَّ جَاءَ آخر
نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د دې سړي لپاره لس (۱۰) نيكئ وليكل شوي. بيا يو بل سړى راغلو

فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ فَرَدَّ عَلَيْهِ
او هغې وويل السلام عليكم ورحمة الله وبركاته نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د سلام هم جواب وركړو

فَجَلَسَ فَقَالَ: عِشْرُوْنَ
او كله چې هغه كيناستلو نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د دې كس لپاره شل (۲۰) نيكئ ليكل شوي دي.

ثُمَّ جَاءَ لآخر فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ فَرَدَّ عَلَيْهِ
د هغې نه وروسته يو بل سړى راغلو او وي ويل السلام عليكم ورحمت الله وبركاته، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې د سلام جواب

فَجَلَسَ فَقَالَ: ثَلَاثُوْنَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد [1]
هم وركړو او كله چې هغه كيناستلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ و فرمايل د دې سړي لپاره ديرش (۳۰) نيكئ ليكل شوي دي.

**توضيح**: يعنې كه څوك صرف السلام عليكم وايي، نو هغې باندې لس نيكئ ملاويږي. كه ورحمة الله ورته او وايي نو شل نيكئ به شي. او كه "وبركاته" ورسره او وايي نو ديرش نيكئ سلام كونكي ته ملاويږي. راتلونكې حديث كې د ومعفرته لفظ هم دئ. چې د هغې په وجه د څلويښتو ليكو بشارت وركړې شوى دى. سلام اګر كه يو سړي ته كېږي، خو مسنون طريقه همدغه ده چې د عليكم د جمع ضمير استعمال كړى شي. سلام كولو كې هم او جواب وركولو كې هم. (مرقات ۴۲۷/۸)

﴿۱۸﴾ وَعَنْ معَاذ بْنِ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ
او حضرت معاذ ابن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د پاس حديث د معنې په شان روايت نقل كړى دى

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۴۴ أخرجه ابوداود في السنن ۳۷۹/۵ رقم الحديث ۵۱۹۵ والترمذي في ۵۱/۵ رقم الحديث ۲۶۸۹.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَزَاد | ثُمَّ | أَتَى | آخَرُ |

چې حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کې دا الفاظ نور نقل کړي دي. او بيا يو بل يعنې څلورم سړی راغلو او

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | السَّلَامُ | عَلَيْكُمْ | وَرَحْمَةُ | اللهِ | وَبَرَكَاتُهُ | وَمَغْفِرَتُهُ | |

وې ويل چې السلام عليكم ورحمة الله وبركاته ومغفرته. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د هغې د سلام جواب ورکړو)

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | أَرْبَعُونَ | وَقَالَ: | هٰكَذَا |

او وې فرمايل چې د دې لپاره څلويښت نيکۍ وليکل شوې. او وې فرمايل همدغه شان به ثواب کې زياتوالی کېږي.

تكون الْفَضَائِلُ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

يعنې سلام کونکي چې څومره د سلام الفاظ زياتوي نو هغه هومره به يې ثواب کې زياتوالی کېږي.

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللهِ

او حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل خلکو کې الله ته د ټول نه

مَنْ بَدَأَ السَّلَامَ. رَوَاهُ أَحْمد وَالتِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[2]

نزدې هغه څوک دی چې اول سلام وکړي. (احمد، ترمذی، ابوداؤد)

**توضيح:** د ابتداء بالسلام فضيلت هغه وخت حاصليږي چې کله دواړه ملګرې د يو بل سره مخامخ شي. که داسې نه وي نو د سلام کولو چې څه قواعد دي، نو هغې کې افضل همدغه دی چې لږ ډېرو ته سلام وکړي، راتلونکی ناستو ته او سپور پيدل ته سلام وکړي او ماشومان مشرانو ته سلام وکړي.

## ناشنا ښځو ته د سلام کولو حکم

﴿۲۰﴾ وَعَن جَرِيرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى نِسْوَةٍ

او د حضرت جرير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښځو په خوا کې تېرېدلو نو

فَسَلَّمَ عَلَيْهِنَّ. رَوَاهُ أَحْمَدُ[3]

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته سلام وکړو.

---

([1])رقم الحديث ۴۶۴۵ أخرجه ابوداود في السنن ۵/ ۳۸۸ رقم الحديث ۵۱۹۶.

([2])رقم الحديث ۴۶۴۶ أخرجه ابوداود في السنن ۵/ ۳۸۰ رقم الحديث ۵۱۹۷ والترمذي في ۵/ ۵۴ رقم الحديث ۲۶۹۴.

([3])رقم الحديث ۴۶۴۷ أخرجه احمد في المسند ۴/ ۳۵۷

**توضيح**: **فسلم عليهن**: يعنې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ښځو ته سلام وكړو. دې حديث كې دا تفصيل نشته دى چې ښځې بوډۍ ګانې وي او كه پيغلې وي يا مخلوط وي. چې هرڅه وي خو ښځو ته سلام كول د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خصوصياتو نه يو خصوصيت ؤو. نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امت د پلار په حكم كې دى، نو ځكه د امت ښځې د ګوريانې دي، خو د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بغير بل هيڅ مسلمان او يو پير فقير لپاره جائز نه دي چې هغوى ښځو ته سلام وكړي. البته كه ښځه بالكل بوډۍ وي نو دې ته سلام كول جائز دى. پيغلو ښځو ته سلام كول مكروه تحريمې دي، ځكه دا د فتنې د پرانستلو سبب او دروازه ده.

## د يو سړي سلام كول يا جواب وركول د ټول جماعت له اړخه كافي دى

﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: يُجْزِئُ عَنِ الْجَمَاعَةِ إِذَا مَرُّوا

او حضرت علي ابن ابى طالب كرم الله وجهه نه منقول دي. چې هغې وفرمايل چې څه خلك كله تيريږي

أَنْ يُسَلِّمَ أَحَدُهُمْ وَيُجْزِئُ عَنِ الْجُلُوسِ

نو هغې كې يو ته سلام كول د هغوى ټولو له اړخه كافي كيږي. د غه شان چې څه خلك ناست وي نو هغې كې د يو جواب

أَنْ يَرُدَّ أَحَدُهُمْ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ

وركول د هغه ټولو له اړخه كافي كيږي. دا روايت بيهقي په شعب الايمان كې د مرفوع په طريقه نقل كړى دى او ابوداؤد دا

مَرْفُوعًا. وروى أَبُو دَاوُد وَقَالَ:

روايت د (موقوف په طريقه) نقل كړى دى. او هغې (د خپل سند بيانولو نه وروسته) وويل چې دا روايت حسن ابن على رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

وَرفعه الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ

مرفوع بيان كړى دى او حسن ابن على رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (امام حسن ابن على ابن ابى طالب نه دى بلكې) هغه حسن دى، چې دا ابوداؤد

وَهُوَ شَيْخُ أَبِي دَاوُدَ [1]

استاد او شيخ دى. او ابوداؤد هم د حسن ابن على د سند نه مرفوع نقل كړى دى، خو د بل سند نه يې موقوف نقل كړى دى.

**توضيح**: سلام كې لومړى والى مستحب او افضل دى، خو دا سنت على الكفايه دى. مطلب دا چې په جماعت كې كه يو سلام وكړو نو د ټولو له اړخه كافي كيږي. او كه په اوريدونكو كې يو جواب وركړو نو د ټولو له اړخه كافي كيږي. كه ټول شركت وكړي نو دا هم منع نه دي.

---

[1] رقم الحديث ۴۶۴۸ أخرجه ابوداود في السنن ۳۸۷/۵ رقم الحديث ۵۲۱۰ والبيهقي في الشعب ۴۶۶/۶ رقم الحديث ۸۹۲۲.

## په سلام کولو کې د یهودو او نصارا او مشابهت مه اختیاروئ

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل |
| قَالَ: لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَشَبَّهَ بِغَيْرِنَا . لَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ وَلَا بِالنَّصَارَى |
| کوم کس چې زمونږ د غیرو سره مشابهت کوي، هغه زمونږ نه نهٔ دی. تا مه د یهودو سرهم مشابهت کوي |
| فَإِنَّ تَسْلِيمَ الْيَهُودِ الْإِشَارَةُ بِالْأَصَابِعِ وَتَسْلِيمَ النَّصَارَى الْإِشَارَةُ |
| او مه د عیسایانو سره، د یهودو سلام کول د ګوتو په ذریعه اشاره کول او د عیسایانو سلام کول د |
| بِالْأَكُفِّ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ[1] |
| تلو په ذریعه د اشاره کولو په صورت کې وي. |

**توضیح: الاشارة بالاصابع:** دا چې سلام د ټولو انبیاؤ سنت دی او اسلام چې کوم سلام پیش کوي دا د انبیاؤ طریقه وه، خو یهودو او نصاریٰ د انبیاؤ طریقه پریښودله او د خپل ځان نه یې سلام جوړ کړو، نو یهود نابهبود د ګوتو په اشارو سلام کوي او نصاراؤ د لاس په تلې باندې سلام کول اختیار کړو. چې د سیلوټ په شکل کې دی. د سلام لفظ دلته د هیڅا به نزد نشته دی، نو ځکه مسلمانانو ته حکم وکړی شو چې د لاس په ځای په ژبه د السلام علیکم الفاظو سره سلام وکړي. صرف به لاس ښوځولو سلام ونه کړي، خو که یو کس لرې وي او هغې ته اواز نه وررسیږي نو په لاس سلام کول جائز دی، خو د دې لپاره شرط دا دی چې په ژبه د سلام الفاظ هم ادا کړي. خلاصه دا چې د اهل کتابو هیڅ خصوصیت کې د هغوی سره مشابهت اختیارول جائز نه دی. خاص کر د سلام په معامله کې ځان ساتل او خپل اسلام شعائر ژوندې ساتل ډېر ضروري دي. دغه شان ځینې قومونه په سلام کې لاس یو ځای کولو سره د نمستې الفاظ ادا کوي. څه خلک ملا ښکه کولو سره سلام کوي او څوک صرف سر ښکته کولو سره سلام کوي. دا ټولې طریقې اسلام کې منع دي. اسلام کامل او پوره بلکې د ژوند اکمله ضابطه ده. دا به هیڅ یو طریقه کې د غیر مسلمو محتاج نه دی (مرقات۸/۴۳۱، ۴۳۰).

اپنی ملت پہ قیاس اقوام مغرب سے نہ کر خاص ہے ترکیب میں قوم رسول ہاشمی ﷺ

**اسناده صعیف:** د عمرو بن شعیب طریقه ضعیفه ده، خو نورې طریقې صحیح دي. (مرقات۸/۴۳۱)

---

[1] رقم الحديث ۴۶۴۹ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۴ رقم الحديث ۲۶۵۹ وأحمد في المسند۲/۴۹۹ .

## هر نوي ملاقات كې سلام كول پكار دى

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اتا: إِذَا لَقِيَ أَحَدُكُمْ | | | | | | |
| او د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل تاسو كې چې څوك | | | | | | |
| أَخَاهُ | فَلْيُسَلِّمْ | عَلَيْهِ | فَإِنْ | حَالَتْ | | |
| د خپل مسلمان ورور سره ملاقات وكړي نو پكار ده چې (اول) هغې ته سلام وكړي او د هغې نه وروسته | | | | | | |
| بَيْنَهُمَا | شَجَرَةٌ | أَوْ | جِدَارٌ | أَوْ | حَجَرٌ | ثُمَّ لَقِيَهُ |
| كه د دواړو په مينځ كوم بوټي يا ديوال يا (غټ) كاڼي واقع وي او بيا د هغې نه ملاقات وشي نو | | | | | | |
| فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] | | | | | | |
| هغې ته (دوباره) سلام وكړئ. | | | | | | |

**توضيح**: د مستثنى صورتونو نه بغير هر ملاقات كې د يو مسلمان بل مسلمان ته سلام كول مسنون دي. هغه كه د هغوى په د جدا كېدلو په وخت كط ولې نه وي، بس لږ شان جدا كېدلو نه وروسته ملاقات باندې سلام كول پكار دى. مثلاً په مينځ كې ديوال يا بوټي هم حائل شي. بيا هم په ملاقات باندې سلام كول مسنون دى. د دې نه دا خبره واضحه شوه چې كوم خلك مخې ته ناستې دي او بيا پسېدلو سره سلم شروع كوي نو دا مناسب نه دي، لكه د لمونځونو نه وروسته يا د اخترونو نه وروسته، خو د رخصت په وخت كې سلام كول جائز او مسنون دى. (مرقات۸/۴۳۲)

## كور ته د ننوتلو يا راوتلو وخت كې سلام كوئ

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ وَعَن قَتَادَةَ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا دَخَلْتُمْ بَيْتًا |
| او حضرت قتاده رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل كله چې تاسو كور ته ننوځئ |
| فَسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهِ وَإِذَا خَرَجْتُمْ فَأَوْدِعُوا أَهْلَهُ بِسَلَامٍ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ مُرْسَلًا[2] |
| نو خپل كور والو ته سلام كوئ او كله چې د كور نه بهر راوځئ نو د سلام په ذريعه رخصت كوئ. |

**توضيح**: على اهله: يعنې كور ته د ننوتلو وخت او دغه شان د راوتلو وخت كې خپل كور والو ته سلام كوئ. د داخليدلو وخت كې سلام خو د امن و امان دعا ده او د رخصتېدلو وخت كې سلام د ديانت او د امانت دعا ده، خو ښځې ته د سلام كولو نه مخكې هغه پوهه كول پكار دي چې داسې

---

(1) رقم الحديث ۴۶۵۰ أخرجه ابوداود في السنن ۳۸۱/۵ رقم الحديث ۵۲۰۰

(2) رقم الحديث ۴۶۵۱ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴۴۷/۶ رقم الحديث ۸۸۴۶

سلام کول د سنت طریقه ده. که داسې دې ونه کړل نو خطر دی چې ښځه به دا خیال کوي چې نن خو خاوند ماته سلام وکړو، سبا به سجده هم کوي.

فاودعوا: یعني کورو الو ته الوداعي سلام کول سره د کور نه بهر لاړ شئ.

د دې مطلب د نظر لاندې دا صیغه د وداع نه به وي چې د رخصت کولو په معنیٰ کې دی، خو شیخ عبدالحق رحمه الله لیکلي دي چې اودعوا د ایداع نه دی. چې د امانت ساتلو په معنیٰ کې دی. ګویاکې دا کس د خپل سلام په ذریعه د خپل اهل وعیا او خپل مال په کور کې د امانت په توګه پریږدي او روان دی. دا مطلب بعید دی. (مرقات۸/۴۳۳،اشعة اللمعات)

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:يَا بُنَيَّ إِذَا دَخَلْتَ عَلَى أَهْلِكَ |
| او د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل زما ځویه! چې ته کله د خپل کورو الو سره |
| فَسَلِّمْ يَكُونُ بَرَكَةً عَلَيْكَ وَعَلَى أَهْلِ بَيْتِك. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ [1] |
| ملاوېږې نو سلام کوه، هغه سلام به باندې او ستا کورو الو باندې د خیر او برکت د نزول سبب وي. |

## د کلام نه مخکې سلام کول پکار دی

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:السَّلَامُ قَبْلَ الْكَلَامِ . |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل سلام د کلام نه اول دی. |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيث مُنكر [2] |
| روایت کړې دې ترمذی او امام ترمذی وائی دا حدیث منکر دې |

**توضیح**: د سلام چې کوم مقصد په ابتداء کې لیکلی شوی دی. د هغې له نظره د دوه کسانو ملاقات کې د تولو نه اول د سلام لفظ کېدل پکار دی چې طرفینو ته د سلامتیٔ ضمانت ملاو شي. د هغې نه وروسته نور کلام شروع کول پکار دی. ځینې خلک اول نورې خبرې کوي او بیا سلام کوي. دا صحیح نه ده، لکه څنګه چې ریډیو پاکستان کې د خبرو شروعات داسې کوي دا ریډیو پاکستان دی السلام علیکم. دغه شان ځینې قومونه خوش آمدید، مرحبا او اهلا و سهلا او د پخیر راغلی الفاظ اول استعمالوي. بیا سلام کوي. دا صحیح نه دي، ځکه د حدیث تعلیم دا دی چې اول سلام وي او بیا کلام وي.

## سلام کې د پخواني او وسني جاهلیت تقلید ناجائز دی

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ: كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ نَقُولُ: أَنْعَمَ اللهُ بِكَ عَيْنًا |
| او حضرت عمران ابن حصین رضي الله عنه فرمایي چې مونږ به د جاهلیت په زمانه کې داسې ویل "انعم الله بک عینا |

---

(1) رقم الحديث ۴۶۵۲ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۶ رقم الحديث ۲۶۹۸

(2) رقم الحديث ۴۶۵۳ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۶ رقم الحديث ۲۶۹۹.

| | | |
|---|---|---|
| وَأَنْعِمْ | صَبَاحًا. | فَلَمَّا |
| وانعم صباحا" يعني خداى دې ستا سترګې يخې ساتي او هر سحر په نعمتونو کې داخل اوسې. بيا | | |
| كَانَ الْإِسْلَامُ نُهِينَا عَنْ ذَلِكَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] | | |
| چې د اسلام زمانه راغله نو مونږ ه يې د دې ويلو نه منع کړو. | | |

**توضيح**: د اسلام نه مخکې به د جاهليت خلکو د ملاقات په وخت کې د مختلفو وختونو لپاره څه کلمات لوستل. هغې کې يوه کلمه د "انعم الله بك عيناً" وه او بله کلمه د "انعم صباحاً" وه. دواړو کې د خوشحالئ او ترو تازګئ دعا وه. اسلام دا چې کامل او پوره بلکې د ژوند اکمله صابطه ده، نو ځکه خپل منونکي يې غيرو ته محتاجه نه کړل. بلکې د خپل مالاوېدلو او د ملاقات اسلامي طريقې يې وضع کړي، خو په افسوس سره ويل کېږي چې نن سبا د اسلام نه بيزاره مسلمانانو د نوي جاهليت طور طريقې د ځان لپاره د فخر ذريعې جوړې کړې. په نوي جاهليت کې خلک د سحر لپاره ګډ مارننګ او د ماښام لپاره ګډ ايوننګ او د نورو وختونو لپاره نور الفاظ استعمالوي. دا تقليد غلط دی. کوم قومونه چې خپلو حدودو کې خپل روايتونه او د حرکانو نه خپله تنګ راغلي دي، مونږ په خوشالئ هغه خپلوؤ. او فخر پرې کوؤ. چا رښتيا ويلي دي.

ما نگتے پھرتے هيں اغيار سے مٹی کے چراغ اپنے خورشيد ميں پھيلا دئے سائے ہم نے

## غائبانه سلام او د هغې جواب

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۸﴾وَعَنْ | غَالِب | قَالَ: | إِنَّا لَجُلُوسٌ | بِبَابِ | الْحَسَنِ | الْبَصْرِيِّ | إِذْ جَاءَ |
| او حضرت غالب فرمايي چې مونږ د حضرت حسن بصري رحمه الله په دروازه ناست ؤو. چې ناڅاپه يو | | | | | | | |
| رَجُلٌ | فَقَالَ: | حَدَّثَنِي | أَبِي | عَنْ | جَدِّي | قَالَ: | |
| سړی راغلو او بيان يې وکړو ماته زما پلار او هغې ته د هغې پلار (يعني زما نيکه) بيان کړي چې | | | | | | | |
| بَعَثَنِي أَبِي | إِلَى | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ فَقَالَ: | ائتيه |
| زه زما پلار د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضرولو له لېږلم او وې ويل چې ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړ شه | | | | | | | |
| فَأَقْرِئْهُ | السَّلَامَ. | قَالَ: | فَأَتَيْتُهُ | | | | |
| او د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې زما سلام او ايه. زما نيکه بيان کړی دی چې زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې حاضر | | | | | | | |

---

[1] رقم الحديث ۴۶۵۴ أخرجه أبوداود في السنن ۳۹۸/۵ رقم الحديث ۵۲۳۱

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقُلْتُ: أَبِي | يُقْرِئُكَ | السَّلَامَ. | فَقَالَ: |

شوم او عرض مې وکړو چې زما پلار په تاسو باندې سلام ویلی دی. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې اوریدلو سره وفرمایل

عَلَيْكَ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

چې تا باندې او ستا په پلار دې سلامتي وي.

**توضیح**: که کوم کس د لرې نه د چا سلام د چا لپاره راوړي وي او هغې ته پیش کوي نو د هغې جواب څنګه ورکول پکار دی. د هغې تعلیم دې حدیث کې ورکړې شوی دی چې د هغې به جواب کې "**وعلیك و علیه السلام**" یا د هغه کس نوم اخستلو سره "**وعلیك وعلی ابیك السلام**" وایئ. دغه شان اسلام د سلام راوړونکي او رالیږونکي دواړو د سلام په جواب کې شریک کړي دي.

## خطونو کې د سلام لیکول طریقه

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِي الْعَلَاءِ بن الْحَضْرَمِيِّ أَنَّ الْعَلَاءَ الْحَضْرَمِيَّ كَانَ عَامِلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابو العلاء حضرمی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې علاء حضرمی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخه

وَكَانَ إِذَا كَتَبَ إِليه بدأ بنفسه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

عامل مقرر شو. هغې به چې کله نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خط لیکلو نو د خپل اړخه به یې شروع کوله.

**توضیح**: ابي الحلاء الحضرمی: حضرمی نسبت دی حضر موت اړخ ته او حضر موت د یمن د مشهور ښار نوم دی. حضرت العلا الحضرمی همدغه ښار اړخ ته منسوب دی. دا جلیل القدر صحابي دی. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه د بحرین والي (ګورنر) مقرر کړی ؤو. بیا د حضرت صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور کې هم هغه والي ؤو. لویې مجاهد ؤو. د هغې په لاس لویې کرامتونه ظاهر شول. د مشکوة په نسخو کې د عن ابی العلا الحضرمی الفاظ دي. ځینې نسخو کې د عن ابن العلاء الحضرمی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ان العلا الحضرمی الفاظ راغلي دي. همدغه واضح او قابل فهم دی. دې حدیث کې د حضرت علاء حضرمی د خط الفاظو کې د هغې نوم اول دی او د هغې نه وروسته د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوم دی او بیا سلام دی. خطونو کې د سلام لیکلو همدغه مسنون طریقه ده. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم دغه طرز اختیار کړی دی. (مرقات ۸/۴۳۴)

---

([1]) رقم الحديث ۴۶۵۵ اخرجه ابوداود في السنن ۳۹۹/۵ رقم الحديث ۵۲۲۷، واحمد في المسند ۳۶۶/۵

([2]) رقم الحديث ۴۶۵۶ اخرجه ابوداود في السنن ۳۴۸/۵ رقم الحديث ۵۱۳۴

## په لیکلی شوي خط باندې خاورې شیندلو وجه

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا كَتَبَ أَحَدُكُمْ |
| او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کله تاسو کې څوک |
| كِتَابًا فَلْيُتَرِّبْهُ فَإِنَّهُ أَنْجَحُ |
| (چاته) خط لیکل غواړي نو هغه خط (د لیکلو نه وروسته) هغې باندې خاوره واچوئ یا پرې خاوره شیندلو سره وڅنډئ |
| لِلْحَاجَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ[1] |
| ځکه د څیز د حاجت راویستلو لپاره ډېر د کار دی. |

**توضیح**: فلیترب‌ه: یعنې د خط لیکلو نه وروسته دا په خاورو کې ککړ کړئ. د خط په خاورو کې د ککړلو مصلحت کې علماؤ مختلفې خبرې لکیلي دي. اوله خبره یې دا لیکلې ده چې مخکې زمانه کې به په قلم او رنګ (د لیکلو) باندې خط لکیلی کېدو. د قلم رنګ د خط لیکلو نه وروسته هم لونده وي. که کاغذ راتاو کړی شي نو لکیلی شوی خط ورانېږي. د هغط خط د اوچولو لپاره خلکو به هغې باندې نرۍ ګرد اچولو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم د دې څیز تعلیم ورکړی دی چې داسې کوئ. ستاسو حاجت به ډېر ژر پوره کېږي. د حدیث دا مطلب ډېر واضح دی او د بوهېدلو پهر اعتبار سره بالکل اسان دی.
څېنط علماؤ دا مطلب بیان کړی دی چې د خط لیکلو نه وروسته په خاوره باندې کېږدئ او اوایئ چې د دې په مضمون کې چې کوم خواست دی د هغې حاجت او ضرورت پوره کونکی صرف الله دی. دا خط هیڅ نه شي کولی. دا خو صرف یو ذریعه ده. چې استعمال کړی شوي ده. بهرحال علماؤ دا حدیث منکر ګڼلی دی. (مرقات ۴۳۷/۸)

## مضمون د تسلسل لپاره قلم په غوږ باندې ایښودل پکار دي

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت زید ابن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه (یو ورځ) د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شوم، |
| وَبَيْنَ يَدَيْهِ كَاتِبٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: " |
| نو هغه وخت د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته یو لیکونکی ناست وُو. ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا واورېدل |
| ضَعِ الْقَلَمَ عَلَى أُذُنِكَ فَإِنَّهُ أَذْكَرُ لِلْمَآلِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَفِي إِسْنَادِهِ ضَعْفٌ[2] |
| چې قلم خپل غوږ باندې ږده. ځکه دا څیز مطلب ډېره یادونه کوي. (روایت کړی دی ترمذی) |

---

[1] رقم الحديث ۴۶۵۷ أخرجه الترمذي في السنن ۶۳/۵ رقم الحديث ۲۷۱۳ وابن ماجه في ۱۲۴۰/۲ رقم الحديث ۳۷۷۴.

[2] رقم الحديث ۴۶۵۸ أخرجه الترمذي في السنن ۶۳/۵ رقم الحديث ۲۷۱۴

## د ضرورت په خاطر د غیر مسلمو ژبه زده کول جائز ده

| |
|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ: أَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَتَعَلَّمَ السُّرْيَانِيَّةَ. |
| او حضرت زید ابن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته حکم وکړو چې زه سرياني ژبه زده کړم |
| وَفِي رِوَايَةٍ: إِنَّهُ أَمَرَنِي أَنْ أَتَعَلَّمَ كِتَابَ يَهُودَ |
| او يو روايت کې دي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته حکم وکړو چې زه د يهودو نه خط او کتابت زده کړم. |
| وَقَالَ: إِنِّي مَا آمَنُ يَهُودَ عَلَى كِتَابٍ. قَالَ: |
| او نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې د خط او کتابت په معامله کې زه په يهودو باندې اطميناني نه يم. |
| فَمَا مَرَّ بِي نِصْفُ شَهْرٍ حَتَّى |
| زيد ابن ثابت فرمايي چې (د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې حکم نه وروسته) نيمه مياشت هم نه وه تېره شوې چې ما د |
| تَعَلَّمْتُ فَكَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَى يَهُودَ |
| (يهودو ژبه زده کړه او د هغوی نه مې) خط او کتابت زده کړو، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې کله يهودو ته خط او کتابت لېږلو |
| كَتَبْتُ وَإِذَا كَتَبُوا إِلَيْهِ قَرَأْتُ لَهُ كِتَابَهُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [1] |
| نو هغه به ما ليکلو او يهودو به چې کله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته کوم خط راولېږلو نو هغه به د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خدمت کې ما لوستلو. |

**توضیح**: السريانية: تورات په عبرانۍ ژبه رانازل شوی ؤو، خو يهودو به عبرانۍ او سريانۍ دواړه ژبې استعمالولې او دواړه ژبې نژدې نژدې وې. نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به څېنې وخت چاته خط ليکلو نو په سريانۍ کې به ضرورت ؤو يا به سريانۍ کې ليکلی شوی خط راغلو نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغې به ليکلو او لوستلو دواړو کې د يهودو نه استفاده کوله، خو په يهودو باندې اعتبار او اعتماد نه ؤو. دا احتمال ؤو چې هغوی څه په ځای نو څه اوايي او يا نور څه وليکي، نو ځکه نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته حکم وکړو چې ته په سريانۍ او د يهودو په ژبه کې لکيل زده کړه. د هغې به ډهن دې شباش وي چې په نيمه مياشت، د پنځلس (۱۵) ورځو نه هم کم کې هغې دا ژبه زده کړه او هغې کې يې ليکل شروع کړل. د دې حديث نه معلومه شوه چې د مسلمانانو په معاشره کې د هبره قسمه افرادو شتون ضروري دی چې مسلمان په هيڅ يوه شعبه کې غير مسلمو ته محتاجه نه وي.
امام غزالی رحمه الله په احياء العلوم کې ليکلي دي چې د مسلمانانو خپل نائی پکار دی. خپل

---

[1] رقم الحديث ۴۶۵۹ أخرجه الترمذي في السنن ۶۴/۵ رقم الحديث ۲۷۱۵.

طبیب پکار دی. خپل لوار پکار دی. خپل انجینئر وغیره وغیره. د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د ضرورت له خاطره د غیر مسلمو ژبه زده کول جائز دي. (مرقات۸/۴۳۹)

## د ملاقات او د رخصت په وخت کې سلام کوئ

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| إِذَا انْتَهَى أَحَدُكُمْ إِلَى مَجْلِسٍ فَلْيُسَلِّمْ فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَجْلِسَ فَلْيَجْلِسْ |
| چې کله تاسو کې څوک یو مجلس ته ورسي نو (اول) سلام کوي او که بیا کیناستل غواړي نو کېدېنې. |
| ثُمَّ إِذَا قَامَ فَلْيُسَلِّمْ فَلَيْسَتِ الْأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الْآخِرَةِ رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[1] |
| او چې او درېږي نو هغه وخت کې هم سلام وکړي ځکه اولنی سلام د دویم سلام کولو نه زیاد بهتر نه دی. |

## په لاره کې د ناستې حق ادا کړئ

| |
|---|
| ﴿۳۴﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا خَيْرَ فِي جُلُوسٍ فِي الطُّرُقَاتِ |
| او د حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په لارو کې کیناستل ښه کار نه دی، |
| إِلَّا لِمَنْ هَدَى السَّبِيلَ وَرَدَّ التَّحِيَّةَ |
| خو چې کوم کس (لاره هېرودونکي یا ړوند ته) لاره اوښاي. د سلام جواب ورکوي. (حرام څیزونو ته د کتلو نه) |
| وَغَضَّ الْبَصَرَ وَأَعَانَ عَلَى |
| سترګې بندې کړي او د هغه کس سره مرسته وکړي چې بوج ورسره وي نو د داسې سړي په لاره باندې |
| الْحَمُولَةِ رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي جُرَيٍّ فِي بَابِ فضل الصَّدَقَة[2] |
| ناسته ښه ده. شرح السنة او ابی جری د روایت باب فصل الصدقة کې نقل کړی شوی دی. (شرح السنة) |

**توضیح**: **الحمولة**: دا هغه ځناور ته وایي چې پیټی پرې راوړلی کېږي. مطلب دا چې په لاره کې د کیناستلو حق د هغه چا دی چې هغه دا کار وکړي. چې د یو مجبوره کس سره مرسته کوي او په سورلی د هغې سره سامان کېږدي. او که داسې نه کوي نو فضول لاره کې مه کینئ. (مرقات۸/۴۴۱)

---

(۱)رقم الحدیث ۴۶۶۰ اخرجه ابوداود في السنن ۳۸۶/۵ رقم الحدیث ۵۲۰۸ والترمذي في ۶۰/۵ رقم الحدیث ۲۷۰۶.

(۲)رقم الحدیث ۴۶۶۱ اخرجه البغوي في شرح السنة ۳۰۵/۱۲ رقم الحدیث ۳۳۳۹.

# الفصل الثالث

## د سلام ابتداء حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ کړي ده

﴿۳۵﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَمَّا خَلَقَ اللهُ آدَمَ

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کله الله حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ پيدا کړو

وَنَفَخَ فِيهِ الرُّوحَ عَطَسَ فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ

او د هغې بدن کې يې روح واچولو نو هغې ته پرنجى راغلو، نو هغې الحمد لله وويله. دغه شان هغې

فَحَمِدَ اللهَ بِإِذْنِهِ فَقَالَ لَهُ رَبُّهُ: يَرْحَمُكَ اللهُ

د الله په توفيق او اجازت سره د خداى حمد وکړو. الله د هغې (د حمد) په جواب کې وفرمايل يرحمک الله

يَا آدَمَ اذْهَبْ إِلَى أُولَئِكَ الْمَلَائِكَةِ

يعني د الله رحمت دې تا باندې نازل وي او بيا يې وفرمايل چې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د فرښتو هغه جماعت ته لاړ شه

إِلَى مَلَإٍ مِنْهُمْ جُلُوسٍ فَقُلِ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ.

چې هلته ناست دي، او اوايه چې السلام عليکم، نو حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ فرښتو له ورغلو او هغوى ته يې سلام وکړو.

قَالُوا: عَلَيْكَ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ. ثُمَّ رَجَعَ إِلَى رَبِّهِ

فرښتو په (جواب کې) وويل عليک السلام ورحمة الله. د هغې نه وروسته حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل پروردګار ته راغلو

فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ بَنِيكَ بَيْنَهُمْ.

(يعني هغه ځاى ته بېرته راغلو چرته چې الله د هغې سره کلام کړې ؤو) الله هغه ته وفرمايل دا ستا او ستا اولاد دعا ده.

فَقَالَ لَهُ اللهُ وَيَدَاهُ مَقْبُوضَتَانِ:

چې خپل مينځ کې به يې يو بل ته کوي. بيا الله هغې ته وفرمايل حال دا چې د هغې دواړه لاسونه بند ؤو

اخْتَرْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ؟ فَقَالَ: اخْتَرْتُ يَمِينَ رَبِّي

چې دې دواړو کې چې کوم يو غواړې خوښ يې کړه. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ وويل چې ما د خپل پروردګار ښي لاس خوښ

وَكِلْتَا يَدَيْ رَبِّي يَمِينٌ مُبَارَكَةٌ ثُمَّ بَسَطَهَا

کړو او زما د پروردګار دواړه لاسونه د برکت والا دي. بيا الله هغه لاس کولاو کړو نو حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ څه ويني

فَإِذَا فِيهَا آدَمُ وَذُرِّيَّتُهُ فَقَالَ: أَيْ رَبِّ مَا هَؤُلَاءِ؟

چې دې کې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ او د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د اولاد صورتونه دي. هغې وپوښتل چې پروردګاره دا څه دي؟

قَالَ: هٰؤُلَاءِ ذُرِّيَّتُكَ فَإِذَا كُلُّ إِنْسَانٍ مَكْتُوبٌ عُمُرُهُ بَين عَيْنَيْهِ
پروردګار وفرمایل چې دا ستا اولاد دی. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ دا هم ولیدل چې د مسلمان عمر د هغې د دواړو سترګو کې
فَإِذَا فيهم رجلٌ أضوؤهُم أَوْ مِنْ أَضْوَئِهِمْ
مینځ کې لیکل شوی دی. بیا د هغې نظر په یو داسې انسان باندې پرېوتلو چې د ټولو نه زیات روښانه ؤو، یا هغې
قَالَ: يَا رَبِّ مَنْ هٰذَا؟ قَالَ:
کې د زیات روښانو نه یو ؤو. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ وپوښتل چې زما پروردګاره دا څوک دې؟ پروردګار وفرمایل
هٰذَا ابْنُكَ دَاوُدُ وَقَدْ كَتَبْتُ لَهُ عُمُرَهُ أَرْبَعِينَ سَنَةً. قَالَ: يَا رَبِّ زِدْ فِي عُمُرِهِ.
دا ستا ځوی داؤد دی او ما د دې عمر څلویښت کاله لیکلی دی. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ وویل چې د دې عمر څه
قَالَ: ذٰلِكَ الَّذِي كَتَبْتُ لَهُ. قَالَ:
زیات کړه. پروردګار وفرمایل چې دا هغه څیز دی چې ما د دې په حق کې لیکلی دی. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل
أَيْ رَبِّ فَإِنِّي قَدْ جَعَلْتُ لَهُ مِنْ عُمُرِي سِتِّينَ سَنَةً.
چې پروردګاره (که د دې عمر لیکلی شوی دی نو زه د خپل عمر نه شپېته (۶۰) کاله دې ته ورکوم.
قَالَ: أَنْتَ وَذَاكَ. قَالَ: ثُمَّ
پروردګار وفرمایل ته پوهه شه او ستا کار پوهه شه یعني دې معامله کې تا ته اختیار دی. نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې د هغې نه
سَكَنَ الْجَنَّةَ مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ أُهْبِطَ مِنْهَا
وروسته حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ جنت کې پاتې شو تر هغه چې الله غوښتل او بیا هغه د (جنت نه) زمکې ته راکوز کړی شو
وَكَانَ آدَمُ يَعُدُّ لِنَفْسِهِ
او حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ مسلسل د خپل عمر کلونه شمارل (تر دې چې د هغې عمر نه سوه څلویښت (۹۴۰) کاله
فَأَتَاهُ مَلَكُ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُ آدَمُ:
شو نو) د مرګ فرښته (د روح د قبض کولو لپاره) هغې له راغله. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ هغې ته وویل
قَدْ عَجَّلْتَ قَدْ كَتَبَ لِي أَلْفَ سَنَةٍ. قَالَ: بَلَى
چې تا تندې وکړه. زما عمر خو زر (۱۰۰۰) کاله مقرر کړی شوی دی. فرښتې وویل چې (دا صحیح

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلٰكِنَّكَ | جَعَلْتَ | لِابْنِكَ | دَاوُدَ | سِتِّيْنَ | سَنَةً | فَجَحَدَ | فَجَحَدَتْ |

ده) خو تا د خپل عمر شلوېښت کاله خپل ځوي داؤد ته ورکړي دي. حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې نه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ذُرِّيَّتُهُ | وَنَسِيَ | فَنَسِيَتْ | ذُرِّيَّتُهُ" |

انکار وکړو او د هغې اولاد هم انکار کوي. او حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ (دا ممانعت) هېر کړی ؤو (چې د الله له اړخه

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ: | فَمن | يومئذ | أمر |

د مشهور بوټې مېوه د خوړلو متعلق وه او د هغې اولاد هم هېره کړې وه) نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل د هغه ورځې

بِالْكتاب وَالشُّهُود رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1]

نه د ليکلو او ګواه کولو حکم وکړی شو.

**توضيح**: اضوء: يعني د ټولو نه زياته پړقېدونکی او روښان ؤو. دا د داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ جزئی فضيلت ؤو. او کېدی شي دآدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې اړخ ته متوجې کېدل د زړه ميلان او مناسبت ؤ، چې په دواړو کې د خلافت ارضي په وجه ؤو، ځکه د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ نه وروسته الله د نبوت سلسله جدا کړه او خلافت يې جدا کړو. داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ بيا دا سلسله جمع کړه او دغه شان د هغې نه وروسته هم د نبوت سره د خلافت عهده جمع کړی شوه. **ستين سنة**: دلته د شپېته کالو خبره ده او په مشکوة ج ۱ص ۳۲۵ باب الايمان بالقدر کې د شلوېښتو کالو ذکر دی د دې جواب دا چې شلوېښت کاله د ورکولو خبره زياته واضحه او راجح ده د شپېتو کالو خبره د کوم راوي نه سهو شوي ده. دلته پوښتنه دا چې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د عمر ورکولو نه بيا ولې انکار وکړو؟ د دې جواب دا چې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ قصداً يا په ارادې سره انکار نه ؤو کړی بلکې د وخت د تيريدلو په وجه د هغې نه هېر شوي ؤو. **"فنسی ولم نجد له عزما"**. (مرقات۸/۴۴۶)

﴿۳۵﴾ وَعَن أَسمَاءَ بنت يزيدَ قَالَتْ: مَرَّ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نِسْوَةٍ

او حضرت اسماء بنت يزيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ د ښځو په خوا تېرېدلو او مونږ د ښځو سره

فَسَلَّمَ عَلَيْنَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه والدارمي[2]

ناست ؤو، نو نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته سلام وکړو.

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۶۲ اخرجه الترمذي في السنن ۴۲۲/۵ رقم الحديث ۳۳۶۸.

(۲) رقم الحديث ۴۶۶۳ اخرجه ابوداود في السنن ۳۸۳/۵ رقم الحديث ۵۲۰۴ وابن ماجه في ۱۲۲۰/۲ رقم الحديث ۳۷۰۱.

## د سلام د ثواب ګټلو لپاره بازار ته تلل

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَعَنِ الطفيلِ بن أُبي بن كعب: أَنَّهُ كَانَ يَأْتِي ابْنَ عُمَرَ |
| او حضرت طفيل ابن ابی ابن كعب نه روايت دی چې هغه به د حضرت عبد الله ابن عمر په خدمت كې حاضرېدلو |
| فَيَغْدُو مَعَهُ إِلَى السُّوقِ. قَالَ فَإِذَا غَدَوْنَا إِلَى السُّوقِ |
| او بيا به د سحر وخت كې هغې سره بازار ته تللو. حضرت طفيل وايي چې كله به مونږ سحر بازار ته تللو نو |
| لَمْ يَمُرَّ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ عَلَى سَقَّاطٍ وَلَا عَلَى صَاحِبِ بَيْعَةٍ وَلَا مِسْكِينٍ |
| حضرت عبد الله ابن عمر به چې د چا سقاط، د كوم خرڅونكي، كوم مسكين او چې د چا په خوا به |
| وَلَا أَحَدٍ إِلَّا سَلَّمَ عَلَيْهِ. قَالَ الطُّفَيْلُ: فَجِئْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ يَوْمًا |
| تېرېدلو نو هغې ته به يې سلام كولو، نو حضرت طفيل وايي چې يو ورځ زه حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه ته |
| فَاسْتَتْبَعَنِي إِلَى السُّوقِ فَقُلْتُ لَهُ: وَمَا تَصْنَعُ فِي السُّوقِ |
| راغلم او هغې زه د ځان سره بازار ته بوتلم نو ما هغې ته وويل چې بازار ته لاړ شو نو هلته به څه وكړو. ته نه |
| وَأَنْتَ لَا تَقِفُ عَلَى الْبَيْعِ وَلَا تَسْأَلُ عَنِ السلع |
| د كوم اخستلو او خرڅولو ځای او درېږي او نه د كوم خرڅونكي څيزباره كې پوښتنه كوي، نه خو اخستل خرڅول |
| وتسوم بِهَا وَلَا تَجْلِسُ فِي مَجَالِسِ السُّوقِ |
| او نه كومه سودا كوي او نه د بازار په كوم مجلس كې شريک كېږي. (نو بازار ته د تللو نه خو بنه دا دي چې) |
| فَاجْلِسْ بِنَا هَهُنَا نتحدث. قَالَ: فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ: |
| ته زمونږ سره همدلته كيني چې څه خبرې وكړو. حضرت طفيل فرمايي چې حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه |
| يَا أَبَا بَطْنٍ قَالَ وَكَانَ الطُّفَيْلُ ذَا بَطْنٍ |
| (دي اورېدلو سره) ماته وويل چې ای د غټې خېټې والا، د روای بيان دی چې د طفيل خېټه غټه وه (ته څه خبر |
| إِنَّمَا نَغْدُو مِنْ أَجْلِ السَّلَامِ نُسَلِّمُ |
| يې مونږ د اخستلو او خرڅولو يا د بل كوم غرض لپاره بازار ته نه ځو بلكې) مونږ خو صرف د سلام كولو په |
| عَلَى مَنْ لَقِينَاهُ. رَوَاهُ مَالك وَالْبَيْهَقِيّ فِي شعب الْإِيمَان[1] |
| غرض ځو. او هر هغه كس ته سلام كوو چې مونږ سره ملاوېږي او دغه شان بازار ته تللو سره ثواب حاصل كړو. |

[1] رقم الحديث ۴۶۶۴ أخرجه مالک في الموطا ۹۶۱/۲ رقم الحديث ۶ من باب السلام والبيهقي في شعب الايمان ۴۳۴/۶ رقم الحديث ۸۷۹۰

**توضيح: فاستتبعني:** يعني زه يې د ځان سره كړم او بازار ته روان شو. **لاتقف:** يعني د هيڅ اخستلو او خرڅولو لپاره به نه او درېدلو. **ولا تسوم:** يعني سوده هم كوي نو صرف د ګرځېدلو نه څه فايده. دلته جومات كې كېنه او دې كې مونږ ته حديثونه واوروه. (مرقات۴۴۸/۸)

**سقاطي:** د كباړو مال كې كاروبار كونكى. (الكاشف:۳۰/۹)

**يا ابابطن:** يعني د غټې خيټې والا، د كوم كس خيټه چې غټه وي هغې ته ابو بطن وايي، لكه څنګه چې ويل شوي دي، خو د علم زيات شوقين ته هم ابو بطن وايي. كېدى چې په دې وجه يې ورته ابوبطن ويلي وي. دې كې هيڅ منافات نشته. حضرت علي رضي الله عنه ته به يې هم د علم د كثرت په وجه شيخ بطين وايي. (مرقات۴۴۸/۸)

## سلام كې بخل كونكى بخيل دى

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۸﴾وَعَن | جَابِرٍ | قَالَ: | أَتَى | رَجُلٌ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې يو كس د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شو او | | | | | | | | |
| فَقَالَ: | لِفُلَانٍ | فِي | حَائِطِي | عَذْقٌ | وَأَنَّهُ | | | |
| عرض يې وكړو چې زما باغ كې د فلاني فلاني د كجورې بوټى دى. او صورت حال دا دى چې د دې | | | | | | | | |
| آذَانِي | مَكَانُ | عَذْقِهِ | فَأَرْسَلَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ: |
| بوټي په وجه ماته تكلف رسي نو نبي عليه السلام يو كس هغې پسې ورولېږلو چې هغه راوله. كله چې هغه راغلو | | | | | | | | |
| أَنْ | بِعْنِي | عَذْقَكَ | قَالَ: | لَا. | | | | |
| نو نبي عليه السلام وفرمايل چې ته خپل د كجورې بوټى زما په لاس خرڅ كړه. هغې وويل چې زه دا نه خرڅوم. | | | | | | | | |
| قَالَ: فَهَبْ | لِي. | قَالَ: | لَا. | قَالَ: | | | | |
| نبي عليه السلام وفرمايل چې زما په نوم يې وقف كړه. هغې وويل چې وقف كومه يې هم نه، نو نبي عليه السلام ورته وفرمايل | | | | | | | | |
| فَبِعْنِيهِ | بِعَذْقٍ | فِي | الْجَنَّةِ؟ | | | | | |
| چې بنا دا بوټى زما په لاس د كجور د داسې بوټي په بدل كې خرڅ كړه چې تاته په جنت كې ملاو شي. | | | | | | | | |
| فَقَالَ: لَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا رَأَيْتُ الَّذِي هُوَ أَبْخَلُ مِنْكَ | | | | | | | | |
| هغې وويل چې داسې يې هم نه خرڅوم. نبي عليه السلام وفرمايل ما ستا نه غټ بخيل هيڅ يو كس نه دى | | | | | | | | |
| إِلَّا | الَّذِي | يَبْخَلُ | | | | | | |
| ليدلى بغير د هغې نه چې په سلام كې بخل كوي. يعني د سلام په معامله كې نقصان كونكى سړى ستا نه | | | | | | | | |

| |
|---|
| بِالسَّلَامِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِيشُعَبِ الْإِيمَانِ[۱] |
| هم بخيل دى چې هغه داسې لږ كار كولو باندې هم زيات ثواب حاصلول نه غواړي. |

**توضيح**: سلام باندې هيڅ نه خرچ كېږي. د ژبې يو څو كلمات دي. چې فايده يې ډېره زياته ده. د دې بخل كونكي رښتيا هم لويې بخيل دى. عذق: د كجورې بوټې ته عذق وېلى شوى دى. د هغه كس عجيبه حالت ؤو.. چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې نه بوټى اخستل غوښتل نو هغې انكار وكړو. بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې د عيې په توگه وغوښتلو، هغې بيا انكار وكړو. بيا يې ورسره د هغې به بدل كې د جنت كې د كجورې د بوټې وعده وكړه. هغې بيا انكار وكړو، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې د دې كس نه دنيا كې بل هيڅ يو لويې بخيل نشته دى، خو سلام كې چې څوک كوم كس بخل كوي هغه د دې نه لويې بخيل دى. د هغه كس په طبيعت كې سختې وه. راجحه دا ده چې مسلمان ؤو. بس "و خلق الانسان ضعيفا" (مرقات ۸/۴۴۹)

## سلام كې مخكې والى كونكى د تكبر نه پاک دى

| |
|---|
| ﴿۳۹﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| الْبَادِئُ بِالسَّلَامِ بَرِيءٌ مِنَ الْكِبْرِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيشعب الْإِيمَان[۲] |
| سلام كې اوليت كونكى د تكبر نه پاک دى. (بيهقى فى شعب الايمان) |

**توضيح**: البادئ: يا خو چې په لاره كې د دوه ملگرو ملاوېدلو باندې كوم كس اول سلام كوي هغه مراد دى چې هغې كې تكبر نه وي. يا د دې نه هغه دوه كسان مراد دې چې د يو بل نه خفا وي او په ملاقات كې اوليت وكړي او خبرې يې شروع كړي نو د داسې كس ټول گناهونه معاف كېږي. او دا د تكبر نه هم خالي دى. اولنئ مفهوم زيات عام دى. (مرقات ۸/۴۵۰)

دا كرښې زه مكه مكرمه كې د بيت الله مخې ته ليكم. **الحمد لله ثم الحمد لله. ۹ رمضان ۱۴۲۶ھ**

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۶۵ اخرجه احمدفي المسند ۳/۳۲۸ والبيهقي في الشعب ۶/۴۳۰ رقم الحديث ۸۷۷۱ رقم الحديث ۴۶۶۶.

(۲) رقم الحديث ۴۶۶۶ اخرجه البيهقي في الشعب ۶/۴۳۳ رقم الحديث ۸۷۸۷.

# باب الاستیذان
## اجازت د اخستلو بیان

**قال الله تعالی: ﴿یا ایها الذین اٰمنوا لا تدخلوا بیوتاً غیر بیوتکم حتی تستأنسوا وتسلموا علی اهلها﴾**

اسلام دا چې کامل او پوره بلکې اکمل مذهب او عالمي قانون دی، نو ځکه دي د انساني ژوند د هر اړخ د ټولو مسائلو د حل بهترین ضمانت ورکړی شوی دی. همدغي سلسله کې د انسانې معاشري په مسائلو کې د یو بل کور ته د تلو راتلو مسئله ده. قرآن کریم کې الله تعالی دا داسې بیان کړې ده **﴿یا ایها الذین اٰمنوا لا تدخلوا بیوتاً غیر بیوتکم حتی تستأنسوا وتسلموا علی اهلها فان لم تجدوا فیها احدا فلا تدخلوها حتی یؤذن لکم وان قیل لکم ارجعو فارجعوا هو ازکی لکم والله بما تعملون علیم﴾ (سورة نور ۲۷،۲۸)** دې آیت کې الله تعالی سلام او اجازت دواړه راجمع کړي دي. ادب او د تهذیب تقاضا دا ده چې هیڅ یو څوک دې بغیر د اجازت نه د بل کور ته داخلیږي، ځکه په دې باندې دي نقصانونه واقع کیدلی شي، ځکه شریعت دا امر مستحب ګرځول دی چې که چرې یو څوک د چا کور ته تلل غواړي، نو هغې له پکار ده چې اول د هغې کور مخې ته اودریږي او د دننه تللو اجازت وغواړي. (مرقات۸/۴۵۰) که چرې د کور په مالک په نظر راغلو نو سلام دې وکړي او بیا دې اجازت وغواړي. "آادْخُلُ"آیا زه دننه راتلی شم؟ که د کور مالک کور کې نه وي یا په نظر رانغلو نو درې ځل په السلام علیکم الفاظو سره سلام وکړي او بیا دې بیرته لاړ شي. دغه شان که د کور مالک کور کې موجود دی خو هغې وویل چې ؤوره زه مصروف یمه بیرته لاړ شه نو دې رغلي کس له پکار ده چې بیرته لاړ شي. دا چې د اجازت غوښتلو به معنی کې دی، نو د کور مالک ته دا اختیار حاصل دی چې اجازت ورکوي یا نا. اجازت ورکول د راتلونکې کس څه جبري حق نه دی. بلکې د راتلونکې کس لپاره دا بهترا واطهرا او پاکه طریقه ده چې د هیڅ شکایت یا د عداوت نه بغیر بیرته لاړ شي د قرآن اعلان دی **﴿هو ازکی لکم﴾ (سورة نور :۲۸)** سبحان الله اسلام څه پاک دین دی نظام دی.

## الفصل الاول
### که درې ځله سلام باندې اجازت ملاؤ نشو نو بیرته لاړ شه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾عَنْ | أَبِي | سَعِيدٍ | الْخُدْرِيِّ | قَالَ: | أَتَانَا | أَبُو | مُوسَى |

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه فرمایي چې (یو ورځ) حضرت ابو موسی اشعر رضي الله عنه مونږ له راغلو

قَالَ: إِنَّ عُمَرَ أَرْسَلَ إِلَيَّ أَنْ آتِيَهُ
اووي ویل چي حضرت عمر رضي الله عنه ما پسې یو کس رالیږلی ؤ او زه یې غوښتلی ؤم. زه چې د غوښتلو په حساب د هغې

فَأَتَيْتُ بَابَهُ فَسَلَّمْتُ ثَلَاثًا. فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ
دروازې ته ورسیدلم او د ننه تللو اجازت غوښتلو لپاره مې درې ځله سلام وکړو نو ماته د سلام جواب ملاؤ

فَقَالَ: مَا مَنَعَكَ فَرَجَعْتُ.
نه شو، نو زه بېرته راغلم. بیا (وروسته ملاقات وشو نو حضرت عمر رضي الله عنه زمانه وپوښتل چې څه شي ته ماته

أَنْ تَأْتِيَنَا؟ فَقُلْتُ: إِنِّي أَتَيْتُ فَسَلَّمْتُ عَلَى بَابِكَ ثَلَاثًا
د راتللو نه منع کړی وي؟ ما وویل چې زه تا له راغلی ؤم او ستا په دروازه او دربدلو سره مې درې ځله سلام وکړو

فَلَم تردَّ عليَّ فَرَجَعْتُ وَقَدْ قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
خو تا جواب رانکړو او نه ستا خادم جواب راکړو. لهذا زه بېرته راغلم. ځکه نبي کریم صلى الله عليه وسلم ماته فرمایلي ؤو چې

:إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدُكُمْ ثَلَاثًا
تاسو کې یو کس (د چا کور ته لاړ شي او دروازه باندې او دربدلو سره) درې ځله اجازت وغواړي او هغې ته

فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهُ فَلْيَرْجِعْ. فَقَالَ عُمَرُ:
اجازت ملاؤ نه شي نو پکار ده چې بېرته راشي. حضرت عمر رضي الله عنه (دې او ربدلو سره) وفرمایل چې د دې حدیث

أَقِمْ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ.
ګواه راوله یعنې د دې حدیث په صحیح کولو باندې ګواه پیش کړه چې دا د نبي کریم صلى الله عليه وسلم

قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: فَقُمْتُ مَعَهُ
ارشاد مبارک دی. حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه فرمایي چې زه د حضرت ابو موسی اشعری رضي الله عنه

فذهبتُ إلى عمرَ فشهدتُ (مُتَّفق عَلَيْهِ) [1]
سره (د تللو لپاره) پاڅیدلم او حضرت عمر رضي الله عنه له لاړو او ګواهي مې ورکړه. (بخاري و مسلم)

**توضیح: ما منعك:** یعنې ته ما راغوښتلی وي نو څه شي ته ماله د راتللو نه منع کړی وي؟ (مرقات ۸/۴۵۱)

**اقم علیه بینة:** یعنې کوم حدیث چې تا بیان کړی دی دې باندې ګواه پیش کړه چې دا واقعې د نبي

کریم ﷺ حدیث دی یا نا؟حضرت عمر رضي الله عنه چې ولیدل چې به کثرت سره حدیثونه بیانېدل شروع شوي دي نو هغې د حدیثونو بیانولو کې د احتیاط له نظره دا قانون جوړ کړی رو چې کوم کس حدیث بیانوي، نو هغې باندې لازم دی چې کم نه کم یو کس د ګواه به توګه پیش کړي چې هغې څه بیان کړي دي. چې هغه واقعې مرفوع حدیث دی یا نا. ابتداء کې داسې نه ؤو. ؤورسته د احتیاط په توګه دا قانون جوړ کړی شو. د دې مطلب دا نه دی چې خبر واحد د اعتماد قابل نه دی. خبر واحد خو بیا هم خبر واحد وي. دا د حضرت عمر رضي الله عنه له اړخه احتیاطي ؤو چې دروغجن خلک د ځان نه حدیثونو د جوړولو کوشش ونه کړی شي. (مرقات ۴۵۱/۸)

**فقلت انی:** اصل عبارت داسې دی **فقلت منعنی لانی** داد حضرت عمر رضي الله عنه د پوښتنې د **"مامنعك"** جواب دی.

**قال ابو سعید:** تفصیلي روایت داسې ذکر دی چې حضرت ابو موسی اشعری رضي الله عنه د پریشانۍ په حالت کې د صحابه کرامو هغه مجلس ته راورسیدلو چرته چې حضرت ابی بن کعب ناست ؤو. د حضراتو د ګپ لپاره حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه نور هم وېرولو. حضرت ابو موسیٰ اشعری رضي الله عنه وفرمایل زما ورونو زه پریشانه یم زما سره مرسته وکړئ او چاچې دا حدیث اورېدلی وي هغه زما سره لاړ شئ. حضرت ابی ابن کعب رضي الله عنه وفرمایل چې دې مجلس کې به مونږ د ټولو نه وړوکی صحابي سره لېږو چې دې قصې ته زیات اهمیت حاصل نه شي. مجلس کې د ټولو نه وړوکی حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه ناست ؤو. هغه د حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه سره لاړو او ګواهي یې ورکړه چې دا واقعي مرفوع حدیث دی. د هغې نه وروسته حضرت ابی ابن کعب رضي الله عنه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه ته وفرمایل چې ته د نبي کریم ﷺ د صحابه کرامو لپاره عذاب شوي. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وفرمایل چې سبحان الله زه عذاب جوړېدل نه غواړم. زه صرف دا غواړم چې خلک حدیث بیانولو کې د احتیاط نه کار واخلي. درې ځله سلام کولو کې اولنی سلام د پېژندلو لپاره وي اودویم سلام دا جازت لپاره وي اودریم سلام دبېرته تللو لپاره وي (مرقات ۴۵۰/۸)

## د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ ته نزدي والی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذْنُكَ عَلَيَّ |
| او حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې نبي کریم ﷺ ماته وفرمایل چې زما له |
| أَنْ تَرْفَعَ الْحِجَابَ وَ أَنْ تَسْمَعَ سِوَادِي حَتَّى أَنْهَاكَ (رواه مسلم)[1] |
| اړخه تاته دا اجازت دی چې ته پرده اوچته کړي او زما خبرې واوري تر څو چې دې زه منع نه کړم. |

[1] رقم الحديث ۴۶۶۸ اخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۰۸/۴ رقم الحديث ۲۱۶۹ وابن ماجه في السنن ۱۲۲۱/۲ رقم الحديث ۳۷۰۹

**توضیح**: ان ترفع الحجاب: یعنې د کور د پردې دروازه اوچته کړه او زما خبرې واوره.

سوادي: ای سراري یعنې داسې پټې خبرې چې د هغې د کولو وخت کې یو بدن د بل بدن سره ولږېږي چې بل څوک یې وانورې. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کور په دروازه باندې د بورئ پرده وه. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خصوصي حیثیت حاصل ؤو چې صرف پرده اچته کړي او دننه لاړ شي، څو که د پرده اوچتولو نه وروسته نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د داخلیدلو نه وروسته منع کړو نو بیا به اجازت نه وي ګڼې صرف د پردې اوچتولو اجازت ؤو. د دې نه د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لویې شان او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زیات نزدې والي ښه ښته لږېږي. عامو نوؤ صحابه کرامو به خیال کولو چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کور د کسانو نه یو کس دی، څو دا خبره د ساتلو وړ ده چې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا تلل راتلل تر د بیتهک د حد پورې وه. د ازواج مطهراتو نه پرده څو لازم وه. د کور بې پردګې کله نه وه شوې. (مرقات۴۵۲/۸)

## خپل تعارف په غیر مبهم الفاظو کې پکار دی

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَيْنٍ كَانَ عَلَى أَبِي |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې (یو ورځ) زه د یو قرض په معامله کې زما په پلار باندې ؤو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَدَقَقْتُ الْبَابَ فَقَالَ:مَنْ ذَا؟ فَقُلْتُ: أَنَا. فَقَالَ:أَنَا أَنَا . كَأَنَّهُ كرهها (مُتَّفق عَلَيْهِ) |
| خدمت کې حاضر شوم، نو د خپل راتلو خبر د ورکولو لپاره مې دروازه وټکوله. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَدَقَقْتُ الْبَابَ فَقَالَ:مَنْ ذَا؟ فَقُلْتُ: أَنَا. فَقَالَ:أَنَا أَنَا . |
| وپوښتل څوک یې؟ ما وویل زه یم، نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې اوریدلو سره وفرمایل چې زه یم، زه یم |
| كَأَنَّهُ كرهها (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| ګویا کې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما داسې جواب ورکول یې بد وګڼل. |

**توضیح**: فی دین: د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پلار په جنګ اُحد کې شهید شوی ؤو، څو د اته (۸) لوریانو نه بغیر ځان پسې ډېر زیات قرض هم پریښودلی ؤو. حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې سلسله کې ډېر زیات تشویش کې ؤو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې ډېره زیاته مرسته هم وکړه. د همدې قرض سلسله کې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دروازې له راغلی ؤو چې د قرضدارانو سره څه خبره وکړي چې هغوی څه لږه نرمي وکړي یا د قرض د ادا کولو څه صورت جوړ شي، نو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په برکت سره هغه قرض خلاص شو او په لږو کجورو کې برکت راغلو.

---

[1] رقم الحديث ۴۶۶۹ اخرجه البخاري في صحيحه ۳۵/۱۱ رقم الحديث ۶۲۵۰ ومسلم في ۱۶۹۷/۳ رقم الحديث ۲۱۵۵.

**من ذا**: دې لفظ سره نبي كريم ﷺ د اواز كونكي د تعيين او د فرق اراده كړې وه. بيا حضرت جابر رضي الله عنه د "انا" لفظ استعمال كړو چې تعين پرې ونه شو او نه فرق حاصل شو. دې باندې نبي كريم ﷺ نكير و فرمايلو چې انا انا څه څيز دى. صفا الفاظو كې خپل نوم او ايه چې شك لرې شي. د انا لفظ استعمالولو سره تو شك اوس هم پاتې دى. بيا د دې ويلو نه څه فايده شوه؟نبي كريم ﷺ به د حضرت جابر رضي الله عنه اواز پيژندلى ؤو، خو د تعليم لپاره يې نكير وفرمايلو. ځينې علماء فرمايي چې صرف دروازه ټكولو سره نبي كريم ﷺ ناراضا شو ځكه د اجازت لپاره خو اسلام كې سلام او استيذان مقرر دى. د دې حديث نه هغه خلكو ته هم تعليم ملاويږي چې په ټيليفون خبرې شروع كړي او خپل نوم نه وايي. ګوياكې د هغوى خيال دى چې د هغوى اواز د دنيا ټول خلك پيژندي. دا خام خيال دى. صفا الفاظ كې ويل پكار دي چې زه معروف شاه يم او د قطر نه خبرې كوم. لفظ "انا" كې كه د نبي كريم ﷺ نكير او خفګان داسې واخستلى شي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل زه هم يم يعني زه زه سره هيڅ پيژندنه نه شي كيدى، نو د دې مطلب هم امكان دى. اګر كه چرته ليكل شوى نه دى ليدلى. (مرقات ۴۵۲/۸)

## قاصد سره د راتلو وخت كې د نور اجازت ضرورت نشته

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي هريرةَ قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې يو ورځ زه د نبي كريم ﷺ سره (د نبي كريم ﷺ كور) ته |
| فَوَجَدَ لَبَنًا فِي قَدَحٍ. فَقَالَ: |
| داخل شوم، نو نبي كريم ﷺ كور كې د شودو يو پيالـه وليدله. نبي كريم ﷺ ماته وفرمايل |
| أَبَا هِرٍّ الْحَقْ بِأَهْلِ الصُّفَّةِ فَادْعُهُمْ إِلَيَّ فَأَتَيْتُهُمْ |
| چې ابوهريره رضي الله عنه دا اهل صفه ته لاړ شه او هغوى ماله راوله، نو هغوى پسې لاړم او رامې وستل. |
| فَدَعَوْتُهُمْ فَأَقْبَلُوا فَاسْتَأْذَنُوا |
| هغه خلك چې كله راغلل نو دروازه باندې اودريدل او اجازت يې غوښتل. نبي كريم ﷺ |
| فَأَذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوا (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)[1] |
| هغوى ته اجازت وركړو او هغوى دننه لاړل. |

**توضيح**: **اهل صفه**: حضرت ابوهريره رضي الله عنه مسجد نبوي كې د نبي كريم ﷺ د مدرسه صفه طالب علم ؤو. صفه كې به كله ايتا (۸۰) طالب علمان ؤو. كله به تر څلور سوه (۴۰۰) نه زيات

---

(۱) رقم الحديث ۴۶۷۰ أخرجه البخاري في صحيحه ۳۱/۱۱ رقم الحديث ۶۲۴۶.

شو او كله به كم شو. د ضرورت په وخت كې به د جهاد لپاره تيار ؤو. ګويا كې دا قطعهٔ منتظره د مجاهدينو وه. چې جهادي مدرسه كې يې درس ويله. حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هم هغوى نه ؤو. خپله اوږى ؤو. د شودو پياله راغله نو خوشحاله شو چې زه به يې هم وڅښم، خو ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حكم وشو چې ټول راوغواړه. د قاصد سره ټول راغلل او كور ته د ننه تللو لپاره يې اجازت وغوښتلو. كېدى شي دا په دې وجه ؤو چې دا حضرت ناوخته راغلي ؤو يا د زياتې حيا په وجه يې دروازې سره اجازت وغوښتلو چې يو استحبابي امر دى. حديث نمبر ۲ كې وضاحت شته دى. (مرقات۸/۴۵۴)

## الفصل الثاني

### سلام وكړئ او اجازت وغواړئ

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ كَلَدَةَ بْنِ حَنْبَلٍ: أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمية بعث بِلَبن أَو جداية وَضَغَابِيسَ |
| حضرت كلده ابن حنبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې صفوان بن اميه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما په لاس شودو، د هوسئ بچي او تره |
| إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَعْلَى الْوَادِي |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ولېږل او هغه وخت نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مكې په پاسنۍ غاړه باندې (چې معلى ورته وايي) |
| قَالَ: فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ |
| ولاړ ؤو. كلده وايي چې زه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام خدمت ته هم د غه شان ورغلم، نو ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام قيام ګاه ته د داخليدلو نه |
| وَلَمْ أُسَلِّمْ وَلَمْ أَسْتَأْذِنْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: |
| مخكې سلام ونه كړو او نه مې د ننه راتللو اجازت وغوښتلو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته وفرمايل چې |
| "ارْجِعْ فَقُلِ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد [1] |
| بېرته لاړ شه (يعنې دلته نه او ځه او دروازې ته لاړ شه) او هلته او دريدلو سره) او ايه چې السلام عليكم، آيا زه د ننه راتلی شم. |

**توضيح**: جداية: جدايه د هوسئ هغه بچي ته وايي چې د شپږو (۶) مياشتو وي. د ګډې او بزې بچي ته هم جدايه وايي. جيم باندې كسره او فتح دواړه جائز دي. (مرقات۸/۴۵۴)

**ضغابيس**: دا د ضغبوس جمع ده. تره ته وايي. چې د يو فټ نه ډيره اوږده او موټې ګوتې پشان پيړه وي. دې ته پښتو كې تره وايي. (مرقات۸/۴۵۴)

**اعلى الوادي**: د دې نه د مكې مكرې پاسنۍ برخه مراد ده چې المعلاة ورته وايي. (مرقات۸/۴۵۵)

**ارجع**: يعنې د اجازت لپاره هغه كس سلام ونه كړو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تعليم او تنبيه په توګه

---

[1] رقم الحديث ۴۶۷۱ اخرجه ابوداود في السنن ۳۶۹/۵ رقم الحديث ۵۱۷۶ والترمذي في ۶۱/۵ رقم الحديث ۲۷۱۰.

هغې ته د ښېرته د تللو حکم وکړو او بیا د سلام کولو او د راتللو حکم وکړو. چې ترېنه معلومېږي چې د اجازت لپاره سلام کول ضروري امر دی. (مرقات ۸/۴۵۵)

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کله تاسو کې څوک راوغوښتلی |
| فجاءَ مَعَ الرسولِ فَإِنَّ ذَٰلِكَ إِذْنٌ. |
| شي او د همغې سره راشي چې د دې راغوښتلو ته تلی دی، نو د هغې سره راتلل د هغې لپاره اجازت دی. او یو روایت |
| رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ قَالَ: رَسُول |
| کې داسې دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د یو سړي بل سړي د راغوښتلو لپاره هغې |
| الرجل إِلَى الرجل إِذْنه[1] |
| ته کس لېږل د هغې له اړخه اجازت دی. |

## اجازت غوښتلو سره د دروازې نه چپ و دربږئ

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَن عبد الله بن بُسرٍ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى بَابَ قَوْمٍ |
| او حضرت عبد الله ابن بسر فرمايي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به کله د چا کورته د تللو لپاره د دروازې ته |
| لَمْ يَسْتَقْبِلِ الْبَابَ تِلْقَاءِ وَجْهِهِ |
| ورسیدلو نو د دروازې اړخ ته به یې مخ کولو سره نه او درېدلو چې د کور والو باندې نظر و نه لږي |
| وَلَكِنْ مِنْ رُكْنِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ فَيَقُولُ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ |
| (بلکې ښي یا چپ اړخ ته به او درېدلو او بیا به یې د اجازت غوښتلو لپاره) وفرمایل السلام علیکم او د |
| وَذَٰلِكَ أَنَّ الدُّورَ لَمْ يَكُنْ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا سُتُورٌ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ |
| دروازې مخې ته د نه او درېدلو وجه به دا وه چې هغه زمانه کې به په دروازو باندې پردې نه ځوړندې. (ابوداؤد) |
| وَذَكَرَ حَدِيثَ أَنَسٍ قَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ فِي بَابِ الضِّيَافَةِ[2] |
| او د انس دا روایت قال علیه الصلوٰة والسلام السلام علیکم ورحمة الله په باب الضیافة کې نقل کړی شوی دی. |

**توضیح**: **لم یستقبل**: یعنې دروازې ته مخامخ او درېدل پکار نه دي، ځکه دروازه پرانستلی شي نو

---

(1) رقم الحديث ۴۶۷۲ أخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۷۶ رقم الحديث ۵۱۹۰ وأحمد في المسند ۲/۵۳۳ .

(2) رقم الحديث ۴۶۷۳ أخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۷۴ رقم الحديث ۵۱۸۶ وأحمد في المسند ۴/۱۹۰ .

دغه شان به د کور د ننه نظر پرېوځي. بلکې ښي یا چپ اړخ ته او د رېډل پکار دي، لکه څنګه چې د تبلیغ یا ټیوشن والا کوي. مفسد قسمه خلک لیدلی شوي دي چې بالکل په مینځ کې ودرېږي او د ننه د کتلو کوشش کوي. د دې حدیث د آخري الفاظو نه معلومېږي چې د اسلام په ابتدائی دور کې د مسلمانانو په دروازو باندې به پردې نه وې او وروسته دور کې پردې راغلې. لهذا که د نظر لرېدلو خطر نه وي نو بیا مخامخ د اودرېدلو منع نشته دی. د ممانعت اصل وجه د نظر د پرېوتلو دی. البته نفس سنت باندې عمل کولو په غرض مخامخ اودرېدل به مناسب نه وي. (مرقات۸/۴۵۶)

## الفصل الثالث

## کور کې که مور هم وي بیا هم اجازت غواړئ

| |
|---|
| ﴿۸﴾عَنْ عَطَاءٍ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| حضرت عطاء ابن یسار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړي د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل چې آیا زه |
| أَسْتَأْذِنُ عَلَى أُمِّي؟فَقَالَ:نَعَمْ |
| خپلې مورته د ورتللو لپاره هم اجازت وغواړم؟نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل آؤ، ځکه کېدی شي چې کوم وخت کې د |
| فَقَالَ الرَّجُلُ: إِنِّي مَعَهَا فِي الْبَيْتِ. |
| هغې د بدن أندامونه کولاو وي چې بچو ښودل یې هم جائزنه دي. هغه سړي وویل چې ما سره همدغه شان کېږي. |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:اسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا فَقَالَ الرَّجُلُ: |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې که هغې ته ورځې او اجازت غوښتلو سره ورځه. هغه وویل چې زه |
| إِنِّي خَادِمُهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:اسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا أَتُحِبُّ أَنْ تَرَاهَا |
| د خپلې مور خادم یم. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل بهر حال خو اجازت غواړه او ورځه. آیا ته دا خوښوي چې خپله مور |
| عُرْيَانَةً ؟ قَالَ : لَا . قَالَ : فَاسْتَأْذِنْ عَلَيْهَا. رَوَاهُ مَالِكٌ مُرسلاً[1] |
| بربنډه اوینې؟ هغه کس وویل چې هرګز نه. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې بیا اجازت اخله او رهغې له ورځه. |

**توضیح**: **فاستأذن**: یعني کور کې ځینې وخت ښځې داسې حالت کې کینې چې هیڅ یو کس یې خوښوي چې په هغې یې نظر ولرېږي. لهذا هر صورت کې اجازت غواړئ او د ننه ځئ. د اجازت صورت دا هم کېدی شي چې د سلام نه بغیر د داخلېدلو وخت کې سړی ټوخی کولو سره ورشي، د بوټانو اواز تیز کړي یا دروازه وټکوي چې د ننه ښځو ته اندازه وشي. حدیث کې د مور ذکر دی. مراد

---

(۱)رقم الحدیث ۴۶۷۴ أخرجه مالک في المؤطا ۹۶۳/۲ رقم الحدیث ۱ من باب الاستئذان.

هغه تولې ښځې دي چې د محارمو د قبیل نه وي، خو که کور کې صرف ښځه وي نو د داسې اجازت ضرورت نشته دی. (مرقات۸/۴۵۷)

## حضرت علي رضي الله عنه ته د اجازت يو صورت

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ لِي مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَدْخَلٌ |
| او حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې زه به نبي کريم صلی الله علیه وسلم له د شپې او د ورځې هم ورتللم، نو زه به |
| بِاللَّيْلِ وَمَدْخَلٌ بِالنَّهَارِ فَكُنْتُ إِذَا دخلتُ بِاللَّيْلِ تنحنح لي. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ[1] |
| چې د شپې وخت ورتللم نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم به ماته د اجازت کولو لپاره ټوخي راکولو. |

**توضيح** تنحنح لي: د دې حديث نه دا خبره واضحه وشه چې حضرت علي رضي الله عنه به د شپې وخت کې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم کور ته د داخليدلو لپاره داسې اجازت غوښتلو چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم به ټوخي کولو. د دې نه دا امر معلوم نه شو چې د ورځې په وخت کې د اجازت کوم علامت مقرر ؤو. امکان لري چې د ورځې وخت کې د حضرت علي رضي الله عنه ټوخي کول د اجازت علامت ؤو، لکه څنګه چې عامه طريقه همدغه وي.

اوس دلته يو سوال پيدا کيږي. هغه داسې چې په ځينې روايتونو کې راغلي دي چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم ټوخي کول د اجازت د نشتوالي دليل ؤو، نو ځکه حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم ټوخي سره به زه بيرته تللم. د دې سوال جواب دا دی چې امکان لري چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم ټوخي کول د اجازت او د عدم اجازت دواړو لپاره علامت ؤو، خو د خارجي قرينې نه معلوميدل چې دا د اجازت علامت دی او دا د عدم اجازت علامت دی. (مرقات۸/۴۵۷)

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا تَأْذَنُوا لِمَنْ لَمْ يَبْدَأْ |
| او د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دی چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: څوک چې سلام کې اوليت ونه کړي نو |
| بِالسلامِ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيّ فِيشعب الْإِيمَان[2] |
| هغې له خوا ته د راتللو اجازت مه ورکوئ. |



(۱) رقم الحديث ۴۶۷۵ أخرجه النسائي في السنن ۱۲/۳ رقم الحديث ۱۲۱۱، وابن ماجه في ۱۲۲۲/۲ رقم الحديث ۳۷۰۸

(۲) رقم الحديث ۴۶۷۶ أخرجه البيهقي في الشعب ۴۴۱/۶ رقم الحديث ۸۸۱۶

# باب المصافحة والمعانقة

## د مصافحې او معانقې بيان

اسلام دا چې کامل او پوره بلکې د ژوند اکمله ضابطه ده، ځکه د انساني ژوند د مسائلو حل دي کې موجود دی. مصافحه کول د مسلمانانو د معاشري يوه برخه ده، ځکه اسلام کې د دې د مسائلو او د فضائلو ذکر شوی دی. مصافحه ده صفحه نه دی. صفحه د يو شي پلنوالی برخې ته وايي. د يو لاس پلنوالي د بل لاس پلنوالي باندې د کیخودلو نوم مصافحه دی. دغه شان د لاس د کیخودلو او خپل مينځ کې د ملاوېدلو سره د بخښني معنی هم پوره شي، ځکه مصافحه کې بخښنه کېږي.

اسلام کې د سلام کولو جدا مقام دی او د مصافحه کولو جدا مقام دی، خو سلام مع المصافحة هم اسلام کې مشروع دی، د دې لپاره چې د ملاقات پوره حق ادا شي.د مخامخ کيدو په وخت کې د نور قومونو هم څه طريقي دي. يهود په ګوتو سره په يو خاص طرز باندې اشاره کوي. او عيسايان ورغوي باندې سليوټ کوي. اسلام ډيره معياري طريقه خوښدلي ده او د نبي کريم ﷺ طريقه د ټولو نه معياري ده، ځکه

*جہاں آپ کی تقلید اسی حد تک سلیقہء بشریت بشر کو ملتا ہے*

که د سلف صالحينو په نزد هم کله په يو لاس سره مصافحه شوي وي نو هغه عام عادت نه ؤو. عام عادت چې منقول دی او کوموته چې علماؤ او صلحاؤ کامل سنت ويلی دی. هغه په دواړو لاسونو باندې مصافحه ده. اګر که د هيڅ حديث نه ماته صريح ثبوت نه دی ملاؤ شوی. امام بخاري په بخاري يو د عنوان قائم کړی دی. چې نبي کريم ﷺ د ابن مسعود رضي الله عنه لاس په خپل دواړو لاسونو کې ونيولو، د دينه د استدلال کول کوشش کېږي، خو هغه اخذ باليدين دی. د غير مقلدينو نه بغير په جزيرۀ عرب کې او د سعودي خلک او عام هوښيار خلک په يو لاس مصافحه کوي.

جمعي او اخترونو د لمونځ او پنځه وخته لمونځونو نه وروسته د يو بل سره مصافحه علماؤ خلاف سنت بلکې بدعت يې ويلي دي. او دا يې مکروه ليکلي دي. يوې ناواقفه ښځې سره مصافحه کول جائز نه دي، ځکه چاته چې کتل ناجائز وي نو د هغې د بدن نه لږېدل هم جائز نه دي. بوډۍ ښځې سره د سلام د فتني د نشرالي په وجه جائز دی.د سلام نه وروسته په سينه باندې ايږدل د هيڅ حديث او نص نه ثابت نه دی بلکې دا د عوامو د غلطيانو نه دی. او د عاشقانو طريقه ده. شاعر ساحر وايي:

حاولن تفديتي و خفن مراقباً　　فوضعن ايدهن فوق ترئياً

**والمعانقة:** سلام او مصافحي سره معنقه هم اسلام کې جائز ده. معانقه څټ د څت او سينه د سيني سره ملاوېدلو ته وايي. څه خلک د دې يو مکروه شکل جوړوي او خيټو له جټکې ورکوي. دا معانقه نه ده بلکې

مباطنه ده. خيال ساتل پكار دي. قميض د نشوالي په صورت كې هم معانقه مكروه ده. (مرقات۸/۴۵۹)

# الفصل الاول

## مصافحه ثابت ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَن قتادة قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسٍ: أَكَانَتِ الْمُصَافَحَةُ فِي أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ |
| حضرت قتاده تابعی فرمايي چې ما حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وپوښتل چې آيا د نبي عَلَيْهِ السَّلَام صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ |
| قَالَ: نعم. رَوَاهُ البُخَارِيّ[1] |
| به (خپل مينځ كې د ملاقات نه وروسته) مصافحه كول؟ هغې وفرمايل چې آؤ. |

## ماشوم ښكلول مستحب دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَبَّلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښكل كړو، |
| وَعِنْدَهُ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ. فَقَالَ |
| نو يو صحابي اقرع ابن حابس چې هغه وخت د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضر ؤو. وې ويل |
| الْأَقْرَعُ: إِنَّ لِي عَشَرَةً مِنَ الْوَلَدِ مَا قَبَّلْتُ مِنْهُمْ |
| چې زما لس بچې دي او ما هغې كې هيڅ يو نه دی ښكل كړی. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې اوريدلو سره |
| أَحَدًا فَنَظَرَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ |
| د هغې اړخ ته وكتل او وېې فرمايل: څوك چې رحم نه كوي هغې باندې رحم نه كيږي يعني څوك چې خپل اولاد يا مخلوق |
| مَنْ لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) |
| خپل اولاد يا د خدای په مخلوق نرمي او شفقت نه كوي. هغې باندې د الله رحمت او شفقت نه كيږي. (بخاری او مسلم) |
| وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَثَمَّ لُكَعُ فِي بَابِ مَنَاقِبِ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَيْهِمْ |
| او د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت "اثم لكع" به مونږ ان شاء الله مناقب اهل بيت نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په |

---

[1] رقم الحديث ۴۶۷۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۹/۱۱ رقم الحديث ۶۲۶۳ والترمذي في ۷۱/۵ رقم الحديث ۲۷۲۹.

أَجْمَعِينَ إِنْ شَاءَ تَعَالَى وَ ذَكَرَ حَدِيثَ أُمِّ هَانِئٍ فِي بَابِ الْأَمَانِ)[1]

باب کې نقل کوؤ. او د حضرت ام هانی رضي الله عنها روایت په باب الامان کې نقل کړی شوی دی.

# الفصل الثاني

## د مصافحې فضیلت

﴿۲﴾ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ

حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل کله چې دوه مسلمانان

مُسْلِمَيْنِ يَلْتَقِيَانِ فَيَتَصَافَحَانِ إِلَّا غُفِرَ لَهُمَا قَبْلَ أَنْ يَتَفَرَّقَا. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ

ملاوېږي او مصافحه کوي نو د هغې دواړو د جدا کېدو نه مخکې خدای هغوی او بښي. (احمد، ترمذی،

وَابْنُ مَاجَهْ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ قَالَ: إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ

ابن ماجه) او د ابوداؤد په روایت کې داسې دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل کله چې دوه مسلمانان

فَتَصَافَحَا وَحَمِدَا اللهَ وَاسْتَغْفَرَاهُ غفر لهما[2]

ملاو شي او د يو بل سره مصافحه کوي، د الله حمد وکړي او ښښنه وغواړي نو هغه دواړه وبخښل شي.

## د سلام کولو وخت کې ټيټېدل منع دي

﴿۳﴾ وَعَنْ أنس قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ الرَّجُلُ مِنَّا

او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې يو کس عرض وکړو چې يا رسول الله صلی الله علیه وسلم! مونږ کې چې

يَلْقَى أَخَاهُ أَوْ صَدِيقَهُ أَيَنْحَنِي لَهُ؟ قَالَ:

څوک کله د خپل مسلمان ورور يا د خپل دوست سره ملاقات وکړي نو آيا هغه ښکته شي؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل

لَا. قَالَ: أَفَيَلْتَزِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ؟ قَالَ:

نا. هغه سړي وويل چې آيا د هغې سره غاړه ملاو کړي او هغه ښکل کړي؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم و فرمایل

لَا. قَالَ: أَفَيَأْخُذُ بِيَدِهِ وَيُصَافِحُهُ؟

نا. هغه سړي وويل چې د هغې لاس خپل لاسونو کې نېولو سره د هغې سره مصافحه وکړي؟

---

(1) رقم الحديث ۴۶۷۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۲۶/۱۰ رقم الحديث ۵۹۹۷ ومسلم في ۱۸۰۸/۴ رقم الحديث ۲۳۱۸.

(2) رقم الحديث ۴۶۷۹ أخرجه ابوداود في السنن ۳۸۸/۵ رقم الحديث ۵۲۱۲ والترمذي في ۷۰/۵ رقم الحديث ۲۷۲۷.

| |
|---|
| قَالَ: نَعَمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[۱] |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل آؤ. |

**توضيح** قال لا: يعني د سلام کولو وخت کې ښکته کېدل منع دي. دې سره د بدعت او شرک دروازه کولاوېدلی شي. دې حديث کې چې څنګه د سلام کولو وخت کې د ښکته کېدلو نه منع شوې ده. همدغه شان د يو بل سره غاړه په غاړې د معانقه کولو نه هم منع شوي ده. او لاس وغيره ښکلول هم منع کړی شوي دي.
فقهاؤ ليکلي دي چې که د لاس ښکلو د دنيا په غرض وي نو دا په اتفاق سره مکروه تحريمي دي، خو که د مور او پلار يا د استاذانو يا د مشائخو او د الله والو لاس ښکل کړي نو دا جائز دي، خو د دنيا دار لاس وغيره د دنيا په غرض ښکلول جائز نه دي. لهذا د ممانعت صورت د همدغه منع شوي صورتونو سره دی. (مرقات۸/۴۶۲)

## د سلام پوره طريقه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم قَالَ: " تَمَامُ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ |
| او د حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل د مريض پوره بيمار پرسي ده |
| أَنْ يَضَعَ أَحَدُكُمْ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ أَوْ عَلَى يَدِهِ فَيَسْأَلَهُ: |
| دا چې تاسو کې يو خپل لاس د هغې په تندي باني يا د هغې په لاس کېږدئ او بيا تر هغه پوښتنه وکړئ |
| كَيْفَ هُوَ؟ وَتَمَامُ تَحِيَّاتِكُمْ |
| چې د دې څه حال دی؟ او ستاسو پوره سلام چې تاسو يې خپل مينځ کې کوئ مصافحه ده يعنې کله |
| بَيْنَكُمُ الْمُصَافَحَةُ". رَوَاهُ أَحمد وَالتِّرْمِذِيّ وَضَعفه[۲] |
| چې تاسو سلام کوئ نو مصافحه هم کوئ چې سلام پوره شي. |

## د سفر نه راتلونکي سره معانقه او تقبيل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَدِمَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ الْمَدِينَةَ |
| او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو ځل زيد ابن حارثه مدينې ته راورسيدلو نو هغه وخت |
| وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِي فَأَتَاهُ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما کور کې ؤ. زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ (خدمت کې د حاضرېدلو لپاره زما کورته) راغلو |

(۱) رقم الحديث ۴۶۸۰ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۷۰ رقم الحديث ۲۷۲۸ وابن ماجه في ۲/۱۲۲۰ رقم الحديث ۳۷۰۲.
(۲) رقم الحديث ۴۶۸۱ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۷۱ رقم الحديث ۲۷۳۱ وأحمد في المسند۵/۲۶۰ .

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَرَعَ | الْبَابَ | فَقَامَ | إِلَيْهِ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | عُرْيَانًا |

او دروازه يې وټکوله. نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لوڅ بدن خپلي ټوټې يعني څادر وا چولو او د زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

يَجُرُّ ثَوْبَهُ وَاللهِ مَا

سره د ملاوېدلو لپاره بهر راوتلو قسم په خدائ چې ما دې نه مخکې او د دې نه وروسته نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لوڅ نه دى ليدلى

رَأَيْتُهُ عُرْيَانًا قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ

(يعني كله هم داسې نه دې شوي چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استقبال په وخت كې د دغه شان د شوق او ارمان اظهار كړى وي

فَاعْتَنَقَهُ وَ قَبَّلَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

او د هغې سره د ملاوېدلو لپاره لوڅ بدن بهر وتلى وي) بهرحال نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له غاړه وركړه او ښكل يې كړو.

**توضيح: فاعتنقه:** يعنې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره معانقه وكړه. د دې حديث نه د معانقې او د تقبيل ثبوت ملاوېږي. راتلونكي د حضرت جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث نمبر ۱۰ نه هم د معانقې او تقبيل ثبوت ملاوېږي. فقهاؤ هم دغه اختيار كړى دى چې دا جائز دي. چرته چې د ممانعت روايت دى. هغه دې تقبيل باندې محمول دى. چې كوم د دنيا به غرض وي. (مرقات ۸/۴۶۳)

**عريانا:** يعنې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صرف لنګ اغوستى ؤو. بدن يې بيخي لوڅ نه ؤو. (مرقات ۸/۴۶۳)

## معانقه جائز ده

﴿۷﴾ وَعَنْ أَيُّوبَ بْنِ بُشَيْرٍ عَنْ رَجُلٍ مِنْ عَنَزَةَ أَنَّهُ قَالَ:

او حضرت ايوب ابن بشير د عنزه قبيلې د يو سړي نه روايت كوي چې هغې بيان وكړو چې ما د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

قُلْتُ لِأَبِي ذَرٍّ: هَلْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وپوښتل كله به چې تاسو د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملاقات كولو نو آيا نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به

يُصَافِحُكُمْ إِذَا لَقِيتُمُوهُ؟ قَالَ: مَا لَقِيتُهُ قَطُّ

تاسو سره مصافحه هم كوله؟ حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل ما چې كله هم د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملاقات كړى دى

إِلَّا صَافَحَنِي وَبَعَثَ إِلَيَّ ذَاتَ يَوْمٍ

نو نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما سره مصافحه كړې ده او د يوې ورځې واقعه ده چې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما راغوښتلو لپاره

وَلَمْ أَكُنْ فِي أَهْلِي فَلَمَّا جِئْتُ

ما پسې (يو سړى) راولېږلو. هغه وخت زه خپل كور كې موجود نه ؤوم. كله چې كور ته راغلم نو ما ته

---

[1] رقم الحديث ۴۶۸۲ أخرجه الترمذي في السنن ۵/۷۲ رقم الحديث ۲۷۳۲.

أُخْبِرْتُ فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ عَلَى سَرِيرٍ فَالْتَزَمَنِي

خبرا کړې شو، نو زه د نبي علیه السلام خدمت کې حاضر شوم، نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغه وخت په یو تخت باندې ناست ؤو.

فَكَانَتْ تِلْكَ أَجْوَدَ وَأَجْوَدَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

نبي علیه السلام ماله غاړه راکړه او دا غاړه راکول (لطف او سرور په اعتبار سره د مصافحې په نسبت) غوره ؤو، څه ډیر غوره ؤو.

## د حضرت عکرمه رضي الله عنه راتلو باندې معانقه

﴿۸﴾ وَعَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ أَبِي جَهْلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عکرمه رضي الله عنه بن ابو جهل فرمایي چې (د فتح مکې په ورځ چې زه د اسلام قبولو لپاره) د نبي کریم صلی الله علیه وسلم

يَوْمَ جِئْتُهُ: مَرْحَبًا

خدمت کې حاضر شو، نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم (ما ته په کتلو سره) وفرمایل (د الله او د رسول له

بِالرَّاكِبِ الْمُهَاجِرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

اړخه یا د دار الحرب نه د را الاسلام اړخ ته) هجرت کونکي سپور ته هر کلي.

**توضیح:** د فتح مکې په موقع کې عکرمه بن ابی جهل د مسلمانانو مقابلې ته راغلی ؤو، خو د حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه په لاسو یې ماتې وخوړله او د یمن اړخ ته په تښتیدو شو. د هغې ښځه مسلمانه شوې وه. هغې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه امان عکرمه لپاره امان وغوښتلو. دا راتګ یې د همغه موعې دی. نبي کریم صلی الله علیه وسلم د تلطف په توګه هغه ته "الراکب" او "المهاجر" په نوم سره یا د کړو ځکه او ښ باندې سپور راراوان ؤو او د کفر نه یې د اسلام اړخ ته هجرت کول. تفصیلي روایت کې د معانقه ذر کید. دې حدیث نه د مسافر راتګ باندې د استقبال ثبوت هم ملاویږي او د مبارک باد الفاظ هم ملاویږي. (مرقات ۸/۴۶۴)

## د یو سړي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ښکولو لو عجیبه قصه

﴿۹﴾ وَعَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ: بَيْنَمَا

او حضرت اسید ابن حضیر رضي الله عنه چې د انصارو نه ؤو، د هغې باره کې روایي فرمايي چې هغه وخت کله چې (اسید)

هُوَ يُحَدِّثُ الْقَوْمَ وَكَانَ فِيهِ مُزَاحٌ بَيْنَا يُضْحِكُهُمْ

د خلکو سره خبې کولې او د هغې په مزاج کې خوش طبیعتي او ظرافت ؤو د هغې سره خلکو خندل نو

[1] رقم الحدیث ۴۶۸۳ اخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۹۰ رقم الحدیث ۵۲۱۴.

[2] رقم الحدیث ۴۶۸۴ اخرجه الترمذي في السنن ۵/۷۴ رقم الحدیث ۲۷۳۵.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَطَعَنَهُ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فِي | خَاصِرَتِهِ | بِعُودٍ |

نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (ازراه مزاق) هغه په يو لرګي وسکونډو. هغې نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ: | أَصْبِرْنِي. | قَالَ: | أَصْطَبِرْ. | قَالَ: |

وفرمايل چې ماله د دې سکونډلو بدله راكړه. نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې زما نه بدله واخله، هغه وويل

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | عَلَيْكَ | قَمِيصًا | وَلَيْسَ | عَلَيَّ | قَمِيصٌ | فَرَفَعَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

چې د ستاسو په بدن باندې جامه شته دی او زما په بدن باندې جامه نشته دی، نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَنْ | قَمِيصِهِ | فَاحْتَضَنَهُ | وَجَعَلَ | يُقَبِّلُ | كَشْحَهُ | قَالَ: |

خپله قرتئ راواخستله. اسيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغې نه غاړه واخستله او د غاړې ښکولول يې ورله شروع كړل او وې ويل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | أَرَدْتُ | هَذَا | يَا | رسولَ | الله.رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُد | [1] |

چې يا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ما صرف همدغه غوښتل (يعني د بدن مبارك ښكولو). (ابوداؤد)

**توضيح**: رجل: مصابيح كې د رجل لفظ مجرور دی. چې د اسيد بن حضير صفت تی. د دې نه دا وهم پيدا كيږي چې د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چې د بدلې چې كومه واقعه ذكر ده، دا انصار د لويې شان والا مشهور صحابي اسيد بن حضر دی، خو د ګپ انداز يې د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شان خلاف دی. لهذا دا واقعه د بل كوم كس ده. چې طبيعيت كې مزاح ؤو او هغه هم د انصارو نه ؤو. دا قعې مشهور صحابي حضرت حضرت اسيد بن حضير بين كړې ده. د دې خبرې تائيد د جامع الاصول د روايت نه كيږي. هلته د رجلا لفظ دی، نو عبارت دسې دی "عن اسيد بن حضير قال ان اجلا من الانصار كان فيه مزاح" بهر حال صحيح او راجح همدغه ده چې د حضرت اسيد بن حضير د دې حديث راوي دی. قصه او واقعه د بل چا ده. (مرقات۸/۴۶۵)

**اصبرني**: يعني زه ستا نه بدله اخلم، نو ځكه تاسو ماته صبر وكړې. مطلب دا د دی چې ماله بدل راكړه. (مرقات۸/۴۶۶)

**اصطبر**: يعني زه به د بدله دركولو لپاره صبر وكړم. ته خپله بدله واخله.

**مرسلا**: دې حضراتو دا روايت د ارسال په طريقه نقل كړې دی خو په شرح السنة كې د بياضی په حوال دا حديث متصل كړی شوی دی. بياضي د بياضه بن عامر ارخ ته منسوب دی. د بياضی ذكر چې مطلق چرته وي، هلته عبدالله بن جابر انصاري مراد وي. (مرقات۸/۴۶۶)

[1] رقم الحديث ۴۶۸۵ أخرجه ابوداود في السنن ۳۹۵/۵ رقم الحديث ۵۲۲۴.

## د تندي ښکلول ثابت دي

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنِ الشَّعْبِيِّ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَلَقَّى جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ |
| او حضرت شعبی فرمايي چې نبي كريم ﷺ د حضرت جعفر بن ابی طالب سره ملاو شو نو |
| فَالْتَزَمَهُ وقبّلَ مابين عَيْنَيْهِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ |
| هغه له يې غاړه وركړه او هغه يې د سترګو په مينځ كې ښكل كړو. دا روايت ابوداؤد او شعب الايمان كې |
| فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ مُرْسَلًا وَفِي بَعْضِ نُسَخِالْمَصَابِيحِ وَفِيشرح السّنة |
| بيهقی په د ارسال په طريقه نقل كړى دى خو د مشكوة په ځينو مسخو او شرح السنة كې دا روايت د |
| عَنِ البياضي مُتَّصِلًا[1] |
| بياضى نه د اتصال په طريقه رانقل كړى شوى دى. |

**توضيح: جعفر بن ابي طالب:** حضرت جعفر طيار اول د مكې نه حبشې ته هجرت وكړو او بيا د هلته نه مدينې ته هجرت وكړو. زير بحث حديث كې د همدغه حبشې نه مدينې ته د هجرت ذكر دى. د نبي كريم ﷺ چې د جضرت جعفر رضي الله عنه سره د ملاقات كوم ذكر دى هغه د همدې موقع دى.

**قبل بين عيينه:** د دې نه د اندې ښكولو ثابتېږي. (مرقات۸/۴۶۸)

## د جعفر رضي الله عنه په راتګ باندې خوشحالي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ فِي قِصَّةِ رُجُوعِهِ مِنْ أَرْضِ الْحَبَشَةِ |
| او حضرت جعفر ابن ابی طالب د حبشې د زمكې نه د بېرته راتللو واقعه بيانوي او وايي چې مونږ د حبشه نه |
| قَالَ: فَخَرَجْنَا حَتَّى أَتَيْنَا الْمَدِينَةَ |
| راروان شو او مدينې ته رسيدلو سره د نبي كريم ﷺ (خدمت كې حاضر شو او د نبي كريم ﷺ سره) |
| فَتَلَقَّانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاعْتَنَقَنِي ثُمَّ قَالَ: " مَا أَدْرِي: |
| مو ملاقات وكړو. نبي كريم ﷺ ماله غاړه راكړه او ويې فرمايل چې زه نه شم ويلى چې زه |
| أَنَا بِفَتْحِ خَيْبَرَ أَفْرَحُ أَمْ بِقُدُومِ |
| د خيبر د فتح كېدو په وجه زيات خوشحاله يم يا كه د جعفر په بېرته راتللو په وجه، او اتفاقًا حضرت |

[1] رقم الحديث ۴۶۸۶ أخرجه ابوداود في السنن ۳۹۲/۵ وأخرجه البغوي في شرح السنة ۲۹۰/۱۲ رقم الحديث ۳۲۲۷.

جَعْفَرٍ؟. وَوَافَقَ ذَلِكَ فَتْحَ خَيْبَرَ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السّنة "[۱]

جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په همدغه ورځ راغلی ؤو چې په کومه خیبر فتح شوی ؤو.

## ښپې ښکولول څنګه دي؟

﴿۱۲﴾ وَعَن زارعٍ وَكَانَ فِي وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ قَالَ: لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ

او حضرت زارع چې د عبدالقیس په وفد کې شامل ؤو، وایي چې کله مونږ مدینې ته ورسیدلو نو

فَجَعَلْنَا نَتَبَادَرُ مِنْ رَوَاحِلِنَا فَنُقَبِّلُ يَدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجله. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[۲]

د خپلو سورلو نه ژر ژر راکوشو نو مونږ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاسونه او پښې ښکل کړې. (ابوداؤد)

**توضیح**: ورجله: یعنې مونږ د سورلو نه کوز شو او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورغلو او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس او پښې مو ښکل کړې. لاس او د تندي په ښکولو کې څه خاص مسئله نشته دی، ځکه د دین والو تندی او لاسونه ښکلو د حدیثونو نه ثابت دي. که دنیوي غرض نه وي نو ښکولو کې هیڅ باک نشته دی. البته پښو ښکولو کې ښکته کېدنه کېږي چې د سجدې صورت ترېنه پیدا کېږي. دې کې کلام دی. که کوم کس پلنګ وغیره اوجت ځای باندې ولاړ او کوم کس د هغې پښې ښکولو او د سجدې صورت نه جوړېږي، نو دې کې بحث نشته دی. بحث په دې کې دی چې پښې ښکولو کې چې د سجدې کوم صورت جوړوېږي، د هغې څه حکم دی؟

د احنافو څه علماء دا جائز ګڼي او دا د سجده تعظیمي نه جدا ګڼي او وايي چې دې کې نه د عبدات والا سجده شته او نه د تعظیم والا سجده شته دی. دا صرف د احترام او اکرام یو صروت دی. "**عمدة الفقه**" کې حضرت مولانا متقی محمد شفیع رحمه الله په احسن الفتاوی کې د مفتي رشید احمد رحمه الله دا جائز لکیلي دي. حضرت مفتي محمد شفیع رحمه الله خو د دې د ثابتولو او د دلائل پیش کولو ډېر کوشش کړی دی. د بحث لاندې حدیث کې د دې حضراتو لويې دلیل دی، خو عام فقهاء د پښو ښکولو جائز نه ګڼي او د بحث لاندې حدیث د پیغمبر په خصوصیت باندې حمل کوي. او د پښو ښکولو ښه نه ګڼي. بنده عاجز هم د همدغه فقهاؤ رائی خوښوي کومو چې د پښو ښکولو ناخوښ عمل ګڼي. او حدیث په پیغبري باندې حمل کوي. یا دا چې په ابتداء کې دا عمل جائز ؤو بای منع شو یا به یې بله کومه وجه وي. بهرحال پښو ټېټېدل او د هغې ښکولو د اسلامي تعلیماتو د روح منافي دي.

---

([۱]) رقم الحدیث ۴۶۸۷ أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۲/۲۹۰ رقم الحدیث ۳۳۲۷.

([۲]) رقم الحدیث ۴۶۸۸ أخرجه ابوداود في السنن ۵/۳۹۵ رقم الحدیث ۵۲۲۵

## د حضرت فاطمه رضي الله عنها عمل

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي طور طريقه، عادات او ورش او نيک خصلتي او يو روايت کي دي چي |
| كَانَ أَشْبَهَ سَمْتًا وَهَدْيًا وَدَلًّا. |
| خبري اتري او په کلام کي د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مشابهت کي د فاطمه رضي الله عنها نه زيات بل څوک نه |
| وَفِي رِوَايَةٍ حَدِيثًا وَكَلَامًا بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فَاطِمَةَ |
| ليدلی (يعني حضرت فاطمه رضي الله عنها په هغه کارونو کي د نبي کريم صلى الله عليه وسلم سره زيات مشابه وه) |
| كَانَتْ إِذَا دَخَلَتْ عَلَيْهِ قَامَ إِلَيْهَا فَأَخَذَ بِيَدِهَا فَقَبَّلَهَا وَأَجْلَسَهَا فِي مَجْلِسِهِ |
| فاطمه رضي الله عنها به چي کله د نبي کريم صلى الله عليه وسلم خدمت کي حاضريدله نو پيا به يې هغه خپل د ناستي ځای کي کښنوله، |
| وَكَانَ إِذَا دَخَلَ عَلَيْهَا قَامَتْ إِلَيْهِ |
| همغه شان به چي نبي عليه السلام کله د فاطمه رضي الله عنها خوا لاړو نو فاطمه رضي الله عنها به ليدلو سره اودريدلو. |
| فَأَخَذَتْ بِيَدِهِ فَقَبَّلَتْهُ وَأَجْلَسَتْهُ فِي مجلسِها. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| د نبي عليه السلام لاس به يې په لاس ونيولو او نبي عليه السلام به يې ښکلو کړو او خپل ځای باندې به يې کښنولو. |

**توضيح**: سمتاً: طور او طريقي ته وايي. (مرقات۸/۴۶۸)

هدياً: عادت او د روش په معنی کي دی. (مرقات۸/۴۶۸)

ودلاً: تګ راتګ او مزل ته وايي. دې الفاظو کي ترادف هم او معمولي تغاير هم دی. (مرقات ۴۶۸/۸)

د حضرت فاطمه رضي الله عنها د عمل نه معلوميږي چي د لاس ښکولو جائز دي. دې کي هيڅ کلام نشته دی. ښکولو جائز هم دي او اولاد له دې باندې عمل هم کول پکار دی. مور او پلار که د شفقت په توګه د خپل اولاد لاس ښکول کړي نو دا جائز دي خو دا په محبت او شفقت باندې محمول امور دي. دا کاروبار جوړول پکار نه دی.

---

[1] رقم الحديث ۴۶۸۹ اخرجه ابوداود في السنن ۳۹۱/۵ رقم الحديث ۵۲۱۷ والترمذي في ۶۵۷/۵ رقم الحديث ۳۸۷۲.

## د حضرت صديق رضي الله عنه عمل

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَوَّلَ مَا قَدِمَ الْمَدِينَةَ |
| او حضرت براء رضي الله عنه فرمايي چې ما يو ځل د يوې غزوې نه حضرت ابو بکر رضي الله عنه مدينې ته راتلو سره د هغې |
| فَإِذَا عَائِشَةُ مُضْطَجِعَةٌ قَدْ أَصَابَتْهَا حُمَّى |
| سره لاړم نو څه وينم چې د هغې کور حضرت عائشه رضي الله عنها پرته ده او تبه يې ده، نو حضرت ابو بکر رضي الله عنه |
| فَأَتَاهَا أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ: كَيْفَ أَنْتِ يَا بُنَيَّةُ؟ |
| هغې له ورغلو او وې پوښتل چې زما لورې ستا طبيعت څنګه دی او هغې د شفقت او د محبت يا |
| وَقَبَّلَ خَدَّهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| سنتو د لحاظ ساتلو د وجې نه يې د هغه مخ ښکل کړو. |

## اولاد د کشمالي د ګل پشان دی

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِصَبِيٍّ |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم خدمت کې يو ماشوم راوړلی شو. |
| فَقَبَّلَهُ فَقَالَ: أَمَا إِنَّهُمْ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ |
| نبي کريم صلى الله عليه وسلم هغه ښکل کړو او وې فرمايل چې خبر شئ او دا اولاد د بخل او وېرې سبب دی |
| وَإِنَّهُمْ لَمِنْ رَيْحَانِ اللهِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ[2] |
| خو دې کې هم شک نشته دی چې اولاد د خدای ورکړې شوی نعمت او رزق هم دی. |

**توضيح: مبخلة**: اولاد د بخل ذريعه ده. د دې مطلب دا دی چې کله د سړي اولاد نه وي نو لاس يې کولاو وي، د هغې هيڅ څيز بندې پروا نه وي. په پټو سترګو خرچ کوي، خو چې د چورګوټو پشان اولاد راشي نو بيا سړی سوچ کوي چې اوس د دې بچو د ساتلو لپاره روپۍ بچت کولو ضروري ده. او دغه شان سړی بخل شروع کړي او بيا يې په ځان هم خرچ نه کوي. (مرقات ۴۶۹/۸)

(۱) رقم الحديث ۴۶۹۰ أخرجه ابوداود في السنن ۳۹۳/۵ رقم الحديث ۵۲۲۲

(۲) رقم الحديث ۴۶۹۱ أخرجه البغوي في شرح السنة ۳۵/۱۳ رقم الحديث ۳۴۴۸.

**مجبنة**: د سړي چې اولاد نه وي نو په زړه ورتيا د جنګ ميدان ته وردانګي. نه هغې سره خپل فکر وي او نه د ژوند فکر وي خو که اولاد يې وي نو دا سړی په احتياط بيا ژوند تېروي او وايي چې وروه زما واړه واړه بچې دي. زه جنګ نه کوم د غه شان هغه زړ زړی شي. (مرقات۸/۴۶۹)

**ريحان الله**: يعني د خوشبودار ګلانو پشان دا ماشومان ګرځې راګرځې. عام مور او پلار ماشومان پوزې ته رانژدي کړي او بويې کوي يې. د ريحان نه رزق هم مراد اخستل کېدی شي چې دا د الله له اړخه رزق دی. (مرقات۸/۴۶۹)

## الفصل الثالث

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ عَن يعلى قَالَ: إِنَّ حسنا وحُسيناً رَضِي الله عَنْهم اسْتَبَقَا |
| حضرت يعلى رضي الله عنه فرمايي چې حسن رضي الله عنه او حسين رضي الله عنه د کوم ځاى نه منډه د |
| إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَمَّهُمَا إِلَيْهِ وَقَالَ: |
| نبي کريم صلى الله عليه وسلم خوا له راغلل نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم هغې دواړو له غاړه ورکړه او ويې فرمايل |
| إِنَّ الْوَلَدَ مَبْخَلَةٌ مجبنَةٌ. رَوَاهُ أَحْمد[1] |
| چې ماشومان د بخل سبب دى او د وېرې سبب دى. |

## هديه ورکوئ محبت به ډېرېږي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَطَاءٍ الْخُرَاسَانِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عطاء خراسانى نه روايت دى چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل خپل مينځ کې د يو بل |
| تَصَافَحُوا يَذْهَبُ الْغِلُّ وَتَهَادَوْا |
| سره مصافحه کوئ، دې سره بغض او کينه ختمېږي او خپل مينځ کې د يو بل ته هديه او تحفه لېږئ، |
| تَحَابُّوا وَتَذْهَبِ الشَّحْنَاءُ رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا[2] |
| دې سره محبت زيا تېږي او د دښمنى ختمېږی. |

---

([1]) رقم الحديث ۴۶۹۲ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۲۰۹/۲ رقم الحديث ۳۶۶۶ وأحمد في المسند ۱۷۲/۴.

([2]) رقم الحديث ۴۶۹۳ أخرجه مالک في المؤطأ ۹۰۸/۲ رقم الحديث ۱۶.

**توضیح:** کینه او حسد او عداوت ته **الغل** وایي. غَین باندې زیر دی. (مرقات۴۷۱/۸)

**الشحناء:** د زړه دننه چې کومه کینه وي هغې ته شحناء وایي مراد ترېنه دښمني ده(مرقات۴۷۱/۸)

## مصافحه کولو سره ګناهونه رژېږي

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ |
| او د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چا چې د غرمې |
| صَلَّى أَرْبَعًا قَبْلَ الْهَاجِرَةِ فَكَأَنَّمَا صَلَّاهُنَّ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ وَالْمُسْلِمَانِ |
| نه مخکې څلور رکعته لمونځ وکړو. هغې ګویا کې هغه څلور رکعته په شب قدر کې ولوستل او مسلمانان |
| إِذَا تَصَافَحَا لَمْ يَبْقَ بَيْنَهُمَا ذَنْبٌ إِلَّا سَقَطَ . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[1] |
| چې کله خپل مینځ کې مصافحه کوي نو د هغې دواړو مینځ کې هیڅ ګناه نه پاتې کېږي بلکې رژېږي. |



[1] رقم الحديث ۴۶۹۴ أخرجه البيهقي في الشعب ۴۷۴/۶ رقم الحديث ۸۹۵۵.

# باب القیام

## تعظیماً د اودریدلو بیان

قیام د اودریدلو په معنی کې دی، خو دلته مطلق د اودریدلو خبره نه ده بلکې د یو راتلونکې مخې ته د تعظیم لپاره د احتراماً اودریدو بیان دی ځینو حدیثونو کې د دې قیام ډېر سخت ممانعت راغلی دی نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ځان لپاره د دې قیام ډېر سخت ممانعت کړی دی او دې ته یې د عجمو طریقه ویلي ده خو د حدیثونو نه د قیام اجازت معلومېږي، ځکه دې مسئله کې د فقهاؤ اختلاف دی.

**د علماؤ اختلاف**: حدیثونو، روایتونو او په واقعاتو کې د اختلاف په وجه د علماء کرامو په مینځ کې اختلاف راغلی دی چې تعظیماً او احتراماً د چا لپاره وردېدل جائز دي یا جائز نه دي؟

**دلائل**: کوم علماء چې دا منع کوي، هغوی فرمایي چې د قیام په ممانعت کې ډېر حدیثونه راغلي دي. هغې کې سخت وعید دی. او دې لره د اغیارو کافر عجمو طریقه ګرځولو باندې منع کړې شویده. مثلاً حدیث نمبر ۴، ۵ او ۶ کې په واضحه الفاظو سره دې قیام ته ناجائزه ویلی شوی دی. دا قیام مکروه بلکې بدعت دی. (مرقات۸/۴۷۳)

کوم علماء چې دې ته جائز وایي. هغوی د حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حدیث نمبر اول نه استدلال کوي. چې هغې کې د "قوموا الی سیدکم" الفاظ راغلي دي. دغه شان په حدیثونو کې دي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت فاطمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا لپاره ودریدلی ؤو. دا ټول د جواز دلائل دي. (مرقات۸/۴۷۳)

جواب: د علماؤ کومه طبقه کې قیام منع کوي، هغوی د قیام د جواز د روایتونو جواب داسې کوئ چې د حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ واقعه د هغې په مجبورۍ باندې حمل کوي چې هغه زخمي ؤو. خپلې سورلۍ نه خپله نشو راکوزېدلی، ځکه نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل! **"قوموا الی سیدکم"** یعنې د دې لپاره ودرېږئ. که چرې د احترام او تعظیم خبره وی نو نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به **"قوموا لسیدکم"** فرمایلی وی. باقي د حضرت عکرمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وغیره روایتونه ډېر ضعیف دي.

د علماؤ دویمه ډله چې د قیام د جواز قائل دي. هغوی د قیام د ممانعت د حدیثونو دا جواب کوي چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عجمیانو په طریقه د اودرېدلو نه منع کړې ده او هغه یقیناً ممنوع ده ځکه هغوی کې به لوی کَس په مجلس کې ناستی ؤو. تر څو پورې به چې هغه ناستی ؤو نو خلک به د هغې د تعظیم لپاره اودرېدل بلکې د اودرېدلو پابند به ؤو. هغوی به په خپله خوښه نه شول کیناستلی او د مجلس پرواؤ به دا اودرېدل غوښتل، بلکې حکم به یې ورکولو. د دغه شان د

اودرېدلو په حرمت او بدعت کې څه شک دی؟ دا خو د ټولو په نزد حرام دی، خو که د يو صاحب فضل او بزرګۍ والا کس لپاره فقط د احترام او ديني محبت په بنياد څوک ودرېږي. هغه عالم او فاضل هغه قيام هم نه خوښوي، نو د جمهورو علماؤ په دې باندې اتفاق دی چې داسې اودرېدل جائز دي. علامه طيبي رحمه الله او محی السنة ليکلي دي چې د صالحينو او علماؤ، بزرګانو او د اولياؤ لپاره د ديني محبت په بنياد اودرېدل جائز دي. (الکاشف :۹/۴۹)

**مطالب المؤمنين** د "قنيه" په حواله ليکلي دي چې کوم کس قيام کول غواړي نو هغې له د ځان خوښي په وجه دا قيام مکروه دی، خو څوک چې صاحب احترام وي او د هغه د قيام طلب هم نه کوي نو د هغې لپاره به اا ودرېدل مکروه نه وي.

قاضي عياض مالکی ليکي چې حديثونو کې د منع شوي قيام نه هغه قيام مراد دی چې کوم به عجمي خلکو کولو چې کيناستونکي کس په احترام کې به د آخر پورې کيناستلو. او هغې پابند به ؤو. دا مکروه او منع دی. (مرقات۸/۴۷۴)

**خلاصه**: او محاکمه د دې ټول بحث دا ده چې کوم کس صاحب اکرام وي، ولي کامل او نيک وي، هغې د خپل ځان لپاره د چا قيام هم نه خوښوي او يو د دنيوي غرض نه بغير خالص د ديني محبت په بنياد د هغې د احترام لپاره ودرېږي او دا قيام د عجميانو په طرز هم نه وي، نو دي قيام کې هيڅ باک نشته دی. د کومو حديثونو نه چې د جواز پته لږېږي هغه په همدغي باندې محمول دي.

خو که يو کس عالم او فاضل نه دی يا عالم فاضل دی، خو دا قيام غواړي نو د هغې لپاره دا قيام منع دی. او که يو دنيا داره کس دی او د دنيوي غرضونو په خاطر خلک د هغې لپاره ودرېږي او د زړه نه هغه خوښوي، نو دا سخت منع دی. کومو حديثونو کې چې د قيام منع راغلي ده. هغه همدغه قيام باندې محمول ده.

## الفصل الأول

### حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د مجلس د خلکو پاڅيدل

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَن أَبِي سعيد الْخُدرِيّ قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدٍ |
| حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې کله بنو قرظه د حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حکم او ثالث جوړولو |
| بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِ |
| باندې راکوز شول نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو سړی حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پسې ولېږلو. هغه وخت د |
| وَكَانَ قَرِيبًا مِنْهُ فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ |
| حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قيام ګاه سره نزدې ناست ؤو، نو هغه به خر باندې سپور راغلو |
| فَلَمَّا دَنَا مِنَ الْمَسْجِدِ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلأَنْصَارِ: |
| او چې جومات ته رانېژدې شو نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (د دې ليدلو سره) و فرمايل چې ای انصارو! تاسو |

| |
|---|
| قُومُوا إِلَى سَيِّدِكم . مُتَّفق عَلَيْهِ .وَمَضَى الْحَدِيثُ بِطُولِهِ فِيبَابِ حِكَمِ الْإِسْرَاءِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| خپل سردار لپاره ودرېږئ. (بخاري او مسلم) او دا حديث پوره تفصيل سره د قيديانو په باب کې تېر شوی دی. |

**توضيح**: د دې باب په ابتدائی بحث کې د دې حديث تشريح او توضيح ده چې به تفصيل سره ليکلی شوې ده. او کتاب الجهاد کې په حکم الاسراء کې دا حديث تېر شوی دی. هلته يې تشريح وګورئ.

## څوک د خپل ځاې نه پاسول او خپله هلته کيناستل جائز نه دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| لَا يُقِيمُ الرَّجُلُ الرَّجُلَ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ يَجْلِسُ فِيهِ |
| داسې پکار نه ده چې څوک کوم ځای کې ناست وي او هغه د هلته نا پاڅوئ او خپله کينئ، البته (د ناستې) |
| وَلَكِنْ تَفَسَّحُوا وَتَوَسَّعُوا (مُتَّفق عَلَيْهِ)[2] |
| ځای فرخه ساتئ او راتلونکي ته ځای ورکړئ (چې د پاڅوله حاجت نه وي). |

**توضيح**: ځينې خلک حيله او بهانه وکړې او بل د مجلس نه پاڅوي او خپله هلته کينې. دا جائز نه ده. په زوره پاڅول نو خو نور هم زيات مکروه او منع دي. مجلس کې فراخوالی پيدا کول پکار دي.

## مجلس نه د لږ وخت لپاره پاڅيدلو باندې د ځاې حکم

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:مَنْ قَامَ مِنْ |
| او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: څوک چې د خپل ځای |
| مَجْلِسِهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ. رَوَاهُ مُسلم[3] |
| نه پاڅيدلو او بيا هلته کېناستلو نو د هغه ځای زيات حقدار به همغه وي. |

**توضيح**: **فهواحق**: يعنې يو سړی د مجلس نه د لږ ساعت لپاره پاڅيدلو. که هغې خپل ځای باندې کومه نښانه کېښودله يا ژر بېرته راغلو نو دا سړی د خپل ځای د ټولو نه زيات مستحق او حقدار دی، خو که دا سړی ناوخته پورې رانغلو او د هغې په ځای بل څوک کيناستلو نو د ده حق بيا ختم شو. دغه شان که کوم ځای ونړولو او هلته يې څه څادر وغيره وغوړولو خو د ډېر ساعت پورې غيب ؤ نو بيا به

---

([1])رقم الحديث ۴۶۹۵ أخرجه البخاري في صحيحه ۴۱۱/۷ رقم الحديث ۴۱۲۱ ومسلم في ۱۳۸۸/۳ رقم الحديث ۱۷۶۸.

([2])رقم الحديث ۴۶۹۶ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۲/۱۱ رقم الحديث ۶۲۶۹ ومسلم في ۱۷۱۴/۴ رقم الحديث ۲۱۷۷.

([3])رقم الحديث ۴۶۹۷ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۷۱۵/۴ رقم الحديث ۲۱۷۹ ،والرمذي في السنن ۸۳/۵ رقم الحديث ۲۷۵۱

هم د هغې ځای د هغې د لاس نه وځي اګر که هغې نابښنه هم ښېښي ده. د دې نه معلومه شوه چې جومات د ځان لپاره ځای دغه شان خاص کول پکار نه دي چې بل پرې نه شي کيناستلی. (مرقات۸/۴۷۵)

## الفصل الثاني

### نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ځان لپاره او درېدل نه خوښول

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ أَنَسِ بنِ مَالِكٍ قَالَ: لَمْ يَكُنْ شَخْصٌ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُم ته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه زيات محبوب او |
| وَكَانُوا إِذَا رَأَوْهُ لَمْ يَقُومُوا |
| عزيز بل هيڅوک نه ؤو خو (د دې محبت او تعلق باوجود) صحابه کرامو به چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وليدلو نو نه به او درېدل، ځکه |
| لِمَا يَعْلَمُونَ مِنْ كَرَاهِيَتِهِ لِذَلِكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| هغوی پوهېدل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا او درېدل نه خوښوي. دا روايت ترمذي نقل کړی دی |
| وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ[1] |
| او ويلي يې دي چې دا حديث صحيح دی. |

**توضيح** نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ځان لپاره اودرېدل نه خوښول. دا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انکساري او عاجزي وه. او دا اودرېدل **سداً للذراع** هم ؤو. که نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اودرېدل رواج کړی وی نو معلومه نه ده چې خبره به د کوم ځای نه کوم ځای ته رسيدلې دی. لهذا مختلفو وختونو او مقاماتو او حالاتو ته به کتل غواړي چې کوم صورتونو کې د قيام ممانعت دی. او کوم کوم صورتونو کې اباحت دی. تفصيل مخکې تېر شوی دی. (مرقات۸/۴۷۶)

### خلک خپلې مختې ته ودرولو سخت وعيد

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ سَرَّهُ |
| او حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: څوک چې دا خبره خوښوي |
| أَنْ يَتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد[2] |
| چې خلک د هغې مخې ته نيغ ولاړ وي نو هغې له پکار ده چې د خپلې ناستې ځای په دوزخ کې تيار کړي. |

[1] رقم الحديث ۴۶۹۸ أخرجه الترمذي في السنن ۸۴/۵ رقم الحديث ۲۷۵۴.

[2] رقم الحديث ۴۶۹۹ أخرجه ابوداود في السنن ۳۹۸/۵ رقم الحديث ۵۲۲۹ والترمذي في ۸۴/۵ رقم الحديث ۲۷۵۵

**توضیح** قیاماً: همغه د عجمیانو والا قیام مراد دی. چې غرور، تکبر، او چتوالی او زور زیاتی وي. چې یقیناً منع دی. نن سبا د جمعیت علماء اسلام په جلسو کې د مشرانو راتللو باندې پنډال والا ټول اودریږي. دا همغه ممنوع صورت دی چې ذکریې دې حدیث کې دی. دې مشرانو باندې واجب دي چې عوام د دې نه منع کړي او د وعید نه بچ شي. (مرقات۸/۴۷۶)

﴿۶﴾ وَعَن أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئًا عَلَى عَصًا

او حضرت ابو امامه رضي الله عنه فرمايي چې يو ورځ نبي کريم صلی الله علیه وسلم د همسا مبارکې په مرسته بهر راؤتلو

فَقُمْنَا إِلَيْهِ فَقَالَ: لَا تَقُومُوا كَمَا

نو مونږ د نبي کريم صلی الله علیه وسلم په احترام کې اودريدلو. نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې تاسو داسې مه ودريږئ

يَقُومُ الأَعَاجِمُ يُعَظِّمُ بَعْضُهَا بَعْضًا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1]

لکه څنګه چې عجميان خلک اودريږي چې هغوی کې د ځينو ځينو تعظيم کوي.

﴿۷﴾ وَعَن سعيد بن أَبِي الحسن

او حضرت سعدی ابن ابو الحسن چې يو جليل القدر او ثقه تابعي او د حضرت حسن بصری ورور دی

قَالَ: جَاءَنَا أَبُو بكرة فِي شَهَادَةٍ

فرمايي چې يو ورځ حضرت ابوبکره صحابي مونږ له د ګواهۍ راکولو لپاره راغلو. يو سړی د هغې په احترام کې

فَقَامَ لَهُ رَجُلٌ مِنْ مَجْلِسِهِ فَأَبَى أَنْ يَجْلِسَ فِيهِ وَقَالَ:

خپل ځای پريښودلو او اودريدلو خو هغې په ځای باندې د کيناستلو نه انکار وکړو او ويې فرمايل چې

أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ذَا

نبي کريم صلی الله علیه وسلم د دې نه منع کړې ده. او نبي کريم صلی الله علیه وسلم د دې خبرې نه هم منع کړې ده چې

وَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَمْسَحَ الرَّجُلُ يَدَهُ بِثَوْبِ مَنْ لَمْ يَكْسُهُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2]

څوک د داسې سړي په جامو باندې خپل لاس اوچ کړي کوم چې هغې ته جامې اغوستې دي.

**توضیح** فی شهادة: يعنې کوم مقدمه کې يې هغې له ګواهي ورکوله، ځکه راغلو. (مرقات۸/۴۷۷)

**فأبی**: حضرت ابوبکره ځکه انکار وکړو چې کېدی شي هغه کس د زړه نه خوشحاله نه ؤو. صصرف د

---

(۱) رقم الحديث ۴۷۰۰ أخرجه ابوداود في السنن ۳۹۸/۵ رقم الحديث ۵۲۳۰ وابن ماجه في ۱۲۱۱/۲ رقم الحديث ۳۸۳۶.

(۲) رقم الحديث ۴۷۰۱ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۵/۵ رقم الحديث ۴۸۲۷ وأحمد في المسند ۴۴/۵ .

رعايت په خاطر اودرېدلو او ځاى يې پرېښودلو. حضرت ابو بكره د تقوى او د احتياط په بنياد باندې داسې وكړل يا بله كومه عارضي وجه وه ځكه دا د عدالت او و محكمه عدالت ماحول ؤو. (مرقات۸/۴۷۷)

## كه مجلس ته بيرته راځئ نو ځان لپاره نښانه كېږدئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي الدرداءِ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جلس | | | |
| او حضرت ابودرداء رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به كله كيناستلو نو مونږ به د | | | |
| جلسنا | حوله | فَأَرَادَ | الرُّجُوعَ |
| نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه ګيرچاپيره كيناستلو او بيا به چې كله نبي كريم صلى الله عليه وسلم د بېرته تلو په اراده پاڅيدلو نو | | | |
| نَزَعَ نَعْلَهُ | أَوْ بَعْضَ | مَا يَكُونُ | عَلَيْهِ |
| (خپل ځاى) باندې به يې پڼې (پیزار) ويستل او كيښودل (او لوڅې پښې به لاړو) يا به يې د خپل بدن يو څيز | | | |
| فَيَعْرِفُ | ذَلِكَ | أَصْحَابُهُ | |
| (لكه څادر وغيره) هغه ځاى كې پرېښودلو. دې باندې به صحابه كرام پوهه شول چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم | | | |
| فَيَثْبُتُونَ. | رَوَاهُ | أَبُو دَاوُد[1] | |
| به مجلس ته بېرته راځې نو هغوى به په خپل خپل ځاى ناست ؤو. | | | |

## دوه كسانو كې ننوتل او كيناستل منع دي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عبد الله بن عَمْرو عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه نقل كوي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل |
| لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ[2] |
| د هيچا لپاره دا حلال نه دي چې هغه د ناستو دوه كسانو په مينځ كې د هغوى د اجازت نه بغير جدا والى راولي. |

**توضيح: ان يفرق:** يعنې كه دوه ملګري خبل مينځ كې ناستې وي او دريم سړى راشي او د هغوى په مينځ كې كيناستلو او د دواړو په مينځ كې جدائي راولي، دا منع دي، ځكه دا امكان لري چې هغه دواړه خپل مينځ كې ضروري خبرې كوي يا هسې هغوى وېرېږي او بله كومه ترجيحې وجه موجود

(۱) رقم الحديث ۴۷۰۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۸۰/۵ رقم الحديث ۴۸۵۴

(۲) رقم الحديث ۴۷۰۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۵/۵ رقم الحديث ۴۸۴۵ والترمذي في ۸۳/۵ رقم الحديث ۲۷۵۲.

وي. که دغه شان بله کومه مجبوري موجود نه وي نو بیا داسې کیناستلو کې هیڅ باک نشته دی. ځینې علماؤ د تفریق نه د دوه کسانو په مینځ کې نفاق او تفرقه پیدا کول مراد اخستی دی. بیا خو به مطلب ډېر واضحه شي.

راتلونکي حدیث کې دي چې که دا دواړه ملګري اجازت ورکوي نو بیا به په مینځ کې ناسته جائز وي. بهرحال د دې حدیث تعلق د ازدحام حالت سره دی.

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل |
| لَا تَجْلِسْ بَيْنَ رَجُلَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا : رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [1] |
| (د اول نه د ناست شوؤ) دوه کسانو په مینځ کې مه کینئ، خو دا چې که د هغوی اجازت وي. (ابو داؤد) |

## الفصل الثالث

## مجلس ختمیدو باندې قیام جائز دی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْلِسُ مَعَنَا فِي الْمَسْجِدِ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مونږ سره جومات کې کیناستلو |
| يُحَدِّثُنَا فَإِذَا قَامَ قُمْنَا قِيَامًا |
| او خبرې به یې کولې. بیا به چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پاڅیدلو نو مونږ به او دریدلو. او (تر ډېره پورې به) ولاړ وو. |
| حَتَّى نَرَاهُ قد دخل بعض بيوت أَزْوَاجه [2] |
| تر دې چې مونږ به ولیدل چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلو بیبیانو کې د یو کره لاړو. |

**توضیح: قمنا قیاماً:** د دې قیام تعلق د هغه قیام سره نه دی چې د کوم ممانعت راغلی دی. بلکې دلته یې قیام ځکه وکړو چې مجلس خلاص شو. لهذا اوس د کیناستلو هیڅ مقصد پاتې نه شو، نو د تللو لپاره او دریدل، خو د قیام په حالت کې به صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ شه لږ انتظار کولو، ځکه کېدی شي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بېرته مجلس ته راغلی وی یا هغې صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بل کوم حاجت پیښ شوی دی نو ځکه به صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ انتظار کولو. (مرقات ۴۷۹/۸)

---

([1]) رقم الحديث ۴۷۰۴ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۵/۵ رقم الحديث ۴۸۴۴.

([2]) رقم الحديث ۴۷۰۵ أخرجه البيهقي في شعب الايمان ۴۶۷/۶ رقم الحديث ۸۹۳۰.

## مجلس کې راتلونکي کس ته اهمیت ورکول سنت دي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَن وَاثِلَة بن الخطابِ قَالَ: دَخَلَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت واثله ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې يو سړی حاضر شو |
| وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ قَاعِدٌ فَتَزَحْزَحَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. |
| او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جومات کې ناست ؤو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه سړي ته (د ځائ ورکولو) لپاره د |
| فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللهِ |
| خپل ځای نه وخوزېدلو او يو اړخ ته وړاندې شو. هغه کس عرض وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! |
| إِنَّ فِي الْمَكَانِ سَعَةً. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ لِلْمُسْلِمِ لَحَقًّا |
| کور کې د ناستې ځای کافي فراخه دی. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دا د مسلمان حق دی چې |
| إِذَا رَآهُ أَخُوهُ أَنْ يَتَزَحْزَحَ لَهُ. رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شعب الْإِيمَان [1] |
| کله يې هغه يو مسلمان ورور په راتلو اوويني نو د هغې لپاره ځای پرېږدي او يو اړخ ته وړاندې شي. |

**توضيح**: **يتزحزح**: يعنې د راتلونکي سړي لپاره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل ځای نه اوخوزېدلو. هغه سړي ووېل چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ځای شته دی. ته صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مه بنوځېږه. دې باندې ورته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې يو نوي راتلونکي مسلمان دا حق دی چې د مجلس ورونه د هغې ليدلو سره وخوزېږي. دې کې خو يو ښه تهذيب دی او بل دا چې د دې سړي په راتلو باندې هغې ته اهميت ورکول دي. چې هغه به پرې ډېره خوشحاله شي چې خلکو زما راتګ بوج ونه ګڼلو. بلکې ماته يې اهميت راکړو. دې سره محبتونه زياتېږي. (مرقات۸/۴۸۰)



[1] رقم الحديث ۴۷۰۶ أخرجه البيهقي في الشعب ۶/۴۶۸ رقم الحديث ۸۹۳۳.

# باب الجلوس والنوم والمشي

# د ناستې، پرېوتلو او ګرځېدو بيان

اسلام دا چې کامل او پوره بلکې د ژوند اکمله ضابطه ده، ځکه دا د انساني ژوند د هري شعبې کفالت کوي دې سلسله کې اسلام خپل منونکو ته د اوده کېدلو، ويخېدلو، ګرځېدلو راګرځېدلو او د کېناستلو او پاڅېدلو طريقه ښايي. که چيرې يو کس معاشرتي ژوند کې د راتلونکو دې شيانو کې د شريعت نه رهنمائي نه حاصله وي نو لامحاله به د نورو قومونو په په تقليد کې ورک او ګمراه به شي.

## الفصل الاول

## ګونډه ماتول باندې ناسته جائز ده

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِفِنَاءِ الْكَعْبَةِ |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خانه کعبې په دالان کې د خپلو |
| مُحْتَبِيًا بِيَدَيْهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ[1] |
| لاسونو په ذريعه راغونډ ناست ؤو. |

**توضيح: محتبياً:** خپې نيغې بدن سره پيوسته کولو ناستې ته احتباء وايي. دا په يو خاص طريقې باندې د کيناستلو نوم دی. هغه طريقه داسې ده چې د سرې مقعد په زمکه وي او ګونډې (زنګون) يې د خولې سره نزدې ودرولي وي او دواړه لاسونه يا د کومې پټۍ سره يا دڅادر سره ګونډو نه راتاوهلو سره ناستې ته احتباء وايي: حديث کې صرف د دوه لاسونو سره د احتباء ذکر دی، خو د احتباء ذکر عام دی هغه که په لاس وي يا که جامو سره وي. د احتباء په طرز ناسته کې عاجزي او تواضع وي، نو ځکه دې طريقې باندې ناسته مستحب ده. د غونډې ناستې په صورت کې د چا سره پرتوګ او پاجامه وي نو هغه صورت کې ستر نه کولاوېږي، خو که پرتوګ يا پاجامه نه وي بلکې د احرام دوه څادرونه وي او هغې کې يو سړی په لاسونو راغونډ کيني، نو هغې کې ستر کولاوېږي. لهذا دې طريقه باندې کيناستل منع دي. د لنګ هم دغه حکم دی.

---

(۱)رقم الحديث ۴۷۰۷ أخرجه البخاري في صحيحه ۶۵/۱۱رقم الحديث ۶۲۷۲ وابن ماجه في السنن ۱۲۲۷/۲ رقم الحديث ۳۷۳۳.

## جومات کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارام کول ثابت دي

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عبَّادِ بن تَمِيم عَنْ عَمِّهِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ |
| او حضرت عباد ابن تميم د خپل تره نه روايت کوي. هغې وويل چې ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جومات کې |
| مُسْتَلْقِيًا وَاضِعًا إِحْدَى قدمَيه على الأُخْرَى. (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| دغه شان ستوني ستاق وليدلو چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو قدم به بل قدم ايښې ؤو. |

**توضیح: واضعاً**: يعنې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ارام لپاره پرېوتلو او يو قدم يې په بل قدم کېښودلو. ورسره لاندې روايت کې قدم په قدم باندې کېښودل سره چت پرېوتلو منع کړی شوي دي. حال دا چې دلته د دې صورت اجازت کړی شوی دی، نو دواړو روايتونو کې تعارض شو.

د دې جواب دا دی چې صرف قدم په بل قدم باندې ايښودل منع نه دي، ځکه دې کې دستر کولاوېدلو خطر نشته دی، خو يوه پښه په بله پښه کېښودلې چې ستر پرې کولاو شي. هغه منع دی. الغرض دراغونډې ناستې پرېوتلو مدار د ستر کولاوېدلو سره دی. که د ستر انتظ[illegible]شوی وي نو راغونډه ناسته منع نه دی.

## ښپې باندې ښپه اړول او چيت پريوتل منع دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْفَعَ الرَّجُلُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى |
| او حضر جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه منع کړې ده چې څوک يوه پښه اوچته کړي |
| الأُخْرَى وَهُوَ مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ. رَوَاهُ مُسلم[2] |
| او بله پښه په هغې باندې کېږدي او هغه وخت کې هغه ستوني ستاق وي. |

**توضیح**: دې حديث کې په يوه خاصه طريقه باندې د پرېوتلو نه منع کړی شوي ده، ځکه هغې کې ستر کولاوېږي. هغه طريقه داسې ده چې يو کس کله چت پرېوځې او يوه پښه اوچه کړي او د هغې په ګونډه باندې بله پښه او قدم کېږدي، چې لاندېنۍ ټوله علاقه پرې ښکاري او سړی په احرام کې دی يا په ازاربند کې دی نو داسې کول منع دي، خو که سړې پرتوګ اغوستی وي يا د ستر انتظام شوی وي نو بيا داسې پرېوتل جائز دي. بهرحال دې حديث کې د ممانعت يو خاص صورت دی. لهذا د دې د مخکنې حديث سره تعارض نشته دی. (مرقات ۴۸۱/۸)

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يستلقين |
| او د حضر جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې تاسو کې دې هيڅوک داسې |

---

([1]) رقم الحديث ۴۷۰۸ أخرجه البخاري في صحيحه ۸۰/۱۱ رقم الحديث ۶۲۷۲ ومسلم في ۱۶۶۲/۳ رقم الحديث ۲۱۰۰

([2]) رقم الحديث ۴۷۰۹ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۶۲/۳ رقم الحديث ۲۰۹۹ وابوداود في السنن ۱۸۷/۵ رقم الحديث ۴۶۶۵.

| |
|---|
| أحدكم ثمّ يضع رجليه على الأخرى. رواه مسلم[1] |
| ستوني ستاق نه پرېوځي چې يوه پښه ودروي او بله پښه په هغې كېږدي. |

## تكبر سره د ګرځيدو نكې انجام

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وعن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: بينما رجل |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل يو كس په دوه پټي دارو |
| يتبختر في بردين وقد أعجبته نفسه |
| جامو كې ځان خوښئ او كبر سره سره روان ؤو. او د هغې نفس هغه په غرور او ځان خوښئ كې اخته كړې ؤو. |
| خسف به الأرض فهو يتجلجل فيها إلى يوم القيامة. (متفق عليه)[2] |
| زمكې هغه سرې راښكلو، نو هغه به تر د قيامت پورې دغه شان راښكلى كېږي. |

**توضيح**: ځينې علماء وايي چې دا قارون ته ويلى شوى دى، خو علامه نؤوى رحمه الله او نور شارحين فرمايي چې دا د قارون نه بغير بل كوم متكبر كس ؤو. چې الله ترېنه ناراضا شو. اسلام د دورنه مخكې د يو سړې قصه ده. (مرقات ۴۸۲/۸)

ځكه باندې د الله والو د تلو انداز داسې وي ﴿و عباد الرحمن الذين يمشون على الارض هونا واذا خاطبهم الجاهلون قالوا سلاما﴾ (سورة فرقان: ۶۴)

## الفصل الثاني

## نبي كريم صلى الله عليه وسلم بالخت استعمال كړى دى

| |
|---|
| ﴿۶﴾ عن جابر بن سمرة قال: رأيت النبي صلى الله عليه وسلم متكئا |
| حضرت جابر ابن سمره رضي الله عنه فرمايي چې ما نبي كريم صلى الله عليه وسلم داسې تكى وهلو سره وليدلو |
| على وسادة على يساره. رواه الترمذي[3] |
| چې دوه بالختونه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم چپ اړخ ته ايښودلى شوي ؤو. |

---

([1]) رقم الحديث ۴۷۱۰ أخرجه مسلم في صحيحه ۱۶۶۱/۳ رقم الحديث ۲۰۹۹.

([2]) رقم الحديث ۴۷۱۱ أخرجه البخاري في صحيحه ۲۵۸/۱۰ رقم الحديث ۵۷۸۹ ومسلم في ۱۶۵۳/۳ رقم الحديث ۵۳۲۶.

([3]) رقم الحديث ۴۷۱۲ أخرجه ابوداود في السنن ۳۸۰/۵ رقم الحديث ۴۱۴۳ والترمذي في ۹۱/۵ رقم الحديث ۲۷۷۰.

## ګونډه ماتول باندې د کيناستلو ذکر

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ |
| او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به کله جومات کې کيناستلو |
| فِي الْمَسْجِدِ احتبى بِيَدَيْهِ. رَوَاهُ رزين [1] |
| نو دواړه ورنونه به يې ودرول او پونډو باندې به يې دواړه لاسونه د حلقې سره وتړل. |

## کله کله به نبي کريم صلى الله عليه وسلم د قرفصاء په صورت کې کيناستلو

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَن قيلة بنت مخرمة أَنَّهَا رَأَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ |
| او د حضرت قيله بنت مخرمه رضي الله عنها نه روايت دی چې هغې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په جومات کې |
| وَهُوَ قَاعِدٌ الْقُرْفُصَاءَ. قَالَتْ: فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د قرفصاء په هئيت په ناسته وليدلو. قيلة رضي الله عنها فرمايي چې کله ما نبي کريم صلى الله عليه وسلم داسې |
| الْمُتَخَشِّعَ أُرْعِدْتُ مِنَ الْفَرَقِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [2] |
| ډېر د عاجزئ او انکسارئ په حالت کې ناست وليدلو نو زه د هيبت په وجه وړېږدلم. |

**توضيح: القرفصاء**: قاف باندې پيش دی. را ساکن دی. فا باندې پيش دیړ د هغې نه وروسته مد دی او بيا همزه دی. فا باندې زبر ويل هم جائز دی.

تواضع او د اکسارئ نه ډک د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د يوې ناستې نوم قرفصاء دی. دا په داسې طرز باندې ناسته ده چې مثلاً يو سړی د قعده په حالت کې کيني او ګونډې په زمکه کېږدي او پښې شاته ولړوي. بيا ښې لاس په چپ لاس او چپ لاس په ښې ترخ کې ومنډي او خپله خيټه په ورنونو او ګونډو باندې رامات کړي او سر زمکې ته نزدې يوسي. دا قرفصاء ناسته ده. دې کې عاجزي، تواضع او انکساري ده. نو ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا استعمال کړه. (مرقات ۸/۴۸۴)

**المتخشع**: يعني خشوع، خضوع او د انکسارئ دي صورت کې چې کله ما وليدل نو زه وړېږدلم. نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته الله رعب او دبدبه ورکړې وه، نو ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم چې څومره تواضع اختيار کړه نو هومره د نبي کريم صلى الله عليه وسلم رعب زيات شو، نو ښځه وېرېدله.

**ارعدت**: زه وړېږدلم.

**من الفرق**: دا لفظ چې کله سمع د يسمع نه راشي نو د وېرې په معنی کې وي. (مرقات ۸/۴۸۴)

---

(۱) رقم الحديث ۴۷۱۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۵/۵ رقم الحديث ۴۸۴۶ ،ولم يذكر المسجد.

(۲) رقم الحديث ۴۷۱۴ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۶/۵ رقم الحديث ۴۸۴۷.

## نبي كريم ﷺ به سحر د لمونځ نه وروسته تر څاښت پورې كيناستلو

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ تَرَبَّعَ |
| او حضرت جابر ابن سمره رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ به كله د سحر لمونځ وكړو نو څلور |
| فِي مَجْلِسِهِ حَتَّى تطلع الشَّمْس حسناء. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| گوټه به كيناستلو او د لمر به رڼا كېدلو پورې به همدغه شان ناست ؤو. |

**توضيح**: څاښت بورې ناسته ثابت ده. د دې په ضمن كې د څاښت لمونځ هم ثابت شو. لهذا د څاښت د لمونځ نه انكار كول مناسب نه دي.

**تربع**: يعنې نبي كريم ﷺ به چارزانو كيناستلو او د لمر د راښتلو پورې به يې انتظار كولو. چې دا خبره ترېنه ثابه شوه چې مكروه وخت كې لمونځ كول جائز نه دي. دلته دا هم ثابته شوه چې دين اسلام ژوندى او اباد مذهب دى چې د نبي كريم ﷺ د ناستې د كيفيت په كې هم الحمد لله محفوظ دى. (مرقات۸/۴۸۵)

## د نبي كريم ﷺ د مؤقتې استوگنې طريقه

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَرَّسَ بِلَيْلٍ |
| او حضرت ابو قتاده رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ به كله د سفر په دوران كې ارام كولو |
| اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ وَإِذَا عَرَّسَ قُبَيْلَ الصُّبْحِ |
| او د اوده كېدلو لپاره به د شپې كوم ځاى ته كوزېدلو نو ښي اړخ ته به يې ډډه اچوله او كله به چې سحر ته نزدې |
| نَصَبَ ذِرَاعَهُ وَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلَى كَفِّهِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ[2] |
| راكوزېدلو نو خپل يو لاس به يې ودرولو او د هغې په تلي مبارك به يې سر مبارك كېښودلو. (شرح السنة) |

**توضيح**: د دې حديث مطلب دا دى چې د سفر دوران كې به چې كله نبي كريم ﷺ د شپې وخت كې يو ځاى كې پړاؤ اچولو نو د شپې څه برخه به پاتې وه نو نبي كريم ﷺ به ښي اړخ باندې پرېوتلو لكه څنگه به يې چې په حضر كې عادت ؤو، خو كه د شپې اكثره برخه به تېره شوې وه او صبح صادق به بيخې نزدې ؤو نو نبي كريم ﷺ به په ډډه نه پرېوتلو. بلكې نبي لاس او

---

([1]) رقم الحديث ۴۷۱۵ أخرجه ابوداود في السنن ۱۷۸/۵ رقم الحديث ۴۸۵۰ وأخرجه مسلم أيضا في صحيحه ۴۶۴/۱ رقم الحديث (۲۸۷-۶۷۰)

([2]) رقم الحديث ۴۷۱۶ أخرجه مسلم في صحيحه ۴۷۶/۱ رقم الحديث رقم (۳۱۳-۶۸۳) والبغوي في شرح السنة ۳۲۵/۲۲ رقم :۳۳۵۹

څنګل به يې ودرولو او هغه تلي باندې به يې سر مبارک کېښودلو او څه لږ به يې وکړو. د دې وجه دا وه چې دا چې صبح صادق نزدې ؤو نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کلک خوب نه د بچ کېدلو کوشش کولو چې د سحر لمونځ فوت نه شي، نو ځکه به يې په تلی سر مبارک کېښودلو او څه لږ به يې ناارامي او څه د ارام کولو کوشش کولو. د دې حديث نه معلومه شوه چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د سحر د لمونځ لپاره څومره اهتمام کولو. او نن سبا مسلمانان څومره په غفلت کې دي. زړګونو کې به يو په مشکله ملاو شي چې د شپې نه اهتمام کوي چې د سحر لمونځ قضاء نه شي. (مرقات۸/۴۸۵)

## نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم قبلې ته ښپي کولو سره نه دی اوده شوی

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ بَعْضِ آلِ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَ: كَانَ فِرَاشُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوًا مِمَّا |
| او د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا يو هلک فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درئ د هغه تو تې پشان وه چې کومه د |
| يُوضَعُ فِي قَبْرِهِ وَ كَانَ الْمَسْجِدُ عِنْدَ رَأْسِه. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[1] |
| نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر مبارک کې ايښودلی شوي وه او جومات به د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک سره نزدې ؤو. |

**توضيح**: مما يوضع: دا د صيغه مضارع په ځای د وضع ماضي صيغه پکار وه، خو راوي حکايت بزمانه حال په غرض د مضارع صيغه استعمال کړې ده.

**نحواً**: د يو شان والي او د مقدار په معنی کې دی. دې حديث کې دا بيانول مقصود دي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپل ژوند کې د درئ لپاره دومره مختصره ټوټه استعمالوله لکه څومره ټوټه چې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر کې ښوره کړی شوي وه. چې بالکل مختصره وه. اوس پوښتنه دا ده چې دا ټوټه قبر کې ولي ښوره کړی شوي وه او چا ښوره کړې وه؟نو علماؤ ليکلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د مرګ بيمارۍ کې د درئ لپاره يو څادر استعمالولو چې صحابه کرامو ليدلی ؤو. د هغې غلام شقران همدغه څادر اخستی ؤو او په پټه يې قبر کې خپور کړو چې هسې نه د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته يې څوک استعمال کړي. خو صحابه کرامو دا وليدلو او د قبر نه يې راويستلو. (مرقات۸/۴۸۹)

**عنده مسجده**: يعني نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د قبلې اړخ ته پرېوتلو. د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجره

---

[1] رقم الحديث ۴۷۱۷ أخرجه ابوداود في السنن ۲۹۷/۵ رقم الحديث ۵۰۴۴.

به په مسجد نبوي کې چپ اړخ ته وه. کله به چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله هجره کې ښي اړخ باندې پرېوتلو نو د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک سره جومات ؤو. د دې بیان نه غرض دا دی چې راوي دا ویل غواړي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په ښي اړخ باندې پرېوتلو. د دې حدیث نه دا خبره بالکل واضحه ده چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت ته دا تعلیم ورکړی دی چې د پرېوتلو وخت کې د بیت الله اړخ ته مخ کوئ څه ما تهول ژوند داسې کړي دي. (مرقات۸/۴۸۶)

د دې نه دا خبره هم واضحه شوه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ټول ژوند کې د قبلې اړخ ته پښې ښورلو سره نه پرېوتلو. نن سبا په عربو باندې تعجب دی چې هغوی کوشش کوي چې د بیت الله اړخ ته پښې ښورې کړي او اوده شي. څوک چې داسې نه کوي، نو هغوی داسې کولو لباندې مجبوره کوي او وایي "ان کان هذا بیت الله فانا عبد الله" که دا بیت الله دی نو زه عبد الله یم. خپو خپرولو کې هیڅ باک نشته دی.

## نسکور پریوتل د الله تعالی په نزد مبغوض دي

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هريرَةَ قَالَ: رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مُضْطَجِعًا عَلَى بَطْنِهِ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو سړي په خیټه پروت ولیدلو نو |
| فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ ضِجْعَةٌ لَا يُحِبُّهَا اللهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغې ته وفرمایل چې داسې پرېوتل د الله په نزد نا خوښه دي. |

**توضیح**: ضجعة: پرېوتلو ته وایي. د پرېوتلو دا کیفیت د الله په نزد مبغوض دی. اوده کېدو او د پرېوتو څلور طریقې دي: اوله طریقه د ستوني ستاغ پرېوتلو ده. دا د اهل اعتبار طریقه ده چې د اسمان نظام ته ګوري او عبرت ترېنه حاصلوي. دویمه طریقه ښي اړخ باندې د پرېوتلو ده. دا د عبادت کونکو طریقه ده. دې کې زړه زوړند وي، نو خوب سرسري وي، نو د عبادت لپاره پاڅیدل اسان وي. درېمه طریقه په چپ اړخ باندې د پرېوتلو ده. دا طریقه د ارام غوښتونکو ده. دې کې زړه لاندې خخ پاتې شي نو خوب ښه په غفلت سره کېږي. څلورمه طریقه د ناکاره خلکو ده. دا خلک پړ مخې په خیټه او نسکوره خله پرېوځي. دې حدیث کې دغه شان پرېوتلو نه منع شوې ده، ځکه دوزخ کې به دوزخیان دغه شان وي. (مرقات۸/۴۸۶)

---

[1] رقم الحدیث ۴۷۱۸ أخرجه الترمذي في السنن ۹۰/۵ رقم الحدیث ۲۷۶۸ واحمد في المسند۳۰۴/۲ .

﴿۱۳﴾ وَعَنْ يَعِيشَ بْنِ طِخْفَةَ بْنِ قَيْسٍ الْغِفَارِيِّ عَن أَبِيهِ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ

او حضرت يعيش ابن طخفه ابن قيس غفاري د خپل پلار نه چې د اصحاب صفه نه ؤو، نقل كوي چې هغه

قَالَ: بَيْنَمَا أَنَا مُضْطَجِعٌ مِنَ السَّحَرِ عَلَى بَطْنِي إِذَا

بيان كړو چې زه د سينې د درد په وجه په خيټه باندې پرېوتى ؤو. چې ناڅاپه مې محسوس كړل چې يو ما د پښو

رَجُلٌ يحركني بِرِجلِهِ فَقَالَ: هَذِهِ ضِجعَةٌ يَبْغَضُهَا اللهُ فَنَظَرْتُ فَإِذَا

نه خوځوي او بيا ما واورېدل چې هغه كس وايي د پرېوتلو دا طريقه الله ته نا خوښه ده او بيا چې ما

هُوَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه[1]

نظر او چت كړو نو هغه كس نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؤو. (روايت كړې دي ابو داؤد، ابن ماجه)

**توضيح**: **من السحر**: سحر د سينې درد ته ويلى شوى دى. اصل كې سحر كولمو ته وايي. دلته د سينې درد مراد دى يعنې د دې مجبورى په وجه په زه پر مخې پرېوتلم. (مرقات۸/۴۸۷)

## چار ديوارئ يا د پردې نه بغير چت باندې اوده كيدل منع دى

﴿۱۴﴾ وَعَن عَلِيِّ بن شَيبَان قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ بَاتَ

او حضرت علي ابن شيبان فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل: څوک چې د شپې كور كې په

عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَيْسَ عَلَيْهِ حِجَابٌ وَفِي رِوَايَةٍ: حِجَارٌ

يو داسې چهت پرېوتلو چې پرده پرې نه وي او يو روايت كې داسې دي چې د هغې نه گير چاپېره د مانع شى

فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَفِي مَعَالِمِ السّنَنللخطابي حجى "(رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ)[2]

نه وي نو د هغه ذمې نه بري دى. (ابو داؤد) او د خطابي كتاب معالم السنن كې (د لفظ حجاب په ځاى) د حجى لفظ دى.

**توضيح** حجاب: يو لفظ حجاب دى چې د پرده په معنى كې دى. بل لفظ حجار دى چې د كاڼې په معنى كې دى. درېم لفظ حجئ دى چې د عقل او مانع به معنى كې دى. مطلب دا دى چې كوم چهت باندې ديوال يا كومه پناه يا پرده نه وي او څوک د شپې هغې باندې ځملي نو داسې كول پكار نه دي. كېدى شي دا سړى راخونه بد رابدل كړي او د چهت نه ورغوزېږي او لاندې ټوټه ټوټه كېدو سره مړ شي.

**الذمة**: الله د انسان د بدن د تحفظ لپاره فرښتې هم مقررې كړي دي او د هغه تحفظ لارې او طرقې يې هم ورته ويلي دي او شريعت هم د دې تعليم وركړى دى. او كه كوم كس دا ټولې طريقې له نظره

---

[1] رقم الحديث ۴۷۱۹ أخرجه ابوداود في السنن ۲۹۵/۵ رقم الحديث ۵۰۴۰ وابن ماجه في ۱۲۲۷/۲ رقم الحديث ۳۷۲۳.

[2] رقم الحديث ۴۷۲۰ أخرجه أبوداود في السنن ۲۹۵/۵ رقم الحديث ۵۰۴۱ وأحمد في المسند۷۹/۵

غوژوي نو د تحفظ ذمه واري نه ختمه شي. اوس دې دا سړی خپل ځان ملامته کړي. د خپلو غوزېدلو نسبت دې بل اړخ ته نه کوي، نه دې دا الزام لږوي چې زه مسلمان ؤوم. اسلام دې ځای کې ماته لاربنود نه ده کړي. (مرقات ۴۸۷،۴۸۸/۸)

| |
|---|
| ﴿ ۱۵﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنَامَ الرَّجُلُ عَلَى سطحٍ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کوټه باندې د اوده کېدلو نه منع |
| لَيْسَ بمحجورٍ عَلَيْهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ[1] |
| کړې ده چې کوم باندې پرده (دیوال) نه وي. |

## د حلقې مېنځ کې کیناستونکې والا باندې لعنت

| |
|---|
| ﴿۱٦﴾ وَعَن حذيفةَ قَالَ: مَلْعُونٌ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ |
| او حضرت حذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژبې مبارکې په ذريعه هغه سړی |
| قَعَدَ وَسَطَ الْحَلْقَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد[2] |
| لعنتي ګڼلی شوی دی چې مجلس په منځ کې کيني. |

**توضیح** وسط الحلقة: د دې جملې یو مطلب دا دی چې مثلاً یو مجلس کې خلک ناستې دي. یو سړی د بهر نه راغلو. مجلس کې ځای نشته دی، خو دا کس د خلکو په څټونو باندې پښې اړوي او مخکې د مجلس په مینځ کې کینې. دا کیناستل منع دي. د دې جملې دویم مطلب دا ذی چې یو مجلس دی. هغې کې خلک ناست دي. او یو بل ته مخامخ خبرې کوي. ثوک راشي او د هغوی په مینځ کې کیني او د هغوی په مینځ کې حائل شي. چې ده هغې په وجه خلکو ته تکلیف ورسیدلو، ځکه د هغوی په مینځ کې پرده او خلل پیدا شو، نو ځکه دا منع دي.
د دې جملې دریم مفهوم او مطلب دا دی چې ثوک بې حیا او بد تهذیبه شي او راشي د مجلس د خلکو په مینځ کې کیني او مسخري کوي، د شادو پشان حرکتونه کوي او خلک خندوي. هغې باندې لعنت دی. دا مطلب ډېر واضحه دی. (مرقات ۴۸۸،۴۸۹/۸)

## بهترین مجلس هغه دی چې په فراخه ځای کې وي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَيْرُ الْمَجَالِسِ |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل بهترين مجلس هغه |

---

([1])رقم الحديث ۴۷۲۱ أخرجه الترمذي في السنن ۱۳۰/۵ رقم الحديث ۲۸۵۴.

([2])رقم الحديث ۴۷۲۲ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۴/۵ رقم الحديث ۴۸۲۶ والترمذي في السنن ۸۳/۵ رقم الحديث ۲۷۵۳.

| |
|---|
| أَوْسَعُهَا. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ[1] |
| دی چې په فراخه ځای کې وکړی شي. |

## مجلس کې بېل بېل مه کينئ

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَن جَابر بن سَمُرَة قَالَ: جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر ابن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلو داسې وخت کې چې (مسجد نبوي) کې |
| وَأَصْحَابُهُ جُلُوسٌ فَقَالَ: مَا لِي أَرَاكُمْ عِزِينَ؟ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] |
| د هغوی صحابه ناست ؤو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل څه خبره ده چې تاسو بېل بېل او بنواره ناست وينم. |

**توضیح:** عزين: د عزة جمع ده. د خلکو جماعت ته وايي. دلته جدا جدا جماعتونه مراد دي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امت ته دا تعليم ورکړو چې د اتحاد او اتفاق او د يووالي تقاضا دا ده چې کله په يو مجلس کې کينئ نو يوځاې کينئ. جدا جدا ناستې سره به وحشت او ځانله والي کې زيات والی راشي. او د مسلمانانو صفت په قرآن کې د ﴿کانهم بنيان مرصوص﴾(سورة صف :۴) ذکر دی. لهذا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې جدا جدا ځايونو کې د ناستې په ځای يو ځای کينئ.

## داسې ځاې کې مه کينئ چرته چې څه سيوری او څه لمر وي

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې تاسو کې څوک د |
| فِي الْفَيْءِ فقلص الظِّلُّ فَصَارَ بَعْضُهُ فِي الشَّمْسِ |
| سيورې لاندې ناست وي او بيا سيوری ختمېږي او هغه وخت کې د هغې د بدن څه برخه په لمر کې او |
| وَ بَعْضُهُ فِي الظل فَلْيقمْ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[3] وَ فِي شرح السّنة |
| څه برخه په سيورې کې وي نو هغه له پکار ده چې د هلته نه پاڅيږي. (ابو داؤد) او شرح السنة کې د |
| عَنهُ. قَالَ: وإذا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الْفَيْءِ |
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې هغې وفرمايل تاسو کې چې څوک سيورې ته ناست وي او بيا هغه |

---

(1) رقم الحديث ۴۷۲۳ أخرجه ابوداود في السنن ۱۶۲/۵ رقم الحديث ۴۸۲۰ ،واحمد في المسند۱۸/۳ .

(2) رقم الحديث ۴۷۲۴ أخرجه مسلم في صحيحه ۳۲۲/۱ رقم الحديث (۴۳۰/۱۱۹) وأبوداود في السنن ۱۶۳/۵ رقم الحديث ۴۸۲۳.

(3) رقم الحديث ۴۷۲۵ أخرجه أبوداود في السنن ۱۶۲/۵ رقم الحديث ۴۸۲۱ وابن ماجه في ۲۲۷/۲ رقم الحديث ۳۷۲۲.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَقَلَصَ | عَنْهُ | فَلْيَقُمْ | فَإِنَّهُ |

سیوری ختمېږي نو هغې له پکار ده چې د هلته نا پاڅیږي ځکه داسې ځای چې نیم سیوری وي او څه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَجْلِسُ | الشَّيْطَانِ. | هٰكَذَا | رَوَاهُ | مَعْمَرٌ | مَوْقُوفًا | [1] |

لمر وي هغه د شیطان د ناستې ځای دی. دغه شان معمر هم دا روایت د موقوف په طریق نقل کړی دی.

**توضیح**: **مجلس الشیطان**: دې روایت کې د وفی شرح السنة نه تر آخر پورې دا کلام د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کلام دی. مرفوع حدیث نه دی، خو دغه شان د عقل خلاف مسائلو کې چې کله موقوف روایت راشي نو د مرفوع حدیث په حکم کې وي. بهرحال د حضرت ابوهریره کلام دی. مرفوع حدیث نه دی، خو دغه شان د عقل خلاف مسائلو کې چې کله موقوف روایت راشي نو د مرفوع حدیث په حکم کې وي. بهرحال د حضرت ابوهریره د کلام "ان مجلس الشیطان" یو مطلب دا دی چې رښتیا هم شیطان داسې ځای کې کیني، نو دا د شیطان د ناستې ځای شو. بیا شیطان مکار داسې ځای کې ولې کیني؟ نو د دې جواب دا دی چې د شیطان کوم کار ښه دی؟ (د اوبن کوم ځائ نیغ دی)

د دې جملې دویم مطلب دا دی چې شیطان داسې ځای کې کیناستلو باندې خوشحالېږي چې کوم ځای کې د ناسته باندې انسان ته تکلیف وي او د هغې صحت پرې خرابېږي، ځکه چې نیم بدن ګرم وي نو وینه به منډه وهي او نیم بدن به یخ او کنګل وي. دې سره د بدن په صحت باندې اثر غوزېږي او شیطان همدغه غواړي او په همدې باندې خوشحالېږي. (مرقات ۸/۴۹۰)

## ښځو ته د لارې په غاړه باندې د تللو حکم

﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَهُوَ

او د حضرت ابو ایوب انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې هغې یوه ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وخت

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خَارِجٌ | مِنَ | الْمَسْجِدِ | فَاخْتَلَطَ | الرجالُ | مَعَ | النِّسَاء |

چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جومات نه راوتلو، دا بیان یې ترینه واوریدلو. بیا لاره کې د ښځو سره ملاو شو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي | الطَّرِيقِ | فَقَالَ | لِلنِّسَاءِ: | اسْتَأْخِرْنَ |

یعني نارینه او زنانه په لاره کې ګډې وډې روانې وې. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښځو ته وفرمایل چې تاسو د نارینو ناسته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّهُ | لَيْسَ | لَكُنَّ | أَنْ | تُحْقِقْنَ | الطَّ |

او د هغوی نه جدا شئ ځکه دا ستاسو لپاره مناسب نه دي چې تاسو د لارې په مینځ کې روان

[1] رقم الحديث ۴۷۲۶ أخرجه البغوي في شرح السنة ۱۲/۳۰۱ رقم الحديث ۳۳۳۵ وأحمد في المسند ۲/۳۸۳.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْكُنَّ | بِحَافَاتِ | الطَّرِيقِ | فَكَانَتِ | الْمَرْأَةُ |
| بلکې ستاسو لپاره ضروري دي چې تاسو د لارې په غاړه باندې ځئ. نو ښځو په دې حکم باندې عمل وکړو | | | | |
| تَلْصَقُ | بِالْجِدَارِ | حَتَّى | إِنَّ | ثَوْبَهَا |
| او کله به چې په لاره باندې تللې نو د دیوال سره به چښتې تللې تردې چې (ځینې وخت) به د هغوی | | | | |
| لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ[1] | | | | |
| جامه به دیوال پسې اینختله. (ابوداؤد. بیهقی فی شعب الایمان | | | | |

**توضیح** د ښځو د شرافت او وقار او عظمت تقاضا دا ده چې هغوی د کور رانی او پټه خزانه وي چې په کور کې وي خو که د کوم شرعي مجبورۍ په وجه هغوی ته په کولا لاره کې د تګ ضرورت شو نو د شریعت حکم دی چې ښځې دې د نارینو سره اوږه په اوږه نه ګرځي راګرځي بلکې هغوی له ډېر په عاجزۍ او شرافت او عظمت سره ښکته ښکته د لارې په غاړه تلل پکار دي او سر باندې لویه لوپټه اچول پکار دي. دې سره به د هر مفسد په زړه باندې د هغه باعظمته ښځو رعب او دبدبه وي. بهرحال اسلام ښځو ته لويې مقام ورکړی دی خو هغوی یې د نارینو د ټولو شعبو نه شاته ایښې دي د همدې برخه ده چې د لارې په مینځ کې هغوی له تلل پکار نه دي. د لارې مینځ کې د تللو حق د نارینو ته حاصل دی. (مرقات۸/۴۹۱)

## نارينه ته د ښځو په مینځ کې تلل پکار نه دي

| | |
|---|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم نهى أَنْ يمشيَ يَعْنِي الرجلُ بَين | |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوه ښځو په مینځ کې تللو نه | |
| المرأتين. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد[2] | |
| منع کړې ده یعنې نارینه ته. | |

**توضیح** ان یمشي: یعنې د دوه ښځو په مینځ کې د نارینه تلل منع دي، ځکه دا بې شرمي هم ده او فتنه کې لوېدلو خطر هم دی او لويې قباحت هم دی چې سړی د نا اشنا ښځو په ډله کې ګرځي راګرځي او فتنه کې اخته کېږي. د غه شان د دیوې ښځط سره ځان تلل هم منع دي او د ډېرو ښځو سره تلل هم منع دي، ځکه دې کې ناجائزه اختلاط دی. (مرقات۸/۴۹۱)

---

[1] رقم الحديث ۴۷۲۷ أخرجه ابوداود في السنن ۴۲۲/۵ رقم الحديث ۵۲۷۲ والبيهقي في الشعب.

[2] رقم الحديث ۴۷۲۸ أخرجه ابوداود في السنن ۴۲۳/۵ رقم الحديث ۵۲۷۳.

## مجلس کې چرته ځاې وويني هلته کينې

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَن جابرِ بن سمرةَ قَالَ: كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت جابر ابن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله به د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مجلس کې مونږ حاضر شو |
| جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد |
| نو مونږ کې به چې کوم کس چرته ځاى وليدلو او آخر کې به چې کوم ځاى خالي ؤو هلته به کيناستلو. (ابو داؤد) |
| وَذكر حَدِيثَا عبد الله بن عَمْرٍو فِي بَابِ الْقِيَامِ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَلِيٍّ وَأَبِي هُرَيْرَةَ |
| او د عبدالله ابن عمر دواړه حديثونه په باب القيام کې نقل کړې شوي دي او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| فِي بَابِ أَسْمَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصِفَاتِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى [1] |
| او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه روايتونه به مونږ ان شاء الله په باب اسماء النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وصفاته مې نقل کوؤ. |

**توضيح**: **حيث ينتهي**: يعنې مجلس به چې چرته ختمېدلو د هغې غاړه کې به ځاى موجود دى، نو هغې کې کينې. دا نه چې د ښه ځاى په لټېنه کې د نورو په سرونو باندې اوړي او مخکې ځي او د خلکو کنځلې او شېرې اوړي. (مرقات ۸/۴۹۲،۴۹۱)

## الفصل الثالث

## د کيناستلو يوه ممنوعه طريقه

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ عَن عَمْرِو بن الشَّرِيدِ عَن أَبِيهِ قَالَ: مَرَّ بِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمرو ابن شريد د خپل پلار نه روايت کوي چې هغې وويل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما په خوا کې تېر |
| وَأَنَا جَالِسٌ هَكَذَا وَقَدْ وَضَعْتُ يَدِيَ الْيُسْرَى خَلْفَ ظَهْرِي وَاتَّكَأْتُ عَلَى أَلْيَةِ |
| شو او زه داسې ناست ؤوم چې زما ښي لاس خو زما په شا باندې ؤو او د موټې ګوتې د غوښې په |
| يَدِي. قَالَ: أَتَقْعُدُ قِعْدَةَ |
| بيخ باندې تکيه وهلې وه. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې آيا ته په داسې [illegible] ئيت باندې ناست يې |
| الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد [2] |
| چې په کوم هئيت هغه خلک کيني چې په چا د خداى غضب شوى وي. |

---

[1] رقم الحديث ۴۷۲۹ أخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۶۴ رقم الحديث ۴۸۲۵ والترمذي في ۵/۹۹ رقم الحديث ۲۷۲۵.

[2] رقم الحديث ۴۷۳۰ أخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۶۷ رقم الحديث ۴۸۴۸ وأحمد في المسند ۴/۳۸۸.

**توضيح**: **المغضوب عليهم**: د دې نه مراد يهود دي، ځكه هغوى باندې د الله غضب را نازل شوى دى. اوس دا نيک وي او كه بد وي د الله د غضب نه بهر نه شي وتلى. سورت فاتحه كې هم د "غير المغضوب عليهم " د الفاظو نه يهود مراد دي. كوم طرز باندې د ناستې نه چې نبي كريم ﷺ منع كړې ده هغه متكبرانه انداز هم دى او د يهودو سره مشابهت هم دى، خو خپله دا ناسته هم د عجيب كارتون په شكل كې ده، ځكه دې كې سړى چپ لاس په خپلې ملا باندې كينې او د ښي لاس د موټې ګوتې بيخ كې چې كومه پېړه غوښته ده هغې باندې تكيه ؤوهې او كينې. د د ناستې دې عجيبه نه نبي كريم ﷺ منع كړې ده. د دې نه معلومه شوه چې د يهود او نصارىٰ وړو وړو علاماتو كې هم د هغوى سره مشابهت اختيارول پكار نه دى. (مرقات۸/۴۹۲)

## نسكور پريوتل د جهنميانو طريقه ده

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۴﴾وَعَن | أَبِي | ذَرٍّ | قَالَ: | مَرَّ | بِي | النبِيُّ | وَأَنَا | مُضْطَجِعٌ |
| او حضرت ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ زما په خوا كې تېر شو چې ما د خپلې | | | | | | | | |
| عَلَى | بَطْنِي | فَرَكَضَنِي | بِرِجْلِهِ | وَقَالَ: | | | | |
| خېټې په اړخ يعني پړ مخې پروت ؤوم. نبي كريم ﷺ (دې ليدلو سره) خپلو پښو باندې زه او هلم. | | | | | | | | |
| يَا | جُنْدُبُ | إِنَّمَا | هِيَ | ضِجْعَةُ | أَهْلِ | النَّارِ. | رَوَاهُ | ابنُ مَاجَه [1] |
| او وېې فرمايل: اى جندب رضي الله عنه (تاته دې معلوم وي چې) دغه شان پړېوتل د دوزخيانو طريقه ده. | | | | | | | | |

**توضيح**: **اهل النار**: د دې لفظ دوه مطلبه دي. اولنى مطلب دا دى چې د فاسقانو او د فاجرانو او د كافرانو خلكو دنيا كې همدغه عادت دى چې هغوى پړ مخې پرېوځي. دويم مطلب دا دى چې كافران چې كله دوزخ ته غورځول كېږي نو هغوى به پړ مخې غورځول كېږي، نو د دوزخيانو هيئت به په دوزخ كې داسې وي نو ځكه مسلمانانو لره دا كيفيت خپلول پكار نه دى. دا مطلب ډېر واضحه دى. (مرقات۸/۴۹۳)



[1] ) رقم الحديث ۴۷۳۱ أخرجه ابن ماجه في السنن ۱۲۲۷/۲ رقم الحديث ۳۷۲۴.

# باب العطاس والتثاؤب
# د پرنچې او اسويلي بيان

**العطاس** پرنچي ته وايي. د ټولو نه اول حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ اسويلی کړی دی. کله چې د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ په بدن کې روح واچولی شو نو هغې پرنچی وکړو، نو الله حکم وکړو چې الحمدلله ووايه. چې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ الحمدلله وويله نو الله جواب کې وفرمايل "**يرحمك الله يا آدم**" پرنچي کول د انسان لپاره د صحت علامت دی. د مازغو سټړيوالی دې سره ختم شي. بدن خوشحاله او بيداره شي. د مازغو دروند والی او بوج ختم شي، ځکه د الله له اړخه انسان ته حکم کړی شوی دی چې د شکر په توګه الحمدلله وايئ او څوک چې دا واوري نو هغه دې "**يرحمك الله**" ووايي. د هغې نه وروسته پرنچي کونکې له مستحب دي چې هغه "**يهديكم الله ويصلح بالكم**" سره هغې ته دعا وکړي. که چرې پرنچي کونکې **الحمدلله** ونه ويله يا يې په ورو وويله چې هيچا وانه وريدل، نو جواب ورکول په هيچا باندې لازم نه دي. يعنې ضروري نه ده چې يرحمک الله ووايي.

که د پرنچي کونکې په جواب کې د جماعت نه يو سړي هم **يرحمک الله** وويله نو د ټولو له اړخ نه کافي ده. که پرنچی کونکی بيا بيا پرنچېږي نو هغه به زکام يا ناروغه وي. لهذا بيا بيا جواب ورکول هيچا باندې لازم نه دي. ځينې روايتونو کې د **الحمد لله علی کل حال** الفاظ راغلي دي. دا ډير بهتره الفاظ دي. او عام فهم او اسان دي. اسلا دا چې کامل او پوره بلکې د ژوند پوره ضابطه ده، نو ځکه د مسلمانانو د ټولو مسائلو حل وړاندي کوي. "**والتثاؤب**" اسويلي کولو ته وايي. د دې مسائل هم راروان دي.

## الفصل الاول

## پرنچي باندې رحمان او اسويلي باندې شيطان خوشحاله کيږي

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:" |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |
| إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ فَإِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ وَحَمِدَ اللهَ |
| الله پرنچي خو خوښوي خو اسويلی نه خوښوي. لهذا تاسو کې چې کوم کس پرنچي وکړي او د الله تعريف وکړي |

| |
|---|
| كَانَ حَقًّا عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ سَمِعَهُ أَنْ يَقُولَ: |
| نو دغه پرنچي او الحمدلله اورېدونکي هر مسلمان باندې حق دی چې پرنچي کونکي ته جواب کې |
| يَرْحَمُكَ اللّٰهُ. فَأَمَّا التَّثَاؤُبُ "فَإِنَّمَا هُوَ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِذا تثاءب أحدكم |
| يرحمك الله وايي. د اسويلي خبره، نو د اسويلي راتلل د شيطان اثر دی. لهذا تاسو کې چې چا ته اسويلي راشي نو پکار |
| فَلْيَرُدَّه ماستطاع فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا تَثَاءَبَ |
| ده چې د خپل وس پورې د ارږمي د ختم کړي. واضحه دې وي چې تاسو کې کوم يو کس اسويلي کوي نو |
| ضَحِكَ مِنْهُ الشَّيْطَانُ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: |
| هغې پسې شيطان خاندي. (بخاري) او د مسلم په روايت کې دا الفاظ دي چې (نو پکار ده چې د خپل وس پورې |
| "فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذا قَالَ: هَا ضحك الشَّيْطَان مِنْهُ |
| هغه بند کړي) ځکه تاسو کې چې څوک هاء وايي (يعني اسويلي کوي) نو هغې پسې شيطان خاندي. |

**توضيح**: يحب العطاس: يعني الله پرنچي خوښوي. دا ځکه چې پرنچې سره چستې راځي. بيدارې او چالاکې پيدا کېږي. چې فهم او ادراک پرې زياتېږي. ټول بدن تازه تازه شي، نو ځکه الله دا خوښوي او اسويلي سره بوج او ثقل زياتېږي. نيم ويداوالي او غفلت او سستې او بدفهمې زياتېږي، ځکه دا الله ته ناخوښه دي د شيطان خوښ دی. عطاس او تثاؤب دواړه د خپل انجام او د نتيجې په اعتبار سره خوښ يا ناخوښه دي. د اسويلي انجام او ثمره د شيطان خوښه ده. د الله ناخوښ دی او د عطاس انجام او ثمره د الله خوښه ده. د شيطان ناخوښ دي. بيمار سړی مسلسل اسويلي کوي. (مرقات۸/۴۹۴)

**كان حقا**: د دې لفظ په وجه د علماؤ مختلف رائې قائم کړې دي چې آيا د پرنچې جواب فرض دی يا واجب دی يا که مستحب دی. د احنافو په نزد د پرنچې جواب علی الکفايه دی. د مالکيو په نز مختلف اقوال دي. د وجوب قول هم دی او د سنت هم دی او د مستحب هم دی. د غير مقلدينو حضراتو د يوې طبقې په نزد د پرنچې جواب فرض دی. بهرحال د احنافو سره د جمهورو علماؤ په نزد د پرنچې جواب واجب علی الکفايه دی خو هغه شرط پاتې دی چې د پرنچې والا په زوره **الحمدلله** ووايي. د اسويلي متعلق يو ادب دا دی چې سړی د خپل لاس د شا اړخ خپله خله باندې کېږدي يا پرې يو ټوته کېږدي چې خله بنده شي، ځکه شيطان د انسان ښکاره دښمن دی. د اسويلي

وخت کې د انسان شکل وران شي نو شيطان خاندې او تهوقې پسې کوي چې د دې شکل ته وګوره د دې په وجه زه د سړو په مينځ کې حصاريم. (مرقات ۸/۴۹۴)

## د پرنجې د جواب مسنونه طريقه

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: " إِذا عطسَ أحدُكم |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کله چې تاسو کې چا ته پرنجې راشي |
| فلْيقلِ: الحمدُ لِلّٰهِ وَلْيَقُلْ لَهُ أَخُوهُ أَوْ صَاحِبُهُ |
| نو پکار ده چې هغه الحمدلله اوايي او د هغې ورور يا يې دا وفرمايل چې د هغه ملګري له پکار ده چې د هغې په جواب کې |
| يَرْحَمُكَ اللهُ. فإِذا قَالَ لَهُ يَرْحمك الله |
| يرحمك الله اوايي او د هغې په جواب کې يرحمك الله اوايي نو پرنجې کونکي له پکار ده چې داسې |
| فليقل: يهديكم الله وَيصْلح بالكم" رَوَاهُ الْبُخَارِيّ |
| اوايي يهديكم الله ويصلح بالكم يعني الله دې تاته هدايت وکړي او ستا زړه او ستا احوال دې صحيح کړي. |

## پرنجې کونکی که الحمدلله ونه وائي نو د جواب مستحق نه دې

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَن أَنسٍ قَالَ: عَطَسَ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَمَّتَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دوه کسانو له پرنجې راغلو نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| أَحَدَهُمَا وَلَمْ يُشَمِّتِ الْآخَرَ. فَقَالَ الرَّجُلُ: |
| هغې کې يو سړي ته جواب ورکړو او د بل د پرنجې جواب يې ورنکړو. د کوم سړي د پرنجې جواب چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه وو کړی |
| يَا رَسُولَ اللهِ شَمَّتَّ هَذَا وَلَمْ تُشَمِّتْنِي |
| هغې عرض وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! تاسو دې سړي ته خو جواب ورکړو خو ماته دې جواب را نکړو؟ |
| قَالَ: إِنَّ هَذَا حَمِدَ اللهَ وَلم تحمَدِ الله . (مُتَّفق عَلَيْهِ) |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دې سړي د الله حمد کړی وو يعني الحمدلله يې وويل او د الله حمد ونه ويل. |

**توضيح**: فشمت: دا د تشميت نه دی. پرنجې کونکی چې کله الحمدلله اوايي او د هغې به جواب کې بل کس يرحمک الله اوايي. هغه جواب ته تشميت وايي. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه کس د پرنجې په جواب کې يرحمک الله وفرمايلو چاچې الحمدلله وويله او چاچې نه وو ويلی هغې له يې جواب ورنکړو. هغې شکايت وکړو. د همغه شکايت او د هغې د جواب بيان په دې حديث کې دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِذَا | | | |
| او حضرت ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا اوريدلي دي چې كله | | | |
| عَطَسَ | أَحَدُكُمْ | فَحَمِدَ | اللهَ | فَشَمِّتُوهُ |
| تاسو كې څوك پرنچي وكړي او د الله حمد وكړي نو هغې له جواب وركوئ يعنې يرحمك الله او ايئ | | | |
| وَإِنْ لَمْ يَحْمَدِ اللهَ فَلَا تُشَمِّتُوهُ. رَوَاهُ مُسلم | | | |
| او كه هغه د الله حمد ونه كړي نو هغې له جواب مه وركوئ. | | | |

## د زكام شوي كس د پرنچي جواب وركول لازم نه دى

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾ وَعَن سلمةَ بن الأَكْوَعِ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَهُ | | | |
| او د سلمه بن اكوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې هغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه سړي ته د پرنچي جواب وركول وراوريدل | | | |
| فَقَالَ | لَهُ: | يَرْحَمُكَ | اللهُ |
| چې كوم وخت د هغې سره ناست ؤو، نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې په جواب كې وفرمايل يرحمك الله بيا هغه كس په | | | |
| ثُمَّ عَطَسَ أُخْرَى فَقَالَ: الرَّجُلُ مَزْكُومٌ . رَوَاهُ مُسلم وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ | | | |
| دويم ځل پرنچي راغلو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې د دې كس زكام دى (مسلم) او د ترمذى په يو روايت كې | | | |
| أَنَّهُ | قَالَ | لَهُ | فِي | الثَّالِثَةِ: | إِنَّهُ | مَزْكُومٌ |
| داسې دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه كس په دريم ځل پرنچي كولو باندې وفرمايل چې د دې سړي زكام دى. | | | |

## چې اسويلى درشي نو خوله باندې لاس ږدئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ | | | |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو كې چې چا ته | | | |
| فَلْيُمْسِكْ | بِيَدِهِ | عَلَى | فمه | فَإِنَّ | الشيطانَ | يدخلُ | . رَوَاهُ مُسلم |
| اسويلي راشي نو هغه لره پكار ده چې هغه خپل لاس په خله باندې كيږدي ځكه شيطان هغې كې دننه كيږي. | | | |

**توضيح**: لاس اېښودلو سره شيطان دننه نه ځي. دا چې دا د غفلت علامت دى نو د دې فرصت شيطان غنيمت وګڼي او دننه د تللو كوشش كوي يا خپلې وسوسې داخلوي. لاس اېښودلو سره هغه هيڅ نه شي كولى.

# الفصل الثاني

## پرنچې کولو وخت کې خله باندې لاس ایښودلو سره ورو آواز کول پکار دی

| |
|---|
| ﴿۷﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَطَسَ غَطَّى وَجْهَهُ |
| د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به کله پرنچې کولو نو مخ مبارک به یې |
| بِيَدِهِ أَوْ ثَوْبِهِ وَغَضَّ بِهَا صَوْتَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| خپل لاسونو یا په یوه ټوټه باندې پټولو او د خپل پرنچې اوازا به یې په قلاره کولو. دا روایت ترمذی |
| وَأَبُو دَاوُدَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ |
| د او ابوداؤد نقل کړی دی او ترمذی ویلي دي چې دا حدیث صحیح دی. |

**توضیح**: د پرنچې کولو د آدابو نه یو ادب دا دی چې خوله او مخ سړی پټ کړي چې خراب شکل ښکاره نه شي او اواز چې څومره کمې دی شي هغه هومره یې کم کړئ. ځینې خلک ډېر په اخلاص سره اواز کې دومره لویه دهماکه پیدا کړي چې ورسره نېژدې سړی وربېږدي. دوه کاله مخکې دلته حرمینو ته یو سړی راغلو او هغې به دومره په زوره پرنچې کولو چې د حرم مکې د یو ګوټ نه تر بل ګوټ پورې به اوچت اواز تللو او خلک به ورته به کتلو شول چې څه پیښنه وشوه. ما خپله د دې سړي اواز بیا بیا اورېدلی دی. داسې کول پکار نه دي. (مرقات ۴۹۸/۸)

## پرنجې او جواب یې

| |
|---|
| ﴿ ۸﴾ وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذا عطسَ أحدُكم |
| او د حضرت ابوایوب نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې تاسو کې چا ته پرنچې راشي نو |
| فلْيقلْ: الحمدُ لله عَلَى كُلِّ حَالٍ |
| پکار ده چې هغه دسې او ایې چې الحمدلله علی کل حال یعنې هر حال کې د خدای تعریف دی او څوک چې د |
| وَلْيَقُلِ الَّذِي يَرُدُّ عَلَيْهِ: يَرْحَمك الله وَليقل هُوَ: |
| دې جواب ورکوي نو داسې ویل پکار دي یرحمك الله او بیا پرنچې کونکې ته داسې ویل پکار دي |
| يهديكم الله وَيصْلح بالكم" رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ والدارمي |
| :یهدیکم الله ویصلح بالکم یعنې الله دې تاته هدایت وکړي او ستا زړه یا ستا احوال دې صحیح کړي. |

## د يهودي پرنجي باندې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جواب

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: كَانَ الْيَهُودُ يَتَعَاطَسُونَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يهوديان به چې كله د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوا تېرېدل |
| يَرْجُونَ أَنْ يَقُولَ لَهُمْ: يَرْحَمُكُمُ اللهُ |
| نو د قصد نه به يې پرنجي كولو په دې اميد چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغې په جواب كې يرحمك الله اوايي |
| فَيَقُولُ: يَهْدِيكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ |
| خو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به صرف دا ويل يهديكم الله و يصلح بالكم. |

**توضيح**: يهود يو منصوبه ساز قوم دى. د هغوى منصوبه دا وه چې د اسلام د قبولو نه بغير به مونږ د الله د رحمت مستحق شو او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژبه اعلان وشي، نو ځكه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مجلس كې به يې بار بار پرنجي كولو او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له اړخ د يرحمك الله په انتظار كې به وُو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هميشه هغوى ته د هدايت دعا كوله خو د ايمان مخكې ې هغوى ته د رحمت دعا ونه كړه. "يهديكم الله" به يې فرمايلي. (مرقات۸/۵۰۰)

## پرنجي كولو وخت كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په السلام عليكم باندې ناراضا شو

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ هلالِ بن يساف قَالَ: كُنَّا مَعَ سَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ فَعَطَسَ رَجُلٌ |
| او حضرت هلال ابن يساف فرمايي چې مونږ د حضرت سالم ابن عبيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وُو چې جماعت |
| مِنَ الْقَوْمِ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. فَقَالَ لَهُ سَالِمٌ: |
| كې يو سړي پرنجي وكړو او هغې د (الحمدلله په ځاى) السلام عليكم وويل. حضرت سالم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې په جواب |
| وَعَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ. فَكَأَنَّ الرَّجُلَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ |
| كې وويل تا باندې او ستا په مور باندې هم سلام، هغه كس ګويا كې دا الفاظ په زړه كې بد وګڼل. |
| فَقَالَ: أَمَا إِنِّي لَمْ أَقُلْ |
| حضرت سالم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا (ناخوابني محسوسولو سره) وفرمايل چې (ددې ناخوابنۍ څه وجه ده) تاته دې معلومه وي چې |
| إِلَّا مَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ما همغه الفاظ ويلي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه وخت ويلي وُو چې كله يو سړي د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مخكې پرنجي وكړو او |

فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ

هغې السلام عليكم ويلې ؤو. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغې په جواب کې وفرمايلې ؤو چې تا باندې او ستا په مور باندې دې

إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ:

سلام وي. بيا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کله تاسو کې چا ته پرنجى راشي نو هغې له پکار ده

الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ وَلْيَقُلْ لَهُ مَنْ يَرُدُّ عَلَيْهِ: يرحمك الله

چې الحمد لله رب العالمين او ايي او جواب ورکونکي له پکار دي چې يرحمك الله او ايي او بيا

وَليقل: يغفر لي وَلكم" رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد

پرنجي کونکي له پکار دي چې داسې او ايي يغفر الله لي ولكم يعنې الله ستا او زما مغفرت وکړي.

**توضيح**: **وجد في نفسه**: وجد موجدة نه د سخت غوسه کېدو په معنىٰ کې دی. دا غصه کېدونکی صحابي نه ؤو بلکې تابعي ؤو. دې بيچاره مجلس کې پرنجى کولو باندې ووېل "السلام عليكم" د هغې په جواب کې سالم بن عبيد صحابي ووېل وعليک وعلى امک السلام. د سلام دې طريقې کې د هغه سړي د مور ذکر په مجلس کې وشو، نو ځکه هغه غصه شو. صحابي د هغې په غوسه باندې پوهه شو نو بيا يې ورته ووېل چې ته خفه کېږه مه. ما چې کومه طريقه اختيار کړې ده، دا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم د يو باره کې اختيار کړې وه، ما په سنت عمل وکړو. (مرقات۸/۵۰۱)

**سوال**: اوس دلته سوال دا دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرنجى کونکي کس ته په غلطئ باندې د هغې مور ولې ياده کړه؟

**جواب**: د دې سوال دوه جوابه دي: اولنى جواب دا دی چې هغه کس سلام بې موقع او بے محل استعمال کړو، نو دا داسې شوه چې ګويا کې يو کس د مخاطب په ځای د هغې مور ته د سلام جواب ورکړي. لکه څنګه چط هغه بې موقع او بې محل ؤو. دغه شان د پرنجې په جواب کې السلام عليكم بې موقع او بے محل ؤو. دويم جواب دا دی چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشاره وکړه چې دا څه چې ستا شوي دي. دا ستا قصور نه دی بلکې ستا د مور قصور دی چې تا ته يې صحيح تعليم نه دی درکړی او صحيح تربيت يې نه دی کړی، نو ځکه ته د دې آدابو نه محرومه شوې. لهذا اصل شاباش ستا مور ته دی. د دې حديث نه امت ته دا تعليم حاصل شو چې د شريعت اصطلاحات او اطلاقات بې ځايه او بے محل استعمالو جائز نه دي. کوم حکم چې د کوم مقام لپاره وي نو په همغې کې يې استعمالول جائز دي. دويم تعليم دا هم حاصل شو چې د شريعت وضع کړې شوي الفاظو په ځای نور الفاظ استعمالول جائز نه دي اګر که معنى يې ډېره ښه وي. (مرقات۸/۵۰۱)

## درې ځل د پرنجې جواب آخری حد دې

﴿۱۱﴾ وَعَن عبيد بن رِفَاعَة عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:
او حضرت عبيد ابن رفاعه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل
شَمِّتِ الْعَاطِسَ ثَلَاثًا فَإِنْ زَادَ فَشَمِّتْهُ
د پرنجې كونكې مسلسل د درې پرنچو جواب وركړئ او كه كوم كس د درېو نه زيات وپرنچېږي نو هغه صورت
وَإِنْ شِئْتَ فَلَا . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ
كې اختيار دى چې كه خوښه مو وي د هغې جواب وركړئ او كه خوښه مو وي نو جواب مه وركوئ.

﴿۱۲﴾ وَعَن أَبِي هريرة قَالَ: شَمِّتْ أَخَاكَ ثَلَاثًا
او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې تاس د خپل (مسلمان) ورور د پرنچې تر د درېو پورې جواب وركوئ.
فَإِنْ زَادَ فَهُوَ زُكَامٌ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ
او كه هغه د درېو نه زات وپرنچېږي نو (پوهه) شئ چې د دې زكام دى. دا روايت ابو داؤد نقل كړى دى
وَقَالَ: لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا أَنَّهُ رَفَعَ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
او ويلي يې دي چې زه پوهېږم چې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا روايت نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته رسولى دى.

## الفصل الثالث

## شارع د ټاكلې شوي الفاظو پابندى ضروري ده

﴿۱۳﴾ عَنْ نَافِعٍ: أَنَّ رَجُلًا عَطَسَ إِلَى جَنْبِ ابْنِ عُمَرَ فَقَالَ:
او حضرت نافع فرمايي چې (ديوې ورځ) واقعه ده چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره خوا كې ناست يو سړي پرنچې
الْحَمْدُ لِلَّهِ وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ:
وكړو او بيا يې وويل چې الحمد لله والسلام على رسول الله. حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (دې اورېدلو سره) وفرمايل
وَأَنَا أَقُولُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللهِ وَلَيْسَ هَكَذَا. عَلَّمَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
چې زه هم وايم الحمد لله والسلام على رسول الله خو داسې نه ده چې كوم نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته ښودلې
أَنْ نَقُولَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ
ده. (او هغه) دا ده چې مونږ داسې او وايو الحمد لله على كل حال يعنې هر حال كې د خداى تعريف دى.

**توضيح**: دې حديث كې هم هغه خبره ذكر ده چې كومه پاس ليكلې شوې ده چې د شريعت وضع كړې شوي اصطلاحات او د اطلاقاتو خيال ساتل ډېر ضروري دي. كه يو سړى د خپل ځان نه ډېرې ښې

جملې جوړ کړې او لولې يې خو دا رائجه سکه نه ده. دې باندې د شريعت ټاپه نه ده لږېدلې. لهذا دې لره هيڅ اعتبار نشته دی.
اوس دلته وګورئ دې سرې درود ولوستلو چې ښه جمله ده خو د بې ځايه ويلو په وجه حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا ښې جملې خو زه هم وايم او جائز هم دي، خو اوس وخت د دې موقع او محل نه دی بلکې دا بې ځايه ده، نو ځکه دې لره هيڅ اعتبار نشته دی.
دې بې موقع عمل باندې نن سبا د بدعتې حضراتو عملونه هم قياس کېدی شي، لکه هغوی د جمعې د لمونځ نه وروسته ودرېږي او درود وايي.
د اذان نه مخکې درود وايي او الفاظ هم د درود نه وي، نو درود خو ښه عمل دی خو د دې لپاره يو موقع او محل دی. روضې مبارک ته چې لاړ شي او د خطاب په الفاظو سره درود وايي ، خو د ا روضه اطهر نه بغير په کلکت او خنجراب نه هغه الفاظ شروع کړي او کوم خلک چې د هغې سره ملګرتيا نه کوي نو وايي دا د رسول دښمن دی. ياد وساتئ بدعتيان خلک په غلطه لار راوان شوي دي،(مرقات۵۰۱/۸) لکه بابا سعدی ويلي دي :ـ
ترسم نه رسی بکعبه اے اعرابی کیں راه که تو می روی بتر کستان است


# باب الضحك
## د خندیدو بیان

اسلام دا چې کامل او پوره بلکې د انساني ژوند اکمله ضابطه ده، ځکه دي کې د انساني ژوند د هر اړخ او شعبې کفالت موجود دی. دي سلسله کې د انسان د خندلو مسائل بیانېږي. الله تعالیٰ انسان کې د خندلو ماده یخي ده. لهذا خندل منع دی بلکې جائز ده، خو په دې کې د اعتدال د حد نه زیاتی کول مناسب نه دی. ځکه دي سره د مخ رڼا او وقار ختمېږي او په روحاني اعتبار زړه مړ کېږي. د ټولو نه ښه تبسم دی. او د ټولو نه بد په ډکه خوله خندل دي. صحابه کرامو به ښه ډیر خندل خو هغوی کې کله هم غفلت رانغلو. هغوی د ورځې شهسواران ؤو. او د شپې راهبان، عابدان او زاهدان. درویشان ؤو. د خندلو باوجود هم د ایمان د هغوی په زړونو کې د یو غر پشان ؤو. د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خندل به اکثر د تبسم په صورت کې ؤو.

## الفصل الاول

### نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به تبسم کولو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عائشة رضي اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَجْمِعًا ضَاحِكًا | | | | |
| حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې ما نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم په دومره ډېره خنده باندې نه دی لیدلی | | | | |
| حَتّٰى | أَرٰى | مِنْهُ | لَهَوَاتِهِ | إِنَّمَا |
| چې (د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خله کولاوه شوي وي او) ما ته د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخامخ غاښونه (ورئ) | | | | |
| كَانَ | يتبسم. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[1] | |
| ښکاره شوي وي بلکې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خنده به تر د مسکا حده پورې وه. (بخاری) | | | | |

**توضیح: مستجمعاً**: استجماع په پوره توګه خندلو ته وایي. چې په برق خندا ترېنه مراد دي.

**لهواته**: تالو کې کومه کوا ځوړنده وي هغې ته لهوات وایي. په سره خندل مراد دي. چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم داسې نه دې کړي. (مرقات ۸/۵۰۵)

**یتبسم**: د خندلو درې قسمونه دي. که په زوره داسې خندل وي چې حلق او پوره خله ښکاره شي نو دې ته په برق خندا ده. او که په زور سره معمولې خندل وي نو دې ته ضحک وایي. او که بالک آواز

---
(۱) رقم الحدیث

نه وي صرف مخې ته غابنونه كولاو شي نو دا تبسم دی.

## جرير بن عبدالله سره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معامله

| |
|---|
| ﴿۲﴾وَعَن جرير قَالَ: مَا حَجَبَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ أَسْلَمْتُ |
| او حضرت جرير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: د كوم وخت نه چې زه مسلمان شوی يم. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كله هم |
| وَلَا رَآنِي إِلَّا تَبَسَّمَ. مُتَّفق عَلَيْهِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| زه د ملاقات نه منع كړی نه يم او كله به چې هم نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه ليدلم نو خندل به يې. |

**توضيح:** حضرت جرير بن عبدالله بجلی د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ نه يو څو ورځې مخکې مسلمان شوی ؤو. الله هغې له قدرتې حسن دومره وركړی ؤو چې هغې ته د دې امت يوسف ويلی شوی دی. دا د خپل ځان باره كې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دوه خصوصياتو ذكر كوي.

**ماحجبني:** يو خصوصيت دا ؤو چې ما كله هم غوښتل چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملاقات وكړم نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه كله هم نه هيسار كړی بلكې د ملاوېدلو اجازت يې راكړی دی. د دې نه د كور بې پردګې مراد نه ده بلكې د نبي كريم ﷺ سره د ناسته پاسته او ملاقات مراد دی.
دويم خصوصيت دا چې كله به هم نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه ليدلم نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مسكی شو. كېدی شي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د حضرت جرير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخ كې د الله تعالى د انوراتو اثر ښكاره كيدلو يا د الله د قدرت حسين او جميل منظر ليدلو سره فتبارك الله احسن الخالقين باندې مسكا كوله. (مرقات۸/۵۰۵)

## پخوانۍ قصو باندې خندل جائز دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقُومُ مِنْ مُصَلَّاهُ |
| او حضرت جابر ابن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په كوم ځای نماز باندې لمونځ كولو نو |
| الَّذِي يُصَلِّي فِيهِ الصُّبْحَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ |
| د هغه ځای به تر هغه وخت پورې نه پاڅيدلو چې تر څو پورې به لمر (ښه) نه ؤو راښتلی. كله به چې لمر راوښتلو |
| قَامَ وَكَانُوا يَتَحَدَّثُونَ فَيَأْخُذُونَ |
| نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د اشراق لمونځ وكړو يا به كور ته د تللو لپاره او درېدلو. هغه دوران كې |

[1] رقم الحديث

| |
|---|
| فِي أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ فيضحكون ويبتسم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. |
| صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ د جاهلیت د زمانې خبرې کولې او خندل به یې نو د هغوی سره به نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هم |
| رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ: يتناشدون الشِّعْرَ |
| خندل. (مسلم) او د ترمذی په روایت کې داسې دي صحابه کرام به د شعرونو ویلو او اورېدلو کې اخته ؤو. |

**توضیح: يتناشدون الشعر**: یعنې تر د جائز حده پورې به یې شعرونه ویل. د الله د واحدانیت او د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د منقبت او انسانې حکمت باندې مشتمل شعرونه به یې ویل. دا ژوندو زړونو د خلکو نښانې ده او جائز ده.

## الفصل الثاني

## نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ډېر خندل

| |
|---|
| ﴿۴﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا |
| حضرت عبد الله ابن حارث ابن جزء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه زیات بل |
| مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| هیڅوک په خندلو نه دی لیدلی. (روایت کړې دي ترمذی) |

## الفصل الثالث

## صحابه کرامو به ښه ډېر خندل

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ قتادةَ قَالَ: سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ: هَلْ كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه وپوښتل شو چې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يَضْحَكُونَ؟ قَالَ: نَعَمْ وَالْإِيمَانُ فِي قُلُوبِهِمْ أَعْظَمُ مِنَ الْجَبَلِ. |
| صحابه کرامو به خندل. حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ و فرمایل آؤ. حال دا چې د هغوی په زړونو کې د غرنه هم غټ ایمان ؤ او |
| وَقَالَ بِلَالُ بْنُ سَعْدٍ: أَدْرَكْتُهُمْ |
| حضرت بلال ابن سعد تابعی فرمایي چې ما صحابه کرام په داسې حال کې موندلي دي چې هغوی |
| يَشْتَدُّونَ بَيْنَ الْأَغْرَاضِ وَيَضْحَكُ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ فَإِذَا كَانَ اللَّيْلُ |
| به د غشو د نښانو په مینځ کې منډې وهلې او د یو بل خبرو باندې به یې خندل، خو چې شپه به راغله |

**كَانُوا رُهْبَانًا. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السّنة**

نو د الله نه به ډېر زيات وېرېدونكي شول.

**توضيح: قال نعم**: پوښتنه كونكى تابعي دى چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحابي نه پوښتنه كوي چې آيا صحابه كرامو به خندل. د پوښتنه كونكي خيال دا ؤو چې خندل دا چې د غفلت يوه برخه ده او صحابه د غفلت نه ډېر لرې ؤو، نو ځكه به نه خندل. د دې په جواب كې ورته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې آؤ ښه به يې خندل، خو د هغوى په زړونو كې په د خندلو په وجه غفلت نه راتلو بلكې په زړونو كې به يې د غر برابر ايمان ؤو. دې جمله كې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه كس د زړه د وېرې جواب وركړو او اشاره يې وكړه چې تر د جائز حده پورې خندل انساني فطرت دى او دا د ژوندې زړونو علامت دى.

حيات الحيوان كې ليكلى شوي دي چې يو حضرت يحيى عَلَيْهِ السَّلَامُ د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ملاقات وشو. د ملاقات په موقع حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ وخندل. حضرت يحيى عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې تا خداى هېر كړى دى چې خاندې؟ حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمايل چې آيا ته د الله نه نااميده شوى يې؟ دې باندې دواړو وغوښتل چې د الله له اړخه اشاره وشي چې دې دواړو كې څوك په حالت كې دى. د الله له اړخه وحي راغله چې تاسو دواړو كې الله ته هغه زيات محبوب دى چې د كوم اخلاق زيات ښه وي يعنې فيصله د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ په حق كې وشوه.

د زير بحث حديث يو راوي بلال بن سعد تابعي فرمايي چې ما وليدل چې صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د تيرانو د نښانو په مينځ كې منډې وهلې او يو بل پسې به يې خندل، خو د شپې به راهبان شول او عبادت به يې كولو يعنې د ورځې شهسواران او د شپې تهجد ګوزاران ؤو. "**رهبان الليل وفرسان النهار**"



# باب الآسامي
# د نومونو بيان

اسامي او اسماء جمع ده. اسلام چې کامل او پوره بلکې د ژوند اکمله ضابطه ده، ځکه الله تعالیٰ د مسلمانانو ته هر ځای کې لاربنودنه کړې ده. تردې چې نومونو ایښودلو کې یې هم ورته لاربنودنه کړې ده، نو دې باب کې به هغه حدیثونه راځي چې د ښه ښه نومونو د ایښودلو تعلیم په کې ورکړی شوی دی او د بدو نومونو نه د منع حکم کړی شوی دی یا د هغې د بدلولو لاربنودنه شوې ده.

## الفصل الاول

### د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کنیت باندې د خپل کنیت ایښودلو حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السُّوقِ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا أَبَا الْقَاسِمِ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بازار کې وُو. يو سړي ورته د ابو القاسم په نوم اواز وکړو. |
| فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راتاو شو او د هغه کس اړخ ته يې وکتل. هغې عرض وکړو چې ما تاته اواز نه وُو کړی |
| إِنَّمَا دَعَوْتُ هَذَا. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسلم: سموا |
| بلکې هغه سړي ته مې اواز کړی وُو. نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ورته دا وفرمايل چې تاسو زما په نوم |
| باسمي وَلَا تكنوا بكنيتي. (مُتَّفق عَلَيْهِ)[1] |
| باندې نوم ږدئ خو زما په کنیت باندې کنیت مه مقرروئ. |

**توضيح**: ولا تکتنوا بکنیتي: يو اسم محضه وي چې مور او پلار يې د خپل اولاد لپاره د پيدائش په وخت کې ږدي. او يو لقب وي چې معاشره کې خلک يو سړي ته ورکړي، لکه ولي الدين يا مصلح الدين وغيره. يو کنیت وي. دا هغه دی مثلاً چې څوک د خپل ځوي يا د لور يا د پلار وغيره نوم سره خپل ځان معارف او مشهور کوي، لکه ابوبکر، ابوذر، ابو حفص، ابن عباس او ابن مسعود. اسلام د کنیت د ایښودلو اجازت کړی دی خو صحيح حديثونو کې دا خبره ملاوېږي چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کنیت چې ابو القاسم وُو هغې باندې چاته د کنیت ایښودلو اجازت نشته وُو. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يو ځوي نوم قاسم وُو. د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کنیت د هغې په وجه ابو القاسم

---

(۱) رقم الحديث

وو. اوس خبره دا ده چې ایا د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژوند مبارک پورې د دې کنیت ممانعت موجود ؤو یا که دا ممانعت د همیشه لپاره دی. دې باره کې د علماؤ مختلف اقوال دي. (مرقات ۸/۵۱۰)

**د شوافعو اقوال:** شوافع او د اهل ظواهرو په نزد د هیڅ یو کس لپاره د ابو القاسم کنیت ایښودل جائز نه دی. **د امام محمد قول:** امام محمد رحمه الله فرمایي چې د هیڅ یو کس لپاره دا خو جائز نه دي چې هغه خپل نوم محمد کېږدي او کنیت ابوالقاسم کېږدي. که جدا جدا یې ایښودل غواړي نو محمد نوم ایښودل هم جائز دی. او که بل وي نو ابوالقاسم کنیت ایښودل هم جائز دی. **د امام مالک قول:** امام مالک رحمه الله فرمایي چې نوم او کنیت ټول جائز دي. د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژوند مبارک کې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کنیت د ایښودلو ممانعت ؤو. اوس ټول جائز دي.

**د احنافو قول:** د احنافو ائمؤ دا راجحه ګڼلې ده چې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژوند مبارک کې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کنیت باندې کنیت ایښودل سخت منع ؤو. اوس اګر که هغه شان سخت منع نه دی، خو یو قِسمه ممانعت اوس هم دی. ملاعلي قاري واضحه فیصله کوي او فرمایي چې راجح او صحیح همدغه ده چې د کنیت ایښودلو دا ممانعت د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژوند مبارک پورې محدود ؤو، ځکه د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژوند مبارک کې دې لفظ په استعمالولو سره اشتباه راتلله، لکه حدیث نمبر ۱ کې تفصیل دی چې یو سړي اواز وکړو یا ابا القاسم، نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې اواز واورېدلو نو مخ مبارک یې راوګرځولو او وې کتل. هغه سړي وویل چې تاسو ته نه، زه بل سړي ته اواز کوم چې کنیت یې ابوالقاسم دی. دې باندې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ابو القاسم کنیت ایښودلو نه منع کړو. ځکه دې باندې به نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خفه کېدو. او د یهودو په کتاب کې د ابوالقاسم کنیت کېدی کافي مشهور ؤو، ځکه به یهودو به نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د ابو القاسم په کنیت اواز کولو. د دې اشتباه په وجه هم دا کنیت منع ؤو، خو کله چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مړ شو نو د کنیت دا ممانع ختم شو. ګویا کې دلته انتهاء د حکم په وجه انتهاء د علت شوه. (مرقات ۸/۵۱۱)

## زه خپل رب قاسم جوړ کړی یم

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: سموا باسمي |
| او د حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل تاسو زما په نوم باندې نوم ږدئ |
| وَلَا تكنوا بِكُنْيَتِي فَإِنِّي إِنَّمَا جُعِلْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ مُتَّفق عَلَيْهِ (مُتَّفق عَلَيْهِ) |
| خو زما په کنیت باندې کنیت مه مقرروئ ځکه زه قاسم ګرځولی شوی یم او ستاسو په مینځ کې تقسیم کوم. |

**توضيح**: **اقسم بينكم**: قاسم تقسيم كونكي ته وايي. د نبي كريم ﷺ چې كوم كنيت ابوالقاسم ؤو دا صرف د ځوي د نوم په وجه نه ؤو بلكې د نبي كريم ﷺ صفات او د خصوصياتو په وجه هم نبي كريم ﷺ ته ابو القاسم ويلى شوى دى. نبي كريم ﷺ ته د تقسيم د صفت په وجه هم ابو القاسم ويلى شوى دى، ځكه نبي كريم ﷺ به مال غنيمت هم تقسيمولو د صدقې مالونه به يې هم تقسيمول. او د علومو او د وحي د تقسيم په وجه هم نبي كريم ﷺ ته ابوالقاسم ويلى شوى دى، لكه څنګه چې د فضائلو والا كس ته ابوالفضل وايي. د جنګ صفت كې شهرت لرونكي كس ته ابو الحرب وايي. دغه شان د نبي كريم ﷺ صفت، سخاوت او د مالو د تقسيم د صفت په وجه ابو القاسم ويلى شوى دى. دې حديث كې د نبي كريم ﷺ د كنيت علت او سبب اړخ ته اشاره شوې ده. (مرقات۸/۵۱۰)

## عبدالله او عبدالرحمن د ټولو نه بهتر نومونه دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ أَحَبَّ |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل د الله تعالى په نزد ستاسو |
| أَسْمَائِكُمْ إِلَى اللهِ: عَبْدُ اللهِ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ " رَوَاهُ مُسلم |
| نومونو كې د ټولو نه زيات خوښ نومونه عبدالله او عبدالرحمن دي. |

**توضيح**: **عبدالله**: دغه نومونو كې دا چې د كمال د درجې پورې توحيد او كمال درجه عبديت دى، نو ځكه دا محبوب نومونه دي، خو ځينې علماء فرمايي چې دا نومونه د انبياء كرامو د نومونو نه وروسته خوښ كړى شوي دي. لهذا د محمد د نوم نه دا زيات خوښ نوم نه شي كېدى. يا به ترېنه كم وي او يا به د محمد د نوم سره په خوښوالي كې برابر وي. (مرقات۸/۵۱۳)

## د غلام نوم يسار او افلح مه ږدئ

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَن سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم: " لَا تسمين غُلَامًا |
| او حضرت سمره ابن جندب رضي الله عنه فرمايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل د خپل غلام نوم |
| يسارا وَلَا رباحا ولانجيحا وَلَا أَفْلَحَ فَإِنَّكَ تَقُولُ: أَثَمَّ هُوَ؟ |
| يسار، رباح، نجيح او افلح مه ږدئ ځكه د كه كوم وخت كې تاسو د يو كس نه وپوښتل چې آيا هغه يسار يا رباح |
| فَلَا يَكُونُ فَيَقُولُ لَا " رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| دلته دى او هغه هلته نه وي نو جواب دركونكى به وايي چې هغه (يعني يسار يا رباح) دلته نشته دى. (مسلم) او |
| وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ قَالَ: لَا تسم غلَاما رَبَاحًا وَلَا يَسَارًا وَلَا أَفْلَحَ وَلَا نَافِعًا |
| د مسلم په يو بل روايت كې دا سې دي چې نبي عليه السلام وفرمايل د خپل غلام نوم رباح، يسار، افلح او نافع مه ږدئ. |

**توضيح**: يسار: دا د يسر نه دی چې د اسانۍ په معنی کې دی رباح د ربح نه د نفع په معنی دی. نجيح د کاميابۍ په معنی کې دی. او افلح هم د کاميابۍ او نجات به معنی کې دی. د دې حديث مطلب دا دی چې داسې نومونه مه ږدئ چې د هغې ظاهري معنې، ښه صفات او د کاميابو اړخ ته اشاره کوي. مثلاً سعد دی. نجيح او يسار دی. چې کور کې څوک اواز کوي چې دننه يسار دی. افلح ددی نو جواب به راځي چې يسار نشته دی. افلح نشته دی. د دې نه په ظاهره د خير يوه نفې کېږي. چې ښېره هم ورته ويل کېدی شي، نو ځکه نبي کريم ﷺ د داسې نومونو اېښودلو نه منع وکړه. دې اګر که د نومونو د ذات نفې مراد وي خو د ظاهري الفاظو نه معلومېږي چې دې نومونو کې چې کوم صفات دي د هغې هم نفې کېږي. اګر که په غير ارادي توګه وي، نو ځکه يې ممانعت وشو، خو دا ممانعت د مکروه تنزيهې په درجه کې دی. چې خلاف اولی او د افضل او د غير افضل خبره ده. د حضرت جابر رضي الله عنه د راتلونکې روايت نه خپله په واضحه توګه معلومېږي چې نبي کريم ﷺ په ابتداء کې دا حکم کړی ؤو خو د امت په تنګسيا کې د پرېوتلو له نظره نبي کريم ﷺ وروسته دې باندې چپ پاتې شو او منع يې نه کړو. (مرقات۸/۵۱۳)

## اوس افلح او يسار نوم اېښودل جائز دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵﴾ وَعَن جَابِر قَالَ أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْهَى عَنْ أَنْ يُسَمَّى بِيَعْلَى وَبِبَرَكَةَ | | | | | |
| او حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ دا اراده کړې وه چې يعلی برکت، | | | | | |
| وَبِأَفْلَحَ | وَبِيَسَارٍ | وَبِنَافِعٍ | وَبِنَحْوِ | ذَلِكَ. | |
| افلح، يسار، نافع او دغه شان نور نومونو نه خلک منع کړي خو بيا ما وليدل چې د دې ارادې نه | | | | | |
| ثُمَّ | سَكَتَ | بَعْدُ | عَنْهَا | ثُمَّ | قُبِضَ |
| وروسته نبي کريم ﷺ سکوت اختيار کړو. تردې چې نبي کريم ﷺ د دينا نه لاړو | | | | | |
| وَلَمْ يَنْهَ عَنْ ذَلِكَ. رَوَاهُ مُسلم | | | | | |
| او دا نومونه اېښودل يې منع نه کړل. | | | | | |

**توضيح**: د دې حديث نه په واضحه توګه معلومه شوه چې هغه مخکنی حکم وروسته موقوف شو. دا چې د امت لپاره لويه تنګسيا وه نو ځکه نبي کريم ﷺ هغې باندې وروسته خاموشي اختيار کړه. ګنې بيا خو به د عبدالله نوم اېښودل هم ګران شوی وی چې کور کې د الله بنده نشته دی. دې دوه قسمه روايتونو کې هيڅ تعارض نشته دی. بلکې د ابتداء او د انتهاء فرق دی. ابتداء کې منع کړی شو او آخر کې اجازت ورکړی شو.

## قبیح ترین نوم او لقب شهنشاه دي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَخْنَى الْأَسْمَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل د قيامت په ورځ به د الله په |
| عِنْدَ اللهِ رَجُلٌ يُسَمَّى مَلِكَ الْأَمْلَاكِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ |
| نزد د بدترينه نوم والا کس هغه وي چې چاته د شهنشاه نوم ورکړی شي (بخاري) او د مسلم په روايت کې داسې |
| قَالَ: أَغْيَظُ رَجُلٍ عَلَى اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَخْبَثُهُ رَجُلٌ |
| دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل د قيامت په ورځ به د الله په نزد مبغوض ترين او د ټولو نه بدتر هغه سړی وي |
| كَانَ يُسَمَّى مَلِكَ الْأَمْلَاكِ لَا مَلِكَ إِلَّا لله |
| چاته چې د شهنشاه نوم ورکړی شي. د خدای نه بغير بل هيڅ څوک بادشاه نشته دی. |

**توضیح**: ملك الاملاك: د دې ترجمه فارسئ کې شهنشاه دی. او پښتو کې د دې ترجمه باچاهانو باچا ده. دا چې بادشاه علی الاطلاق د الله تعالی ذات دی نو دغه شان نوم د مخلوق لپاره الله باندې د بادشاهۍ دعوی لازم راځي. او دا ډېر لويې جرم دی، نو ځکه ورته قبيح ترين نوم ويلی شوی دی.

اخنى: د قبيح په معنى کې دی. اغلظ و اخبث هم دغه څيز دی. (مرقات۸/۵۱۶،۵۱۵)

د ايران بادشاه دا نوم اينبی ؤو. بيا د معزول کېدو نه وروسته د سمندر اړخ ته په تښتېدلو وليدلی شو. يو سپې ورپسې شوی ؤو. هيڅ يو ملک هغه قبلولو ته تيار نه ؤو. د کينسر نه مړ شو. مصر کې مجبوراً ښخ کړی شو. د فرعون ګاونډي شو.

## داسې نوم مناسب نه دی چې په هغې کې ځان ښودنه وي

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ قَالَتْ: سُمِّيتُ بَرَّةَ |
| او حضرت زينب بنت ابی سلمه رضي الله عنها فرمايي چې زما نوم بره (يعني نيکو کار) کېښودلی شو، |
| فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ اللهُ أَعْلَمُ |
| نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې د خپل نفس تعريف مه کوئ. تاسو کې چې کوم کس نيکو کار دی، |
| بِأَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ سَمُّوهَا زَيْنَبَ. رَوَاهُ مُسْلِم |
| الله يې ښه پيژني. د دې ماشومې نوم زينب کېږدئ. |

**توضیح**: برة: د نيکوکار په معنى کې دی. دغه شان نوم اېښودلو کې خودبينی او د خودرائی احتمال دی. او دې کې د خپل نفس لپاره د پاکوالي دعوی هم ده. چې مناسب نه ده، ځکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم دا نوم بدل کړو، خو دا ياد وساتئ چې څنګه د يسار او د نجيح ممانعت ؤو، بيا اجازت

ملاو شو. همدغه شان د بره معامله هم وګڼئ. (مرقات۸/۵۱۸)

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَن ابنِ عبّاسٍ قَالَ: كَانَتْ جُوَيْرِيَةُ اسْمُهَا بَرَّةُ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د بيبي زوجې مطهرې د حضرت جويريه نوم بره ؤو |
| فَحَوَّلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْمَهَا جُوَيْرِيَةَ |
| خو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د هغې دا نوم بدل كړو او جويريه رَضِيَ اللهُ عَنهَا يې ورله كېښودلو، ځكه د |
| وَكَانَ يَكْرَهُ أَنْ يُقَالَ: خَرَجَ مِنْ عِنْدِ برة. رَوَاهُ مُسلم |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ دا خوښ نه ؤو. چې يو كس دا او ايې چې ته د بره له خوا نه راغلې. (مسلم) |

## بد نوم بدلول پکار دی

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَن ابْن عمر أَنَّ بِنْتًا كَانَتْ لِعُمَرَ يُقَالُ لَهَا: عَاصِيَةُ فَسَمَّاهَا |
| او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دی چې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ يوه لور وه چې عاصيه |
| رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جميلَة. رَوَاهُ مُسلم |
| به يې ورته ويله، نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د هغې نوم جميله كېښودلو. |

**توضیح**: د جاهليت په زمانه كې د عربو دستور ؤو چې وېرونكي نومونه به يې كېښودل. او د نافرمانۍ او د ازار اړخ ته اشاره كونكي نومونه به يې كېښودل، نو ځكه د هغوی په نومونو كې د جبل، حجر، حرب، حمار، اسد، فهد او دغه قسمه بېكاره نومونه ملاوېږي. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د داسې نومونو اصلاح وكړه او دا يې بدل كړل او داسې هر عالم له كول پكار دي چې د علاقې بد نومونه بدل كړي. قومونو كې نن سبا د ټولو نه ښه نومونه د بنګله ديش خلك ايږدي. او د ټولو نه بېكاره نومونه سندهې، د پښتنو او بيا د پنجابيانو دي. پښتنو كې چې كله د خان نوم راشي نو دا كافي دی. اګر كه خپل نوم يې هيڅ نه وي. د بوټې د پاڼې سره خان ولږوئ نو دا پټی خان بهترين نوم دی. (مرقات۸/۵۱۸)

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ أُتِيَ بِالْمُنْذِرِ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ |
| او حضرت سهل ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې منذر ابن ابی اسيد چې كله پيدا شو نو هغه |
| إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ وُلِدَ فَوَضعه على فَخذه |
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته راوړلی شو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ هغه په خپل ورون مبارك باندې كېښولو او |
| فَقَالَ: وَمَا اسْمه؟ قَالَ: فلَان: |
| پوښتنه يې وكړه چې د ده څه نوم دی. راوستونكي وويل چې فلانی نوم دی. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل |

لا ولکن اسمه المُنذر .(مُتَّفق عَلَيْهِ)

چې (دا نوم ښه نه دی) بلکې د دې نوم منذر دی.

## خپل غلام او وینزې ته عبدي او امتي ویل پکار نه دي

﴿۱۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل تاسو کې هیڅوک (خپل غلام

عَبدِي وَأَمتِي كلكُمْ عباد اللهِ وَكُلُّ نِسَائِكُمْ إِمَاءُ اللهِ.

او وینزې ته) عبدی او امتي مه وایئ. ستاسو ټول نارینه د الله بنده ګان او ستاسو ټولې ښځې د الله وینځې دي.

وَلَكِنْ لِيَقُلْ: غُلَامِي وَجَارِيَتِي وَفَتَايَ وَفَتَاتِي.

بلکې داسې وایئ چې زما غلام یعنې زما هلک زما جاریه یعنې زما جینۍ. یا زما خادم او زما خادمه.

وَلَا يَقُلِ الْعَبْدُ: رَبِّي ولكنْ ليقلْ: سَيِّدِي " وَفِي رِوَايَةٍ: "

دغه شان هیڅ غلام (خپل مالک ته) زما رب مه وایئ بلکې زما سردار ویل پکار دي. او یو روایت کې داسې دي

لِيَقُلْ: سَيِّدِي وَمَوْلَايَ ". وَفِي رِوَايَةٍ: " لَا يَقُلِ الْعَبْدُ لِسَيِّدِهِ:

چې زما سردار یا زما مولی ویل پکار دي. او یو روایت کې داسې دي چې هیڅ یو غلام خپل مالک

مَوْلَايَ فَإِنَّ مولاكم اللهُ". رَوَاهُ مُسلم

ته زما مولی مه وایئ ځکه ستاسو مولی صرف الله دی.

**توضیح:** عبدی: د جاهلیت په دور کې عربو خپل غلام ته یا عبدی ای زما بنده ویلو او وینځې ته به یې یا امتي ای زما غلامه ویلو. دې کې به یو انسان خپل بنده ګڼلی کېدلو. حال دا چې انسانان ټول د الله بنده ګان دي. دغه شان امة به یې د غلام په معنی کې اخستلو. حال دا چې حقیقي ملکیت د الله دی، ځکه دا الفاظ موهم شرک جوړېدل، نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې نه ممانعت وکړو.

اوس دلته پوښتنه دا ده چې د عبد او امة اطلاق قرآن کې موجود دی ﴿من عبادکم وامائکم﴾ (سورة نور : ۳۲) نو دې حدیث کې ممانعت څنګه وکړی شو؟ د دې جواب دا دی چې ممانعت هغه صورت کې دی چې څوک د تکبر او تجبر او د غرور او سرکشۍ په توګه داسې اطلاق کوي او غلطه معنی اخلي. ګویا کې د عبد نه خپل بنده مراد اخلي چې ما پیدا کړی دی، خو که څوک داسې نه کوي نو بیا دا اطلاق جائز دی، ځکه څنګه چې قرآن او حدیث کې دي. ګویا کې د عبد او امة یو مفهوم غلط دی. دې مفهوم کې راغوښتل جائز نه دی. او دویم مفهوم صحیح دی. هغې کې راغوښتل جائز دي. (مرقات۸/۵۲۲)

سلام چې څنګه د مشرانو اصلاح کړې ده، همدغه شان یې د غلامانو او د وینځو اصلاح هم کړې ده چې خپلو مشرانو ته رب یا ربي ویل جائز نه دي. دې هم هغه خبره ده چې د رب یو مفهوم داسې دی چې د الله سره خاص دی. دې صفت او دې مفهوم څوک په رب ویلو سره راغوښتل جائز نه دي، خو د رب یو مفهوم داسې دی چې د هغې اطلاق په غیر الله ته کېږي. هغه صرف د مالک او د آقا په معنی

کې دی، نو ځکه اجازت دی. لهذا د رب د اطلاق نفې هم ده او اثبات هم دی. دغه شان د مولی لفظ دی. د دې پنځه معنې راځې. ځينې د معنیٰ په اعتبار سره هیڅ مخلوق د مولیٰ ویل سره نه شي راغوښتلی. چې د خالق او د مالک په معنی کې دی، خو ځينې د معانې په اعتبار سره غیر الله ته هغې اطلاق کېدی شي، نو ځکه د نفې او د اثبات جدا جدا مواقع دي.

## انګور ته د "کرم" ویلو ممانعت

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:" |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل |
| لَا تَقُولُوا: الْكَرْمُ فَإِنَّ الْكَرْمَ قَلْبُ الْمُؤْمن ". رَوَاهُ مُسلم وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ |
| کرم مه وايئ ځکه کرم د مومن زړه دی (مسلم) او هم د مسلم یو حدیث کې د حضرت وائل ابن حجر |
| قَالَ: "لَا تَقُولُوا: الْكَرْمُ وَلَكِنْ قُولُوا: الْعِنَبُ والحبلة" |
| نه داسې منقول دي چې د انګور بوټې ته کرم مه وايئ بلکې عنب او حبله وايئ. |

**توضیح**: د عرب خلکو به ځکه انګور ته کرم ویلې چې د انګورو نه به شراب جوړېدل چې کرام الناس به څښلو. حماسي شاعر وايي

انا محيوك ياسلمىٰ فحيينا          وان سقيت كرام الناس فاسقينا

بهرحال د کرم لفظ کې د شرابو پس منظر پروت ؤو. نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا اطلاق منع کړو چې یو نجس څیز چې شراب دی د هغې په ماده او مبدء او د هغې بنیاد په کرم سره ولې یاد کړی شي. نو ځکه نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل چې کرم مه وايئ. عنب وايئ یا حبله وايئ. د انګور بوټې یا د هغې ښاخ یا جرلې ته حبله وايي. (مرقات۸/۵۲۲)

## زماني ته بد مه وايئ

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تُسَمُّوا الْعِنَبَ الْكَرْمَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل انګور ته کرم مه وايئ او |
| وَلَا تَقُولُوا: يَاخَيْبَةَ الدَّهْرِ فَإِنَّ اللهَ هُوَ الدهرُ". رَوَاهُ الْبُخَارِيّ |
| ما دا وايئ چې د نا امیدئ په زمانه کې ځکه بیشکه الله (په اختیار) کې زمانه ده. |

**توضیح**: **ان الله هو الدهر**: پوښتنه دا ده چې د الله څو مره نومونه دي هغه توقیفي نومونه دي. هغې کې د الدهر نوم نشته دی، نو دلته څنګه ویل شو چې الله دهر دی. د دې جواب دا دی چې الله الدهر په معنی د متصرف فی الدهر یا الله هو المدهر یعنې یعنې زمانه کې تصرف کونکی او هغې سموالی او کوږوالی والا الله دی. اوس دهر ته د بد ویلو نه ولې منع شوي ده، نو د دې حقیقت دا دی چې زمانه خو هیڅ نه شي کولی. زمانه چې څه کېږي هغه ټول الله کوي. د زمانې شاته د الله لاس دی،

نو کوم کس چې زمانې ته کنځل کوي، نو هغه پ حقیقت کې د هغې شاته مؤثر حقیقي ته په غیر شعوري توګه کنځل کوي. دا کنځل بحال متعلقه په اعتبار سره دی. دې کې د فاعل د بې ادبۍ خطر دی، نو ځکه منع کړې شوی دی. زمانې ته بد مه وایئ. د دې تفصیل په توضیحات جلد اول کې په ابتدائی ابواب ایمان کې تیر شوی دی. (مرقات۸/۵۲۲)

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَسُبَّ أَحَدُكُمُ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسو کې هیڅوک زمانې |
| الدَّهْرَ فَإِنَّ اللهَ هُوَ الدَّهْرُ. رَوَاهُ مُسلم |
| ته بد مه وایئ ځکه حقیقت کې الله د زمانې بدلونکی رابدلونکی دی. |

## ځان ته خبیث مه وایئ

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: |
| او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسو کې دې هیڅوک داسې نه وایي |
| خَبُثَتْ نَفْسِي وَلَكِنْ لِيَقُلْ: لَقِسَتْ نَفْسِي". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ |
| چې زما زړه خبیث دی بلکې **لقست نفسی** وایئ یعنې زما طبیعت خراب ش. (بخاری او مسلم) او د |
| وَذُكِرَ حديثُ أَبِي هريرة: يُؤْذِينِي ابنُ آدمَ فِي بَابِ الْإِيمَان (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) |
| حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت په یُؤْذِینِی ابن آدم باب الایمان کې نقل کړې شوی دی. (بخاری و مسلم) |

## الفصل الثاني

## د ابو الحکم کنیت مناسب نه دی

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ عَن شُرَيْح بن هَانِئٍ عَن أَبِيهِ أَنَّهُ لَمَّا وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ قَوْمِهِ |
| حضرت شریح ابن هانی رضي الله عنه د خپل پلار نه نقل کوي چې کله هغه د خپل قوم سره د نبي کریم صلی الله علیه وسلم |
| سَمِعَهُمْ يُكَنُّونَهُ بِأَبِي الْحَكَمِ |
| په خدمت کې حاضره شوه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم واوریدل چې د هغې قوم هغه د ابو الحکم د کنیت په ذریعه |
| فَدَعَاهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: إِنَّ اللهَ هُوَ الْحَكَمُ |
| مخاطب کوي نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم هغوی راوغوښتل او ویې فرمایل چې حکم خو صرف الله دی. |
| فَلِمَ تُكَنَّى أَبَا الْحَكَمِ؟ قَالَ: |
| او حکم د هغې له اړخ دی. بیا تاسو خپل کنیت ابو الحکم ولې ما عرض وکړو چې کړی دی. |

إِنَّ قَوْمِي إِذَا اخْتَلَفُوا فِي شَيْءٍ أَتَوْنِي فَحَكَمْتُ بَيْنَهُمْ
حضرت هانی رضی الله عنه چي کله زما قوم د يو مسئله خکار شي نو ما پسې راځي او زه د هغوی په معامله کي کومه فیصله کوم
فَرَضِيَ كِلَا الْفَرِيقَيْنِ بِحُكْمِي. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَحْسَنَ هٰذَا
نو دواړه ډلي هغه مني. نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورېدلو سره و فرمایل چي دا ډېره ښه خبره ده (دا
فَمَا لَكَ مِنَ الْوَلَدِ؟ قَالَ: لِي شُرَيْحٌ
راته اوايه) ستا څو بچي دي او د هغوی څه نومونه دي. هغې وويل چي زما درې بچي دي. چي نومونه یې شریح،
وَمُسْلِمٌ وَعَبْدُ اللهِ قَالَ: فَمَنْ أَكْبَرُهُمْ؟
مسلم او عبد الله دي. نبي کریم صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه چي درې واړو کي لوېي څوک دی؟
قَالَ قُلْتُ: شُرَيْحٌ. قَالَ فَأَنْتَ أَبُو شُرَيْحٍ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَالنَّسَائِيُّ
حضرت هانی رضی الله عنه وویل چي ما عرض وکړو شریح. نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل نو بیا ته د نن نه پس ابو شریح شوې.

**توضيح: الحكم**: د الله په نومونو کي یو نوم دی. د هغه سړي کنیت ابو الحکم ؤو. چي د الله د بې ادبۍ اړخ په کي راوتلو. نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغوی کنیت خوښ نه کړو او هغه یې د ابو شریح په نوم سره بدل کړو. ابو الحکم یعني د حکم پلار او د حکم د الله نوم دی. د دې حدیث نه معلومه شوه چې د پاکستان سیاسي لیډران او د جماعت اسلامي باني مودودي صاحب ته ابو الاعلیٰ ویل هم منع دي، لکه څنګه چي ابو الحکم منع دی. (مرقات۸/۵۲۴)

## اجدع نوم ایښودل ښه نه دی

﴿۱۷﴾ وَعَنْ مسروقٍ قَالَ: لَقِيتُ عُمَرَ فَقَالَ:
حضرت مسروق (تابعی) فرمایي چي کله زه د حضرت عمر رضی الله عنه سره مخ شوم نو هغه پوښتنه وکړه
مَنْ أَنْتَ؟ قُلْتُ: مَسْرُوقُ بْنُ الْأَجْدَعِ. قَالَ عُمَرُ:
چي ته څوک یې، ما عرض وکړو چي زه د اجدع ځوی مسروق یم. حضرت عمر (زما د پلار نوم اجدع اورېدلو
سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: الْأَجْدَعُ شيطانٌ رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وابنُ مَاجه
سره) وفرمایل چي ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه اورېدلي دي چي اجدع د شیطان (نوم) دی.

**توضيح: اجدع**: د مسروق تاریخ او وجه تسمیه د دې نه مخکې ج ۵ ص ۳۷۴ باندي لیکلی شوي ده. اجدع غوږ او پوزه غوڅ شوي ته وايي. حضرت عمر رضی الله عنه د تفنن او د ظرافت طبع په توګه دا وفرمایل چي دا اشاره په وه چي که ستا پلار هغه وخت ژوندی وی نو د هغې نوم به بدل کړی شوی دی. (مرقات۸/۵۲۴)

## ښه نومونه ږدئ

﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَسْمَائِكُمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِكُمْ فَأَحْسِنُوا أَسْمَائَكُمْ. رَوَاهُ أَحْمد وَأَبُو دَاوُد

او حضرت ابو درداء رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل د قيامت په ورځ تاسو به ستاسو او ستاسو د پلار په نومونو راغوښتلې کېږئ. لهذا تاسو ځان له ښه نوونه ږدئ. (احمد ابو داؤد)

**توضیح**: ځینې عجیبه قومونه وي. بچې پیدا کړي. ټول بوج یې او چتوي، خو لږ زحمت نه کوي چې د ښه نوم سوچ ورله وکړي.

## د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نوم او کنيت یو ځای مه ږدئ

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ نَهَى أَنْ يَجْمَعَ أَحَدٌ بَيْنَ اسْمِهِ وَكُنيَتِهِ وَيُسمى أَبَا الْقَاسِمِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دې خبرې نه منع کړې ده چې څوک د نبي عليه السلام نوم او کنيت یو ځای اختيار کړي. او د چا نوم چې محمد وي، هغې ته ابو القاسم (هم) وويل شي.

﴿۲۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: إِذَا سَمَّيْتُمْ بِاسْمِي فَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ قَالَ: مَنْ تسمّى باسمي فَلَا يَكْتَنِ بِكُنْيَتِي وَمَنْ تَكَنَّى بِكُنْيَتِي. فَلَا يَتَسَمَّ باسمي

او د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت د چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل که تاسو زما د پلار په نوم باندې خپل نوم محمد کېږدئ نو زما په کنيت باندې کنيت مه ږدئ. (ترمذی ابن ماجه) او ترمذی ويلي دي چې دا حديث غريب دی. او د ابو داؤد په روايت کې داسې دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمايل چې څوک زما په نوم باندې نوم کېږدي نو هغه زما په کنيت باندې کنيت مه مقرروئ او څوک چې زما په کنيت باندې کنيت مقرر کړي نو زما په نوم باندې نوم مه ږدئ.

## د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نوم او کنيت ایښودلو اجازت

﴿۲۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي

او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې يوې ښځې عرض وکړو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! زما

| |
|---|
| وَلَدَتْ غُلَامًا فَسَمَّيْتُهُ مُحَمَّدًا وَكَنَّيْتُهُ أَبَا الْقَاسِمِ فَذُكِرَ لِي |
| يو ځوي شوی دی او ما د هغې نوم محمد او د هغې کنيت ايښی دی، خو ماته ويلی شوي دي چې |
| أَنَّكَ تَكْرَهُ ذَلِكَ. |
| تاسو دا نه خوښوي (يعني ويونکي ماته دا وويل چې تاسو خپل نوم او کنيت يو ځای اختيارول حرام ګڼې؟) |
| فَقَالَ: مَا الَّذِي أَحَلَّ اسْمِي |
| نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې داسې څه شی دی چې زما په نوم باندې نوم کېدې نو هغه يې حلال او جائز ايښی دی. |
| وَحرم كنيتي؟ أَو ماالذي |
| او زما په کنيت باندې يې کنيت مقررول حرم کړی دی. يا يې داو فرمايل چې داسې څه شی دی چې |
| حَرَّمَ كُنْيَتِي وَأَحَلَّ اسْمِي؟ . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |
| زما کنيت باندې کنيت ايښودل خو حرام کړی دی او زما په نوم باندې نوم ايښودل يې حلال کړی دی؟ (ابوداؤد) |
| وَقَالَ مُحيي السّنة: غَرِيب |
| او محی السنة ليکلي دي چې دا حديث غريب دی. |

د دې حديث ممانعت نورو حديثونو لپاره ناسخ ګڼلی کېدی شي، ځکه د جمهورو په نزد دا فيصله ده چې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوم او کينت د نبي کريم ﷺ د مرګ نه وروسته جائز دی. اختلافي اقوال مې شاته نقل کړي دي.

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَن مُحَمَّد بن الحنفيَّةِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قُلْتُ: |
| او حضرت محمد ابن جنفيه د خپل پلار (حضرت علي کرم الله وجه) نه نقل کوي چې هغې وويل |
| يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْ وُلِدَ لِي بَعْدَكَ وَلَدٌ |
| چې ما عرض وکړو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! ماته او ايه چې که چرې ستاسو د پلار (د مرګ نه) وروسته |
| أُسَمِّيهِ بِاسْمِكَ وَأُكَنِّيهِ |
| که زما دلته (د فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نا يا د بلې کومې ښځې نه) نه کوم ماشوم پيدا شو نو آيا زه د هغې |
| بِكُنْيَتِكَ؟ قَالَ: نَعَمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد |
| نوم د ستاسو په نوم او د هغې کنيت د ستاسو په کنيت ايښودلی شم؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل آو. |

## د حضرت انس رضی الله عنه کنيت

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَن أَنس قَالَ: كَنَّانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ بِبَقْلَةٍ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما کنيت د هغه ساګ په نوم مقرر کړو چې کوم به ما راويستل |

| | | |
|---|---|---|
| كُنْتُ | أَجْتَنِيهَا. رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ |

(یعني نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زه د یو ساګ چې عربي کې ورته حمزه وایي په راویستلو باندې ولیدلم نو د هغې په مناسبت سره یې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ: | هَذَا | حَدِيثٌ | لَا | نَعْرِفُهُ |

زما کنیت ابو حمزه کیښودلو. دا روایت ترمذی نقل کړی دی او ویلي یې چې زمونږ علم دا دی چې دا حدیث د دې سند نه بغیر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | مِنْ | هَذَا | الْوَجْه. | وَفِي | المصابيح | صححهُ |

(جامع ترمذی نقل کړی دی او د بل هیڅ سند سره ذکر نه دی) صاحب مشکوة وایي چې مصابیح دا حدیث صحیح ګڼلی دی.

**توضیح**: کوم ساګ او وابنه به چې حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راویستل د هغې نوم به حمزه ؤو، نو ځکه د هغې کنیت حمزه کیښودلی شو. د دې نه معلومه شوه چې د کنیت ایښودلو لپاره دا ضروري نه ده چې د اولاد په وجه وي. بلکې د نورو شیانو په وجه هم ایښودلی کېدی شي. البته د هغې واسطه او تعلق ضروري دي. الکه ابو هریره، ابو حمزه، ابو الکلام وغیره. دغه دا هم ضروري نه ده چې سړی بالغ وي نو هله به د هغې کنیت ایښودلی کېږي بلکې دا هم جائز دي چې یو وړوکی ماشوم هم د کنیت سره یاد کړی شي لکه ابو عمیر وړوکی ماشوم ؤو چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کنیت ورکړو.

﴿۲۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ كَانَ يُغَيِّرُ الِاسْمَ الْقَبِيحَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

او حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به بد نومونه بدلول. (روایت کړي دي ترمذی)

## نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډیر نومونه بدل کړل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾وَعَنْ | بشير | بن | مَيْمُون | عَنْ | أُسَامَةَ | بْنِ | أَخْدَرِيِّ |

او حضرت بشیر ابن میمون (تابعی) د خپل تره حضرت اسامه بن خدري نه نقل کوي چې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ أَصْرَمُ كَانَ فِي النَّفَرِ الَّذِينَ أَتَوْا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په خدمت کې یو جماعت حاضر شو نو یو سړی هغوی کې دا سې هم ؤو چې اصرم به یې ورته ویلې.

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا اسمك؟ قَالَ: أَصْرَمُ

نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه نه پوښتنه وکړه: ستا څه نوم دی؟ هغه وویل اصرم، نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ته وویل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ: بَلْ | أَنْتَ | زُرْعَةُ. | رَوَاهُ | أَبُو | دَاوُدَ | وَقَالَ: | |

چې وفرمایل چې (نا بلکې د نن نه) ستا نوم زرعه دی. دا روایت ابو داؤ نقل کړی دی. او هغې دا هم نقل کړي دي

وَغَيَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْمَ الْعَاصِ وعزيز وَعَتَلَةَ وَشَيْطَانِ وَالْحَكَمِ وَغُرَابٍ

چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عاص، عزیز، عتله، شیطان، حکم، غراب، حباب او د شهاب نومونه بدل کړي ؤو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَحُبَابٍ | وَشِهَابٍ | وَقَالَ: ترکت | |
| أَسَانِيدَهَا | للاختصار | | |

ابوداؤد فرمايي چي ما داختصار له نظره دا روایتونه (چي د نومونو د بدلولو ذکر په کې دی) بغیر د اسنادو نه نقل کړی دی.

**توضيح:** اصرم: دا د غوڅولو په معنی دی، لکه څنګه چې يو بوټي يا فصل غوڅول کېږي. دا بنه نوم نه دی، نو ځکه ورله نبي کريم ﷺ تعميری نوم زرعه کیښودلو چې پټي او کروندي ته وايي. عاصی د عاص نه نافرمانۍ او د سرکشۍ په معنی کې دی، نو ځکه ورله نبي کريم ﷺ دا نوم بدل کړو. (مرقات۸/۵۲۹)

عزیز: دا د الله د نومونو نه دی. عبدالعزیز خو ښه دی خو صرف عزیز مناسب نه دی. د دې په معنی کې تعلی او زبردستۍ ده. چې د عبدیت د شان خلاف دی. (مرقات۸/۵۲۹)

عتلة: سخت او سرکشه ته وايي. مؤمن داسې نه وي. (مرقات۸/۵۲۹)

شيطان: د بدو جزله او د هغې د داعي نوم شيطان دی، نو ځکه دا نوم ایښودل غلط دی، ځکه شيطان د ياشط نه دی چې معنی یې سوځېدل او هلاک کېدل ده. يا شيطان د شطن نه راوتلی دی چې معنی يې ده د الله د رحمت را ویستل شوی او بعدی کیدل دواړه معنې بیکاره دي او خپله شیطان بد کرداره دی. لهذا دا نوم بیکاره دی.

حکم: دا د الله د نومونو نه دی. کله چې نبي کريم ﷺ ابوالحکم منع کړو نو صرف حکم نوم ایښودل نو بطريق اولی ناجائز دی. (مرقات۸/۵۲۹)

غراب: کارغه ته وايي. چې يو مکروه مارغه دی. مرادر هم دی. (مرقات۸/۵۲۹)

حباب: د شيطان نوم دی او د مار نوم هم دی، نو ځکه د نوم به لپاره ایښودل غلط دی. (مرقات۸/۵۳۰)

شهاب: شيطان ویستونکي ستورو ته شهاب ثاقب وايي. که د دې اضافت د دین له اړخه شي لکه شهاب الدين نو بيا جائز دی. (مرقات۸/۵۳۰)

## دزعموا لفظ د دروغو پل دی

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَن أَبِي مسعودِ الأنصاريِّ قَالَ لِأَبِي عَبْدِ اللهِ أَوْ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللهِ |
| او د حضرت ابو مسعود انصاری رضي الله عنه نه روایت دی چې هغې د حضرت ابوعبدالله نه یا د حضرت ابوعبدالله |
| لِأَبِي مَسْعُودٍ: مَا سَمِعْتَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي (زَعَمُوا) |
| د حضرت ابو مسعود رضي الله عنه نه وپوښتل چې د نبی کريم ﷺ نه دې د زعموا د لفظ باره کې څه اوریدلي دي؟ |

قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: بِئْسَ مَطِيَّةُ الرَّجُلِ
هغې جواب ورکړو چې آؤ ما د نبي کریم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ نه اورېدلي چې دا (لفظ) د نارینه بده سورلي ده.
رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: إِنَّ أَبَا عَبْدِ اللهِ حُذَيْفَةُ
ابو داؤد دا روایت نقل کړی او ویلي يې دي چې أبو عبد الله د حضرت حذیفه بن الیمان کنیت دی.

**توضیح**: زعموا: يعنې د زعموا چې کوم لفظ دی دا د سړي بد ترېنه سورلې ده. اهل لغتو ليکلي دي چې د زعم لفظ سره چې کوم قول وشي دا هغه خبرې او قول ته وايي چې هغې کې پوره اعتماد او اطمينان نه وي. اګر که کله کله د زعم لفظ د يقيني خبرې لپاره هم استعمالېږي، خو عامه قاعده همدغه ده چې دا لفظ د شک او ګمان په موقع استعمالېږي. د بحث لاندې حديث کې يو صحابي د بل نه پوښتلي دي چې د آيا د نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ نه دې د زعم لفظ متعلق څه اورېدلي دي. صحابي جواب ورکړو چې آؤ ما اورېدلي دي، نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل چې دا د سړي بد ترېنه سورلې ده. مطلب دا دی چې څنګه چې يو سړی انو بانو سره خپل منزل ته د رسيدلو لپاره ذرائع استعمالوي. دغه شان کله چې يو کس د دروغو خبره ښوره وي نو هغه د کوم ثبوت يا د سند يا د کوم نوم اخستلو نه بغير وايي چې د خلکو داسې خيال دی. خلک داسې وايي. دغه شان ويلې کېږي، د کلام په انداز سره سړی د دې لفظ په ذريعه ډېر دروغ وايي او ښوروي يې. نن سبا د بې بې سې په خبرو کې دروغ ته د رسيدلو او د هغې په ښورولو کې د ټولو نه زيات همدغه لفظ استعمالولې. يو جزئي خبرې او واقعې ته د قاعده کليه شکل د ورکولو لپاره همدغه لفظ د پل په توګه استعمالوي چې خلک داسې وايي. د خلکو دغه شان خيال دی. دا عجيبه طريقه ده چې د رغوجن سړی کله هم نه نېول کېږي، ځکه نه هغه د چانوم اخلي او نه سند او ثبوت وايي. د دې حديث تعليم دا دی چې داغه شان بې سره او بې پښې خبرې ښورول پکار نه دي او بې تحقيقه اورېدل شوي خبرې الوځول پکار نه دي. بلکې پوره تحقيق او د اعتمار سره د کلک حقيقت په بنياد باندې خبره مخکې رسول پکار دي. (مرقات ۵۳۰،۵۳۱/۸)

## شرک فعلي پشان د شرک قول نه بچ کيدل هم ضروري دي

﴿۲۷﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:
او حضرت حذيفه رَضِيَاللَّهُعَنْهُ د نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ نه نقل کوي چې نبي کريم صَلَّاللَّهُعَلَيْهِوَسَلَّمَ وفرمايل
لَا تَقُولُوا: مَا شَاءَ اللهُ وَشَاءَ فُلَانٌ
داسې مه وايئ چې (همغه به کېږي) چې څه الله غواړي او فلانی وغواړي البته د ظاهري اسابو او

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلٰكِنْ | قُولُوا: | مَا | شَاءَ | اللّٰهُ |

وسائلو له نظره د انسان له اړخه و د مشیت نسبت منشور وي نو بیا) داسې وایئ چې (هغه به کېږي)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | شَاءَ | فلَان". | رَوَاهُ | أَحْمد | وَأَبُو | دَاوُد | وَفِي | رِوَايَةٍ | مُنْقَطِعًا |

څه چې الله غواړي او بیا یې فلاني غواړي. دا روایت احمد او ابوداؤد نقل کړی دی. او په یو منقطع روایت کې دي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ:" | لَا | تَقُولُوا: | مَا | شَاءَ | اللّٰهُ | وَشَاءَ | مُحَمَّدٌ |

چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: داسې مه وایی: څه چې الله وغواړي او محمد (ﷺ)

وَقُولُوا مَا شَاءَ اللّٰهُ وحْدَه. رَوَاهُ فِي شرح السّنة"

وغواړي، او وُوایی هغه څه چې یوازې یې الله وغواړي.

**توضیح**: **وشآء فلان**: یعني د مشیت الفاظو کې د الله د خوښې سره د بل چا خوښې ملاول پکار نه دي چې څوک اووي چې څه الله او رسول غواړي هغه به کېږي. دغه شان هیڅ یوه جمله ورسره ملاول پکار نه ده بلکې داسې فیصله کول پکار دي چې کله الله وغواړي او بیا فلانې وغواړي، نو دې صورت کې د الله خوښه مقدم وي او د سړې خوښه به د هغې تابع شي. دا صورت صحیح دی. خلک داسې خبرو کې ډېرې زیات غُلو کوي. حال دا څنګه چې د شرک فعلې نه سړی ځان ساتېد غه شان د شرک قولې نه ځان ساتل ضروري دي. (مرقات۸/۵۳۲)

## منافق ته سردار مه وایئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۸﴾وَعَنْهُ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ: |

او حضرت حذیفه رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ نه نقل کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تَقُولُوا | لِلْمُنَافِقِ | سَيِّدٌ | فَإِنَّهُ | إِنْ يَكُ |

هیڅ یو منافق ته سید مه وایئ یعنې سردار او آقا ورته مه وایئ ځکه که هغه سید وي (او تا هغې ته

سَيِّدًا فَقَدْ أَسْخَطْتُمْ رَبَّكُمْ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد

سید وویل) نو تا خپل پروردګار ناراضا کړو.

**توضیح**: **سید**: سردار او آقا ته وایي. منافق دا چې د الله د دین او د مسلمانانو دښمن وي. که په ژبه یې هر څه وي خو د زړه نه اسلام سره دښمنې ساتې، نو داسې کس ته خدای سید او د آقا والا د احترام الفاظو سره یادول ناجائز دي. الله منافقین د ذلالت او رسوائی او د خوراي او د بربادئ الفاظو سره یاد کړی دی. د دې نه باوجود هم که یو کس د منافق تعریف او توصیف کوي و هغه د الله کلام ته د دروغو نسبت کوي چې الله پرې خفه کېږي. که یو منافق رښتیا هم د خپل خاندان سردار دی

يا د ملک مشر دی نو بیا هم ورته آقا ویل پکار نه دي ځکه هغه د دې شان والا الفاظو سره د یادولو اهل نه دی. نن سبا د مسلمانانو د منافق حکمرانانو په تعریف کې چې کوم خوشامدي خلک د هغوی قصیدې وایي هغې له پکار دي چې منع شي او خپل رب نه ناراض کوي ګنې د آخرت د عذاب لپاره تیار شي. (مرقات۸/۵۳۳)

## الفصل الثالث

## د بد نوم بد اثروي

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ قَالَ: جَلَسْتُ إِلَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ |
| حضرت عبد الحمید ابن جبیر ابن شیبه وايي چې زه د حضرت سعد ابن مسيب په خدمت کې حاضر شوم نو هغې |
| فَحَدَّثَنِي أَنَّ جَدَّهُ حَزْنًا قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ماته دا حدیث بیان کړو چې زما نیکه (چې نوم یې حزن ؤو) د نبي کریم ﷺ خدمت کې حاضر شو |
| فَقَالَ: مَا اسْمُكَ؟ قَالَ: اسْمِي حَزْنٌ قَالَ: |
| نو نبي عليه السلام ترېنه وپوښتل چې ستا څه نوم دی؟ هغې وویل چې زما نوم حزن دی. نبي عليه السلام وفرمایل |
| بَلْ أَنْتَ سَهْلٌ قَالَ: مَا أَنَا بِمُغَيِّرٍ اسْمًا سَمَّانِيهِ أَبِي. |
| چې (حزن ښه نوم نه دی) بلکې زه ستا نوم سهل ایږدم. هغه وویل چې زما نیکه چې ماله کوم اینبی دی زه دا بدلوی نه شم. |
| قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ: فَمَا زَالَتْ فِينَا الْحُزُونَةُ بَعْدُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيّ |
| حضرت سعید وفرمایل چې د هغې نه وروسته تر اوسه پورې زمونږ خاندان کې همیشه سختي ده. |

**توضیح:** حزن: دا نوی مسلمان صحابي ؤو. کېدی شي د نبي کریم ﷺ کلام یې حکم په ځای اختیاري ګڼلی وي او د نوم خوښول یې خوښ کړی نه وي، خو د نوم ترجمه دا چې سختې او مصیبت ؤو، نو ځکه یې د نوم اثر په خاندان کې پاتې شو او همیشه د حکمرانانو له اړخه د مصیبتونو او د تکلیفونو ښکار شول. حضرت سعید بن المسیب جلیل القدر تابعي دی. دا افسوس کوي چې کاش که زما نیکه د نبي کریم ﷺ ویلی شوی نوم سهل خپل کړی وی نو زمونږ خاندان باندې به هم نرمي او سهولت وی، ځکه د ښه او د بد نوم اثر ضرور کېږي. حزن سختې او کلکې او کاږجنې ځمکې ته وایي. او سهل نرمه، پسته او هوارې ځمکې ته وایي. (مرقات ۵۳۴-۵۳۵/۸)

## ښه او ريښتيا نومونه

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : تَسَمَّوْا |
| او حضرت ابو وهب جشمي فرمايي چې نبي كريم ﷺ و فرمايل د انبياؤ په نومونو باندې |
| أَسْمَاءَ الْأَنْبِيَاءِ وَأَحَبُّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللهِ عَبْدُ اللهِ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَأَصْدَقُهَا |
| خپل نومونه ږدئ او د الله په نزد بهترين نوم عبد الله او عبد الرحمن دي. او زيات ربښتني نومونه |
| حَارِثٌ وهمامٌ أقبحها حربٌ ومُرَّةٌ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد |
| حارث او همام دي او د ټولو نه بد نومونه حرب او مره دي. |

**توضيح**: **الانبياء**: يعنې د انبياؤ په نونونو باندې خپل نومونه ږدئ. دې كه پټه اشاره كېدى شي چې د فرښتو په نومونو باندې خپل نومونه مه ږدئ.

دې حديث كې دا هم وويلى شو چې د جاهليت د زمانې په طرز بد او وېرونكنې نومونه مه ږدئ لكه څنګ چې **حرب** دى يا **مرة** دى. **مرة** پيكا او تريخ ته وايي د ابليس كنيت هم **ابومرة** دى. او **حرب** جنګ ته وايي.

د جاهليت په دور كې **حمار**، **كلب** او **عبدالشمس** وغيره نومونه به هم ايښودلى كېدل دا قبيح نومونه دي.

**حارث**: كرهنې او د كسب او عايد لپاره د **حارث** لفظ استعمالېږي. اوس دنيا كې هر سړى په كسب او ګټولو كې مشغول دى، نو ځكه دا ربښتنې نوم دى.

دغه شان "**همام**" اهتمام او قصد او ارادې ته وايي. او هر كس په څه نا څه اهتمام او قصد او اراده كې لږيا دى، نو ځكه دا هم ښه ريښتينې نوم دى. (مرقات ۸/۵۳۵)

## تمت بالخير



